# الورد الشذي

پښتو شرح د

# جامع الترمذي


شيخ الاسلام فقيه العصر
محمد حسن جان المدني شهيد


حديث
۱ تا ۳۰۵

خصوصيات

- معرب متن
- په متن باندې اعراب
- د باب نمبر
- د حديث نمبر
- ترجمه او تشريح
- حل لغات
- د راوي حالات
- د حديث تخريج
- تحقيق د مذاهب اربعه
- متن مع السند بالاستيعاب


جمع وترتيب
ابو هلال عبد الخالق



مكتبه رحمانيه
0302-6209815
0316-9400041

وَمَا يَنْطِقُ عَنِ الْهَوىٰ إِنْ هُوَ إِلَّا وَحْيٌ يُوحىٰ

# الورد الشذي

پښتو شرح د

# جامع الترمذي

## جلد اول

## ازحديث ـ ١ ـ تا ـ ٣٠٥ ـ

جمع وترتيب خادم العلماء المفتقر الي الله ابوهلال: **عبدالخالق بن خان محمد**
خريج الجامعة امداد العلوم الاسلامية پشاور/ وفاضل وفاق المدارس العالمية (ايم اى اسلاميات)

**ازافادات**

شيخ الاسلام فقيه العصر محمد حسن جان (المدني) شهيد (رحمه الله)

**ناشر:** مکتبه رحمانيه پشاور

Scanned with Ca

وَمَا يَنْطِقُ عَنِ الْهَوَىٰ إِنْ هُوَ إِلَّا وَحْيٌ يُوحَىٰ

# الــــورد الشـــذي

پښتو شرح د

# جـــامع الـــترمذي

## جلد اول

## ازحديث _١_ تا _ ٣٠٥_

جمع وترتيب: خادم العلماء المفتقر الي الله ابوهلال: **عبدالخالق بن عثمان محمد**
خريج الجامعة امداد العلوم الاسلامية پشاور/ وفاضل وفاق المدارس العالمية (ايم اى اسلاميات)

**ازافادات**

شيخ الاسلام فقيه العصر محمد حسن جان (المدني) شهيد (رحمه الله)

**ناشـــر:** مكتبه رحمانيه پشاور

حقوق الطبع محفوظة بحق الناشر

**اسم الكتاب:** الورد الشذي بشرح الجامع للترمذي

**جلد** **اول**

**تاليف:**

ابوهلال "عبدالخالق" بن خان محمد خَرِيجُ الجَامِعَة اِمْدَادُ الْعُلُوْمِ الْاِسْلَامِيَّةِ بِشَاوَر۔
وفاضل وفاق المدارس العالمية (ايم اى اسلاميات) رابطه نمبر ۰۳۳۲۹۱۲۱۱۹۲

**مصحح:** مولانا عبد الوافي بن عبد الباقي رودات حصارك مزينه . فاضل جامعه امداد العلوم پشاور

سال اشاعت: **۲۰۲۱ ـ اپريل**

**تعداد:** ۱۰۰۰

**ناشر:** مكتبه رحمانيه محله جنكي نزد قصه خواني (پشاور)

**اهتمام طباعت:** الحاج شاه زاده صاحب

بِسْمِ اللّٰهِ الرَّحْمٰنِ الرَّحِيْمِ

# فهرس العناوين والمحتويات

Scanned with C

سُبْحَانَ رَبِّكَ رَبِّ الْعِزَّةِ عَمَّا يَصِفُونَ ، وَسَلاَمٌ عَلَى الْمُرْسَلِينَ ، وَالْحَمْدُ لِلّٰهِ رَبِّ الْعَالَمِينَ.

***************

بِسۡمِ اللّٰهِ الرَّحۡمٰنِ الرَّحِيۡمِ

# مقدمة المصنف

## حالات او علمي مقام او خدمات دامام ترمذي (رحمه الله)

دامام ترمذي پوره نوم ابو عيسي محمد بن عيسي بن سورة بن موسي بن الضحاك دي او دري نسبتونه لري: (١) السليمي (٢) الترمذي (٣) البوغي

علامه سمعاني دضحاك په ځاي شداد ليکلي دي اسم محضه يي محمد دي او ابو عيسي يي اسم کنيه ده کله کله چي لقب مشهور شي نو هم هغه استعماليږي لهذا دا لقب او کنيه داوړه ده او سليمي ته منسوب کيدل من حيث القبيله دي ځکه چي د بني سليم قبيلي سره يي تعلق وو او ترمذ او بوغ وطنونه دي دعلامي په لحاظ يي ورته نسبت شوي دي امام موصوف دترمذ ښار اوسيدونکي وو. او ترمذ ښار دجيحون درياب سره چي په دريا بلخ مشهور دي واقع دي، دا يو قديمي ښار دي چي دبلخ درياب په کناره واقع دي ددي نسبت په لحاظ ورته ما وراء النهر هم وئيلي شي، او دا درياب دافغانستان او ورورس په مينځ کي فاصل دي، مګر اوس دا ښار دموجوده جغرافيه په لحاظ په ازبکستان کي واقع دي ترديي چي دا علاقه د ۲۰۰هجري نه تر ۷۰۰هجري پوري ددينى علومو مرکز پاتي شوي، او خاصکر دا ښار د مدينة الاولياء په نوم هم په خلقو کي ياديږي.

بوغ مقام د ترمذ ښار په کلو کي ديو کلي نوم دي په بوغ کلي کي دامام ترمذي ولادت شوي دي چي دترمذ ښار نه دشپږ فرسخ مسافه کي واقع دي.

### ولادت او وفات

دصحيح قول مطابق دامام ترمذي ولادت په ۲۰۹هجري کي شوي دي او دوفات متعلق يي دعلماؤ اتفاق دي چي په ۲۷۹هجري کي داويا کالو په عمر کي په ترمذښار کي د دوشنبي په شپه وفات شوي دي.

**اعتراض**: دبعضي روايتونو نه معلوميږي چي ابو عيسي کنيه ايښودل ممنوع دي او وجه دممانعت داده چي دعيسي عليه السلام بالکل پلار نشته چنانچي ابن ابي شيبه پخپل مصنف کي يو روايت نقل کړي دي: ان رجلا کني بابي عيسي فقال له رسول الله صلي الله عليه وسلم لا اباعيسي ، يعني يو کس د ځان دپاره ابو عيسي نوم کيښودو نو نبي کريم صلي الله عليه وسلم ورته اوفرمائيل چي دعيسي عليه السلام بالکل پلار نشته نو ددي شبهي په بنا رسول الله ددينه انکار اوکړو مګر دابو داود په روايت کي دي چي د امير المؤمنين عمرفاروق رضي الله عنه خوي دځان دپاره ابو عيسي کنيه منتخب کړه، نو اميرالمؤمنين عمر فاروق

رضي الله عنه هغه ته سزا ورکړه نو بيا ابو عيسي کنيه څنګه امام ترمذي دخان دپاره منتخب کړي ده؟

**جواب:** ممکن ده چي دممانعت والاحديث امام ترمذي ته رسيدلي نه وي ليکن دا جواب کمزوري دي ځکه چي دا جواب دامام ترمذي دعلمي جلالت سره مناسب نه دي.

بل جواب دادي چي دا ممانعت په ابتداء کي وو او بيا منسوخ شوي دي ابو عيسي کنيه هغه وخت کي جائز نه وو کله چي دعقيدي دفساد احتمال وو مګر کله چي اسلامي عقائد راسخ شول نو ددي شبهي وقوع باقي پاتي نشوه.

بل جواب دادي ممکن ده چي امام ترمذي دا ممانعت او دا حديث په کراهت تنزيهي او خلاف اولي محمول کړي وي.

ددي يو جواب دا هم دي د ابو داود په حديث کي دي چي مغيرة بن شعبه رضي الله عنه دخان دپاره ابو عيسي کنيه منتخب کړي وه کله چي عمر فاروق ورته انکار اوکړونو وي فرمائيل تا هم دخان دپاره ابوعيسي کنيه منتخب کړه په دي وخت کي مغيره رضي الله عنه اوفرمائيل کني بي رسول الله صلي الله عليه وسلم، يعني ددي اسم کنيه انتخاب زما دپاره رسول الله صلي الله عليه وسلم کړي وو او يا دا چي دا يي زما دپاره جائز کړي وه (الاصابه).

## دعلم دحصول دپاره دامام موصوف مختلفو ممالکو ته سفرونه کول.

امام ترمذي چونکه په ماوراء النهر علاقه کي پيدا شوي دي او دا علاقه څلور سوه کالو پوري دعلم مرکز پاتي شوي وو نو په دي بناء امام موصوف ابتدائي تعليم پخپله علاقه کي حاصل کړو او دمزيد ترقۍ دپاره يي مختلفو ممالکو ته سفرونه اوکړل چنانچي بخاراء، خراسان، بصره، کوفه، حجاز، مکه مکرمه، مدينه منوره ته يي سفرونه اوکړل، امام ابن حجر فرمائي:

طاف البلاد وسمع خلقا اي من العلماء الخراسانيين والعراقيين والحجازيين. يعني هغوی مختلفو علاقو ته سفرونه اوکړل او دخراسان او عراق او حجاز د ډيرو علماؤ نه يي علم حاصل کړو.

## دامام ترمذي مشائخ

چونکه امام ترمذي دعلم دحصول دپاره ډيرو ممالکو ته سفرونه کړي دي نو په دي اعتبار سره دهغه داستاذانو تعداد هم زيات دي مګر يو څو مشهور ترين استاذان يي ستاسو دعلمي ترقۍ دپاره په لاندينو کرخو کي ذکر کوو:

(۱) امير المؤمنين في الحديث محمد بن اسماعيل بخاري رحمه الله.

(۲) امام مسلم بن الحجاج القشيري.

(۳) امام ابو داود

(۴) قتيبه بن سعيد.

(۵) محمد بن بشار
(۶) يحيي بن سعيد انصاري
(۷) هناد بن السريع
(۸) محمود بن غيلان
په دې ټولو کې يې زياته استفاده دامام بخاري نه کړې ده چنانچې امام ترمذي پخپله يوه مشهوره رساله کې پخپله اعتراف کوي چې ما په ټولو استاذانو کې دهر چا نه زياته استفاده. دامام بخاري نه کړې ده او دهغه سره به مې علمي مذاکرې کولې چنانچې په جامع الترمذي کې ۱۱۴ ، مواقعو کې دامام بخاري نه دامام ترمذي داستفادې صراحت موجود دې، صرف هغه استاذان دچا نه چې امام ترمذي پخپل کتاب کې اخذ دروايت کړې دې دهغوی تعداد ۲۰۲ دې.

## دامام ترمذي شاګردان

دامام موصوف دشاګردانو تعداد هم زيات دې ليکن په طور دنمونې ورنه دلته ديوڅو مشهورو اشخاصو تذکره کوو.
(۱) ابو العباس محمد بن احمد ، (۲) ابو حامد احمد بن عبدالله مروزي (۳) داود بن نصرائيين سهل بزدوي (۴) احمد بن يوسف النصفي (۵) محمد بن محمود (۶) ابو الحسن احمد بن ابراهيم، ټولو استاذانو به امام ترمذي ته دقدر په نظر کتل چنانچې يو ځل امام بخاري پخپله هغوی ته اوفرمائيل: ما انتفعت بك اكثر مما انتفعت بي يعني ځومره فائده چې ما ستا نه حاصله کړه دومره تا زما نه نه ده حاصل کړې.

## دامام ترمذي علمي مقام

دامام بخاري دوفات نه پس په علمي طور سره دهغه جانشنين امام ترمذي مقرر شو چنانچې حافظ ابن حجر فرمائي:
مات البخاري فلم يخلف بخراسان مثل ابي عيسي في العلم والحفظ والورع والزهد بكي حتي عمي وبقي ضريرا سنين. يعني دامام بخاري دوفات نه پس په خراسان کې دامام ترمذي پشان بل څوک نائب نشته نه په علم کې نه په حفظ کې او نه په زهد او تقوي کې او دهغه په مرګ يې دومره اوژړل چې نظر يې ختم شو او بيا يې دژوندګئ ډير کلونه په نابينا حالت کې تير کړل.

## عالي السند

امام ترمذي ته دسند دعلوم مقام حاصل دې او واسطې يې کمې دې په اصل کې سند په دوه قسمه دې يو عالي سند دې اوبل سافل، چنانچې دجامع الترمذي دکتاب الفتن په اخر کې يو حديث دې په کوم کې چې دامام ترمذي او د نبي کريم صلي الله عليه وسلم په مينځ کې صرف درې واسطې دې داسې احاديثو ته په اصطلاح دمحدثينو کې ثلاثيات وئيلې شي په جامع

الترمذي کي صرف یو حدیث ثلاثي دي او په بخاري کي تقریبا ۲۲ احادیث ثلاثیات دي، په مؤطاء دامام مالك کي دثلاثیاتو تعداد دهر چا په نسبت زیات دي.

## غرض دامام ترمذي

دهر محدث د احادیثو په جمع کولو کي کوم خاص غرض وي، مګر دامام ترمذي دټولو نه لوی غرض مذاهب او ددوئ مستدلات بیانول دي دشیخینو په طریقه کي ابهام او د تبیین لاره وه او دامام ابو داود لاره مستدلات وو نو دواړه یي په انتهائي عمدګئ سره جمع کړل او انسانیت ته یي پیش کړل.

بعضي کسانو خو امام ترمذي ته اکمه یعني مادرزاد ړوند ونیل لیکن دا نسبت غلط دي صحیح ترین قول دادي چي امام ترمذي دامام بخاري په وفات دومره اوژړل چي نظر یي ختم شو داسي کس ته ضریر ونیلي شي په دنیا کي یي اویا کاله ژوند تیرکړي دي او بیا یي دارالبقاء ته رحلت کړي دي.

## دامام ترمذي مسلك

فائده اولا: په اصل کي په دغه زمانه کي دوه مکاتب فکر وو:

(۱) دفقهاؤ او دمحدثینو دا هغه کسان وو دچا اصل کار چي دنصوصو نه مسائل مستنبط کول وو او ضمناً یي روایت دحدیث هم کولو دي قسمه خلقو ته عراقیین او اهل الرائي ونیلي شي.

دویم جماعت دمحدثینو فقهاؤ دي دا هغه کسان دي دچا اصل کار چي روایت کول وو مګر مسائل به یي هم بیانول دوئ ته حجازیین ونیلي شي او اهل حدیث ورته هم ونیلي شي (مګر غیر مقلدین مراد نه دي) په عراقیینو کي صرف امام ابو حنیفه او دهغه شاګردان نه وو بلکه نور هم ډیر مجتهدین وو چي ددي شعبي سره یي تعلق لرلو لکه سفیان ثوري، سفیان بن عیینه، عبدالله بن مبارك ابن ابي لیلي ، ابن شبرمه او ددوئ نه علاوه دزماني د مرور سره دوئ او ددوئ ملګري یوخاي شول او حنفي مذهب په وجود کي راغي او دحجازیینو معامله ددي برعکس پاتي شوه ددوئ معامعله په ابتداء کي یوه وه مګر دزماني دتیریدو سره دوئ مختلف شول دحجازیینو سرکرده او سپه سالار سعید بن المسیب رحمة الله علیه وو او بیا دهغه نه پس ددوئ مشري امام مالك کوله او بیا امام شافعي دهغه نه پس ددوئ لاره اختیار کړه تردي چي دهغه یو مستقل مذهب جوړ شو بیا امام احمد هم دا لاره اختیار کړه او دهغه هم یو مستقل مذهب جوړ شو په دي سلسله کي صرف امام شافعي او احمد نه دي بلکه ددوئ نه علاوه نور هم ډیر اشخاص ددي زنځیر کړئ دي لکه امام اوزاعي، ابن جریر، طبري وغیره مګر روسته ددوئ منونکي پاتي نشول او پخپله ختم شول.

**الغرض** حجازيين په دري اقسامو تقسيم شول او عراقيين متحد پاتي شول اوس هم په موجوده زمانه كي څلور قسمه مكاتب فكر باقي وي دصحاح سته دتصنيف په وخت كي حجازيين جدا جدا ناست نه وو مگر اثار شروع شوي وو هغه وخت كي چي به څوك مالكي وو هغه پوره مالكي نه وو بلكه ميلان به يي د امام مالك مذهب ته كولو او چي څوك به شافعي وو او يا به حنبلي وو هغوئ هم پوره شوافع او پوره حنابله نه وو بلكه ددوئ طرف ته يي ميلان وو ، امام ترمذي هم داهل حجاز تقليد كولو او دامام احمد بن حنبل مذهب طرف ته مائل وو لكه چي دامام ابو داود ميلان هم حنبلي مذهب ته دي لكه چي په كتاب كي هم دي طرف ته په اكثرو مقاماتو كي اشارات كوي او په هيڅ يو مقام كي يي صراحتا په امام احمد بن حنبل تنقيد نه دي كړي بلكه ځاي په ځاي دهغه رسئ راكاړي او دامام شافعي او امام ابو حنيفه په مذهب اعتراضات كوي.

دامام اسحاق بن راهويه او دامام احمد بن حنبل مسلكونه جدا جدا نه وو بلكه صرف يو فيصد يا دوه فيصده مسائلو كي يي اختلاف وو پس امام ترمذي هم دوئ طرف ته منتسب دي.

دويم قول دشاولي الله محدث دهلوي دي چي امام ترمذي مقلد محض نه دي بلكه مجتهد منتصب دي او مجتهد او منتصب هغه چاته ونيلي شي څوك چي په اصل استنباط كي دخپل امام مقلد وي او په فروعاتو كي ازاد وي او دهيڅا مقلد نه وي امام ترمذي بالكل داسي دي څنگه چي دامام طحاوي حالت وو.

# مقدمة الشارح

بسم الله الرحمن الرحيم

الحمد لله الواحد العلي المتعال، الوالي الواجد الغني، المنزه عن كل عيب، الذي لاسمي ولا وزير ولا شبيه ولا نظير له، المقتدر بالخلق و المتصرف بالمشيئة والتقدير ليس كمثله شئ وهو السميع البصير، له الرفعة والحمد والثناء ، والعلو الذي لا تحيط بجلاله العقول والأفهام ، والصلاة والسلام علي اكرم الخلائق المبعوث بالملة البيضاء والحنفية السمحاء الذي ليلها كنهارها امابعد:

علم حديث ددين اسلام په علومو كي يو داسي علم دي په كوم كي چي د انسانيت دپاره بلند پايه رهنمائي او اخلاقي او حقوقي تربيت او د همدردئ يو بي مثاله درس دی او يو انسان لره ددرنده توب نه انسانيت ته رابلي او دا دُ اخلاقو او كردار د اصلاح اوددنيوي او اخروي سعادت يوه بي انتهاء لويه خزانه ده اوهمدي مضمون ته د علم حديث په موضوع كي هم اشاره شوي ده چي په علم حديث كي د "الفوز بسعادة الدارين" نه بحث كيږي د كوم سره چي د حلالو او حرامو داحكامو معلومولو تعلق دی، دا تمام امور ددي علم په اهميت دلالت كوي. بلكه علم حديث دعلوم اسلاميه منهج او اساس او دائرة المعارف دي ، بلكه علماؤ حديث رسول وحي خفي گڼلي دي، او دا زمونږ دپاره د الله تعالي په انعاماتو كي عظيم ترين نعمت دی.لكه چي د سورة المائدة د ايت: الْيَوْمَ أَكْمَلْتُ لَكُمْ دِينَكُمْ وَأَتْمَمْتُ عَلَيْكُمْ نِعْمَتِي وَرَضِيتُ لَكُمُ الْإِسْلَامَ دِينًا (المائدة:٣) نه په طور د دلالت النص معلوميږي خكه چي دا معلوم حقيقت دي چي اكمال ددين په حديث نبوي شوی دی.

حقيقت دادی چي په كوم كال (١٩٨٩) كي ما په دوره حديث كي داخله كوله نو حيران وم چي .چرته لاړشم ؟ په مختلفو مدارسو وگرځيدم مگر كله چي مي د شيخ الاسلام شيخ المشائخ شيخ الحديث محمد حسن جان (المدني) شهيد (رحمه الله) د خولي نه يو خو كلمات واوريدل نو مطمئن شوم او سوچ مي وكړو ماله بل هيچرته تلل ندي پكار، غرض دا چي ددوئ سره مي داخله واخستله او په دوره حديث كي ورسره شريك شوم ، او صحيح البخاري او جامع الترمذي مي ورنه ولوستل، هغوئ ته الله تعالي په علم حديث كي بي حده مهارت وركړی وو، دا كتابونه يي په بهترين انداز او اسلوب سره تدريس كړل، او دهم هغه وخت نه زما په زړه كي د صحيح البخاري او جامع الترمذي سره د نورو كتابونو په نسبت محبت زيات شو، ددرس په

دوران کي او ددرس نه پس به مونږ د شيخ صاحب نه دبعضي ضروري مسائلو نوټ هم اخستلو ، ترددي چي اوس په بعضي مسائلو کي په کار راغلل، او الحمد لله بعضي نور مسائل مونږ ته دهغوئ د خولي نه زباني هم ياد دي او د کتابونو د مطالعي هم ډير کوشش جاري دی، بهر حال دمشائخو فيوضات بهترينه علمي سرمايه وي، او همدا پدي مشکل ترين وخت کي د مشکل د حل کولو ذريعه وګرځيدله

د کتاب پيش کولو اصل باعث دادی چي الحاج شازاده صاحب مدير مکتبه رحمانيه پشاور سره زما تقريبا دديرش کالو نه تعلق راروان دی ، هغوئ د يو پبليشر په حيثيت د ډيري زماني نه ددرس نظامي د متون او شروحاتو د اشاعت په سلسله کي حيرانونکي کردار ادا کړي دی، او د عظيم ترين خدمت سعادت يي حاصل کړی دی ، هغوئ دکافي مودي نه وخت په وخت ماسره اکثر د صحاح ستة د شروحاتو مرتب کولو مذاکره کوله مګر حالات نه وو مساعد شوي، ليکن اوس الله تعالي د حاجي صاحب ارادي ته عملي شکل ورکړو، هغه به ونيل که الله تعالي دا کار وکړی نو د حديث نبوي د اشاعت تاج به مو په سر کيخودی شي، او يو لوي ارمان به مو پوره شي،خکه چي دا يو لوي سعادت دی.

ترددي چي حاجي صاحب موصوف زه ناچيز بنده دي کار ته مجبور کړم چي په جامع الترمذي يوه جامع ترين او متوسط المقدار او اسان فهمه شرح وليکم ، او بل طرف ته زما هم دا يو لوي ارمان وو او هر وخت به مي د الله تعالي نه غوښتل چي د حديث نبوي د خدمت توفيق راکړي ، مګر دبعضي مالي مشکلاتو په وجه په دي مبرك كار كي دي وخته پوري کاميابي نه نصيب کيدله ، اخر داچي د حاجي صاحب د زيات اصرار په وجه مي دي کار ته خان متوجه کړو، بل طرف ته زه د خپلي علمي کمزورئ هم اعتراف کوم چي خدا ناخواسته چرته دانسته يا نادانسته لغزش رانه ونه شي مګر ددوستانو د حوصله افزائي او ترغيباتو په وجه په ما کي جرأت پيدا شو ، د الله تعالي نه دعا غوارم چي د غلطيدو نه مي محفوظ کړي، اوددي کتاب د پوره کولو توفيق راکړي ، ددي دپاره راته تمام ضروري لوازم او ضروريات مهيا کړي ، او زما دا عمل د سعادت الدارين او مغفرت اوپه قيامت کي د شفاعت نبوي ذريعه وګرځوي او خصوصا زما مرحومي والدي ته هم ددي علمي خدمت په صله کي برخه ورکړي الله تعالي دي ورته جنت الفردوس کي او عرش عظيم د سوري لاندي خاي ورکړي .د قارئينو نه خواست دی چي پخپلو نيکو دعاګانو کي يي هيره نکړي.

تر دي چي په ترمذي مي د "الورد الشذي" بشرح الجامع الترمذي په نوم د شرحي ليکلو دپاره

قلم پورته کړو. پس پدي سلسله کي مي د الله نه مدد غوښتلو په حال کي په کار شروع وکړه.
وهو نعم ونعم الوكيل و نعم المستعان وعليه التكلان.

په جامع الترمذي بې شميره علماؤ شرحي ليکلي دي مګر زمونږ د شرحي خصوصيت دادی چي دا په پښتو ده ، او با محاوره انداز سره مرتب ده. دارنګي اسان فهمه ده ، په دي کي د علمي مطالبو د استيعاب کوشش شوی دی ، او اختصار هم مد نظر ساتلی شوی. زما دا کوشش دی چي د مسئلي دتحقيق کوشش وکړم او دچا په ذات تعرض ونکړم. او نه د چا دتوهين ارتکاب وکړم، او نه د چا نوم واخلم. ځکه چي په داسي صورت کي انسان متعصب جوړيږي او حق پرست او متقي نه پاتي کيږي، ځکه چي دا کار ورته په حق پرستئ کي حائل جوړ شي

د دين اسلام دخدمت په سلسله کی زما بعض نور اثار هم په کتابي شکل کي منظر عام ته راغلي دي کوم چی په لاندينو کرخو کي مذکور دي.

۱ - پښتو ترجمه د تفسير بيان القران د مولانا اشرف علي تهانوي.

۲ - ترجمه تفسير مظهري

۳ - ترجمه سنن ابي داود

۴ - معارف الصالحين شرح رياض الصالحين

۵ - ترجمه مسند امام ابي حنيفه

۶ - ترجمه موطاء امام مالك

۷ - ترجمه مؤطاء امام محمد

۸ - ترجمه مفتاح التلخيص

۹ - ترجمه سراج التهذيب

۱۰ - ترجمه فضائل اعمال د ابو عبدالله مغربي

(۱۱) ترجمه وتشريح رياض الصالحين

(۱۲) اسلامي اداب پښتو

۱۳ - الخصائص المرغوبة پښتو (د ۲۰۰۰ احاديثونه منتخب شوي مجموعه)

۱۴ _ پښتو ترجمه د توضيح العقائد شرح شرح العقائد

۱۵ - تيسير السراجي شرح د سراجي

۱۶ - التيسير الضروري شرح مختصر القدوري

۱۷ . تفهيمات شرح د مختارات وغيره.

۱۸ - اغراض دمراح الارواح

۱۹ _ تنوير البركات شرح تلخيص

۲۰ _ نجم الانوار شرح نور الانوار

۲۱ _ شرح جامع الترمذي

۲۲ _ شرح صحيح البخاري

**التماس:** داهل علمو ورونو اوخويندوپه خدمت کی يومتواضعانه ګذارش اوخواست کوم کچري پدی تحرير کی چاته څه پوختګي اوکمال او فوائد معلوم شي دا به محض دالله تعالي فضل کرم وي اوددی دنسبت حقدار به زه نه يم بلکه زما مشائخ به وي، او کچري په دي کی چاته معنوي يا لفظي خامي اوخطاء په نظررا شي نو دا به زما کمزوري او دشيطان دطرفه لغزش وي ، اوددی دنسبت حقداران به زما استاذان نه وي بلکه زه به يم، دالله تبارك وتعالي درضا اود اجر عظيم

دحصول په خاطر دی ما په هغي باندی اګاه کړي چی په اننده ایډیشن کی درست کړی شي او دبدو ردو دنسبت اودتنقیدونو هدف مي ونه ګرځوي.

**په اخرکي**: دالله تعالي نه دا دعا غوارم چی دی مات ګوډ ناقص عمل ته دمقبولیت درجه ورکړي اود تمام انسانیت زنانه اونارینه دپاره دا مجموعه دهدایت ذریعه وګرځوي ، اوددی تحریر اجر و ثواب دی الله ذو الجلال والاکرام تمامو صالحو مسلمانانوته اوخصوصا ماته او زما والدینو ته او زما مشائخوته ورسوي. وماتوفیقي الا بالله العلي الکریم وبالاجابة جدیر وهو حسبنا، نعم المولیٰ ونعم النصیر علیه توکلت وهو رب العرش العظیم.

خادم العلماء، المفتقر الي الله **ابوهلال_عبدالخالق بن خان محمد** خریج الجامعة امداد العلوم پشاور/ وفاضل وفاق المدارس العربیة پاکستان العالمیة (ایم ای اسلامیات): 03339121196
اپریل 2021

Scanned with C

بِسۡمِ اللّٰهِ الرَّحۡمٰنِ الرَّحِيۡمِ

# مبادیات دعلم حدیث په طور د تمهید

دعلم حديث او علم اصول حديث سره متعلق په طور د مقدمي پنځلس (۱۵) اهم مباحث او مباديات ذكر كوو چي د علم حديث د اصطلاحي كلماتو په تعريفاتو مشتمل دي تردي قارئينو ته ددي په بركت په كتاب پوهيدل اسان شي، په لاندينو كرخو كي يي په مفصل او محقق طور ملاحظه كړئ:

## ۱- بحث: مصطلحات دعلم حديث لغة وشرعا

**دحديث لغوي معني:** گفتگو كول او جمع يي احاديث راځي.

**اصطلاحي معني** يي دنبي كريم صلي الله عليه وسلم يا دصحابه كرامو او تابعينو اقوال يا افعال دي، يا دا چي هغوئ يو شى اوريدلى وي او انكار يي ورنه نه وي كړى او په هغي خاموش پاتي شوي وي دي ټولو ته دمحدثينو په اصطلاح كي حديث ونيلى شي خو دحديث يو څو قسمونه دي (نظامي شرح حسامي ۲۲).

(۱) مرفوع: لغوي معني پورته كړى شوى او په اصطلاح دمحدثينو كي مرفوع حديث هغه ته وائي كوم چي رسول الله صلي الله عليه وسلم ته منسوب وي او دا پكي ذكر شوي وي چي رسول الله داسي فرمائيلي دي يايي داسي كړي دي يا دهغه په وړاندي بل چا داسي كړي دي او هغه وړاندي خاموشي اختيار كړي ده (مفهوم التدريب ۱۸۴/۱).

(۲) **موقوف:** موقوف په لغت كي اودرولي شوي ته ونيلى شي او په اصطلاح د محدثينو كي هغه حديث ته وائي كوم چي يو صحابي ته منسوب وي يعني په دي حديث كي داسي مذكور وي چي فلاني صحابي داسي ونيلي دي يايي كړي دي يا يي خلق ددي په كولو باندي ليدلي دي په دي ټولو صورتونو كي ديته موقوف ونيلى شي (مفهوم التدريب ۱۸۴/۱).

(۳) **مقطوع:** مقطوع په لغت كي پري كړى شوي ته ونيلى شي او په اصطلاح كي هغه فعل او قول ته ونيلى شي كوم چي كوم صحابي ته منسوب وي (تدريب الراوي ۱۹۴/۱).

**متواتر:** لغوي معني پرله پس راتلونكى، اصطلاحي معني هغه حديث دكوم چي روايت كونكي په هره زمانه كي دومره زيات وي چي راجمع كيدل يي په دروغو ناممكن وي.

**مشهور:** ددي لغوي معني مشهور كيدل دي او په اصطلاح كي هغه حديث ته ونيلى شي چي په هره زمانه كي يي راويان ددو نه زيات وي دمشهور دويم نوم حديث مستفيض هم دى.

**عزيز:** لغوي معني نادر او قليل الوقوع كيدل دي.

اوپه اصطلاح کي هغه حدیث ته وئیلي شي چي په هره زمانه کي يې دوه راویانو روایت کړي وي اوپه تمام سند کي چرته د دوو نه کم راویان نه وي.

**غریب**:غریب په لغت کي يواځي کيدو ته وئیلي شي جمع يې غرائب راځي

اوپه اصطلاح کي هغه حدیث ته وئیلي شي چي دسند په سلسله کي يې چرته يو راوي يواځي راغلي وي.

**موضوعي**:موضوع په لغت کي وضع کړي شوي ته وئیلي شي اوپه اصطلاح کي ددروغژن راوي بیان کړي حدیث ته وئیلي شي.

**روایت**: معني دحدیث بیانول.

**راوي**: لغوي معني روایت کونکي، اوپه اصطلاح کي نقل کونکي ته وئیلي شي جمع يې رواة راځي.

دحدیث په سند کي راتلونکي هر يو فرد ته راوي وئیلی شي او ددوئ مجموعي ته سند وئیلی شي.

**مروي**: مروي په لغت کي روایت کړي شوي ته ويلي شي، جمع يې مرویات راځي ، اوپه اصطلاح کي هغه حدیث ته وئیلي شي چي نقل کړي شوي وي برابره خبره ده چي قول وي او که فعل وي چي دسند نه پس ذکر کړی شي هغي ته متن روایت وئیلی شي.

**سند**: سند په لغت کي دډډي وهلي ته وئیلی شي جمع يې اسناد راځي او په اصطلاح کي دحدیث دناقلینو مشتملي حصي ته سند وئیلی شي مثلا عن ابن شهاب عن عبيدالله بن عبدالله عن ابن عباس عن النبي صلي الله عليه وسلم.

**متن**: متن په لغت کي دزمکي سختي او لوړي حصي ته وئیلی شي جمع يې متون راځي او په اصطلاح کي دحدیث هغي حصي ته وئیلی شي چرته چي دحدیث سند ختم شي او وروسته کومه جمله شروع شي هغه متن وي.

**محدث**: محدث هر هغه عالم ته وئیلی شي چاسره چي دحدیث دالفاظو او معاني علم وي او دروایت او دراویانو دحال نه خبردار وي، لیکن زمونږ په زمانه کي محدث هغه چاته وئیلی شي ځوك چي دعلم حدیث دکتابونو مطالعه کول شي اوددي درس او تدریس سره اشتغال لري.

**حافظ**: دحافظ جمع حفاظ ده هر هغه محدث ته هم حافظ وئیلي شي چاته چي کم از کم يو لاکه احادیث یاد وي، لیکن زمونږ په زمانه کي حافظ هغه چاته وئیلی شي ځوك چي احادیث اوري

Scanned with C

چي دا حديث دصحاحو نه دي او که دحسان نه او که دضعافو نه دی هغه چاته هم ونیلی شي چي دزرو نه زيات احاديث ورته ياد وي.

**حجة**: لغوي معني دليل او په اصطلاح کي هغه محدث ته ونيلي شي څوك چي داحاديثو نه واقف وي ليکن زمونږ په زمانه کي معامله ددي برعکس دد.

**صحاح ستة**: ددينه مراد دحديث مشهور شپږ کتابونه دي (۱) بخاري (۲) مسلم (۳) ترمذي (۴) ابو داود (۵) نسائي (۶) ابن ماجه. ليکن محدث علايي او حافظ ابن حجر دابن ماجه په ځاي مسند دارمي ليکلي دي او امام ابن اسير او علامه سرقسطي شپږم کتاب مؤطا دامام مالك خودلي دي.

**صحيحين**: ددينه مراد بخاري او مسلم دي (قواعد في علوم الحديث).

**السنن الاربعة**: ددينه مراد نسائي ابو داود ، ترمذي او دجمهورو په نزد ابن ماجه او دبعضو په نزد سنن دارمي دی. (تدريب الراوي ۹۹).

**شيخين**: په صحابه کرامو کي ددينه مراد صديق اکبر او عمرفاروق رضي الله عنهما دي او دمحدثينو په نزد ورنه امام بخاري او مسلم مراد دي او دفقهاؤ په نزد ورنه امام ابو حنيفه او امام ابو يوسف مراد دي او دحکماء په نزد ورنه شيخ ابو نصر فارابي او ابن سينا مراد دي (تدريب الراوي ۷۰).

**متفق عليه**: هر هغه روايت ته ونيلی شي دکوم په سند او متن چي امام بخاري او مسلم اتفاق کړی وي او دبعضو په نزد هغه دوه روايتونه دي چي ديو صحابي نه نقل وي (سبل السلام ۱۲/۱).

***************

## ۲- بحث: مصطلحات خاصه د علم حديث:

اصطلاحات په دوه قسمه دي اول هغه قسم دی چي د الفاظو سره ئي تعلق وي دويم هغه دي چي د مفهوم سره يي تعلق وي اولني قسم دادي مثلا ، سند

**سند :**

اول لفظ چي راځي هغه سند دی. سند څه ته وائي ؟سند په لغت کي بالخت او تکيا ته ونيلی کيږي. او په اصطلاح د محدثينو کي حکاية درجال الحديث ته وائي. لکه په سند کي داسی ذکر وي چي فلان عن فلان عن فلان وغيره نو دی ته سند وائي. سند په مصدري معنی کي هم استعماليږي نو ددی وجي نه کله دی رجالو د حديث ته هم سند ونيلی کيږي او کله دی بيان ته هم. مناسبت ددی دواړو معانيو دادی چي د حديث اعتماد ټول په سند او په

دی رجالو وي که رجال مضبوط وو نو حدیث به هم مضبوط وي۔ نو سند په لغت کي بالخت اوتکیی ته وائي او په اصطلاح کښې رجالو او راویانو د حدیث ته وائي۔
رجالو د حدیث او راویانو د حدیث ته سند ولي وائي ؟نو دا څکه لکه څنګه چي مونږه اوونیل چي سند تکیه او بالخت ته وائي۔ نو ددی حدیث د قوت او د ضعف ټول دار ومدار په دی راویانو او رجالو وي لکه څنګه چي یو انسان نه بالخت لري کړي او د ی په خاني نه ټینګیګي او را غورزیږي نو هم دغه رنګی که د حدیث نه دا رجال لری کړی شي نو دا حدیث ختم شو۔ څومره چي دا رجال قوي او مضبوط وي هغه هومره به حدیث قوي او مضبوط وي۔

**اسناد :**

اسناد په لغت کي اړمولو او تکیه ورکولو ته وائي۔ او په اصطلاح کي "اضافة الحدیث الي الراوي او الي المخرج" لکه اسنده ای اضافت ئي بیان کړي دی۔ د سند او اسناد معنیٰ ده۔ لکه وئیلی کیږي سنده قوي ای اسناده قوي

**متن :**

الفاظو د حدیث ته متن وائي او په عربی کي متن ملا (کمر) ته وائي۔ "المتن یعتمد علي السند کما یعتمد الظهر علي المخدة "او په اصطلاح کي "ماینتهي الیه السند من الکلام" کوم خاني ته چي سند ورسیږي او وروستو کلام شروع شي که قولي وي اوکه فعلي یعني که کلام د مصطفيٰ وي که بیان۔ اوددی بیان نقل کونکی صحابي وي۔ او فرمائي : رأیت رسول الله د سند د انتها نه پس چي کوم الفاظ شروع کیږي دی ته متن وائي۔
اوس به تطبیق او کړو سند د حدیث څه دی؟ نو په حدیث کي چي کوم بیان د رجالو کیږي لکه حمیدي عن فلان عن رسول الله نو دی ته سند د حدیث وائي او بیا چي وروسته بیان راځي لکه "انما الاعمال بالنیات" نو دی ته د حدیث متن وائي۔ نو سند او اسناد رجال الحدیث او متن ماینتهي الیه السند من الکلام ته وائي۔ نو سند که کمزوری وي متن به کمزوری وي۔

**تحویل:**

تحویل په لغت کي اړولو ته وائي لکه "یحول المیاه اليٰ حدیقته او اليٰ مزرعته" یعني زمیدار خپل پټي ته اوبه واړولی دغه شان تقلیب،تصریف او تبدیل ته تحویل وائي۔ او په اصطلاح کي "هو الانتقال من سند اليٰ سند آخر "

**د تحویل اقسام:**

(۱) الانتقال من مبدأ سند اليٰ سند آخر۔ (۲) و انتقال من وسط السند اليٰ سند آخر۔
قسم اول: قسم اول په نسبت د قسم ثاني عام دی۔ قسم اول ډیر اوقسم ثاني لږ راځي۔
قسم اول په دی طریقه راځي۔ مثلاً حدثنا خالد عن زید عن عمر و ح و حدثنا واجد عن کریم ح

او دا قسم ډیر راځي.
قسم ثاني: چي کله سند د ابتداء نه یو وي او بیا په مینځ کښې دوه شي لکه امام مالک رحمه الله تعالي یو حدیث داسي هم نقل کړی وي او هم دی امام مالک رحمه الله تعالي دا حدیث د بل استاذ نه هم نقل کړی وي او آخرکي جداشي نو دی ته تحویل وائي. د تحویل دا قسم د بخاري او ابوداؤد په نسبت په مسلم کي ډیر راځي.
نو دی ته انتقال من وسط السند الیٰ سند آخر وئیلی کیږي.

## د تحویل فائده:

د تحویل فائده تقویت د حدیث وي په تعدد د اسانیدوسره ځکه چي دار و مدار د حدیث په سند وي او د بخاري مقام هم ددی وجي نه اوچت دي چي اسانید ئي قوي دي. د کوم حدیث چي څومره سندونه ډیر وي دومره دا حدیث قوي وي. یعني اسنادچي جدا جدا ذکر شي نو دی سره حدیث قوي شي او چي څومره د حدیث سندونه کم وي دومره داحدیث کمزوری وي.

## په تحویل لفظ تعبیر:

تعبیر د لفظ د تحویل نه مشرقي علماء (حا) سره وائي دلته چي ئي څنګه لیکلی دی. یعني اسم او مغربي علماء مسمیٰ وائي یعني (حاء") او غالبه زمونږه اصطلاح ده یعني اسم چي (حا) د تلخیص. د لوئي جملی نه تعبیر مختصر حروفو سره کول نو (ح) مختصر د تتحوّل نه دی اي "تتحول من هٰذا السند الیٰ هٰذا السند" او یا د (ح) مختصر دی د "صح" نه یعني مطلب دا چي ددی ځایه پوری خبره صحیح راروانه ده. او یا دا (ح) مختصر ده د الحدیث نه لیکن آخري دواړه بی دلیله دي ځکه چي هرحدیث خو صحیح نه وي بل دا چي دا خو حدیث ته نه وي رسیدلي (ح) خو مینځ کي راځي. او بل قول دادی چي دا مختصر د حائلُ دی. یعني دلته اودریدم اوس بل سند ذکر کوم.

## متابعة :

متابعة په اصل کي موافقت او ملګرتیا ته وائي او په اصطلاح د محدثینو کي وائي "موافقة الراوي غیره" یعني دا د مظنون التفرد په صورت کي وي یعني دی وخت کي ئي ضرورت وي چي آیا دا لفظ بل چا ذکرکړی دی او کنه. که دا متابعة پخپله هغه شخص کي وو چه" مظنون التفرد بهذه الروایة" دی نو دی ته متابعة تامه وائي.
"وان حصل لشیخه او شیخ شیخه اولمن فوقه فهي متابعة قاصرة" یعني یو رجل کي یو خبره وه چي دده دا خبره بل کس هم اوریدلی ده. دده ددغه استاذ نه نو متابعه تامه دی روستوني کس ته متابع وائي او مظنون التفرد والاته متابَع او کوم شي کي چي دا متابع وي هغه ته متبع علیه

او کوم شي کي دا دواړه يو خاى كيږي هغه ته متابع عنه (الذي توفق به الرواية عنده) نو تَابَعَه فلان هٰذ الفظ عن فلان۔ او دى متابعه کي دا ضروري ده چي انتها د سند به په يو صحابي راغلي وي که چرته صحابي جد اوو نو دى ته شاهد وائي۔ لکه وائي چي آيا ددى حديث شاهد شته نو مراد د بل صحابي قول وي۔ او بعضي وائي که مطابقت ئي لفظ کي وي يعني مطابقت باللفظ نو متابعة نو متبعة دى اګرچي صحابي ئي جداجدا وي اوکه مطابقت بالمعنيٰ وي۔ مدلول يو وي نو ديته شاهد وائي ليکن قول اول عام دى۔

**اعتبار:**

اعتبار څه ته وائي نو اعتبار ''هو تَتَبُّعُ طُرُقُ الحديثِ هل يوجَدُ له متابِع او شاهد ام لَا'' يعني دا کتل دي د طرق د احاديثو او ددى متابع او شاهد په کتابونو د احاديثو کښي۔ چي دا په کتابو نو د احاديثو کي شته او کنه يعني ته ګوري چي دا حديث په دى يو طريقه راغلى دى که نورى طريقى ئي هم شته لکه د امام بخاري رحمه الله تعالي دا طريقه ده چي د چانه به ئي روايت کړى وو نو بار بار به ورله تلو او سند به ئي ترى بيا بيامعلومولوچي آيا په رجالو کي څه فرق راغلى دى اوکنه او حافظه ئي صحيح ده او کنه۔ نو دى ته ''اعتبار'' وائي۔

هغه اصطلاحات چي د کتب حديث سره ئي تعلق وي

(۱) جامع (۲) سنن (۳) معجم (۴) مسند (۵) مفرد (۶) جزء (۷) اربعين (۸) مستدرک (۹) مستخرج

**جامع:** ''الجامع من کتب الحديث ما يکون مشتملا عليٰ روايات تتعلق بثمانية فنون وهي التوحيد، والتفسير، والاحکام، والآداب، والسير، والمناقب، والفتن، والرقاق اي اشراط'' په کتبود حديث کي جامع هغه ته وائي چي هغه دا اته (۸) واړه فنه راجمع کړى وي۔ بخا ري او ترمذي شريف کي دا اته (۸) واړه فنون شته ددى د وجي نه بخاري او ترمذي ته جامع بخاري او جامع ترمذي وئيلى کيږي۔ د جامع تعريف په شعر کي داسى شوى دى۔

سير و آداب و تفسير و عقائد وفتن و اشراط و احکام و مناقب

**سنن:** ''هو مايکون مشتملا علي احاديث احکام العبادات و ترتيبه علي ترتيب ابواب الفقه. يعني سنن هغه کتاب د احديثو ته وائي چي مشتمل وي صرف په احاديثو د احکامو فقط او په دى کي سير وغيره نه وي شروع دي طهارت نه وي بيا نکاح او د حج وغيره احکام وي نو دى ته سنن وئيلى کيږي۔ لکه ابوداؤد ، نسائي او ابن ماجه دى ته سنن وئيلى کيږي۔ ترمذي ته هم کله کله په سنن سره خطاب کيږي۔

دا څکه چي د ترمذي ترتيب موافق د ابواب فقهيه دى۔ شروع ئي د طهارت نه کړې ده۔ د

Scanned with C

بخاري مصنف شروع د كتاب الايمان نه كړی ده. په سنن كي ابن ماجه ته جامع هم وائي خكه چي ابن ماجه بحث د اته ٨ واړو فنونو نه كوي.

**معجم:**

''هو ما يكون مشتملاً علىٰ روايات بحسب الشيوخ'' معجم هغه كتاب ته وائي چي ذكر د رواياتو په اعتبار د صحابه كرامو سره وي لكه اول حديث درسول الله صلي الله عليه وسلم ابو بكر صديق دويم د عمر فاروق رضي الله عنه بيا د رسول الله صلي الله عليه وسلم عثمان او علي وغيره نه او دغه شان د نورو صحابه كرامونه ذكر شوي وي. لكه مسند امام احمد ، مسند امام شافعي،مسند امام ابو حنيفه. مسند امام احمد چي دوه ويشت (٢٢) جلدو كي دی او تقريبا (٣٥) زره احاديث ئي راجمع كړی دي. دوه نيم جلدونوكي ئي صرف د ابي هريره احاديث راجمع كړی دي په دي كي ابواب نه نشته. او ذكر د اصحابو كوي په اعتبار د اسماؤ د راويانو سره او دی ته مسند وائي.

مفرد: ''هو ما يكون مشتملا علي روايات شخص واحد''مفرد ذكر د احاديثو د يو شخص ته وائي لكه د رسول الله صلي الله عليه وسلم ابو هريره رضي الله عنه روايات څوك په يو كتاب كي را جمع كړي.

**جزء:**

''هو ما يكون مشتملا علي روايات مختلفة يتعلق بموضوع واحد و بمسئلة واحدة''دجزء او رسالی مطلب يو وي. جزء هغه احاديثو ته وائي چي تعلق ئي د يوی مسئلی سره وي. لكه يو عالم را ولاړشي په يوی مسئلی باندی احاديث راجمع كړي مثلا رفع اليدين باندی امام بخاري احاديث راجمع كړي دي نو دی ته جزء رفع اليدين وائي. او يا يو امام په قرأ ت خلف الامام باندی احاديث را جمع كړي نو دی ته جزء القرآن وائي. نو په يو موضوع د مختلفو صحابه كرامو نه چي كوم روايات رانقل وي هغي ته جزء'' يا ''رساله''هم وائي. لكه دامام بخاري رحمه الله تعالي جزء رفع اليدين، جزء القراءة خلف الامام ، جزء خلق افعال العباد.

**اربعين:**

'' هو مايكون مشتملاً علي اربعين حديثاً تتعلق بمسائل مختلفة'' اربعين څلويښت احاديثو ته وائي چي محدثينو حضراتو را جمع كړي وي. او بناء ئي په يو حديث وي اگر كه هغه حديث سنداً ضعيف وي لكه نبي (صلي الله عليه وسلم) فرمائي چا چي زما امت د پاره څلويښت احاديث راجمع كړل او ورته ئي اوښودل نو دومره دومره اجر به ورته الله تعالي وركوي نو حاكم اربعين ليكلي دي.

**مستدرک**

د مستدرک معني دریافت کول دي. ''هو ما استدرک علي کتاب مما بقي عنه من الاحادیث علي شرطه''یعني یو عالم د یو کتاب د شرط مطابق پاتی شوی روایات راجمع کړي نو دی ته مستدرک وائي. مستدرك والا د بخاري او مسلم د شرطونو موافق هغه احادیث راجمع کړي دي چي بخاري او مسلم نه دي نقل کړی.

ابو عبد الله نیشاپوري رحمه الله تعالي فرمائي ‹وعليٰ شرط مسلم ولم یرویه و عليٰ شرط شیخین ولم یرویاه› یعني دا په شرط د شیخینو دی خو هغوي نه دی ذکر کړي. نو ابو عبد الله نیشاپوري رحمه الله تعالي او حاکم چي کوم احادیث په خپل مستدرک کي راجمع کړي دي هغه دده په نزد صحیح دي ځکه چي دا د ده په ذهن کي د بخاري او مسلم د معیار احادیث دي. په دی باندی امام ذهبي حاشیه لیکلی ده که چری هغه دده سره په یو حدیث کي موافق شو چي دا صحیح دی نو صحیح دی او که مخالفت ني اوکړوچي دا د بخاري رحمه الله تعالي د شرائطو مطابق نه دی نوبیا قابل قبول نه دی.

په حاکم کي دري قسمه روایات دي. په هغي کي یو ثلثاء دي چي په واقع کي برابر دي یعني په معیار د بخاري رحمه الله تعالي او مسلم رحمه الله تعالي باندی.

دویم هغه احادیث دي چي حسن او صحاح دي یعني قابل عمل دي خو د شرط د بخاري رحمه الله تعالي او مسلم رحمه الله تعالي نه کم دي.

دریم هغه دي چي هغه موضوع او ضعیف دي چي نه په شرط د بخاري او مسلم دي او نه قابل عمل دي یعني دروغ او موضوعي دي. لکه په حاکم کي دا حدیث هم شته. ''لولاک لما خلقت الافلاک'' دا د محدثینو په نزد باندی موضوعي او دروغ دی. نو هر یو حدیث د حاکم نه دی صحیح. د مستدرک حاکم دري اثلاث دي ځوک خو وائي چي ده ته بیا موقع نه ده میلاؤ شوی او ځوک وائي چي دی شیعه توب ته مائل وو او ځوک وائي چي دی متساهل وولکه عبدالرزاق. متساهل دی ته وائي چي د حدیث حکم کي ډیره نرمي کوي یعني ضعیف ئي په صحیح کي داخل کړی وي. او د ډیرو موضوعاتونه کار اخلي. نو دی ته متساهل وائي. او دی ته هم وائي چي د یو کتاب د شرط احادیث راجمع کړي چي د هغه کتاب د مصنف نه پاتې شوی وي.

**مستخرج:**

مستخرج دی ته وائي چي د یو کتاب احادیث په خپل سند ذکر کړی. لکه دا حدیث ''انما الاعمال بالنیات ''چي د بخاري حدیث دی خو اوس یو عالم دا حدیث د بخاري د سند نه غیر په خپل سند سره ذکر کړي چي په بخاري کي هم وي او په دی کتاب کي هم نو دی سره تقویت د حدیث راځي. نو دی ته مستخرج وائي.

*****************

## ۳- دریم بحث اقسام د احادیثو

(۱) په اعتبار د عدد د رواتو سره.

(۲) په اعتبار د وصف د رواتو.

(۳) په اعتبار د اتصال ،انقطاع ،فصل او وصل سره.

اول تقسیم د احادیثو په اعتبار د عدد د رواتو سره:

په اعتبار د عدد د رواتو سره حدیث په دوه قسمه دی. (۱) متواتر (۲) آحاد

**متواتر:** تواتر په اصل کي تتا بع ته وائي لکه د باران ځاځکي او په اصطلاح د محدثینو کي "هو الحديث الذي رواه عدد كثير بحيث يستحيل العقل تواطهم علي الكذب في كل عصر من العصور و يكون منتهيٰ خبرهم امراًحسيا" ته وئیلی کیږي. یعني متواترهغه حدیث ته وائي چي بی شماره راویان ئي وي او د دي تولو په دروغویاندی جمع کیدل ناممکن وي دا ځکه چي یو راوي د یو ځائي وي او بل راوي د بل ځائي نو ددی راویان په تعداد کي ډیر دی او ددی ټولو د مختلفو علاقو نه په دروغو راجمع کیدل نا ممکن دي.

**حکم د متواتر:**

(۱) بحکم افاده د قطع او یقین ور کوي. (۲) : متواترټول مقبول دي او ددی د رجالو نه بحث نه کیږي. که مسلمان وي او کنه که عادل وي او که فاسق.

**د متواتر اقسام:**

**(۱) :متواتر في الاسناد:**

متواتر با الاسناد هغه ته وائي چي اسناد ډیر شي اومتعین وي. لکه احادیث د مسح علي الخفين دا د اتیاؤ صحابه کرامو نه نقل شوی دی اوپه نزول د عیسيٰ ابن مریم کي (۱۵۰) احادیث دي. نو دا متواتر دي او په خارج کي ئي عدد هم معلوم دي. دغه شان حدیث د من كذب علي. . . . الخ. دا د (۶۲) صحابه کرامو نه نقل دی. او محدثین د متواتر نه هم دا متواترالاسناد مراد اخلي.

**(۲) :متواتر بالطبقات**

متواتر بالطبقات هغه ته وائي چي په هره زمانه کي دومره راویانو نقل کړی وي چي شمیرکي نه راځي لکه ما يرويه طبقة عن طبقة كل عصر لکه قرآن شریف ځکه ددی سندونه بی اندازی دي معلوم نه دي او هره زمانه کي بی اندازي راویان ئي دي.

**(۳) :متواتر با لتعامل والتوارث:**

دا هغه قسم دی چي راويان ئي په اعتبار د عدد سره لږ وي مګر د امت عمل پرې را روان وي. چې په دی باندی د ټول امت عمل وي او د هغي سند ته او بحث ته حاجت نشته لکه تواتر د آذان ، ،اقامت،تراويح چي په امت کي شل (۲۰) رکعته رارواني دي. سند ته ئې حاجت نشته دغه شان د جنازی مونځ خفيه راغلی دی په تواتر سره ئې ثبوت دی نو اوس که څوک په جهرسره د جنازي مونځ کوي نو دا به د تواتر خلاف کوي دا ځکه چي په څلور واړه مذاهبو ،په زمانه د اسلام او په علماؤ کي دا څيزونه په تواتر راغلی دي که اوس ددی نه څوک مخالفت کوي نو خه کار نه کوي.

ته به سند ته نه ګوری بلکه عمل ته به ګوری. عمل د امت په دی را روان دی چي طلاقونه دري دي يو نه دی. دغه شان تراويح پوره شل (۲۰) دي اته (۸) نه دي. جنازه خفيه ده جهراً نه ده او تکبيرونه ئې څلور دي کم او زيات نه دي. نو که څوک ددی امورو مخالفت کوي نو دی د متواتراتو مخالفت کوي. په متواتراتو کي سند ته نه شي کتې بلکه عمل ته کتلی کيږي ،لکه امام بخاري رحمه الله تعالي په باب کي يوحديث راوړی دی مګر هغه ضعيف دی او بيا هم امام بخاري رحمه الله تعالي ئي په باب کي ذکر کوي. لکه ''لا وصيت لوارث''چي وارث ته وصيت نه کيږي. نو اګر چي دا حديث ضعيف دی خو عمل د امت پدی راروان دی وارث ته وصيت نه کيږي. که يو څوي ته زياته حصه ورکړي نو دا قابل قبول نه ده چي د چا څه حصه مقرر ده نو د هغي نه ورته زياته نشي ورکولی. ډير احاديث دي چي محدثين کرام ورته متواتر نه وائي بلکه هغه په ضعيفوکي شماري ليکن بيا هم فقها کرام ورته متواتر وائي. ځکه چي فقها د امت عمل ته ګوري. د محدثينو سند ته نه ګوري. ''انّ متواتر الفقهاء اقوي من متواتر المحدثين'' يعني متواتر د فقهاؤډير قوي دی په نسبت د متواتر د محدثينو ځکه چي دی باندی عمل را روان وي او احتمال د مجاز او د کنائي نه لري.

**(٤) :متواتر بالقدر المشترک**

متواتر بالقدر المشترک دی ته وائي چي يوه واقعه خو په طريقه د آحادو نقل وي خو مجموعه موضوع چي دلالت پری د مختلفو واقعاتو او حکاياتو کوي هغه پکي شريک دی لکه سخاوت د خاتم طائي نودده د سخاوت واقعات خو په اخبار آحادو سره رانقل دي خومجموعه قصوته ئي چي ګورو نو ددی نه معلوميږي چي خاتم طائي ډير سخي وو. قدر مشترک دمجموعي رواياتومتواتر وي. دغه شان د رسول الله صلي الله عليه وسلم علي د بهادرئ او د شجاعت واقعات چي د بدر په موقع باندی ئي (۲۱) کافران مردار کړی وو. په خيبر جنګ کي ئې د مرحب غوندی مشهور پهلوان مردار کړی وو. نو دا ټول واقعات په طريقه د اخبار آحادو نقل

دي خو مجموعي نه دا معلوميږي چي علي يو نومه وړ ی خوان وو- نودی ته متواتر بالقدر المشترک وائي-

اول دري واړه متواتر افاده د قطع او د جزم ورکوي او عام فقهاء وائي چي منکر تر ی کافر دی- او ځلورم که بديهي وو نو بيا افاده د قطعي کوي او منکر تری کافر کيږي نه نو فقهاء کرام ځلورو واړو ته متواتر وائي او دا ځکه چي ددوی نظر په عمل باندی وي- او د محدثينو نظر په سند وي نو ځکه اول ته متواتر وائي-

## دآحادو تعريف

'' هومالم يکن کذالک فهو آحاد'' يعني چي يو شرط پکي د شروطو د تواتر نه رانشي نو هغي ته اخبار آحاد وائي- که عدد قليل وي يا کثير ليکن اتفاق ئي په کذب باندي عقل روا گڼړي لکه د يو پارټي خبره شوه يا ددغه کثرت په يو زمانه کي ختم شوي وي يا قضيه عقليه وي امر حسي نه وي لکه العالم حادث وغيره نظريه مخصه وي-

## دآحاد قسمونه

: (۱) عزيز (۲) غريب (۳) مشهور-

**عزيز:**

''هو الحديث الذي رواه اثنان عن اثنين في کل طبقة ''عزيز د عزت نه دی او قوت ته هم عزت وائي او دلته دی دويم کس سره په دي کي چونکه قوت پيدا کيږي ددی وجي نه ئي په قوت سره هم تعبير کيږي- او يا دا چي عزيز نادر ته وائي او دا هم نادرالوجود دی-

**غريب:**

غريب دی ته وائي چي په يو زمانه کي ئي راوي يو وي اوغر يب نا آشنا ته هم وائي په مسافر،او ميلمه باندی ئي هم اطلاق کيږي- دا اول حديث د بخاري دا غريب دی- سنداً دا د يحيٰ ابن السعيد الانصاري (رضي الله عنه) نه پس مشهور شوی دی په صحابه کرامو کي دعمر فاروق رضي الله عنه نه علاوه د بل چا نه نه دی نقل شوی- او د عمر فاروق رضي الله عنه نه د علقمه بن وقاص (رضي الله عنه) نه بغير بل چا نه دی نقل کړی محمد ابن ابراهيم (رضي الله عنه) نه بيا يحيٰ ابن سعيد الانصاري (رضي الله عنه) نقل کړی دی- د يحيٰ بن سعيد الانصاري (رضي الله عنه) دوه سوه شاگردان دي نو تر يحيٰ بن سعيد (رضي الله عنه) پوری دا حديث غريب مطلق دی-

**د غريب اقسام:** غريب په دوه قسمه دی (۱) غريب مطلق (۲) غريب نسبي

غريب مطلق : '' هو ما يکون تفرده في اعلي السند في عصر التابعي ولايکون مرويا الا عن

تابعي واحد" يعني که چري تفرد او غرابت په اخير د سند کي وي لکه د صحابي نه وروستو تابعي نو دی ته غريب مطلق يا فرد مطلق وائي۔

غريب نسبي "هو مايکون تفرده في من بعد التابعين" يعني که چري ددی نه وروستو غرابت وي نو بيا دی ته فرد نسبي يا غريب نسبي وائي۔

**مشهور:** "هو الحديث الذي رواه اکثر من اثنين في کل طبقة ولکن لم يبلغ حد التواتر" دی ته مستفيض هم وائي او څوک وائي چي مستفيض خاص قسم دی چي شمير ئي اول او آخر کي برابر وي۔

### د متواتر او احادو حکم:

د متواتر او آحادو په دی دري احکامو کي فرق دی۔ (۱) آحاد افاده د ظن ورکوي (۲) رجالونه ئي بحث کيدي شي (۳) او دی کي مقبول او مردود دواړه وي۔

متواتر ټول مقبول دي او په آحادو کي څه مقبول دي او څه مردود۔ دي

مقبول هغه حديث ته وائي " ما ترجح جانب قبوله "چي د قبوليت طرف ئي راجح شي نو دی ته مقبول وائي۔ او مردود هغه ته وائي "ماترجح جانب رده" يعني دا عکس د مقبول دی۔

دحديث دمقبول کيدو د پاره (۸) شرائط دي څلور په راوي کي او څلور په روايت کي ، که چري په دی کي يو شرط هم غير موجود شو نو دا به مردود وي۔

### شرائط د راوي

**دراوي د مقبول کيدو دپاره څلور شرائط:** (۱) اسلام (۲) عقل (۳) ضبط (۴) عدالت

خبره ددينه علاوه نه ده چي خبرلره په راوي کي په يو څو شرطونو سره حجت ګرځولي شوي دي او هغه شرائط څلور دي (۱) عقل (۲) ضبط (۳) عدالت (۴) اسلام پس عقل دانسان په بدن کي يو داسي موجود نور دي دکوم په وجه چي بنده ته ديوي لاري ابتداء روښانه کيږي دکوم ځاي نه چي شروع کيږي او په کوم ځاي چي حواس علم ختميږي مطلب دادي چي دا يو داسي نوردي چي ددي نور په وجه يوه لاره پرقيږي چي ددي لاري ابتداء ديوداسي کورنه وي چي په دي کور باندي دحواس علم ختميږي مثلا که يو انسان لوړ عمارت ته اوګوري نو دده دسترګي علم دعمارته پوري وي بيا دعقل په دي نور يوه لاره شروع شي کومه چي ده ته رهنمائي کوي چي ددي عمارت دپاره يوصاحب علم او حکمت والاصانع ضروري دي پس ابتداء دعقل او انتهاء دعقل حواس دي او دا يعني دعقل ابتداء او انتهاء حواس کيدل په هغه چا کي موجود وي په کومو کي چي دمحسوس نه معقول ته انتقال وي ليکن کله چي مدرک محض معقولي وي نو دد مدرک نه دعلم لاره شروع کيږي دکوم ځاي نه چي دا څيز موندلي کيږي نو ظاهر به شي

دقلب دپاره مطلوب او قلب په دي مطلوب کي د تامل سره دي لره بیاموممي او په دي کي تنبیه ده په دي خبره چي مدرك قلب دي او عقل ددي دپاره واسطه ده لكه چي داسلام نظریه ده لهذا هر كله چي دقلب دپاره یو باطن سترگه ده دكوم په ذریعه چي هغه داشیاؤ ادراك كوي دعقل په وجه باندي ددي څیز دروښانه كیدو نه پس په ظاهر طور په دنیا كي دنمر یا دچراغ په ذریعه داشیاؤ ظاهر ښكاره كیږي او بیا دهغي نه پس سترگه دهغي ادراك كوي او دحكماء په نزد عقل، حواس ظاهره، او د حواس باطنه په واسطه صرف نفس ناطقه مدرك دي.

دعقل تعریف دادي چي دا دانسان په بدن كي دیو داسي نور نوم دي دكوم په سبب چي انسان ته لاره روښانه كیږي چي ددي لاري ابتداء دیو داسي مقام نه كیږي چرته چي دحواس دادراك انتهاء وي غرض دا چي دعقل مبداء دحواس منتهي ده.

د ضبط دادي چي ضبط كلام لره دكماحقه اوریدو او ددي په معني مرادي دپوهیدو او بیا دي لره غیر ته درسولو دوخته پوري ددي په موجب باندي دعمل كولو او یاد ساتلو نوم دي او ددي په تكرار كولو سره ددي نگراني ته ضبط وئیلي شي.

**دضبط د شرط كیدو وجه:** داده چي په راوي كي دصدق موجود كیدل ضروري دي او صدق بغیر دضبط نه حاصلیدي نشي په همدي وجه په صدق باندي دضبط نوم ایخودلي شوي دي څكه چي صدق دواقع مطابق خبر وركولو ته وئیلي شي او دا هغه وخت كي ممكن وي كله چي په چا كي ضبط وي.

دعدالت تعریف: دعدالت لغوي معني: انصاف، برابري، په گواهئ لائق كیدل.

دعدالت اصطلاحي معني: العدالة الاستقامة في الدین یعني په دین باندي مضبوط او ثابت قدم اوسیدل او په دین باندي كلكیدل او ددي سره لازم دي اجتناب عن محظورات الدین یعني هغه اشیاء كوم چي په دین كي ممنوع دي دهغي نه بچ كیدل، د عدالت پوره تعریف داسي دي: العدالة عبارة عن الاستقامة علي طریقة الحق مع الاجتناب عما هو محظور في دیننا" عدالت دحق په طریقه په مضبوطیا سره كلك اوسیدل دي او ددیني محظوراتو نه دبچ كیدو نوم عدالت دي او دبعضو په نزد عدالت دهغي ملكي نوم دي كوم چي انسان طاعاتو ته اماده كوي.

"وهو"الخ، غرض دعبارت مراتب دعدالت بیانول دي چي عدالت دافراط او تعصب په اعتبار سره مختلفي درجي لري څومره چي افراط او تعصب زیات وي دومره به عدالت كم وي او دا په دوه قسمه دي (۱) عدالت كامله دي (۲)عدالت ناقصه دي.

په باب دحدیث كي كامل عدالت لره اعتبار دي، ددي وجه داده په چا كي چي كامل عدالت نه وي دا ددي خبري قرینه ده چي په ده كي قصور في الدین موجود دي او هغه كس دچا په دین

Scanned with

کي چي قصور وي د هغه ديانت مشتبه وي او دچاچي ديانت مشتبه وي په باب دحديث کي به دهغه روايت مقبول نه وي.
څلورم شرط دادي چي راوي به مسلمان وي او که مسلمان نه وي نو روايت به يي مقبول نه وي داسلام شرط لګولو وجه داده چي غير مسلم متعصب وي او ددين اسلام سره عداوت او بغض لري پس غير مسلم راوي دخپل خباثت او باطني تعصب په وجه داسلام جرړو ويستلو کوشش کوي لهذا دده روايت معتبر نه دي.

داسلام تعريف دادي چي اسلام د الله تعالي دذات او دصفاتو دداسي تصديق او د اقرار کولو نوم دي څنګه چي دا په واقع کي دي او د الله تعالي داحکامو دشرائعو دقبلولو نوم دي
نو چي مسلمان نه وي نو روايت يي قبول نه دی او که مسلمان وي خو عاقل نه وي ليونی وي نو بيا هم روايت ندی قبول او دغه شان که غير عادل وي نو د غير عادل روايت هم نه قبليږي او عدل څه ته وائي نو عدل "ملازمة التقوي " يعني چي هميشه د تقوي سره وي که ګناه تری اوشي نو زر توبه اوباسي (نوعدالت ته يي برحال دي) او تقوي وئيلی کيږي "اجتناب عن الشرک والفسق " په فسق کي ګناه کبيره اودوام علي الصغيره هم داخل دي او بدعات کي بدعت داخليږي. د محدثينو په اصطلاح کي اهل بدعت لفظ ذکر شي نو مراد تری اهل تشيع ،معتزله، مشبهه،مرجيه،جبريه وغيره وغيره وي. په هغه (۷۲) ډلو کي (۱۲) خوارج (۱۵) معتزله (۳۲) شيعه ګان (۵) مشبهه (۵) جبريه او (۳) مرجئيه دي.
ددی فرقودا تقسيم په اعتبار د عقائدو سره دی ددی وجي نه چي کله هم په احاديثو کي درته بدعت ذکر کړم نو ددی نه مراد دا اهل هوي دي زمونږه څلورو واړو امامانو چي کوم مقلدين دي هغوي ته اهل سنت والجماعت وائي. سنت د صحابه او خلفاء الراشدينو او د رسول الله مبارک طريقه، والجماعة نه مراد جماعت د صحابه کرامو. دا څلور واړه امامان رحمهم الله تعالي د صحابه کرامو د مسلک نه بهر نه دي. په فروعو کي اختلاف لري څکه چي دا خو د صحابه کرامو هم وو. او عقيده کي اختلاف نشته څکه عقيده د صحابه هم مختلف فيه نه وه.
نودوي ته اهلسنت والجماعة وائي نو څوک چي په دوي کي هر امام پسی روان وي هغه اهل الحق وي.

نو راوي کي به دا څلور واړه صفات موجود وي نو هله به ئې روايت مقبول ګرځي. په دی کي يو شرط د حفظ او د ضبط دی. ضبط څه ته وائي او ددی تعريف څه دی؟نو دا ضبط په دوه قسمه دی چي يو ته ضبط کتاب او بل ته ضبط ذهن وائي.

"صائنة ما سمعه لديه حتيٰ يؤديه لغيره" او ضبط ذهن "ان يتمکن من استحضاره متيٰ شاء" ته وائي. يعني چي .خاتــه راياد ولې شي او يا ورسره کتاب کي موجود وي او يا په ليکلو کي

ورسره موجود وي نو دی ته ضبط وائي نو د روایت د قبول د پاره به راوي کي څلور شرطه وي اسلام، عقل، عدل، ضبط۔

## د روایت دپاره شرائط

**اول شرط:** اول شرط دادی چي ''وروده غير مخالف لكتاب الله '' چي كتاب الله سره ني تناقض نه وي لکه رسول الله صلي الله عليه وسلم عائشې حدیث د سماع الموتيٰ رد کړی دی ځکه د هغي په خیال دا د اٰیت نه خلاف وو۔

فَإِنَّكَ لَا تُسْمِعُ الْمَوْتَىٰ وَلَا تُسْمِعُ الصُّمَّ الدُّعَاءَ إِذَا وَلَّوْا مُدْبِرِينَ (سورة الروم: ۵۲)

**دویم شرط:**

''ان لا يكون مخالفاًلسنة المتواترة المتوارثة عن رسول الله صلي الله عليه وسلم ''۔ چي مخالف به د سنت مشهوره د رسول الله نه، نوي۔

**دریم شرط:**

''ان لا يكون في حادثة تعم بها البلوئ و يتفرد بروايته شخص واحد '' یعني دا حدیث په داسې واقعه کي وارد شوی نه وي چي هغي کي عموم بلويٰ وي او روایت ئي یو نفر کوي لکه حدیث د مس الذکر دا ناقض د وضو دی او که نه؟ نو زمونږ مذهب والاوائي چي دا ناقض نه دی ځکه چي په ټولو صحابو کي روایت بسرة (رضي الله عنها) کوي او دبسرة (رضي الله عنها) نه روایت مروان کوي۔ د ذکر په مس کي عام خلق مبتلاء دي او ددی روایت یوه ښځه کوي او هغه صاحب واقعه نه ده۔

دا یوه اختلافي مسئله ده امام شافعي رحمه الله تعالي مطلقا مس ذکر ناقض وضوء وائي که په شهوت سره وي او که بغير د شهوت نه۔ مالکیان او حنابله په شهوت سره ناقض وائي او که بغیر د شهوة وو نو بیاناقض نه دی۔ اواحناف مطلقا ناقض نه وائي که په شهوة وي او که بلا شهوة۔

شوافع حضرات ځان دپاره په دلیل کي د بسرة (رضي الله عنها) قول ذکر کوي۔ ''من مس ذكره فليتوضأ''نو احناف ددی نه جواب کوي چي که چری دا ناقض دي نو دی کي عموم بلويٰ ده لکه څنګه چي بره ذکر شو۔

**څلورم شرط:**

'ان لا يكون في مسئلة ظهر من الصحابة الاختلاف فيها وتركوا الاحتجاج به جميعاًولم يستدل به صحابي ولافريق ولم يذكره احد من الناس'

یعني چي په داسې واقعه کي نه وي چي هغی کي د صحابو په مینځ کي اختلاف راغلی وي او

د هيچا په دليل كي نه شي پيش كېدي- لكه شيعه گان وائي چي رسول الله صلي الله عليه وسلم علي ته وصيت كړي دي- او دوي دي ته د ايمان د عقائدو نه د يوی عقيدی درجه ورکړی ده- ددوئ د ايمان پنځه عقيدی دي- نو که رسول الله مبارکا وصيت کړی وي نو په ثقيفه بني ساعده کي چي صحابوو اووئيل چي دابه امير وي،دا به امير وي وغيره وغيره نوپکار دي چي صحابو رسول الله صلي الله عليه وسلم علي رضي الله عنه اميرکړی وو خکه چي دا وصيت د رسول الله (ص) دی او بيا چي کله رسول الله صلي الله عليه وسلم ابو بکر صديق (رضي الله عنه) وفات کيدو نو عمر فاروق (رضي الله عنه) ئي نائب کړو او هيچا دا اونه وئيل چي رسول الله صلي الله عليه وسلم دا ته څه کوئ د علي رضي الله عنه په باره کي د رسول الله (ص) وصيت شوی دی هغه دی نائب کړی شي-

مگر چا هم انکار ونه کړو- بيا چي کله عمر فاروق رضي الله عنه وفات کيږي نو هغه اوفرمائل: چي په دغه شپږو کسانو کي يو خليفة مقرر کړی چي په هغي کي رسول الله صلي الله عليه وسلم عثمان،رسول الله صلي الله عليه وسلم علي،رسول الله صلي الله عليه وسلم طلحه ،سعد ابن ابي وقاص، عبدالرحمان بن عوف (رضي الله عنه) او رسول الله صلي الله عليه وسلم زبير رضي الله عنهم- نو په دغه شپږو کي رسول الله صلي الله عليه وسلم علي رضي الله عنه هم مو جوددی او کله چي دري ورځی مشوری کيدی چي څوک دی امير مقرر شي نو رسول الله صلي الله عليه وسلم علي دا ولی نه فرمائيل چي زما په باره کي خو رسول پاك (صلي الله عليه وسلم) وصيت کړی دی زه دی خليفه مقرر کړی شم- او نه يو صحابي چي دا اوفرمائل چي علي په باره کي رسول الله صلي الله عليه وسلم وصيت کړی دی هم دی مقرر کړی عجيبه خبره ده چي د خلافت په باب کي دی د صحابو په مابين کي تنازعه وي او علي دي چپ ناست وي-

ددی مثال داسی دی لکه چي د يو کس پلار مړ شوی وي او ټول کور والاپه تياره کي ناست وي او ژاړي- يو کس ورته او وائي چي الکه کور کي څه لالټين ،شمع،ډيوه وغيره نشته نو دي ورته او وائي چي ډيوه شته خو هغه مونږه ضرورت دپاره ساتلی ده- نو اوس يو کس د پلار په مرگ کي د شمعی، ډيوی وغيره لگولو ته ضرورت نه وائي نو دا به آخر په کوم ضرورت کي پکار راولي-

د صحابه کرامو په مابين کي دغه پريشاني ده اوعلي ناست دی نو پکار ده چي علي د صحابه کرامو دغه پريشاني ختمه کړی وی او ورته ئي فرمائيلی وو چي زما په باره کي رسول الله (ص) وصيت کړی دی لهٰذا زه به د خلافت امور سنبال کړم- علي رضي الله عنه داسی نه کول او بنه په خوشخالی ئي ۲۵ کاله د صحابه کرامو خلافت تسليم کړو- نو معلومه شوه چي درسول الله صلي الله عليه وسلم علي صد وصيت حديث هيڅ اصل نه لري-

د شيعه گانو ټول مذهب په دی باطلو عقيدواو دروغو باندی بنا دی- دوي هم ځان ته يو شپږ د

Scanned with C

احاديثو كتابونه جوړ كړی دي. بابو نه ني پكي راوړی دي چي دا باب دی په بيان ددی كي چي دا زمكه او آسمانو نه د ي (۱۲) دولسو امامانو دپاره جوړ شوي دي. بيا به وائي دا باب دی په بيان ددی كي چي علم غيب صرف دی دولسو امامانو ته حاصل دی.بيا به وائي چي دا باب دی په بيان ددی كي چي دی دولسو امامانو ته داسي مقام حاصل دی چي نه يو نبي ته حاصل دی او نه يو رسول ته (نعوذ بالله). حيران به شې چي دا دوي څه وائي نو ددوئ د مذهب اكثره حصه په دروغو او غلطو عقيدو باندی بنا ده.

نو په احبار آحاد كي چي دا اته شروط ما سبق موجود شي نو هغه به مقبول گرځي.

## د مقبول اقسام:

"المقبول علیٰ اربعة اقسام وهٰذه الاقسام تتنزل علي وصف الرواة"

مقبول په څلور قسمه دی.

(۱) الصحيح لذاته (۲) الصحيح لغيره (۳) حسن لذاته (۴) حسن لغيره

يعني په آحادو كي مقبول هم وي او مردود هم وي او دا تقسيم د حديثو په اعتبار د وصف د رواتو سره دی.

## الصحيح لذاته:

"هو ماروه العدل الضابط عن مثله متصل السندغير معلل ولا شاذ فأن كان صفة العدل والضبط كاملا و قويا فهو الصحيح لذاته"

په دی تعريف كي پنځه قيده شول. اول دا چي راوي عادل وي. دويم دا چي ضابط وي. راويان ټول قوي وي خو مينځ كي پكي يو سړي نشته نه پكي اعلال وي او نه پكي شذوذ وي. اعلال علت خفيه او تدليس خفي ته وائي ليكن په دي باندی هر سړی نه پوهيږي. او شذوذ مخالفت د ثقه دی د اوثق نه او يا دا چي مخالفت د ثقه دی. ټول راويان ثقه وي خو بعضي پكي او ثق وي.

نو چي راوي عادل وي ،ضابط وي او په سند كي انقطاع نه وي او نه پكي اعلال وي او نه شذوذ نو كه دا اوصاف په راوي كي علي وجه الكمال موجود وي نو روايت ته ني صحيح لذاته وئيلی كيږي.

## حسن لذاته:

"وان خف الضبط او صفة اخرىٰ فهو الحسن لذاتِه" يعني كه صفت د ضبط پكي كمزوری وي او نور اوصاف پوره وو مثلا عادل وو انقطاع پكي نه وه غير معلل وو شذوذ پكي نه وو خو راوي ني خفيف الضبط وي.

## حسن لذاته:

''هو ماَرواه عدل الضابط عن مثله متصل السند غير معل ولاشاذ''عام خلق معلل وائي خو معلل په عربی لغت کي دوباره دوباره اُبو ورکولو ته اوزئي۔ او دا معل لفظ دی د اعلال نه خو دی ته غلط د محدثینو وائي۔ نو که وصف د ضبط علي وجه الکمال موجود وي سره د صفاتو اخریٰ نه په راوي کښې نو دی ته صحیح لذاته وائي اوکه وصف پکښې کم وي نو حسن لذاته وائي۔

**الصحیح لغیره:**

فان تقويٰ هذ الحدیث بمجیٔه من طریق آخر مثله او طرُق اُخریٰ ولو منحطة فهو الصحیح لغیره'' فکل الحسن لذاته ان تقوي من طرق اُخریٰ فهو الصحیح لغیره وهي مرتبه وُسطانیه بین الصحیح لذاته والحسن لغیره فکل الصحیح لغیره حسن لذاته قبل التقویة من طرق آخر۔
لکه راوي دحدیث معدوم الضبط وي یا مدلس یا شاذ وي فهو الضعیف۔

**حسن لغیره:**

''وان تقويٰ الضعیف حفیف الغبط بمجیئه من طرق اخر مثله او بطرق کثیرة ولو مخطة فحینئذ یصیر حسنا لغیره''
دا یاد لرئ چي صحیح لغیره په اعتبارد ذات سره حسن لذاته وي او په اعتبار د کثرت د طرقو سره صحیح لغیره شي او هر حسن لغیره په اعتبار د ذات سره ضعیف وي خو په اعتبار د کثرت د طرقو سره حسن لغیره ګرځي۔
دا څلور اقسام د مقبول دي اوددی نه علاوه چي څومره دي هغه مردود دي۔ مقبول حدیث به ددی څلورونه بهر نه وي۔ که علاوه ددی نه وي نو هغه به مردود او ضعیف وي او یا به یو قسم د ضعیف نه وي لکه شاذ، منکر، متروک، مدلس، او موضوعي وغیره۔

**د مردود اقسام**

د مردود او ضعیف په دغه اقسامو کي د ټولو نه خطرناک چي کوم قسم دی هغه موضوعي دي۔

**موضوعي:**

''هو الموضوع المخلق علي رسول الله والمنسوب الیه مالم یقله ولم یفعله ''چي نه خو رسول الله (ص) ونیلی وي او نه ئي کړی وي او نه ئي ورته نسبت کیږي نو دی ته موضوعي وائي۔ موضوعي روایات په اتفاق د علماؤ سره ناجائز او حرام دی ''الا مع بیان وضعه'' مګر په هغه وخت ئي بیانول جائز ګرځي چي دا بیان ورسره اوکړئ شي چي دا موضوعي حدیث دی یعني چا د ځان نه جوړ کړی دی۔ او ډیر علماء ورته کفر وائي۔

Scanned with C

محدثين كرام د موضوعي احاديثو نه ډير خان ساتي او باقاعده كتابونه ئي پرى ليكلي دي۔ په دى سلسله كښې ملا علي قاري رحمه الله تعالي الموضوعات الكبريٰ ، حافظ عراقي تنزيه الشريعة عن الاحاديث الضعيفة والموضوعة ليكلي دي۔

د امام احمد رحمه الله تعالي په باره كي راځي چي دوي خپل خوي ته سبق شروع كړو او اول ئي ورته څلور زره احاديث ياد كړل او ورته ئي او فرمانيل چي بچيه دا دروغ احاديث وو چي خلقو د خان نه كوم جوړ كړى دي۔ خوي ورته اووئيل چي دادى راته بيا ولې يادول۔ امام احمد رحمه الله تعالي ورته او فرمائيل چي ته ترى نه خان بچ كړې۔ ددى موضوعي رواياتو باعث د وضع څه شې دى علماؤ ددى څو وجي ذكر كړى دي۔

په مذكوره اقسامو كي وجه دحصر داده چي په حديث باندي وارد شوي طعن به د دوه حالاتو نه خالي نه وي يا به طعن دراوي دطرفه وي او يا به دغير راوي دطرفه وي كه دراوي دطرفه وي نو بيا به د دوه حالاتو نه خالي نه وي يابه قولاوي او يا به فعلا وي كچري قولاوي په داسي شان سره چي هغه دروايت نه انكار اوكړي نو دا به بيا د دوه حالاتو نه خالي نه وي يا خو به يي انكار پشان ته دانكار دجاهد وي او يا به يي انكار پشان دانكار دمتوقف وي كچري اولني صورت وي نو بيا خو بالاتفاق داحديث ساقط العمل دي او كچري دويم صورت وي نو په دي كي اختلاف دي دامام كرخي او امام احمد بن حنبل په نزد داسي حديث ساقط العمل دي او دامام شافعي او امام مالك په نزد ساقط العمل نه دي، او كچري طعن من جانب الراوي فعلا وي نو دا به د دوه حالاتو نه خالي نه وي يا خو به دروايت خلاف عمل كوي او يا به په روايت عمل كول پريږدي يعني عمل به ورباندي نه كوي كچري ثاني يعني دامتناع عن العمل صورت وي نو په داسي وخت كي به داسي حديث ساقط العمل وي او كچري اول يعني دروايت خلاف عمل كوي نو دا به د دري حالاتو نه خالي نه وي يا خو به دا عمل ده د روايت نه مخكي كړي وي او يا به يي روسته كړي وي او يا به يي تاريخ مجهول وي پته به نه لګي چي دحديث خلاف عمل ده په كوم وخت كي كړي دي دحديث بيانولو نه يي مخكي كړي دي او كه روسته كچري تاريخ مجهول وي نو حديث به ساقط العمل نه وي او كچري هغه دخپل روايت كړي حديث خلاف عمل دحديث بيانولو نه مخكي كړي وي نو بيا به هم دا حديث ساقط العمل نه وي او كه مخالف عمل يي پس دروايت نه كړي وي نو دا به د دوه حالاتو نه خالي نه وي يا به خلاف عمل باليقين وي يا به بالاحتمال وي كه اولني صورت وي نو حديث به ساقط العمل وي او كه دويم صورت وي نو حديث به ساقط العمل نه وي، او كچري طعن دغير راوي دطرفه وي نو دا به د دوه حالاتو نه خالي نه وي يا به دصحابي دطرفه وي او يا به دغير صحابي دطرفه وي كچري دصحابي دطرفه وي په داسي شان سره چي دغه صحابي ددي حديث خلاف عمل كوي نو دا به د دوه حالاتو نه خالي نه وي (١) هغه حديث دكوم خلاف چي صحابي عمل كړي دي دا به ظاهر

وي او دصحابه كرامو نه دمخفي كيدو احتمال به نه لري نو دداسي حديث خلاف دصحابي عمل كول موجب دطعن او جرحي دي او دا حديث به ساقط العمل وي (٢)، يا هغه حديث دكوم خلاف چي صحابي عمل كړي دي دا به داسي حديث وي كوم چي دصحابه كرامو نه دمخفي كيدو احتمال لري نو دصحابي دداسي حديث خلاف عمل كول به موجب دجرحي نه وي او نه به حديث ساقط العمل وي او كه دصحابي نه علاوه دنورو اهل علمو دطرفه دحديث خلاف عمل شوي وي نو داسي عمل مطلقا موجب دطعن نه وي بلكه په دي كي تفصيل دي لكه چي عنقريب به يي په جرح مبهم كي بحث راشي او كچري جرح مبهم وي نو بيا به د دوه حالاتو نه خالي نه وي يا خو به روسته ددي تفسير واقع شوي وي او يا به نه وي كه روسته يي تفسير نه وي واقع شوي نو حديث به ساقط العمل نه وي او كه روسته يي تفسير واقع شوي وي نو دا به د دوه حالاتو نه خالي نه وي يا خو به جرح متفق عليه واقع شوي وي او يا به جرح مختلف فيه وي كه اولني صورت وي نو حديث ساقط العمل دي او كه دويم صورت وي نو بيا حديث ساقط العمل نه دي.

كله چي طعن دراوي دطرفه وي نو دا په دوه قسمه دي يو قولي دي او بل فعلي دي قولي دادي چي مروي عنه ددي روايت نه انكار اوكړي خو بيا انكار په دوه قسمه دي (١) انكار دجاحد دي په داسي شان سره چي مروي عنه اووائي چي تا په ما پوري دروغ تړلي دي او يا داسي اووائي چي دا حديث ما نه دي بيان كړي دداسي حديث حكم دادي چي دا بالاتفاق مقبول نه دي او داسي حديث بالاتفاق ساقط العمل دي (٢) انكار دمتوقف دي او هغه دادي چي مروي عنه راوي ته اووائي ماته ياد نه دي چي دا حديث ما تاته بيان كړي دي يا داسي اووائي چي ماته ددي حديث پته نشته نو دداسي حديث په حكم كي اختلاف دي امام كرخي او امام احمد بن حنبل په نزد مقبول نه دي او دا ځكه كله چي دمروي عنه دياد كيدو باوجود هغه ته دا راياد نشو نو په دي كي دوه احتمالونه دي ياخوبه حقيقتاً دا روايت نه وي كړي او دا ظاهره ده چي هر كله چي په حقيقت كي روايت نشته نو بيا به په دي باندي عمل دكوم طرفه كيږي(٢) يا خو به يي په حقيقت كي عمل كړي وي مګر دهغه نه به هير شوي وي او درايادولو دكوشش نه باوجود به ورته ياد شوي نه وي هر كله چي هغه ته درايادولو دكوشش باوجود راياد نشو نو دا دده دغفلت انتهاء ده لهذا دا كس مغفل دي او دمغفل روايت مقبول نه وي، او دامام مالك او دامام شافعي په نزد دا حديث مقبول دي ځكه چي مروي عنه او راوي عادل دي او عدالت دنسيان په وجه نه ساقطيږي او دا ځكه يو سړي چي دچانه روايت كوي او دډيري زماني نه پس ورنه هيريږي هر كله چي يي نسيان دعدالت سره منافي نه دي نو دوئ دواړه عادلان دي او دعادل خبر مقبول وي لهذا دا خبر به مقبول وي.

قسم ثاني يعني طعن فعلي په دوه قسمه دي اول عمله بخلاف الرواية دويم امتناعه عن العمل

Scanned with C

بالرواية اولني بيا په دوه قسمه دي خلاف دعمل بعدالرواية دويم خلاف دعمل قبل الرواية ، دريم چي عمل دراوي دمروي حديث نه خلاف وي ليکن درروايت او دعمل تاريخ مجهول وي دا ټول څلور قسمونه شول مصنف واني که درروايت کولو نه پس راوي ددي حديث خلاف عمل کوي داسي خلاف دکوم خلاف کيدل چي يقيني وي يعني دکوم قسم تاويل ګنجائش پکي نه وي نو داسي حديث به ساقط الاعتبار او ساقط العمل وي او په دي باندي عمل کول جائز نه دي دا حديث په دي وجه ساقط العمل دي چي يا خو دا مخالفت په دي وجه باندي کيږي چي راوي ددي حديث په منسوخ کيدو يا موضوعي کيدو باندي خبر شوي دي بهر حال منسوخ او موضوعي حديث ساقط العمل وي لهذا داسي حديث مقبول نه وي. يا د راوي دطرفه دخپل مروي حديث مخالفت دبي پرواهئ يا دغفلت په وجه شوي وي په هر صورت کي راوي عادل نه پاتي کيږي او دغير عادل راوي روايت مقبول نه دي لهذا داسي روايت مقبول نشي کيدي.

## د موضوعي حديث جوړولو باعث

**(۱) اهل هوي:**

اهل هوي او اهل الرائي موضوعي روايات پيدا کوي. يعني غلط عقيدى والاکثر موضوعات پيدا کوي. د شيعه ګانو عام احاديث دروغ وي که تاسو اوګورئ نو هغوي واني جعفر صادق عليه السلام دا واني. دوئ دى ته سوچ نه کوي چي جعفر صادق خو څه پيغمبر نه وو.

**(۲) متملقين:**

دروغژن او دنيا پرست علماء د حکومت متملقين وي، دوي په نبي کريم (صلي الله عليه وسلم) دروغ تړي. غياث بن ابراهيم يوملا وو. يوه ورځ مامون الرشيد رحمه الله تعالي په کوترو باندى لوبى کولى او کوتر بازي ئي کوله. نو دى ملا ورته زر د دروغو حديث جوړ کړو چي "لاسبق في الا في نصب قص و حفر او جناح" نو ده پکي دا "جناح" زيات کړو يعني رسو کريم فرمائيلي دي چي مسابقه. مقابله په نصب کي وي او اوبنانو کي او حافر اسونو کي رواده او ده پکي "جناح" او ونيلو چي د وزرو په څيز کي هم مقابله رواه ده. وزرى خو د کوترو وي نو کونترو کي مقابله ده جائزه کړه. نو بادشاه خوشحاله شو او ده ته ني انعام ورکړو. چي کله دا دروغجن ملا لاړو نو بادشاه سوچ اوکړو چي دا خو ني دروغ اوونيل او هغه ټولي کوترى ني حلالى کړى. امام احمد رحمه الله تعالي فرمائي پکار وه چي دغه ملا ني جيل کي اچولى وى او توبه ني پري ويستلى وى.

په پاکستان کي هم داسي ملايان شته چي د حکومت د خوشحالولو دپاره هر څه کولو ته تيار وي. د بخاري او مسلم حديث دى "لن يفلح قوم ولي امرهم امرأة" هغه قوم نه شي کاميابيدى چي مشري ني ښځه کوي.

بعضي ليډران وائي چي دا حديث دروغ دی. بعضي مولاينان د خپلی پارټی دپاره بيا د بخاري حديث ته هم دروغ وائي!

**(۳) جاهلان پیران او صوفیان:**

بل دروغجن دا جاهل پيران او صوفياء دي. دروغ جوړوي په دی نيت چي مونږه خو د دين خدمت کوو. او ددی سره قوم کي بدعات خواره شي لکه په اذان او اقامت کي ګوتی ښکلول او روايت د ابو بکر (رضي الله عنه) نه ذکر کوي او وائي چي دغه ګوتی بيا په سترګو راکاږ ی نو سترګی به مو نه خوږيږي. نو دا ټول دروغ دي.

تصوف صحيحه خو تذکيه ده او سلوک او احسان او عمل بالشريعة دی او اصلاح د ظاهر او د باطن ده خو دی کي دا رسمي پيران او جاهل عوام پکي ډير داخل شوي دي. که سند پنجاب ته لاړ شي نو قبرونو ته به طوافونه کوي عرسونه به کوي او دی ته ئي نوم د تصوف ورکړی دی. زه مصر او شام ته تلی يم هلته می جاهلاني ښځي هم ليدلې چي پيراني وي.

شيخ عبدالقاهر عيني حلبي مشهور صوفي په جومات کي يوه حلقه جوړه کړی وه اوپه ولاړه ئې المدد يارسول الله المدد يا رسول الله چغی شروع کړی وي ما ورته اووئيل چي دا څه کوي د سيد الکائنات صلي الله عليه وسلم نه مدد غواړئ، نو دوي اووئيل چي نه دا خو مونږه توسل کوو. ما ورته اووئيل چي دا څنګه توسل دی؟ تاسو خو براه راست د هغوي نه مدد غواړئ نو دي جاهلانو دا بدعات شروع کړی دي.

په شوافعو کي بدعات ډير دي مونږه احناف تری يو په سل څه يو. حنابله زيات متبع سنت دي او په دويم نمبر کي بيا احناف حضرات دي. او په مالکيانو کي تصوف زيات دي او په شوافعو کي د پيرانو او صوفيانو دا بدعات زيات دي. شيخ عبد القادر جيلاني رحمه الله تعالي ښکلی ولي دی څکه ټول علماء ورته مبارک او ښه وائي او د مور او پلار دواړو د طرفه سيد دی. او مشهورکرامات ني دي ليکن محدث نه دی د پنځمی صدی سړی دی. ددوئ اقوال اکثر دا پيران نقل کوي او وائي چي شيخ عبد القادر جيلاني رحمه الله تعالي داسی داسی فرمائيلی دي. نو د صوفيانو د کتابونو په احاديثو به اعتماد نه کوئ.

(۴) قصاصين: بل دا دروغژن واعظين چي د خپل وعظ خائسته کولو دپاره د دروغو خبري جوړوي. ذر به جومات کي کيني او وعظ به شروع کړي او وائي چي رسول الله (صلي الله عليه وسلم) داسی فرمائيلی دي. نو موضوعات د واعظينو په خبرو کي ډير زيات وي. دوي اکثر موضوعي احاديث بيانوي.

رسول الله صلي الله عليه وسلم امام احمد رحمه الله تعالي فرمائي چي يوځل می د يحيٰ بن معين رحمه الله تعالي سره په دمشق کي د جمعی مونځ کولو يو کس وعظ شروع کړو چي څوک لاآله الاالله يو ځل او وائي نو الله پاک ددی نه اويا (۷۰۰۰۰) زره فرشتی پيدا کړي او د

هری فرشتی اویا (۷۰۰۰۰) زره سرونه وي او په هر سر کي اویا (۷۰۰۰۰) زره خولي وي او په هره خله کي اویا زره (۷۰۰۰۰) ژبی وي او هره ژبه دده دپاره استغفار غواړي- او دی واعظ دا حواله ورکړه چي داما د امام احمد بن حنبل رحمة الله تعالي اویحیٰ بن معین رحمه الله تعالي نه روایت کړی دی- نو امام احمد رحمه الله تعالي اوفرمائیل چي ما یحيٰ بن معین رحمه الله تعالي ته او کتل اوهغوي ماته- مونږه حیران شو چي دا روایت خومونږه نه دی نقل کړی- کله چي وعظ ختم شو نو خلقو ورته پیسی ورکولی ما دی مقررته آواز اوکړو اوخپل تعارف می ورسره اوکړواو بیامی تری تپوس اوکړو چي دا روایت چي کوم تا په وعظ کي ذکر کړونو دا خوما نه دی نقل کړی- هغه سړی ډیر چالاک وو- په خندا شو او دائي اووئیل چي ماته تاسو ډیر کم عقل خکاری- خکه چي یوازی تاسو خو احمد بن حنبل رحمه الله تعالي او یحيٰ بن معین رحمه الله تعالي نه ئي ماخو د اویا (۷۰) احمد او اویا (۷۰) یحيٰ بن معین نه سبق وئیلی دی-

محدثینو یو قاعده ذکر کړی ده که چری په ورکوتی عمل باندی ډیر ثواب ذکر شي نو پوه شه چي دی کي څه چل شته ماسوا د هغي نه چي کوم په صحیحینو کي راغلی وي-

**(٥) متعصب مذاهبو والا:**

بله ډله سخت متعصب او دروغژن مذاهبو والا دي- لکه معتزله،خوارج،شیعه ګان او بعضي احناف او شوافع وغیره چي خپلوامامانو باره کي ئي دروغ خبري ذکر کړي دي-

بعضي احناف وائي چي يكون في امتي رجل يقال له ابو حنيفة هو سراج امتي- دا شامي هم را نقل کړی دی او د شامي په خطبه کي هم یا لکه امام شافعي رحمه الله تعالي په ذم کي وائي يكون في امتي رجل يقال له ادريس هو اضر عليٰ امتي من ابليس،او یا داسي چي هو اضل من ابليس، معاذالله نو دا ټول دروغ دي او نسبت ئي نبي کریم (صلي الله عليه وسلم) ته کوي-

**(٦) زنديقين:** دا هغه دروغجن کافران دي چي بدنامول د اسلام ددوی مشغله وي او دا ئي مقصد د زان دپاره جوړ کړی وي- زندیق دی ته وائي چي د زړه نه مسلمان نه وي هسي په ظاهره ئي خان د مسلمانانو پشان جوړ کړی وي او د خان نه منکرت احادیث جوړوي او خلق ددی په ذریعی سره ګمراه کوي- لکه وائي "البازنجان لما اكله" باتنګړ چي چا په کوم نیت اوخوړ نو هغه به ورته ملاویږي- نو دا دروغ خبري دوي رسول الله (صلي الله عليه وسلم) ته منسوبوي-

****************

### ٤- بحث: تقسیم د احادیثو په اعتبار د اتصال، انقطاع، فصل او وصل

(۱) المسند (۲) المتصل (۳) المرفوع (۴) الموقوف

(۵) المقطوع (٦) المنقطع (۷) المعضل (۸) المعنعن

Scanned with C

(۹) المرسل (۱۰) المدلس (۱۱) المعلق (۱۲) مرسل خفي
داتصال او انقطاع په اعتبار سره د حديث دوه قسمونه دي يو مسند او بل مرسل.
**دمسند خبر تعريف:** مسند هر هغه خبر دي دكوم داسناد سلسله چي دمتكلم نه واخله تر رسول الله صلي الله عليه وسلم پوري متصل وي او په مينځ كي كوم راوي غورخيدلي نه وي.
**دمنقطع او مرسل خبر تعريف:** منقطع او مرسل هغه خبر دي دكوم داسناد سلسله چي دمتكلم نه واخله تر رسول الله صلي الله عليه وسلم پوري متصل نه وي بلكه په مينځ كي كوم راوي غورخيدلي وي.
**المسند:** ''هو مااتصل سنده الي النبي الكريم'' نو د المسنَد دپاره دوه شرطونه شو اول اتصال او دويم رفع.
**المتصل:** ''هو ما اتصل سنده سواء كان مرفوعاً او موقوفاً او مقطوعاً'' .
**المرفوع:** ''ما نقل فيه قول الرسول او فعله او تقريره او حاله''.
**الموقوف:** ''ما نقل فيه قول الصحابي اي ما بلغ الي الصحابي فقط''.
نو بغير د دريو شرطونو نه حجّت نه دي.
**المقطوع:** '' ما وصل الي التّابعي من قوله او فعله اي ما نقل فيه قول التابعي او فعله''
**المنقطع:** '' ماحُذف من وسط سنده شخص او شخصان متصلان.
**المعضل:** '' ماحُذف فيه راويان من غير ترتيب اعضال اي اشكال''دا خطرناک دي.
**المعلق:** '' ماحُذف مناول سنده شخص اوشخصان'' په بخاري كي هم معلقات شته.
**المعنعن:** ''هو مايرويه الراوي عن شيخه وبلفظ لا يدل علي السماع صراحة بل يحتمل السماع ولا يحتمله كذالک'' لكه ''اخبر او حدّث عن'' سره دا صيغه صناعي ده. يو بل حديث هم دى هغي ته مئنئن وائي. لكه چي أن أن سره ذكر وي. لكه انه قال.
**المرسل:** '' ماحُذف من آخر سنده و هٰذا ضد المعلق '' آخر سند كي كله صحابي وي كله تابعي كله ائمه ثلاثه ماسواء د امام شافعي رحمه الله تعالي نه او عام محدثينو نه چي دوي مراسيل حجت نه گنړي.
**المدلس:** ''هو ما يروي فيه الراوي عمن عُرف لقاه اياه لكن لم يسمع منه او سمع منه ولكن لايسمع هٰذا الحديث الخاصة بلفظ لايدل علي السماع'' راوي ته مدلس او روايت ته مدلس او دى عمل ته تدليس وائي. او د تدليس معنيٰ ده دهوكه. بيا د تدليس څو اقسام دي چي په هغي كي اول:

۱" **تدليس الاسناد** ". دا هغه دى چي راوي د استاذ د ضعف د وجي نه د استاذ نوم ذكر نه كړي او د استاذ د استاذ نوم ذكر كړي چي ليدلى ني وي.

۲-**تدليس الشيوخ**" ددى مطلب دا چي د استاذ نوم په كنيه سره ذكر كوي په دا سى صورت كي چي د استاذ دغه كنيه غير مشهور وي. او يا دا چي په خپل نوم سره ني ذكر كوي چي كله هغه په كنيت مشهور وي.

۳-**تدليس التسوية** "- هو حذف ضعيف بين الثقتين" او دغه دواړو د يو بل سره ملاقات كړى وي. لكه امام اوزاعي رحمه الله تعالي د امام زهري رحمه الله تعالي نه هم روايت كړى دى او د يو بل استاذ نه هم چي امام نافع رحمه الله تعالي دى. نو اوس د امام اوزاعي رحمه الله تعالي شاګرد به چي روايت كولو نو امام اوزاعي رحمه الله تعالي سره به ني زهري رحمه الله تعالي هم ذكر كولو. نو دا قسم ډير خطرناک دى عام كتابونو كي تدليس الاسناد ذكر كيږي كه چرته مدلس سماع كړى وي نو دا حديث بيا د ضعيف نه حسن لغيره ګرځي.

**مرسل خفي**: دا هم د مدلس په شان وي " هو ما يروي فيه الراوي عن معاصره ولا كن لم يعرف لقائُه اياه بلفظ يحتمل السماع" مدلس كي د داسي كس نه روايت وي چي لقاء ني معلومه وي. او په مرسل خفي كي لقاء نه وي معلومه او معاصرت په دواړو كي وي او دا دواړه د اقسامو د ضعيف نه دي.

په اقسام اربعه كي دمرسل وجه دحصر داده چي يا خو به ارسال من كل الوجوه وي او يا به نه وي كچري ارسال من كل الوجوه نه وي بلكه من وجه ارسال وي او من وجه اسناد وي نو دا څلورم قسم دي او كه ارسال من كل الوجوه وي نو دا به بيا د دوه حالاتو نه خالي نه وي يا به ارسال صحابي كوي او يا به نه وي كچري ارسال صحابي اوكړي نو دا اولني قسم دي او كه صحابي ارسال اونكړي نو دا به هم د دوه حالاتونه خالي نه وي يا به ارسال اهل دقرن ثاني او ثالث كړي وي او يا به ددوئ نه وروسته نورو خلقو ارسال كړي وي كچري ارسال قرن ثاني او ثالث كړي وي نو دا دويم قسم شو او كچري ددوئ نه پس روستنو خلقو كي چا كړي وي نو دا دريم قسم شو.

غرض زمونږ داولني قسم تفصيل او حكم بيانول دي دمرسل خبر اولني قسم مرسّل دصحابي دي او هغه دادي چي ارسال صحابي اوكړي يعني صحابي پخپله دنبي كريم صلى الله عليه وسلم نه حديث اوريدلي نه وي بلكه كوم بل صحابي اوريدلي وي او دهغه دنوم اخستلو نه بغير يوصحابي داسي اووائي قال رسول الله كذا.

دمرسل خبر داولني قسم حكم دادي چي داسي خبر بالاجماع مقبول دي

**فائده** داجماع نه مراد دمتقدمينو اجماع ده او كه متاخرين په دي كي اختلاف اوكړي نو ددوئ اختلاف لره اعتبار نشته

**فائده** دصحابي دمرسل د مقبول كيدو وجه بيانولي شي او هغه داده كله چي صحابي ارسال كوي نو مسقط بل صحابي دي او هر يو صحابي په دليل ددي حديث "الصحابة كلهم عدول" عادل دي پس هر كله چي دصحابي عدالت ثابت شو نو په مسقط راوي كي جهالت پاتي نشو او مرسل ددي مسقط راوي د مجهول كيدو په وجه غير مقبول نه دي پس هر كله چي په مسقط راوي كي جهالت باقي پاتي نشو نو دده دروايت په مقبول كيدو كي به څه شك نه وي.

دمرسل دصحابي دمرسل دمقبول كيدو وجه داده چي دصحابي په باره كي دنبي كريم صلي الله عليه وسلم دصحبت په وجه غالب گمان دادي چي دده به ورته دا حديث پخپله اوريدلي وي اگر چي ددي خيري احتمال هم شته چي دده نه علاوه كوم بل صحابي اوريدلي وي.

**ضابطه** كچري صحابي قال رسول الله اووائي نو ته په دي پوهه شه چي دي صحابي ارسال كړي دي او كه سمعت رسول الله اووائي يا حدثني رسول الله اووائي نو ته په دي پوهه شه چي صحابي اسناد كړي دي.

***************

## ٥- بحث بيان د وجوهاتو د تحمل د حديث:

دتحمل معنىٰ ده برداشت كول او زده كول. وجوهات د تحمل حديث عند المحدثين اته (٨). دي

(١) قرائة الشيخ (مصدر مضاف قائل ته) (٢) قرائة علي الشيخ (٣) المناوله (٤) المكاتبه (٥) الاجازة (٦) اعلام الشيخ (٧) وصيت (٨) وجادة.

### قراءة الشيخ:

اوله طريقه قرائة الشيخ دي. قرائة الشيخ دی ته وائي چي ''ان يقرأ الشيخ ويسمع منه تلامذه ''چي استاذ احاديث وائي او شاګردان ئي اوري. دا اعلىٰ طريقه ده د طرقو د تحمل حديث عند الاكثر علماء چي په داسی طريقه دی د استاذانو نه سبق ونيلی شي نو بيا د استاذ دپاره هرد صيغه استعالولی شی. لکه سمعتُ، حدثني، حدثنا، اخبرني، اخبرنا

### قرائة علي الشيخ:

قرائة علي الشيخ دی ته وائي چي شاګرد عبارت وائي اواستاذ ساكت وي نو دی ته عرض علي الشيخ هم وائي او امام بخاري رحمه الله تعالي پری با قائيده باب هم اينبودلی دی. او دا په نزد د محدثينو دويمه درجه ده. او امام ابو حنيفه رحمه الله تعالي فرمائي چي دا اعلىٰ ده خكه

چي تلميذ وائي نو شيخ ئي اصلاح کولی شي،معني او نکات به بيانوي او امام بخاري رحمه الله تعالي د امام مالک رحمه الله تعالي نه نقل کوي چي دا دَ اولنی طريقی سره برابر ده نو په دی صورت کي هم د عامو محدثينو په نزد هره صيغه د أدَاء ونيلی شي۔ حتيٰ چي سمعتُ هم ونيلی شی۔ دا خکه چي استاذ ساکت شي نو دا په منزله د تقرير شو او تقرير په منزله دده دپاره سماع شوه۔ د امام اعظم ابو حنيفه رحمه الله تعالي هم دا قول دی۔ او امام مسلم رحمه الله تعالي ،امام نسائي رحمه الله تعالي،امام شافعي رحمه الله تعالي او د امام احمد رحمه الله تعالي هم دا رائي ده چي دي کي به اخبرني،اخبرنا وائي۔ خکه سمعنا يا حدثنا هله وي چي په خپله د استاذنه ئي اوريدلی وي۔

امام محمد رحمه الله تعالي د يو جزئي فقهي مسئلی نه هم دا معلوميږي چي يو کس غلام ته اوويل چي مَنْ حَدَّثَنِي بِقُدُومِ اِبنِي فَهوَ حُرٌ۔ نو که دی غلام ته اخبار ورکړودبل کس په واسطه يا په خط سره نو دی حُر نه دی حتیٰ چي پخپله ورته او وائي۔ او که دی مالک أَخبَرنِي ذکر کړی وي نو بيا دی په کتابت،يا اخبارهرڅه سره چي وي نو آزاديږي نو معلوميږي چي احناف هم په صيغو کي فرق کوي۔

**المناوله:**

دی ته عرض هم وائي يعني استاذ او شاګرد کي يو هم عبارت اونه وائي بلکه استاذ خپله يو مجموعه د رواياتو شاګرد ته ورکړي او ورته او وائي چي دا زما روايات دي زما نه ئي نقل کوه ،دی ته مناوله وائيَ نو دا شاګرد اوس دا نقل کولی شي۔ او که اجازت ورنه کړي نو بعضي وائي چي روايات پری کول صحيح نه دي او عام محدثين فرمائي که اجازت نه وي بيا هم د استاذ د خپلی مجموعی دی شاګرد ته ورکول دده په اهليت دلالت کوي۔ بعضي په عرض او مناوله کي فرق کوي او وائي چي مناوله دی ته وائي چي استاذ ورکړی وي او عرض دی ته وائي چي طالب د استاذ د مکتوب نه ليکلی وي او استاذ ته ئي پيش کړی وي۔ امام مسلم رحمه الله تعالي فرمائي چي په دی کي هم اخبرنا ، اخبرني ونيلی شی او امام بخاري رحمه الله تعالي فرمائي چي هر څه پکي ونيلی شی۔

**مکاتبه:**

''هو ان يكتب الشيخ الي تلميذه برواياته'' مکاتبه دی ته وائي چي استاذ او شاګردپه يو مجلس کي نه وي بلکه استاذ احاديث ليکلی شوی اوليږي او دغه شاګرد ئي بيا نقل کوي نو بعضي وائي چي دغه شاګرد دا نقل کولی شي او بعضي وائي چي نه اجازت پکي ضروري دی۔ مکاتبه اکثر په غائب کي وي او مناوله په حاضر کښي۔

**الاجازة:**

کله چي اکثر شاګردان د استاذانو نه اجازت اوغواړي او یا دا چي یو عالم د بل عالم نه اجازت اوغواړي نو دا صحیح ده. بیا دا اجازت په څلور قسمه دی.

(۱) "الأجازة من معین لمعین في معین" لکه اجازت د معین شیخ نه معین طالب ته په معین کتاب کښې.

(۲) "الأجازة من معین لمعین في غیر معین" لکه اجازت د معین شیخ نه معین طالب ته په غیر معین کتاب کښې. شیخ خپل تلمیذ ته وائي "اَرْوِي عَنِّي ما صَحَّ عِندکَ" ما نه نقل کوه چي کوم صحیح وي نو دا هم قبوله ده.

(۳) "الأجازة من معین لغیر معین في معین" استاذ او کتاب معین وي مګر شاګرد غیر معین وي لکه یو کس داسې اووائي چي د پیښور خلقو ته اجازت دی زما د طرفه په بخاري کي نو اوس استاذ هم معلوم دی کتاب هم معلوم دی مګر شاګردان نه دي معلوم. نو یو طریقه د اجازت داهم ده او دا عام علماء قبلوي.

(٤) "اجازة من معین لغیر معین في غیر معین" دا طریقه عام علماء نه قبلوي لکه یو کس داسې اووائي " اجزت علماء اهل بلد کذا في جمیع ما صح عندهم من الروایات" استاذ معلوم دی کتاب نه دی معلوم او مجازله هم نه دی معلوم نو که یو کس اووائي چي د پیښور خلقو ته زما د طرفه اجازت دي نو په کوم حدیث کي اجازت دی په دی کي اشتباه ده ددی وجي نه دا قبول نه دی.

**اعلام الشیخ:**

" بأن یقول الشیخ هذه روایاتي " مثلاً یو استاذ خپلو شاګردانو ته اووائي چي زما د طرفه تاسو ته اجازت دی خو نه کتاب ورکړي او نه لیکل او نه استاذ ددی قرائة کړی وي او نه شاګردانو. نو دی ته اعلام الشیخ وائي په دی کي اختلاف دی بعضي علماء ورته قبول وائي او د بعضو په نزد باندی دا جائز او قبول نه دی.

**وصیت:** " بأن یقول الشیخ لرجل اجزتک لابنک الذي سیولد ان یروي عني" لکه یو کس د بل کس د اولاد په باره کي وصیت اوکي چي لاتر اوسه لا پیدا هم نه دی. نو دا عام علماء نه قبلوي. او که پیدا شوی وي او موجود وي

**الوجادة:** وجاده موندلی شوی څیز ته وائي. لکه یو شاګرد د شیخ مکتوبات پیدا کړي او دا یقین ئي وي چي دا د شیخ دي نو که نور احادیث ئي تری ونیلی وي نو داهم نقل کؤلی شي که نه ئي وي ونیلی نو بیا دی نه شي نقل کولی.

***************

## ٦- بحث: لغوي او اصطلاحي معني د سنت :

**معني د سنت:** سنت صيغه د مصدر ده د باب د سَنَّ.يسُنُّ .سنًّا نه او سنت په لغت کي څلورو اشياؤ ته وائي- طريقت، طبيعت،عادت او سيرت نو لاری ته سنت وائي- برابره ده که دا لاره ښه وي او که بده- مفرد کي ئي فرق نشته البته جمع کي ئي فرق شته- سُنن په ضمه د''س'' سره ښه لاری ته وائي او په فتحه د''س'' سره لکه سَنن بدی لاره ته وائي-

لکه حديث مبارک کي راځي '' لتتَّبِعُنَّ سَنَنَ من كانَ قَبْلَكُمْ '' تاسو به د پخوانو خلقو غلطو طريقو پسې روان شې- نو مذمومو طريقو ته السَنَن او محمودو طريقو ته سُنن وائي- لکه سُنن ترمزي وغيره- نودلته تری مراد محمودی طريقی دي

**۲- د سنت اصطلاحات:** په سنت کي د علماء حديث پنځه اصطلاحات دي-

(۱) :**اوله اصطلاح** داده چي محدثين کرام او فقهاء عظام فرمائي چي سنت اوحديث دواړه مترادف دي '' بكل معني الكلمة '' لکه څنګه چي د حديث اطلاق کيږي په قول،فعل،تقرير اوحال د مصطفيٰ نو هم دغه شان د سنت اطلاق هم په دغه څلورو خبرو کيږي صرف فرق په مابين د الفاظو کښې دی-

په دی خبره خان په پوه کړئ چي سنت او حديث يو شی دی يعني د دواړو اطلاق هم په يو څيز کيږي چي هغه قول،فعل،تقرير او حال د مصطفيٰ دی- بعضي خلقو خان ته اسي نوم بدل کړی دی خان ته اهل حديث وائي حالانکه تاسو اوونيل چي په اصطلاح د محدثينو او فقهاؤ کي دا دواړه (سنت او حديث) يو شی دی- څلور واړه مذاهب اهل سنت دي او سنت عين حديث ته وائي نو بيا مو خان ته دا نوم ولي بدل کړی دی- او دا ياد لرئ چي عمل په سنت وي په حديث نه دا څکه چي سنت هغه آخري طريقی ته وائي چي ښه د وضاحت نسخ او منسوخ تخصيص او تعميم نه پس چي د کومی لاری تعين کيږي هغي ته سنت وائي-

چا چي خان ته نوم بدل کړی دی زه ددوئ نه تپوس کوم چي دوي اهلحديث هو خان ته وائي مګر اهل سنت دي اوکه نه؟ څلور واړه امامان رحمهم الله تعالي اهلسنت والجماعت دي- سنت نه مراد طريقه د مصطفيٰ اوجماعت نه مراد د صحابؤ ډله- نو دا خلق خان ته اهل سنت نه وائي بلکه اهل حديث وائي او دا څکه چي دوي د خلفاؤ او اصحابو عملونو ته هيڅ اهميت نه ورکوي بلکه هسي د مناقشه لفظي نه کار اخلي- نو دا عام معنيٰ شوه چي د سنت او حديث مصداق يو دی-

(۲) :**دويمه اصطلاح** داده چي سنت عام دی او حديث خاص دی- يعني حديث قول او فعل

رسول ته وائي او سنت فعل قول د اصحابو او خلفاء راشين ته هم وائي. لکه څنګه چي حديث مبارک کښې راځي. ''عليکم بسنتي و سنة الخلفاء الراشدين المهديين من بعدي تمسکوا بها وعضوا عليها بالنواجذ'' يعني زما په سنتو عمل کوئ او زما د خلفاؤ په سنتو عمل کوئ نو حديث خاص شو او سنت عام شو

(۳) : **دريمه اصطلاح** داده چي سنت هغه څيز ته وائي چي په کتاب الله او په احاديثو سره ثابت وي نو دی ته سنت وائي او که په کتاب الله او حديث او يا په عمل د سلف صالحينو ثابت نه وي نو دی ته بيا بدعت ونيلی کيږي. نو سنت راځي په مقابل د بدعت کي نو د سنت تعريف داسی شو چي ''کل ما ثبت بدليل شرعي يسمي سنة وکل ما لم يثبت بدليل شر عي يسمي بدعة'' نو دا د سنة دريمه اصطلاح شوه چي سنة راځي په مقابل د بدعت کښي.

(٤) :**څلورمه اصطلاح** داده چي د حديث اطلاق په اقوالو د رسول الله کيږي او د سنت اطلاق عام طور سره په افعالو د رسول الله (ص) کيږي مګر دا قاعده اکثريه ده کليه نه ده لکه خلق وائي چي اوبه څکل په دی طريقه سنت دي. روټۍ په دی طريقه خوړل سنت دي مسواک کول په دی طريقه سنت دي وغيره وغيره.

(۵) :**پنځمه اصطلاح** داده چي سنت نوم د يو مرتبې متوسطي دی په احکامو تکليفيؤ خمسؤ کي تحت د واجبو نه او فوق د مستحبو نه.

## په خبر کي دوه اصطلاح ګاني دي.

(۱) :خبر او حديث دواړه مترادف الفاظ دي او مقصد ئي يو دی - لکه ونيلی کيږي احاديث النبي او اخبار النبي نو مطلب د دواړو يو دی.

(۲) : دويم چي خبر عام دی او حديث خاص دی يعني ''کل حديث خبر و لا عکس ''حديث قول اوفعل د نبي (صلي الله عليه وسلم) ته شامل دی او خبر قول او فعل د مصطفيٰ سره سره اقوالو د اصحاب الرسول ته هم شامل وي نو ددی وجي نه خبر عام شو په نسبت د حديث سره.

## بيان د اثر:

**اثر**: په اصل کي نقل ته وائي يعني ماثورة ای منقولة- دا هم دوه اصطلاح ګانې لري.

(۱) :اکثر محدثين فرمائي : چي اثر اوحديث يو شي دی او دا رايه د امام طحاوي رحمه الله تعالي هم ده- شرح معاني الآثارچي د امام طحاوي رحمه الله تعالي تصنيف دی دوي په دی کي احاديث د رسول هم راجمع کړی دي او اقوال د خلفاء راشدينو هم.

Scanned with C

(۲) :دويمه اصطلاح داده چي حديث او اثر کي مغايرت دی يعني حديث کلام د مصطفي ته ونيلی کيږي او اثر کلام د غير ته يعني د رسول الله (ص) نه ما سوا د اصحاب الرسول قول ته هم اثر ونيلی کيږي۔

د سنت د متعلقه ابحاثو په ضمن کي د تقليد په مسئله رڼا اچول غواړو.لکه چي په دي باره کي صاحب د نور الانوار داسي وضاحت پيش کړی دی

چي تقليد به ددوه احوالو نه خالي نه وي يابه د صحابي د قول وي او يابه د غير صحابي د قول وي، کچري دصحابي د قول وي نو :

## دتقليد شرعي حيثيت

تَقْلِيْدُ الصَّحَابِيِّ وَاجِبٌ يُدْرَكُ بِهِ القِيَاس أيْ قِيَاسُ التَّابِعِيْنَ وَمَنْ بَعْدَهُمْ لِأَنَّ قِيَاسُ الصَّحَابِيِّ لا يُتْرَكُ بِقَوْلِ صَحَابِيٍّ آخَر لِاِحْتِمَالِ السِّمَاعِ مِنَ الرَّسُوْلِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ بَلْ هُوَ ظَاهِرٌ فِي حَقِّهِ وَاِنْ لَمْ يُسْنَدْ اِلَيْهِ وَلَئِنْ سُلِّمَ اَنَّهُ لَيْسَ مَسْمُوعًا مِنْهُ بَلْ هُوَ رايه فَرَأيُ الصَّحَابِيِّ اَقْوىٰ مِنْ رَأيِ غَيْرِهِمْ لِأَنَّهُمْ شَاهَدُوا اَحْوَالَ التَّنْزِيْلِ وَاَسْرَارَ الشَّرِيْعَةِ فَلَهُمْ مَزِيَّةٌ عَلَى غَيْرِهِمْ .(نور الانوار في علم اصول الفقه)

. فرمائي دصحابي تقليد واجب دي او ددي په وجه به دتابعينو او دراتلونکو خلقو قياس به پريخودلي شي خکه چي دصحابي قياس دبل صحابي دقول په وجه نشي پريخودلي کيدي درسول الله صلي الله عليه وسلم نه دسماع داحتمال په وجه بلکه دصحابي په حق کي همدا ظاهرده اگر چي هغه دقول نسبت رسول الله صلي الله عليه وسلم ته نه وي کړي او که بيا هم اومنلي شي چي دغه قول درسول الله نه مسموع نه دي بلکه دا دصحابي رائي ده نو بيا به هم دصحابي رائي لره دغير صحابي په رائي ترجيح وي خکه چي هغوئ دقران کريم دنازليدو دوخت حالاتو او دشريعت داسرارو مشاهده کړي ده لهذا دوئ ته به په نورو خلقو فضيلت وي۔

حاصل دکلام دادي چي دصحابي په قول کي دسماع عن النبي احتمال متحقق وي بناء په دي دصحابي قول به دحديث په مرتبه کي وي او دحديث سره به مشابه وي لکه چي قول دنبي صلي الله عليه وسلم حقيقتاً حديث دي او قول دصحابي مشابه بالحديث دي او مشابه بالشيء دشيء سره ملحق وي نو خکه يي دصحابي قول دسنت سره ملحق کړو۔

دلته يو څو تمهيدي خبري ياد اوساتي:(۱) صحابي په دوه قسمه دي يو مجتهد صحابي دي او بل غير مجتهد صحابي دي دلته دمجتهدصحابي دتقليد نه بحث کيږي (۲) دصحابي قول په دوه قسمه دي (۱) مدرك بالقياس کوم چي دعقل او قياس موافق وي (۲)غير مدرك بالقياس يعني کوم چي دعقل او قياس سره موافق نه وي بلکه مخالف وي مطلب ددي دادي چي په دي قول کي دجزاء او سزا او وعداو وعيد بيان وي (۳) دتقليد تعريف: تقليد په لغت کي دانسان

په غاړه کي هار اچولو ته ونيلي شي او دخاروي په غاړه کي پټي اچولو ته ونيلي شي او په اصطلاح کي اتباع الغير علي ظن انه محق بلانظر في الدليل يعني دبل چا اتباع كول دهغه نه د دليل مطالبي كولو بغير ددي گمان كولو په حال کي چي دا په حق قائم دي او دحق مطابق خبره يي کړي ده

په دي خبره کي دعلماؤ اختلاف دي چي تقليد دصحابي واجب دي او كنه دي او كه واجب دي نو مطلقا واجب دي او كه دتفصيل سره واجب دي مصنف دصحابي دتقليد په باره کي څلور اقوال ذكر كړي دي ،١، تقليد دصحابي مطلقا واجب دي عام دي ددينه چي دده قول مدرك بالقياس وي او كنه وي دداسي قول په وجه به دتابعينو او روستنو خلقو قياس لره پريخودلي شي البته دنورو مجتهدينو دقول په وجه به نشي پريخودلي.

غرض زمونږ ددي عبارت نه دصحابي د قول دتقليد دوجوب دپاره دليل پيش كول دي حاصل داستدلال دادي چي دصحابي په قول کي د سماع عن الرسول احتمال متحقق دي بلكه دده په حق کي ظاهر او راجح همدا ده چي ده دي درسول الله صلي الله عليه وسلم نه اوريدلي وي كچري صحابي ددي قول نسبت رسول الله ته نه وي کړي او په دي وجه به دتابعينو او روستنو خلقو قياس دصحابي دقول په وجه ترك كولي شي او كه مونږ دا اومنو چي قول دصحابي مسموع عن النبي صلي الله عليه وسلم نه دي بلكه دا دده خپله رائي ده نو بيا هم قول دصحابي واجب التقليد دي ځكه چي دصحابي قياس او رائي دغير صحابي دقول او قياس نه راجح ده.

**وجه دترجيح:** داده چي صحابي به اسرارو دشريعت او حالاتو دشريعت نه خبردار وي دكومو په باره کي چي قرن نازل کړي شوي دي لهذا دوئ زيات پوهيدونكي دي چي كوم حكم په كوم موقعه نازل شوي دي او ددي حكم نه دشارع غرض څه دي هر كله چي ددوئ رائي په ترجيح حاصل ده نو په دي وجه به ددوئ رائي په غير په رائي باندي مقدم وي لهذا په دي به عمل كول واجب وي او ددوئ درائي په موجودګئ کي دبل غير مجتهد صحابي رائي ته التفات كول پكار نه دي.

بل قول دابوالحسن كرخي دي دده دقول حاصل دادي چي دصحابي تقليد مطلقا واجب نه دي بلكه په دي کي تفصيل دي وضاحت دمقام دادي چي قول دصحابي به د دوه حالاتو نه خالي نه وي يا به مدرك بالقياس وي يا به غير مدرك بالقياس وي. كچري مدرك بالقياس وي نو تقليد يي واجب نه دي او كه غير مدرك بالقياس وي نو واجب دي

دامام كرخي دقول دليل دادي قول دصحابي كه غير مدرك بالقياس وي نو تقليد يي واجب دي حاصل د دليل دادي هر كله چي قول دصحابي مدرك بالقياس وي نو په دي کي دسماع عن النبي احتمال متعين دي او مسموع عن النبي حديث واجب الاتباع دي لهذا دصحابي

Scanned with C

اتباع په هغه قول کي کوم چي غير مدرك بالقياس ده واجب ده پاتي شوه دا خبره چي دصحابي قول غير مدرك بالقياس وي په دي کي سماع متعين ده ددي وضاحت دادي چي تمام صحابه عادلان دي "الصحابة كلهم عدول" ددوئ په باره کي دكذب او مجازفت گمان صحيح نه دى، ځکه چي تمام دين ددوئ په نقل ثابت دي او كه څوك به دوئ بدگماني اوكړي نو دا به ددين منهدم كولو باعث وي پس هر كله چي دكذب او مجازفت گمان باطل دي او ددوئ عادل كيدل متعين دي او عادل انسان بغير د دليل نه عمل نه كوي او هر كله چي دده دقول نه قياس هم منتفي دي يعني قول يي مدرك بالقياس هم نه دي نو دده مسموع من النبي كيدل متعين شو لهذا دصحابي ددي قول تقليد به واجب وي.

امام كرخي وايي . چي كله قول دصحابي مدرك بالقياس وي نو تقليد يي واجب نه دي حاصل دكلام دادي چي كله قول دصحابي مدرك بالقياس وي دا به د دوه حالاتو نه خالي نه وي (١) يا به مسموع من النبي وي (٢) او يا به دصحابي ذاتي رائي وي ليكن دمسموع عن النبي كيدو داحتمال باوجود په دي وجه واجب التقليد نه دي چي مسموع من النبي كيدل په دي وخت کي موجب دعمل دي او هر كله چي ددي مسموع كيدل يقيني دي نو دمسموع من النبي كيدو محض احتمال موجب نه وي او د دويم احتمال مطابق په دي وجه واجب التقليد نه دي چي صحابي غير معصوم وي دده په قول کي دخطاء احتمال وي او په كوم قول کي چي دخطاء احتمال وي هغه دغير دپاره موجب نه وي لهذا دچا دپاره به يي تقليد واجب نه وي.

دامام شافعي دقول حاصل دادي چي دصحابي دقول تقليد بالكل واجب نه دي نه په مدرك بالقياس کي او نه په غير مدرك بالقياس کي ځكه چي چي كوم قول مدرك بالقياس وي ددي دواجب التقليد نه كيدو وجه داده چي دا قول دوه احتمالات لري يو دمسموع من النبي كيدو دويم دغير مسموع من النبي كيدو ليكن دويم احتمال راجح دي.

**قرينه د ترجيح** دا ده كچري دا قول مسموع من النبي وي نو صحابي به مرفوع الي النبي ضرور ذكر كړي وو پس چي هر كله چي يي مرفوع نكړو نو معلومه شوه چي دا دده خپله رائي ده او صحابي غير معصوم وي دده رائي دخطاء داحتمال نه خالي نه وي. او دصحابي اجتهاد او دغير صحابي اجتهاد په احتمال دخطاء کي برابر دي لهذا دصحابي اجتهاد به په غير باندي حجت نه وي او نه به واجب التقليد وي

همدارنگي صحابه كرامو به پخپل مينځ کي يو دبل سره اختلاف هم كولو پس كچري ددوئ قول حجت اومنلي شي نو په حجج کي به اختلاف راشي او تناقض به واقع شي او بيا به ترجيح ممكن نه وي ځكه چي په دوئ کي ديو قول دبل دقول نه اعلي نه دي او قاعده داده "اذا تعارضا تساقطا" لهذا بطلان متعين شو او كچري قول دصحابي غير مدرك بالقياس وي نو دده واجب

التقليد نه كيدو وجه داده چي دده دقول باره كي دا احتمال دي چي چاته يي فتوي وركړي وي ددي ګمان كولو په حال كي چي دليل موجود دي او حالانكه په حقيقت كي دليل موجود نه وو پس هر كله چي دا احتمال ممكن دي نو دغير دپاره به دده دقول اتباع واجب نه وي، شارح دليل داسي پيش كړي دي كوم چي دواړو صورتونو (مدرك بالقياس او غير مدرك بالقياس) لره شامل دي.

زمونږ دعلماؤ عمل دهغه اقوالو په تقليد كي متفق دي كوم چي غير مدرك بالقياس دي ، يعني امام ابوحنيفه صاحبين په دي كي متفق دي چي دصحابي تقليد واجب دي.

زمونږ دعلماؤ عمل په قول غيرمدرك بالقياس مختلف دي خكه چي دغه وخت كي په دوئ كي بعضو په قياس عمل كولو او بعضو په قول دصحابي.

په ماقبل كي دصحابي دقول دتقليد كولو دوجوب او عدم وجوب متعلق چي كوم اختلاف ذكر شو دا اختلاف په دوه شرطونو مشروط دي ياخو به په دي كي دصحابه كرامو په مينځ كي اختلاف ثابت وي او يابه نه وي اودا به هم ثابته نه وي چي دا قول نورو صحابه كرامو ته رسيدلي دي او هغوئ دتسليمولو په حال كي خاموشي اختياركړي ده نو ددي دوه شرطونو دموجود كيدو په وخت كي دصحابي دتقليد په عدم وجوب كي اختلاف دي بعضي علماء وائي چي دداسي صحابي تقليد واجب دي او بعضي وائي چي واجب نه دي، وجه دشرط داده كله چي قول ديوصحابي بل صحابي ته ورسيږي نودابه د دوه حالاتو نه خالي نه وي ياخو به دويم صحابي دتسليمولو په حال كي په دي قول خاموشي اختياركړي وي اويابه يي ددي مخالفت كړي وي كچري خاموش پاتي شوي وي نودابه دده دهغه سره په دي قول كي اختلاف وي او دده مخالفت په اتفاق دعلماؤ جائز نه دي بلكه تقليد به يي واجب وي خكه چي ا خو اجماع شوه او داجماع تقليد واجب دي مګر كه دويم صحابي مخالفت كړي وي نو بيا به بالاتفاق دهغه تقليد واجب نه وي خكه چي دي وخت كي په يقين ثابته شوه چي دده قول مسموع من الرسول نه دي او دا خكه كچري دده قول مسموع من الرسول وي نو په دي كي به صحابه كرامو اختلاف نه وو كړي كوم علماء چي ددوئ دتقليد دوجوب قائل وو هغوئ ددي احتمال په بناء قائل وو چي دا قول به شايد مسموع من الرسول وي نو اوس چي هر كله ددي قول مسموع نه كيدل يقيني شول نو په داسي حال كي هغوئ دده د تقليد دوجوب قائل نشول او دا اختلاف دمقلد په حق كي دمجتهدينو داختلاف پشان دي يعني اوس به ده ته اختيار وي چي په كوم قول عمل كوي په هغي دي اوكړي خو په دي شرط چي ترجيح ناممكن وي او كچري ممكن وي نو په راجح به عمل كوي.

**فائده:** هر كله چي صحابه كرامو په كوم حكم كي اختلاف كړي وي او په دغه حكم كي ددوئ دوه اقوال وي اويا ددينه زيات وي نو د روستنو مجتهدينو دپاره ددوئ دقول نه علاوه بل قول

کول باطل دي ددي وجه داده کله چي په کومه مسئله کي دصحابه کرامو اختلاف وي او مثلا ددوئ دوه اقوال وي نو دا په دي خبره باندي اجماع شوه چي حق ددي دوه اقوالو په مينځ کي بند دي او دا ځکه چي دا کار ناممکن دي چي دتمامو صحابه کرامو قول دي غلط وي اوداسي اجماع ته اجماع مرکب ونيلي دي پس هر کله چي کوم مجتهد ددوئ دقول نه علاوه قول کوي نو دا به داجماع سره دمخالف کيدو په وجه باطل وي لهذادصحابه کرامو نه پس دمجتهدينو داقوالو نه تجاوز مه کوئ اودصحابه کرامو دتمامو اقوالو دپريخودلو په حال کي نوي قول کول باطل دي. ځکه چي دتمامو صحابه کرامو په دي خبره اتفاق دي چي ددوئ په اقوالو کي يو قول ضرور حق دي.

او که مجتهد تابعي وي ځکه چي دتابعي قول اوفعل ته هم حديث ونيلي شي نو د مجتهد تابعي قول به هم د دوه حالاتو نه خالي نه وي ياخوبه يي فتوي دصحابه کرامويه زمانه کي ظاهره شوي وي او يابه نه وي کچري نه وي ظاهره شوي او دده رائي دصحابه کرامو درائي سره مزاحم نه وي يعني دده په رائي کي دومره قوت نشته چي دصحابي درائي سره مزاحمت اوکړي شي نو په دي وجه به دده تقليد دنورو اهل علمو دفتوي پشان صحيح نه وي، او کچري دده فتوي دصحابه کرامو په زمانه کي ظاهره شوي وي لکه حسن بصري، سعيد بن المسيب، علقمه قاضي شريح او مسروق وغيره نو ددوئ په باره کي زمونږ دعلماؤ په تقليد کولو کي او نه کولو کي اختلاف دي دبعضي علماؤ په نزد ددوئ تقليد واجب دي او همدا د فخر الاسلام او دمنار دمصنف مختار قول دي او همدا اصح قول دي او دا ځکه کله چي صحابه کرامو ددوئ اقوالو ته رجوع کوله او دوئ به يي دخپلي جملي نه شميرل نو په دي طريقه هغوئ دصحابه کرامو په مرتبه کي اوګرځيدل او په مناسبت دفتوي ورکولو سره، لهذا ددوئ تقليد به واجب وي او دامام صاحب نه هم په دي باره کي دوه مختلف روايات راغلي دي، دامام صاحب ظاهر مذهب دادي چي دتابعي تقليد واجب نه دي ځکه چي هغوئ ته دصحابه کرامو پشان فضيلت حاصل نه دي دصحابه کرامو تقليد خو په دي وجه واجب وو چي دنبي کريم صلي الله عليه وسلم دصحبت په وجه دهغوئ رائي درسته وه او هغوئ دتنزيل دحالاتو مشاهده کوله او ددي سره سره درسول الله نه داوريدو احتمال هم وو مګر دتابعينودپاره داسي دا فضيلت ثابت نه دي بلکه هغوئ زمونږ پشان انسانان دي لکه څرنګه چي زمونږ نه دخطاء احتمال موجود دي دارنګي هغوئ هم دخطاء نه محفوظ نه دي لهذا ددوئ تقليد په مونږ باندي واجب نه دي دا دامام صاحب ظاهرالروايت دي مګر دامام صاحب دويمه رائي هغه ده کومه چي منار والا په متن کي ذکر کړي ده او کوم چي نوادرالروايت ده.

****************

## ۷- بحث: هغه اصطلاحات چي د رجالو د حديث سره متعلق وي:

(۱) طالب الحديث (۲) الشيخ و المحدث (۳) الحافظ (۴) الحجة (۵) حاكم (۶) طبقة

**طالب الحديث:** هو الراغب فيه والمبتدي.

**الشيخ والمحدث:** هو الماهر فيه معني و جرحاً و تعديلاً و صحة و ضعفاً و مشتغلا فيه تدريسا.

**الحافظ:** زمونږه په اصطلاح كي خو حافظ هغه چا ته وائي چي قرآن پاک ئي حفظ كړې وي. او د محدثينو په اصطلاح كي حافظ دى ته وائي چي من يحفظ مأئة الف حديث سنداً و متناً صحةً و ضعفاً جرحاً و تعديلاً ،لكه حافظ ابن حجرچي ده ته خاتمة الحفاظ وائي. او بعضي جلال الدين سيوطي رحمه الله تعالي ته خاتمة الحفاظ وائي.

الحجة: هو من يحفظ ثلاثة مأئة الف حديث لفظاً و معني سنداً و متناً تصحيحاً و ضعيفاً.

**حاكم:** هو من يحفظ جميع الاحاديث والروايات سنداً و متناً تصحيحاً و ضعفاً.

حاكم صرف ابو عبدالله نيشاپوري رحمه الله تعالي دى - ده ته تقريبا لس (۱۰) لاكهه احاديث ياد وو.

**طبقة** : په اعتبار د زماني دولس طبقى دي او په اعتبار د ضعف و القوة پنځه طبقى دي.

الطبقة قوم من الرواة تقرب في السن والاخذ من المشائخ. لكه تاسو ټول طالبان يو طبقه كي ني.

## ترتيب د صحاح سته:

ترتيب په باره كي دري اقواله مشهور دي. اول: اوله خبره دا چي بخاري اصح الكتب دى او اول الكتب دى. ثاني: دا اشاره انور شاه كشميري رحمه الله تعالي هم مختاره كوي.

(۱) بخاري شريف (۲) مسلم شريف (۳) نسائي شريف (۴) ابوداؤد شريف (۵) ترمذي شريف (۶) بن ماجه شريف، نسائي بعد الشيخين دى او په اعتبار د صحت د احاديثو د ابو داؤد نه غوره دى ځكه چي امام نسائي رحمه الله تعالي اول خل باندى سنن كبريٰ اوليكلو نو د رملى حاكم ته ني هديه وركړو. هغه ورته اووئيل چي دا ټول صحيح دي؟نو ده ورته اووئيل چي نه بيا ني ورته اووئيل چي صحيح ترينه اوليكه نو سنن صغريٰ يا مجتبيٰ يا مجتنيٰ ني اوليكلو.

ددى احاديث عند النسائي ټول صحيح دي. او په اول ترتيب كي ترمذي ځكه مقدم وو چي هغه ډير انفع دى او هغه خصوصياتو كي امتيازي شان لري دى فرمائي چي زما په ټولو احاديثو باندى څه نه څه عمل شوى دى الآ دوه حديثه دا سى دي چي عمل پرى چا نه دى كړى - اول

حديث د ابن عباس " انّ النبي جمع بين الظهر والعصر بالمدينة و المغرب و العشاء من غير خوف ولا سفر ولا مطر"

دويم حديث دا چي "انّ النبي قال اذا شرب الخمر فا جلدوه فان عاد في الرابعة فاقتلوه" احناف وائي چي دا هم معلول بها دی ـ كه قتل د شارب الخمر تعزيراً اوكړی نه حداً او ثاني كي مراد كه جمع صوري شي او فعلي. لكه اول مونځ آخر وخت كي اوكړی او ثاني اول وخت كښي. او دا خبره امام ترمذي هم په كتاب العلل كي ذكر كړی ده.

ثالث: شاه ولي الله رحمه الله تعالي هم فرمائي چي بخاري، مسلم، ابوداؤد، ترمذي، نسائي، موطاء امام مالک رحمه الله تعالي. ليكن علماء كرامو موطاء امام مالک د صحاح نه بهر كړی دی او ابن ماجه ئي داخل كړی دی په دی وجه چي ابن ماجه كي صرف احاديث دي او موطاء كي مسائل فقهيه هم دي او اكثر مستشرقين موطاء په كتابونو فقهيو كي شمار كړی دی ـ چي موطاء كي موقوف مقطوع او بلاغات هم شته. بلاغات دا معني چي بلغنا سره امام مالک رحمه الله تعالي ذكر كړی وي بغير د سند نه او ابن ماجه كي صرف احاديث مرفوعه دي.

****************

## ۸- بحث: د علم حديث د يوڅو معتبرو اشخاصو تذكره

**جلال الدين سيوطي رحمه الله تعالي:**

علامه جلال الدين سيوطي صاحب فرمائي چي حديث ته حديث ځكه وائي چي "لا نه وَقَعَ شيئاً فشيئاً من النبي في الأزْمِنَة المخْتَلِفَة"

حافظ ابن حجرعسقلاني رحمه الله تعالي فرمائي چي حديث ته ئي حديث ځكه اوونيل چي فرق راشي د قديم نه كأنه أريد به مقابلة القرآن و القرآن قديم وسمي الحديث حديثاً لانّه حادث. او حديث ته چي حديث ونيلی شوي دي نو د امعيٰ لغوي سره په معنيٰ د كلام او وينا سره.

مولانا شبير احمد رحمه الله تعالي ته الله تعاليٰ ډيره پوهه وركړی وه او خصوصا په دريو علوموكي ورته الله تعاليٰ شرح صدر فرمانيلی وو (۱) علوم القرآن (۲) علوم السنة (۳) علم الكلام.

مولاناشبيراحمد رحمه الله تعالي ته به ئي قاسم ثاني هم وئيل. ديوبند ته به چي چرته د مناظری خبر راغی چي هندوان يا سكان يا انگريزان د مسلمانانو سره مناظره كول غواړي نو اول خو چي كله مولانا قاسم نانوتوي رحمه الله تعالي ژوندی وو نو هغوی به ورتلل او د هغوي نه بعد

به بيا دی د اسلام دفاع دپاره مناظری دپاره ميدان ته کوزيدلو او ددویٔ د وفات نه بعد به بيا مولانا شمس الحق افغاني رحمه الله تعالي د مناظرو دپاره تلو: مولانا شمس الحق افغاني رحمه الله تعالي د چارسدی علاقی وو او ډير قابل شخصيت وو

شبير احمد رحمه الله تعالي فرمائي حديث ته چي حديث وائي دا مقتبس دی د هغه ايت قرآني نه چي په سورة الضحي کي ددی ذکرشوی دی، مولانا رحمه الله تعالي فرمائي چي الله تعالي په سورة الضحي کي د نبي اکرم دري صفتونه ذکر کړي دي او دري انعامات ئي ورسره ذکر کړي دي او د هغه دري انعاماتو نه ئي دري مطالبی کړي دي-

اول انعام : الله تعالي فرمائي أَلَمْ يَجِدْكَ يَتِيماً فَآوَىٰ الله تعالي فرمائي. ای محبوبه آيا ته يتيم نه وی- مور او پلار دواړه دی وفات وو- نو الله تعالي تاته ځائې درکړې او د ابو طالب په زړه کي ئې ستادپاره مهرباني پيدا کړه- نو د رسول الله صلي الله عليه وسلم حال د يتيم وو نو الله تعالي پری انعام اوکړويعني فَآوَىٰ چي هغه ځاې ور کول وو-

دويم انعام : الله تعالي فرمائي :وَوَجَدَكَ ضَالاًّ فَهَدَىٰ- ضآل قرآن پاک کي په څلورو معنو استعماليږي دلته ئي معني داده چي ته نوی بی خبره د علومو د شريعت نه- د ضآل معني به د گمراه نه کوی- نو الله تعالي فرمائي ای محبوبه ته د علم د شريعت نه بی خبره و ی نوموږه په تا انعام اوکړو چي هغه هدايت دعلومو شرعيو دي نودويم حال د رسول الله (ص) ''وَوَجَدَكَ ضَالاًّ'' اوانعام ''فَهَدَىٰ''شو- څکه الله تعالي فرمائي: ''مَا كُنتَ تَدْرِي مَا الْكِتَابُ وَلَا الْإِيمَانُ '' (سورة الشوريٰ : ۵۱) يعني ای رسوله ته د کتاب او ايمان نه څه خبر وی-

او الله تعالي فرمائي: ''وَمَا كُنتَ تَتْلُو مِن قَبْلِهِ مِن كِتَابٍ وَلَا تَخُطُّهُ بِيَمِينِكَ إِذاً لَّارْتَابَ الْمُبْطِلُونَ'' (سورة العنکبوت : ۴۸)

ای رسوله تا خو خط نه شو ليکلی- زموږه د خکلی پيغمبرا أُمي کيدل صفت د ی اولويه معجزه ده- نو الله تعالي فر مائي تاله کتابت قرأت د کتابو نو نه در تلومگر سره ددی نه الله تعالي ته منبع او خزانه د علمونو وگرځولی- دويم حال د رسول الله (ص) ''وَوَجَدَكَ ضَالاًّ'' او انعام ''فَهَدَىٰ'' شو-

دريم انعام په رسول الله (ص) باندی اسباب د غني مهيا کيدل دي لکه الله تعالي فرمائي ته فقير وی نو الله تعالي غني کړی يعني اسباب دغني ئي د خديجة الکبري په صورت کي درمهيا کړل، وَوَجَدَكَ عَائِلاً فَأَغْنَىٰ نو دريم حال د رسول الله (صلي الله عليه وسلم) ''عَائِلاً'' دی او انعام د الله تعالي په رسول الله (صلي الله عليه وسلم) باندی'' فَأَغْنَىٰ '' دی،- علامه شبير

Scanned with C

احمد عثماني رحمه الله تعالي فرماني چي دلته د رسو ل الله د دريو اوصافو او دغه شان د الله تعاليٰ د دريو انعاماتو ذکر دی.

(۱) ای محبوبه ته يتيم وی نو الله تعاليٰ درباندی تره ابو طالب مهربانه کړو.

(۲) ای محبوبه ته لا علمه وی د علومو د شريعت نه نو الله تعاليٰ درته علم د شريعت درکړو او ته ئي د علومو سر چشمه او ګرځولي.

(۳) ای حبيبه ته په حالاتو د فقر کي وی نو الله تعاليٰ تا ته اسباب د غنيٰ در ميسر کړل او خديجة الکبريٰ رضي الله عنها چي يوه مالداره بي بي وه ستا په نکاح کي ئي راوسته نو الله تبارک و تعاليٰ ددی دريو انعاماتو په بدل کي خپل رسول ته د دريو احکامو تعليم ورکوي.

اول " فَأَمَّا الْيَتِيمَ فَلَا تَقْهَر "چي ګوره په يتيم باندی قهر او غصه مه کوه.

دويم " وَأَمَّا السَّائِلَ فَلَا تَنْهَرْ "چي سوال کونکي رټه مه ځکه چي تا هم فقيري تيره کړي ده.

دريم " وَأَمَّا بِنِعْمَةِ رَبِّكَ فَحَدِّثْ "الله تعاليٰ په تا باندی مهربان شو او تا ته ئي پيغمبري درکړه نو ته اوس د الله تعالي د احکامو بيان کوه.

نو ددی انعاماتو په مقتضيٰ کي تری الله تعاليٰ دا غواړي چي "فَحَدِّث" يعني ددی بيان اوکړه.

پس د رسول الله قول او فعل بيان د کلام د الله تعاليٰ دی. پس د رسول الله قول او فعل ته چي حديث ور ته وئيلی کيږي مقتبس دي د هغه لفظ نه کوم چي په قرآن پاک کي مذکور دی لکه "فَحَدِّث" نه نو دا نوم د حديث د دی"حَدِّث" نه جوړ شوی دی. ځکه چي اقوال افعال او تقريرات د کتاب الله شرح ده لکه څنګه چي الله تعاليٰ فرماني:

"وَأَنْزَلْنَا إِلَيْكَ الذِّكْرَ لِتُبَيِّنَ لِلنَّاسِ مَا نُزِّلَ إِلَيْهِمْ وَلَعَلَّهُمْ يَتَفَكَّرُونَ" (سورة نحل: ۴۴)

نو د رسول پاك هر څه چي وي هغه وضاحت دی د کلام الله او دا هر څه چي کله د قرآن په وضاحت دليل شو نو دا قول فعل او تقرير دا تحديث شو. نو علامه شبير احمد رحمه الله تعالي فرماني چي دا حديث لفظ عبارت شو د تحديث نه.

****************

## ۹- بحث د صحاح سته د مصنفينو د سوانح او مختصر حالات

### د امام بخاري رحمة الله عليه دژوند مختصر حالات

**نوم:** محمد ، کنيت ابوعبدالله، دپلار نوم اسماعيل او دنيکه نوم يي ابراهيم بن مغيره وو چي دبخارا حاکم وو اود امام جعفي سره يوځاي په ايمان مشرف شوی وو

**ولادت:** دشوال په ۱۴ تاريخ ۱۹۴ هجري کي دجمعي دمونځ نه پس پيدا شوی وو.

Scanned with C

**حالات:** امام موصوف د طفوليت په موده کي ړوند شوی وو . دهغه دوالدي محترمي په دعا سره الله تعالي دده نظر دوباره درست کړو امام بخاري په ماشومتوب کي داحاديثو زده کولو شوق مند وو او دشپاړسو کالو په عمر کي يي دعبدالله بن مبارك تمام کتابونه ياد کړل او بيا ددينه پس دخپلي مور او دخپل ورور احمد بن اسماعيل سره حج ته لاړو دحج نه پس يي مور او ورور واپس راغلل مګر دي په حجاز مقدس کي داحاديثو زده کولو دپاره پاتي شو او بيايي ددينه پس مکي، کوفي، بصري، بغداد، مصر، واسط، الجائر، شام، بلق، هرات، نشاپوروغيره ملکونو ته سفرونه اوکړل.

**دامام بخاري تصنيف او خوب ليدل**

امام بخاري يو ځل په خوب کي اوليدل چي رسول الله صلي الله عليه وسلم تشريف فرما دی او په جسم مبارك يي مچان کيناستل غواړي مګر امام بخاري يي کيناستو ته نه پريږدي ددي تعبير دا ظاهر شو چي صحيح البخاري يي اوليکله او په شپږ لاکه احاديثو کي يي انتخاب اوکړو او دشپاړسو کالو دمحنت په نتيجه کي يي دا مجموعه تياره کړه په بخاري شريف کي تمام احاديث نهه زره او دوه اتيادي (۹۰۸۲) ليکن که مکررات ورنه حذف کړی شي کوم چي (۲۷۶۱) دي نو بيا اصل صافي تعداد پاتي کيږي

امام بخاري به داحاديثو دليکلو نه مخکي به يي اول غسل اوکړل او دوه رکعاته نفل به يي اوکړل او دالله تعالي نه به يي دعا اوغوښتله او بيا به يي شروع اوکړه دده.

دشاګردانو تعداد نهه زرو ته رسيږي.

**وفات:** امام بخاري ددوه شپيته کالو په عمر کي دخالي په شپه او دواړه اختر په شپه دماخوستن دمونځ په وخت کي د هجرت په (۲۵۶) کال کي وفات شو او په خرتنګ نومي کلي کي کوم چي دسمرقند نه په لس ميله لري فاصله کي پروت دی هلته دفن کړی شو.

**دامام مسلم رحمة الله عليه دژوند مختصر حالات**

نوم. مسلم کنيت يي ابو الحسين اود پلار نوم يي حجاج او لقب يي عساکر الدين وو. دبني قشير قبيلي دنسبت په وجه ورته قشيري ويلي شي. دی دنيشاپور اوسيدونکی دی کوم چي په خراسان کي ديو بهترين ښار نوم دی په ۲۰۲ هجري کي پيدا شوی دی او دبعضو په قول په ۲۰۴ او دبعضو په قول په ۲۰۶ کي پيدا شوی دی . د دولسو کالو په عمر کي يي احاديث يادول شروع کړل داحاديثو دزدکړي دپاره عراق، حجاز، شام، بصره، او مصر وغيره ته يي سفرونه اوکړل.

دده په مشهورو استاذانو کي امام احمد بن حنبل، يحيي بن يحيي نيشاپوري، قتيبه بن سعيد، اسحاق بن راهويه او عبدالله بن مسلم وغيره دي او په شاګردانو کي يي مشهور شاګرد

امام ترمذي او ابوبكر بن خزيمه وغيره شامل دي تقريبا دري لاكه احاديث يي ياد وو د ۵۵ كالو په عمر كي درجب په ۲۵ كي وفات شو او دنيشاپور ښار په نصير اباد محله كي دفن كړى شو امام مسلم پخپل كتاب كي دمكرراتو دحذف نه پس څلور زره احاديث جمع كړي دي.

**دامام ترمذي رحمة الله عليه دژوند مختصر حالات**

نوم يي محمد او كنيه ابو عيسي او دترمذ ښار په بوغ محله كي دهجرت ۲۰۹ كال كي درجب په اولسم پيدا شوى وو دده په مشهورو استاذانو كي امام بخاري او مسلم شامل دي ددوئ نه يي علم حديث حاصل كړو او ددينه علاوه دعلم حديث دحصول دپاره يي په زرګونو ميلونه لري سفرونه اوكړل

امام ترمذي دخپلي زماني يو بي مثاله عابد او زاهد وو تردي چي په شوګيرو او خوف الهي كي مشهور وو او د ډيرو ژړاګانو په وجه يي دسترګو نظر ختم شوى وو امام ترمذي ۲۷ رجب ددوشمبي په شپه دهجرت په ۲۷۹ وفات شو او په ترمذ كي دفن كړى شو.

**دامام ابوداود رحمة الله عليه دژوند مختصر حالات**

دده نوم سليمان او دپلار نوم يي اشعث بن شداد بن عمرو وو او په بصره كي په ۲۰۲ هجري كي پيدا شوى وو.

امام ابو داود هم دعلم دحصول دپاره ډير لري لري سفرونه اوكړل او بيا دخپلي زماني يو مشهور محدث جوړ شو دامام ابو داود په زرګونو محدثين استاذان دي او دى هم دزرګونو محدثينو استاذ دى دعلم حاصلولونه پس يي تمام عمر د درس حديث په خدمت كي تير كړى دى دده په شاګردانو كي امام ترمذي او امام نسائي مشهور دي، دبغداد يو لوي عالم سهل بن عبدالله تستري يوه ورځ دامام ابو داود ملاقات ته راغى هغه ورته اوونيل خپله ژبه بهر اوباسه هغه چي كله خپله ژبه اوويستله نو خكل يي كړه او ورته يي اوونيل چي په دي ژبه تا درسول الله صلي الله عليه وسلم احاديث بيان كړي دي امام ابو داود ددوه اويا كالو په عمر كي ۱۴ شوال كي دهجرت په ۲۷۵ كي په بصره كي وفات شو، امام ابو داود ته پنځه لاكه احاديث ياد وو چي دهغه نه يي څلور زره او اته سوه احاديث پخپل كتاب كي جمع كړي دي.

**دامام نسائي رحمة الله عليه دژوند مختصر حالات**

نوم يي احمد اود خراسان په نساء نوم علاقه كي اوسيدلو نو خكه ورته نسائي وايي . امام نسائي په ۲۱۴ هجري كي پيدا شوى وو ، امام نسائي دخپلي زماني انتهائي عابد او زاهد وو دصوم داؤدي معمول به يي جاري ساتلو چي يوه ورځ به يي روژه وه او يوه ورځ به يي افطار كولو، ډيري پيري ورته دحج سعادت حاصل دى د اميرانو او بادشاهانو ددربارونو نه به يي سخت نفرت كولو اوددوئ دملاقاتونو نه به يي پرهيز كولو.

وفات: امام نسائي دعلي رضي الله عنه مناقب بيان كړل نو په دي خارجيانو دومره ووهلو تردي چي مړ شو ، بيا دی دخپل وصيت مطابق دصفا مروه په مينځ كي دفن كړی شو، دصفر المظفر په ۱۳ دهجرت په ۳۰۳ كال كي وفات شوی دی.

**دامام ابن ماجه رحمة الله عليه دژوند مختصر حالات**

نوم: محمد ، كنيت ابو عبدالله ربعي قزويني يي نسبت دی مګرپه عام طور سره په ابن ماجه مشهور دی ، يو قول دادی چي ماجه دده دنيا نوم وو ، دده ولادت دايران په قزوين ښار كي په ۲۰۹ هجري كي شوی وو، دعلم دحصول دپاره يي حجاز، عراق، شام، خراسان، بصره، كوفه، بغداد، دمشق وغيره ملكونو ته سفرونه كړي دي او بيا يي ددينه پس ټول عمر دعلم حديث په درس او تدريس كي تير كړی دی او په بلند پايه محدثينو كي شميرلی شوی دی
وفات: امام ابن ماجه ۲۱ رمضان ۲۷۳هجري كي وفات شوی دی ، محمد بن علي قزمان او ابراهيم بن دينار وراق ورته غسل وركړل او دده ورور ابوبكر وربانديي دجنازي مونځ اوكړو او ابوبكر او عبدالله چي دده خوي دی قبر ته يي كوز كړو.
تعداد درواياتو: ۱۵۰۰ بابونو كي يي څلور زره روايات په مناسب انداز سره بيان كړي دي.

**دامام دارمي رحمة الله عليه دژوند مختصر حالات**

نوم يي عبدالله كنيت يي ابومحمد او دپلار نوم يي عبدالرحمان دارمي دی دده ولادت په سمرقند كي په ۱۸۱ هجري كال كي شوی دی ، په قبيله بن تميم كي يو خاندان دارم بن مالك بن حنظله ته دنسبت په وجه ورته دارمي وئيلی شي او په ۲۵۵ كي دڅلور اوياكالو په عمر كي وفات شوی دی.

***************

**۱۰- بحث: فضائل دعلم حديث**

دحجة الوداع په موقعه رسول الله صلي الله عليه وسلم فرمائيلي دي.
(۱) فليبلغ الشاهد منكم الغائب فرب مبلغ اوعي من سامع (مشكواة)
ياد ساتئ: دا امانت به تاسو حاضرين غائبينو ته رسوئ ځكه چي ډير كرته رسونكی داوريدونكي نه زيات يادونكی وي.
(ب) نضر الله امرا سمع منا حديثا واداه كما سمعه فرب مبلغ اوعي من سامع وفي رواية نضر الله امرا سمع منا شيئا فبلغه كما سمعه (ترمذي۲/۹۰. دارمي۴۲.
داحديث تقريبا د ۲۳ صحابه كرامو نه منقول دی او دمتواتر درجه ورته حاصله ده (لسان الميزان ۳/۱).

يعني الله تعالي دي هغه کس تر او تازه اوساتي چاچي زمانه احاديث واوريدل او نورو ته يي ورسول خکه چي ډير کرته داسي وي چي چاته خبره رسولی شوي وي هغه داوريدونکي نه زيات يادونکی وي.

(ج) من تعلم حديثين ينفع بهما نفسه او يعلمها غيره فينفع بهما كان خيرا من عبادة ستين سنة (مفتاح الجنه ٤٧).

يعني چاچي زما نه دوه حديثونه ياد کړل ددي دپاره چي پخپله ورنه فائده واخلي او يايي بل چاته ورسوي چي هغه ورنه فائده واخلي نو دا دده دپاره د شپيته کالو دعبادت نه بهتر دي.

(د) اللهم ارحم خلفائي قيل ومن خلفائك يارسول الله قال الذين يروون احاديثي (مسند احمد).

يعني اى الله زما په خلفاؤ رحم اوکړي، صحابه کرامو تپوس اوکړو اى دالله رسوله ستا خلفاء څوك دي نو ويې فرمائيل هغه کسان زما خلفاء دي څوك چي خلقو ته زما حديث بيانوي.

## دڅلويښت احاديثو حفظ کونکي فضائل

رسول الله صلي الله عليه وسلم هر امتي ته کم از کم دڅلويښت احاديثو يادولو نصيحت فرمائيلی دی

"من حفظ علي امتي اربعين حديثا من امر دينها بعثه الله يوم القيامة فقيها وكنت له شافعا وشهيدا" (مرقاة شرح مشكواة).

مولي علي قاري ليکلي دي

اهل الحديث هم اهل النبي وان لم يصحبوا نفسه انفاسه صحبوا

حديث اوريدونکي او بيانونکي درسول الله دخاندان نه دي که چا ته درسول الله دصحبت شرف حاصل نه وي نو کم از کم دهغه کلام خو به يي اوريدلی وي.

## دصحابه کرامو نه علاوه د حديث پاك يادونکو نمونه

ددي امت بعضي افرادو درسول الله په عشق او محبت کي احاديث ياد کړئ ددي مثالونه کم نه دي بلکه دلکونو په تعداد کي دي چي يو څو ورنه مندرجه ذيل دي

(١) سليمان بن مهران الاعمش المتوفي ١٤٨هجري دده نه څلور زره احاديث مروي دي او دا ټول به يي زباني بيانول (تاريخ بغداد ٥/٩)

(٢) امام محمد بن سلام المتوفي ٢٢٧هجري ده ته پنځه زره احاديث ياد وو او دمحدث عجلي په قول اوه زره احاديث ياد وو (تذکره الحفاظ ٢٤٣/١).

(٣) امام عبدالرحمان مهدي ته لس زره احاديث ياد وو (تهذيب التهذيب ١٨٤/٤).

۴، امام ابو حاتم ته هم لس زره احاديث ياد وو تذكره الحفاظ ۳۵۵،

۵، امام محمد بن عيسى بن نجيح المتوفي ۲۲۴، ته څلويښت زره احاديث ياد وو (تهذيب التهذيب ۹/۳۹۴)

۶، محمد بن موسى المتوفي ۳۲۱، هجري ته يو لاك احاديث ياد وو (ميزان الاعتدال ۳/۱۴۱)

۷، امام عبدان متوفي ۳۰۲ هجري ته هم يو لاكه احاديث ياد وو (تذكره ۲/۲۳۳)

۸، امام بخاري متوفي ۲۵۲ هجري ته دري لاكه احاديث ياد وو چي يو لاكه په دي كي صحيح وو او دوه لاكه غير صحيح وو (تذكره ۲/۱۲۳)

۹، امام احمد ته لس لاكه احاديث ياد وو (تاريخ بغداد ۴/۴۱۹)

۱۰، امام مسلم ته دري لاكه احاديث ياد وو (تدوين حديث ۵۳)

## د نزدي زما ني د محدثينو يو څو اشخاص

په نژدي زمانه كي هم ډيرو خلقو احاديث ياد كړي دي چي يو څو ورنه مندرجه ذيل دي.

۱، مولانا شيخ فتح محمد تهانوي ته څلور زره احاديث ياد وو او هغه به د عالم گير اورنگ زيب المتوفي ۱۱۱۸ هجري په باره كي وئيل چي هغه ته دولس زره احاديث ياد وو (رساله معارف ۳۵۱ رساله الابقاء ۱۷)

۲، د مجدد الف ثاني نوسى شيخ محمد فرخ ته په متن او سند سره اويا زره احاديث ياد وو (نظام تعليم وتربيت ۱۲۳)

۳، شيخ حسين بن محسن القاري ته د بخاري مشهوره شرح فتح الباري ياده وه رساله الرحيم.

۴، مولانا داود كشميري متوفي ۱۰۹۷ هجري ته مشكوة زباني ياد وو (نضهة الخواتر)

۵، يو گجراتي عالم چي نوم يي تعج الدين وو هغه ته صحاح سته زباني ياد وو (نزحة الخواطر ۴/۲۱۸)

## د علم حديث متعلق د زنانه اكابرينو كار نامي

په دي ميدان كي هم ښځو د سړو مقابله كړي ده په ښځو كي هم يوه دوه نه دي بلكه په زرگونو ښځي داسي شته چي احاديث يي ياد كړي دي امام ذهبي په تذكرة الحفاظ كي د حافظات حديث نومونه ليكلي دي.

۱، اسماء بنت ابي بكر رضي الله تعالي عنها

۲، ام المؤمنين جويريه بنت حارث رضي الله تعالي عنها

۳، حفصه بنت عمر رضي الله تعالي عنها

۴، ام حبيبه بنت ابي سفيان رضي الله تعالي عنها

۵، زينب بنت جحش رضي الله تعالي عنها

Scanned with C

(٦) زینب بنت ابو سلمه رضي الله تعالي عنها
(٧) فاطمه بنت رسول الله صلي الله علیه وسلم
(٨) میمونه رضي الله تعالي عنها (٩) ام عطیه رضي الله تعالي عنها
(١٠) ام سلمه رضي الله تعالي عنها (١١) ام حرام بنت ملحان رضي الله تعالي عنها
(١٢) ام سلمه بنت ملحان رضي الله تعالي عنها
(١٣) ام هاني بنت ابي طالب رضي الله تعالي عنها (تذکرة الحفاظ ١/٤٥).
عائشه رضي الله عنها به په خپل کور کي پرده لګولي وه او دهغي نه شاته به يي احاديث بيانول، په قاهره کي مشهوره او محدثه نفيسه به درس حديث ورکولو او ددي د درس نه امام شافعي هم فائده اخستلي وه (کتاب الاموال ٥١٥). دبخاري په مشهورو نسخو کي يوه نسخه دامام احمد دلور کريمه ده کومه چي دخپل وخت محدثه وه، دشپږمي سدئ مشهور محدث علي بن عساکر په استاذانو کي زياتي استاذاني زنانه وي، علامه ذهبي ليکلي دي چي دامام احمد لور زينب ځلور اتيا کالو پوري احاديث بيانول او دا يي هم ليکلي دي "واذدحم عليها الطلبة" (العبر ٣٥٨/٥) همدارنګي ام عبدالله دزينب کمال الدين په باره کي ليکلي دي "وتكاثروا عليها وتفردت وروت كبارا رحمها الله (العبر ٢١٣/٥).
يعني طالبان به ورته په کثرت سره راتلل او په ډيرو احاديثو بيانولو کي منفرده وه او دعلم حديث دلويو کتابونو درس به يي ورکولو.

***************

## ١١- بحث: تاريخ د تدوين د علم حديث:

نفس کتابت د وحي خود صحابه کرامو د دور نه شروع وو. بيا د قرن اول د نيمي نه پس منظم کتابونه د رسول الله صلي الله عليه وسلم عمربن عبد العزيز رحمه الله تعالي د دورنه شروع شو. عمر بن عبد العزيز د خلفاء راشدينو نه دی په ٦١ هـ کي پيدا شوی دی. دده پلارد عبدالملک ابن مروان ورور وو اود مصر ګورنر وو. دی د شپاړسو کالو وو چي د مديني ګورنر شو. بيا دده د تره خوني سليمان بن عبدالملک بادشاه چي کله مړ کيدونو يو عالم سهل ابن ابي حازم ئي راوغوښتو او تپوس ئي تری اوکړو چي زما خامن لا واړه دي. د خلافت ذمداری چا ته پرېږدم؟ ده ورته جواب ورکړوکه ريښتيا او وائم نو خپل د تره خوئي او اوخي (فاطمی خاوند) ته ئي پرېږده. يعني عمر بن عبد العزيز رحمه الله تعالي ته.
وائي چي عمر بن عبد العزيز رحمه الله تعالي مدينه منوره کي د قرآن کريم تلاوت کولو او د خلافت پيغام ورله راغی نو په ژړا شو او دا ئي اوونيل چي دوي ما د مدينی منوری نه اوباسي هسي نه چي زه ددی آيت د لاندی راشم،

لَئِن لَّمْ يَنتَهِ الْمُنَافِقُونَ وَالَّذِينَ فِي قُلُوبِهِم مَّرَضٌ وَالْمُرْجِفُونَ فِي الْمَدِينَةِ لَنُغْرِيَنَّكَ بِهِمْ ثُمَّ لَا يُجَاوِرُونَكَ فِيهَا إِلَّا قَلِيلًا ۝ مَّلْعُونِينَ أَيْنَمَا ثُقِفُوا أُخِذُوا وَقُتِّلُوا تَقْتِيلًا (سورة الاحزاب: ٦٠، ٦١)

امام موصوف به فرمائیل چي هسې نه چي زما خروج د نفاق د وجې وي. ده دوه کاله دري میاشتې او پنځه ورځې خلافت کړی دی. د عمر بن عبدالعزيز رحمه الله تعالي عمر څلوېښت کاله وو چي خپلو رشته دارانو کي ورته چا زهر ورکړل. او په ۱۰۱ هـ کي د هغي د وجې نه وفات شو او په حمص کي دفن شو. د احاديثو رسمي سرکاري کتابت په خلافت د عمر بن عبد العزيز رحمه الله تعالي په وخت کي د دوی په لاس باندی شروع شو.

علماء کرامو دده ډير مناقب ذکر کړي دي. امام مالک رحمه الله تعالي فرمائي چي دا د دريمی صدۍ مجدد وو چي کله بادشاه شو نوخپلي ښځي ته ئي اووئيل چي زما شهوت د الله تعالیٰ د ويری نه ختم شوی دی. که ته بل چا سره واده کول غواړې نو تاته اجازت دی هغي انکار اوکړو. بياني تری ټول کالي راجمع کړل او بيت المال کي ئي جمع کړل. چي دی وفات شو نو د خزانی مشر ورته او ويل چي بي بي ستا کالي امانت پراته دي که ته غواړې چي واپس ئي درکړم. دی ورته اووئيل چي زه وفاداره يم نه ئي اخلم. ائمه کرام دده نه علاوه د بل بادشاه قول نه نقل کوي.

عمر بن عبد العزيز رحمه الله تعالي دوه کاره کړي دي.

(۱) :د احاديثو جمع کولو دپاره ئي حکم اوکړو.

(۲) :درسونه ئي ښکاره شروع کړل.

عمر بن عبد العزيز رحمه الله تعالي ابوبکر بن عمر بن حزم رحمه الله تعالي او امام زهري رحمه الله تعالي ته خط اوليږلو چي احاديث راجمع کړی - دائي اووئيل چي د عائشه رضي الله تعالي عنها او د عمرة رضي الله تعالي عنهااو د قاسم بن ابي بکر (رضي الله عنه) احاديث په احتياط راجمع کړئ. د رسول الله صلي الله عليه وسلم عمرة رضي الله تعالي عنها اود رسول الله صلي الله عليه وسلم قاسم (رضي الله عنه) تربيت رسول الله صلي الله عليه وسلم عائشه رضي الله تعالي عنها کړی وو.

مولانا ادريس کاندهلوي رحمه الله تعالي به فرمائيل چي د الله تعالیٰ عجيبه نظام دی د قرآن مجيد اوله درجه ده نو ددی د جمع والي کار الله تعالیٰ د صحابه کرامو په دورکي پوره کړو او احاديث دويمه درجه ده نود احاديثو د جمع کار الله تعالیٰ د تابعينو رحمهم الله تعالي په دور کي پوره کړو. او فقهه چونکه دريمه درجه ده نو ددی کار الله تعالیٰ د تبع تابعينو رحمهم الله تعالي نه وا خستو. ''وَآتِ كُلَّ ذِي حَقٍّ حَقَّهُ'' بيا په قرن ثاني کي ډيرو علماؤ کتابونه اوليکل لکه موطا امام مالک ،معمر او ابن مبارک رحمه الله تعالي ،چي موقوف،مقطوع مسائل فقهيه باندی مشتمل وو.

بيا چي قرن ثالث شو نو نورو علماؤ كتابونه اوليكل ليكن يو نقصان پكي وو- چي په دی احاديثو مرفوعه كي ضعيف او صحيح دواړه ووچي مسند احمد بن حنبل رحمه الله تعالي او اسحاق بن راهويه رحمه الله تعالي ليكلي وو- يوځل اسحٰق بن راهويه رحمه الله تعالي درس كولو دائي اوونيل چي خدای پاک دی داسي عالم پيدا کړي چي صرف احاديث صحيحه راجمع کړي- نو امام بخاري رحمه الله تعالي درس کي هم ناست ووده اوونيل چي زما زړه کي دا راغلل چي داكار به زه كوم- نو په احاديثو صحيحوكي د ټولو نه اول كتاب صحيح بخاري ليكلي شوی دی. او په احكامو فقهيوكي اول كتاب سنن ابوداؤد دی- دا ترتيب او تدوين امام جلال الدين سيوطي رحمه الله تعالي په الفيه كي په دي ځلورو شعرونو كي راجمع کړی دي-

| | |
|---|---|
| واول جامع للحديث والاثر | ابن شهاب آمر له عمر |
| واول جامع علي الابواب | جماعة في العصر ذو اقتراب |
| كابن جُريج هشيم ومالك | ومعمر وولد المبارك |
| واول جامع بالا قتصار | علي الصحيح فقط هو البخاري- |

***************

## ۱۲ بحث: شروط د صحاح الستة:

هر يو شيخ په خپل كتاب كي د رواياتو د نقل كولو دپاره بعضي شروط نقل کړي دي- په هغي كي د ټولو نه اول د امام بخاري رحمه الله تعالي شرط ذكر كوو-

**شرط البخاري:** ''هو يروي عن الطبقة الاولي استيعاباً وينتخب في الثانية الي الثالثة الا نادرًا او الا علي سبيل المتبعة والاستشهاد'' امام بخاري رحمه الله تعالي شرط دادی چي امام صاحب رحمه الله تعالي د طبقه اولي نه استيعاباً راويات نقل كوي يعني ړومبی طبقه كي چي احاديث وي هغه نقل كوي او په دويمه طبقه كي انتخاب او چان بين كوي- او دريمی طبقی ته نه راكوزيږي مګر په طريقی د متابعی يعني د اتباع د تائيد د بل لپاره ني نقل كوي- نو امام بخاري رحمه الله تعالي د طبقه اولي نه استيعاباً د طبقی ثاني نه انتخاباً او د دريمی نه نادر او علي سبيل متابعه او شاهداً نقل كوي-

**شرط المسلم:** ''هو يروي عن الطبقتين الاوليين استيعاباً وينتخب في الثالثة''د تقويت د ورومبي د پاره د مسلم شرط څه دی ؟امام مسلم د طبقی اولي او د طبقی ثاني د دواړو نه استيعاباً نقل كوي او دريمه طبقه كي انتخاب كوي- ما تاسو ته مخكي هم ونيلي وو چي د احاديثو دار و مدار په راويانو باندی وي چي راوي څومره قوي او پورته وي نو روايت هغه هومره اوچت او قوي وي- كه راويان ضعيف وي نو حديث هم ضعيف وي او كه راويان مضبوط وي نو حديث

هغه هومره مضبوط وي- نو امام مسلم رحمه الله تعالي د دوو (۲) طبقو نه استيعاباً انتخاب كوي- امام مسلم رحمه الله تعالي په دريمه طبقه كي هم انتخاب كوي خو څلورم ته نه راكوزيږي-

امام مسلم رحمه الله تعالي فرماني چي انتخاب به د هغه راوي كوم چي په قبول باندې اجماع د محدثينو وي- يعني امام احمد ابن حنبل رحمه الله تعالي ،يحيٰ بن معين رحمه الله تعالي ،عثمان بن ابي شيبه رحمه الله تعالي او سعيد بن منصور الخراساني رحمه الله تعالي-

امام مسلم رحمه الله تعالي فرماني چي دى څلورو امامانو كوم راوي قبول كړي وي نو خه د هغه روايت نقل كوم نو دا د امام مسلم رحمه الله تعالي شرط شو-

**شرط الامام ابي داؤد و امام النسائي رحمهما الله تعالي:** هما يرويان عن الطبقات الثلث استيعاباً و ينتخبان في الرابعة ولا يتنزلان الي الخامسة الا نادرًا'' د اولو دريو وارو طبقو نه استيعاباً روايات نقل كوي او په څلورمه كي انتخاب كوي-

امام مسلم رحمه الله تعالي په دريمه طبقه كي د انتخاب قائل دى او په څلورمه كي دوي د انتخاب دپاره دا اصول وضع كړى دي چي ''لَمْ يَجْمَعُوْ عَلٰي تَرْكِه'' يعني ددى په ترک باندى دغه څلورو امامانو حضراتو اتفاق نه وي كړى-

**شرط الامام الترمذي و امام ابن ماجة رحمهما الله تعالي:**

الفرق بين الترمذي و ابن ماجه:

الوجه الاول: ''ان الترمذي يتنزل الي الخامسة قليلاً و ابن ماجة يتنزل الي الخامسة كثيرًا'' اول فرق دا چي امام ترمذي كم راكوزيږي او بن ماجه ډير-

الوجه الثاني: ''ان الترمذي يبين حال الراوي و يحكم علي الحديث واما ابن ماجه لا يبين حال الراوي ولا يحكم علي الحديث'' اودويم فرق دا چي امام ترمذي په ضعيفه رواياتو باندى حكم لګوي چي دا ضعيف دى او ابن ماجه دا حكم نه لګوي هم دا وجه ده چي ابن ماجه په ضعيفه روايانو باندى مشتمل دى- په دي كي تقريباً څلور زره (۴۰۰۰) احاديث دي او په (۴۲) احاديثو علماء كرامود وضعي حكم لګولي دى- يعني دا احاديث موضوعي او منكرت دي- ابن ماجه اول اول كي چا په صحاحو كي نه داخلولو په پنځمه صدي كي ابن طاهر مقدسي يو عالم تير شوى د دى په ۵۰۷ د ه كي وفات شوى دى- ابن طاهر مقدسي دا په صحاحوكي داخل كړواو وجه ئي دا بيانوله چي په دى كي احاديث مرفوعه موجود دي، مقطوع پكي نشته- ليكن شاه انور شاه كشميري رحمه الله تعالي فرماني چي زما په خيال په صحاحو كي د ابن ماجه په خائي موطاء امام مالک رحمه الله تعالي پكار وو او يا سنن ابي داؤد طيالسي-

Scanned with C

علماء كرامو د حسنِ تبويب اود مرفوع احاديثود وجي نه په صحاحوكي داخل كړ ی د ی. نود شرطونونه اندازه هم معلومه شوه. او فرق د مراتبو هم.

## ثم الفرق بين ابي داؤد و نسائي و بين مسلم من وجهين:

الوجه الاوّل :''ان المسلم يروي عن الطبقتين الاوليين استيعابًا و ينتكب في الثالثة و ابو داؤد و نسائيّ من الثلاث استيعابًا و ينتخبان في الرابعة فهما يفعلان في الرابعة ما يفعل في الثالثة''

الوجه الثاني : ''المسلم ينتخب في الثالثة من جميع الائمة الاربعة من نقّاد الحديث و ائمة الجرح والتعديل (هم احمد بن حنبل. يحيٰ بن معين و عثمان بن ابي شيبة و سعيد بن منصور الخراساني) علي قبوله'' يعني په قبوليت د هغي باندی اجماع وي كه چری يو كس ني هم مخالف وو نو بيا ني روايت نه نقل كوي.

''و اما ابوداؤد و النسائيّ هما يرويان عمن لم يجمعوا علي ردّه'' يعني د هغي په ردّ ني اجماع نه وي كړی. يعني كه كوم امام هم قبول كړی وي نو دوي ترې روايت نقل كوي.

خلاصه د كلام دا شوه چي امام بخاري رحمه الله تعالي د طبقی اولیٰ نه استيعاباً او ددويمي نه انتخاباً او د دريمی نه نادراً نقل كوي. امام مسلم رحمه الله تعالي د اولو دوو طبقو نه استيعاباً او د دريمی نه انتخاباً نقل كوي. ابوداؤد رحمه الله تعالي او نسائي رحمه الله تعالي د دريو نه استيعاباً او په څلورمه كي انتخاب كوي. او امام ترمذي رحمه الله تعالي او ابن ماجه رحمه الله تعالي د څلورو واړو نه روايت نقل كوي او پنځمی ته هم راكوزيږي خو امام ترمذي رحمه الله تعالي كم او ابن ماجه رحمه الله تعالي د ترمذي په نسبت سره پنځمی طبقی ته ډير ميلان كوي.

## موازنه بين الشيخين:

د احاديثو په كتابونو كي اكثر داخبره زير بحث وي چي د امام بخاري رحمه الله تعالي كتاب بخاري شريف اود امام مسلم رحمه الله تعالي په كتاب مسلم شريف كي كوم يو غوره دی؟ دي مسئلی ته مسئله د موازنه بين الشيخين وائي.

د علماء كرامو په دی كي دري (۳) قوله دي دوه ضعيفه او شاذ دي او يو صحيح وما عليه الجمهور دی.

(۱) :اول قول او رايه چي د ابوعلي نيشاپوري رحمه الله تعالي ده هغه داچي مسلم شريف غوره دی د جامع بخاري شريف نه.

(۲) :دويم قول او رايه د علامه ابن الملقّن ده هغه فرمائي چي صحيح بخاري شريف د مسلم شريف نه غوره دی.

(۳) :دریم قول او رایه چې په هغې باندې تول جمهور علماء دی هغه دا چې بخاري شریف غوره دی د مسلم شریف نه. رسول الله صلي الله علیه وسلم مولانا محمد زکریا رحمه الله تعالي دی خبرې ته اشاره کړی ده فرمائي : قالوا المسلم فضل قلت البخاري اعليٰ

قالو المکرر فیه قلت المکرر احليٰ

چا ونیل چې مسلم غوره دی ما ویل چې نه بخاري غوره دی. چا ونیل چې بخاري کې تکرار دی ما ونیل چې خوند خو تکرار کې دی.

وړاندې به تاسو ته راشي چې امام بخاري رحمه الله تعالي یو حدیث په مختلفو ابوابو کې څو ځایه راوړي.

## د بخاري په مسلم باندې د فوقیت وجوهات:

د بخاري شریف په مسلم شریف باندې د فوقیت وجوهات څه دي او دا ولی غوره دی په نسبت د مسلم شریف؟

(۱) : اول دا چې د بخاري شریف شرط د معیارد حدیث قوي دی په نسبت د مسلم شریف باندې او چې د کوم کتاب شرط د معیار حدیث قوي وي نو کتاب ئې هم قوي وي.

(۲) : دویم دا چې بخاري شریف جامع د فنون ثمانیه دی او مسلم شریف جامع د فنون ثمانیه نه دی.

(۳) : دریم دا چې کوم ابواب او تراجم بخاري وضع کړي دي عقل ورته حیران دی. چې په دی سرد نکاتو او حکمونو ته اشاره کوي مسلم شریف ددی نه خالي دی مسلم تراجم نه دي ایښي په مسلم تراجم نووي ایښي دي او دا حاشیو ح ٔ که لیکلي نو امام بخاري استنباط فقهیه کوي. نکاتو کوي د حکمونو کوي داسې ناشنا تراجم ئې ایښي دي قسم دی چې د هغې حل چا ندی کړی حافظ ابن حجر فرمائي چې حل د تراجمو د بخاري دین دی په امت دی. فرمائي چې دغه تراجم ما څه قدرې حل کړی خو زه وایم چې اوس هم پکې داسې تراجم شته چې په هغې باندې څوک نه پوهیږي.

اعیا فحول العلم حل رموزما　　　　الدأ في الابواب من اسراري

یعني هغه رازونه چې امام بخاري رحمه الله تعالي ورته په ابوابو کې اشاره کړی ده لوي لوي علماء ئې حیران کړی دي.

دا به مونږ په خصوصیاتو د تراجمو کې ذکر کو. نو خبره یاد لرئ چې په بخاري کې د ټولو نه ګران تراجم دي. په تراجمو باندې مستقل کتابونه لیکلی شوی دي.

په بخاري کې تراجم، په ترمذي کې بیان د مذاهبو او په ابوداؤد شریف کې د ټولونه ګران حال د سندونو دی چې په قال ابوداؤد سره ذکر کیږي.

Scanned with C

(۴): څلورم فرق دادی چي د بخاري شریف په لږو احادیثو باندی تنقید شوی دی او د مسلم شریف په اکثرو احادیثو تنقید شوی دی. په دی باندی دار قطني "اوهام الشیخین" نومی مستقل کتاب لیکلی دی. د بخاري شریف په (۸۰) احادیثو باندی تنقید شوی دی بلکه د مسلم شریف (۱۶۰) احادیث د تنقید ښکار دي. نو د کوم کتاب چي په کمو احادیثو باندی تنقید شوی دی نو هغه اعلیٰ او د کوم کتاب چي په ډیرو احادیثو تنقید شوی دی نو هغه د اول په نسبت ادنیٰ او ضعیف ګڼرلی کیږي. دغه شان په رجالو د بخاري او د مسلم هم تنقید شوی دی. د بخاري شریف په (۷۸) رجالو او د مسلم شریف په (۱۰۰) رجالو باندی تنقید شوی دی. او (۳۲) رجال پکي داسي دي چي هغه مشترک دي په مابین د بخاري او د مسلم کښي. نو د بخاري په (۷۸) او د مسلم په (۱۰۰) رجالو باندی تنقید شوی دی او دغه (۳۲) رجال په دی دواړو کي مشترک دي. نو نتیجه دا شوه چي د بخاري هغه احادیث چي په هغي باندی تنقید شوی دی نو د هغي مجموعه (۱۱۰) او د مسلم شریف د تنقید شده احادیثو مجموعه (۱۳۲) ده.

بل فرق دادی چي په بخاري شریف کي رجال منتقض علیه کم دي او په مسلم شریف کي د بخاري شریف په نسبت ډیر دي. دویم دا چي امام بخاري د دغه منتقض علیهم روایات کم نقل کړی دي او امام مسلم رحمه الله تعالي تری زیات نقل کړ ی دي. نو په دی سره په روایاتو هم اثر پریوځي. دریم فرق دا چي هغه من تقض علیهم راویان چي امام بخاري رحمه الله تعالي تري روایات نقل کړي دي نو هغه اکثر ددهٔ شیوخ دي نو ددهٔ رایه د اکثرو ناقدینو په نزد معتبره ده. او دا ځکه چي ده د خپلو اکثرو استاذانو سره ژوند تیر کړی دی. او کوم سړی چي د استاذانو سره ژوند تیر کړي نو هغه ته د خپل استاذ حال زیات معلوم وي په نسبت د هغه چا چي ورسره ني ژوند نه وي تیر کړی. نو د امام بخاري رحمه الله تعالي چي په کومو راویانو تنقید شوی دی نو هغو سره امام بخاري بنفسه ژوند تیر کړیدی. اود امام مسلم رحمه الله تعالي چي په کومو راویانو تنقید شوی دی نو هغه د امام مسلم رحمه الله تعالي براه راست استاذان نه دي.

د بخاري منتقد علیه راویان کم دي او ددهٔ استاذان دي او د امام مسلم منتقد علیه راویان هم ډیر دي او د هغوي سره د امام مسلم رحمه الله تعالي ژوند هم نه دی تیر شوی. بلکه هغه ددهٔ د مشانخو مشانخ دي. نو په هغوي کي دده او د ناقدینو رایه برابر ده.

(۵) پنځمه خبره په حدیث معنعن کي ده. د ټولو نه اول خو دا چي حدیث معنعن څه ته وائي؟ نو حدیث معنعن دی ته وائي چي راوي د خپل شیخ نه په عن یا قال او یا په حدث سره روایت نقل کړي. لیکن دا صراحتاً په سماع باندی دلالت نه کوي. او احتمال د سماع او د عدم سماع دواړو لري. نو کله چي حدثني. اخبرني او ونې نو دی ته صیغی د سماع وائي او عن .قال.حدث او اخبر چي کله بغیر د "نا" او" ني" وي دی ته صیغی د عنعنی وائي. چونکه داسي حدیث

اکثر په عن سره ذکر کيږي نو لدی وجي نه دی ته حديث معنعن وائي۔ او چي د چانه روايت کيږي نو هغي ته معنعن عنه او دی عمل عنعنه وائي۔
نو په حديث معنعن کي اختلاف دي امام مسلم رحمه الله تعالي فرمائي چي حديث معنعن وي خو چي معاصرت او امکان د لقاء وي نو دی ته "محمول علي الاتصال" وائي۔ يعني يو شاګرد يو شيخ نه روايت بيانوي خو مونږه ته په يو حديث کي سماع د هغه نه وي معلومه او زمانه ني يو وي او امکان د لقاء شته نو دا عنعنه محموله علي الاتصال ده نو امام مسلم رحمه الله تعالي په امکان د لقاء او اتحاد معاصرت کفايت کوي۔
امام بخاري رحمه الله تعالي فرمائي چي صرف په امکان د لقاء او اتحاد معاصرت زه اکتفاء نه کوم چي ترسو پورې ددوئ په يو حديث کي اتصال نه وي معلوم شوی چي دلته اتصال شوی دی نو باقي عنعنه محموله په اتصال وائي۔ خو چي په يو روايت کي هم اتصال نه وي راغلی نو مونږه صرف په امکان د لقاء او امکان معاصرت اکتفاء نه کوو نو د بخاري رحمه الله تعالي شرط اوچت شو۔
کله به زمانه هم يوه وي او امکان د لقاء به هم وي ليکن ملاقات به نه وي ثابت۔ لکه يو محدث د پاکستان دی په پيښور کي دی او بل په افغانستان کي نو زمانه ني يوه ده او امکان د لقاء هم شته که ملاقات نه وی ثابت نو حديث منقطع دی۔ ددۀ روايت د هغه نه انقطاع لري۔ نو امام بخاري رحمه الله تعالي فرمائي :چي خو پورې راته په يو حديث کي دا نه وي راغلی چي ددی دواړو په فلانکي نه ځاني کي ملاقات شوی دی نو دا عنعنی باقي محمول دی په اتصال او چي يو حديث کي هم اتصال بالفعل نه وي راغلی نو هغه په امکان د لقاء باندی عمل نه کوي۔
امام مسلم رحمه الله تعالي امکان دلقاء کافي ګنړي او امام بخاري رحمه الله تعالي لقاء بالفعل ضروري ګنړي دا د امام بخاري رحمه الله تعالي شرط دی۔ امام بخاري رحمه الله تعالي به يو حديث د معنعن نه ذکر کولو خو ورسره به يي يو بل حديث هم ذکر کړو چي په هغي سره به ملاقات معلوميدل او دريم حديث به ترجمی د باب سره هيڅ تعلق نه لرو خو د ملاقات دثابتولو د پاره ئي ذکر کولو۔
په دی پنځو وجو بخاري اولي شو۔ امام بخاري رحمه الله تعالي په امکان د لقاء باندی عمل نه کوي او امام مسلم رحمه الله تعالي په امکان د لقاء باندی عمل کوي۔ امام بخاري رحمه الله تعالي فرمائي چي لقاء بالفعل ضروري ده او امام مسلم رحمه الله تعالي وائي چي امکان د لقاء او معاصرت کافي دی خو دا شرط د امام بخاري رحمه الله تعالي فقط په دی کتاب کي دی نورو کتابونو کي ني ددی شرط خلاف احاديث هم نقل کړی دي۔

په دی میدان کي ښځو هم د سړو سره مقابله کړی ده په ښځو کي هم یوه دوه نه بلکه په زرګونو ښځی دي چي هغه احادیث نبوي په حفظ باندی یاد کړي وو - امام ذهبي په تذکرة الحفاظ کي د حافظات حدیث نومونه لیکلي دي :

(۱) اسماء بنت امیر المؤمنین ابي بکر صدیق رضي الله تعالیٰ عنهما
(۲) ام المؤمنین جویریه بنت حارث مصطلقیه رضي الله تعالیٰ عنهما
(۳) ام المؤمنین حفصه بنت عمر بن الخطاب رضي الله تعالیٰ عنهما
(۴) ام المؤمنین ام حبیبه رمله بنت ابوسفیان امویه رضي الله تعالیٰ عنهما
(۵) ام المؤمنین زینب بنت جحش اسدیه رضي الله تعالیٰ عنهما
(۶) زینب بنت ابوسلمه مخزومیه رضي الله تعالیٰ عنها
(۷) فاطمه بنت رسول صلي الله علیه وسلم
(۸) میمونه رضي الله تعالیٰ عنها
(۹) ام عطیه نسیبه انصاریه رضي الله تعالیٰ عنها
(۱۰) ام المؤمنین ام سلمه هند مخزومیه رضي الله عنها
(۱۱) ام حرام بنت ملحان انصاریه رضي الله تعالیٰ عنها
(۱۲) دده خور ام سلمه رضي الله تعالیٰ عنها
(۱۳) ام هاني بنت ابو طالب رضي الله تعالیٰ عنها-(تذکرة الحفاظ ۱/ ۴۵)

رساله معارف: **۳۵۱** بابت ماه مئ، دارنګي رسالة الابقاء: ۱۷ بابت ماه رمضان **۱۳۵۲** هجري.

عائشي رضي الله تعالیٰ په کور کي یوه پرده زوړنده کړی وه چي د هغی نه شاته به هغی خلقو ته د احادیثو تعلیم فرمائیلو - د قاهره مشهور محدثه نفیسی به خلقو ته د احادیثو درس ورکولو چي د هغی د درس نه امام شافعي هم فائده واخسته - (کتاب الاموال ۵۱۵)

د بخاري په مشهور نسخو کي یوه نسخه د احمد د لور کریمی ده چي دا د خپل وخت استاذ حدیث وه- د شپږمې صدي د مشهور محدث علي ابن عساکر په استاذانو کي زیات مقدار ښځي اساتذه دي - علامه ذهبي لیکلي دي چي ام احمد زینب به تر د څلور اتیا کالو پوری د حدیثو درس ورکولو ، ددی نه علاوه فرمائي " وازدحم علیها الطلبة " (العبر ۵ / ۳۵۸) په دی باندی به د طلباؤ ازدحام او ګڼه وه-

ددی نه علاوه د ام عبد الله زینب کمال الدین په باره کي لیکي "وتکاثروا علیها وتفردت وروت کباراً رحمها الله " (العبر ۵/۲۱۳) په هغی باندی به د طلبانو ګڼه وه هغه په ډیرو احادیثو روایت کولو کي منفرده وه هغی د احادیثو د لویو لویو کتابونو درس ورکولو -

****************

## ۱۲ - مبحث: حجتیت د احادیث مبارکه:

د تمام ملت اسلامیه په دی اتفاق دی چي احادیث د احکامو د دین دپاره دویم اصل دی. اول کتاب الله ،دویم سنت رسول الله صلي الله علیه وسلم دي
حدیث نبوي حجت دی
(۱) :د ټولو نه اول خو دا چي په قرآن عظیم کي بی شمیره آیاتونو کي اطاعت درسول الله صلي الله علیه وسلم ذکر دی.
(۲) :دویم دا چي په قرآن عظیم الشان کي ډیر احکامات دي او هغه مجمل او مطلق ذکر دي هغه په خپل تفصیل و ضاحت او شرح کي احادیثو ته محتاج دي.
مثلا په قرآن کي (۱۰۰) خله د مونځ ذکر موجوددی خو د رکعاتونود مقدار او هیئت د مانځه د ارکانو او د شرائطو ذکر نشته. دغه شان د زکوٰة ذکر په قرآن کي (۷۳) خله راغلی دی. لیکن د نصاب مقدار ، وخت د وجوب، مصارف وغیره یي نه دي بیان کړي نو هر حکم شرعي چي په قرآن کي ذکر دی تفصیل ئي په احادیثو کي موجود دی.
(۳) :دریم دا چي قرآن کریم د نبي کریم (صلي الله علیه وسلم) کار او وظیفه بیان کړی ده چي د هغي نه یود وظیفه داده ''لِتُبَيِّنَ لِلنَّاسِ مَانُزِّلَ اِلَیه'' او بله دا ده'' وَیُعَلِّمُهُمُ الْكِتٰبَ'' نو چي تعلیم ئي څوک اونه مني نو ددی معنيٰ او نه شوه. نو ددی وجي نه لازم ده په هر انسان باندی اتباع د قول او د فعل د رسول.

## منکرین حدیث او ددوئ دسوالاتو جوابات

یوه فتنه پخوا تیره شوي ده او اوس هم شته دا داسي خلق دي چي دوي احادیث مبارک په دین کي حجت نه ګڼري. او وائي چي دا احادیث د پیغمبر علیه الصلوة والسلام وینا ده. د هغوي کار کتاب راوړل وو او هغه ني راوړو نور د هغوي په مونږه هیڅ حق نشته العیاذ بالله. دغه کافر دي. پخواني منکرین حدیث داسي وو چي دوئ به د بعضو احادیثو نه انکار کولو یعني چي کوم به ددوئ د مسلک خلاف وو. مګر اوس خو په دی آخري دور کي د انګریزانو مستشرقینو په شرارت. دي مستشرقین انګریزانو اسلامي علوم زده کول او په هغي به ئي د تنقید دپاره مطالعه کوله چي څه شی د نقصان پکي پیدا کړي. دغه خلقو ددی مقصد د حصول دپاره کالجونه او یونیورستیانی کولاؤ کړي.
د مسلمانانو بی فکري او د مستشرقینو د مختلفو سازشونو په بنا باندی ددی خلقو په کثرت کي اضافه اوشوه. او په هندوستان کي اوله فتنه عبدالله چهکړالوي نه شروع شوه او ده د احادیثو په رد کي یو کتاب اولیکلو.
په دهلي کي غلام احمد پرویز راغلو دی د اسلامي نظریاتي کونسل مشر هم وو. ده د دهلي نه

Scanned with C

''طلوع اسلام'' په نوم يوه رساله شائع کړه. اوپخپل تفسير کي يي ليکلي دي چي دا کتاب د بل آسمان نه نازل دی.
تردي چي پرويز ملعون دا فتنه په کالجونو او سکولونو کي شروع کړه. زمونږ په مردان او پيښورهم دغه منکرين شته. دوي يو دا هم وائي چي قرآن کي ربا حرامه ده خو د تجارت ربا جائز او روا ده لکه د بينک سود هغه ددوی په نزد باندی روا او جائز دی. ددوی په کفر باندی څه د پاسه څلور سوو (۴۰۰) علماؤ فتوي ورکړه چي منکرين حديث کافر دي.
جلال الدين سيوطي رحمه الله تعالي ''مفتاح الجنة في الاحتجاج بالسنة'' نومی کتاب ددوی په ترديد کي ليکلی دی. او د شام يو عالم مصطفي السباعي رحمه الله تعالي هم ددوی په رد کي کتاب موجود دی.
ابن کثير د ايت کريمه اطيعوا الله واطيعوا الرسول (ال عمران: ۳۲) لاندي داتباع الرسول متعلق يو مختصر مضمون ليکلی دی چی مونږ يي نقل کوو ليکلي يي دي چی دي ايت دا فيصله کړي ده چی څوك دالله تعالي دمحبت دعوي کوي او دده اعمال او افعال او عقائد دفرمان نبوي مطابق نه وي او د مسنون طريقي پابندي نه کوي نو دی په دي دعوي کي دروغژن دی ، حاصل دادی چي که تاسو دالله تعالي سره دمحبت لرلو په دعوي کي رښتوني يئ نو زما په طريقو عمل اوکړئ په دغه وخت کي به الله تعالي تاسو ته ستاسو دمطالبي نه زيات شي درکړي يعني هغه به خپله ستاسو غوښتونکی اوګرخي لکه چی بعضي حکماؤ ونيلي دي چی ستاغوښتل څه څيز نه دی لطف په هغه وخت کي وي چی الله تعالي تا اوغواړي ، غرض دادی چی دالله تعالي دمحبت نښاني داده چی په هر يو کار کي اتباع سنت مدنظر اوساتلی شي.
ددينه پس يي ليکلي دي چی په حديث باندي دعمل کولو په وجه به الله تعالي ستاسو تمام ګناهونه هم معاف کړي بيا ددينه پس هر خاص او عام ته حکم کوي چی تاسو ټول به دالله تعالي او درسول اطاعت اختياروئ او څوك چی دي لره پريږدي نو هغه کافر دی او الله تعالي ورسره محبت نه لري.
ددينه معلومه شوه چی درسول الله صلي الله عليه وسلم د طريقي مخالفت کول کفر دی او داسي کسان دالله تعالي دوستان نشي جوړيدی څوك چی دا دعوي کوي نو ترڅو چی يي دالله تعالي دربنتوني نبي خاتم الرسل پيروي اختيارکړي نه وي ترهغي به دی پخپله دعوي کي دروغژن وي.
نبي کريم صلي الله عليه وسلم خو هغه هستي ده چی که نن هم انبياء عليهم السلام بلکه بهترين اولوا العزم پيغمبران هم ژوندي وی نوهغوئ به هم دده دشريعت پابند وو ، ددي

مضمون تفصيلي بيان به دايت كريمه ''واذاخذالله ميثاق النبيين'' (ال عمران ٨١) دتفسير په ضمن کي راشي.
ددي مسئلي دمزيد تفصيل دپاره مونږ دقراني مباركو ايتونو يوڅو حوالي وركوو كوم چې مندرجه ذيل دي : بقره: ۱۴۳، ال عمران: ۱۳۲، سورة النساء ۱۳، ۱۴، ۵۹، ۶۱، ۶۴، ۶۵، ۶۹، ۸۰، ۱۱۵، مائده: ۹۲، انفال ۱، ۱۳، ۲۰، ۲۴، ۴۶، توبه ۷۱، اعراف ۱۵۷، ۱۵۸، ابراهيم ۴۴، نور ۵۴، ۶۳، ۵۶، ۵۲، ۵۱، يوسف: ۱۰۸ فرقان: ۲۷، احزاب ۲۱، ۳۳، ۳۶، ۶۶، ۷۱، زخرف: ۶۱، محمد: ۳۳، فتح ۱۷، احقاف ۳۱، ۳۲، حجرات ۱۴، مجادله: ۱۳، حشر ۷ تغابن ۱۲ وغيره.

## اطاعت رسول لره داطاعت الهي نه دجدا بيا نولو حكمت

په ايت (ال عمران: ۱۳۲) کي يي فرمائيلي دي دالله تعالي او درسول اطاعت اوکړئ دپاره ددي چې په تاسو رحم اوشي په دي ايت كريمه کي يي درحمت الهي دپاره لكه څنګه اطاعت الهي لازمي ګرځولی شوی دی دا رنګي اطاعت رسول هم لازمي ګرځولی شوی دی او دا صرف په يو ايت کي نه دي بلكه دا مضمون په تمام قران کي بار بار تكرار شوی دی او چرته چې دالله تعالي داطاعت حكم راغلی دی هلته ورسره داطاعت رسول حكم هم مستقلا ذكر شوی دی دقران كريم دا متواتر او مسلسل ارشادات انسانانو لره داسلام اوايمان بنيادي اصولو طرف ته متوجه كوي چې دايمان اولنی جزء دالله تعالي وجود او دهغه وحدانيت او دهغه دبندګئ او اطاعت اقرار كول دي او دويم جزء يي تصديق رسول او اطاعت دی. دلته غور طلب خبره داده چې دارشادات قرانيه نه هم دا ثابت دي چې نبي كريم صلي الله عليه وسلم چې هر څه فرمائيلي دي دا دالله تعالي په اذن سره دي او دخپل طرفه يي هيڅ حكم نه دی کړی لكه چې ارشاد الهي دی : ﴿وَمَا يَنطِقُ عَنِ الْهَوَىٰ ﴿٣﴾ إِنْ هُوَ إِلَّا وَحْيٌ يُوحَىٰ ﴿٤﴾﴾ (النجم). يعني رسول كريم چې څه وائي دا دخپل خواهش په بنا نه وائي بلكه دا هر څه دالله تعالي دطرف نه وحي وي، پس ددي حاصل دا شو چې اطاعت رسول بعينه اطاعت الهي دی او ددينه كوم جدا څيز نه دی او په سورة نساء کي هم دامضمون په دي الفاظو واضح کړی شوی دی : ﴿مَن يُطِعِ الرَّسُولَ فَقَدْ أَطَاعَ اللَّهَ﴾ (نساء: ۸۰). يعني څوك چې اطاعت درسول اوکړي ګويا کي دالله اطاعت يي اوکړو، دلته دا سوال پيدا كيږي چې بيا ددي دواړو په جدا جدا بيانولو کي څه حكمت دی؟ خصوصا په التزام او اهتمام سره په پوره قران كريم کي دا عادت مستمره دی چې ددواړو اطاعتونو حكم په يو ځاي كيږي په دي کي دا راز دی چې الله تعالي ددنيوي مخلوق دهدايت دپاره كتاب راليږلی دی او يو رسول يي راليږلی دی او رسول ته يي دا ذمه واري وركړي ده چې هغه ددي كتاب خبري په هغي طريقي او هغي لهجي سره خلقو ته ورسوي په كومه چې نازل شوی دی.

دويمه خبره داده چې رسول به خلقو لره ظاهري او باطني ناپاکو نه پاکوي.
دريمه خبره داده چې دی به امت ته ددي کتاب دمضامينو تعليم ورکوي او ددي کتاب مقاصد به دوی ته بيانوي او همدا رنګي ددي کتاب دتعليم سره سره به دحکمت تعليم هم ورکوي، دا مضمون دقران کريم په متعددو ايتونو کي تقريبا په يو عنوان سره راغلی دی لکه: {هُوَ الَّذِي بَعَثَ فِي الْأُمِّيِّينَ رَسُولًا مِّنْهُمْ يَتْلُوا عَلَيْهِمْ آيَاتِهِ وَيُزَكِّيهِمْ وَيُعَلِّمُهُمُ الْكِتَابَ وَالْحِكْمَةَ} (جمعه: ۲).
معلومه شوه چې درسول په فرائض منصبي کي صرف دومره خبره داخل نه ده چې دی به خلقو ته قران رسوي بلکه ددي تعليم او وضاحت کول هم درسول ذمه واري ده او دا هم ظاهره ده چې درسول الله صلي الله عليه وسلم مخاطبين داهل عربو فصحاء او بلغاء وو دوی ته دقران کريم دتعليم ورکولو دا معني نشي کيدی چې محض دقراني الفاظو لغوي معني ورته بيان کړی شي ځکه چې هغوی پخپله په دي ښه پوهيدل بلکه ددي وضاحت او تعليم مقصد صرف دا وو او دا کيدی شي چې په قران کريم کي کوم حکم په مجمل يا مبهمو الفاظو بيان کړی شوی دی دهغي تشريح او تفصيل رسول دوحي په ذريعه خلقو ته ورسوي او کوم حکمونه چې دقران په الفاظو کي نه دي راغلي او الله تعالي درسول په زړه کي اچولي دي هغه حکمونو ته دقران کريم په ايت کريمه: {إِنْ هُوَ إِلَّا وَحْيٌ يُوحَىٰ {۴}} (النجم) کي اشاره شوي ده.
مثلاقران کريم په بي شميره مواقعو کي په اقيموا الصلاة واتوا الزكوة فرمائيلو باندي اکتفاء کړي ده چرته يي دمونځ په معامله کي دقيام، رکوع اوسجدي ذکر کړی دی هغه يي هم مبهم کړی دی چې دکيفياتو ذکر يي نه دی کړی، نبي کريم صلي الله عليه وسلم ته جبريل عليه السلام پخپله راغلی دی اود الله په حکم سره يي ورته داعمالو او ارکانو تفصيل پخپل عمل سره کړی دی او رسول الله بيا دغه احکام دخپل قول او عمل په ذريعه امت ته رسولي دي.
دزکوة مختلف نصابونه اود هرنصاب مقدار يي ورته ښودلی دی، او بيا يي ورته دا هم ښودلي دي چې زکوة په چا باندی لازم دی او په چا باندي واجب نه دی اوپه مقاديرو دنصاب کي څومره حصه معاف ده؟ دا تمام تفصيلات نبي کريم صلي الله عليه وسلم بيان کړي دي.
چونکه دا تفصيلات په قران کريم کي مذکور نه دي نو په ذي وجه دا احتمال وو چې څوك ناواقفه په دي دوکه نشي چې دا تفصيلي احکام دالله دطرفه نه دي اود الله په اطاعت کي ددي تعميل ضروري نه دی نو په دي وجه الله تعالي په تمام قران کي بار بار پخپل اطاعت سره درسول اطاعت هم لازمي ګرځولی دی کوم چې په حقيقت کي دالله تعالي اطاعت دی مګر دظاهري صورت او دتفصيل دبيان په اعتبار سره ددينه لږ مختلف دی نو په دي وجه يي بار بار په تاکيد سره اوونيل چې رسول که تاسو ته حکم اوکړي دده حکم هم دالله تعالي اطاعت اوګڼړئ برابره خبره ده چې په قران کي صراحتا موجود وي او که نه دا مسئله چونکه اهمه وه او

دکوم ناواقفه د دوکه کیدو نه علاوه داسلام د دشمنانو دپاره په اسلامي اصولو کي دګړبړ پیدا کیدو او د مسلمانانو دپاره داسلام دصحیح لاري نه د غولیدو یوه موقعه وه نو په دي وجه قران کریم دا مضمون صرف په لفظ داطاعت رسول سره نه بلکه په مختلفو عنواناتو سره امت محمدیه ته اوخودل، مثلا په رسول پاك صلي الله علیه وسلم په فرائضو کي دکتاب دتعلیم سره دحکمت اضافه هم شوي ده په دي کي دیته اشاره ده چي دکتاب نه علاوه بعضي نور خیزونه هم په تعلیماتو درسول کي داخل دي او هغه هم دمسلمانانو دپاره واجب الاتباع دي دکوم نه چي په حکمت لفظ سره تعبیر شوی دی په بعضي مقاماتو کي یي دا الفاظ فرمائیلي دي : ﴿لِتُبَيِّنَ لِلنَّاسِ مَا نُزِّلَ اِلَيْهِمْ﴾ (نحل: ۴۴)، یعني د رسول دلیږلو مقصد دادی چي دخلقو دپاره دنازل شوي ایتونو مطالب او مقاصد او تشریحات بیان کړي او په بعضي مقاماتو کي یي داسي فرمائیلي دي ﴿وَمَآ اٰتٰىكُمُ الرَّسُوْلُ فَخُذُوْهُ وَمَا نَهٰىكُمْ عَنْهُ فَانْتَهُوْا﴾ (حشر: ۷)۔

یعني رسول چي تاسو ته څه درکوي هغه واخلئ او دکوم نه چي مو منع کوي دهغي نه منع شئ ، دا تمام انتظام ددي دپاره شوی دی چي صبا څوك دا ونه واني چي مونږ صرف په هغه احکامو مکلف یو کوم چي په قران کي راغلي دي او کوم احکام چي په قران کي نشته مونږ په هغي مکلف نه یو رسول الله صلي الله علیه وسلم ته غالبا دا انکشاف شوی وو چي په کومه زمانه کي به داسي خلق هم پیدا کیږي چي دتعلیمات او تشریحات نبوي نه دخان خلاصولو دپاره به دا دعوي کوي چي زمونږ دپاره کتاب الله کافي دی.

## د منکرین حدیث اوله شبه او دهغي جوبات:

منکرین داشبه ظاهروي چي د احادیثو لیکل د رسول الله صلي الله علیه وسلم د زمانی نه سل (۱۰۰) کاله پس شروع شوي دي نو دومره موده یو شی یاد پاتی کیدل عقل نه مني۔ او رسول پاك هم د احادیثو د لیکلو نه منع فرمائیلی ده. نو دوي اعتراض کوي چي که چرې احادیث حجت وی نو بیا به رسول پاك ولي ددی د کتابت نه منع فرمایئله؟

**جواب اول:** لیکل د رسول الله د زمانی نه شروع شوی دي۔

د رسول الله صلي الله علیه وسلم ابو هریره (رضي الله عنه) نه روایت دی چي څما نه چاهم زیات رویات نه دي یادکړي ماسواء د عبدالله بن عمروبن العاص (رضي الله عنه) نه ځکه چي هغه به لیکل او ما به لیکل نه کول۔

یو بل صحابي د یمن وو چي کنیه ئي ابوشاه وو۔ د خطبه حجة الوداع په موقع کي ئي (صلي الله علیه وسلم) ته اوفرمایئل چي داماله اولیکئي۔ نو نبي کریم (صلي الله علیه وسلم) اوفرمائیل چي "اکتبوالابي شاه

دغه شان رسول الله صلي الله علیه وسلم علي رضي الله عنه ئي چي کله یمن ته د والي په

حيثيت ليگلو نو صحيفه ني ورکړه او دابه ني دخپلی توری سره زورنده کړی وه.
عبدالله بن عمر بن العاص (رضي الله عنه) ته چا يوخل اوونيل چي د رسول الله مبارک هره خبره مه ليکه ځکه چي هغه بشر دی کله به غصه وي او کله خفه. نو دی فرماني چي ما بيا پخپله د رسول الله نه تپوس اوکړو هغوي او فرمانيل چي ليکه او خپليژبی ته ني اشاره اوکړه اودائي اوفرمانيل چي د غصی او خفگان وخت چي وي نو ژبه علاوه د حق نه نور څه نه واني. بل دا چي د رسول الله حديث مبارک دی "هاتِ كتاباً اكتب لكم لن تضلو ابداً"
امام ابو حنيفه رحمه الله تعالي د کتابت د احاديثو د پاره د يو څو ايتونو نه استنباط کوي.
امام ابو حنيفه رحمه الله تعالي په استنباط کي د قرآن کريم دا ايتونه راوړي.
يا أيها الَّذِينَ آمَنُوا إِذَا تَدَايَنتُم بِدَيْنٍ إِلَى أَجَلٍ مُسَمًّى فَاكْتُبُوهُ وَلْيَكْتُب بَيْنَكُمْ كَاتِبٌ بِالْعَدْلِ وَلاَ يَأْبَ كَاتِبٌ أَنْ يَكْتُبَ كَمَا عَلَّمَهُ الله فَلْيَكْتُبْ وَلْيُمْلِلِ الَّذِي عَلَيْهِ الْحَقُّ وَلْيَتَّقِ الله رَبَّهُ وَلَا يَبْخَسْ مِنْهُ شَيْئاً فَإِن كَانَ الَّذِي عَلَيْهِ الْحَقُّ سَفِيهاً أَوْ ضَعِيفاً أَوْ لاَ يَسْتَطِيعُ أَن يُمِلَّ هُوَ فَلْيُمْلِلْ وَلِيُّهُ بِالْعَدْلِ وَاسْتَشْهِدُواْ شَهِيدَيْنِ من رِّجَالِكُمْ فَإِن لَّمْ يَكُونَا رَجُلَيْنِ فَرَجُلٌ وَامْرَأَتَانِ مِمَّن تَرْضَوْنَ مِنَ الشُّهَدَاء أَن تَضِلَّ إِحْدَاهُمَا فَتُذَكِّرَ إِحْدَاهُمَا الأُخْرَي (سورة بقره: ٢٨٢)
دويم استدلال د سورة طٰه په ايتونو کي موجوددی چي کله د موسیٰ (عليه السلام) او د فرعون مناظره وه. نو فرعون ورته وائي.
قَالَ فَمَا بَالُ الْقُرُونِ الأُولَي. قَالَ عِلْمُهَا عِندَ رَبِّي فِي كِتَابٍ لَّا يَضِلُّ رَبِّي وَلَا يَنسَي (سورة طٰه :٥١-٥٢)

## ددويمي شبې جواب

منکرينِ حديث وايي چي په احاديثوکي ډير موضوعي روايات دي او خلقو پکي دروغ دننه کړي دي. نو په هر حديث کي عقلاً دا احتمال پيدا کيدی شي چي دادی دروغ وي. نو ددی وجي نه حديث حجت نه شو.
**جواب:** مونږه دا خبره منو چي په احاديثو کي موضوعي روايات هم شته. خو ددی دپاره هم الله تعالیٰ رجال پيدافرمائي.
عبدالله بن مبارک رحمه الله تعالي ته چا يوخل او وينل چي دی احاديثو کي خلقو ډير دروغ ور دننه کړی دي. نو عبدالله بن المبارک رحمه الله تعالي ورته اوفرمائيل چي الله تعالیٰ دی ته سړي هم پيدا کړی دي او الله تعالي ورته دا فهم ورکړی دی چي ددی نه دروغ جدا کړي.

## د منکرين حديث دريمه شبه او جواب:

دريمه شبه داده چي عام روايات اخبار آحاد دي متواترات کم دي او اخبار آحاد افاده د ظن

كوي. ظن دی ته وائي چې احتمال د بل جانب پکې وي.
الله تعالىٰ فرمائي چې د يقين اتباع كوي د ظن نه لكه فرمائي: وَمَا يَتَّبِعُ أَكْثَرُهُمْ إِلاَّ ظَنّاً إِنَّ الظَّنَّ لاَ يُغْنِي مِنَ الْحَقِّ شَيْئاً إِنَّ اللهَ عَلَيمٌ بِمَا يَفْعَلُونَ (سورة يونس: ٣٦)
وَلاَ تَقْفُ مَا لَيسَ لَكَ بِهِ عِلْمٌ إِنَّ السَّمْعَ وَالْبَصَرَ وَالْفُؤَادَ كُلُّ أُولئِكَ كَانَ عَنْهُ مَسْؤُولاً (سورة اسراء: ٣٦)
معلومه شود چې ظني شی قابل حجت نه دی. نو اخبار آحاد ظن پيدا كوي او يقين نه نو ددی د وجي نه منكرين وائي چې ددی اتباع كول جائز نه دي او حجت نه دی.
جواب دادي چې ظن په دوه قسمه دی يو ته ظن بمعني العلم او دويم ته ظن بمعني تخمين وائي. كوم ظن چې نوع د علم ده دا د يقين نه يوه درجه كم وي اخبار آحاد ته چې ظني وايي دا ظن يوه نوعه د علم ده يوه درجه د يقين نه كمه نه ده يعني اټكلی.
بل ظن په معنىٰ ده اټكلي خبرو سره راځي . لكه چې الله تعالىٰ د كافرانود ظن په بارد كي فرمائي: وَمَا يَتَّبِعُ أَكْثَرُهُمْ إِلاَّ ظَنّاً إِنَّ الظَّنَّ لاَ يُغْنِي مِنَ الْحَقِّ شَيْئاً إِنَّ اللهَ عَلَيمٌ بِمَا يَفْعَلُونَ (سورة يونس: ٣٦)
الَّذِينَ يَظُنُّونَ أَنَّهُم مُّلاَقُوا رَبِّهِمْ وَأَنَّهُمْ إِلَيهِ رَاجِعُونَ (سورة بقرة: ٣٦)
دلته يَظُنُّونَ په معني د يُوْقِنُوْن او يَعْلَمُوْن سره دی.
نو په اخبار آحاد كي چې كوم ظن ذكر دی نو ددی نه مراد هغه ظن دی كوم چې په آيت د سورة بقرة كي ذكر شو. كه څوك زيات تفصيل غواړي نو په مطولاتو كي يې كتلی شي.

***************

## ١٤ - مبحث: د امام ابو حنيفة رحمة الله عليه دولادت تاريخ

امام ابو حنيفة رحمة الله عليه په ٨٠ هجري كي دعبد الملك بن مروان په دور كي د عالم اسلام په مركز كوفه كوم چې د عبدالله مسعود ، سعد بن ابي وقاص ، حذيفه بن يمان ، سلمان فارسي اوابوموسي اشعري رضي الله عنهم پشان كبار صحابه كرامو مسكن كي پيدا شوی وو ، ونيلي شوي دي چې اويا ٧٠ اصحاب بدر او دري سوه اتيا ٣٨٠ دبيعت الرضوان والاصحابه كرامو په كوفه كي رهائش كړي وو ، اوددوی نه علاوه نورو پنځلس سوه ١٥٠٠ صحابه كرام هم په كوفه كي اوسيدلي وو ،
دامام موصوف خپل نوم نعمان اود والد گرامي نوم ئي ثابت او دنيكه نوم ئي زوطي وو ، ددوی نيكه زوطي صاحب دفارس اوسيدونكي وو.

Scanned with C

چونکه داسلام نشر او اشاعت ډیر په سرعت سره روان وو ، تردې چې د خوریدو په نتیجه کې ئې اثر فارس ته هم ورسیدو ، اوډیر خاندانونه او قومونه داسلام دبرکتونونه مستفیض اوسیراب شول، پدې سلسله کې زوطي صاحب هم څوك چې داسلام په ډیره دقیقه مطالعه کې مصروف وو او بیا په دین اسلام مشرف شو ،

زوطی (رحمة الله علیه) (په ضمه سره په وزن د موسی یا په فتحه سره په وزن د سلمی ، فارسی وو ، یعنې دوی فارسی النسل وو ، د دوی نیکه د کابل وو چې عربو دا علاقې فتح کړې نو ثابت رحمة الله علیه قید شو اود بنی تمیم بن ثعلبه غلام شو او بیا ازاد کړی شو ،او د ولاء په نسبت سره دوی ته تمیمی وئیلې کیدل.لکه څنګه چې دده نمسی عمرو بن حماد بن ابی حنیفه روایت کړی دي ، خو دده بل نمسي دعمرو بن حماد رور اسماعیل وو)

داسلام قبلولونه پس دده دخاندان څه کسانو ده لره په ارام ژوند تیرولو ته پرې نخودو اوبهرحال هغه په ۳۷ هجري کال دهجرت په نیت باندې دخپلې بښخې اونقدي سرمایې سره مکې مکرمې ته روان شو ، دسفر په دوران کې ئې په ډیرو اسلامي ښارونوباندي تیریدل اوشول ، داسلام اودخلفاء اسلام متعلق به ئې پخپلو معلوماتو کې اضافه کوله تردې چې کوفې ته په رسیدو سره ئې داسلام دجلالت اوعظمت پوره نقشه اولیدله ، خکه چې پدغه وخت کې علي کرم الله وجهه خلیفه وو ، او کوفې ته ددار الخلافې شرف حاصل وو . زوطي صاحب هم دلته رهائش اختیارول مناسب وګڼړل ، اودکپړې تجارت ئې خپل ذریعه معاش وګرخولو ،

زوطي صاحب به کله کله دعلي کرم الله وجهه دربار ته حاضري کوله اودخلوص عقیدت سره به ئې دادابو تعمیل کولو ، یوځل د "نوروز" په ورځ کومه چې د فارسیانو داختر ورځ وي زوطي صاحب لګه شان فالوده دځان سره علي رضي الله عنه ته بطور تحفه یوړله او ورته ئې پیش کړله علي کرم الله وجهه ورنه تپوس وکړو چې داڅه دي ؟ زوطي ورته ووئیل چې داد نوروز فالوده ده علي رضي الله عنه ورته اوفرمائیل "نَوْرُوْزُنَا كُلَّ يَوْمٍ" یعنې زمونږ نوروزخو هره ورځ وي،

د ۴۰ هجري کال په شروع کې دزوطي صاحب دیوخوي پیدائش هم اوشو چې نوم ئې ورباندې ثابت کیخودو اودحصول برکت دپاره ئې خپل بچې علي کرم الله وجهه ته حاضرکړو ، علي رضي الله عنه ورباندې دشفقت لاس راخکلو اوده دپاره ئې دخیر دعا اوغوښتله او رخصت ئې کړو . ثابت دخپل ژوند دماشوموالي اوطفولیت دوخت موده دخپل پلار په غیږ کې تیره کړه مګرخوانۍ ته درسیدو په وخت کې دخپل پلار دشفقت دسوري نه محروم شو . اودتجارت مشغله ورته دخپل پلار نه په وراثت کې پاتې شوه اودخپل ژوند دکاروان ګاډي ئې روان کړي وو ، تاریخ ددینه خاموش دی چې واده ئې کله اوپه کوم خاندان کې وکړو ، مګر دومره معلومه ده چې په ۴۰ کلنۍ کې ورته الله تعالي دنعمان په نوم باندې یوخوي ورکړو چې دژوند دتیرولو

په دوران کي ني دابوحنيفه کنيت اختيار کړو ، اوپه خلقوکي ني په امام ابو حنيفه سره شهرت پيدا کړو. داد ۸۰ هجري کال دهغه وخت خبره ده کله چي عبد الملك بن مروان خليفه وو اوحجاج بن يوسف دعراق والي وو اګرچي دنبي کريم صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ ددنيانه درحلت ۷۰ کاله تير شوي وو مګربيا هم يوڅو حسب ذيل مذکوره صحابه کرام لاژوندي وودکوموسره چي دده ملاقات هم شوی دی مثلاً:

انس بن مالك رضي الله عنه درسول الله خادم دهجرت په ۹۳ کال باندي وفات شوي وو.

سهل بن سعد انصاري رضي الله عنه وفات په ۹۱ هجري کي شوي وو.

ابوطفيل عامر بن واثله رضي الله عنه کوم چي په ۱۰۰ هجري کي وفات شوی وو .

دامام ابوحنيفه رحمه الله ددوه صحابه کراموسره ملاقات شوی دی . اوددوي دصحبت شرف ني حاصل کړی دی . يو انس بن مالك رضي الله عنه. اوبل ابوطفيل عامر بن واثله رضي الله عنه .

دلته داخبره قابل ذکرده چي دامام صاحب کنيت کوم چي دده دنوم نه هم زيات مشهوردی حقيقي کنيت ندی بلکه دوصفي معنى په اعتبارسره دی . په قران کريم کي الله تعالي فرمائيلي دي: أَنِ اتَّبِعْ مِلَّةَ إِبْرَاهِيمَ حَنِيفًا وَمَاكَانَ مِنَ الْمُشْرِكِينَ (النحل: ۱۲۳) امام صاحب په همدي نسبت سره دابوحنيفه کنيت اختيارکړو.

امام صاحب ابتدائي تعليم په خپل کور کي حاصل کړي وو . هرکله چي لږشان هوښيارشو نودخپل پلار سره به په دکان کي کيناستو اودشپاړسوکالوپه عمر کي ووچي والد صاحب ني هم وفات شو اودتمام کاروبار ذمه واري اونګهبا ني ورته وسپارلی شوه

دډيري جفاکشئ اوذهانت په سبب ني په کاروبارکي قابل تعريف ترقي وکړله اوددکان سره ني دکپړي يوه کارخانه هم قائم کړه . اودخپل ژوند لمحي ني تيرولي.

دامام صاحب والده محترمه ترډيره وخته پوري ژوندي وه اودا يوه انتهائي عابده اود علماؤ اودعلمي مشغلو سره ئی ډيره دلچسپي وه . اکثر به ئی دعلماء کرامو وعظ اونصيحت هم په پرده کي اوريدلو. اوپدي طريقه ئی ډير اسلامي معلومات هم حاصل کړي وو.

دامام صاحب فطري رجحان هم دعلم طرف ته زيات وو خوليکن دده دمور دمذهب دوستئ په وجه ئي دعلم دحصول طرف ته رجحان نورهم لازيات شو، دعمر بن عبدالعزيز رحمه الله په زمانه کي ني د علم دحصول خيالات نور هم رااوپاريدل.

يوځل هغه دځه کار دپاره چرته روان وو په لاره کي ني دکوفي دمشهور عالم اوقاضي علامه شعبي رحمه الله سره ملاقات اوشو شعبي ورنه تپوس اوکړو چرته روان ني؟ هغه اووئيل دفلاني سوداګر خواته روان يم شعبي رحمة الله عليه ورته اووئيل زمادتپوس کولونه مطلب دا وو چي ته دچانه علم زده کوي؟ ابوحنيفه په ډير افسوس سره جواب ورکړو چي زه دهيچانه علم

نه زده کوم شعبي رحمة الله عليه ورته په محبت اميزه لهجه کي اوونيل چي ماته په تاکي دقابليت جواهر ښکاري . دعلماو په مجالسو کي کيناستل کوه . دي نصيحت دامام صاحب په زړه باندي ډير ژور اثر اوکړو کورته دراتلوسره ئي خپلي مور ته تمامه ماجرا بيان کړه اودعلم دحاصلولودپاره ئي کومي مدرسي ته دتلو اجازت اوغوښتو دده مور ډيره خوشحاله شوه او اجازت ئي ورکړو.

امام صاحب چونکه ابتدائي مذهبي تعليم پخپل کور کي حاصل کړي وو خو دنور علم دپاره داستاذ په تلاش کي شو تردي چي دحديث اوفقهي علم حاصل کړي پدي زمانه کي حماد رحمة الله عليه په کوفه کي مشهور عالم اودوخت استاذ وو امام ابوحنيفه رحمة الله عليه حماد بن ابي سليمان رحمة الله عليه لره په صفت داستاذ باندي منتخب کړو اوبه خدمت کي ئي حاضر شو اودخپل خواهش اظهار ئي اوکړو استاذ ورته اجازت ورکړو او امام صاحب په ډير انهماك اوپابندئ سره په درس کي کيناستل شروع کړل قابل استاذ په يوځو ورځو کي معلومه کړه چي دتمام درس په حلقه کي دابو حنيفه رحمة الله عليه دحافظي او ذهانت مثال نشته نو پدي بناباندي حمادرحمة الله عليه حکم اوکړو چي ابوحنيفه رحمة الله عليه به په درس کي دټولو نه مخکي کيني،

بهر حال ابوحنيفه رحمة الله عليه پوره دوه کاله دحماد په درس کي شريك پاتي شو اوبه پوره توجه سره ئي دفقهي علم حاصل کړو ، امام صاحب پخپله فرمائي يوځل زما استاذ حماد ددوه مياشتو دپاره بصري ته لاړو اوزه ئي خپل جانشين مقرر کړم .پدغه وخت کي دطلباؤ نه علاوه نورو ډيرو خلقو به هم دده نه دمسائلو معلومات پوښتل . بعضي په هغی کي داسي مسائل هم وو دکومو په باره کي چي مااستاذ نه څه نه وو اوريدلي مگرپخپل اجتهاد سره به مي جواب ورکولو او ورسره به مي ددي يو ياداشت هم دخان سره ليکلی ساتلو کله چي استاذ دبصري نه واپس راغی ما ورته هغه کاغذ پيش کړو په هغي کي شپيته مسئلي وي هغه پدي کي دشلو غلطو اصلاح اوکړه اوويي ونيل چي باقي درست دي

ددينه پس امام صاحب دکوفي دمشهورو محدثينو نه علم حاصل کړو او احاديث ئي ورنه هم واوريدل چي نومونه به يي عنقريب ذکر کړی شي.

ددينه پس بيا دکوفي نه امام صاحب بصري ته روان شو اود شعبه اودقتاده په درس کي شامل شو،

بيا ددينه پس امام صاحب مکي مکرمي ته لاړو اودعطاء بن ابي رباح په درس کي شريك شو امام صاحب پخپله وائي چي زما دداسي دوه سوه کسانوسره ملاقات شوي دي چاچي نبي کريم صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ ليدلي وو.

امام صاحب فرمائي چې ددي نه پس زما دا اراده پيدا شوه چې د درس اوتدريس سلسله قائم کړم، بهرحال د کال ۱۵۰ هجري پوري ئې د درس اوتدريس خدماتو ته انجام ورکړو . پدي دوران کي څه موده داسي هم تيره شوي ده چې ده لره منصور په قيد کي نظر بند ساتلي وو اود امام محمد بن حسن شيباني شاگردي هم ورسره دجيل په موده کي شوي ده.

بهرحال امام صاحب رحمة الله عليه د تعليم اوتعلم اوفقاهت او اجتهاد سره دميني لرلونه علاوه نور هم ډير امتيازات لري مثلا دهغه ناصحيت ضرب المثل دى اوهمدا رنگي دهغوئ اخلاق اوعادات . اوسخاوت، دوالدينو خدمت كول اودداسي نورو ډيرو بې شميرو سعادتونو نه برخه مند وو ، ددوئ په شخصيت اوسوانح حيات باندي بي شميره كتابونه ليكلي شوي دي كچري مونږخپله كامله توجه دي پهلوته راوگرځوو نوددينه به هم يوزخيم كتاب جوړشي ليكن دلته پدي موقعه باندي مشت نمونه خروار ذكر كول كافي گنړم اوددي نه تجاوز كول به اصل مقصود ته په رسيدو كي حائل اومانع اوگرځي،

دټولونه لويه خبره داده چې په موجوده فقهي ترتيب سره چې كوم مدوّن شريعت زمونږ په وړاندي پروت دى داد امام ابوحنيفه رحمة الله عليه دخدماتونتيجه بلكه دهغوئ ايجاد به ورته او وايو . دامام صاحب په مناقبوكي داهم ذكرشوي دي چې ده دخپل استاد حماد رحمة الله عليه په زندگئ كي داجتهاد درجه حاصله كړي وه اودنصوصونه دغيرمنصوص مسائلو داستخراج ملكه ورته وريه برخه شوي وه، كوم چې اسان اومعمولي كار ندى دداسي لوي خدمت دپاره لوي علم اوژوري پوهي ته ضرورت وو اوداسي صلاحيت دده نه علاوه په بل چاكي پدغه وخت او زمانه كي ونه موندل شو، غرض داچې رب كريم په امام ابوحنيفه رحمة الله عليه كي هغه ټولي خوبياني اوصلاحيتونه وديعت فرمائيلي وو كوم چې دداسي اهم كار دتكميل دپاره دحد نه زيات ضروري گڼل كيدل ،

## دامام صاحب رحمة الله عليه دعلمي مقام اومرتبي جائزه

امام ابوحنيفه په ائمه اربعه كي هغه منفرد شخصيت دي چاچي بذات خود دصحابه كرامو سره براه راست ملاقات كړى وو د كوم په نتيجه كي چې ورته شرف دتابعيت حاصل شوى وو. دكومو صحابه كرامو سره چې ئې ملاقات شوى وو په هغوئ كي دسيدنا انس بن مالك، عمروبن حريث او عبدالله بن انيس رضي الله عنهم اسماء گرامي شامل دي. امام احنيفه رحمه الله په اتياوم ۸۰ كال دهجرت كي پيدا شوى وو اود اخري صحابي وفات په مكه مكرمه كي په كال ۱۰۲ هجري كي شوى دى ابو الطفيل رضي الله عنه وو. نوپدي وجه غالب گمان دادى چې شايد دده سره به ئې هم ملاقات شوى وي (الخيرات الحسان).

زمونږ مشفق استاد شهيد اسلام رسول الله صلي الله عليه وسلم شيخ به د امام ترمذي داسي ترجماني كوله:

امام بخاري، إمام مسلم، امام ابو داؤد رحمهم الله تعالي ټول د امام ترمذي رحمه الله تعالي استاذان دي ، امام ترمذي رحمه الله تعالي په خپل كتاب كي ددی ټولو اتباع كړی ده. امام ترمذي رحمه الله تعالي په يو ځای باندی جمع د احاديثومناسبؤ كوي. او په دی كي ئي اتباع د مسلم شريف كړی ده. او په جمع د فنونِ ثمانيه كي ئي اتباع د بخاري شريف كړی ده او ذكر د احاديثوچي استنباط هر فقهيه تری كوي او د مسائلو فقهيه په طرز باندی ئي ورته ابواب مقرر كړ ی دي. نو په دي كي ئي اتباع د ابو داؤد رحمه الله تعالي كړی ده. او دغه شان په تنبيه د عللو او خطاء د رواتو كي هم د ابوداؤد رحمه الله تعالي اتباع كړي ده. امام نسائي رحمه الله تعالي او امام ترمذي رحمه الله تعالي دواړه د امام ابوداؤد رحمه الله تعالي شاګردان دي خو امام نسائي رحمه الله تعالي د امام ترمذي رحمه الله تعالي نه وروستو دی. امام ترمذي رحمه الله تعالي په احاديثو باندی حكم هم لګوي چي دا صحيح دی دا حسن دی. بله دا چي امام ترمذي رحمه الله تعالي ذخيره د احاديثو ته اجمالاً اشاره كوي. لكه فرمائي وفي الباب عن فلان عن فلان عن فلان. دی ته ذخيره د احاديثو وائي. د امام ترمذي رحمه الله تعالي نه ما سوا دا كار بل چا نه دي كړی. او بله دا چي امام ترمذي رحمه الله تعالي بيان د مذاهبو د فقهاؤكوي او باقاعده نومونو سره ئي ذكركوي مثلاً فرمائي وقول مالك رحمه الله تعالي و الشافعي رحمه الله تعالي وامام احمد بن حنبل رحمه الله تعالي. او بل طرف ته فرمائي و قول سفيان رحمه الله تعالي و اهل الكوفه و غيرهم نو بيان د مذاهبو سره د نومونوكوي.

ددی نه علاوه امام ترمذي رحمه الله تعالي مستدل د هر فريق نقل كړی دي لكه ابو داؤد رحمه الله تعالي اصح مافي الباب اول ذكركوي اواضعف ما في الباب وروستو ذكر كوي. اوامام ترمذي رحمه الله تعالي ددی عكس كوي لكه اضعف ما في الباب اول او اصح ما في الباب وروستو ذكر كوي.

نو امام ترمذي رحمه الله تعالي د نورو خبرو نه علاوه هر حديث باندی حكم لګولی دی او اشاره ئي كړي ده اجمالاً هغي ذخيری د احاديثو ته. او تنبيه ئي عللو او خطاء درواتو كړی ده مستدل د هری فرقی او طائفی ئي نقل كړی دی او نقل د فقهاؤ د اهلسنت ئي كړی دی او علومو د اسماء الرجال ته ئي اشاره كړی ده چي دا بل چا ندی كړي. نو ددی وجي نه فائده د ترمذي زياته ده.

## دامام صاحب استاذان

د امام ابو حنيفة رحمة الله عليه په استاذانو كي تابعين كبار سرفهرست دي په كومو كي چی مندرجه ذيل اهل علم سر فهرست دي :

١. عامر بن شراحيل شعبي
٢. سليمان الاعمش ،

Scanned with C

٣ ابو اسحاق السبيعي،
٤ حماد بن ابي سليمان.
٥ حكم بن عتبة.
٦ عطاء بن ابي رباح.
٧ عمروبن دينار،
٨ عكرمه مشهور تابعي.
٩ نافع مولي ابن عمر.
١٠ جعفر صادق،
١١ قاسم بن محمد.
١٢ محمد باقر،
١٣ يحي بن سعيد الانصاري شامل دي.

**دامام موصوف شاگردان**

امام ابو حنيفة رحمة الله عليه شاگردان لاتعداد دي ليكن مونږ ورنه بطور نمونه يوڅو ذكر كوو كوم چې مندرجه ذيل دي

١ـ قاضي القضاة امام ابويوسف رحمة الله عليه
٢ـ امام محمد بن حسن الشيباني رحمة الله عليه.
٣ـ امام زفر رحمة الله عليه،
٤ـ امام حسن بن زياد رحمة الله عليه.
٥ امام مسعر بن كدام رحمة الله عليه،
٦ امام وكيع بن الجراح رحمة الله عليه،
٧ امام يحي بن زكريا بن ابي زائده رحمة الله عليه.
٨ـ امام حفص بن غياث رحمة الله عليه،
٩ امام عبدالله بن مبارك رحمة الله عليه،
١٠ـ امام يحي بن سعيد القطان رحمة الله عليه،
١١ امام مكي بن ابراهيم رحمة الله عليه.
١٢ امام ضحاك بن مخلد رحمة الله عليه.
١٣ امام فضيل بن عياض رحمة الله عليه.
١٤ امام فضل بن دكين رحمة الله عليه،
١٥ امام سفيان ثوري رحمة الله عليه،
١٦ امام يزيد بن هارون رحمة الله عليه،

۱۷ امام جرير بن عبد الحميد رحمة الله عليه.
۱۸ امام عبد الرزاق بن هشام رحمة الله عليه.
۱۹ امام يوسف بن خالد السمني رحمة الله عليه.
۲۰ امام قاسم بن معن رحمة الله عليه.
۲۱ امام نضر بن شميل رحمة الله عليه.

پورتني ذكر شوي اشخاص اكثر هغه كسان دي چې د امام شافعي، احمد بن حنبل او امام بخاري رحمهم الله تعالى استاذان دي . په نورو الفاظو كي امام شافعي او احمد بن حنبل رحمهما الله واقعي دامام ابوحنيفه صاحب دشاگردانو شاگردان دي. اويا په دوه واسطوسره دامام صاحب په شاگردانو كي شامل دي.

عجميانو په فضيلت كي درسول الله صلي عليه وسلم يوحديث مبارك

امام بخاري امام مسلم او امام ترمذي رحمهم الله او بعضي نورو محدثينو پخپلو كتابونو كي نقل كړي دي چه: عَنْ أَبِي هُرَيْرَةَ رَضِيَ اللهُ عَنْهُ قَالَ وَضَعَ رَسُولُ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ يَدَهُ عَلَى سَلْمَانَ ثُمَّ قَالَ لَوْ كَانَ الْإِيمَانُ عِنْدَ الثُّرَيَّا لَنَالَهُ رِجَالٌ أَوْ رَجُلٌ مِنْ هَؤُلَاءِ (وفي بعض الروايات لوكان العلم وفي بعض الروايات لوكان الدين)

بخاري كتاب التفسير في تفسير سورة الجمعة. صحيح مسلم باب فضائل صحابه. جامع الترمذي كتاب التفسير في تفسير سورة الجمعة.

يعني كچري ايمان . يا علم، يادين په اسمان كي دثريا ستورو سره وي نو هم به ني فارس والاعجميان، حاصل كړي.

دامام صاحب داپيشينگوني پوره شوي ده دفقهي دټولو نه لوي امام ، امام ابو حنيفة رحمة الله عليه امير المؤمنين في الفقه فارسي النسل وو ، دعلم حديث جليل القدر امام امير المؤمنين في الحديث امام بخاري هم فارسي النسل وو. دعلم تفسير امام فخر الدين الرازي دعلم عقائد او علم كلام امام ابو منصور الماتريدي هم عجمي النسل وو . اود ايمان اوعلم په باب كي ددي شخصياتوپښان كسانو هغه كارنامي كړي دي دكوموپه اعتراف كولو باندي چي هرعالم اوطالب مجبور دى

***************

## ۱۵ - مبحث: خصوصيات د جامع الترمذي

دجامع الترمذي يو څو خصوصيات په لاندينو كرخو كي كتلي شي:

(۱) جامع الترمذي په يو وخت كي جامع هم دي او سنن هم دي جامع خو ځكه دي چي په فنون ثمانيه مشتمل دي بلكه دبعضي علماؤ په قول جامع الترمذي په څوارلسو علومو مشتمل دي

او سنن په دي وجه دي چي په فقهي ترتيب مشتمل دي.
(۲) په هره مسئله كي جدا جدا باب قائموي او مذكوره مسئله په طور د دعوي په ترجمة الباب كي ذكر كوي او په ضمن كي حديث په طور د دليل پيش كوي دفقهاؤ مذاهب بيانولو دپاره عموما دوه بابونه قائموي په اولني باب كي دحجازي فقهاؤ او شوافع او حنابله مذاهب او ددوئ دلائل ذكر كوي او په دويم باب كي داحنافو مذهب ذكر كوي چي په اهل كوفه ورنه تعبير كوي.
(۳) ترجمة الباب دترمذي انتهائي اسان ترين وي.
(۴) ترجمه دحديث نه لفظا ماخوذ وي البته كله كله چي حديث دترجمي سره موافق نه وي نو په دي ترجمه كي حديث ته په وفي الباب كي اشاره كوي كوم چي دترجمي سره زيات موافق وي.
(۵) په فقهي مسائلو كي اكثر د دوه يادري يا زياتو احاديثو تخريج وي تردي چي دتمامو فقهاؤ مستدل احاديث جمع كړي شي.
(۶) عموما دفقهي مسلك ماهرينو دپاره جداباب قائموي.
(۷) كچري بل حديث ددوئ په مسلك نه منطبق كيږي نو دهغي نه جواب كوي.
(۸) كوم روايت چي دده په نزد منسوخ وي هغه په اولني باب كي ذكر كوي مگر ناسخ په باب ثاني كي ذكر كوي.
(۹) كله كله په يوه مسئله كي د دوو نه زائد ابواب هم قائموي.
(۱۰) په "قال ابو عيسي" په وئيلو سره دفقهاء كرامو اختلاف ته اشاره ذكر كوي.
(۱۱) او ددي په ضمن كي په احاديثو كي توجيهات هم كوي.
(۱۲) داحنافو دمذهب نه په اهل كوفه تعبير كوي ليكن دا قاعده كليه نه ده بلكه اكثريه ده دبعضو په نزد امام موصوف دتعصب په وجه دامام ابو حنيفه نوم نه اخلي ليكن شاه ولي الله محدث دهلوي ددي قول ترديد كړي دي حقيقت دادي چي امام ترمذي ته داحنافو دمذهب په صحيح سند سره رسيدلي نه دي نو احتياطا ورنه په اهل كوفه تعبير كوي دشاه صاحب دقول تائيد په دي باندي هم كيږي چي په مصري نسخو كي دامام ابو حنيفه نوم مذكور دي.
"قال ابو حنيفة مارئيت اكذب من جعفر الجعفي ولاافضل من عطاء بن ابي رباح".
(۱۳) داختصار مد نظر په يو باب كي دوه يا دري احاديث ذكر كوي او باقي احاديثو ته په وفي الباب عن فلان وفلان اشاره كوي.
(۱۴) عموما دهغه احاديثو تخريج كوي كوم چي دصحيحينو يا دمشهور احاديثو نه نه دي.
(۱۵) كه حديث اوږد وي نو صرف هغه حصه ورنه ذكر كوي دكومي چي دده دغرض سره تعلق دي.
(۱۶) په جامع الترمذي كي داحاديثو تكرار نشته.

Scanned with C

(۱۷) په ترمذي کي دِاحاديثو تلاش انتهائي اسان دي.
(۱۸) دا يو اسان ترين کتاب دي هر څوك ورنه استفاده کولي شي ځکه چي امام ترمذي دراويانو جرح او تعديل ذکر کوي که راوي ضعيف وي نو ضعف يي بيانوي او کله کله خو سبب دضعف هم بيانوي.
(۱۹) عموما په جرح او تعديل کي دامام بخاري قول ذکر کوي او کله کله دامام ابو عبدالرحمن الدارمي قول ذکر کوي.
(۲۰) دجامع الترمذي تمام احاديث معمول بها دي مګر علاود د دوه احاديثو نه چي هغه معمول بها نه دي په کتاب العلل کي پخپله فرمائي.
جميع مافي هذا الكتاب من الحديث هو معمول به وبه اخذ بعض اهل العلم ما خلا الحديثين حديث ابن عباس رضي الله عنهما ان النبي صلي الله عليه وسلم جمع بين الظهر والعشاء بالمدينة والمغرب والعشاء من غير خوف ولا سفر ولا مطر.
يعني په دي کتاب کي چي څومره احاديث دي ټول معمول بها دي علاوه د دوه احاديثو نه يو حديث دابن عباس دي چي نبي کريم صلي الله عليه وسلم په مدينه کي بغير دخوف او سفر نه او بغير دباران نه دماسپخين او مازيګر مونځ، او دماښام او دماخوستن مونځونه جمع کړل.
دويم دا حديث دي: وحديث النبي صلي الله عليه وسلم انه قال اذا شرب الخمر فاجلدوه فان عاد في الرابعة فاقتلوه.
يعني دويم دا حديث دي ارشاد نبوي دي که چا شراب اوڅکل نو په کوړو يي اووهئ او که بيا يي په څلورم ځل اوڅکل نو قتل يي کړئ.
حاصل دکلام دادي چي ددي دوه احاديثو نه علاوه دترمذي تمام احاديث معمول بها دي ليکن دشاه ولي الله په قول دا دواړه احاديث هم معمول بها دي ځکه چي شاه صاحب په دي کي تاويل کوي کوم چي مونږ داختصار په تقاضا ذکر کولي نشو.
(۲۱) که دراوي په باره کي اشتباه وي نو امام ترمذي ددي وضاحت کوي يعني که نوم يي ذکر وي نو کنيه يي ذکر کوي او که کنيه يي معلومه وي نو دنوم ذکر کولو کوشش يي کوي او کله کله لقب هم ذکر کوي مثلا دکومي علاقي يا کومي قبيلي چي اوسيدونکي وي.
(۲۲) په جرح او تعديل کي تساهل پسند دي دزيات سختئ نه کار نه اخلي.
(۲۳) په ترمذي کي دري قسم احاديث دي اول صحيح، دويم حسن، دريم ضعيف او دجمهورو په نزد موضوعي په ترمذي کي نشته او علامه ابن جوزي چي دترمذي په ۱۲۳ احاديثو باندي دموضوعي حکم لګولي دي جمهورو علماؤ د ابن جوزي ددي قول تسليمولو نه انکار کړي دي علامه جلال الدين سيوطي په القول الحسن في الذب عن السنن کي يو بهترين جواب

کړي دي او دا خکه چي ابن جوزي خو دصحیحینو د روایت کوم چي دحماد شاکر په حواله دي هم تضعیف کړي دي دا رنګي سراج الدین قزویني هم لیکلي دي چي په ترمذي کي دري موضوعي احادیث دي لیکن جمهورو دده دقول تردید هم کړي دي

(۲۴) تمامو محدثینو په اتفاق سره جامع الترمذي په صحاح سته کي شامل ګرخولي دي البته په درجه کي اختلاف دي بعضو ورته دصحیحینو نه پس درجه ورکړي دي او بعضو دنساني او ابو داود په مینځ کي درجه ورکړي ده یعني دریم یا څلورم او علماء دیوبند په پنځم نمبر دابن ماجه نه مخکي درجه ورکري ده دسنن نه مراد ابو داود او نساني دي.

(۲۵) محدثین ورته د تدریس په اعتبار ډیر اهمیت ورکوي او په فقهي مسائلو زور په همدي کتاب کي ورکوي.

(۲۶) په ترمذي کي یو ثلاثي حدیث هم شته کوم چي دابواب الفتن په اخر کي راغلي دي.

حدثنا اسماعيل بن موسي الخزاري ابن ابنة السدي الكوفي قال حدثنا عمر بن شاكر عن انس بن مالك عن النبي صلي الله عليه وسلم قال ياتي علي الناس زمان الصابر فيه علي دينه كالقابض علي الجمر .

سُبْحَانَ رَبِّكَ رَبِّ الْعِزَّةِ عَمَّا يَصِفُونَ (۱۸۰) وَسَلَامٌ عَلَى الْمُرْسَلِينَ (۱۸۱) وَالْحَمْدُ لِلَّهِ رَبِّ الْعَالَمِينَ لصافات:۱۸۲)

وصلى الله على سيدنا محمد وآله وصحبه أجمعين ورضي الله عن الصحابة أجمعين حسبنا الله ونعم الوكيل.

*************

*********

*******

Scanned with C

فأخبرنا به الشيخ الإمام الصدر العالم الزاهد العابد ضياء الدين أبو أحمد عبد الوهاب بن علي المقدم ذكره . بقراءتي عليه . وقراءة غيري . بمدينة السلام في سنة ست وثمانين وخمسمائة .قال : أخبرنا الإمام أبو الفتح عبد الملك ابن أبي القاسم بن أبي سهل الكروخي الهروي . قراءة عليه وأنا أسمع فأقرَّ به .

قال : أخبرنا القاضي الزاهد أبو عامر محمود بن القاسم بن محمد بن محمد الأزدي . قراءة عليه وأنا أسمع . في شهر ربيع الأول من سنة اثنتين وثمانين وأربعمائة .

وأخبرنا الشيخ أبو نصر عبد العزيز بن محمد بن علي بن إبراهيم الترياقي والشيخ أبو بكر أحمد بن عبد الصمد بن أبي الفضل بن أبي حامد الغورجي . قراءة عليهما وأنا أسمع . في شهر ربيع الآخر من سنة إحدى وثمانين وأربعمائة .

قالوا : أخبرنا أبو محمد عبد الجبار بن محمد بن عبد الله بن أبي الجراح الجراحي المروزي .قال: أخبرنا أبو العباس محمد بن أحمد بن محبوب بن فضيل المحبوبي المروزي المرزباني قراءة عليه . قال : أخبرنا الإمام الحافظ أبو عيسى محمد بن عيسى بن سورة الترمذي رحمه الله بكتاب «الجامع الكبير :

بِسْمِ اللهِ الرَّحْمٰنِ الرَّحِيْمِ

**سوال:** دبسم الله نه پس يې حمد ولې نه دي ذکر کړي او حال دا دي چې دحمد په باره کې احاديث وارد دي؟

**جواب:** دحمد حاصل چې ذکر الهي دي حاصل دي او دتسميه په ضمن کې موجود دي بلـه دا چې په حمد تلفظ ضروري دي او کتابت ضروري نه دي ممکن دد چې مصنف په حمد تلفظ کړي وي او ذکر کړي يې نه وي.(يعني د تحريري ذکر کولو په ځاي يې لساني ذکر کړی وي).

## أبواب الطهارة عن رسول الله صلى الله عليه و سلم

### دطهار(پاکوالي ) داحکامو بيان

### دبَابٌ لفظ تحقيق:

باب په اصل کې بَوَبٌ دی بيا " واو"متحرک ما قبل فتحه وه مونږ په "الف"بدل کړو نو د بَوَبٌ نه بَابٌ جوړ شو. او دليل په دی باندی اسم تصغير دی چې ددی اسم تصغير بويبٌ دی. او د تصغير دا خاصيت دی چې شي خپل اصل ته راکاږی يعني "يرد کل شيء الى اصله"نو تصغير د باب بُوَيبٌ دی وړی دروازی ته وائی، او باب هم په لغت کښی دروازی ته وائی.

او په اصطلاح کې "مَايَكُوْنُ مُشْتَمِلاً عَلٰى مَسَائِلٍ مَتَحِدَةِ النَّوْعِ ومُخْتَلِفَةِ الصِنْفِ و المُنَاسِبة بين مَعَانيها" يعني چې کله يو انسان په يوه دروازه ورننوځی نو هغه ته مختلف اشياء ښکاره شي. او دا ذريعه د اطلاع ده په داخل فی البيت.

مګر دلته باب اسم دی. يعني هغه کلمه چې مشتمل وی په مسائلو متحدة النوع او مختلفة الصنف باندی. باب د لاندی مسائله وی چې صنف نی جدا جدا وی يعني طبقه نی جدا وی او نو ع ئی يوه وی.

پس باب علمي مشابه دی د باب د بيت او د کور سره. لکه څنګه چې په کور کې اعلي او قيمتي څيزونه وي او دغه اعلي او قيمتي څيزونو ته د ورتلو لاز هم دغه باب وي. نو دا باب او دروازد "اطلاع علي الاشياء القيمة " وي نو دا باب هم ذريعه د "علي الاطلاع علي المسائل القيمة" نو د کتاب مشابهت ني د کو ر سره ورکړو نو لکه څنګه چې په کور کې اعلي څيزونه وي او دی دار او کور ته د ورتلو ذريعه دا باب وي. هم دغه شان دا کتاب په مثال د بيت دی چې په دی کې اعلي او قيمتي څيزو نه وي چې هغه علمي بحثونه او خبري دي. د باب اطلاق په باب باندی د قبيلی د مجاز مستعار نه دی

### دکتاب لفظ تحقيق:

کتاب په لغت کي جمع ته وائي. او کتيبه لښکر ته وائي.اوپه اصطلاح د مؤلفينو کي ''ما يکون مشتملا علي مسائل مختلفة النوع متحدة الجنس''ته وائي لکه کتاب الطهارة. او بيا د طهارت دري انواع دي مناسبة ددی دوارو معنيو کي دادی چي کتيبة هم مشتمل وي په مختلف النوع فوج باندی دغه شان کتاب هم مشتمل وي په مختلف الانواع باندی.

### دفصل لفظ تحقيق:

فصل په لغت کي فرق ته وائي او په اصطلاح کي ''ما يکون مشتملاً علي مسائل متحدة الصنف ومختلفة الشخص والمناسبة بين المعنين واضحة.

**باب او کتاب او فصل کي فرق:** لکه څرنګه چي په امور حسيه په دي الفاظو اطلاق کيږي دا رنګي ددي اطلاق په امور معنويه باندي هم کيږي.

**کتاب:** هغه طائفي دکلام ته ونيلي شي چي په مسائل مختلفة الانواع او متحدة الجنس باندي مشتمل وي.

**باب:** دباب اطلاق په هغه طائفه دکلام کيږي کومه چي مسائل مختلفة الاصناف او متحدة النوع باندي مشتمل وي.

**فصل:** ما تشتمل علي مسائل الصنف الواحد.

**سوال:** دمصنف دپاره دلته دکتاب عنوان قائمول ښکار دي خکه چي راتلونکي مسائل مختلفة الانواع او متحدة الجنس دي.

**جواب:** دمصنف په نزد دابواب عنوان دکتاب دعنوان سره مترادف دي او همدارنګي دباب په جمع راوړلو کي دي خبري ته اشاره هم ده.

### وجه دتقديم دابواب الطهارت

په حقيقت کي امور شرعيه په دوه قسمه دي اول عبادات، دويم معاملات بيا معاملات په دوه قسمه دي (۱) معاملات محضه (۲) مرکب دعباداتو سره دي مګر عبادات دمعاملاتو نه اهم دي، اعمال په اصل کي په دوه قسمه دي (۱) حقوق الله (۲) حقوق العباد، مګر دحقوق العباد نه حقوق الله افضل دي کوم ته چي عبادات ونيلي شي، دعباداتو دافضل کيدو ډير وجوهات دي يوه وجه داده چي مقصد دتخليق انساني عبادات دي لکه چي په يو ايت کريمه کي وارد دي ''وماخلقت الجن والانس الا ليعبدون'' (الذاريات ۵۲) بله دا چي عبادت روباني غذاء ده او روح دجسم نه زيات اهم دي نو په دي وجه عبادات اهم شول بيا په عباداتو کي دټولو نه اهم

مونځ دي دافضل الاعمال کېدو په وجه . او د عماد الدين کېدو په وجه . نو په دي سبب د صلوٰة مسائل مقدم ذکر کول پکار وو . مګر چونکه صلوٰة د ارکان او شرائط مخصوصه نه عبارت دي او د مونځ په شرائطو کي اهم ترين شرط طهارت وو اودا قاعده ده چي شرط په مشروط مقدم وي نو پدي وجه امام ترمذي د خپل کتاب په اغاز او ابتداء کي د طهارت احکام راوړل پس همدا وجه ده چي جمهور محدثين طهارت په تمامو احکامو مقدم ذکر کوي ځکه چي شرط د موقوف عليه په درجه کي وي.

نوټ د متقدم الذکر تحقيق نه ربط په مينځ د مرکزي مضامينو د کتاب کي هم معلوم شو. کما لا يخفي علي من له ادني تدبر

**الطهارت** طهارت دباب نصر ينصر نه مصدر دي او د باب کرم نه هم. دطهارت معني پاك کېدل دي او دطهور معني پاکي ده او بفتح الطاء معني هغه ځيز دي په کوم چي پاکي راځي برابره خبره ده چي اوبه وي او که بل ځيز وي. طهارت نظافت ته وئيلي شي او دا په څلور قسمه دي (۱) هغه طهارت دکوم تعلق چي دبدن سره وي (۲) هغه طهارت چي تعلق يي دزړه سره وي بيا دا دواړه په دوه دوه قسمه دي (۱) ظاهري (۲) باطني

۱ طهارت قلبي ظاهري زړه لره دعقائد فاسده کفر او شرك نه پاکول تردي چي دماسوي الله نه بالکل پاك شي او هم ديته توحيد وئيلي شي

۲ طهارت قلبي باطني، يعني څوك چي خپل زړه دماسوي الله دخيالاتو نه بچ کړي دا رنګي بدني طهارت هم په دوه قسمه دي

۳ طهارت بدني ظاهري يعني نظافت البدن عن الحدث والخبث يعني بدن لره دحدث او ناپاکئ نه پاکول برابره خبره ده چي خبث مادي وي او که معنوي وي مادي خو ظاهر دي او معنوي لکه قهقهه کول په مونځ کي

۴ طهارت بدني باطني اعضاؤ لره دګناهونو نه بچ کول او دلته مقصد بالذات اولني دوه قسمونه دي اګر چي وروستي دوه قسمونه هم په دي کي راځي

عن رسول الله صلی الله علیه و سلم ددي عبارت مقصد دادي چي اصلي او راجح مقصد زمونږ احاديث مرفوعه بيانول دي . او احاديث موقوفه او مراسيل بيانول په ضمني طور سره کيږي ، او همدي مقصد ته امام ترمذي په دي عبارت کي اشاره کړي ده

*******

# ١ _ باب ما جاء لا تقبل صلاة بغير طهور
## دطهارت نه بغير مونځ نه قبليږي

١_ حَدَّثَنَا قُتَيْبَةُ بْنُ سَعِيدٍ حَدَّثَنَا أَبُو عَوَانَةَ عَنْ سِمَاكِ بْنِ حَرْبٍ ح و حَدَّثَنَا هَنَّادٌ حَدَّثَنَا وَكِيعٌ عَنْ إِسْرَائِيلَ عَنْ سِمَاكٍ عَنْ مُصْعَبِ بْنِ سَعْدٍ عَنِ ابْنِ عُمَرَ عَنِ النَّبِيِّ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ قَالَ لَا تُقْبَلُ صَلَاةٌ بِغَيْرِ طُهُورٍ وَلَا صَدَقَةٌ مِنْ غُلُولٍ قَالَ هَنَّادٌ فِي حَدِيثِهِ إِلَّا بِطُهُورٍ قَالَ أَبُو عِيسَى هَذَا الْحَدِيثُ أَصَحُّ شَيْءٍ فِي هَذَا الْبَابِ وَأَحْسَنُ وَفِي الْبَاب عَنْ أَبِي الْمَلِيحِ عَنْ أَبِيهِ وَأَبِي هُرَيْرَةَ وَأَنَسٍ وَأَبُو الْمَلِيحِ بْنُ أُسَامَةَ اسْمُهُ عَامِرٌ وَيُقَالُ زَيْدُ بْنُ أُسَامَةَ بْنِ عُمَيْرٍ الْهُذَلِيُّ. [1]

ترجمه دعبدالله ابن عمر رضي الله عنهما نه روايت دي چي رسول الله صلي الله عليه وسلم فرمانيلي دي مونځ بغير داودس نه نه قبليږي او نه صدقه دحرام مال نه قبليږي.

امام ترمذي وائي په دي باب کي دا حديث دباب دتمامو احاديثو نه زيات صحيح اوحسن دي، په دي باب کي دابو المليح دپلار نوم اسامه دي دارنګي په دي باب کي دابوهريره او انس رضي الله عنهما نه هم احاديث مروي دي.

**حل لغات:** طهارت دباب نصر ينصر نه مصدر دي او د باب کرم نه هم، دطهارت معني پاك کيدل دي او دطهور معني پاکي ده او بفتح الطاء معني هغه څيز دي په کوم چي پاکي راځي برابره خبره ده چي اوبه وي او که بل څيز وي.

الطهور طهر. طهورا وطهرا وطهارة دنصر او کرم نه مستعمل دي په معني دپاك کيدو صفت يي طاهر راځي او جمع يي اطهار راځي.

**تشريح: حدثنا:** ددي دلوستلو طريقه داده چي ددينه مخکي به "وبه قال" لولي او دا مخفف دي د "بالسند المتصل منا الي الامام الترمذي" نه ،په اول ځل دا پوره کلمات لوستل بهتر دي او بيا چي کله بار بار ضرورت راځي نو په "وبه قال" باندي اکتفاء کول پکار دي.

**سوال:** دسند په شروع کي تر دوه دري راويانو پوري اکثر حدثنا او اخبرنا صيغي راځي او بيا ددينه پس عنعني وي ددي څه وجه ده.

---

[1] _ صحيح مسلم/الطهارة ٢ (٢٢٣) سنن ابن ماجه/الطهارة ٢ (٢٤٢) (تحفة الأشراف : ٧٤٥٤) مسند احمد (٢٠٢، ٣٩، ٥١، ٥٧، ٧٣)

**جواب** ددي وجه داده چي په مقدمينو كي دتدريس رواج كم وي او دمتاخرينوپه دور كي دتدريس رواج زيات شو نو په دي وجه دتحديث او اخبار صيغو ته ضرورت راغو او دمتقدمينو په دور كي ديته ضروت نه وو

**قتيبة:** قتيبه دخراسان مشهور محدث دي او دامام مالك شاګرد دي او په اتفاق دعلماؤ ثقه راوي دي دابن ماجه نه علاوه نور اصحاب صحاح ورنه هم نقل دروايت كړي دي

**ابن** دا لفظ په كثرت سره داحاديثو په سندونو كي استعماليږي او په دي كي اكثر زده كونكو ته مشكل وي . دابن لفظ متعلق وصول دادي چي كله دري شرائط موجود شي نو دابن لفظ همزه به حذف كيږي اول شرط دادي چي كله همزه دعلمين مذكرين په مينځ كي واقع شي. دويم شرط دادي چي اولني ابن لفظ دبل دپاره صفت وي، دريم شرط دادي چي كله ابن لفظ مفرد وي. كچري په دي دري شرائطو كي يو شرط هم مفقودي شي نو همزه به ليكلي كيږي او كه دري واړه شرائط موجود وي نو همزه به نه ليكلي كيږي

قوله ح: دسند په مينځ كي عموما "ح" لفظ استعماليږي دا دتحويل علامه ده او تحويل دي ته وايي چي دكتاب مصنف كله دوه سندونه ذكركوي او ديو سند نه بل ته اوړي نو حا لفظ ددي تحويل دپاره العلامه وي لكه دي حديث كي چي يو سند دقتيبه دي او بل دحناد دي نو مصنف چي كله دقتيبه دسند نه دحناد سند ته اوړي نو په حا لفظ كي دي تحويل ته اشاره كوي او سماك بن حرب په دي اسناد كي مدارالاسناد دي.

## دتلاوت دسجدي دپاره اودس ضروري دي او كنه دي

سجده دتلاوت او مذاهب دفقهاؤ :

په دي كي دمجتهدينو اختلاف دي چي په دوه مذاهبو مشتمل دي. (١) دامام بخاري، عامر شعبي، ابن عليه. په نزد بغير داودس نه سجده دتلاوت اداء كول درست دي

دليل ددوي دليل په بخاري كي دعبدالله ابن عمر رضي الله عنهماروايت دي وفيه "سجد علي غير وضوء" يعني بغير د اودس نه يي سجده اوكړه.

ددي جواب دادي چي دبخاري په بعضي نسخو كي "سجد علي وضوء" الفاظ مذكور دي او دجمهور ائمه په نزد سجده دتلاوت هم بغير داودس نه مقبول نه ده

دليل ځكه چي سجده دتلاوت هم دمونځ پشان ده او همدا وجه ده چي په قران كريم كي دسجدي ذكر كولو سره تمام مونځ مراد كړي شوي دي دا دتسمية الكل باسم الجزء دقبيلي نه دي لكه "ومن الليل فسجد له" (محاسن ترمذي)

## بغير دطهارت نه عمدا دمونځ حكم

علامه شامي ليکلي دي چي ددي په حرمت دعلماؤ اتفاق دي البته په تکفير کي دعلماؤ اختلاف دي، امام نووي په شرح دمسلم کي ص ۱۱۹ کي ليکلي دي چي امام ابوحنيفه به د داسي کس تکفير کولو او دا نسبت امام ابوحنيفه ته غلط دي او بيا ورباندي رد هم کړي دي چي دتکفير مدار دضرورياتو د دين نه په انکار باندي دي او هغه دلته موجود نه دي

**مونځ دجنازي بغير د اودس نه جائز دي او کنه؟**

بي اودسه مونځ د جنازي او مذاهب دفقهاؤ

په دي کي دمجتهدينو اختلاف دي چي په دوه مذاهبو مشتمل دي. (۱) اول مذهب دامام بخاري، عامر شعبي، ابن عليه دي. ددوئ په نزد بغير د اودس نه مونځ د جنازي اداء کول درست دي . اود جمهورو فقهاؤ او محدثينو په نزد مونځ د جنازي هم د بي اودسئ په حالت کي درست نه دی، دا اختلاف په اصل کي په دي باندي باندي بناء دی چي د صلوة لفظ دلالت په سجدي د تلاوت او مونځ دجنازي باندي مخفي دی، مطلب دادی چي د کوم شي په معني کمي او زيادت راشي نو ظاهرا ورباندي دا لفظ دلالت نه کوي، لکه د سارق دلالت چي په نباش او طرار باندي ځنګه مخفي دی داسي دا هم دی، ځکه چي صلوة په شريعت کي د ارکان مخصوصه نوم دی مثلا رکوع، سجود او قعود وغيره نه صلوة عبارت دی. او په جنازه کي خو صرف قيام وي او په سجدي دتلاوت کي خو صرف سجده وي، نو په دي وجه په دي باندي د صلوة لفظ په اطلاق کي خفاء ده.

دجمهورو دطرفه دا جواب دی چي په جنازي د صلوة لفظ په اطلاق او دلالت کي هيڅ خفاء نشته ځکه چي رسول الله صلي الله عليه وسلم پخپله په جنازي د مونځ اطلاق کړی دی ، چنانچي ارشاد نبوي دی: "صلوا علي صاحبكم" و في رواية صلوا علي النجاشي" هر کله چي جنازه مونځ دي نو بيا داد طهارت نه بغير ځنګه درست کيدی شي؟ او تلاوت خود مونځ خصوصي رکن دی ددي دپاره هم تلاوت ضروري دی.

صاحب د محاسن ترمذي ليکلي دي چي امام بخاري ته ددي قول نسبت درست نه دی او چاچي ورته دا نسبت کړی دی هغوئ په دي نسبت کي غلط شوي دي، امام بخاري ته ددي قول د نسبت منشاء دهغه دا قول دی"انما هو دعاء كسائر الادعية" يعني جنازه هم د عامو دعاګانو پشان يوه دعاء ده اوددعا دپاره اودس ضروري نه وي، دامام بخاري اصل مقصود دا نه دی بلکه د جنازي د مونځ اصل ماهيت خودل يي مقصود دی چي صرف دعاء ده ځکه چي امام بخاري د نورو په نسبت د وضوء للجنازه په حق کي زيات متشدد وو ... (محاسن ترمذي، جزء ثاني دحديث: "ولا صدقة من غلول"تحقيق

**دتصدق بالمال الحرام حيثيت**

دشاه انورشاه کشمیري په نزد غلول په لغت کي سرقة الابل ته ونیلي شي او دفقهاؤ په اصطلاح کي غلول "سرقة من مال الغنیمت" ته ونیلي شي یعني دغنیمت مال قبل التقسیم پتول، بیا په دي کي توسیع اوشوه او په مطلق خیانت او حرام مال یي اطلاق شروع شو، که دقبول نه قبول اصابت مراد وي نو مطلب دحدیث به دا وي که ددي مال مالك معلوم وي نو څه صدقه کول یي درست نه دي بلکه اصل مالك ته یي واپس کول ضروري دي او که دقبول نه مراد قبول اجابت وي نو مطلب دحدیث به دا وي که دمال اصل مالك معلوم نه وي نو ددي صدقه کول واجب دي لیکن دصدقي په وخت کي به دثواب نیت نه وي بلکه دذمي دفارغولو نیت به یي وي او همدا دامام ابو حنیفه مذهب دي، یوځل دامام صاحب نه تپوس اوکړي شو چي تاسو دا حکم دکوم ځاي نه معلوم کړي دي نو امام صاحب په جواب کي اوونیل چي دعاصم بن کلیب دروایت نه چي یوي ښځي نبي کریم صلي الله علیه وسلم ته دخوراك دعوت ورکړو و دمالك داجازت نه بغیر یي چیلئ ذبح کړه نورسول الله صلي الله علیه وسلم حکم اوکړو چي دا صدقه کړئ او په قیدیانو یي اوخورویئ.

**اعتراض:** دفقهاؤ دا قول چي دا مال واجب التصدق دي دحدیث الباب نه مخالف دي ځکه چي په دي کي ولاصدقة من مال الغلول راغلي دي چي دحرام مال نه صدقه درسته نه ده او همدارنګي ظاهرا دقران نه هم مخالف دي ځکه چي الله تعالي فرمائیلي دي "یا ایها الذین امنوا انفقوا من طیبات ما کسبتم "(البقره ۲۷۷) په دي ایت کي دطیب مال دانفاق حکم راغلي دي او حرام مال طیب نه وي؟

**جواب:** دحرام مال دصدقه کولو دوه حیثیترنه دي (۱) حیثیت دادي چي په نیت داجر او ثواب وي او دویم حیثیت دادي چي په نیت دځان خلاصولو وي مونږ وایو چي دحدیث مدلول دادي چي د ثواب په نیت د حرام مال صدقه کول جائز نه دي او دفقهاؤ دقول مدلول دادي چي دځان خلاصولو په نیت حرام مال صدقه کول جائز دي.

### دحدیث دراوي عبدالله بن عمر رضي الله عنه حالات

نوم عبدالله کنیه ابو عبدالرحمان او دپلار نوم یي امیر المومنین حلیفه ثاني عمر بن الخطاب رضي الله عنهما او دمور نوم یي زینب بنت مظعون وو.

عبدالله دخپل پلار سره مسلمان شوی وو او د هغه سره یي دمکي نه مدیني ته هجرت کړی وو په غزوه بدر او احد کي ورته دماشوم توب په وجه دشرکت کولو اجازت نه وو ملاؤ شوی (طبقات ابن سعد).

په غزوه خندق، خیبر ، بیعة الرضوان، فتح مکه ، حنین ، طائف، حجة الوداع ، تبوك کي یي درسول الله صلي الله علیه وسلم سره ملګرتیا کړي ده، دفتني نه به ډیر لري اوسیدو دیزید سره

يې بيعت اوكړو او ويې فرمائيل كچرې دا خير وي نو مونږ په دې باندې راضي يو او كه شر وي نو مونږ صبر اوكړو (طبقات ابن سعد).

ابن عمر رضي الله عنهما به خلقو دعلم او عمل مجمع البحرين ګڼړل (تذكرة الحفاظ ١ ـ ٣٥).

عثمان رضي الله عنه ورته دقضا عهده پيش كول اوغوښتل ليكن هغه معذرت اوكړو په ملكي انتظام كې به يې بلكل شركت نه كولو.

په ژوندګۍ كې يې يو څو مخصوص عادتونه وو (١) اتباع سنت (٢) خشية الهي (٣) عبادت او رياضت (۴) دمشتبهاتو نه اجتناب (۵) زهد او تقوي (۶) دمسكينانو سره همدردي (٧) سخاوت (٨) مساوات (٩) دامت داختلاف نه بچ كيدل.

دقران كريم سره يې خصوصي مينه وه او په قران كې به يې ډير سوچ او فكر كولو ددې اندازه ددينه لګيدې شي چې صرف سورة بقره يې په څوارلس كلونو كې زده كړې وه (مؤطا امام مالك).

دقران كريم نه پس دحديث نبوي صلي الله عليه وسلم درجه ده نو په دې وجه دابن عمر رضي الله عنهما داحاديث نبوي سره ډير زيات شوق وو كله چې به دغير حاضرۍ په وجه ده نه دنبي كريم صلي الله عليه وسلم بعضې اقوال او افعال تير شوي وو نو وروسته به يې دهغې په باره كې دخلقو نه معلومات حاصلولو او بيابه يې زياتول (اصابه ۴/١٠٩).

وفات: په مدينه كې دوفات كيدو ډير شوق مند وو او دا يې غوښتل چې كومې زمكې ته مې هجرت كړې دې هم دلته وفات شم (طبقات ابن سعد ۴/١٣٨).

هغه دا وصيت كړې وو كچرې زه په مكه كې مړ شوم نو دحرم نه به مې بهر دفن كوئ نو دې په مكه كې وفات شو او دحرم نه بهر په قبرستان كې دفن كړې شو او حجاج بن يوسف وربانده جنازه اوكړه (طبقات ابن سعد).

مرويات: دده دمروياتو شمير ١٢٣٠ دې چې ١٧٠ پكې متفق عليه دې او اته دبخاري دې او درې صرف په مسلم كې دې (تهذيب الكمال).

*************

## ٢ ـ باب ماجاء في فضل الطهور

## دپاكۍ دفضيلت بيان

٢ ـ حَدَّثَنَا إِسْحَقُ بْنُ مُوسَى الأَنْصَارِيُّ حَدَّثَنَا مَعْنُ بْنُ عِيسَى الْقَزَّازُ حَدَّثَنَا مَالِكُ بْنُ أَنَسٍ ح و حَدَّثَنَا قُتَيْبَةُ عَنْ مَالِكٍ عَنْ سُهَيْلِ بْنِ أَبِي صَالِحٍ عَنْ أَبِيهِ عَنْ أَبِي هُرَيْرَةَ قَالَ قَالَ رَسُولُ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ إِذَا تَوَضَّأَ الْعَبْدُ الْمُسْلِمُ أَوِ الْمُؤْمِنُ فَغَسَلَ وَجْهَهُ خَرَجَتْ مِنْ وَجْهِهِ كُلُّ خَطِيئَةٍ نَظَرَ

إِلَيْهَا بِعَيْنَيْهِ مَعَ الْمَاءِ أَوْ مَعَ آخِرِ قَطْرِ الْمَاءِ أَوْ نَحْوَ هَذَا وَإِذَا غَسَلَ يَدَيْهِ خَرَجَتْ مِنْ يَدَيْهِ كُلُّ خَطِيئَةٍ بَطَشَتْهَا يَدَاهُ مَعَ الْمَاءِ أَوْ مَعَ آخِرِ قَطْرِ الْمَاءِ حَتَّى يَخْرُجَ نَقِيًّا مِنَ الذُّنُوبِ قَالَ أَبُو عِيسَى هَذَا حَدِيثٌ حَسَنٌ صَحِيحٌ وَهُوَ حَدِيثُ مَالِكٍ عَنْ سُهَيْلٍ عَنْ أَبِيهِ عَنْ أَبِي هُرَيْرَةَ وَأَبُو صَالِحٍ وَالِدُ سُهَيْلٍ هُوَ أَبُو صَالِحٍ السَّمَّانُ وَاسْمُهُ ذَكْوَانُ وَأَبُو هُرَيْرَةَ اخْتُلِفَ فِي اسْمِهِ فَقَالُوا عَبْدُ شَمْسٍ وَقَالُوا عَبْدُ اللَّهِ بْنُ عَمْرٍو وَهَكَذَا قَالَ مُحَمَّدُ بْنُ إِسْمَعِيلَ وَهُوَ الأَصَحُّ قَالَ أَبُو عِيسَى وَفِي الْبَابِ عَنْ عُثْمَانَ بْنِ عَفَّانَ وَثَوْبَانَ وَالصُّنَابِحِيِّ وَعَمْرِو بْنِ عَبَسَةَ وَسَلْمَانَ وَعَبْدِ اللَّهِ بْنِ عَمْرٍو وَالصُّنَابِحِيُّ الَّذِي رَوَى عَنْ أَبِي بَكْرٍ الصِّدِّيقِ لَيْسَ لَهُ سَمَاعٌ مِنْ رَسُولِ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ وَاسْمُهُ عَبْدُ الرَّحْمَنِ بْنُ عُسَيْلَةَ وَيُكْنَى أَبَا عَبْدِ اللَّهِ رَحَلَ إِلَى النَّبِيِّ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ فَقُبِضَ النَّبِيُّ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ وَهُوَ فِي الطَّرِيقِ وَقَدْ رَوَى عَنِ النَّبِيِّ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ أَحَادِيثَ وَالصُّنَابِحُ بْنُ الأَعْسَرِ الأَحْمَسِيُّ صَاحِبُ النَّبِيِّ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ يُقَالُ لَهُ الصُّنَابِحِيُّ أَيْضًا وَإِنَّمَا حَدِيثُهُ قَالَ سَمِعْتُ النَّبِيَّ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ يَقُولُ إِنِّي مُكَاثِرٌ بِكُمُ الأُمَمَ فَلَا تَقْتَتِلُنَّ بَعْدِي.(1)

**ترجمه**: دابوهریره رضي الله عنه نه روایت دی چي رسول الله صلي الله علیه وسلم فرمائیلي دي مسلمان بنده یا مومن بنده چي اودس کوي نو چي مخ اوینځي د مخ نه یې داوبو سره یا داوبو داخري ځاڅکي سره هغه ټول ګناهونه لاړ شي کوم چي دده سترګو کړي وي. اوکه داسي یې نور څه اوفرمائیل. او چي کله ووینځي لاسونه خپل نو دده لاسونه دهغه ګناه نه پاك شي چي ده په لاسو کړي وي تردي چي دګناهونو نه پاك صاف پاتي شي.امام ترمذي وايي چي دا حدیث حسن صحیح دی. په دي باب کي د عثمان بن عفا. ثوبان. عمرو بن عبسه. سلمان. او عبدالله بن عمرو رضي الله عنهم نه هم احادیث وارد دي، صنابحي دا روایت د ابو بکر رضي الله عنه نه اوریدلی دی دده سماع د رسول الله صلي الله علیه وسلم نه ثابت نه دد . دده نوم عبد الرحمن بن عسیله دی او کنیه یې ابو عبد الله ده چي د رسول الله د ملاقات دپاره یې سفر کولو . دی لا په لاره کي وو چي رسول الله صلي الله علیه وسلم وفات شو. موصوف د رسول الله نه د متعددو روایاتو نقل کړی دی . او صنابحي بن اعسر احمسي مشهور صحابي دی هغه ته هم صنابحي ونیلي شي، هغه دهغه روایت دی چي ما د رسول الله صلي الله علیه وسلم نه اوریدلي دي چي فرمائیل یې: زه به په تاسو باندي په نورو امتونو فخر کوم خو تاسو به زما نه پس هیڅکله پخپل مینځ کي یو بل لره نه قتل کوئ.

1_ صحیح مسلم/الطهارة۱۱(۲۴۴)(تحفة الأشراف: ۱۲۷۴۲)موطا امام مالک/الطهارة۶(۳۱).

Scanned with C

**لغات**: بطشتها بطش بطشا دضرب او نصر نه په معني دنيولو دي
نقيا نقي نقاء دسمع نه په معني دپاکولو اوخالص کيدو دي.
**تشريح**: العبد المسلم او المومن. يعني کله چي کوم مسلمان يا مومن اودس کوي . او. دراوي شك ظاهروي.

"خرج من وجهه کل خطيئة" دقاضي ابوبکر ابن عدي قول دی چي تمام گناهونه معاف کيږي تقدير دعبارت داسي دی "خرج من وجهه کل خطيئة" يعني دهر مخ نه دگناه اثر لري کيږي لکه چي په يو روايت کي راغلي دي کله چي بنده کومه گناه کوي نو دهغه په زړه کي يو تور داغ جوړ شي څومره چي دی په گناه کي مخکي خي نو هغه هومره دا داغ زياتيږي نو د اودس په ذريعه دا اثر ختميږي.
لکه چي د عبد الوهاب شعراني په حواله دامام ابوحنيفه دا خبره منقول ده چي يوکس يي دغسل په کولو وليدلو نو ورته يي وويل چي زنا مه کوه څکه چي دغسل په اوبو کي دي دزنا اثر ښکاري چي راروان دي.
نظر اليها بعينه. يعني کومه گناه چي يي په سترگو کړي وي. په دي روايت کي صرف دسترگي ذکر دی ليکن په نورو روايتونو کي دپوزي او خولي ذکر هم دی .
حتي يخرج نقياً من الذنوب. يعني تردي چي دگناهونو نه بالکل پاك صاف شي

### ايا داودس په وجه متوضي دصغيره او کبيره دواړوگناهونو نه پاکيږي؟

امام نووي وائي چي په اودس صرف صغيره گناهونه معاف کيږي کبيره نه معاف کيږي څکه چي ددي دپاره توبه ويستل شرط دي بعضي علماؤ ددينه يو څو جوابونه کړي دي
صاحب دالکوکب الدري وائي ددي مطلب دادی چي ديو مسلمان دپاره دا بعيده خبره نه ده چي دی دي مرتکب دکبيره شي که دی کبيره گناه اوکړي نو ترڅو چي يي توبه ويستلي نه وي ارام ورته نه راخي دشيخ الهند قول هم ددي هم معني دي. ممکن ده چي په دي حديث کي دعبد ذکر هم په دي وجه شوی وي ليکن بعضي علماؤ دلته سکوت اختيار کړی دی.
ابن حجر وائي چي دلته دمعاف کيدو نه صغيره گناهونه مراد دي څکه چي په يو بل روايت کي راغلي دي "مالم تؤتي کبيرة" يعني ترڅوپوري چي يي کبيره گناهونه نه وي کړي لهذا هلته دا قيد موجود دی

### دحديث دراوي ابو هريره رضي الله عنه دژوندگئ مختصر حالات:

نوم عمرو کنيه ابوهريره او دپلار نوم يي عامر وو خانداني نوم يي عبدالشمس وو. کله چي رسول الله صلي الله عليه وسلم خيبر ته تلی وو نو په هغه وخت کي مديني ته دوفد سره داسلام

قبلولو دپاره حاضر شو دا وفد خيبر ته ورسيدو او هلته مسلمان شو (طبقات ابن سعد) درسول الله سره په اسلام باندي دبيعت كولو نه پس يې هيڅ كله درسول الله لمن پريخودي نه ده عمر رضي الله عنه دبحرين عامل مقرر كړى دى ابوهريره رضي الله عنه دعلم ډير شوقي وو عموما به خلقو درسول الله نه ډيرو سوالاتو كولو نه ځان ساتلو ليكن ابوهريره به په جرئت سره تپوسونه كول همداوجه ده چي په كتابونو كي دده د رواياتو شمير زيات دى . بعضي كسان دده په كثرت روايت كي په شك كي پراته و ونو په دي وجه به ده ونيل چي زما مهاجرين وروڼه په بازارونو كي كاروبارونه كوي او انصار پخپلو پټيو كي مصروف وي زه يو محتاج سړى وم زما ټول وخت به درسول الله په صحبت كي په ښكلي شان سره تيريدو ، طبقات ابن سعد ٥٢/٢).

اوصاف: ابوهريره رضي الله عنه په يو څو اوصافو مشهور دى (١) دقيامت نه ويريدل په دومره اندازه كي چي بيهوش به شو (٢) په عبادت كي رياضت كول (٣) درسول الله سره محبت كول (٤) دخپلي مور سره محبت كول (٥) او درسول الله دخاندان سره محبت كول (٦) سادګي (٧) فياضي.

وفات: دوليد په زمانه كي په مدينه كي بيمار شو او هم دلته وفات شو وليد ورباندي دجنازي مونځ اوكړو اودعثمان رضي الله عنه خامنو په خپلو اوګو ددفن كولو دپاره بقيع ته ورسولو او هلته اكابر صحابه موجود وو (طبقات ابن سعد) دوفات كيدو په وخت كي عمر يې اته اويا كاله وو.

مرويات: دده دمروياتو شمير ٥٣٧٤ دى په دي كي ٣٢٥ په بخاري او مسلم دواړو كي دي او صرف ٧٩ په بخاري كي دي او صرف ٩٣ په مسلم كي دي (تهذيب الكمال).

**********************

## ٣_ باب ما جاء ان مفتاح الصلوٰة الطهور

## باب دى په بيان ددي كي چي پاكي د مونځ چابي ده

٣_ حَدَّثَنَا قُتَيْبَةُ وَهَنَّادٌ وَمَحْمُودُ بْنُ غَيْلَانَ قَالُوا حَدَّثَنَا وَكِيعٌ عَنْ سُفْيَانَ ح و حَدَّثَنَا مُحَمَّدُ بْنُ بَشَّارٍ حَدَّثَنَا عَبْدُ الرَّحْمَنِ بْنُ مَهْدِيٍّ حَدَّثَنَا سُفْيَانُ عَنْ عَبْدِ اللَّهِ بْنِ مُحَمَّدِ بْنِ عَقِيلٍ عَنْ مُحَمَّدِ بْنِ الْحَنَفِيَّةِ عَنْ عَلِيٍّ عَنِ النَّبِيِّ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ قَالَ مِفْتَاحُ الصَّلَاةِ الطُّهُورُ وَتَحْرِيمُهَا التَّكْبِيرُ وَتَحْلِيلُهَا التَّسْلِيمُ قَالَ أَبُو عِيسَى هَذَا الْحَدِيثُ أَصَحُّ شَيْءٍ فِي هَذَا الْبَابِ وَأَحْسَنُ وَعَبْدُ اللَّهِ بْنُ مُحَمَّدِ بْنِ عَقِيلٍ هُوَ صَدُوقٌ وَقَدْ تَكَلَّمَ فِيهِ بَعْضُ أَهْلِ الْعِلْمِ مِنْ قِبَلِ حِفْظِهِ قَالَ أَبُو عِيسَى و سَمِعْت مُحَمَّدَ بْنَ إِسْمَعِيلَ يَقُولُ كَانَ أَحْمَدُ بْنُ حَنْبَلٍ وَإِسْحَقُ بْنُ إِبْرَاهِيمَ وَالْحُمَيْدِيُّ يَحْتَجُّونَ بِحَدِيثِ

عَبْدِ اللهِ بْنِ مُحَمَّدِ بْنِ عَقِيلٍ قَالَ مُحَمَّدٌ وَهُوَ مُقَارِبُ الحَدِيثِ قَالَ أَبُو عِيسَى وَفِي البَابِ عَنْ جَابِرٍ وَأَبِي سَعِيدٍ[1]

محمد بن حنفيه دعلي رضي الله عنه په حواله دنبي كريم صلي الله عليه وسلم دا فرمان نقل كوي چي اودس دمونځ كنجي ده او دا دتكبير تحريمه په ذريعه شروع كيږي او دسلام په ګرځولو ختميږي.

امام ترمذي وائي په دي باب كي دا حديث دټولو نه زيات صحيح او حسن دي، عبدالله بن محمد بن عقيل صدوق دي مګر بعضي اهل علمو دهغه دحافظي په وجه په هغه باندي كلام كړي دي ما دمحمد بن اسماعيل بخاري نه دا اوريدلي ووچي احمد بن حنبل. اسحاق بن ابراهيم بن راهويه،حميدي دعبدالله بن محمد بن عقيل په روايت استدلال كوي او هغه متقارب الحديث دي، په دي باب كي دجابر او ابوسعيد خدري رضي الله عنهما نه هم احاديث وارد دي.

**تشريح:** سفيان: په دي نوم دوه راويان مشهور دي يو سفيان ثوري دي او بل سفيان بن عيينه دي دواړه هم عصر دي او تقريبا ددواړو په استاذانو او شاګردانو كي هم اشتراك دي، په دواړو كي ما به الامتياز صرف نسبت يا نسب دي او په كوم مقام كي نسبت يا نسب مذكور نه وي هلته په دواړو كي فرق كول مشكل وي لكه په دي مقام كي بعضي علماؤ دتحقيق نه پس دمعجم طبراني په يو روايت دا ثابته كړي ده چي دلته سفيان ثوري مراد دي خكه چي هلته ثوري قيد مذكور دي.

"وهوصدوق" دا لفظ دتعديل دالفاظو نه دي او دا دتعديل ادني درجه ده ددي مطلب دا وي چي دا راوي پخپل فعل او قول كي عادل دي ليكن ناقص الضبط دي لكه چي په دي مقام كي دعبدالله بن محمد بن عقيل په باره كي چي صدوق ونيلي شوي دي دا راوي پخپل قول او فعل كي عادل دي ليكن دحافظي په اعتبار ضعيف دي دلته امام ترمذي دامام بخاري قول نقل كړي دي چي امام احمد ، امام اسحاق او امام حميدي به دعبدالله په روايت استدلال كولو.

وهو مقارب الحديث: امام بخاري عبدالله بن محمد مقارب الحديث ګرځولي دي. دا لفظ هم دتعديل په الفاظو كي په شپږمه درجه شميرلي شوي دي دا په دوه قسمه لوستلي كيږي (۱) مقارب بكسر الراء په صيغي داسم فاعل سره دمفاعلي باب نه دي دي صورت كي به مطلب دا وي "حديثه يقارب حديث غيره" او همدا راجح صورت دي (۲) مقارب بفتح الراء په صيغي

[1] ـ تفرد به المؤلف رحمه الله.

داسـم مفعول سره دباب مفاعلي نه په دي صورت كي به مطلب دا وي حديث غيره يقارب حديثه، دي حديث سره ديو څو مسائلو تعلق دي چي په مختصر طور يي ذكر كوو:
په دي مسئله كي دعلماؤ اختلاف دي چي تكبير تحريمه شرط دمونځ دي او كه شطر دمونځ دي په دي كي دوه مذاهب دي (١) دامام ابو حنيفه په نزد تكبير تحريمه شرط دمونځ دي او قاعده داده چي شرط دشيء ، دشيء نه خارج وي او په مذكوره حديث يي استدلال كړي دي وفيه "تحريمها التكبير" په دي روايت كي تحريم مضاف دي او ها ضمير مضاف اليه دي چي راجع دي مونځ ته او دتحريم نه مراد تكبير دي او قاعده داده چي مضاف غير وي دمضاف اليه نه ددينه معلومه شوه چي تكبير تحريمه شرط دمونځ دي.
(٢) مذهب دائمه ثلاثه دي او ددوئ په نزد تكبير تحريمه شطر دمونځ دي ددوئ دليل دادي دمونځ دپاره چي كوم شرائط دي مثلا طهارت دجسم، طهارت دلباس ، طهارت دمكان، استقبال دقبلي دمونځ هم دا شرائط دي دتكبير تحريمه دپاره ددينه معلومه شوه چي تكبير تحريمه دمونځ ركن او شرط دي.
جواب: دتكبير تحريمه دپاره ددي شرائطو ثبوت په دي وجه نه دي چي تكبير تحريمه شرط دمونځ دي بلكه ددي دپاره دي چي دا شرائط دتكبير تحريمه دپاره داتصال په وجه دي لكه چي داقامت دپاره طهارت شرط دي دكمال اتصال په وجه او حال دادي چي بالاتفاق اقامت ركن دمونځ نه دي
دويمه مسئله: په دي مسئله كي هم اختلاف دي چي تكبير تحريمه په كوم لفظ اداء كيږي په دي كي څلور مذاهب دي (١) مذهب دطرفينو دي ددوئ په نزد په هر هغه لفظ تكبير تحريمه جائز دي كوم چي دالله تعالي په عظمت دلالت كوي ددوئ اولني دليل د قران كريم دا ايت كريمه دي "وذكر اسم ربه فصلي" (سورة الاعلي) دلته دذكر نه مراد تكبير تحريمه دي او ذكر هر هغه كلمي ته ونيلي شي كومه چي دالله تعالي په عظمت دلالت كوي معلومه شوه چي تكبير تحريمه په هر هغه لفظ اداء كيږي كومه چي دالله تعالي په عظمت دلالت كوي
ددوئ دويم دليل روايت دمصنف ابن ابي شيبه دي چي دابو العاليه نه سوال اوكړي شو چي انبياء عليهم السلام به خپل مونځونه دكوم لفظ نه شروع كول؟ نو هغوئ ورته په جواب كي اوونيل تسبيح، تحميد ، تهليل، تكبيرسره ددينه هم معلومه شوه چي په هر هغه لفظ تكبير تحريمه جائز دي كوم چي دالله په عظمت دلالت كوي
دويم مذهب دامام ابو يوسف دي دهغه په نزد تكبير تحريمه په څلورو الفاظو جائزدي (١) الله اكبر (٢) الله الاكبر (٣) الله كبير (۴) الله الكبير، ځكه چي د الله اكبر او الله كبير معني يوه ده او په الف لام هيڅ فرق نه پريوځي.

دريم مذهب دامام شافعي دي دهغه په نزد تكبير تحريمه صرف په دوه الفاظو اداء كيږي (۱) الله اكبر (۲) الله الاكبر

څلورم مذهب دامام مالك او امام احمد دي ددوئ په نزد تكبير تحريمه صرف په الله اكبر جائزدي

دليل: ددوئ دري واړو مذاهبو استدلال زير بحث حديث دي چي "تحريمها التكبير " څكه چي په دي كي خبر معرف باللام دي او قاعده داده خبر چي كله معرف باللام وي نو دحصر فائده وركوي لكه مفتاح الصلوة الطهور كي دحصر تقاضا داده چي دتكبير دپاره ك . ب. ر. ماده ضروري ده.

جواب: حديث الباب ظاهرا دقراني ايت "وذكر اسم ربه فصلي" سره معارض دي او دا حديث دخبر واحد كيدو په وجه قطعي الثبوت نه دي لهذا ددوئ په مينځ كي به تطبيق كولي شي او هغه دادي چي فرضيت دتكبير تحريمه به په كتاب الله سره ثابت شي او وجوب به يي ثابت شي په حديث رسول سره.

دي حديث سره دريمه اختلافي مسئله دا متعلق ده چي سلام لفظ دمونځ په اخر كي وئيل فرض دي او كنه په دي مسئله كي دوه مذاهب دي (۱) مذهب دامام ابو حنيفه دي دده په نزد په لفظ دسلام مونځ ختمول فرض نه دي بلكه خروج بفعل المصلي فرض دي او دليل يي حديث داعرابي مسيء الصلاة دي چي نبي كريم صلي الله عليه وسلم خلاد بن رافع رضي الله عنه ته به دمونځ تعليم وركولو مګر دسلام تعليم يي ورنكړو ددينه معلومه شوه چي سلام لفظ فرض نه دي او كچري فرض وي نو رسول الله به ضرور په دي موقع خلاد ته دسلام تعليم وركړي وو

دامام صاحب دويم دليل په ابو داود كي دعبدالله بن مسعود رضي الله عنه روايت دي چي هغه ته رسول الله صلي الله عليه وسلم تشهد خودلي دي او بيا يي ورته ددينه پس اوفرمائيل "اذا قلت هذا او فعلت هذا فقد تمت صلاتك" ددينه معلومه شوه چي كه سلام لفظ فرض وي نو په تشهد به مونځ نه مكمل كيدو.

مګر دائمه ثلاثه په نزد سلام لفظ فرض دي او دليل يي حديث الباب دي چي "تحليلها التسليم" دي په دي كي خبر معرف باللام دي كوم چي مفيد للحصر دي معني به دا وي چي دمونځ نه خارجيدل په لفظ دسلام پوري خاص دي

جواب: ددي روايت نه استدلال كول درست نه دي څكه چي ددي په سند كي عبدالله بن محمد بن عقيل راوي دي او هغه متكلم فيه دي

دويم جواب دادي چي په دي روايت كي حصر حقيقي مراد نه دي بلكه حصر ادعائي مراد دي لكه "لافتي الا علي" كي چي حصر ادعائي دي

## دعلي رضي الله عنه حالات

نوم علي ابو الحسن او ابو تراب يي كنيه او حيدر يي لقب دى دپلار نوم يي ابو طالب او دمور نوم يي فاطمه وه علي رضي الله عنه نجيب الطرفين هاشمي دو او درسول الله صلي الله عليه وسلم د حقيقي ترد خوي وو علي رضي الله عنه دبعثت نبوي نه لس كاله مخكي پيدا شوى دى تقريبا دلسو كالو په عمر كي په اسلام مشرف شوى دى دبعضو قول دى چي دخديجه رضي الله عنها نه پس ابوبكر رضي الله عنه مسلمان شو او دبعضو قول دى چي دخديجي نه پس علي رضي الله عنه مسلمان شوى دى په مكه كي يي ديارلس كاله درسول الله صلي الله عليه وسلم سره تير كړل او بيا دعثمان رضي الله عنه دشهادت نه په دريمه ورځ ۲۱ ذي الحجه د دوشنبي په ورځ په مسجد نبوي كي خليفه مقرر كړى شو (طبري).

وفات: ۴۰هجري كي دسحر دمونځ په امامت كي مشغول وو چي ابن ملجم وربانديي دتوري يو مضبوط وار اوكړو چي سر يي زخمي شو خلقو ابن ملجم اونيولو (طبري).

بيا په همدي ورځ په شلم رمضان دهجرت په ۴۰كال ددنيا نه رخصت شو.

دماشوموالي نه واخله دوفات كيدو پوري تقريبا ديرشت كاله يي دنبي كريم صلي الله عليه وسلم خدمت كړى دى ليكن داحاديثو په نقل كولو كي دډير احتياط مالك وو د علم حديث په كتابونو كي دده روايات ډير كم موندلى شي چي ټوټل ورنه ۵۸۶روايات منقول دي چي شل په دي كي متفق عليه دي نهه صرف په بخاري كي دي لس په مسلم كي دي او باقي اصحاب السنن ذكر كړي دي.

***************

٤ـ حَدَّثَنَا أَبُو بَكْرٍ مُحَمَّدُ بْنُ زَنْجَوَيْهِ الْبَغْدَادِيُّ وَغَيْرُ وَاحِدٍ قَالَ حَدَّثَنَا الْحُسَيْنُ بْنُ مُحَمَّدٍ حَدَّثَنَا سُلَيْمَانُ بْنُ قَرْمٍ عَنْ أَبِي يَحْيَى الْقَتَّاتِ عَنْ مُجَاهِدٍ عَنْ جَابِرِ بْنِ عَبْدِ اللَّهِ رَضِيَ اللَّهُ عَنْهُمَا قَالَ قَالَ رَسُولُ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ مِفْتَاحُ الْجَنَّةِ الصَّلَاةُ وَمِفْتَاحُ الصَّلَاةِ الْوُضُوءُ.[1]

**ترجمه:** دجابر بن عبدالله رضي الله عنه بيان دي چي رسول الله صلي الله عليه وسلم فرمائيلي دي مونځ دجنت چابي ده او دمونځ چابي اودس دي.

**لغات:** الوضوء په ضمي دواو سره داودس اوبه او په فتح دواو سره اودس ته وئيلي شي.

***************

## د حديث دراوي جابر رضي الله عنه مختصر حالات

[1] ـ تفرد به المؤلف (تحفة الأشراف: ٢٥٧٦) وانظر مسند احمد (٣/٣٤٠)

**نوم او نسب:** دده نوم جابر او كنيه ابوعبدالله وه او دقبيله خزرج سره يي تعلق وو دپلار نوم يي عبدالله او دمور نوم يي نسيبه وو دده نيكه عمرو دخپل خاندان سردار وو، په عقبه ثانيه كي يي دخپلي مور سره اسلام راوړو او دغزوه احد نه پس په تمامو غزواتو كي شريك شوى دى چي رسول الله صلي الله عليه وسلم سره يي په نولسو غزواتو كي شركت كړى دى (مسند احمد ۳۲۹/۳).

په ۳۷هجري كي دعلي او معاويه رضي الله عنهما په جنګ كي جابر رضي الله عنه دعلي رضي الله عنه دطرف نه اوجنګيدو (اسد الغابه ۲۵۷/۲).

جابر رضي الله عنه دنبي كريم صلي الله عليه وسلم نه پس دنورو خلقو نه هم ديني علم زده كړى دى چي په هغوئ كي صديق اكبر، عمر فاروق، ابوعبيده،، طلحه، معاذ بن جبل، خالد بن وليد، ابوهريره، ابوسعيد خدري، عبدالله بن انيس رضي الله عنهم شامل دي

يو خل معلومه شوه چي دعبدالله بن انيس سره يو حديث دى او هغه په شام كي اوسيږي نو ما يو اوښ واخستو او شام ته روان شوم او دهغه نه مي هغه حديث واوريدو (المفرد بخاري).

دده شاګردان هم كافي ډير دي مثلا امام باقر، بدالله بن منكدر، حسين بن محمد بن حنفيه ليكن په اخري عمر كي نابينا شو (بخاري ۵۹۸/۲).

**وفات:** دحجاج بن يوسف په زمانه كي د ۹۴ كلونو په عمر كي وفات شو او وصيت يي اوكړو چي حجاج به په ما باندي جنازه نه كوي نو په دي وجه دعثمان رضي الله عنه خوي ابان ورباندي جنازه اوكړه او په بقيع كي دفن كړى شو ليكن دبعضو قول دى چي حجاج ورباندي جنازه كړي ده (تهذيب التهذيب).

**مرويات:** دده دمروياتو تعداد ۱۵۴۰ په احاديثو بيانولو كي به يي ډير احتياط كولو.

**********************

## ٤_ باب ما يقول اذا دخل الخلاء

## بيت الخلاء ته دداخليدو وخت كي كوم كلمات وئيل پكاردي

٥_ حَدَّثَنَا قُتَيْبَةُ وَهَنَّادٌ قَالَا حَدَّثَنَا وَكِيعٌ عَنْ شُعْبَةَ عَنْ عَبْدِ الْعَزِيزِ بْنِ صُهَيْبٍ عَنْ أَنَسِ بْنِ مَالِكٍ قَالَ كَانَ النَّبِيُّ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ إِذَا دَخَلَ الْخَلَاءَ قَالَ اللَّهُمَّ إِنِّي أَعُوذُ بِكَ قَالَ شُعْبَةُ وَقَدْ قَالَ مَرَّةً أُخْرَى أَعُوذُ بِكَ مِنَ الْخُبْثِ وَالْخَبِيثِ أَوْ الْخُبُثِ وَالْخَبَائِثِ قَالَ أَبُو عِيسَى وَفِي الْبَابِ عَنْ عَلِيٍّ وَزَيْدِ بْنِ أَرْقَمَ وَجَابِرٍ وَابْنِ مَسْعُودٍ قَالَ أَبُو عِيسَى حَدِيثُ أَنَسٍ أَصَحُّ شَيْءٍ فِي هَذَا الْبَابِ وَأَحْسَنُ وَحَدِيثُ زَيْدِ بْنِ أَرْقَمَ فِي إِسْنَادِهِ اضْطِرَابٌ رَوَى هِشَامٌ الدَّسْتُوَائِيُّ وَسَعِيدُ بْنُ أَبِي عَرُوبَةَ عَنْ قَتَادَةَ

فَقَالَ سَعِيدٌ عَنْ الْقَاسِمِ بْنِ عَوْفٍ الشَّيْبَانِيِّ عَنْ زَيْدِ بْنِ أَرْقَمَ و قَالَ هِشَامٌ الدَّسْتُوَائِيُّ عَنْ قَتَادَةَ عَنْ زَيْدِ بْنِ أَرْقَمَ وَرَوَاهُ شُعْبَةُ وَمَعْمَرٌ عَنْ قَتَادَةَ عَنْ النَّضْرِ بْنِ أَنَسٍ فَقَالَ شُعْبَةُ عَنْ زَيْدِ بْنِ أَرْقَمَ وَقَالَ مَعْمَرٌ عَنْ النَّضْرِ بْنِ أَنَسٍ عَنْ أَبِيهِ عَنْ النَّبِيِّ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ قَالَ أَبُو عِيسَى سَأَلْتُ مُحَمَّدًا عَنْ هَذَا فَقَالَ يُحْتَمَلُ أَنْ يَكُونَ قَتَادَةُ رَوَى عَنْهُمَا جَمِيعًا. [1]

**ترجمه** دانس رضي الله عنه بيان دي فرمائي كله چي به رسول الله صلي الله عليه وسلم بيت الخلاء ته داخليدو نو دا كلمات به يي لوستل " اللَّهُمَّ إِنِّي أَعُوذُ بِكَ مِنْ الْخُبْثِ وَالْخَبِيثِ أَوْ الْخُبُثِ وَالْخَبَائِثِ "اي الله زه په تا باندي پناه غواړم د خباثتونو نه اود خبيث اشياؤ نه وكيع وايي چي زما شك دي چي شعبه راوي اللَّهُمَّ إِنِّي أَعُوذُ بِكَ كلمات نقل كړل او كه أَعُوذُ بِكَ مِنْ الْخُبْثِ وَالْخَبِيثِ أَوْ الْخُبُثِ وَالْخَبَائِثِ كلمات يي نقل كړل؟ امام ترمذي وايي چي په دي باب كي د علي او زيد بن ارقم، او جابر او ابن مسعود رضي الله عنهم نه هم احاديث مروي دي. مګر حديث د انس د نورو په نسبت صحيح ترين دي، اود زيد بن ارقم د روايت په سند كي اضطراب دی، امام ترمذي وايي چي هشام او سعيد د قتاده نه ، پس سعيد يي د قاسم بن عوف نه اوهغه د زيد بن ارقم نه نقل كوي ، او هشام يي د قتاده او زيد بن ارقم نه نقل كوي، او هغه د زيد بن ارقم نه نقل كړی دی، او شعبه او معمر د قتاده نه ، دارنګي شعبه او معمر د قتاده نه او هغه د نضر بن انس نه نقل كړی دی، نو شعبه وايي عن زيد بن ارقم او معمر وايي عن نضر بن انس، عن ابيه عن النبي صلي الله عليه وسلم، امام ترمذي وايي چي ددي اضطراب باره كي مي د امام بخاري نه تپوس وكړو نو راته يي اوفرمائيل: كيدي شي چي ددواړو استاذانو نه يي اوريدلی وي.

**********************

٦ـ أَخْبَرَنَا أَحْمَدُ بْنُ عَبْدَةَ الضَّبِّيُّ الْبَصْرِيُّ حَدَّثَنَا حَمَّادُ بْنُ زَيْدٍ عَنْ عَبْدِ الْعَزِيزِ بْنِ صُهَيْبٍ عَنْ أَنَسِ بْنِ مَالِكٍ أَنَّ النَّبِيَّ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ كَانَ إِذَا دَخَلَ الْخَلَاءَ قَالَ اللَّهُمَّ إِنِّي أَعُوذُ بِكَ مِنْ الْخُبُثِ وَالْخَبَائِثِ قَالَ أَبُو عِيسَى هَذَا حَدِيثٌ حَسَنٌ صَحِيحٌ. [2]

---

[1] ـ صحيح البخاري/الوضوء ٩ (١٤٢) والدعوات ١٥ (٦٣٢٢) صحيح مسلم/الحيض ٣٢ (٣٧٥) سنن ابي داود/ الطهارة ٣ (٤) سنن النسائي/الطهارة ١٨ (١٩) سنن ابن ماجه/الطهارة ٩ (٢٩٨) (تحفة الأشراف ١٠٢٢) مسند احمد (٢٨٢/١٠١/٣) سنن الدارمي/الطهارة ٩ (٦٩٦)

[2] ـ انظر ما قبله، تحفة الأشراف: ١٠١١)

دانس بن مالك رضي الله عنه نه روايت دي چي رسول الله صلي الله عليه وسلم به كله بيت الخلاء ته داخليدو نو دا كلمات به يي لوستل: اللَّهُمَّ إِنِّي أَعُوذُ بِكَ مِنَ الْخُبْثِ وَالْخَبَائِثِ يعني اي الله زه دخباثتونو او خبيث ځيزونو نه په تا باندي پناه غواړم. امام ترمذي وايي چي دا حديث حسن صحيح دی.

**لغات:** الوضوء په ضمي دواو سره داودس اوبه او په فتح دواو سره اودس ته ونيلي شي.

خبائث: خبائث او خُبُثَ دخبيث او خبيثة جمع ده په معني د پليتئ سره د كرم يكرم باب نه.

خلاء: دقضاء حاجت ځاي ته وئيلي شي ځكه چي دا عموما خالي پروت وي.

ددي دا مطلب دي چي په دي كي كيناستونكي عموما يواځي وي، دقضاء حاجت دځايونو نه په مختلفو اسماؤ تعبيرات شوي دي (۱) مرحاض (۲) كنيف (۳) خلاء. عربو به دا كناية ذكر كول او په دي باندي به يي تصريح بده گنړله ځكه چي زمونږ په علاقو كي هم دا عادت دي

**ربط:** دماقبل سره ربط دادي چي په ابواب طهارت كي دوه قسمه مسائل بيانيږي ددي وجه داده چي طهارت كله جسماني وي او كله روحاني وي او ددي اسباب هم كله جسماني وي او كله روحاني وي ددينه په ماقبل باب كي دجسماني او روحاني دواړو طهارتونو بيان وو ځكه چي په اودس ظاهري او باطني طهارت دواړه حاصليږي بيا په وريسي باب كي ددي خبري بيان وو چي هر كله ظاهري او باطني طهارتونه حاصل نشي نو مونځ نه كيږي اګر چي دروحاني طهارت د عدم موجودګئ په صورت كي هم ذمه فارغيږي ليكن قبوليت مشكوك وي

**تشريح: مذاهب دفقهاؤ:** ددي دعا باره كي دعلماؤ اختلاف دي چي دا څه وخت لوستل پكار دي دجمهورو قول دادي چي د اودس ماتولو په دوران كي او د عورت دبربنډوالي په حالت كي ذكر كول منع دي ځكه چي دا حالت دذكر قابل حالت نه دي ددي وجه داده چي هغوئ ددي قائل دي كه يو سړي چرته په صحرا كي اودس ماتوي نو دهغه دپاره دعورت ښكاره كولو نه مخكي دا دعالوستل پكار دي او كه په ابادئ كي اودس ماتوي نو بيا دهغه دپاره د داخليدو نه مخكي دا دعاونيل پكار دي او كه دچا نه هير شول نو روسته دي دا نه لولي بلكه په زړه كي دي ددي خيال تير كړي

**دامام مالك مذهب دادي:** په هر حالت كي ددي ونيل جائز دي او جمهور وائي چي جائز نه دي يوځل نبي كريم صلي الله عليه وسلم په قضاء حاجت كي مشغول وو چي يو صحابي ورباندي سلام واچولو نو رسول الله صلي الله عليه وسلم ورته جواب ورنكړو مطلب يي دا وو چي زړه په

بي اودسي: كي ذكر كول نه خوښوم ددينه معلومه شوه چي په بربنډه ذكر كول جائز نه دي.
دمالكيانو دليل همدا حديث دي دكوم نه چي همدا معلوميږي چي رسول الله به د داخليدوسره دا كلمات لوستل ليكن جمهورعلماء ددينه دا جواب كوي چي دلته دخل په معني د اراد الدخول دي مجازا او دا مجاز شائع دي لكه په "اذا قمتم الي الصلاة " كي چي "اذا اردتم القيام الي الصلاة" مراد دي دمجازي معني دمراد كولو تائيد د ادب المفرد دامام بخاري نه هم كيږي خكه چي د الادب المفرد په روايت كي اراد الدخول الفاظ دي.
دامام مالك دويم دليل حديث د ابوداود دي د ام المؤمنين عائشه رضي الله عنها نه روايت دي "كان رسول الله صلي الله عليه وسلم يذكر الله علي كل احيانه" يعني رسول الله صلي الله عليه وسلم به په هر حالت كي دالله تعالي ذكر كولو نو دهر حالت په عموم كي په بيت الخلاء كي د داخليدو حالت هم شامل دي.
**جمهورو ددي حديث نه لاندېني جوابات كړي دي** (١) جواب دادي چي دلته دكل نه مراد اكثر دي لكه چي په "واتيت من كل شيء" (النمل ٢٣) كي چي دكل نه اكثرمراد دي دويم جواب دادي دلته يذكر په ضمي سره دي نه چي ذكر بالكثر او مراد ذكر قلبي دي دريم جواب شاه ولي الله محدث دهلوي كړي دي چي دلته دذكرنه مراد اذكار متوارده دي يعني هغه اذكار دكومو دپاره چي وخت مقرر دي نو رسول الله صلي الله عليه وسلم به دمقرر اذكارو دوختونو پابندي كوله دا رنګي الزاما مونږ دا هم وئيلي شو كچري علي كل احيانه علي الاطلاق مراد وي نو بيا عند التكشف حال باندي هم قول كول پكار دي او حال دادي چي ددي هيڅوك قائل نه دي معلومه شوه چي په حديث كي تقييد دي او ستاسو استدلال كول ورنه درست نه دي.
"اللهم اعوذبك من الخبث والخبائث" شريعت په مختلفو اوقاتو كي مختلفي دعاګاني او اذكار مقرر كړي دي من جمله دهغوئ نه بيت الخلاء ته د داخليدو دوخت اذكار هم مقرر دي په دي حديث كي صرف دومره الفاظ دي او په نورو احاديثو كي دجناتو او دښځو د بني ادم په مينځ كي حائل بسم الله دي او په همدي وجه دعلماؤ قول دي چي دي وخت كي بسم الله وئيل هم پكار دي.
**خبيث:** دباء دضمي سره يا دسكون سره امام نووي وائي چي په دواړو طريقو ددي لوستل جائز دي كه ضمي سره اولوستلي شي نو جمع دخبيث به شي په معني دذكور من الشياطين مګر ددي مقابل خبائث دي جمع دخبيث ده ددينه اناث من الشياطين مراد دي يعني دمذكر او مؤنث دواړو شيطانانو نه پناه غواړم.
شريعت په دي موقع داستعاذي چي كوم تعليم وركړي دي په دي كي څه حكمت دي؟ هغه دادي چي شيطان دانسان ازلي دشمن دي او دا شيطانان دانسان نه غائب هم دي لكه چي

ارشاد الهي دي "انه يرا كم هو وقبيله من حيث لا ترونهم" (الاعراف ۲۷) مطلب دا چي دا يو مخفي دشمن دي او دمخفي دشمن ضرر دظاهري دشمن دضرر نه زيات وي يو انسان چي كله دقضاء حاجت دپاره دي مقاماتو ته ورځي نو دا شيطانان هلته موجود وي او انسان هلته يواځي وي او موجود هم په داسي حالت كي وي چي غير مصلح وي نو په دي وجه ددوئ سره دمقابلي كولو اصلحه ذكرالله دي او دقضاء حاجت په وخت كي ذكرالله ممنوع دي نو په داسي حالت كي ددوئ دطرفه انسان ته دضرر رسيدو سخته خطره وي نو دي وخت كي شريعت په الله تعالي باندي د پناه غوښتلو تعليم وركړو دكوم په وجه چي انسان په دي دوران كي ددوئ دضرر نه محفوظ پاتي كيږي.

**فائده** ابن عربي ونيلي دي چي د خبث په معني دمكروه دري صورتونه دي (۱) قولي (۲) اعتقادي (۳) في الاكل والشرب. قولي خباثت سب او شتم يعني كنځلو ته ونيلي شي او اعتقادي خباثت چي كله مفرط وي نو دا كفر دي او كه مفرط نه وي نو دا بدترين اعتقاد دي او كه خباثت في الماكولات مفرط وي نو داحرام دي او كه مفرط نه وي نو مكروه دي او كه خباثت في المشروبات وي نو ديته الضار ونيلي شي.

**فائده** په عالم ګيري او شامي كي دبيت الخلاء متعدد اداب ذكر شوي دي چي په لاندينو كرخو كي يي كتلي شئ:

(۱) دشدت راتلو نه مخكي دقضاء حاجت دپاره دپردي ځاي بندوبست كول پكار دي.

(۲) كه ممكن وي نو جامي دي دتلو نه مخكي بدل كړي بيا دي لاړ شي او كه داسي نشي كيدي نو د جامو به ډير خيال ساتي.

(۳) او كه د د اخليدو وخت كي دچا په لاس ګوته وي او اسم اعظم وغيرهورباندي ليكلي شوي وي كچري دا ښكاره وي پټول يي پكار دي.

(۴) بربنډسر داخليدل پكار نه دي.

(۵) او كه دچا نه مذكوره دعا اللهم اعوذبك من الخبث والخبائث هيره شي نو ددي داستحضار كوشش دي اوكړي.

(۶) اول به ګسه ښپه داخلوي او بيا به ښئ ښپه داخلوي.

(۷) ترڅو چي ولاړ وي نو ستر به نه ښكاره كوي كله چي زمكي ته نژدي شي نو ځان به بربنډوي.

(۸) په ګسه ښپه به يي زور راوړي وي.

(۹) اسمان طرف ته به نه ګوري او نه به اخوا ديخوا ګوري بلكه دحياء په تقاضا به يي سر ټيټ كړي وي او ښكته به ګوري.

(۱۰) شرمګاه او اودس ماتي ته به نه ګوري ځكه چي دا مؤجب دنسيان او يو مكروه عمل دي.

داخرت باره كي به سوچ نه كوي لكه فقه حديث وغيره.
(۱۱) داخرت باره كي به سوچ نه كوي لكه فقه حديث وغيره.
(۱۲) دغاړي تازه كولو او توخيدو نه به اجتناب كوي.
(۱۳) دسلام جواب به نه وركوي.
(۱۴) او دپرنجي وخت كي به الحمدلله نه وائي.
(۱۵) او نه به د اذان جواب وركوي.
(۱۶) او كه پرنجي ورته راشي نو په زړه كي الحمدلله وئيلي شي دا رنګي داذان جواب هم په زړه كي وركولي شي.
(۱۷) او كوم ځيز ته به د ډېر دوهلو په حالت كي نه كيني.
(۱۸) په ښكلي طريقي به دزر فارغيدو كوشش كوي او د زيات وخت تيرولو او ډير حصاريدو په حالت كي بيا دبواسير تكليف پيدا كيږي.
(۱۹) دفراغت نه پس به دمتيازو په لار په مزه مزه زور راوړي تردي چي كوم څاڅكي باقي وي دا خارج شي.
(۲۰) كه په صحراء كي اودس ماتوي نو په كاڼو به استنجاء اوكړي او ددي ځاي نه به لري او چي كله دڅاڅكو دختميدو يقين راشي نو بيا دي كيني او په اوبو دي استنجاء اوكړي.
(۲۱) د استنجاء بالماء نه مخكي ټشو وغيره هم استعمالولي شي دا يو بهتر صورت دي كنه نو صرف اوبه هم كافي دي.
(۲۲) په استنجاء بالماء كي داوبو مقدار متعين نه دي البته دومره خيال به كوي چي بدبويي ختمه شي او كه معمولي بوي پاتي شي د ګرم چي لري كول مشكل وي نو هيڅ خرج نشته درائحه كريهه دلري كيدو علامه داده چي دمتيازو دځاي نه ځليښت ختم شي.
(۲۳) او لاس ورنه ښه پاك شي مګر بيا به هم په زمكه لاس راكاږي او كه دصابون انتظام موجود وي نو دا هم استعمالولي شي.
(۲۴) داستنجاء بالماء نه پس د اوچولو دپاره كپړه يا ټشو استعمالولي شي او كه موجود نه وي نو په لاس دي د اوچولو كوشش اوكړي تردي چي جامي دمستعمل اوبو رسيدو نه بچ شي او يا كمي متاصلي شي.
(۲۵) په شامي كي دي چي اودس ماتي به دفن كوي مګر دا دصحراء حكم دي دابادئ حكم دادي چي اوبه به ورباندي اړوي تردي چي اودس ماتي غائب شي.
(۲۶) مولانا اشرف علي تهانوي په بهشتي زيور كي ليكلي دي چي پرتوغاښ به مضبوط تړي.
(۲۷) اول به ښئ خپه بهر اوباسي او بيا ګسه خپه.
(۲۸) او دخارجيدو نه پس به دا كلمات وائي "غفرانك:" يا "الحمدلله الذي اذهب عني الاذي

وعافاني" (شامي ۱/ ۵۵۹).

**دسند حالت:**

وفي الباب: امام ترمذي ددي عنوان لاندي دا خودل غواړي چي دزيدبن ارقم په حديث كي اضطراب دي.اضطراب په لغت كي حركت ته ونيلي شي او په اصطلاح دمحدثينو كي اضطراب دحديث په سند يا متن كي داسي اختلاف ته وئيلي شي دكوم دختمولو دپاره چي ترجيح يا تطبيق ته ضرورت وي كه اضطراب په سند كي وي نو اضطراب دسند ورته ونيلي شي او كه په متن كي وي نو اضطراب دمتن ورته وئيلي شي مګر دمحدثينو په نزد اضطراب دسند زيات مضر دي ددي حكم دادي كچري دا اضطراب ختم كړي شي نو ترجيحا يا تطبيقا به دا روايت قابل داستدلال اوګرځي او كه داسي اونه شي نو ضعيف به شي.

**سوال:** دزيد بن ارقم په حديث كي څه اضطراب دي؟

**جواب:** دجواب نه مخكي په دي پوهه شئ چي په دي روايت كي مركزي راوي قتاده دي او دقتاده څلور شاګردان دي (۱) هشام (۲) سعيد ابن ابي عروبه (۳) شعبه (۴) معمر.

دهشام سند: عن هشام عن قتاده عن زيد بن ارقم.

د معمر سند: عن قتاده عن النضر بن انس عن ابيه انس.

دسعيد سند: عن سعيد عن قتاده عن قاسم بن عوف الشيباني عن زيد بن ارقم.

دشعبه سند: شعبه عن قتاده عن نضر بن انس عن زيد بن ارقم.

مونږ دا وايو چي دڅلور وارو شاګردانو اختلاف دي او دا اختلاف په دري وجه دي اوله وجه داده داولنو دوه شاګردانو په مينځ كي يعني دقتاده او زيد بن ارقم په مينځ كي واسطه شته او كنه؟ هشام واسطه نه ده ذكر كړي او دهشام نه علاوه باقي ټول واسطه ذكر كوي.

دويمه وجه داده چي دقتاده استاذ څوك دي؟ دسعيد قول دي چي دقتاده استاذ قاسم بن عوف دي مګردشعبه او د معمر قول دي چي نضر بن انس دي.

دريمه وجه داده چي د نضر بن انس استاذ څوك دي اويا دا چي دا حديث دمسنداتو دزيد بن ارقم نه دي او كه دمسنداتو د انس بن مالك نه دي

شعبه او سعيد وائي چي دا د مسنداتو دزيد بن ارقم نه دي او معمر وائي چي دمسنداتو دانس بن مالك نه دي په دي كي دويم اضطراب امام ترمذي ختم كړي دي او دامام بخاري قول يي نقل كړي دي چي داسي هم كيدي شي چي ددواړو استاذانو نه يي اوريدلي دي او بعضي علماؤ ليكلي دي دهما ضمير مرجع زيد بن ارقم او نضر بن انس دي ليكن دا قول غلط دي او باقي دوه اضطراباتو ته امام ترمذي تعرض نه دي كړي اولني اضطراب ته خو يي څكه تعرض نه دي كړي چي رفع يي ظاهر ده چي دقتاده روايت كه دزيد بن ارقم نه بلا واسطه وي نو دا

کیدي نشي خکه چي قتادة په ۲۱هجري کي پیداشوي دي او زید بن ارقم په ۲۵هجري کي وفات شوي دي همدا رنگي امام حاکم تصریح کړي ده چي د انس بن مالك رضي الله عنه نه علاوه دهیڅ یو صحابي نه يي سماع ثابت نه ده نو دهشام واسطه نه ذکر کول خطاء ده او د دریم اختلاف رفع هم ظاهر ده خکه چي دامام بیهقي قول دي دمعمر په روایت کي وهم دي چي عن ابیه صحیح روایت دشعبه دي.

## د انس بن مالك رضي الله عنه حالات

نوم انس او کنیه يي ابو حمزه او لقب يي خادم رسول الله قبیله يي بنو نجار وه او دپلار نوم يي مالك او دمور نوم يي ام سلیم سهله بنت ملحان انصاریه وه درشتي په لحاظ سره ام سلیم درسول الله صلي الله علیه وسلم ترور کیدله.

انس رضي الله عنه داته یا نهه کالو په عمر کي دخپلي مور سره یو ځاي مسلمان شوی وو کله چي لس کالو ته ورسیدو نو مور يي اوونیل ای دالله رسوله انس پخپله غلامئ کي قبول کړه نو رسول الله قبول کړو تقریبا لس کاله درسول الله صلي الله علیه وسلم په خدمت کي پاتي شو په سفر او حضر کي به ورسره یو ځاي وو او په صلح حدیبیه. بیعت رضوان. خیبر طائف. او حجة الوداع کي يي درسول الله سره ملګرتیا کړي ده

صدیق اکبر رضي الله عنه دبحرین عامل مقرر کړو او عمر فاروق رضي الله عنه دتعلیم او تربیت دپاره بصري ته ولیږلو دفتني په زمانه کي ګوشانشین شو، دده په زندګئ په خصوصي عاداتو کي حق ګویي، تواضع. اشاعت اسلام حب رسول او اتباع رسول شامل وو.

**مرویات:** انس رضي الله عنه دمکثرینو صحابه کرامو دجملي نه وو دده دمرویاتو تعداد ۱۲۸۲ دی چي ۱۳۸ پکي متفق علیه دي او ۸۲ صرف په بخاري کي دي او ۷۱ صرف په مسلم کي دي (تهذیب الکمال).

**وفات:** د هجرت په ۹۳ کال کي دسلو کالو نه په زیات عمر کي وفات شو دوفات کیدو نه مخکي يي خپل شاګرد ثابت بناني ته اوونیل چي زما دژبي نه لاندي درسول الله صلي الله علیه وسلم ویخته مبارك کیږده نو هغه دحکم تعمیل اوکړو او په همدي حال کي ورنه روح پرواز اوکړو غرض دا چي قطن بن کلاب ورباندي جنازه اوکړه او خپل کور ته نژدي په لف مقام کي دفن کړی شو. (روضة الصالحین شرح ریاض الصالحین)

*****************

## ٥_ باب ما يقول اذا خرج من الخلاء

## دبیت الخلاء نه د خارجیدو په موقع کوم کلمات ونیل پکار دي

۷ـ حَدَّثَنَا مُحَمَّدُ بْنُ إِسْمَعِيلَ حَدَّثَنَا مَالِكُ بْنُ إِسْمَعِيلَ عَنْ إِسْرَائِيلَ بْنِ يُونُسَ عَنْ يُوسُفَ بْنِ أَبِي بُرْدَةَ عَنْ أَبِيهِ عَنْ عَائِشَةَ رَضِيَ اللّٰهُ عَنْهَا قَالَتْ كَانَ النَّبِيُّ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ إِذَا خَرَجَ مِنَ الْخَلَاءِ قَالَ غُفْرَانَكَ قَالَ أَبُو عِيسَى هَذَا حَدِيثٌ حَسَنٌ غَرِيبٌ لَا نَعْرِفُهُ إِلَّا مِنْ حَدِيثِ إِسْرَائِيلَ عَنْ يُوسُفَ بْنِ أَبِي بُرْدَةَ وَأَبُو بُرْدَةَ بْنُ أَبِي مُوسَى اسْمُهُ عَامِرُ بْنُ عَبْدِ اللّٰهِ بْنِ قَيْسٍ الْأَشْعَرِيُّ وَلَا نَعْرِفُ فِي هَذَا الْبَابِ إِلَّا حَدِيثَ عَائِشَةَ رَضِيَ اللّٰهُ عَنْهَا.[1]

**ترجمه** دام المؤمنين عائشه رضي الله عنها بيان دي فرماني كله چي به رسول الله صلي الله عليه وسلم دقضاء حاجت نه پس دبيت الخلاء نه راوتلو نو دا كلمات به يي لوستل "غفرانك" يعني اي الله زه ستانه ستا دبخښش او مغفرت طلب کار يم امام ترمذي وائي دا حديث حسن غريب دي، صرف داسرائيل په سند دابويوسف بن برده نه او هغه دابو موسي نه چي نوم يي عامر بن عبدالله بن قيس اشعري دي مونږ ته رارسولي دي او په دي باب کي مونږ ته دعائشه رضي الله عنها دحديث نه زيات څه بهتر حديث بل معلوم نه دي.

**لغات:** لغات : خرج: خرج يخرج خروجا ومخرجا معني ديو خاي نه دڅه شي وتل

**تشريح** : په حديث الباب كي ذكر شوي دي چي كله به رسول الله دبيت الخلاء نه راوتلو نو دا كلمات به يي ونيل "غفرانك" ددي الفاظو په تركيب كي دوه احتمالات دي اول دا چي غفرانك مفعول به دد او مخكي ورنه فعل محذوف دي تقدير دعبارت به داسي شي اطلب يا اسئل غفرانك. دويم احتمال دادي چي غفرانك مفعول مطلق دي او مخكي ورنه فعل محذوف دي وجوبا قياسا ځكه چي دا قاعده دد هر كله چي مفعول مطلق مضاف وي خپل فاعل ته بغير واسطي دحرف جر نه نو فعل به يي محذوف وي وجوبا او تقدير دعبارت به داسي وي "اغفر غفرانك".

**سوال:** دبيت الخلاء نه دوتلو په وخت كي استغفار ته څه ضرورت دي ظاهرا خو دا ددي كومه موقع نه دد؟

**جواب(۱):** رسول الله صلي الله عليه وسلم به هر وخت په ذكر كي مشغول وو او د قضاء حاجت په وخت كي به دذكر انساني سلسله منقطع كيدله نو ددي انقطاع په وجه به يي استغفار ونيلو.

**جواب(۲):** هر كله چي ادم عليه السلام زمكي ته راكوز كري شو نو اول يي قضاء حاجت ته ضرورت پيښ شو نو دقضاء حاجت دبدبويي په وجه يي دخپلي كوتاهي استحضار اوكړو او

---

[1] سنن ابي داود/ الطهارة ۱۷ (۳۰) سنن ابن ماجه/الطهارة ۱۰ (۳۰۰) (تحفة الأشراف : ۱۷۶۹۴) سنن الدارمي/الطهارة ۱۷ (۷۰۷)

استغفار يي اووئيل او د همدغه وخت نه دا سلسله دهغه په اولاد كي هم جاري شوه.

**جواب(۳)**: دقضاء حاجت په وخت كي دانسان دجسم نه فضلات خارجيږي او په دي باندي دانسان جسم ته صحت او تقويت حاصليږي او دا يو ډير لوي نعمت دي او په هر نعمت دالله تعالي شكر اداء كول پكار دي ليكن انسان دالله تعالي دشكر حق نشي اداء كولي نو په دي وجه ده ته داستغفار حكم دي.

**جواب (۴)**: دلته غفرانك په معني د شكر دي لكه چي دعربو محاوره ده "غفرانك لا كفرانك" او دلته د تقابل نه ظاهريږي چي غفران په معني د شكر دي ددي جواب په تائيد كي دابن ماجه هغه روايت دي په كوم كي چي د انس رضي الله عنه په اسناد دا كلمات منقول دي "الحمدلله الذي اذهب عني الاذي وعفاني" پس دا دعا هم دشكر په معني محمول ده.

**جواب(۵)**: دقضاء حاجت په وخت كي انسان دخپل ظاهري نجاستونو مشاهده كوي او داسلام تعليم دادي چي دظاهري نجاستونو په كتلو سره دباطني نجاستنو استحضار اوكړي او ظاهره ده چي داسي استحضار مستلزم دي استغفار لره نوځكه دلته دغفرانك وئيلو حكم شوي دي.

**سوال**: رسول الله به دبيت الخلاء نه دخارجيدو په وخت كي استغفار ولي وئيلو سره ددي چي دهغه متعلق اعلان الهي دي "ليغفرلك الله ماتقدم من ذنبك وماتاخر".

**جواب**: داستغفار دا حكم ددي اعلان نه مخكي وو او يا دا چي په دي كي دامت دپاره تعليم دي او يا دا چي استغفار دشكر په معني دي او مستلزم ګناه لره نه دي.

**سوال**: په حديث الباب كي مذكور دي چي رسول الله به استغفار وئيلو او دابن ماجه په روايت كي مذكور دي چي "الحمدلله الذي اذهب عني الاذي وعافاني" ظاهرا په دي دواړو روايتونو كي تعارض ښكاري.

**جواب**: دا روايتونه په مختلفو وختونو محمول دي كله كله به يي استغفار وئيلو او كله كله به يي دا دعا وئيله لهذا هيڅ تعارض پاتي نشو ځكه چي دتعارض دپاره وحدت د زمان شرط دي.

**دسند حال**: دلته دامام ترمذي داستاذ په نوم كي تصحيف شوي دي په دي كي بن حميد زائده دي صحيح نوم محمد بن اسماعيل دي او مراد ورنه امام بخاري دي دا غلطي دمخكي نه راروانه ده او پخواني غلطي اكثر باقي پريخودلي شي او تنبيه ورباندي وركولي شي ځكه چي دكومو غلطيانو تذكره په شرحو كي راغلي ده كه دهغي تصحيح اوشي نو په شرح به پوهيدل

Scanned with C

ګران شي او که دتصحیح کولو نه پس غلطي پتہ کړي شي نو په حاشیه کي وربانـدي تنبیـه ورکول ضروري دي چي دا مخکنۍ غلطي ده.
دویم دامام ترمذي یو بـل استـاذ مالـك بـن اسـماعیل نهـدي دي او دا دامام ابو حنیفه داستاذ حماد بن ابي سلیمان نوسي دي او انتهائي اعلي درجه راوي دي په صحاح سته کي یي روایات موجود دي بله دا چي امام ترمذي په دي حدیث دحسن غریب حکم لګولي دي غریب خو په دي معني دي چي داسرائیل نه تر اخره پوري همدا یو سند دي دا حدیث في نفسه داعلي درجي دي په دي باندي صرف دحسن حکم کول درست نه دي بلکه دا صحیح دي.
بله دا چي امام ترمذي دصحیح احادیثو په سلسله کي نرمي کونکي دي هغه داسي احادیث هم صحیح ګڼړي کوم چي به دصحیح د درجي نه وو خو بل طرف ته انتهائي درجه محطاط هم دي هر وخت به یي دا حدیث "من کذب علي متعمدا" دسترګو په وړاندي وو چنانچي هغه به بعضي احادیثو لره دهغوئ واقعي حق نه ورکولو بلکه چرته چي به دحدیث دوه سندونه وواو په یو کي چي به کومه کمزوري وه نو هغه به دي بل ته اصح وئیل بهر حال دا مزاج یي درست نه دي هر یو حقدار ته خپل فاجري حق ورکول انصاف دي چي وړاندي به یي بار بار ذکر راشي.
بله دا چي دامام ترمذي دا قول دواقع مطابق نه دي چي په دي باب کي صرف دعائشه رضي الله عنها حدیث دي ځکه چي په دي باب کي دعائشه دحدیث نه علاوه دپنځه نوروصحابه کرامو روایات هم وارد دي چي نومونه یي دادي انـس بن مالك، ابو ذر غفاري، عبدالله بن عمر، ابن عباس، سهل بن ابي حثمه رضي الله عنهم (کشف النقاب).

## د راویه حدیث ام المومنین عائشه رضی الله عنها مختصر حالات

نوم عائشه رضي الله عنها ،صدیقه ، حمیرا لقب ، ام عبد الله کنیت ، د پلار نوم ابوبکر صدیق رضي الله عنه او د مور نوم ئي زینب وو او د هغی کنیت ام رومان وو ، د بعثت نه څلور کاله پس پیدا شوه په مکه معظمه کي ئي د نبي کریم (صَلَّي اللهُ عَلَيۡهِ وَسَلَّمَ) سره نکاح اوشوه د نهو (۹) کالو په عمر کي او په مدینه منوره کي ئي رخصتي اوشوه ، د غزواتو نه په غزوه احد کي شریکه وه . (بخاري ۲/ ۵۸۱)
دغه شان ددی شرکت په غزوه بنو مصطلق کي هم معلومیږي چي په دی کي ددی هار (امیل) روک شوی وو .
د ام المؤمنین عائشه رضي الله عنها په نورو ښځو باندی عمومًا او په باقي امهات المومنین باندی خصوصًا په څو وجوهاتو سره فوقیت حاصل وو ابو موسیٰ اشعري رضي الله عنه فرمائي چي په مونږ به کله څه مشکل راغی نو د هغی علم به مونږ د عائشه رضي الله عنهاسره بیا مونده . (ترمذي) ، په دی کي سخاوت ، عبادت ، تواضع انتهائي زیاته ده اکثر به ئي روژه نیوله هر کال به ئي حج کولو او غلامان به ئي ازادول ام المؤمنین عائشه رضي الله عنها په

مكثرينو صحابو كي داخله وه يعني هغه صحابه چي د هغه نه زيات روايات منقول دي ۰ ددی د رواياتو تعداد د احاديثو په كتابونو كي ۲۲۱۰ موندلی شي چي ددی نه په ۱۷۴ باندی بخاري او مسلم اتفاق كړی دی ، امام بخاري منفرداً ۵۴ احاديث روايت كړی دي او په ۶۸ احاديثو كي امام مسلم منفرد دی (عمدة القاري ۱/ ۳۸)

**وفات:** د امير معاويه رضي الله عنه په اخير زمانه كي وفات شوه په دی وخت كي ئې عمر څلور شپیته كاله وو ۰ په جنت البقيع كي د وصيت مطابق دفن كړی شوه -

***********

## ٦ـ بَابٌ فِي النَّهْيِ عَنِ اسْتِقْبَالِ الْقِبْلَةِ بِغَائِطٍ أَوْ بَوْلٍ

## مما نعت دمخامخ كيناستو نه قبلي ته وروكي او لوي اودس ماتي په وخت كي

٨ـ حَدَّثَنَا سَعِيدُ بْنُ عَبْدِ الرَّحْمَنِ الْمَخْزُومِيُّ، حَدَّثَنَا سُفْيَانُ بْنُ عُيَيْنَةَ، عَنِ الزُّهْرِيِّ، عَنْ عَطَاءِ بْنِ يَزِيدَ اللَّيْثِيِّ، عَنْ أَبِي أَيُّوبَ الأَنْصَارِيِّ، قَالَ: قَالَ رَسُولُ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ: " إِذَا أَتَيْتُمُ الْغَائِطَ فَلاَ تَسْتَقْبِلُوا الْقِبْلَةَ بِغَائِطٍ وَلاَ بَوْلٍ وَلاَ تَسْتَدْبِرُوهَا وَلَكِنْ شَرِّقُوا أَوْ غَرِّبُوا ". فَقَالَ أَبُو أَيُّوبَ: فَقَدِمْنَا الشَّامَ فَوَجَدْنَا مَرَاحِيضَ قَدْ بُنِيَتْ مُسْتَقْبَلَ الْقِبْلَةِ فَنَنْحَرِفُ عَنْهَا وَنَسْتَغْفِرُ اللَّهَ. قال أبو عيسى: وَفِي الْبَاب عَنْ عَبْدِ اللَّهِ بْنِ الْحَارِثِ بْنِ جَزْءٍ الزُّبَيْدِيِّ، وَمَعْقِلِ بْنِ أَبِي الْهَيْثَمِ، وَيُقَالُ: مَعْقِلُ بْنُ أَبِي مَعْقِلٍ، وَأَبِي أُمَامَةَ، وَأَبِي هُرَيْرَةَ، وَسَهْلِ بْنِ حُنَيْفٍ. قَالَ أَبُو عِيسَى: حَدِيثُ أَبِي أَيُّوبَ أَحْسَنُ شَيْءٍ فِي هَذَا الْبَابِ وَأَصَحُّ. وَأَبُو أَيُّوبَ اسْمُهُ: خَالِدُ بْنُ زَيْدٍ، وَالزُّهْرِيُّ اسْمُهُ: مُحَمَّدُ بْنُ مُسْلِمِ بْنِ عُبَيْدِ اللَّهِ بْنِ شِهَابٍ الزُّهْرِيُّ، وَكُنْيَتُهُ: أَبُو بَكْرٍ. قَالَ أَبُو الْوَلِيدِ الْمَكِّيُّ: قَالَ أَبُو عَبْدِ اللَّهِ مُحَمَّدُ بْنُ إِدْرِيسَ الشَّافِعِيُّ: إِنَّمَا مَعْنَى قَوْلِ النَّبِيِّ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ: "لاَ تَسْتَقْبِلُوا الْقِبْلَةَ بِغَائِطٍ وَلاَ بِبَوْلٍ وَلاَ تَسْتَدْبِرُوهَا" إِنَّمَا هَذَا فِي الْفَيَافِي، وَأَمَّا فِي الْكُنُفِ الْمَبْنِيَّةِ لَهُ رُخْصَةٌ فِي أَنْ يَسْتَقْبِلَهَا، وَهَكَذَا قَالَ إِسْحَاق بْنُ إِبْرَاهِيمَ. وقَالَ أَحْمَدُ بْنُ حَنْبَلٍ رَحِمَهُ اللَّهُ: إِنَّمَا الرُّخْصَةُ مِنَ النَّبِيِّ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ فِي اسْتِدْبَارِ الْقِبْلَةِ بِغَائِطٍ أَوْ بَوْلٍ، وَأَمَّا اسْتِقْبَالُ الْقِبْلَةِ فَلاَ يَسْتَقْبِلُهَا كَأَنَّهُ لَمْ يَرَ فِي الصَّحْرَاءِ وَلاَ فِي الْكُنُفِ أَنْ يَسْتَقْبِلَ الْقِبْلَةَ.[1]

---

[1] صحيح البخاري/ الوضوء ۱۱ (۱۴۴) والصلاة ۲۹ (۳۹۴) صحيح مسلم/الطهارة ۱۷ (۲۶۴) سنن ابي داود/ الطهارة ۴ (۹) سنن النسائي/الطهارة ۱۹، ۲۰، ۲۱ (۲۰، ۲۱، ۲۲) سنن ابن ماجه/الطهارة ۱۷ (۱۸) (تحفة الأشراف : ۳۴۷۸) موطا امام مالك/القبلة ۱ (۱) مسند احمد (۵/۴۱۶، ۴۱۷، ۴۲۱) سنن الدارمي/ الطهارة ۶ (۶۹۳)

**ترجمه**: دابو ايوب انصاري رضي الله عنه نه مروي دي چي رسول الله صلي الله عليه وسلم فرمائيلي دي كله چي تاسو اودس ماتي خاي ته ورشئ نو د ورۍ كي يا لوي اودس ماتي وخت كي قبلي ته مخامخ مه كينئ او نه به ورته شا كرځئ بلكه مغرب يا مشرق ته مخ يا شا كړئ، دابوايوب انصاري بيان دي فرمائي كله چي مونږ شام ته راغلو نو مونږ اوليدل چي د اودس ماتي خايونه قبلي ته مخامخ جوړ شوي دي نو مونږ به دقبلي دطرف نه بل طرف ته كرځيدو او دالله تعالي نه به مو مغفرت غوښتلو

امام ترمذي واني په دي باب كي عبدالله بن حارث بن جزء زبيدي، او معقل بن ابي حيثم (معقل بن ابي معقل) ابو امامه، او ابوهريره، او سهل بن حنيف رضي الله عنهم نه هم احاديث وارد دي، بله دا چي دابو ايوب انصاري حديث په دي باب كي دټولو نه عمده او صحيح دي. دابوالوليد مكي قول دي چي ابوعبدالله محمد بن ادريس شافعي به وئيل چي ددي ارشاد نبوي مطلب دادي چي قبلي ته به اودس ماتولو وخت كي نه مخ كوئ او نه شاكوئ يعني په صحراء كي او ميدانونو كي او په كورونو كي چي داودس ماتي خايونه جوړ شوي وي په هغي كي قبلي ته مخامخ كيناستل جائز دي، او دا داسحاق بن ابراهيم بن راهويه قول هم دي، مكر امام احمد بن حنبل واني چي درسول الله صلي الله عليه وسلم نه د ورۍ كي يا لوي اودس ماتي وخت كي قبلي طرف ته صرف په شا كرخولو كي رخصت دي او مخامخ كيناستل ورته په هيڅ طريقه جائز نه دي كويا كي امام احمد قبلي طرف ته مخامخ كيناستل نه په صحراء كي جائز كنړي او نه په ابادئ كي.

**حل لغات**: غائط: غاط يغوط غوطا دنصر ينصر باب دي په معني چړنده زمكه ده او روسته يي بيا په بيت الخلاء باندي اطلاق شروع شوي دي خكه چي اهل عرب به دقضاء حاجت دپارد چړند خاي لټولو او مجازا دغائط اطلاق په نجاست باندي هم كيږي.

قدم يقدم قدامة په معني دزړيدو اود باب سمع نه په معني د راتلو اود باب تفعيل نه په معني دمخكي كولو.

**تشريح**: "ولكن شرقوا او غربوا" دا حكم داهل مدينه دپاره خاص دي خكه چي بيت الله دمديني نه جنوب طرف ته واقع دي او په كومو علاقو كي چي بيت الله مشرق يا مغرب طرف ته واقع وي دهغوئ دپاره به جنبوا او شملوا حكم وي.

"فننحرف عنها ونستغفر الله" ددي عبارت دوه معني دي اوله معني داده چي په عنها كي ضمير قبلي ته راجع دي او مطلب دادي چي په شام كي بيت الخلاګاني قبلي ته مخامخ جوړي شوي وي او مونږ به دقضاء حاجت وخت كي دقبلي دطرف نه مخ كرخولو خو بيا به هم كوتاهي

کيدله او ددغه کوتاهۍ په نتيجه کي به مونږ استغفار ونيلو، دويم په عنها کي که ضمير مراحيض ته راجع شي نو مطلب به دا وي چي په شام کي دبيت الخلاگانو مخه قبلي طرف ته وه کله چي مونږ شام ته لاړو نو ددي بيت الخلاگانو نه به مو ډډه کوله او ددي دجوړونکو دپاره به مو استغفار ونيل خو چي جوړونکي مسلمانان وي او دکومي غلط فهمۍ په وجه ورنه دا کار شوي وي.

## مسئله داستقبال او استدبار الي القبلة عند التخلي

په دي مسئله کي دعلماؤ اختلاف دي چي دقضاء حاجت وخت کي قبلي ته استدبار او استقبال جائز دي او کنه په دي باره کي داهل علمو دري مذاهب دي.

**اول** مذهب دامام ابو حنيفه رحمه الله دي دهغوئ په نزد دقضاء حاجت وخت کي استقبال او استدبار دواړه مطلقا ناجائزدي دمطلقا معني داده چي په صحراء کي وي او که په ابادۍ کي وي.

**دويم** مذهب دامام مالکؒ او امام شافعي او په يو روايت کي دامام احمد رحمهم الله راغلي دي چي په صحراء کي استقبال او استدبار الي القبله مطلقا ناجائز دي او په ابادۍ کي استقبال او استدبار مطلقاجائزدي.

**دريم** مذهب د اهل ظواهر دي ددوئ په نزد استقبال او استدبار مطلقا جائز دي په صحرا کي وي او که په ابادۍ کي وي.

**داحنافو دليل:** دامام ابوحنيفه دليل حديث باب دي چي دابو ايوب انصاري رضي الله عنه په حديث کي مطلقا د اودس ماتي وخت کي داستقبال او استدبار نه منع راغلي ده دصحراء او ابادۍ کوم قيد پکي مذکور نه دي او دي روايت ته په يو څو وجوهاتو ترجيح حاصل دي اول دا چي دا روايت اسنادا اصح مافي الباب دي لکه چي امام ترمذي ورباندي پخپله تصريح کړي دويمه وجه دترجيح داده چي په دي کي يوه ضابطه او قانون بيان کړي شوي دي او ددي په خلاف باقي تمام روايات جزئيه دي او قاعده داده چي کلي روايت ته ترجيح وي په جزئي رواياتو باندي دريمه وجه دترجيح داده چي دابو ايوب انصاري رضي الله عنه روايت قولي دي او دده په خلاف باقي تمام روايات فعلي دي او قاعده داده چي کله په قولي او فعلي روايتونو کي تعارض راشي نو ترجيح به قولي ته ورکولي شي ځکه چي قول په قانون کلي مشتمل وي، څلورمه وجه دترجيح داده چي ابو ايوب والا روايت محرم دي او دده په خلاف نور روايات مبيح دي او قاعده داده کله چي په محرم او مبيح کي تعارض راشي نو ترجيح محرم لره وي ځکه چي دا په احتياط باندي بناء وي، پنځمه وجه داده چي دابوايوب انصاري رضي الله عنه روايت مؤيد بالاحاديث الکثيره دي، شپږمه وجه داده چي دابوايوب انصاري روايت زيات موافق دي

دقران سره ځکه چې په قران کې دشعائرالله دتعظیم حکم راغلي دي او بیت الله هم په شعائرالله کې داخل دي او دا ژوایت دبیت الله په تعظیم دلالت کوي، اومه وجه داده چې دابوایوب انصاري روایت مؤید بالقیاس دي او هغه داسې په حدیث کې مذکور دي چاچې قبلې طرف ته مخامخ اوتوکل نو دقیامت په ورځ به یې توکلي لاړې دسترګو په وړاندې وي.

**دائمه ثلاثه دلیل:** دائمه ثلاثه مالکیانو شوافعو او حنابله دلیل په حدیث الباب پسې متصل دعبدالله بن عمر رضي الله عنه روایت دي فرماني چې زه یو ځل دخپلې خور حفصه رضي الله عنها کور ته ورغلم او دهغوئ دکور چت ته اوختلم نو نبي کریم صلي الله علیه وسلم مې داودس ماتولو په حال کې اولیدو چې شام طرف ته مخامخ وو او بیت الله ته یې شا کړې وه ددې روایت نه معلومه شوه چې په ابادئ کې استقبال او استدبار قبلې طرف ته مطلقاجائزدي.

**دجمهورو ددلیل نه داحنافو جوابات:** احنافو ددینه مختلف جوابات کړې دي.

**جواب(۱):** دابوایوب انصاري روایت کې کلي قانون دي او په دې روایت کې یوه جزئي واقعه ده او قاعده داده چې دتعارض په وخت کې قانون ته ترجیح وي.

**جواب(۲):** زمونږ روایت قولي دي او دابن عمرروایت فعلي دي او قاعده داده چې دتعارض په وخت کې قولي روایت ته ترجیح وي.

**جواب(۳):** زمونږ روایت محرم دي او ددوئ روایت مبیح دي او قاعده داده چې دتعارض په وخت کې محرم ته په مبیح باندې ترجیح ده.

**جواب(٤)** ممکن ده چې عبدالله بن عمر رضي الله عنهما دنبي کریم صلي الله علیه وسلم مخ مبارك لیدلي وي او متبادر الي الفهم همدا ده ځکه چې په داسې حالت کې ناڅاپي نظر پریوتې شي او بالقصد نشي کیدې ممکن ده چې شرمګاه یې قبلې طرف ته مخامخ نه وي.

**جواب(۵):** قبلې طرف ته داستقبال او استدبار دممنوعیت حکم دامت دپاره وي او نبي کریم صلي الله علیه وسلم ورنه مستثني وي ځکه چې هغه هم په مخلوق کې شامل دي او بیت الله هم مخلوق دي او رسول الله په مخلوق کې دټولو نه اعلي دي او په اعلي باندې دغیر اعلي تعظیم ضروري نه دي.

**جواب(٦):** یو عین کعبه وي او بل جهت دکعبې وي امت په جهت دکعبې مکلف دي او نبي علیه السلام دعین کعبې په تعظیم مکلف وو کیدې شي چې کله عبدالله بن عمر لیدلي وي په دغه وخت کې دهغه مخه جهت دقبلې ته وي او عین قبلې ته نه وي.

**داهل ظواهر دلیل:** داهل ظواهر په نزد استقبال او استدبار قبلې ته مطلقاجائزدي برابره خبره ده چې په صحرا کې وي او که په ابادئ کې وي او ددوئ دلیل په دې پسې متصل راتلونکي

دجابررضي الله عنه روايت دي دجابررضي الله عنه بيان دي چي مونږ نبي كريم صلي الله عليه وسلم قبلي ته مخامخ د اودس ماتولو په حالت كي ليدلي وو ددينه معلومه شوه چي اول په سابقه زمانه كي دقضاء حاجت په وخت كي قبلي طرف ته داستقبال او استدبار نه منع راغلي وه مگر بيا روسته دا حكم منسوخ شو.

**جواب:** ددي روايت جوابات بعينه دابن عمر رضي الله عنهما درروايت جوابات دي.

## دابو ايوب خالد بن زيد انصاري رضي الله عنه حالات:

نوم خالد كنيه ابو ايوب قبيله خزرج كي دبنو نجار خاندان سره تعلق لري دنسب پوره سلسله يي داسي ده خالد بن زيد بن كليب بن ثعلبه بن عبدعوف خزرجي.

په بيعت عقبه كي داسلام قبلونكو مسلمانانو دجملي نه وو مديني ته دراتلو نه وروسته نبي كريم صلي الله عليه وسلم دده په كور كي قيام كړى وو او درسول الله صلي الله عليه وسلم سره هميشه په غزواتو كي شريك شوى دى په صحابه كرامو كي دفقهاؤ په ډله كي شميرلى شي داختلاف په وخت كي به دصحابه كرامو مرجع وه (اسد الغابه).

په خالد كي يو دري خصوصيات وو ، اول حب رسول، دويم ايماني جذبه، دريم حق گويي ، په دي باره كي ډير واقعات مشهور دي غرض دا چي په تبعي طور حياء او شرم هم پكي زيات وو دبخاري په يو روايت كي راځي چي كله به يي په كوهي يا حوض كي غسل كول نو دشرم په وجه به يي څلورو وارو طرفونو ته كپړي زوړندولي (بخاري).

وفات؛ قسطنطنيه (توركي) باندي دحملي دپاره روان وو چي په ۵۳هجري كي ديزيد بن معاويه په امارت كي دا تقريب منعقد شوى وو غرض دا چي په دي سفر كي عامه او وباء خوره شوه او ډير خلق پكي مړه شول چي يو پكي خالد هم وو دقسطنطنيه د ديوال سره نژدي دفن كړى شو چي اوس يي هم زيارت موجود دى دمروياتو شمير يي ۱۵۰ دى چي اوه پكي متفق عليه دي.

*************************

## ٧ـ بَابُ مَا جَاءَ مِنَ الرُّخْصَةِ فِي ذَلِكَ

## مخامخ قبلي ته د اودس ماتي دپاره د كيناستو د جواز بيان

٩ـ حَدَّثَنَا مُحَمَّدُ بْنُ بَشَّارٍ، وَمُحَمَّدُ بْنُ الْمُثَنَّى، قَالَا: حَدَّثَنَا وَهْبُ بْنُ جَرِيرٍ، حَدَّثَنَا أَبِي، عَنْ مُحَمَّدِ بْنِ إِسْحَاقَ، عَنْ أَبَانَ بْنِ صَالِحٍ، عَنْ مُجَاهِدٍ، عَنْ جَابِرِ بْنِ عَبْدِ اللَّهِ، قَالَ: " نَهَى النَّبِيُّ صَلَّى اللَّهُ

عَلَيْهِ وَسَلَّمَ أَنْ نَسْتَقْبِلَ الْقِبْلَةَ بِبَوْلٍ. فَرَأَيْتُهُ قَبْلَ أَنْ يُقْبَضَ بِعَامٍ يَسْتَقْبِلُهَا". وَفِي الْبَابِ عَنْ أَبِي قَتَادَةَ، وَعَائِشَةَ، وَعَمَّارِ بْنِ يَاسِرٍ. قَالَ أبو عيسى: حَدِيثُ جَابِرٍ فِي هَذَا الْبَابِ حَسَنٌ غَرِيبٌ. [1]

**ترجمه** دجابر بن عبدالله رضي الله عنه بيان دي چي رسول الله صلي الله عليه وسلم مونږ ددينه منع کړي يو چي د اودس ماتولو وخت کي قبلي ته مخامخ کينو اويا ورته شا کړو، او بيا مادرسول الله صلي الله عليه دوفات کيدو نه يو کال مخکي هغه لره قبلي ته مخامخ حالت کي په اودس ماتولو ليدلي وو.

دامام ترمذي قول دي چي په دي باب کي دجابر رضي الله عنه دا حديث حسن غريب دي او په دي باب کي دابوقتاده، عائشه، عمار بن ياسر رضي الله عنه نه هم احاديث وارد دي.

**حل لغات** يستقبل: د واحد مذكر غائب مضارع معلوم د باب استفعال صيغه ده په معني د مخ گرځولو دی قبلي ته.

**د حديث دراوي جابر رضي الله عنه مختصر حالات:**

دده نوم جابر او كنيه ابوعبدالله وه او دقبيله خزرج سره يي تعلق وو دپلار نوم يي عبدالله او دمور نوم يي نسيبه وو دده نيكه عمرو دخپل خاندان سردار وو، په عقبه ثانيه کي يي دخپلي مور سره اسلام راوړو او دغزوه احد نه پس په تمامو غزواتو کي شريك شوی دی چي رسول الله صلي الله عليه وسلم سره يي په نولسو غزواتو کي شرکت کړی دی (مسند احد ۳۲۹/۳).

په ۳۷هجري کي دعلي او معاويه رضي الله عنهما په جنگ کي جابر رضي الله عنه دعلي رضي الله عنه دطرف نه اوجنگيدو(اسد الغابه ۲۵۷/۲).

جابر رضي الله عنه دنبي كريم صلي الله عليه وسلم نه پس دنورو خلقو نه هم ديني علم زده کړی دی چي په هغوئ کي صديق اكبر ، عمر فاروق، ابوعبيده،، طلحه، معاذ بن جبل، خالد بن وليد، ابوهريره ، ابوسعيد خدري، او عبدالله بن انيس رضي الله عنهم وغيره شامل دي.

يو ځل معلومه شوه چي دعبدالله بن انيس سره يو حديث دی او هغه په شام کي اوسيږي نو ما يو اوبن واخستو او شام ته روان شوم او دهغه نه مي هغه حديث واوريدو (المفرد بخاري).

دده شاگردان هم كافي ډير دي مثلاً امام باقر، بدالله بن منكدر، حسين بن محمد بن حنفيه ليكن په اخري عمر کي نابينا شو (بخاري ۵۹۸/۲).

وفات: دحجاج بن يوسف په زمانه کي د ۹۴ كلونو په عمر کي وفات شو او وصيت يي اوکړو چي حجاج به په ما باندي جنازه نه کوي نو په دي وجه دعثمان رضي الله عنه خوي ابان ورباندي جنازه اوکړه او په بقع کي دفن کړی شو ليکن ذبعضو قول دی چي حجاج ورباندي

[1] سنن ابي داود/الطهارة (۱۳) سنن ابن ماجه/الطهارة ۱۸ (۳۲۵) (تحفة الأشراف : ۲۵۷۴).

Scanned with

جنازه کړي ده (تهذیب التهذیب).
مرويات: دده دمروياتو تعداد ۵۴۰ دي په احاديثو بيانولو کي به يبي ډير احتياط کولو.

*************

۱۰ـ وَقَدْ رَوَى هَذَا الحَدِيثَ ابْنُ لَهِيعَةَ، عَنْ أَبِي الزُّبَيْرِ، عَنْ جَابِرٍ، عَنْ أَبِي قَتَادَةَ، أَنَّهُ رَأَى النَّبِيَّ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ "يَبُولُ مُسْتَقْبِلَ القِبْلَةِ". حَدَّثَنَا بِذَلِكَ قُتَيْبَةُ، حَدَّثَنَا ابْنُ لَهِيعَةَ، وَحَدِيثُ جَابِرٍ، عَنِ النَّبِيِّ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ أَصَحُّ مِنْ حَدِيثِ ابْنِ لَهِيعَةَ، وَابْنُ لَهِيعَةَ ضَعِيفٌ عِنْدَ أَهْلِ الحَدِيثِ، ضَعَّفَهُ يَحْيَى بْنُ سَعِيدٍ القَطَّانُ وَغَيْرُهُ مِنْ قِبَلِ حِفْظِهِ. ([1])

**ترجمه**: عبدالله بن لهيعه دا حديث دابو الزبير نه نقل کړي دي او ابو زبير دجابر رضي الله عنه نه روايت نقل کوي چي ابوقتاده نبي کريم صلي الله عليه وسلم لره د اودس ماتي وخت کي قبلي ته دمخ کولو په حالت کي ليدلي دي، درسول الله نه دجابر دا حديث دابن لهيعه په حديث کي دجابر نه پس دابوقتاده واسطه ده دا دهغه حديث نه زيات صحيح دي، ابن لهيعه دمحدثينو په نزد ضعيف دي، يحيي بن سعيد القطان وغيره دحفظ په اعتبار دابن لهيعه تضعيف کړي دي.

**********************

۱۱ـ حَدَّثَنَا هَنَّادٌ، حَدَّثَنَا عَبْدَةُ بْنُ سُلَيْمَانَ، عَنْ عُبَيْدِ اللَّهِ بْنِ عُمَرَ، عَنْ مُحَمَّدِ بْنِ يَحْيَى بْنِ حَبَّانَ، عَنْ عَمِّهِ وَاسِعِ بْنِ حَبَّانَ، عَنِ ابْنِ عُمَرَ، قَالَ: رَقِيتُ يَوْمًا عَلَى بَيْتِ حَفْصَةَ، فَرَأَيْتُ النَّبِيَّ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ "عَلَى حَاجَتِهِ مُسْتَقْبِلَ الشَّامِ مُسْتَدْبِرَ الكَعْبَةِ". قَالَ أَبُو عِيسَى: هَذَا حَسَنٌ صَحِيحٌ. ([2])

**ترجمه**: عبدالله بن عمر رضي الله عنهما فرماني يوه ورځ زه دخپلي خور حفصه رضي الله عنها کور ته ورغلم او دهغوئ دکور چت ته اوختلم نو نبي کريم صلي الله عليه وسلم مي اوليدلو چي د اودس ماتي په حالت کي يي شام طرف ته مخ دي او کعبي طرف ته يي شا کړي ده، امام ترمذي وائي دا حديث حسن صحيح دي.

---

[1] تفرد به المؤلف (تحفة الأشراف: ۱۲۰۸۱) (ضعيف الإسناد)

[2] صحيح البخاری/الوضوء ۱۲ (۱۴۵) صحيح مسلم/الطهارة ۱۷ (۲۶۱) سنن ابی داود/ الطهارة ۵ (۱۲) سنن النسائی/الطهارة ۲۲ (۲۳) سنن ابن ماجه/الطهارة ۱۸ (۳۲۲) (تحفة الأشراف: ۸۵۵۲) موطا امام مالک/القبلة ۲ (۳) مسند احمد (۲/۱۲، ۱۳) سنن الدارمی/الطهارة ۸ (۶۹۲)

**حل لغات**: مستدبر باب استفعال نه د اسم فاعل صيغه ده په معني د شاه ګرځولوسره برابره خبره ده چي هر طرف ته وي.

**تشريح**: دا باب دپورتني باب مقابل دي پورتني باب يي دعراقي (احنافو) علماؤ او فقهاؤ دپاره قائم کړي دي او ددوئ چي کوم مستدل دي يعني دابو ايوب انصاري په روايت کي چي ائمه ثلاثه کوم تخصيص کوي هغه تخصيص يي هم دامام شافعي په قول کي واضح کړي دي او دا موجوده باب دحجازي (ائمه ثلاثه) فقهاؤ دپاره ذکر کوي او د ذلك مشار اليه استقبال او استدبار دي او ددي دجواب اصل دليل حديث دابن عمر رضي الله عنهما دي کوم چي دباب په اخر کي راغلي دي.

دجابر روايت داعلي درجي والانه دي زيات نه زيات دحسن درجي والا دي خکه چي ددي په سند کي محمد بن اسحاق راوي دي چي اول په مدينه کي اوسيدلو او بيا عراق ته منتقل شو او دا راوي متکلم فيه دي اګر چي امام بخاري وغيره يي توثيق کړي دي مګر يحيي بن قطان او سليمان تيمي او امام مالك وغيره وربانډي جرح کړي ده، امام مالك خو وربانډي ډيره سخته جرح کړي ده مګر ائمه ثلاثه دا جرح دمعاصرانه تاؤ تريخ والي نتيجه ګرځولي ده، او زمونږ اکابرينو محمد بن اسحاق لره دحسن درجي راوي تسليم کړي دي مګر تدليس به يي کولو يعني دخپل ضعيف استاذ نوم به يي پټولو (تحفة الالمعي ۱/۲۱۲)، او د داسي راوي عنعنه معتبر نه وي او محمد بن اسحاق دا روايت دابان نه په صيغه دعن نقل کوي نو خکه امام ترمذي دي لره دحسن غريب درجي ګرځولي دي او دغريب کيدو وجه يي دا ده چي دمحمد بن اسحاق نه يي تر اخره پوري ددي حديث هم دا يو سند دي.

مګر دا حديث عبدالله بن لهيعه په يو بل سند نقل کوي او دهغه سند مدار په جابر رضي الله عنه نه دي بلکه ابوقتاده ته رسيږي مګر دا سند صحيح نه دي خکه چي عبدالله بن لهيعه دمحدثينو په نزد ضعيف دي او دضعف وجه يي داده چي کتابونه يي سوزيدلي وو او بيا به يي دخپلي حافظي نه احاديث بيانول نو په دي وجه دهغه نه دبعضي روايتونو په سندونو کي غلطي واقع شوي ده کوم حديث چي هغه په کوم سند ابوقتاده ته رسولي دي دا هم دهغه غلطي ده.

ائمه ثلاثه حديث دابن عمر لره مستدل ګرځولي دي او دجابر په روايت يي مسامحه کړي وه مګر احناف په دواړو کي تاويل کوي خکه چي دا دواړه فعلي روايتونه دي.

***************

## ۸_ بَابُ مَا جَاءَ فِي النَّهْيِ عَنِ الْبَوْلِ قَائِمًا

## په ولاړه د اودس ماتولو د مما نعت بيان

۱۲_ حَدَّثَنَا عَلِيُّ بْنُ حُجْرٍ، أَخْبَرَنَا شَرِيكٌ، عَنِ الْمِقْدَامِ بْنِ شُرَيْحٍ، عَنْ أَبِيهِ، عَنْ عَائِشَةَ، قَالَتْ: مَنْ حَدَّثَكُمْ أَنَّ النَّبِيَّ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ كَانَ يَبُولُ قَائِمًا فَلَا تُصَدِّقُوهُ مَا كَانَ يَبُولُ إِلَّا قَاعِدًا ". قَالَ: وَفِي الْبَابِ عَنْ عُمَرَ، وَبُرَيْدَةَ، وَعَبْدِ الرَّحْمَنِ بْنِ حَسَنَةَ. قَالَ أَبُو عِيسَى: حَدِيثُ عَائِشَةَ أَحْسَنُ شَيْءٍ فِي هَذَا الْبَابِ وَأَصَحُّ، وَحَدِيثُ عُمَرَ إِنَّمَا رُوِيَ مِنْ حَدِيثِ عَبْدِ الْكَرِيمِ بْنِ أَبِي الْمُخَارِقِ، عَنْ نَافِعٍ، عَنِ ابْنِ عُمَرَ، عَنْ عُمَرَ، قَالَ: رَآنِي النَّبِيُّ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ وَأَنَا أَبُولُ قَائِمًا، فَقَالَ: "يَا عُمَرُ لَا تَبُلْ قَائِمًا ". فَمَا بُلْتُ قَائِمًا بَعْدُ. قَالَ أَبُو عِيسَى: وَإِنَّمَا رَفَعَ هَذَا الْحَدِيثَ عَبْدُ الْكَرِيمِ بْنُ أَبِي الْمُخَارِقِ وَهُوَ ضَعِيفٌ عِنْدَ أَهْلِ الْحَدِيثِ، ضَعَّفَهُ أَيُّوبُ السَّخْتِيَانِيُّ وَتَكَلَّمَ فِيهِ. وَرَوَى عُبَيْدُ اللهِ، عَنْ نَافِعٍ، عَنِ ابْنِ عُمَرَ، قَالَ: قَالَ عُمَرُ رَضِيَ اللهُ عَنْهُ: مَا بُلْتُ قَائِمًا مُنْذُ أَسْلَمْتُ. وَهَذَا أَصَحُّ مِنْ حَدِيثِ عَبْدِ الْكَرِيمِ، وَحَدِيثُ بُرَيْدَةَ فِي هَذَا غَيْرُ مَحْفُوظٍ. وَمَعْنَى النَّهْيِ عَنِ الْبَوْلِ قَائِمًا عَلَى التَّأْدِيبِ لَا عَلَى التَّحْرِيمِ، وَقَدْ رُوِيَ عَنْ عَبْدِ اللهِ بْنِ مَسْعُودٍ، قَالَ: إِنَّ مِنَ الْجَفَاءِ أَنْ تَبُولَ وَأَنْتَ قَائِمٌ. (۱)

**تخريج**: سنن النسائي/الطهارة ۲۵ (۲۹) . سنن ابن ماجه/الطهارة ۱۴ (۳۰۷) . (تحفة الأشراف : ۱۶۱۴۷) . مسند احمد (۶/۱۳۶، ۱۹۲، ۲۱۳) (تراجع الالباني /۱۲. الصحيحه: ۲۰۱)

**ترجمه**: دام المؤمنين عائشه رضي الله عنها بيان دي فرمائي که څوك درته حديث بيان کړي چي رسول الله صلي الله عليه وسلم په ولاړه اودس ماتولو نو تاسو يي تصديق مه کوئ يقينا چي هغه به په ناسته اودس ماتولو

امام ترمذي وائي په دي باب کي د عمر، بريده، او عبدالرحمن بن حسنه رضي الله عنهم نه هم احاديث وارد دي.

مگر په دي باب کي دعائشه رضي الله عنها مذکوره حديث دنورو په نسبت زيات صحيح دي.

دعمر رضي الله عنه په روايت کي دي چي يو خل زه نبي کريم صلي الله عليه وسلم په ولاړه د اودس ماتولو په حالت کي اوليدم نو راته يي اوفرمائيل اي عمر په ولاړه اودس مه ماتوه چنانچي ما ددينه پس هيڅ کله هم په ولاړه اودس نه دي مات کړي.

۱

Scanned with C

دعمر رضي الله عنه دا حديث عبدالكريم بن ابي المخارق مرفوعاً نقل كړي دي او هغه دمحدثينو په نزد ضعيف وو، ايوب سختياني دهغه تضعيف كړي دي او كلام يي ورباندي كړي دي، دا رنګي دا حديث دعبيدالله بن نافع نه او نافع دابن عمر نه نقل كړي دي چي عمر رضي الله عنه به فرمائيل ما چي دكله نه اسلام قبول كړي دي نو په ولاړه مي اودس نه دي مات كړي دا حديث دعبدالكريم بن ابي المخارق دحديث نه زيات صحيح دي په اعتبار دروايت سره.

په دي باب كي دبريده رضي الله عنه حديث محفوظ نه دي.

په ولاړه د اودس ماتولو ممانعت د ادب په اعتبار سره دي او دحرمت په اعتبار نه دي.

دعبدالله بن مسعود رضي الله عنه نه منقول دي چي په ولاړه اودس ماتول جفاء ده.

**حل لغات** صدقا: صدق يصدق دنصر نه صدقا په معني درښتياويلو دباب تفعيل نه په معني دتصديق كولو دي.

**تشريح:** په حديث الباب كي مذكور دي چي رسول الله صلي الله عليه وسلم هيڅ كله په ولاړه اودس نه دي مات كړي او دمذكوره بحث نه مابعد باب كي مذكور دي چي رسول الله صلي الله عليه وسلم په ولاړه اودس مات كړي دي ظاهرا په دواړو روايتونو كي تعارض دي ددي جواب دادي چي عائشه رضي الله عنها درسول الله صلي الله عليه وسلم عادت مستمره بيان كړي دي او دحذيفه رضي الله عنه په روايت كي دجزئي واقعي ذكر دي او كيدي شي چي عائشه رضي الله عنها ته ددي جزئي واقع علم نه وو.

په دي كي دعلماؤ اختلاف دي چي په ولاړه د اودس ماتولو څه حكم دي په دي باره كي دفقهاؤ څلور مذاهب دي.

## اختلاف دفقهاؤ په جواز او عدم جواز د بول قائما كي

(۱) دامام احمد په نزد باندي په ولاړه اودس ماتول مطلقا جائز دي.

(۲) مذهب داهل ظواهر دي ددوئ په نزد په ولاړه اودس ماتول مطلقا ناجائز دي.

(۳) مذهب دامام مالك دي دده په نزد په ولاړه اودس ماتولو كي كه دجامو ګنده كيدو خطره وي نو بيا ناجائز دي او كه دا خطره نه وي نو جائز دي.

(۴) مذهب دجمهورو دي ددوئ په نزد دعذر په وجه په ولاړه اودس ماتول جائز دي او بغير دعذر نه مكروه دي.

۱ـ دليل د امام احمد دحديث الباب نه پس باب كي دحذيفه رضي الله عنه حديث دي په كوم كي چي دا مذكور دي چي رسول الله صلي الله عليه وسلم په ولاړه اودس مات كړو ددي روايت نه معلومه شوه چي په ولاړه اودس ماتي كول جائز دي.

**جواب** کچري همدا روايت موجود وي نو بيا به ټهيك وه ليکن ددي په مقابل کي دنفي والا روايت هم موجود دي لکه حديث الباب او د عمر رضي الله عنه روايت کوم چي په عدم جواز دلالت کوي.

٢_ داهل ظواهر استدلال دزير بحث حديث دعائشه رضي الله عنها او دعمر رضي الله عنه دروايتونو نه دي په دي دواړو روايتونو کي دبول قائما نفي او ممانعت مذکور دي

**جواب** کچري دزيربحث باب مابعد باب دحذيفه رضي الله عنه حديث نه وي نو بيا به مسئله ددوئ صحيح وه ليکن په مابعدباب کي ددي په خلاف روايت موجود وي لهذا مسئله ددوئ درسته نه ده.

٣_ دمالکيانو استدلال دجمع بين الاحاديث قاعده ده چي په بعضي احاديثو کي نفي مذکور ده او په بعضي کي اثبات راغلي دي نو نفي والا روايات يي دجامو په ګنده کيدو محمول کړي دي او داثبات والا روايات يي دجامو په نه ګنده کيدو محمول کړي دي.

**جواب** دجمع بين الاحاديث دا طريقه نه ده بلکه اصل طريقه يي داده چي دبول قائما والا روايت په جواز محمول شي او دنفي والا روايت په کراهت محمول شي

۴_ دجمهورو دمذهب استدلال دادي چي په نفي او اثبات کي دواړه قسمه روايات وارد دي لهذا اثبات والا روايات به په جواز محمول وي په حالت دعذر کي او نفي والا روايت به په کراهت کي محمول وي په حالت دعدم عذر کي رسول الله صلي الله عليه وسلم په ولاړه ولي اودس مات کړي دي ددي دوه وجي دي، اوله وجه داده چي په زنګنانو کي يي څه بيماري وه او ددي تائيد دابوهريره رضي الله عنه دروايت نه کيږي کوم چي بيهقي نقل کړي دي "وفيه لجرح کان في مابضه" دويمه وجه داده چي رسول الله صلي الله عليه وسلم امت ته داسانئ ورکولو دپاره دجواز دپاره داسي کړي دي.

**سوال**: هر کله چي ددوئ په ضعف دمحدثينو اتفاق دي نو بيا امام مالك ددوئ نه په مؤطا کي ولي روايت نقل کوي.

جواب: دوئ دورع او تقوي او عدالت په اعتبار مشهور وو همدا وجه ده کله چي امام مالك ددوئ حالات واوريدل نو ددوئ د اخلاقو نه متاثره شو او ددي غلط فهمئ په بناء يي ددوئ نه نقل دروايت اوکړو.

**"وحديث ابي وائل" الخ.** بول قائما والا حديث ابو وائل ددوه کسانو نه نقل کړي دي اول مغيره بن شعبه رضي الله عنه نه، دويم حذيفه رضي الله عنه نه، امام ترمذي واني ابو وائل چي کوم حديث دحذيفه نه نقل کړي دي هغه اصح دي ددي وجه داده چي دمغيره بن شعبه دروايت په

سند كي دوه ضعيف راويان دي چي يو حماد بن ابي سلمه دي او دويم عاصم بن بهدله، او دحذيفه دروايت په سند كي اعمش راوي دي او اعمش ددوئ دواړو په مقابله كي ثقه دي.
حقيقت دادي اګر چي امام ترمذي دحذيفه روايت اصح ګرځولي دي ليكن دمغيره دروايت دصحت نه هم انكار نشي كيدي خكه چي دا امام مسلم هم نقل كړي دي په حقيقت كي دا دواړه جدا جدا روايتونه دي دمغيره په روايت كي دمسح علي الناصيه ذكر نشته. او دمغيره بن شعبه والا روايت دغزوه تبوك په واقعه كي دتبوك نه دواپسئ په وخت كي واقع شوي دي او ددي دواړو روايتونو په جدا جدا كيدو باندي يوه واضحه قرينه دا هم ده چي بعضي علماؤ په صاحب دقدوري اعتراض كړي دي چي هغه ددي دواړو روايتونو نه يو روايت جوړ كړي دي.

***************

## ٩ـ بَابُ الرُّخْصَةِ فِي ذَلِكَ

## په ولاړه داودس ماتولو د جواز بيان

١٣ـ حَدَّثَنَا هَنَّادٌ، حَدَّثَنَا وَكِيعٌ، عَنِ الأَعْمَشِ، عَنْ أَبِي وَائِلٍ، عَنْ حُذَيْفَةَ، أَنَّ النَّبِيَّ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ "أَتَى سُبَاطَةَ قَوْمٍ فَبَالَ عَلَيْهَا قَائِمًا، فَأَتَيْتُهُ بِوَضُوءٍ فَذَهَبْتُ لِأَتَأَخَّرَ عَنْهُ، فَدَعَانِي حَتَّى كُنْتُ عِنْدَ عَقِبَيْهِ، فَتَوَضَّأَ وَمَسَحَ عَلَى خُفَّيْهِ". قَالَ أَبُو عِيسَى: وسَمِعْت الجَارُودَ، يَقُولُ: سَمِعْتُ وَكِيعًا يُحَدِّثُ بِهَذَا الحَدِيثِ، عَنِ الأَعْمَشِ، ثُمَّ قَالَ وَكِيعٌ: هَذَا أَصَحُّ حَدِيثٍ رُوِيَ عَنِ النَّبِيِّ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ فِي المَسْحِ. وسَمِعْت أَبَا عَمَّارٍ الحُسَيْنَ بْنَ حُرَيْثٍ، يَقُولُ: سَمِعْتُ وَكِيعًا فَذَكَرَ نَحْوَهُ. قال أبو عيسى: وَهَكَذَا رَوَى مَنْصُورٌ، وَعُبَيْدَةُ الضَّبِّيُّ، عَنْ أَبِي وَائِلٍ، عَنْ حُذَيْفَةَ مِثْلَ رِوَايَةِ الأَعْمَشِ، وَرَوَى حَمَّادُ بْنُ أَبِي سُلَيْمَانَ، وَعَاصِمُ بْنُ بَهْدَلَةَ، عَنْ أَبِي وَائِلٍ، عَنِ المُغِيرَةِ بْنِ شُعْبَةَ، عَنِ النَّبِيِّ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ. وَحَدِيثُ أَبِي وَائِلٍ، عَنْ حُذَيْفَةَ أَصَحُّ، وَقَدْ رَخَّصَ قَوْمٌ مِنْ أَهْلِ العِلْمِ فِي البَوْلِ قَائِمًا. قال أبو عيسى: وَعَبِيدَةُ بْنُ عَمْرٍو السَّلْمَانِيُّ رَوَى عَنْهُ إِبْرَاهِيمُ النَّخَعِيُّ، وَعَبِيدَةُ مِنْ كِبَارِ التَّابِعِينَ، يُرْوَى عَنْ عَبِيدَةَ، أَنَّهُ قَالَ: أَسْلَمْتُ قَبْلَ وَفَاةِ النَّبِيِّ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ بِسَنَتَيْنِ، وَعُبَيْدَةُ الضَّبِّيُّ صَاحِبُ إِبْرَاهِيمَ هُوَ عُبَيْدَةُ بْنُ مُعَتِّبٍ الضَّبِّيُّ، وَيُكْنَى: أَبَا عَبْدِ الكَرِيمِ. ([1])

---

[1] صحيح البخاري/الوضوء ٦٠ (٢٢٢) و٦١ (٢٢٥) و٦٢ (٢٢٦) والمظالم ٢٧ (٢٤٧١) صحيح مسلم/الطهارة ٢٢ (٢٧٣) سنن ابي داود/ الطهارة ١٢ (٢٣) سنن النسائي/الطهارة ١٧، ٢٤ (١٨، ٢٦، ٢٧، ٢٨) سنن ابن ماجه/الطهارة ١٣ (٣٠٥) (تحفة الأشراف: ٣٣٣٥) مسند احمد (٥/٣٩٣) سنن الدارمي/الطهارة ٩ (٦٩٥)

**ترجمه** دحذيفه رضي الله عنه نه روايت دي فرمائي چي يو خل په يو قومي مشترك ډيران باندي نبي كريم صلي الله عليه وسلم تيريدل اوشول نو رسول الله په دي باندي اودريدو او اودس يي مات كړو ما ورله د اودس دپاره اوبه راوړي ما چي د اوبو لوښي ورکړو نو شاته ورنه راوړاندي شوم نو زه يي په اشاره راوغوښتلم زه چي ورنژدي شوم نو دپوندو سره يي اودريدم او بيا يي اودس اوكړو او پخپلو موزو يي مسح اوكړه.
امام ترمذي وائي دوكيع قول دي چي دا حديث دمسح په سلسله كي درسول الله صلي الله عليه وسلم نه په مروي احاديثو كي دټولو نه زيات صحيح دي.
دا حديث دمغيره بن شعبه رضي الله عنه په روايت سره هم درسول الله نه مروي دي. دابو وائل روايت كوم چي هغه دحذيفه نه نقل كړي دي زيات صحيح دي، او په اهل علمو كي يو جماعت په ولاړه د اودس ماتولو اجازت وركړي دي.
**لغات**: دعي يدعو دعاءً معني رابلل او چغه او اواز كول.
اسلم يسلم اسلاما يعني دين اسلام اختيارول ، بيع سلم كول، العدو. دشمن پريخودل، اسلمت امره الي الله ، الله ته سپارل ، اسلمته وسلمته كله چي ته څوك پريږدي ، الشيء قبضه كول، منه بيزاره كيدل.

**تشريح**: شاه صاحب دمعارف السنن په حواله ليكلي دي چي دبول قائما اصل حكم كراهت وو په معني دخلاف اولي ليكن كله چي دا دغير مسلمه فاسقانو او فاجرانو شعار جوړ شو نو اوس به ددي حكم دحرمت وي.
صاحب د تحفة الاحوذي ورباندي اعتراض كړي دي هر كله چي دبول قائما رخصت تاسو تسليم كړو نو بيا ورباندي دحرمت حكم څنګه كوئ او محض يو څيز ددي وجي نه ترك كول چي دا دغير مسلمو معمول بها دي صحيح قول نه دي.
قال ابو عيسي امام ترمذي دلته دسند حال بيانوي چي دا روايت په دوه سندونو بدليږي خكه چي په دي كي مركزي راوي ابو وائل دي او دهغه نه لاندي پنځه شاګردان دي اول اعمش، دويم منصور، دريم عبيده، څلورم حماد بن ابي سليمان، پنځم عاصم بن بهدله په دي پنځه واړو كي اولني دري كسان اعمش او منصور او عبيده دا روايت دمسنداتو دحذيفه نه شماري او باقي دواړه چي حماد او عاصم دي دمسنداتو دمغيره نه شماري امام ترمذي ددي فيصله كوي چي دا روايت دمسنداتو دحذيفه نه دي او دليل ددي دادي چي اولني دري راويان په حفظ كي اثبت دي او د اثبت حافظ روايت راجح وي
نبي كريم صلي الله عليه وسلم چي په ولاړه اودس مات كړي دي بعضي علماؤ ددي دا وجه بيان كړي ده چي خاي ډير ګنده وو جامي رانغښتل پكي مشكل وو نو خكه يي په ولاړه اودس مات

کړي دي او دبعضو په قول په ملا کي يي درد وو چي علاج يي دعربو په نزد په ولاړه اودس ماتول وو او بعضي علماؤ دا فعل دجواز په بيان محمول کړي دي.
ددي حديث نه دا هم ثابته شوه چي دخلقو په وړاندي وړه او لويه استنجاء کول جائز دي خو په دي شرط چي پرده وي لکه نن سبا چي په کورونو کي بيت الخلاء گاني جوړي شوي دي او هلته خلق دخلقو په موجودگئ کي استنجاء کوي ځکه چي هلته دپردي انتظام موجود وي.
رسول الله ﷺ دجواز دبيان دپاره هم خلاف اولي کار کړي دي خو دا دنبي په حق کي خلاف اولي نه وي ځکه چي نبي دتشريع دپاره وي مگر دا کار سنت نه وي دسنت تعريف دادي "الطريقة المسلوكة في الدين" او دجواز دبيا دپاره چي عمل اوشي هغه ديني لاره نه وي صرف دمجبورئ حکم وي.

## د حذيفه رضي الله عنه حالات دزندگئ

نوم حذيفه کنيه ابو عبدالله لقب صاحب السر دقبيله بن غطفان سره يي تعلق وو دده پلار حذيفه په جاهليت کي څوك قتل کړی وو نو په دي وجه ددشمنئ نه دبچ کيدو دپاره په مدينه کي اوسيدو حذيفه دمديني نه مکي ته لاړو داسلام قبلولو دپاره، دغزوه بدر نه علاوه په تمامو غزواتو کي شريك پاتي شوی دی او عهد نبوي يي په مدينه کي تير کړی دی او بيا ددينه پس عراق، کوفه، نصيبين او مدائن ته منتقل شوی دی او په نصيبين کي يي شاگردي هم کړي ده (اسد الغابه).
عمر فاروق رضي الله عنه دعراق فتح کيدو نه پس په دجله کي حذيفه رضي الله عنه امير مقرر کړو (کتاب الخراج لامام ابو يوسف او بيا دمدائن والي مقرر کړی شو.
حذيفه رضي الله عنه دفقه او حديث لوي عالم وو او دمنافقانو په پيژندو کي يي خصوصي مهارت وو په همدي وجه ورته درسول الله صلي الله عليه وسلم رازدار ونيلی شي دی پخپله وائي ددي وخت نه دقيامته پوري راتلونکي ټولي فتني پيژنم، ليکن ددينه دي څوك دا معلومه نکړي چي زما نه علاوه بل چاته نه دي معلومي وجه داده چي رسول الله صلي الله عليه وسلم په دي باره کي مونږ ټولو ته په يو مجلس کي خبر راکړی دی خو اوس په هغوئ کي زما نه علاوه بل هيڅوك ژوندی نشته.
دزهد او تقوي يي دا حالت وو چي دامارت باوجود يي په معاشرت کي څه تعير نه وو راغلی دتواضع په وجه به يي دخورلئ کار دخر نه اخستلو او په ډير لږ قوت لايموت رزق به يي گذاره کوله او ددينه زيات به يي دځان سره نه ساتلو عمر رضي الله عنه ورته څه مال هم اوليږلو ليکن هغه يي په خلقو تقسيم کړو
وفات: دهجرت په ۳۲کال عثمان رضي الله عنه دوفات نه څلوينښت ورځي پس وفات شو چي په اخري عمر کي په ډيره ژړا کي مصروف وو خلقو ورنه دوجي تپوس اوکړو نو په جواب کي يي

اووئيل ددنيا دپريښودو غم راسره نشته مرګ خو يو دوست دی ليکن په دي خفه يم چي زما انجام او حشر به څه وي کله چي بي اخري ساه واخستله نو ويې فرمائيل ستا ملاقات دي زما سره ماته مبارك شي خکه چي زما درسره انتهائي زياته مينه ده (مسند احمد)

دحذيفه رضي الله عنه دسلو نه زيات روايات منقول دي چي دولس متفق عليه دي او اته صرف په بخاري کي دي او اولس په مسلم کي دي (تهذيب الکمال)

*****************

## ١٠_ بَابُ مَا جَاءَ فِي الِاسْتِتَارِ عِنْدَ الحَاجَةِ

## داودس ماتي وخت کي دځان په پرده کي ساتلو بيان

١٤_ حَدَّثَنَا قُتَيْبَةُ بْنُ سَعِيدٍ، حَدَّثَنَا عَبْدُ السَّلَامِ بْنُ حَرْبٍ المُلَائِيُّ، عَنْ الأَعْمَشِ، عَنْ أَنَسٍ، قَالَ: كَانَ النَّبِيُّ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ "إِذَا أَرَادَ الحَاجَةَ لَمْ يَرْفَعْ ثَوْبَهُ حَتَّى يَدْنُوَ مِنَ الأَرْضِ". قَالَ أَبُو عِيسَى: هَكَذَا رَوَى مُحَمَّدُ بْنُ رَبِيعَةَ، عَنْ الأَعْمَشِ، عَنْ أَنَسٍ هَذَا الحَدِيثَ، وَرَوَى وَكِيعٌ، وَأَبُو يَحْيَى الحِمَّانِيُّ، عَنْ الأَعْمَشِ، قَالَ: قَالَ ابْنُ عُمَرَ: "كَانَ النَّبِيُّ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ إِذَا أَرَادَ الحَاجَةَ لَمْ يَرْفَعْ ثَوْبَهُ حَتَّى يَدْنُوَ مِنَ الأَرْضِ". وَكِلَا الحَدِيثَيْنِ مُرْسَلٌ، وَيُقَالُ: لَمْ يَسْمَعْ الأَعْمَشُ مِنْ أَنَسٍ وَلَا مِنْ أَحَدٍ مِنْ أَصْحَابِ النَّبِيِّ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ. وَقَدْ نَظَرَ إِلَى أَنَسِ بْنِ مَالِكٍ، قَالَ: رَأَيْتُهُ يُصَلِّي، فَذَكَرَ عَنْهُ حِكَايَةً فِي الصَّلَاةِ، وَالأَعْمَشُ اسْمُهُ: سُلَيْمَانُ بْنُ مِهْرَانَ أَبُو مُحَمَّدٍ الكَاهِلِيُّ، وَهُوَ مَوْلًى لَهُمْ. قَالَ الأَعْمَشُ: كَانَ أَبِي حَمِيلًا فَوَرَّثَهُ مَسْرُوقٌ. [1]

**ترجمه** دانس رضي الله عنه نه روايت دي فرماني کله چي به رسول الله صلي الله عليه وسلم داودس ماتولو اراده اوکړه نو څو پوري چي به زمکي ته نزدي شوي نه وو ترهغي به يي خپلي جامي نه پورته کولي

په دويم سند کي داعمش نه روايت دي. دابن عمر رضي الله عنهما قول دي کله چي به رسول الله صلي الله عليه وسلم داودس ماتولو اراده اوکړه نو څو پوري چي به زمکي ته نزدي شوي نه وو ترهغي به يي خپلي جامي نه پورته کولي

امام ترمذي وائي دا دواړه احاديث مرسل دي خکه چي ونيلي شوي دي چي ددواړو احاديثو راوي سليمان بن مهران الاعمش نه پخپله دانس بن مالك رضي الله عنه نه اوريدل کړي دي او نه دکوم بل صحابي په ذريعه صرف دومره خبره ده چي انس يي صرف ليدلي دي اعمش وائي

---

[1] سنن ابي داود/ الطهارة ٦ (١٤) (تحفة الأشراف : ٨٩٢) سنن الدارمي/ الطهارة ٧ (٦٩٣)

چي ما انس رضي الله عنه په مونځ كولو ليدلي دي او بيا يي دهغه دمونځ كيفيت بيان كړي دي

**تشريح** په دي باب كي دا مسئله بيان كړي شوي ده چي د اودس ماتولو وخت كي د عورت دستر مكمل اهتمام پكار دي لكه څرنګه چي به نبي كريم صلي الله عليه وسلم دقضا حاجت په وخت كي زمكي ته كله نژدي شو نو كشف دعورت به يي اوكړو ترڅو چي دضرورت نه بغير كشف دعورت اونشي ددينه دا هم معلومه شوه چي دخلوت په حالت كي هم بغير دضرورت نه كشف د عورت جائز نه دي ددي حديث نه فقهاؤ دوه اصول مستنبط كړي دي (١) الضرورة تبيح المحظورات" دويم الضروري يتقدر بقدر الضرورة" .

وكلا الحديثين مرسل: دامام ترمذي قول دي چي دزير بحث باب روايت عبدالسلام بن حرب او محمد بن ربيع دمسنداتو دانس نه ګرځولي دي ليكن وكيع او رحماني دمسنداتو دابن عمر رضي الله عنهما نه ګرځولي دي امام ترمذي وائي چي دا حديث په دواړو صورتونو كي مرسل يعني منقطع دي ځكه چي داعمش سماع دكوم صحابي نه ثابته نه ده صرف هغه يو ځل انس رضي الله عنه دمونځ كولو په حالت كي ليدلي وو او دهغه دمونځ حكايت يي نقل كړي دي

"والاعمش " اعمش يو مشهور محدث دي دده اسم كنيه ابو محمد او نوم يي سليمان دي دپلار نوم يي مهران دي او نسبت يي كاهلي ته شوي دي سلسله دنسب يي داده ابو محمد سليمان بن مهران الكاهلي

"وهو مولي لهم" په دي عبارت ذكر كولو كي ديته اشاره ده چي دسليمان نسبت قبيله بنوكاهله ته دنسبت په وجه نه دي بلكه دا دعتاقي په وجه دي يعني سليمان د قبيله بنوكاهله ازاد كړي غلام دي

"كان ابي حميلا فورثه مسروق" اعمش وائي چي زما پلار مهران حميل وو حميل هغه ماشوم ته وئيلي شي كوم چي دمور سره دګرفتاريدو په حالت كي دارالاسلام ته راوړلي شي فرماني كله چي زما د پلار پلار وفات شو نو مسروق زما پلار دمال وارث اوګرځولو

دي وضاحت ته ضرورت په دي وجه راغي چي په دي مسئله كي اختلاف دي چي حميل دخپلو والدينو وارث وي او كنه وي په دي دوه مذاهب دي دامام ابو حنيفه په نزد كچري مور دحميل نسب په ګواهانو ثابت كړي او يا دمور په ذوي الفروض او عصباتو كي څوك نه وي نو حميل به وارث وي او كه مور يي صرف اقرار كړي وي بغير دګواهانو نه نو په دي صورت كي به وارث نه وي مګر دامام شافعي وغيره په نزد دمور په اقرار سره حميل وارث ګرځي دليل ددوي دادي چي مسروق مهران لره دمور وارث ګرځولي دي ددينه معلومه شوه چي حميل مطلقا وارث وي

## د حديث دراوي انس بن مالك رضي الله عنه مختصر حالات

نوم انس او كنيه يي ابو حمزه او لقب يي خادم رسول الله قبيله يي بنو نجار وه او دپلار نوم يي مالك او دمور نوم يي ام سليم سهله بنت ملحان انصاريه وه درشتي په لحاظ سره ام سليم درسول الله صلي الله عليه وسلم ترور كيدله.

انس رضي الله عنه داته يا نهه كالو په عمر كي دخپلي مور سره يو ځاي مسلمان شوی وو كله چي لس كالو ته ورسيدو نو مور يي اوونيل اي دالله رسوله انس پخپله غلامئ كي قبول كړه نو رسول الله قبول كړو تقريبا لس كاله درسول الله صلي الله عليه وسلم په خدمت كي پاتي شو په سفر او حضر كي به ورسره يو ځاي وو او په صلح حديبيه، بيعت رضوان، خيبر طائف، او حجة الوداع كي يي درسول الله سره ملګرتيا كړي ده

صديق اكبر رضي الله عنه دبحرين عامل مقرر كړو او عمر فاروق رضي الله عنه دتعليم او تربيت دپاره بصري ته وليږلو دفتني په زمانه كي ګوشانشين شو، دده په زندګئ په خصوصي عاداتو كي حق ګويي، تواضع، اشاعت اسلام حب رسول او اتباع رسول شامل وو.

مرويات: انس رضي الله عنه دمكثرينو صحابه كرامو دجملي نه وو دده دمروياتو تعداد ۱۲۸۲ دی چي ۱۳۸ يكي متفق عليه دي او ۸۲ صرف په بخاري كي دي او ۷۱ صرف په مسلم كي دي (تهذيب الكمال).

وفات: د هجرت په ۹۳ كال كي دسلو كالو نه په زيات عمر كي وفات شو دوفات كيدو نه مخكي يي خپل شاګرد ثابت بناني ته اوونيل چي زما دژبي نه لاندي درسول الله صلي الله عليه وسلم ويخته مبارك كيږده نو هغه دحكم تعميل اوكړو او په همدي حال كي ورنه روح پرواز اوكړو غرض دا چي قسطن بن كلاب وربانديي جنازه اوكړه او خپل كور ته نزدي په لف مقام كي دفن كړی شو.

**************

## ۱۱_ بَابُ مَا جَاءَ فِي كَرَاهَةِ الاِسْتِنْجَاءِ بِالْيَمِينِ

## په ښي لاس داستنجاء كولو دكراهت بيان

دابوقتاده په حديث كي دسړو دپاره داندام مخصوصه مسح كولو دكراهت بيان راغلي ددينه دتش اودس ماتي داستنجاء حكم معلوميږي او دلوي استنجاء په حكم هم دلالت كوي، دا حكم په استنجاء پوري خاص نه دي بلكه عام دي، ښي لاس دښو كارونو دپاره استعمالول پكار دي لكه خوړل، څكل. قران يا كتاب راخستل وغيره ښه كارونو دپاره ښي لاس استعمالول پكار دي او تمام ناكاره كارونه په ګس لاس كول پكار دي مثلا په پوزه يا غوږ كي ګوته وهل پوزه پاكول وره يا لويه استنجاء كولو دپاره چپ لاس استعمالول پكار دي او دا داسلامي شريعت

خوبي ده چي د خكلو خبرو تعليم يي وركړي دي او انساني عقل دي خبرو ته رسائي كولي نشي تاسو دهغه خلقو حال ته اوګورئ څوك چي دشريعت درنړا نه محروم وي هغوئ ټول كارونه په ښي لاس كوي او په ښي لاس باندي استنجاء كوي او خوړل وربانډي هم كوي يورپيان چي خان ته مهذب وائي دهغوئ ذهن ته خو دا خبره راغلي ده چي مونږ په ښي لاس استنجاء كوو نو په دي وجه په دي باندي خوراك كول پكار نه دي نو په دي وجه هغوئ په چمچ خوراك كول شروع كړل ليكن دنن تاريخ پوري يي په دي خبره سوچ نه دي كړي چي لاسونه په ښه او بد كارونو تقسيم كړي دا دنبي كريم صلي الله عليه وسلم احسان دي چي امت يي دچمچو نه بچ كړي دي او د لاسونو په تقسيم يي مسئله حل كړي ده.

١٥ـ حَدَّثَنَا مُحَمَّدُ بْنُ أَبِي عُمَرَ الْمَكِّيُّ. حَدَّثَنَا سُفْيَانُ بْنُ عُيَيْنَةَ. عَنْ مَعْمَرٍ. عَنْ يَحْيَى بْنِ أَبِي كَثِيرٍ. عَنْ عَبْدِ اللَّهِ بْنِ أَبِي قَتَادَةَ. عَنْ أَبِيهِ. أَنَّ النَّبِيَّ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ " نَهَى أَنْ يَمَسَّ الرَّجُلُ ذَكَرَهُ بِيَمِينِهِ ". وَفِي هَذَا الْبَابِ: عَنْ عَائِشَةَ. وَسَلْمَانَ. وَأَبِي هُرَيْرَةَ. وَسَهْلِ بْنِ حُنَيْفٍ. قال أبو عيسى: هَذَا حَسَنٌ صَحِيحٌ. وَأَبُو قَتَادَةَ الأَنْصَارِيُّ اسْمُهُ: الْحَارِثُ بْنُ رِبْعِيٍّ. وَالْعَمَلُ عَلَى هَذَا عِنْدَ عَامَّةِ أَهْلِ الْعِلْمِ: كَرِهُوا الِاسْتِنْجَاءَ بِالْيَمِينِ. ([1])

**ترجمه**: ابوقتاده حارث بن ربعي الانصاري رضي الله عنه بيان دي چي رسول الله صلي الله عليه وسلم ددينه ممانعت فرمائيلي دي چي يو انسان پخپل ښي لاس خپله شرمګاه مسح كړي.

په دي باب كي دعائشه، سلمان، ابوهريره، او سهل بن حنيف رضي الله عنهم نه هم احاديث وارد دي.

امام ترمذي وائي دا حديث حسن صحيح دي، او داكثرو اهل علمو معمول بها دي او هغوئ په ښي لاس استنجاء كول مكروه ګنړلي دي.

**حل لغات** نهي نهوا، نهيا دنصر نه په معني دمنع كولو دي

**تشريح**: په دي باب كي اودس ماتي ته دكيناستو دطريقي بيان دي دقضاء حاجت پوره كولو نه پس استنجاء ته ضرورت راځي نو په دي كي داستنجاء دطريقي بيان دي دلته دا سوال راځي چي ترجمة الباب په منزله د دعوي دي دلته په مينځ د دعوي او دليل كي مطابقت نشته خكه

[1] صحيح البخاري/الوضوء ١٨ (١٥٣) و١٩ (١٥٤) والأشربة ٢٥ (٥٦٣٠) صحيح مسلم/الطهارة ١٨ (٢٦٤) سنن ابي داود/ الطهارة ١٨ (٣١) سنن النسائي/الطهارة ٢٣ (٢٤، ٢٥) سنن ابن ماجه/الطهارة ١٥ (٣١٠) (تحفة الأشراف: ١٢١٠٥) مسند احمد (٥/٢٩٦، ٣٠٠، ٣١٠) سنن الدارمي/ الطهارة ١٣ (٧٠٠)

Scanned with C

چي دليل عام دي او دعوي خاص ده اوچي کوم روايت امام ترمذي ذکر کړي دي په دي کي بالکل داستنجاء ذکر نشته ددي جواب دادي چي په عنوان کي داستنجاء ذکرکولو نه معلوم شول چي دا روايت مطلق دي ليکن محمول دي په حالت داستنجاء باندي او قرينه وربانديروايت دابوداود دي چي "نهي رسول الله صلي الله عليه وسلم ان يمس الرجل ذکره بيمينه وهو يبول" او دوړوکي اودس ماتي نه پس خو استنجاء ته ضرورت خامخا راځي بعضي علماؤ دا جواب کړي دي چي دلته ممانعت مطلق دي بعضي خلقو دا اعتراض کړي دي چي په ابوداود کي داستنجاء قيد ولي راغلي دي ددي دوه جوابونه دي (۱) جواب حالت داستنجاء هم في الجمله ضرورت دي او هر کله چي دضرورت په موقع جائز نه دي نو بغير دضرورت نه به څنګه جائز وي (۲) جواب دادي چي دبول په حالت کي مس الذکر باليمين ته ضرورت راځي تردي چي دمتيازو څاڅکي خواره نشي پس هر کله چي دحاجت په صورت کي شريعت ديمين استعمالولو نه ممانعت کړي دي نو په استنجاء کي خو يمين استعمالول په طريقه اولي ممنوع دي ځکه چي دبول حالت خفيف دي او داستنجاء حالت غليظ دي او دخفيف نه غليظ مفهوم کيږي نو اوس به حديث دعنوان مطابق شي

## داستنجاء باليمين متعلق دفقهاؤ اختلاف

داستنجاء باليمين باره کي دفقهاؤ دوه اقوال دي. (۱) دجمهورو قول دي چي استنجاء باليمين مکروه تنزيهي ده (۲) قول داهل ظواهر دي دوئ وائي که چا په ښي لاس استنجاء اوکړه نو دا به شرعا معتبر نه وي.

دجمهورو دليل: دوئ دحديث الباب نه استدلال کوي چي په باب کي نهي ده او نهي دتنزيهي او تحريمي دواړو دپاره کيدي شي ليکن چونکه مستدل خبرواحد دي نو په دي وجه به حرمت نه ثابتيږي بلکه مکروه تنزيهي به وي او د ادابو دقبيلي نه به وي او دا دمحاسن اخلاق تعليم دي چي دهر ښه کار دپاره ښي لاس استعمال شي او دناکاره کار دپاره ګس لاس استعمال شي

## ابوقتاده حارث بن ربعي رضي الله عنه حالات:

نوم ابوقتاده لقب فارس رسول الله صلي الله عليه وسلم په خزرج قبيله کي يي دسلمه خاندان سره تعلق وو.

دهجرت نه لس کاله مخکي په مدينه کي پيدا شوی وو او دغزوه بدر نه علاوه يي په تمامو غزواتو کي شرکت کړی وو علي رضي الله عنه ده لره دمکي امير مقرر کړی وو قتاده ډير زيات متواضع وو او د درس حلقه يي په همدي وجه وسيع وه په حديبيه کي چي کله درسول الله صلي الله عليه وسلم سره مکي ته تلو نو په لاره کي يي ددوستانو او ملګرو سره ټوقي او خندا کوله (مسند احمد).

په غزوه حنين کي چي دلويو لويو جانبازانو قدمونه اوخويدل نو پدغه وخت کي دابوقتاده

خپې مضبوطي وي دحديث په بيانولو کي يي ډير احتياط کولو چي کله يي درسول الله صلي الله عليه وسلم نه من كذب علي متعمدا والا روايت واوريدو نو نور زيات احتياط يي هم شروع کړو (مسند احمد)
وفات دده په وفات کي اختلاف دی بعضو ۴۹هجري کوفه ليکلي ده ليکن داکثرو په نزد دپنځوس او شپيتوو په مينځ کي دده وفات شوی دی
دده د مروياتو شمير ۱۷۰دی چي يولس په بخاري او مسلم کي متفق عليه دي دولس په بخاري کي دي او اته په مسلم کي دي

****************

## ١٢_ بَابُ الِاسْتِنْجَاءِ بِالْحِجَارَةِ

## په کاڼړي داستنجاء کولو بيان

١٦_ حَدَّثَنَا هَنَّادٌ، حَدَّثَنَا أَبُو مُعَاوِيَةَ، عَنِ الأَعْمَشِ، عَنْ إِبْرَاهِيمَ، عَنْ عَبْدِ الرَّحْمَنِ بْنِ يَزِيدَ، قَالَ: قِيلَ لِسَلْمَانَ: قَدْ عَلَّمَكُمْ نَبِيُّكُمْ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ كُلَّ شَيْءٍ حَتَّى الخِرَاءَةَ. فَقَالَ سَلْمَانُ: "أَجَلْ. نَهَانَا أَنْ نَسْتَقْبِلَ القِبْلَةَ بِغَائِطٍ أَوْ بَوْلٍ، وَأَنْ نَسْتَنْجِيَ بِاليَمِينِ أَوْ أَنْ يَسْتَنْجِيَ أَحَدُنَا بِأَقَلَّ مِنْ ثَلَاثَةِ أَحْجَارٍ، أَوْ أَنْ نَسْتَنْجِيَ بِرَجِيعٍ أَوْ بِعَظْمٍ". قَالَ أَبُو عِيسَى: وَفِي البَابِ عَنْ عَائِشَةَ، وَخُزَيْمَةَ بْنِ ثَابِتٍ، وَجَابِرٍ، وَخَلَّادِ بْنِ السَّائِبِ، عَنْ أَبِيهِ. قَالَ أَبُو عِيسَى: وَحَدِيثُ سَلْمَانَ فِي هَذَا البَابِ حَدِيثٌ حَسَنٌ صَحِيحٌ. وَهُوَ قَوْلُ أَكْثَرِ أَهْلِ العِلْمِ مِنْ أَصْحَابِ النَّبِيِّ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ وَمَنْ بَعْدَهُمْ: رَأَوْا أَنَّ الِاسْتِنْجَاءَ بِالحِجَارَةِ يُجْزِئُ وَإِنْ لَمْ يَسْتَنْجِ بِالمَاءِ إِذَا أَنْقَى أَثَرَ الغَائِطِ وَالبَوْلِ، وَبِهِ يَقُولُ الثَّوْرِيُّ، وَابْنُ المُبَارَكِ، وَالشَّافِعِيُّ، وَأَحْمَدُ، وَإِسْحَاقُ.[1]

**ترجمه** : عبدالرحمان بن يزيد وائي چي سلمان فارسي رضي الله عنه ته په طور دخوش طبعئ اوونيلي شول چي ستاسو نبي خو تاسو ته ټول څيزونه خودلي دي تردي چي اودس ماتول يي هم درته خودلي دي. سلمان فارسي په طور دفخر اوونيل همداسي ده زمونږ نبي مونږ دوړوکي يا لوي اودس ماتي په وخت کي قبلي ته دمخامخ کيناستو نه منع کړي يو او په ښي لاس يي داستنجاء کولو نه منع کړي يو او د دري کاڼړو يا لوټو نه په کمو د استنجاء کولو نه يي منع کړي يو او په هډوکو يا وچو خوشيانو يي داستنجاء کولو نه منع کړي يو

---

[1] صحيح مسلم الطهارة (٢٦٢) سنن ابي داود الطهارة (٧) سنن النسائي الطهارة (٤١) سنن ابن ماجه الطهارة (٣١٦) (تحفة الأشراف : ٤٥٠٥) مسند احمد (٥/٤٣٧، ٤٣٨، ٤٣٩)

امام ترمذي واني په دي باب کي د عائشه، خزيمه بن ثابت، جابر او خلاد بن السائب رضي الله عنهم نه هم احاديث وارد دي

- دسلمان فارسي رضي الله عنه حديث په دي باب کي حسن صحيح دي په صحابه کرامو او تابعينو کي داکثرو اهل علمو همدا قول دي چي په کانړي استنجاء کول کافي دي مگر کله چي دا د ډکو او تشو متيازو اثر زائل کړي او پاکي راولي اګر که په اوبو يي استنجاء نه وي کړي همدا قول دامام ثوري ، ابن مبارك، شافعي، احمد بن حنبل او اسحاق بن راهويه (رحمهم الله) رحمهم الله دي

**حل لغات** يستقبل د واحد مذکر غائب مضارع معلوم د باب استفعال صيغه ده په معني د مخ کرخولو دی قبلي ته.

الخراۃ بکسرالخاء معني تشو او ډکو متيازو ته د کيناستو حالت ته وئيلي شي او که بفتح الخاء شي نو په معني دنجاست به وي مګر دلته اولنئ معني مراد ده.

اليمين ښي لاس ، يا ښي طرف. تثنيه يمينان او جمع يمينيات راځي.

بالاحجار احجار جمع د حجر ده په معني د کانړي

اجل دا په حروف ايجاب کي يو حرف دي دنعم پشان مګر په دواړو کي فرق دادي چي نعم داستفهام نه پس راځي او اجل دخبر نه پس راځي. خلقو په سلمان فارسي اعتراض اوکړو چي ستاسو نبي خو دبول براز نوعيت بيانوي سلمان فارسي اووئيل هو کوم څيز چي تاسو موجب دطعن ګڼړئ هغه په حقيقت کي دهغه وصف ممدوح دي.

**تشريح :**

## په استنجاء بالاحجار کي دکانړو دتعداد بيان

په دي باره کي دفقهاؤ اختلاف دي چي داستنجاء بالاحجار په صورت کي دري عدد ضروري دي او کنه دي په دي باره کي دوه مذاهب دي (۱) مذهب دامام ابوحنيفه او امام مالك دي دوئ د دريو عدد ضروري نه ګڼړي دوئ واني چي مقصود طهارت دي دا چي په څومره کانړو حاصليږي هم دومره کانړي استعمالول پکار دي البته په استعمال کي دوتر لحاظ کول مستحب وي.

ددوئ اولني دليل روايت دابوهريره دي چي ابوداود نقل کړي دي وفيه "من استجمر فليوتر من فعل فقد احسن ومن لا فلا حرج" يعني په استنجاء کي که چا دري کانړي استعمال کړل نو ښه يي اوکړل او که چا داسي اونکړل نو هيڅ حرج نشته ددينه معلومه شوه چي داستنجاء دپاره کوم خاص عدد استعمالول مسنون نه دي.

ددوئ دويم دليل متصل راتلونکي دعبدالله بن مسعود رضي الله عنه روايت دي چي ماته نبي

كريم صلي الله عليه وسلم داستنجاء دپاره د دري کاڼړو راوړلو حکم اوکړو نو ما دوه کاڼړي او يو اوچ خوشايي راوړلو نو رسول الله صلي الله عليه وسلم کاڼړي واخستل او اوچ خوشايي يي اوغورځول او ويې فرمائيل چي دا نجس دي او بيا يي د دريم کاڼړي راوړلو حکم اونکړو کچري دري عدد ضروري وي نو د دريم کاڼړي راوړلو حکم به يي کړي وي

دويم مذهب دامام شافعي او امام احمد بن حنبل دي ددوئ په نزد داستنجاء بالاحجار په صورت کي دري عدد ضروري دي.

ددوئ دليل حديث الباب دي وفيه "او ان يستنجي احدنا باقل من ثلاثة احجار" يعني داستنجاء بالاحجار په صورت کي نبي کريم صلي الله عليه وسلم مونږ د دري نه دکمو کاڼړو او لوړو داستعمال نه منع کړي وو

د دريو ذکر يي ځکه کړي دي چي دري کاڼړي لوتي عموما کفايت کوي لکه په ابوداود کي چي دعائشه رضي الله عنها نه روايت دي چي رسول الله صلي الله عليه وسلم فرمائيلي دي داستنجاء دپاره به دري کاڼړي دځان سره اوړي ځکه چي دا داستنجاء دپاره کفايت کوي دويمه وجه داده چي دري عدد دوتر يو فرد دي او د ايتار داستحباب مونږ هم قائل يو.

**دابوعبدالله سلمان الفارسي رضي الله عنه حالات**

نوم مجوسي مايه وو داسلام قبلولو نه پس ورباندي سلام نوم کيخودى شو کنيه يي ابو عبدالله ده نسب نامه يي داسي ده مايه بن لوذ خشان بن مرسلان بن بهنوخان بن پيروز بن سهرك.

دجاهليت په زمانه کي په مجوسيت کي هم ډير کلك وو دده شمير په هغه اورپرست خلقو کي شوى دى کومو چي به په هيڅ وخت کي اور وژلو ته نه پريخودو بيا عيسائي مذهب ته مائل شو او په دي سلسله کي يي دمتعددو فادريانو سره وخت تير کړو اخري فادري ورته درسول الله صلي الله عليه وسلم دراتلو بشارت ورکړى وو کله چي دى رسول الله ته راورسيدو نو مسلمان شو رسول الله دده او دابوالدرداء ورورولي قائمه کړه.

دده اولنئ غزوه خندق وه او دخندق نه پس بيا په تمامو غزواتو کي شريك شوى دى (مسند احمد).

عمر رضي الله عنه ده لره دمدائن والي مقرر کړى دى دده په زندګئ کي يو څو صفات ډير پرقيدونکي وو اول زهد او تقوي دويم درهبانيت نه نفرت ، دريم صادقي، څلورم سخاوت، پنځم دصدقاتو

اخستلو نه اجتناب کول ، مروي دي چي دعثمان رضي الله عنه په زمانه کي وفات شوى دى دده عمر دبعضو په نزد دوه سوه پنځوس يا دري سوه پنځوس کاله وو دده دمروياتو تعداد ۲۰ دى ابوسعيد خدري ، ابن عباس، اوس بن مالك رضي الله عنهم وغيره دده شاګردان دي مزيد حالت يي طبقات ابن سعد او تهذيب الکمال کي کتلى شئ.

***************

## ١٣_ بَابُ مَا جَاءَ فِي الِاسْتِنْجَاءِ بِالْحَجَرَيْنِ

## په دوه کا نړو د استنجاء کولو بیان

په لوټو باندې داستنجاء کونکو دپاره کم از کم درې لوټي استعمالول پکار دي. او ددينه په کم باندې اکتفاء کول نه دي پکار. پاتې شوه دا چې درې عدد واجب دې او که سنت دې په دې کې دعلماؤ اختلاف دی. او دوه کاڼو نه په دې کې اجماعي دي يو دا چې په استنجاء کې صفائي ضروري ده چې په هر څومره لوټو حاصليږي. کچرې بغير دصفا کيدو نه استنجاء کونکي مونځ کوي نو مونځ يې نه کيږي. دويمه دا خبره اجماعي ده که په درې کاڼو دچا صفائي اونه شي او ځلورمې ته ضرورت وي نو بيا طاق لوټي استعمالول مستحب دي. ليکن که په يوه يادوه لوټو صفائي اوشي نو د درې لوټو دپوره کولو څه حکم دې لهذا دا مسئله اختلافي ده او اختلاف د دلائلو نه دي بلکه اجتهادي دي

١٧_ حَدَّثَنَا هَنَّادٌ، وَقُتَيْبَةُ، قَالَا: حَدَّثَنَا وَكِيعٌ، عَنْ إِسْرَائِيلَ، عَنْ أَبِي إِسْحَاقَ، عَنْ أَبِي عُبَيْدَةَ، عَنْ عَبْدِ اللَّهِ، قَالَ: خَرَجَ النَّبِيُّ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ لِحَاجَتِهِ فَقَالَ: "الْتَمِسْ لِي ثَلَاثَةَ أَحْجَارٍ". قَالَ: فَأَتَيْتُهُ بِحَجَرَيْنِ وَرَوْثَةٍ، فَأَخَذَ الْحَجَرَيْنِ وَأَلْقَى الرَّوْثَةَ، وَقَالَ: "إِنَّهَا رِكْسٌ". قَالَ أَبُو عِيسَى: وَهَكَذَا رَوَى قَيْسُ بْنُ الرَّبِيعِ هَذَا الْحَدِيثَ، عَنْ أَبِي إِسْحَاقَ، عَنْ أَبِي عُبَيْدَةَ، عَنْ عَبْدِ اللَّهِ، نَحْوَ حَدِيثِ إِسْرَائِيلَ، وَرَوَى مَعْمَرٌ، وَعَمَّارُ بْنُ رُزَيْقٍ، عَنْ أَبِي إِسْحَاقَ، عَنْ عَلْقَمَةَ، عَنْ عَبْدِ اللَّهِ، وَرَوَى زُهَيْرٌ، عَنْ أَبِي إِسْحَاقَ، عَنْ عَبْدِ الرَّحْمَنِ بْنِ الْأَسْوَدِ، عَنْ أَبِيهِ الْأَسْوَدِ بْنِ يَزِيدَ، عَنْ عَبْدِ اللَّهِ، وَرَوَى زَكَرِيَّا بْنُ أَبِي زَائِدَةَ، عَنْ أَبِي إِسْحَاقَ، عَنْ عَبْدِ الرَّحْمَنِ بْنِ يَزِيدَ، عَنِ الْأَسْوَدِ بْنِ يَزِيدَ، عَنْ عَبْدِ اللَّهِ، وَهَذَا فِيهِ اضْطِرَابٌ. حَدَّثَنَا مُحَمَّدُ بْنُ بَشَّارٍ الْعَبْدِيُّ، حَدَّثَنَا مُحَمَّدُ بْنُ جَعْفَرٍ، حَدَّثَنَا شُعْبَةُ، عَنْ عَمْرِو بْنِ مُرَّةَ قَالَ: سَأَلْتُ أَبَا عُبَيْدَةَ بْنَ عَبْدِ اللَّهِ: هَلْ تَذْكُرُ مِنْ عَبْدِ اللَّهِ شَيْئًا؟ قَالَ: لَا. قَالَ أَبُو عِيسَى: سَأَلْتُ عَبْدَ اللَّهِ بْنَ عَبْدِ الرَّحْمَنِ: أَيُّ الرِّوَايَاتِ فِي هَذَا الْحَدِيثِ عَنْ أَبِي إِسْحَاقَ أَصَحُّ؟ فَلَمْ يَقْضِ فِيهِ بِشَيْءٍ. وَسَأَلْتُ مُحَمَّدًا عَنْ هَذَا؟ فَلَمْ يَقْضِ فِيهِ بِشَيْءٍ وَكَأَنَّهُ رَأَى حَدِيثَ زُهَيْرٍ، عَنْ أَبِي إِسْحَاقَ، عَنْ عَبْدِ الرَّحْمَنِ بْنِ الْأَسْوَدِ، عَنْ أَبِيهِ، عَنْ عَبْدِ اللَّهِ أَشْبَهَ وَوَضَعَهُ فِي كِتَابِ الْجَامِعِ. قَالَ أَبُو عِيسَى: وَأَصَحُّ شَيْءٍ فِي هَذَا عِنْدِي حَدِيثُ إِسْرَائِيلَ، وَقَيْسٍ، عَنْ أَبِي إِسْحَاقَ، عَنْ أَبِي عُبَيْدَةَ، عَنْ عَبْدِ اللَّهِ، لِأَنَّ إِسْرَائِيلَ أَثْبَتُ وَأَحْفَظُ لِحَدِيثِ أَبِي إِسْحَاقَ مِنْ هَؤُلَاءِ، وَتَابَعَهُ عَلَى ذَلِكَ قَيْسُ بْنُ الرَّبِيعِ. قَالَ أَبُو عِيسَى: سَمِعْتُ أَبَا مُوسَى مُحَمَّدَ بْنَ الْمُثَنَّى، يَقُولُ: سَمِعْتُ

Scanned with C

عَبْدَ الرَّحْمَنِ بْنَ مَهْدِيٍّ، يَقُولُ: مَا فَاتَنِي الَّذِي فَاتَنِي مِنْ حَدِيثِ سُفْيَانَ الثَّوْرِيِّ، عَنْ أَبِي إِسْحَاقَ إِلَّا لِمَا اتَّكَلْتُ بِهِ عَلَى إِسْرَائِيلَ. قَالَ أَبُو عِيسَى: وَزُهَيْرٌ فِي أَبِي إِسْحَاقَ لَيْسَ بِذَاكَ لِأَنَّ سَمَاعَهُ مِنْهُ بِآخِرَةٍ، قَالَ: وسَمِعْت أَحْمَدَ بْنَ الحَسَنِ التِّرْمِذِيَّ، يَقُولُ: سَمِعْتُ أَحْمَدَ بْنَ حَنْبَلٍ، يَقُولُ: إِذَا سَمِعْتَ الحَدِيثَ عَنْ زَائِدَةَ وَزُهَيْرٍ فلا تبالي أن لا تسمعه من غيرهما إلا حديث أبي إسحاق، وأبو إسحاق اسمه: عمرو بن عبد الله السبيعي الهمداني، وأبو عبيدة بن عبد الله بن مسعود لم يسمع من أبيه ولا يعرف اسمه. ([1])

**ترجمه** : دعبدالله ابن مسعود رضي الله عنه بيان دي فرمائي کله چي به رسول الله صلي الله عليه وسلم دقضاء حاجت دپاره اووتلو نو فرمائيل به يي ما دپاره دري لوټي پيدا کړه نو ما يو ورته دوه لوټي او يو اوچ خوشايي راوړو او په خدمت نبوي کي مي پيش کړل نو دوه لوټي يي رانه واخستلي او د اوچ خوشايي تکړه يي اوغورځوله او وېي فرمائيل دا ناپاک دي

امام ترمذي دلته روايت دابن مسعود په سند د

اسرائيل عن ابي اسحاق عن ابي عبيده عن عبدالله بن مسعود نقل کولو نه پس داسرائيل په متابعت کي دقيس بن ربيع روايت ذکر کړي دي او بيا يي د

معمرو او عمار بن رزيق عن ابي اسحاق عن علقمه عن ابن مسعود روايت ذکر کړي دي.

او بيا يي په سند دزکريا بن ابي زائده او زهير عن ابي اسحاق عن عبدالرحمن بن يزيد عن اسود بن يزيد عن عبدالله ابن مسعود روايت ذکر کړي دي او فرمائيلي يي دي چي په حديث کي اضطراب دي او همدا رنګي داسرائيل روايت يي صحيح ترين ګرځولي دي او ترجيح يي ورکړي دي او دي لره محمد بن اسماعيل بخاري پخپل صحيح کي ځاي ورکړي دي او دترجيح ذکر يي کړي دي، مګر دامام ترمذي استدلال دادي چي اسرائيل او قيس عن ابي اسحاق زيات صحيح روايت دي ځکه چي اسرائيل عن ابواسحاق والاحديث سند زيات يقيني دي او قيس هم داسرائيل متابعت کړي دي، واضح دي وي چي زهير دابو اسحاق نه دا روايت په اخري عمر کي اوريدلي دي، او په اخري عمر کي ابواسحاق په عقل کي اختلاط راغلي وو نو ځکه دده روايت داسرائيل دروايت په مقابل کي قوي نه دي، امام ترمذي وائي دابو اسحاق نوم عمرو بن

---

[1] تفرد به المؤلف بهذا السند (تحفة الأشراف ٩٦٣٢) . وأخرجه كل من صحيح البخاري/الطهارة ٢١ (١٥٦) و سنن النسائي/الطهارة ٣٨ (٤٢) وسنن ابن ماجه/الطهارة ١٦ (٣١٣) من طريق الأسود بن يزيد عنه كما في تحفة الأشراف : ٩١٧٠)

عبدالله السبيعي الهمداني دي او ابو عبيده بن عبدالله بن مسعود دخپل پلار نه اوريدل نه دي کړي او نه يي چاته نوم معلوم دي.

**حل لغات** التمس: التمس يلتمس التماسا د امر صيغه ده د باب افتعال نه په معني د لټولو او تلاش کولو سره استعماليږي.

**تشريح** : په دي باب کي امام ترمذي دري پيري قال ابو عيسي کلمات ذکر کړي دي په اولني قال ابو عيسي کي دحديث په سند کي اضطراب واضح کوي او په دويم قال ابوعيسي کي داضطراب درفع دپاره دامام بخاري رائي ذکر کوي او دخپلي رائي اظهار کوي او په دريم قال ابو عيسي کي دامام بخاري دقول ترديد کوي.

**اضطراب** په اضطراب دپوهيدونه مخکي دسند معلومول ضروري دي ددي سند مدار په ابو سحاق دي او دده نه نقل کونکي شاګردان شپږ دي نو دشاګردانو په اعتبار به سندونه شپږ شي:

(١) اسرائيل عن ابي اسحاق عن ابي عبيدة عن عبدالله

(٢) قيس بن ربيع عن ابي اسحاق عن ابي عبيدة عن عبدالله

(٣) معمر و عن ابي اسحاق عن علقمه عن عبدالله

(٤) عمار بن زريق عن ابي اسحاق عن علقمه عن عبدالله

(٥) زهير عن ابي اسحاق عن عبدالرحمن بن اسود عن ابيه اسود بن يزيد عن عبدالله

(٦) زکريا بن ابي زائده عن ابي اسحاق عن عبدالرحمن بن يزيد عن عبدالله.

اوس به راشو اضطراب ته ددي روايت په سند کي دوه قسمه اضطراب دي اول اضطراب دادي چي د ابو اسحاق او عبدالله بن مسعود په مينځ کي واسطه يوه ده او که دوه دي؟ زهير ددوئ په مينځ کي دوه واسطي نقل کوي چي يو عبدالرحمن بن اسود دي او دويم اسود بن يزيد دي او دده نه علاوه باقي پنځه شاګردان يوه واسطه نقل کوي.

دويم اضطراب دادي چي دابواسحاق او عبدالله بنْ مسعود په مينځ کي واسطه څوک ده؟داسرائيل او قيس بن ربيع په سند کي واسطه ابو عبيده ده، او دمعمرو او عمار په سند کي واسطه علقمه ده او دزکريا بن ابي زائده په سند کي واسطه عبدالرحمن بن يزيد دي.

دمذکوره اضطراب ختمولو دپاره امام ترمذي وائي چي ما ددي اسنادي اضطراب په باره کي دعبدالله بن عبدالرحمن دارمي نه تپوس اوکړو چي په دي روايتونو کي کوم يو روايت اصح دي؟ او هغه راته فيصله کونکي جواب رانکړو ، بيا مي دامام بخاري نه تپوس اوکړو نو هغه راته هم کوم فيصله کونکي جواب رانکړو ليکن دامام بخاري دطرز عمل نه معلوميده چي

دهغه په نزد زهير والاسند راجح دي خکه چي هغه په صحيح البخاري کي دزهير دسند تخريج کړي دي.

**دابو عبد الرحمن دارمي د قول جواب:** امام ترمذي وائي چي زما په نزد په دي تولو رواياتو کي داسرائيل روايت په دوه وجو اصح او راجح دي يوه وجه داده چي قيس بن ربيع داسرائيل متابع موجود دي دويمه وجه داده چي اسرائيل دباقي تمامو رواياتو په مقابله کي دهر چانه زيات اثبت او احفظ دي ددي قول دتائيد په طور يي يو قول پيش کړي دي چي ابو موسي بن مثني په فرمائيل چي د عبدالرحمن بن مهدي نه مي دا خبره اوريدلي ده سفيان ثوري چي به دابواسحاق نه روايات نقل کول ما هغه روايات صرف په دي وجه پريخودلي دي چي هغه روايات ماته داسرائيل نه حاصل شوي وو او هغه دا په اتم طريقه سره نقل کولو.

**دامام بخاري دقول جواب:** امام ترمذي دبخاري دقول دترديد په حال کي فرمائي چي زهير والا سند معتبر نه دي خکه چي دزهير سماع دابواسحاق نه ثابت نه ده خکه چي دا دهغه په اخري عمر کي شوي دي او دابواسحاق په حافظه کي په اخري عمر کي کمزوري راغلي وه او ددي قول دتائيد دپاره امام ترمذي داحمد بن حسن قول نقل کړي دي هغه به وئيل ما داحمد بن حنبل نه دا خبره اوريدلي ده چي کله دي دزائده او زهير نه حديث واوريدلو نو بيا ددي خبري پرواه مه کوه چي د بل چا نه ددي داوريدو کوشش اوکړي خکه چي دوئ دواړه ثقه راويان دي مګر ددوئ هغه احاديث معتبر نه دي کوم چي دابو اسحاق نه نقل کوي خکه چي دابو اسحاق سره ددوئ ملاقات او سماع دهغه په اخري عمر کي شوي وه، او په دغه وخت کي دهغه په حافظه کي تغير واقع شوي وو

"وابو عبيدة بن عبدالله بن مسعود لم يسمع من ابيه" په دي عبارت کي امام ترمذي داسرائيل روايت ته دترجيح ورکولو نه پس دا اعتراض کوي چي دابو عبيده سماع دعبدالله بن مسعود نه ثابت نه ده لهذا دا روايت منقطع دي ددي جواب دادي ددي روايت په باره کي دامام ترمذي دانقطاع دعوي درسته نه ده خکه چي دعبدالله بن مسعود رضي الله عنه دوفات په وخت کي دابو عبيدة عمر اوه کاله وو او دحديث دتحمل دپاره دومره عمر کافي دي همدا وجه ده چي محدثينو ابو عبيده لره اعلم الناس بعلم ابن مسعود ګڼرلو.

**مذاهب دفقهاؤ په باره د "استنجاء بالاحجار وترا بالتثليث"** په دي باره کي دفقهاؤ دوه مذاهب دي:

**اول مذهب** دامام ابو حنيفه او مام مالك او دکوفي دفقهاؤ دي چي صفائي واجب ده او تثليث مستحب دي.

**دويم مذهب** دشوافع او حنابله دي دوئ وائي چي انقاء او تثليث دواړه واجب دي او كه د دري لوټو نه زيات استعمالوي نو ايتار به مستحب وي.

احنافو او مالكيانو ددي دعوي دپاره دحديث الباب نه استدلال كړي دي چي "فاتيت بحجرين وروثة فاخذ الحجرين والقي الروثة وقال انها ركس" په دي موقع كي رسول الله په دوه لوټو اكتفاء كړي ده ددينه معلومه شوه چي تثليث واجب نه دي.

دويم دليل ابو داود دابوهريره رضي الله عنه روايت نقل كوي "من استجمر فليوتر من فعل فقد احسن ومن لا فلا حرج" يعني څوك چي داستنجاء دپاره لوټي استعمالول غواړي نو طاق عدد دي استعمال كړي كه چا داسي اوكړل نو ښه يي اوكړل او كه چا داسي اونكړل نو هيڅ حرج نشته.

داحنافو دريم دليل قياس دي چي اصل مقصد انقاء ده عدد نه دي په ترمذي ابواب الجنائز كي يو روايت دي كله چي رقيه رضي الله عنها وفات شوه نو نبي كريم صلي الله عليه وسلم اوفرمائيل پنځه پيري ورته غسل وركړئ امام ترمذي هلته ليكي كه چا د دري پيرو نه كم مړي ته غسل وركړو نو دا به هم كافي وي دري يا پنځه پيري صرف مستحب دي.

دشوافع حنابله دليل دوه قسمه احاديث دي: (۱) د دري لوټو نه دكمو لوټو استعمالولو نهي نشته لكه حديث دسلمان فارسي رضي الله عنه (۲) هغه احاديث دي په كومو كي چي داحجار ثلاثه ذكر دي لكه حديث دعائشه رضي الله عنها "اذا ذهب احدكم الي الغائط فليذهب معه ثلاثة احجار".

اولني قسم احاديثو كي د دريو نه دكم تعداد نهي نشته ددي دا وجه نه ده چي دري لوټي استعمالول واجب دي بلكه ددي وجه داده چي په عام طور د دري لوټو نه په كم باندي انقاء المحل نه راځي او دا نهي تنزيهي ده او د دويم قسم احاديثو جواب دادي چي دا حكم په طور دوجوب نه دي بلكه استحبابي دي ځكه چي عموما په دري لوټو په استعمال انقاء دمحل راځي او قرينه وربانديي دا حديث دعائشه دي "فانها تجزي عنه" او په بعضي مواقعو كي شوافع پخپله هم دثلاثه عدد په استحباب حمل كوي مثلا په باب غسل الميت كي يي يو حديث ذكر كړي دي ارشاد نبوي دي "اغسلها ثلاثا او اغسلها وترا" په دي موقع كي يي دامام شافعي قول نقل كړي دي چي مقصود اصلي انقاء دنجاست ده او ذكر دتثليث داستحباب پاره دي لهذا دلته هم داسي ده.

**د حديث دراوي عبدالله بن مسعود رضي الله عنه مختصر حالات**

نوم عبدالله كنيه ابو عبدالرحمان او دپلار نوم مسعود او دمور نوم يي ام عبد وه، اسد الغابه

کي دده داسلام راوړو واقعه داسي ليکلي ده چي يوه ورځ رسول الله صلي الله عليه وسلم دابوبکر رضي الله عنه سره روان وو او عبدالله بن مسعود په لاره کي چيلي څرولي صديق اکبر ورته ېي: اوغوښتل عبدالله ورته اووئيل دا چيلۍ ما سره امانت دی خکه يي نشم درکولی رسول الله صلي الله عليه وسلم ورته اوفرمائيل ايا ستا سره داسي چيلۍ هم شته چي بچي يي نه وي راوړي عرض يي اوکړو هو نوهغه چيلۍ يي پيش کړه رسول الله ورباندي لاس رابنکل نو غلانځ يي دشودونه ډکه شوه غرض دا چي دوۍ دري واړو په مړه خيټه اوڅکل نو ابن مسعود ددي معجزي دليدو نه پس مسلمان شو او ددينه پس يي خپل ټول ژوند په خدمت نبوي صلي الله عليه وسلم کي تير کړو (اسد الغابه).

کله چي دده مديني ته هجرت اوکړو او راغی نو رسول الله ورته دمسجد نبوي سره متصل يوه ټوټه زمکه ورکړه (طبقات ابن سعد).

په تمامو عزواتو کي رسول الله سره ملګری پاتي شوی دی او دهجرت په شلم کال دکوفي قاضي مقرر شو او لس کاله يي هلته قضاوت اوکړو خصوصي اوصاف يي دادي چي دعلم سره يي انتهائي شوق وو او دقران کريم دتفسير ماهر هم وو په قرءت کي ورته هم کمال حاصل وو رسول الله صلي الله عليه وسلم ورنه پخپله هم قران اوريدلی دی ابن مسعود به دروايت په بيانولو کي ډير احتياط کولو او دخپلي زماني دفقهاؤ سردار هم وو شقيق ابن ابراهيم به په مسجد کي ناست وو اودابن مسعود دراوتو انتظار به يي کولو (مسند احمد).

وفات: ۳۲هجري کي دشپيته کالو په عمر کي وفات شو او عثمان بن عفان رضي الله عنه ورباندي جنازه اوکړه او دعثمان بن مظعون په خوا کي دفن کړی شوطبقات ابن سعد

مرويات: دده دمروياتو شمير ۸۴۸ دی ۶۴متفق عليه دي ۲۱ صرف په بخاري کي او ۳۵صرف په مسلم کي (تهذيب الكمال ۲۳۴).

*****************

## ١٤_ بَابُ مَا جَاءَ فِي كَرَاهِيَةِ مَا يُسْتَنْجَى بِهِ

## په کوموا شياؤ چه استنجاء کول مکروه دي

عبدالله ابن مسعود رضي الله عنه دا ارشاد نقل کوي چي رسول الله صلي الله عليه وسلم فرمائيلي دي په هډوکو او خوشيانو استنجاء مه کوئ خکه چي دا اشياء ستاسو درونړو جناتو خوراك دي رسول الله صلي الله عليه وسلم جناتو ته رونړه يا خو دمسلمان کيدو په وجه وئيلي دي او يا دا چي په دي امت کي شامل دي يا دترحم جذبي راپارولو دپاره يي فرمائيلي دي لکه چي ارشاد نبوي دي هيڅ يوه ښخه دي دخپلي خور دطلاق مطالبه نه کوي په دي روايت کي دترحم په وجه دبني نه په خور تعبير شوي دي، خوشيان او هډوکي ځنګه د جناتو خوراك کيدي

شي هغه داسي چي کله دجناتو په دي باندي تيريدل کيږي نو الله تعالي په هډوکو کي غوښه او په خوشيانو کي دانه پيدا کړي نو چي کومه غوښه په هډوکو پيداشوي وي هغه دمسلمان جن خوراك وي او چي په خوشيانو کي کومه دانه پيداشوي وي هغه دکافرجن خوراك وي او دهغوئ څاروي يې خوري. دبعضي علماؤ خيال دي چي په هډوکو پيداشوو غوښودتمامو جناتو خوراك دي مسلمان وي او که کافر وي او په خوشيانو کي پيدا شوي داني دجناتو دڅاروو خوراك دي يو قول دا هم دي چي دحلال څاروي په هډوکي دمسلمان جن دپاره غوښه پيداکيږي او دمردار څاروي هډوکو غوښه دکافر جن دپاره پيدا کيږي غرض دا چي په هډوکواو خوشيانو استنجاء کولو ممانعت لغيره دي او غير خو يا دهډوکي سليخناك کيدل دي او دخوشيانو ناپاك کيدل دي او يا دا چي دا هډوکي دجناتو خوراك دي او په نهي لغيره کي في نفسه جواز موجود دي پس که څوك په هډوکي يا خوشايي استنجاء اوکړي او صفائي يي راشي نو استنجاء به يي درسته وي او مونځ به يي صحيح وي.

١٨ـ حَدَّثَنَا هَنَّادٌ، حَدَّثَنَا حَفْصُ بْنُ غِيَاثٍ، عَنْ دَاوُدَ بْنِ أَبِي هِنْدٍ، عَنِ الشَّعْبِيِّ، عَنْ عَلْقَمَةَ، عَنْ عَبْدِ اللَّهِ بْنِ مَسْعُودٍ قَالَ: قَالَ رَسُولُ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ: "لَا تَسْتَنْجُوا بِالرَّوْثِ وَلَا بِالْعِظَامِ فَإِنَّهُ زَادُ إِخْوَانِكُمْ مِنَ الْجِنِّ". وَفِي الْبَابِ: عَنْ أَبِي هُرَيْرَةَ، وَسَلْمَانَ، وَجَابِرٍ، وَابْنِ عُمَرَ. قَالَ أَبُو عِيسَى: وَقَدْ رَوَى هَذَا الْحَدِيثَ إِسْمَاعِيلُ بْنُ إِبْرَاهِيمَ وَغَيْرُهُ، عَنْ دَاوُدَ بْنِ أَبِي هِنْدٍ، عَنِ الشَّعْبِيِّ، عَنْ عَلْقَمَةَ، عَنْ عَبْدِ اللَّهِ، أَنَّهُ كَانَ مَعَ النَّبِيِّ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ لَيْلَةَ الْجِنِّ الْحَدِيثَ بِطُولِهِ، فَقَالَ الشَّعْبِيُّ: إِنَّ النَّبِيَّ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ قَالَ: "لَا تَسْتَنْجُوا بِالرَّوْثِ وَلَا بِالْعِظَامِ فَإِنَّهُ زَادُ إِخْوَانِكُمْ مِنَ الْجِنِّ"، وَكَأَنَّ رِوَايَةَ إِسْمَاعِيلَ أَصَحُّ مِنْ رِوَايَةِ حَفْصِ بْنِ غِيَاثٍ. وَالْعَمَلُ عَلَى هَذَا الْحَدِيثِ عِنْدَ أَهْلِ الْعِلْمِ. وَفِي الْبَابِ: عَنْ جَابِرٍ، وَابْنِ عُمَرَ رَضِيَ اللَّهُ عَنْهُمَا. [1]

**ترجمه** : دعبدالله بن مسعود رضي الله عنه بيان دي فرمائي چي رسول الله صلي الله عليه وسلم فرمائيلي دي په خوشيانو او هډوکو استنجاء مه کوئ ځکه چي دا ستاسو دجناتو رونړو خوراك دي.

دامام ترمذي قول دي چي په دي باب کي دابوهريره ، سلمان، جابر، او ابن عمر رضي الله عنهم نه هم احاديث مروي دي.

[1] تفرد به المؤلف (أخرجه النسائي في الكبرى) (تحفة الأشراف: ٩٢٦٥)

اسماعيل بن ابراهيم وغيره په سند د داود بن ابي هند عن شعبي عن علقمه روايت نقل كړي دي چي عبدالله بن مسعود رضي الله عنه په ليلة الجن كي د نبي كريم صلي الله عليه وسلم سره ملګري وو او بيا يي وړاندي پوره اوږد حديث ذكر كړي دي، شعبي وائي چي رسول الله فرمائيلي دي په خوشيانو او هډوكو استنجاء مه كوئ ځكه چي دا ستاسو دجناتو رونړو خوراك دي.

ګويا كي داسماعيل بن ابراهيم روايت دحفص بن غياث نه روايت نه زيات صحيح دي.

داهل علمو په همدي باندي عمل دي.

او په دي باب كي دجابر او ابن عمر رضي الله عنهما نه هم احاديث مروي دي.

**تشريح** : په زير بحث حديث كي د دوه څيزونو ذكر دي چي استنجاء كول ورباندي مكروه دي

(۱) **زوث** ، يعني خوشيان وغيره په دي باندي داستنجاء دمكروه كيدو دوه وجي دي يوه وجه داده چي دا دجناتو دسورلو خوراك دي دويمه وجه داده چي دا پخپله نجس څيز دي نو طهارت ورباندي څنګه حاصل شي.

**دويم څيز عظام دي**، يعني هډوكي په دي باندي داستنجاء كولو دكراهت دوه وجوهات دي يوه وجه داده چي دا دجناتو خوراك دي چي الله تعالي به هډوكي دجناتو دپاره دغوښي نه ډك كړي دويم دا چي په دي كي دضرر احتمال دي ځكه چي دهډوكي دتيره والي په وجه په دي كي داستنجاء كونكي دزخمي كيدو قوي احتمال دي.

**سوال** : دترمذي په روايت كي مذكوردي چي هډوكي به دغوښي نه ډكولي شي ليكن په دي روايتونو كي ظاهرا تعارض دي او هغه داسي چي دمسلم په روايت كي مذكور دي چي دذبح شوي څاروي هډوكي به دغوښي نه ډك كړي شي او دترمذي په روايت كي دمردار څاروي هډوكي دغوښي نه ډكيدل ذكر شوي دي ظاهرا په دواړو روايتونو كي تعارض دي

**جواب(۱)**: دمسلم روايت دمسلمان جن په باره كي دي او دترمذي روايت دكافر جن په باره كي دي "فلا تعارض".

**جواب(۲)**: د دواړو روايتونو مينځ كي به تطبيق داسي كيږي چي يو د اصولو مطابق دي او "اصول دادي حفظ كل مالم يحفظه الاخر" يعني بعضي وختونو كي رسول الله دوه يا د دوو نه زياتي خبري بيان كړي دي بعضي راوي يوه ياده ساتلي وي او بعضي راوي بله نقل كړي وي او ياده يي ساتلي وي علي هذا القياس په دي مقام كي داسي شوي دي چي رسول الله به بيان كړي وي چي الله تعالي به هډوكو لره دجناتو دپاره دغوښي نه ډك كړي مذبوح وي او كه غير مذبوح وي نو يوراوي مذبوح ياد ساتلي دي او نقل كړي يي دي او دويم راوي غير مذبوح ياد ساتلي دي او بيا يي نقل كړي دي.

**سوال**: ايا كراهت داستنجاء په همدي دوه څيزونو پوري خاص دي او کنه دي.
**جواب**: ممانعت صرف په دي دوه څيزونو پوري خاص نه دي بلکه فقهاؤ د دينه دعلت استنباط کړي دي يعني هر هغه څيز کوم چي مکروه وي هغه غذاء وي نجس وي او که ضرر رسونکي وي خو استنجاء کول ورباندي مکروه دي
**سوال**: "فانه ذات" الخ. په دي کلماتو کي هـ ضمير روث او عظام ته راجع دي ضمير مفرد دي او مرجع جمع ده په راجع او مرجع کي مطابق نشته او حال دا دي چي په دوئ کي مطابقت ضروري وي.
**جواب**: ه ضمير په مذکوره تاويل روث او عظام ته راجع دي

"وکان رواية اسماعيل" الخ. دلته امام ترمذي دا بيانول غواړي چي زير بحث باب روايت دوه راويانو نقل کړي دي اول حفص بن غياث دي هغه دا روايت مرفوع او متصل بيان کړي دي دويم اسماعيل بن ابراهيم دي هغه موقوف بيان کړي دي او همدا امام ترمذي اصح ګرځولي دي او د امام مسلم په کارکردګئ هم ددي تائيد کيږي.
**د راوي حالات**: په ماقبل باب کي د ابن مسعود رضي الله عنه حالات د زندګئ مفصل بيان شوي دي هلته يي په تفصيل سره کتلی شئ. والله اعلم.

*****************

## ١٥ـ بَابُ مَا جَاءَ فِي الاِسْتِنْجَاءِ بِالْمَاءِ

## په اوبود استنجا کولو بيان

١٩ـ حَدَّثَنَا قُتَيْبَةُ، وَمُحَمَّدُ بْنُ عَبْدِ المَلِكِ بْنِ أَبِي الشَّوَارِبِ البصري، قَالَا: حَدَّثَنَا أَبُو عَوَانَةَ، عَنْ قَتَادَةَ، عَنْ مُعَاذَةَ، عَنْ عَائِشَةَ، قَالَتْ: "مُرْنَ أَزْوَاجَكُنَّ أَنْ يَسْتَطِيبُوا بِالمَاءِ فَإِنِّي أَسْتَحْيِيهِمْ، فَإِنَّ رَسُولَ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ كَانَ يَفْعَلُهُ". وَفِي البَابِ عَنْ جَرِيرِ بْنِ عَبْدِ اللَّهِ البَجَلِيِّ، وَأَنَسٍ، وَأَبِي هُرَيْرَةَ. قَالَ أَبُو عِيسَى: هَذَا حَسَنٌ صَحِيحٌ، وَعَلَيْهِ العَمَلُ عِنْدَ أَهْلِ العِلْمِ: يَخْتَارُونَ الاِسْتِنْجَاءَ بِالمَاءِ، وَإِنْ كَانَ الاِسْتِنْجَاءُ بِالحِجَارَةِ يُجْزِئُ عِنْدَهُمْ، فَإِنَّهُمْ اسْتَحَبُّوا الاِسْتِنْجَاءَ بِالمَاءِ وَرَأَوْهُ أَفْضَلَ، وَبِهِ يَقُولُ: سُفْيَانُ الثَّوْرِيُّ، وَابْنُ المُبَارَكِ، وَالشَّافِعِيُّ، وَأَحْمَدُ، وَإِسْحَاقَ.[1]

---

[1] سنن النسائي/الطهارة ٤١ (٤٦) (تحفة الأشراف: ١٧٩٧٠)

**ترجمه** : دام المؤمنين عائشه رضي الله عنها بيان دي چي تاسو ښځي خپلو خاوندانو ته اوواني چي په اوبو دي استنجاء کوي او زه چي ورته دا خبري کوم نو ماله شرم راځي ځکه چي رسول الله صلي الله عليه وسلم به هم داسي کول.
امام ترمذي واني دا حديث حسن صحيح دي.
په دي باب کي د جرير بن عبدالله بجلي، انس او ابوهريره رضي الله عنهم نه هم احاديث وارد دي، او په همدي داهل علمو عمل دي او هغوئ په اوبو باندي استنجاء کول خوښوي اګر چي په کاڼړو استنجاء کول ددوئ په نزدي کافي دي خوبيا هم هغوئ په اوبو باندي استنجاء کول مستحب او افضل ګرځولي دي، سفيان ثوري، ابن مبارك، شافعي، احمد، او اسحاق بن راهويه (رحمهم الله) رحمهم الله هم ددي قول قائلين دي.
**حل لغات** : يجزي دضرب نه معني قادر کيدل اود باب افعال نه معني بدله ورکول.
**تشريح** : ددي باب قائمولو وجه داده چي دبعضي اسلافو نه داستنجاء بالماء ممانعت مستفاد دي محدثينو په دوئ باندي درد کولو دپاره د استنجاء بالماء عنوان قائم کړي دي ددي دليل حديث دعائشه رضي الله عنها دي کوم چي ذکر شو ددينه معلومه شوه چي استنجاء بالماء ثابت دي او چاچي ددينه انکار کړي دي هغوئ واني چي اوبه دمشروباتو نه دي چي کوم څيز زاد الجن دي په هغي استنجاء کول ممنوع دي نو په زاد الانس باندي خو په طريقه اولي ممنوع کيدل پکار دي، جواب دادي بيشکه چي اوبه د زاد دقبيلي نه دي ليکن ددوئ دتخليق اصل مقصد دتطهير اله کيدل دي.

## داستنجاء بالماء حکم

کله چي نجاست د قدر د درهم نه تجاوز نه وي کړي نو استنجاء بالماء به په دي صورت کي مستحب وي او که د قدر د درهم نه يي تجاوز کړي وي نو دي صورت کي به استنجاء بالماء فرض او واجب وي او دا حکم اتفاقي دي.

## داستنجاء بالماء مقدار

فقهاء واني چي داوبو دپاره هيڅ مقدار متعين نه دي ترڅو پوري چي څليښت موجود وي نو د اوبو استعمال جاري ساتل پکار دي او که دچا اودس ماتي سخت وي نو اوبه کمي لګي او که نرم وي نو زياتي لګي دا رنګي که کاڼړي استعمالوي نو کم استعاليږي او که نرم وي نو زيات استعماليږي لهذا په اوبو کي کومه اندازه نشته داطمينان لحاظ کول پکار دي، په بذل المجهود کي دي چي کله جرم دنجاست ختم شي او بدبويي لاړه شي په دي باره کي داحنافو دوه ډلي دي ديوي ډلي په نزد چي کله طهارت حاصل شي او د دويمي ډلي په نزد چي څو پوري

بدبويي ختمه شوي نه وي استنجاء به يي كامله نه وي او كه بدبويي پاتي شي چي ازاله يي بغير دامر خارج (صابون) نه متعذر وي نو دا معاف دي.

**دراوي حالات**: د عائشه رضي الله عنها حالات د زندګۍ په ماقبل ابوابو کي تير شوي دي.

****************

## ١٦_ بَابُ مَا جَاءَ أَنَّ النَّبِيَّ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ كَانَ إِذَا أَرَادَ الْحَاجَةَ أَبْعَدَ فِي الْمَذْهَبِ

### رسول الله چي به کله اودس ماتولو دپاره تلو نو لري به تلو

**خلاصة الباب او لغوي وضاحت**: ابعد: دباب افعال نه فعل ماضي دي او معني يي په تلو کي لري والي اختيارول دي عموما دا دباب افعال نه متعدي استعماليږي مګر کله چي دمفعول سره دده کوم غرض پاتي نشي نو بيا به دده سره دلازم پشان معامله کولي شي لکه دسخي په تعريف کي وئيل "فلان يعطي" يعطني فعل متعدي دي چونکه دلته يي دمفعول سره څه غرض نه تړلي نشته نو په دي وجه ورسره دلازم پشان معامله شوي دي او المذهب اسم ظرف دي يعني دتلو ځاي.

**دماقبل سره ربط**: په ماقبل کي داستنجاء بيان وو او دقضاء حاجت او استنجاء دواړو دپاره مناسب ځاي لټولو ته ضرورت وي نو دلته ددي بيان دي بيا مناسب ځاي برابره خبره ده چي دلري تلو په وجه حاصل شي او که دچارديوالۍ په وجه حاصل شي، دمدني رحمة الله عليه قول دي په عربو کي بادخارجول ډير بد ګڼړلي کيدل تردي چي بعضي وخت به خبره قتل او قتال او جنګ ته هم اورسيده.

٢٠_ حَدَّثَنَا مُحَمَّدُ بْنُ بَشَّارٍ، حَدَّثَنَا عَبْدُ الْوَهَّابِ الثَّقَفِيُّ، عَنْ مُحَمَّدِ بْنِ عَمْرٍو، عَنْ أَبِي سَلَمَةَ، عَنْ الْمُغِيرَةِ بْنِ شُعْبَةَ، قَالَ: "كُنْتُ مَعَ النَّبِيِّ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ فِي سَفَرٍ، فَأَتَى النَّبِيُّ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ حَاجَتَهُ فَأَبْعَدَ فِي الْمَذْهَبِ". قَالَ: وَفِي الْبَابِ: عَنْ عَبْدِ الرَّحْمَنِ بْنِ أَبِي قُرَادٍ، وَأَبِي قَتَادَةَ، وَجَابِرٍ، وَيَحْيَى بْنِ عُبَيْدٍ، عَنْ أَبِيهِ، وَأَبِي مُوسَى، وَابْنِ عَبَّاسٍ، وَبِلَالِ بْنِ الْحَارِثِ. قَالَ أَبُو عِيسَى:

Scanned with C

هَذَا حَسَنٌ صَحِيحٌ. وَيُرْوَى عَنِ النَّبِيِّ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ أَنَّهُ كَانَ يَرْتَادُ لِبَوْلِهِ مَكَانًا كَمَا يَرْتَادُ مَنْزِلًا. وَأَبُو سَلَمَةَ اسْمُهُ: عَبْدُ اللهِ بْنُ عَبْدِ الرَّحْمَنِ بْنِ عَوْفٍ الزُّهْرِيُّ. [1]

**ترجمه** : مغيره بن شعبه رضي الله عنه فرمائي چي زه په يو سفر کي درسول الله صلي الله عليه وسلم سره هم سفر وم چي دقضاء حاجت دپاره روان شوم او ډير لري لاړم.

امام ترمذي وائي دا حديث حسن صحيح دي.

په دي باب کي دعبدالرحمن بن ابي قراد، ابو قتاده، جابر، يحيي بن عبيد عن ابيه، ابوموسي، ابن عباس او بلال بن حارث رضي الله عنهم نه هم احاديث مروي دي.

مروي دي چي نبي کريم صلي الله عليه وسلم به دوړوکي اودس ماتي دپاره هم داسي خاي لټولو لکه څنګه چي دقافلي مسافر دکوزيدودپاره هم خاي لټوي. دابوسلمه نوم عبدالله بن عبدالرحمن بن عوف زهري دي.

**تشريح** : "اذا اراد الحاجة" الخ. دا سفر غالبا دغزوه تبوک سفر وو دشپي سفر جاري وو دشپي په اخري حصه کي رسول الله صلي الله عليه وسلم مغيره رضي الله عنه ته اشاره اوکړه او دواړو خپل اوښان يو طرف ته کړل بيا رسول الله صلي الله عليه وسلم دخورلي نه راکوز شو او دلوي استنجاء دپاره روان شو په دي باره کي مغيره رضي الله عنه وائي چي ډير لري لاړو دلري تلو يو مقصد خو پرده وه او بل مقصد يي طبي فائده وه او هغه داده چي په لري تلو کي قبض ماتيږي او اودس ماتي صاف کيږي.

امام ترمذي په دي باب کي يو روايت بغير دسند نه هم راوړي دي چي نبي کريم صلي الله عليه وسلم به د اودس ماتولو دپاره مناسب خاي لټولو لکه څرنګه چي په سفر کي دپړاؤ اچولو دپاره مناسب خاي لټولي کيږي دا روايت ديحيي بن عبيد عن ابيه دي او عبيد صحابي نه دي تابعي دي پلار او خوي دواړه غير معروف دي امام ترمذي "رُوِيَ" فعل مجهول راوړلو سره دحديث ضعف ته اشاره کړي ده دمناسب خاي نه مراد هغه مقام دي چرته چي بي پردګي نه کيږي او زمکه به يي نرمه لټوله تردي چي په جامو يي څاڅکي اونه لګي او که نرمه زمکه به نه وه نو په امسا وغيره به يي خاي ژور کړو زمکه به يي نرمه کړه او بيا به يي تش اودس مات کړو او دقضاء حاجت دپاره لري تلل هم دمناسب خاي لټولو دپاره وي غرض دا چي لکه څرنګه چي مسافر دپړاؤ اچولو دپاره مناسب خاي لټوي چي په ګرمئ کي سوري والا خاي ګوري او په

[1] سنن ابي داود/ الطهارة (١) سنن النسائي/الطهارة ١٦ (١٧) سنن ابن ماجه/الطهارة ٢٢ (٣٣١) سنن ابي داود/ الطهارة ٢ (٦٨٦) (تحفة الأشراف : ٧٥٣٠) مسند احمد (٢٢٣/٣)

يخنئ كي دغرمو والاخاي ته ترجيح وركوي دارنگي به رسول الله هم داودس ماتي دپاره مناسب خاي لټولو.
په مکي دور كي او دهجرت په ابتدائي زمانه كي به خلق د اودس ماتولو دپاره ځنگل ته تلل خو بيا چي کله په کورونو كي بيت الخلاگاني جوړي شوي نو دهغي نه پس به رسول الله په بيت الخلاء كي اودس ماتولو.

**سوال:** ابن عمر رضي الله عنه دحديث "سباطة" نه معلوميږي چي رسول الله به دقضاء حاجت دپاره لري نه تلو او د ابعد في المذهب والاحاديث نه معلوميږي چي لري به تلو په دواړو كي تعارض دي.

جواب: چي کله به په سفر كي وو نو لري به تلو او چي په سفر كي به نه وو نو بيا به نزدي تلو يا دا چي ابعد في المذهب په اوليت باندي محمول دي او حديث دابن عمر په جواز باندي محمول دي.

**دلري والي دمسافي اندازه:**

دمديني نه به تقريبا دوه ميله فاصله باندي لري تلو امام نووي وائي دلري تلو اصل مقصد تستر دي لهذا چرته چي تستر حاصليږي هلته اودس ماتول درست دي نن سبا په خصوصي طور سره په ښارونو كي د ابادئ نه وتل مشكل وي او عادة ناممكن وي لهذا دبيت الخلاء استعمال مناسب دي.

يرتاد: "اي يطلب مكانا لينا" يعني نرم خاي به يي د اودس ماتولو دپاره لټولو غرض دا چي اودس په داسي خاي كي ماتول پكاردي (١) چرته چي تستر حاصل وي (٢) داسي مقام چي باعث دايذاء نه وي (٣) خاي مناسب وي مثلا زمكه نرمه وي په كاړنه او سخته زمكه كي دڅپلو متيازو څاڅكي واپس راتنبيږي، دمغيره شاگرد ابو سلمه دي او دهغه نوم عبدالله بن عبدالرحمن بن عوف الزهري دي او دي دفقهاء سبعه دجملي نه دي.

**دراوي حالات: دابوعيسي مغيره بن شعبه رضي الله عنه حالات:**

نوم مغيره دپلار نوم يي شعبه بن ابي عامر وو او كنيت يي ابو عبدالله وو، ابن الاثير ٣١٢/٢ په غزوه خندق كي دهجرت په پنځم كال مسلمان شوي وو او په همدي كال يي مديني ته هجرت وكړو (استيعاب ٢٥٨/١).
په حديبيه او ددينه پس په متعددو غزواتو كي شريك شو، دي او ابو سفيان رسول الله په يوه خاص سريه كي طائف ته ليږلي وو، او په ډيري بهادرئ سره يي دشمن ته شكست وركړو.
ويلي شوي دي چي کله يي رسول الله قبرته كوزولو نوگوتمه يي وغورځوله، علي رضي الله عنه اوفرمائيل چي دي را اوباسئ نو ده درسول الله قدم مبارك مسه كړو اودقبر نه راووتلو،

ويلي شوي دي چي درسول الله اخري جدا كيدونكي صحابي مغيره رضي الله عنه وو.
مغيره يو ډير زكي انسان وو، دقبيصه بن جابر بيان دي چي زه ډيره زمانه دجابر سره پاتي شوم چي ډير مدبر اوشجاعت والاانسان وو.
دهجرت په پنځوسم كال په كوفه كي دطاعون په وبا كي مړ شو او عمر يي اويا كاله وو(ابن اثير ۱/ ۲۰۲)
دمروياتو تعداد يي۱۳۳ دي چي ۹ پكي متفق عليه دي اوپه يو كي امام بخاري او په دوه وو كي امام مسلم متفرد دي (تهذيب الكمال۳۸۵)

******************

## ۱۷_ بَابُ مَا جَاءَ فِي كَرَاهِيَةِ الْبَوْلِ فِي الْمُغْتَسَلِ

## په غسل خانه كي د اودس ماتولو دكراهت بيان

۲۱_ حَدَّثَنَا عَلِيُّ بْنُ حُجْرٍ، وَأَحْمَدُ بْنُ مُحَمَّدِ بْنِ مُوسَى مَرْدَوَيْهِ، قَالاَ: أَخْبَرَنَا عَبْدُ اللَّهِ بْنُ الْمُبَارَكِ، عَنْ مَعْمَرٍ، عَنْ اشْعَثَ بْنِ عَبْدِ اللَّهِ، عَنْ الْحَسَنِ، عَنْ عَبْدِ اللَّهِ بْنِ مُغَفَّلٍ، أَنَّ النَّبِيَّ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ نَهَى أَنْ يَبُولَ الرَّجُلُ فِي مُسْتَحَمِّهِ، وَقَالَ: "إِنَّ عَامَّةَ الْوَسْوَاسِ مِنْهُ". قَالَ: وَفِي الْبَاب عَنْ رَجُلٍ مِنْ أَصْحَابِ النَّبِيِّ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ. قَالَ أَبُو عِيسَى: هَذَا غَرِيبٌ، لَا نَعْرِفُهُ مرفوعاً إِلَّا مِنْ حَدِيثِ أَشْعَثَ بْنِ عَبْدِ اللَّهِ، وَيُقَالُ لَهُ: أَشْعَثُ الْأَعْمَى، وَقَدْ كَرِهَ قَوْمٌ مِنْ أَهْلِ الْعِلْمِ الْبَوْلَ فِي الْمُغْتَسَلِ، وَقَالُوا: عَامَّةُ الْوَسْوَاسِ مِنْهُ، وَرَخَّصَ فِيهِ بَعْضُ أَهْلِ الْعِلْمِ، مِنْهُمْ: ابْنُ سِيرِينَ، وَقِيلَ لَهُ: إِنَّهُ يُقَالُ: إِنَّ عَامَّةَ الْوَسْوَاسِ مِنْهُ، فَقَالَ: رَبُّنَا اللَّهُ لَا شَرِيكَ لَهُ، وقَالَ ابْنُ الْمُبَارَكِ: قَدْ وُسِّعَ فِي الْبَوْلِ فِي الْمُغْتَسَلِ إِذَا جَرَى فِيهِ الْمَاءُ. قَالَ أَبُو عِيسَى: حَدَّثَنَا بِذَلِكَ أَحْمَدُ بْنُ عَبْدَةَ الْآمُلِيُّ، عَنْ حِبَّانَ، عَنْ عَبْدِ اللَّهِ بْنِ الْمُبَارَكِ. [1]

**ترجمه** : دعبدالله بن معفل رضي الله عنه بيان دي چي نبي كريم صلي الله عليه وسلم ددي كار نه ممانعت پيدا كړي دي چي يو سړي دي پخپله غسل خانه كي متيازي اوكړي او فرمائيلي يي دي اكثر وسوسي ددينه پيدا كيږي.
امام ترمذي وائي په دي باب كي ديو بل صحابي نه هم يو روايت مروي دي.

---

[1] سنن ابي داود/ الطهارة ١٥ (٢٧) . سنن النسائي/الطهارة ٣٢ (٣٦) . سنن ابن ماجه/الطهارة ١٢ (٣٠٤) . (تحفة الأشراف : ٩٦٤٨) . مسند احمد (٥/٥٦) .

داحديث غريب دي مونږ ته صرف داشعث بن عبدالله نه مرفوع رارسيدلي دي او هغه ته به اشعث اعمي وئيلي كيدل.
بعضي اهل علمو په غسل خانه كي متيازي كول مكروه ګرځولي دي ددوئ په قول اكثر وسوي ددينه پيدا كيږي.
مګر بعضي اهل علمو ددي اجازت وركړي دي دكومو دجملې نه چي ابن سيرين هم دي ابن سيرين ته اووئيلي شول چي اكثر وسوسي ددينه پيدا كيږي نو هغه په جواب كي اووئيل زمونږ رب الله تعالي دي او دهغه سره هيڅ شريك نشته، دعبدالله ابن مبارك قول دي چي په غسل خانه كي متيازي كول جائز ګرځولي شوي دي خو په دي شرط چي اوبه پكي نه جمع كيږي او دپاسه ورباندي اوبه اوبهيولي شي.
**حل لغات** : بال يبول بولا معني متيازي كول ، مبال دمتيازو نالئ دبول جمع ابوال راځي دذكر جمع ذكور راځي معني دنارينه شرمګاه ده.
**تشريح** : رسول الله به غسل خانه كي دادس ماتولو نه ممانعت فرمائيلي دي، يعني په غسل خانه كي د اودس ماتولو سره په خلقو كي وسوسي پيداكيږي او ددي په سبب په طبيعت كي وسوسي پيداكيږي او وسوسي يو ډير بد څيز دي چي يو ځل شروع شي بيا نه بنديږي انسان اكثر پريشان وي همدا وجه ده چي شريعت هر هغه سوره بنده كړي ده دكوم ځاي نه چي وسوسي پيدا كيږي په حديث كي راځي كله چي دچا په ځيټه كي باد پيدا شي او خارجيدو ته نزدي شي او دده شك پيدا شي چي شايد هوا خارجه شوه نو دي دي هر ګز دمسجد نه نه ځي ترڅو چي يي اواز اوريدلي نه وي او يا يي بدبويي محسوس كړي نه وي (مشكوة: باب ما يوجب الوضوء) دا ارشاد نبوي د وسوسو قطع كولو دپاره دي يوځل نبي كريم صلي الله عليه وسلم چاته دخودلو دپاره اودس اوكړو او چي كوم اندامونه وينځل كيږي هغه يي دري دري پيري اووينځل او بيا يي اوفرمائيل "فمن زاد علي هذا فقد اساء وتعد وظلم" يعني چاچي په دي باندي زيادت اوكړو نو بد يي اوكړل او دحد نه تير شو او ظلم يي اوكړو (مشكوة باب سنن الوضوء) دا ارشاد نبوي هم د وسوسو په قطع كولو دلالت كوي او چي زيات وينځل كوي نو دا به سر ته نه رسيږي غرض دا چي شريعت دوسوسو دقطع كولو دپاره ډير احكام جاري كړي دي ددي باب روايت هم ددغه قبيلي نه دي.
په غسل خانه كي دمتيازو كولو دوه صورتونه دي (۱) دغسل خاني نه بيت الخلاء جوړول يعني چي دكور هر فرد په دي كي اودس ماتوي نو ددي كار بالكل اجازت نشته (۲) صورت دادي چي دغسل كولو نه مخكي متيازي خارج شي ، دابن مبارك قول دي كچري غسل خانه پخه وي او اوبه هلته نه جمع كيږي او بهر نالئ ته اوځي نو په دي كي دمتيازو كولو ګنجائش

شته بیا دي وربانديي اوبه وارِوي تردي چي متيازي اوخي او كه زمكه كچي او اوبه جذب كيږي او يا اوبه بهر نه اوخي نو په داسي غسل خانه كي دمتيازو كولو اجازت نشته ددي په سبب په طبيعت كي وسوسي پيدا كيږي او ابن سيرين رحمة الله عليه به په غسل خانه كي متيازي كول جائز گنړل چا ورته اووئيل اي ابن سيرين داسي ونيلي شوي دي چي په غسل خانه كي دمتيازو كولو سره په طبيعت كي وسوسي پيدا كيږي ابن سيرين اوفرمائيل "ربناالله لاشريك له" يعني زمونږ پروردگار الله تعالي دي او دهغه سره هيڅ قسم شريك نشته يعني دهر څيز خالق هم هغه دي او دهغه نه علاوه بل خالق نشته يعني په غسل خانه كي متيازي كولو نه وسوسي نه پيداكيږي خالق صرف الله تعالي دي طالب دعلم چونكه حديث نه وو ذكر كړي دحديث باب يي دعوامي خيال په طور پيش كړي دي نو څكه ورته ابن سيرين داسي جواب وركړو مګر حقيقت دادي چي خالق صرف الله تعالي دي او څيزونه دسبب په درجه كي كار كوي او اسبابو ته مجازي نسبت جائز دي ددي تفصيل دادي چي دا دنيا دارالاسباب دي دلته دهر مسبب دپاره سبب شته،اور بليږي اوبه بهيږي خوراك خيته مړوي او اوبه سيراب كول كوي پس دا خبره چي كور په اور اوسوزيدو وغيره درسته ده پاتي شوه

## داسبابو نه مسببات څنګه پيدا كيږي

په دي باره كي څلور اقوال دي.

(۱) **قول داشعريا نو دي** دوئ وايي چي داسبابو نه مسببات په طريقه دجري العدت پيدا كيږي يعني سنت الهي دادي چي كله سبب اوموندلي شي نو الله تعالي مسبب پيدا كيږي يعني چي كوم څيز اور ته واچولي شي نو الله تعالي هغه اوسوزوي او اور يي نه سوزوي.

(۲) **قول دماتريديا نو دي** دوئ وائي چي داسبابو نه مسببات په طريقه دتاثير پيدا كيږي يعني الله تعالي په اسبابو كي دا تاثير پيدا كيږي دي چي ددوئ نه مسببات پيدا شي، كاغذ لره اور سوزوي نو ددي تاثير په وجه كوم چي الله تعالي په دي كي پيدا كړي دي او په اسبابو كي دتاثير پيداكولو نه پس الله تعالي عاجز كيږي نه دغه تاثير دالله تعالي په اختيار كي وي كه اوغواړي نو ختم به يي كړي لكه څنګه چي دابراهيم عليه السلام دپاره د اور نه ګلزار جوړ كړو.

(۳) **مذهب دمعتزليا نودي**، دوئ وايي چي داسبابو نه مسببات په طريقه دتوليد پيدا كيږي يعني اسباب مسبباتو لره زيګوي دماترديه او معتزله په مذهب كي فرق دادي چي د ماترديه په نزد په اسبابو كي تاثير دالله تعالي په قدرت كي دي او دمعتزله په نزد په دي اسباب دالله تعالي قدرت باقي نه پاتي كيږي اوس به اسباب خپل كار پخپله كوي او الله تعالي يي بندولي نشي (العياذ الله).

(٤) **مذهب دفلاسفه دي** دوئ وائي داسبابو نه مسببات په طريقه د اعداد پيدا كيږي داعداد معني تيارول دي يعني الله تعالي اسباب دمسبباتو دپاره تيار كړي دي پس هغوئ به په هر حال كي خپل كاركوي برابره خبره ده چي الله وي او كنه مثلا يو كاريگر يوه گړئ جوړه كړي او روانه يي كړي نو اوس به گړئ روانه وي برابره خبره ده چي كاريگر ورته په سر ولاړ وي او كنه وي كاريگر ته دگړئ تيارولو او نه تيارولو متعلق اختيار وو مگر دتيارولو نه پس دهغه كوم اختيار باقي نه پاتي كيږي اوس خو به گړئ خپل كار كوي دا رنگي اسباب الله تعالي تيار كړي دي نو اوس به دا خپل كار كوي.

داشاعره او ماترديه په مذهب كي صرف تعبيري فرق دي داشاعره په نزد مسبباتو ته داسبابو نسبت جائزنه دي او دماترديه په نزد جائز دي كنه نو د دواړو په نزد په اسبابو كي اثر پيداكونكي الله تعالي دي او دغه تاثير دالله تعالي په اختيار كي دي.

دارنگي په حقيقت كي معتزله او فلاسفه هم يو دي ددواړو په نزد په اسبابو كي صلاحيت پيداكولو نه پس په دي باندي دالله تعالي اختيار باقي نه پاتي كيږي اوس به اسباب پخپله كار كوي.

پس دابن سيرين دقول تطبيق داشاعره او ماترديه په مذهب باندي داسي دي چي په غسل خانه كي متيازو كولو سره وسوسي پخپله نه پيدا كيږي بلكه الله تعالي يي پيدا كوي او دماترديه په نزد الله تعالي په دي عمل كي دا تاثير پيدا كړي دي چي ددينه وسوسي پيدا شي بيا داشاعره په نزد په غسل خانه كي متيازو كولوسره دوسوسو پيداكيدو نسبت جائز نه دي او دماترديه په نزد جائزدي لكه چي وئيلي كيږي دفلاني ډاكټر په علاج كي شفاوي دارنگي دانسبت هم دي او په دي كي هيڅ خرج نشته.

**سوال:** وسوسه څه ته وائي؟

**جواب:** دوسوسي حقيقت دادي چي الله تعالي په مختلفو اعمالو او افعالو كي څه خاصيتونه پيدا كړي چي ظاهرا په دوئ كي كوم تعلق نه ښكاري.

**دعبدالله بن مغفل رضي الله عنه حالات:**

نوم عبدالله كنيه ابوسعيد دهجرت په شپږم كال مسلمان شوئ وواو چي په كومه غزوه كي يي شركت كړي ووهغه غزوه حديبيه وه (بخاري كتاب التفسير).

په بيعة الرضوان كي هم شريك وو (مسند احمد).

خيبر، فتح مكه، غزوه تبوك، وغيره غزواتو كي يي خپله بهادري خودلي وه.

درسول الله صلي الله عليه وسلم په زندگئ كي خو په مدينه كي اوسيدو ليكن كله چي بصره ازاده شوه نو ده لره عمر رضي الله عنه ددوئ دتعليم او تربيت دپاره بصري ته اوليږلو او د عمر

داخري لمحاتو پوري هلته اوسيدو (طبقات ابن سعد)
دبدعاتو نه به يې سخت نفرت كولو دده بچي يوه ورځ دا اووئيل ما داسې كس نه دی ليدلی چي زما دپلار په نسبت دبدعاتو نه زيات نفرت كونكی وي (مسند احمد).
وفات: په ٥٩ يا ٦٠ هجر كي په بصره كي په مرض موت مبتلا شو او په اخري كي يې يو څو وصيتونه اوكړل.

***************

## ١٨_ بَابُ مَا جَاءَ فِي السِّوَاكِ

### دمسواك بيان

٢٢_ حَدَّثَنَا أَبُو كُرَيْبٍ، حَدَّثَنَا عَبْدَةُ بْنُ سُلَيْمَانَ، عَنْ مُحَمَّدِ بْنِ عَمْرٍو، عَنْ أَبِي سَلَمَةَ، عَنْ أَبِي هُرَيْرَةَ، قَالَ: قَالَ رَسُولُ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ: "لَوْلَا أَنْ أَشُقَّ عَلَى أُمَّتِي لَأَمَرْتُهُمْ بِالسِّوَاكِ عِنْدَ كُلِّ صَلَاةٍ". قَالَ أَبُو عِيسَى: وَقَدْ رَوَى هَذَا الحَدِيثَ مُحَمَّدُ بْنُ إِسْحَاقَ، عَنْ مُحَمَّدِ بْنِ إِبْرَاهِيمَ، عَنْ أَبِي سَلَمَةَ، عَنْ زَيْدِ بْنِ خَالِدٍ، عَنِ النَّبِيِّ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ، وَحَدِيثُ أَبِي سَلَمَةَ، عَنْ أَبِي هُرَيْرَةَ، وَزَيْدِ بْنِ خَالِدٍ، عَنِ النَّبِيِّ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ كِلَاهُمَا عِنْدِي صَحِيحٌ، لِأَنَّهُ قَدْ رُوِيَ مِنْ غَيْرِ وَجْهٍ عَنْ أَبِي هُرَيْرَةَ، عَنِ النَّبِيِّ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ هَذَا الحَدِيثُ، وَحَدِيثُ أَبِي هُرَيْرَةَ إِنَّمَا صَحَّ، لِأَنَّهُ قَدْ رُوِيَ مِنْ غَيْرِ وَجْهٍ، وَأَمَّا مُحَمَّدُ بْنُ إِسْمَاعِيلَ فَزَعَمَ أَنَّ حَدِيثَ أَبِي سَلَمَةَ، عَنْ زَيْدِ بْنِ خَالِدٍ أَصَحُّ. قَالَ أَبُو عِيسَى: وَفِي البَابِ عَنْ أَبِي بَكْرٍ الصِّدِّيقِ، وَعَلِيٍّ، وَعَائِشَةَ، وَابْنِ عَبَّاسٍ، وَحُذَيْفَةَ، وَزَيْدِ بْنِ خَالِدٍ، وَأَنَسٍ، وَعَبْدِ اللَّهِ بْنِ عَمْرٍو، وَابْنِ عُمَرَ، وَأُمِّ حَبِيبَةَ، وَأَبِي أُمَامَةَ، وَأَبِي أَيُّوبَ، وَتَمَّامِ بْنِ عَبَّاسٍ، وَعَبْدِ اللَّهِ بْنِ حَنْظَلَةَ، وَأُمِّ سَلَمَةَ، وَوَاثِلَةَ بْنِ الأَسْقَعِ، وَأَبِي مُوسَى. [1]

**ترجمه**: دابوهريره رضي الله عنه بيان دي چي رسول الله صلي الله عليه وسلم فرمائيلي دي كچري ماسره داويره نه وي چي زما امت به په خرج كي مبتلاشي نوما به دوئ ته دهر مونځ په وخت كي دمسواك وهلو حكم كړي وو.

---

[1] صحيح البخاري/الجمعة ٨ (٨٨٧)، والتمني ٩ (٧٢٤٠)، صحيح مسلم/الطهارة ١٥ (٢٥٢)، سنن ابي داود/ الطهارة ٢٥ (٤٦)، سنن النسائي/الطهارة ٧ (٧)، سنن ابن ماجه/الطهارة ٧ (٢٨٧)، (تحفة الأشراف: ١٥٠٥٦)، موطأ امام مالك/الطهارة ٣٢ (١٣)، سنن الدارمي/الطهارة ١٨ (٧١٠)، والصلاة ١٦٨ (١٥٢٥)، (تحفة الأشراف: ١٥٠٥٦).

Scanned with C

دامام ترمذي قول دي دابوسلمه او ابوهريره او زيد بن خالد په سند مروي دواړه احاديث زما په نزد صحيح دي او دامام بخاري قول دي چي زيد بن خالد په سند دابوسلمه والاحديث زيات صحيح دي.

په دي باب کي دابوبکر صديق ، علي، عائشه ، ابن عباس، حذيفه، زيد بن خالد، انس بن مالك، عبدالله بن عمرو، ابن عمر، ام حبيبه ، ابو امامه ، ابو ايوب ، تمام بن عباس ، عبدالله بن حنظله، ام سلمه، واثله بن اسقع او ابوموسي اشعري رضي الله عنهم نه هم احاديث مروي دي.

**حل لغات** : اشقّ: شقّ يشق شقاً ومشقة ، صيغه داسم تفضيل ده په معني دمشقت کي اچولو دي چالره، دباب نصر وغيره نه راخي.

السواك: معني مسواك ، ساك يسوك سوكا دكاف په زير د مسواك لرکي ته ونيلى شي. دباب نصر نه.

شق: شقّ شقا ومشقة الامر د کوم کار ګرانيدل او چا لره په مشقت کي اچول، او شق شلولو ته هم ويلي شي.

**تشريح** : د مسواك وهلو احکامو او فضائلو او پدي کي د علماؤ داختلاف بيان.

اول اختلاف په حکم د مسواك کي. حکم د مسواك:

**په اودس کي مسواك وهل سنت دي اوکه واجب دي؟**

تمام فقهاء دامت يي سنت ګنړي او امام اسحاق او داود ظاهري ددي دوجوب قائل دي ليکن علماؤ ددي خکه چي هغوئ ددي دوجوب قائل نه دي.

(۲) اختلاف په دي کي دي چي مسواك وهل د اودس سنت دي او که دمونځ سنت دي او که ددين سنت دي؟

که د اودس سنت شي نو بيا خو د اودس شروع کولو نه مخکي مسواك وهل پکار دي او که د مونځ سنت شي نو د اودس نه پس او د تکبير تحريمه نه مخکي مسواك وهل پکار دي او که ددين سنت شي نو بيا خو ددي دپاره هيڅ وخت متعين کول پکار نه دي هر کله چي ضرورت مخصوص کيږي مسواك وهل به پکار وي، ليکن شاه ولي الله محدث دهلوي په حجة الله البالغه کي ليکلي دي چي مضمضه او استنشاق دامورو دفطرت نه دي.کوم چي يي په اودس کي شامل کړي شوي دي دارنګي مسواك هم دامورو دفطرت نه دي کوم چي په اودس کي شامل کړي شوي دي ددينه معلومه شوه چي مسواك په حقيقت کي ددين سنت دي او په اودس کي شامل کړي شوي دي.

علامه ابن همام مسواك په پنځه ختونو کي مستحب ګرځولي دي.

(۱) كله چي غابښونه زيړ شي.
(۲) كله چي په خوله كي بدبويي پيدا شي.
(۳) كله چي سړي دخوب نه بيدار شي
(۴) او د اودس نه مخكي او د اودس نه پس (فتح القدير)
بل اختلاف په دي كي دي چي مسواك د اودس سنت دي او كه دمونځ داحنافو په نزد د اودس سنت دي او د شوافعو په نزد ددواړو سنت دي.
دمونځ نه مخكي كه څوك مسواك وهي نو احتياط دي كوي چي دغابښونو نه يي وينه روانه نشي ځكه چي داحنافو په نزد دويني وتلو په صورت كي اودس ماتيږي او د جمهورو علماؤ په نزد اگر چي وينه وتل ماتونكي اودس لره نه دي مگر ناپاكه خو ده چي تيرول يي جائز نه دي
په دي مسائلو كي اوږده اوږده بحثونه شوي دي بعضي وختونو كي په دي كي ذهن غلط طرف ته لاړ شي لكه دسر په مسح كي استيعاب طرف ته بعضي ذهنونه تلي دي چي استيعاب فرض دي او كه څه حصه فرض ده نو امام مالك داستيعاب قائل دي احناف او شوافع ددويم قول قائل دي چنانچي احناف عموما دنيم سر مسح كوي او شوافع د سر دمعمولي شان حصي مسح كول كافي گڼري او حال دادي چي نبي كريم صلي الله عليه وسلم سنت مستمره دټول سر مسح كول دي صرف يو ځل يي دمسئلي دوضاحت دپاره دسر په مخكني حصه مسح كړي ده احنافو او شوافعو دپاره دسوچ خبره ده چي دپوره سر مسح كه فرض نشي نو سنت خو ضرور دي نو په دي وجه دپوره سر مسح كول پكار دي دليل ددي خبري حديث الباب دي يعني رسول الله د مشقت نه امت لره دبچ كولو دپاره وجوبا دمسواك حكم نه دي كړي پخپله دهغه دپاره په ابتداء كي دهر فرضي مونځ دپاره نوي نوي اودس كول فرض دي مگر روسته دا حكم منسوخ شو او ددي په ځاي مسواك لازم كړي شو درسول الله دپاره په دي باندي امت ته د وجوب حكم كول پكار وو مگر په مشقت كي دپريوتلو نه دبچ كولو دپاره يي دا حكم نه دي كړي پس دامت په حق كي دمونځ نه مخكي مسواك كول سنت پاتي شول او واجب پاتي نشول
فائده: دمسواك سنتيت دتواتر ثابت دي او افاده د قطع او يقين ور كوي. (۲): متواترټول مقبول دي او ددي د رجالو نه بحث نه كيږي. كه مسلمان وي او كنه كه عادل وي او كه فاسق.

## د متواتر اقسام:

**(۱) :متواتر في الاسناد:**

متواتر با الاسناد هغه ته وائي چي اسناد ډير شي اومتعين وي. لكه احاديث د مسح علي الخفين د اتياؤ صحابه كرامو نه نقل شوي دي اوپه نزول د عيسي ابن مريم كي (۱۵۰) احاديث دي. نو دا متواتر دي او په خارج كي ئي عدد هم معلوم دي. دغه شان حديث د من كذب علي.

..الخ. دا د (۶۲) صحابه کرامو نه نقل دي. او محدثين د متواتر نه هم دا متواترالاسناد مراد اخلي.

**(۲) :متواتر بالطبقات:**

متواتر بالطبقات هغه ته واني چي په هره زمانه کي دومره راويانو نقل کړی وي چي شميرکي نه راځي لکه ما يرويه طبقة عن طبقة کل عصر لکه قرآن شريف څکه ددی سندونه بی اندازی دي معلوم نه دي او هره زمانه کي بی اندازي راويان ئې دي.

**(۳) :متواتر بالتعامل والتوارث:**

دا هغه قسم دی چي راويان ئي په اعتبار د عدد سره لږ وي مګر د امت عمل پری را روان وي. چي په دی باندی د ټول امت عمل وي او د هغي سند ته او بحث ته حاجت نشته لکه تواتر د آذان ..اقامت،تراويح چي په امت کي شل (۲۰) رکعته راروانې دي. سند ته ئې حاجت نشته دغه شان د جنازی مونځ خفيه راغلی دی په تواتر سره ئې ثبوت دی نو اوس که څوک په جهرسره د جنازي مونځ کوي نو دا به د تواتر خلاف کوي دا څکه چي په څلور واړه مذاهبو،په زمانه د اسلام او په علماؤ کي دا څيزونه په تواتر راغلی دي که اوس ددی نه څوک مخالفت کوي نو بنه کار نه کوي.

ته به سند ته نه ګوری بلکه عمل ته به ګوری. عمل د امت په دی را روان دی چي طلاقونه دري دي يو نه دی. دغه شان تراويح پوره شل (۲۰) دي اته (۸) نه دي. جنازه خفيه ده جهراً نه ده او تکبيرونه ئې څلور دي کم او زيات نه دي. نو که څوک ددی امورو مخالفت کوي نو دی د متواتراتو مخالفت کوي. په متواتراتو کي سند ته نه شي کتې بلکه عمل ته کتلی کيږي ،لکه امام بخاري رحمه الله تعالي په باب کي يوحديث راوړی دی مګر هغه ضعيف دی او بيا هم امام بخاري رحمه الله تعالي ئي په باب کي ذکر کوي. لکه ''لا وصيت لوارث''چي وارث ته وصيت نه کيږي. نو اګر چي دا حديث ضعيف دی خو عمل د امت پدی راروان دی وارث ته وصيت نه کيږي. ته يو خوي ته زياته حصه ورکړي نو دا قابل قبول نه ده چي د چا څه حصه مقرر ده نو د هغي نه ورته زياته نشی ورکولی. ډير احاديث دي چي محدثين کرام ورته متواتر نه وائي بلکه هغه په ضعيفوکي شماري ليکن بيا هم فقها کرام ورته متواتر وائي. څکه چي فقها د امت عمل ته ګوري. د محدثينو سند ته نه ګوري. ''انّ متواتر الفقهاء اقويٰ من متواتر المحدثين'' يعني متواتر د فقهاؤډير قوي دی په نسبت د متواتر د محدثينو څکه چي پدی باندی عمل را روان وي او احتمال د مجاز او د کنائي نه لري.

**(٤) :متواتر بالقدر المشترک:**

متواتر بالقدر المشترک دی ته واني چي يوه واقعه خو په طريقه د آحادو نقل وي خو مجموعه

موضوع چې دلالت پرې د مختلفو واقعاتو او حکایاتو کوي هغه پکې شریک دی لکه سخاوت د خاتم طائي نودده د سخاوت واقعات خو په اخبار آحادو سره رانقل دي خومجموعه قصوته ئې چې گورو نو ددی نه معلومیږي چې خاتم طائي ډیر سخي وو- قدر مشترک دمجموعي روایاتومتواتر وي- دغه شان د رسول الله صلي الله علیه وسلم علي د بهادرۍ او د شجاعت واقعات چې د بدر په موقع باندی ئې (۲۱) کافران مردار کړی وو- په خیبر جنګ کې ئې د مرحب غونډی مشهور پهلوان مردار کړی وو- نو دا ټول واقعات په طریقه د اخبار آحادو نقل دي خو مجموعې نه دا معلومیږي چې علي یو نومه ور ی خوان وو- نودی ته متواتر بالقدر مشترک وائي-

اول دري واړه متواتر افاده د قطع او د جزم ورکوي او عام فقهاء وائي چې منکر تر ی کافر دی- او څلورم که بدیهي وو نو بیا افاده د قطعې کوي او منکر تری کافر کیږي نه نو فقهاء کرام څلورو واړو ته متواتر وائي او دا ځکه چې ددوئ نظر په عمل باندی وي- او د محدثینو نظر په سند وي نو ځکه اول ته متواتر وائي-

لهذا مسواك وهل متواتر بالتعامل دي.

ددي ټولو اختلافاتو دلائل په مطولاتو کي مذکور دي چې مونږ یي دتطویل په وجه نشو ذکر کولي "من ارادها فالیراجع".

## دمسواک فضیلت اود نیک فطرت پاک عادتونه

یعني که زما امت په مشقت کي نه پریوتلی نو مابه دئ ته په مسواك وهلو حکم کړی وو. دحدیث مطلب دادی چې درسول الله صلي الله علیه وسلم دخپل امت سره بي انتهاء محبت وو او شفقت هم وو کچري دا لازمي شوی وی نو بیا وربانديې مسلمانانو عمل نشو کولی او ددي په وجه به گنهگاریدل لهذا که مسواك وهل دچانه پاتي شي نو گنهگار به نه وي

## رسول الله چې به دخوب نه هم پاڅیدو نو مسواک به یې وهلو

عن حُذَيْفَةَ ﷺ، قَالَ: كَانَ رسول الله ﷺ إِذَا قَامَ مِنَ النَّوْمِ يَشُوصُ فَاهُ بِالسِّوَاكِ. متفقٌ عَلَيْهِ.

أخرجه: البخاري . ومسلم واحمد وابوداود والنسائي والدارمي وابن حبان وابن ابي شيبه في المصنف والبيهقي.

حذیفه رضي الله عنه نه روایت دی چې رسول الله صلي الله علیه وسلم چې به خوب نه بیدار شو، نو خوله مبارکه به یې په مسواك صفا کوله.

مطلب دادی چې کله څوك دخوب نه پاڅي نو دخولي خوند یي دبدبوئي په وجه بدل شوی وي اوهمدا وجه ده چې نبي کریم صلي الله علیه وسلم به دبیداریدو نه پس مسواك وهلو علماء وائي چې په دي وخت کي مسواك وهل مستحب دي.

## په تهجدو کي به هم رسول الله دمسواک اهتمام کولو

وعن عائشة رضي الله عنها ، قالت : كُنَّا نُعِدُّ لِرسولِ الله ﷺ سِوَاكَهُ وَطَهُورَهُ ، فَيَبْعَثُهُ اللهُ مَا شَاءَ أَنْ يَبْعَثَهُ مِنَ اللَّيْلِ ، فَيَتَسَوَّكُ ، وَيَتَوَضَّأُ وَيُصَلِّي . رواه مسلم .

أخرجه : مسلم كتاب الطهارت باب السواك واحمد وابن حبان .

عائشی رضي الله عنها نه روايت دی چي مونږ د رسول الله صلي الله عليه وسلم بيبيانو به رسول الله صلي الله عليه وسلم ته مسواک او داودس دپاره اوبه تياری ساتلی رسول الله صلي الله عليه وسلم چي به دشپي څه وخت الله تعالي بيدار کړو، مسواک به يی اوکړو اودس به يی اوکړو او مونځ به يی اوکړو.

يعني مسواک رسول الله صلي الله عليه وسلم هميشه وهلی دی ځکه سنت موکده دی

فيتسوك. تسوك يتسوك تسوكا واستاك استاكا معني مسواک کول مسواک معني دغابښونو پاکولو لرګي.

داوده کيدو په وجه په خولي کي يو قسم بدبويي پيداکيږي اوددي دختمولو دپاره مسواک ډيرمفيد دی دپورتني روايت نه معلومه شوه چي ازواج مطهراتو به هم دمنشاء نبوي مطابق عمل کول او دمسواک اهتمام به يي کولو.

## دمسواک وهلو متعلق تاکيد

وعن أنس ﷺ ، قَالَ : قَالَ رسول الله ﷺ : (( أَكْثَرْتُ عَلَيْكُمْ فِي السِّوَاكِ )) رواه البخاري .

انس رضي الله عنه نه روايت دی چي رسول الله صلي الله عليه وسلم فرمائيلي دي دمسواک په باره کي مي په تاسو ډير تاکيد اوکړو (ډير خله مي درته اووئيل).

أخرجه : البخاري كتاب الجمعة باب السواك يوم الجمعة واحمد والنسائي والدارمي وابن حبان والبيهقي في السنن .

په يو بل روايت کي راځي ارشاد نبوي دی ماته جبريل دمسواک وهلو دومره تاکيد کړی دی تردي چي زما پخپلو غابښونو ويره پيدا شوه اوهمدارنګي دجابر په سند سره دا ارشاد نبوي مروي دی چي کوم دوه رکعاتونه دمسواک سره ادا کړی شي هغه د هغه اويا رکعاتونو نه کوم چي دمسواک نه بغير وي بهتر دي.

علامه ابن نجيم دعبدالله بن مبارک قول نقل کړی دی کچري تمام ښار والا دمسواک نه انکار اوکړي نو مونږ به ورسره داسي جنګ کوو لکه څنګه چي دمرتدينو سره کولی شي.

Scanned with C

## رسول الله به کورته دداخلیدو نه پس هم مسواک وهلو

وعن شريح بن هانئ، قَالَ : قلت لعائشة رضي الله عنها : بِأَيِّ شَيْءٍ كَانَ يَبْدَأُ النَّبِيُّ ﷺ إِذَا دَخَلَ بَيْتَهُ؟ قَالَت : بِالسِّوَاكِ. رواه مسلم.

أخرجه : مسلم كتاب الطهارت باب السواك واحمد وابوداود والنسائي وابن ماجه وابن حبان وابن ابي شيبه والبيهقي.

دشريح ابن هاني رضي الله عنه نه روايت دی چي ما دعائشی رضي الله عنها نه تپوس اوکړو رسول الله صلي الله عليه وسلم چي به کورته راننوتو نو اول به يی په څه کار شروع کوله؟ هغی اوفرمائيل په مسواک.

علماء وائي په پورتني حديث کي امت ته تعليم ورکول مقصود دي چي يو سړی بهر څرنګه صفا ستره ګرځي نو دهغه دپاره په کور کي هم داسي اوسيدل پکار دي.

علامه ابن حجر وائي چي په پورتني حديث کي هغه کس ته ترغيب ورکولی شي چي کله کورته داخليږي نو مسواک به وهي ځکه چي ددي په وجه په خوله کي خوشبو پيدا کيږي او ددي په وجه دکورنۍ سره دحسن سلوک جذبه پيدا کيږي.

## په ژبه به يي هم مسواک وهلو

وعن أَبِي موسى الأشعري ﷺ، قَالَ : دَخلتُ عَلَى النَّبِيِّ ﷺ وَطَرَفُ السِّوَاكِ عَلَى لِسَانِهِ. متفقٌ عَلَيْهِ، وهذا لفظ مسلمٍ.

دابوموسي اشعري رضي الله عنه نه روايت دی چي زه د رسول الله ملاقات ته ورننوتم نو دمسواک سر دهغوی په ژبه مبارکه وو (يعني مسواک يی وهلو) دا الفاظ دمسلم دي

أخرجه : البخاري كتاب الوضوء باب السواك ومسلم كتاب الطهارت باب السواك واحمد وابن ماجه وابن حبان والدارمي والبيهقي واسناده جيد.

## دمسواک وهلو طريقه

اول دپورتني جامي ښي طرف او بيا چپ طرف صاحب دحليه وايي چي مسواک په غاښونو په پلنوالي وهل او په ژبه په اوږدو وهل پکار دي.

دهر قسم لرګي نه مسواک جوړول جائز دي خو په دي شرط چي نقصان ورکونکی نه وي ليکن د انار، جنبيلي، بانړس او ريحان دلرګي نه مسواک جوړول مکروه دي او دمسواک جوړولو دپاره رسول الله دزيتون دلرګي تعريف کړی دی، اوښخپله رسول الله اوصحابه کرامو هم استعمال کړي دي او ددينه پس يي دزيتون لرګي خوښ کړي دي.

## مسواک وهل دالله درضا سبب دي

عن عائشة رضي الله عنها : أنَّ النبيَّ ﷺ . قَالَ : ((السِّوَاكُ مَطْهَرَةٌ لِلْفَمِ مَرْضَاةٌ لِلرَّبِّ)) رواه النسائي وابن خُزَيْمَةَ في صحيحهِ بأسانيدَ صحيحةٍ .
أخرجه : النسائي١ ١٠ وفي الكبرى باب الترغيب في السواك وبخاري كتاب الصوم تعليقا.
عائشي رضي الله عنها نه روايت دی چي رسول الله صلي الله عليه وسلم فرمائيلي دي مسواك خوله پاکوي. او الله تعالي پری راضي کيږي دا حديث امام نسائي او ابن خزيمه په خپلو صحيح کتابونو کي په صحيح سند سره روايت کړی دی

**دمسواک وهلو کي يو څو فوائد:**

دخولي پاکيدل (٢) فراخي پيدا کيدل (٣) رزق هضميدل (۴) خوله خوشبو دار کيدل (۵) دسر درد ختميدل (٦) نظر تيزيدل (٧) معده صحيح کيدل (٨) بدن ته قوت ورکوي (٩) په عقل کي اضافه راولي (١٠) دمسواك په وجه دعرش پورته کونکي فرشتي دعا کوي
دعائشي رضي الله عنها حالات دحديث ٢ په ضمن کي تير شوي دي.
**دراوي حالات** : ماقبل ابوابو کي باربار تير شوي دي

***************

٢٣ــ حَدَّثَنَا هَنَّادٌ، حَدَّثَنَا عَبْدَةُ بْنُ سُلَيْمَانَ، عَنْ مُحَمَّدِ بْنِ إِسْحَاقَ، عَنْ مُحَمَّدِ بْنِ إِبْرَاهِيمَ، عَنْ أَبِي سَلَمَةَ، عَنْ زَيْدِ بْنِ خَالِدٍ الْجُهَنِيِّ، قَالَ: سَمِعْتُ رَسُولَ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ يَقُولُ: "لَوْلاَ أَنْ أَشُقَّ عَلَى أُمَّتِي لأَمَرْتُهُمْ بِالسِّوَاكِ عِنْدَ كُلِّ صَلاَةٍ وَلأَخَّرْتُ صَلاَةَ الْعِشَاءِ إِلَى ثُلُثِ اللَّيْلِ". قَالَ: فَكَانَ زَيْدُ بْنُ خَالِدٍ يَشْهَدُ الصَّلَوَاتِ فِي الْمَسْجِدِ وَسِوَاكُهُ عَلَى أُذُنِهِ مَوْضِعَ الْقَلَمِ مِنْ أُذُنِ الْكَاتِبِ، لاَ يَقُومُ إِلَى الصَّلاَةِ إِلاَّ أَسْتَنَّ ثُمَّ رَدَّهُ إِلَى مَوْضِعِهِ. قَالَ أَبُو عِيسَى: هَذَا حَدِيثٌ حَسَنٌ صَحِيحٌ. [1]

**ترجمه** : د زيد بن خالد جهني رضي الله عنه بيان دي چي د رسول الله صلي الله عليه وسلم نه مي اوريدلي دي چي فرمائيل يي کچري ماسره داويره نه وي چي زما امت به په خرج کي مبتلاشي نوما به دوی ته دهر مونځ په وخت کي دمسواك وهلو حکم کړي وو او دماخوستن مونځ به مي دشپي د اخري دريمي حصي پوري مؤخر کړي وو. سلمه بن زيد وائي چي زيد بن خالد به ټولو مونځونو دپاره مسجد ته حاضريدو او مسواك به يي دغوږ شاته منډلي وو دقلم پشان چي کاتب په غوږ کي منډلي وي او دمسواك وهلو نه بغير به يي مونځ نه کولو او چي دمونځ دپاره به يي مسواك استعمال کړو نو واپس به يي دغوږ شاته اومنډلو.

---

[1] سنن ابي داود/الطهارة ٢٥ (٤٧) (تحفة الأشراف : ٣٧٦٦) مسند احمد (٤/١١٦)

امام ترمذي وائي چې دا حديث زما په نزد دحسن صحيح درجې دی.

**حل لغات** يشهد. شهد دسمع نه شهودا معني حاضريدل . معاينه كول. خبر موندل او ګواهي وركول. او صفت يې شاهد راځي

**تشريح** : ددې روايت تشريح په ماقبل حديث كې تيره شوه

**درزيد بن خالد رضي الله عنه حالات**

نوم زيد كنيه ابو عبدالرحمان دپلار نوم خالد دقبيله جهينه سره يې تعلق وو. دصلح حديبيه نه مخكې مسلمان شوی وو او په مدينه كې يې رهائش اختيار كړی وو دفتح مكې په ورځ دده دقبيلې جهنډه دده په لاس كې وه (الاصابه في تميز الصحابة).

وفات دده د وفات كيدو دكال په تاريخ كې اختلاف دی زيات صحيح قول دادی چې په مدينه كې ۷۸هجري كې وفات شوی وو او دوفات كيدو په وخت كې يې عمر ۸۵ كلونه وو (طبقات ابن سعد، تهذيب التهذيب).

***************

## ١٩_ بَابُ مَا جَاءَ إِذَا اسْتَيْقَظَ أَحَدُكُمْ مِنْ مَنَامِهِ فَلَا يَغْمِسْ يَدَهُ فِي الإِنَاءِ حَتَّى يَغْسِلَهَا

## كله چې يتاسو كې څوك دخوب نه بيدار لاسونه به ددرې ځل وينځلو نه بغير په لوخي كې نه غوپه كوي

٢٤_ حَدَّثَنَا أَبُو الوَلِيدِ أَحْمَدُ بْنُ بَكَّارٍ الدِّمَشْقِيُّ، يُقَالُ هُوَ: مِنْ وَلَدِ بُسْرِ بْنِ أَرْطَاةَ صَاحِبِ النَّبِيِّ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ، حَدَّثَنَا الوَلِيدُ بْنُ مُسْلِمٍ، عَنِ الأَوْزَاعِيِّ، عَنِ الزُّهْرِيِّ، عَنْ سَعِيدِ بْنِ المُسَيِّبِ، وَأَبِي سَلَمَةَ، عَنْ أَبِي هُرَيْرَةَ، عَنِ النَّبِيِّ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ قَالَ: " إِذَا اسْتَيْقَظَ أَحَدُكُمْ مِنَ اللَّيْلِ فَلَا يُدْخِلْ يَدَهُ فِي الإِنَاءِ حَتَّى يُفْرِغَ عَلَيْهَا مَرَّتَيْنِ أَوْ ثَلَاثًا فَإِنَّهُ لَا يَدْرِي أَيْنَ بَاتَتْ يَدُهُ ". وَفِي البَاب عَنِ ابْنِ عُمَرَ، وَجَابِرٍ، وَعَائِشَةَ. قَالَ أَبُو عِيسَى: وَهَذَا حَسَنٌ صَحِيحٌ. قَالَ الشَّافِعِيُّ: وَأُحِبُّ لِكُلِّ مَنِ اسْتَيْقَظَ مِنَ النَّوْمِ قَائِلَةً كَانَتْ أَوْ غَيْرَهَا، أَنْ لَا يُدْخِلَ يَدَهُ فِي وَضُوئِهِ حَتَّى يَغْسِلَهَا، فَإِنْ أَدْخَلَ يَدَهُ قَبْلَ أَنْ يَغْسِلَهَا كَرِهْتُ ذَلِكَ لَهُ، وَلَمْ يُفْسِدْ ذَلِكَ المَاءَ إِذَا لَمْ يَكُنْ عَلَى يَدِهِ نَجَاسَةٌ، وَقَالَ أَحْمَدُ بْنُ حَنْبَلٍ: إِذَا اسْتَيْقَظَ مِنَ النَّوْمِ مِنَ اللَّيْلِ فَأَدْخَلَ يَدَهُ فِي وَضُوئِهِ قَبْلَ أَنْ يَغْسِلَهَا،

**فَأَعْجَبُ إِلَيَّ أَنْ يُهْرِيقَ الْمَاءَ. وَقَالَ إِسْحَاق: إِذَا اسْتَيْقَظَ مِنَ النَّوْمِ بِاللَّيْلِ أَوْ بِالنَّهَارِ. فَلَا يُدْخِلْ يَدَهُ فِي وَضُوئِهِ حَتَّى يَغْسِلَهَا.** [1]

**ترجمه** : دابوهريره رضي الله عنه نه روايت دي چي نبي كريم صلي الله عليه وسلم فرمائيلي دي كله چي په تاسو كي څوك دشپي دخوب نه رابيدار شي نو لاس دي په لوښي كي نه غوپه كوي ترڅو پوري چي په لاس يي دوه يا دري خله اوبه راړولي نه وي خكه چي دده ته پته نشته چي دده لاس چرته چرته شپه تيره كړي ده ، دامام ترمذي قول دي په دي باب كي د ابن عمر، جابر، او عائشه رضي الله عنهم نه هم احاديث وارد دي.
دا حديث حسن صحيح دي.
دامام شافعي قول دي دا حكم دخوب نه دهر بيداريدونكي دپاره دي برابره خبره ده چي دورځي قيلوله كوي او كه په بل وخت كي چرته دخوب نه رابيدار شي زه دا غواړي چي څو پوري هغه خپل لاس وينځلي نه وي نو تر هغي دي لاس د اودس داوبو په لوښي كي نه غوپه كوي اوكه دلاسونو وينځلو نه يي مخكي لاس په لوښي كي غوپه كړو نو ماته دده فعل مكروه ښكاري ليكن اوبه ورباندي نجس كيږي خو په دي شرط چي لاس يي په نجاست پليت نه وي.
دامام احمد بن حنبل قول دي څوك چي دشپي دخوب نه رابيدار شي او د لاسونو وينځلو نه مخكي په اوبو كي لاس غوپه كړي نو زما په نزد ددي اوبو څايه كول بهتر دي.
دامام اسحاق به راهويه قول دي كله چي څوك دورځي يا دشپي دخوب نه رابيدار شي نو لاس دي په اوبو كي نه غوپه كوي ترڅو چي يي وينځلي نه وي.

**حل لغات** : "استيقظ " استيقظ ، استيقاظا دباب استفعال نه دي په معني دبيدارولو.
يدخل: ادخل يدخل ادخالا معني داخلول، الفرج په شيانو كي خلل پيداكول ، سرحد، كشادگي، انساني شرمگاه ته هم فرج ونيلي شي دباب نصر نه راخي.
يغسلها: اغتسل يغتسل اغتسالا معني غسل كول ، غسل يغسل غسلا وينځل مغتسل معني غسل خانه . غسيل وينځلي شوي ، غاسل معني دوبي.

**تشريح** : عموما په عربو كي دا عادت وو چي دوړي او لوي استنجاء دپاره به يي كاڼړي استعمالول او صرف دكاڼړو په استعمال اگر كه هر څومره كوشش اوشي دنجاست څه ناڅه اثر ضرور باقي پاتي كيږي او عربو خو به لنگ اغوستلو او علاقه يي گرمه وه بعضي وخت به په

[1] صحيح البخاري/الوضوء ٢٦ (١٦٢) . صحيح مسلم/الطهارة ٢٦ (٢٧٨) . سنن ابي داود/الطهارة ٤٩ (١٠٣) . سنن النسائي/الطهارة ١ (١) . و١١٦ (١٦١) . والغسل ٢٩ (٤٤٢) . سنن ابن ماجه/الطهارة ٤٠ (٣٩٣) . (تحفة الأشراف: ١٣١٨٩ و١٥٢٠٢) . موطا امام مالك/الطهارة ٢ (٩) . مسند احمد (٢/٢٤١، ٢٥٣، ٢٥٩، ٣٤٩، ٣٨٢)

خوب کي ددوئ لاسونهٔ محل دنجاست ته ورسيدل نو لاسونه به يي پليت شول خکه چي دغه هومره نجاست پخپل محل کي معاف دي مگر په بل محل کي معاف نه دي نو که داسي کس دبيداريدو نه پس دلاسونو وينخلو نه مخکي په اوبو کي لاس غوپه کړي نو اوبه پليتيږي نو په دي وجه رسول الله صلي الله عليه وسلم حکم اوکړو چي اول به دود يا دري خله لاس اووينځئ نو بيا په لوښي کي لاس غوپه کولي شئ.

په دي حديث کي په څلورو خبرو پوهيدل پکار دي، اوله خبره داده ناپاکي چي څو پوري پخپل محل کي وي معاف ده او دمحل نه چي متجاوز شي نو معاف نه ده لکه په خيته کي اودس ماتي او په اودس ماتي او بدن کي وينه او حال دادي چي ددي گندگئ سره مونځ کول درست دي خکه چي دا پخپل محل کي پراته دي دارنگي دناپاکئ چي کوم اجزاء په مخرج کي پراته دي هغه معاف دي مگر کله چي په لاس باندي پوري شي نو معاف نه وي اوس دلاس وينخلو نه بغير په اوبو کي لاس غوپه کول پکار نه دي او که داسي اوشي نو اوبه به پليتي شي

دويمه خبره يو فقهي مسئله ده چي ناپاکه جامه دي دري پيري اووينخلي شي او هر خل دي نچوړ کړي شي دا مسئله هم دي حديث نه مستفاد دي او دفقهي تمام مسائل ضرور ديو نص نه ماخوذ وي برابره خبره ده چي صراحتا ماخوذ وي او که استنباطا. دبعضي خلقو دا خيال دي چي ډير زيات مسائل فقهاؤ دخپل خان نه جوړکړي دي دا خبره صرف خان ته دهوکه ورکول دي او د فريب نه علاوه نور هيڅ نه دي.

دريمه خبره دا معلومه شوه دحکم مدار په علت وي کله چي علت اوموندلي شي نو حکم به اوموندلي شي او چي علت باقي پاتي نشي نو حکم هم باقي نه پاتي کيږي لکه دشرابو حرام کيدل دنشي راوستلو په وجه دي خو چي سرکه ورنه جوړه شي او نشه پکي باقي پاتي نشي نو حرمت به مرتفع شي او په حکمت دحکم مدار نه وي برابره خبره ده چي حکمت باقي وي او کنه وي مگر حکم باقي وي او علت هميشه يو وي او حکمتونه ډير هم کيدي شي مثلا په يو لوي لوښي کي يو مجلس ته اوبه راوړلي شي نو ددي څه حکم دي دا به په يوه ساه کي څکئ او په لوښي کي به ساه نه اخلئ. په دي کي دوه حکمتونه دي يو حکمت دادي وروسته چي دچا داوبو څکلو نمبر دي هغه به دا نه خوښوي او دويمه خبره اوبه به په جسم کي خوري شي مگر اوس په گلاسونواو وړو لوښو کي اوبه څکلي کيږي نو اولني حکمت خو ختم شو مگر دويم حکمت اوس هم باقي دي دا رنگي دلاسونو وينخلو نه بغير په لوښي کي دلاس غوپه کولو په ممانعت کي هم دوه حکمتونه دي يو احتمال دنجاست دي او دويم پاکوالي داوبو دي اولني حکمت خو اوس باقي نه دي پاتي شوي خکه چي اوس خو خلق په اوبو استنجاء کوي مگر دويم حکمت اوس هم باقي دي خو انسان کله کله دنوم نه بښکته هم لاس اوړي او کله کله ترخونو لره هم لاس اوړي او کله کله په پوزه کي گوته وهي په دي خايونو کي اگر چي ناپاکي نشته مگر

خيري خو شته نو دنظافت غوښتنه اوس هم همدا ده چي دلاسونو وينځلو نه بغير په لوښي کي لاس اونه وهلي شي
ځلورمه خبره امام مالك په نزد په حديث کي مذکوره حکم صرف دنظافت دباب نه دي دطهارت او عدم طهارت سره يي هيڅ تعلق نشته او دنورو اهل علمو په نزد ددي تعلق دنظافت اوطهارت دواړوسره شوي دي او دا خکه کچري باليقين په لاسونو باندي پليتي پوري شوي وي او چا دوينځلو نه بغير په لوښي کي غوپه کړل نو د دري واړو امامانو په نزد اوبه پليتيږي او دامام مالك په نزد که داوبو کوم وصف بدل شوي نه وي نو نه پليتيږي دا مسئله به په تفصيل سره وړاندي راشي.
**مسئله**: کچري دلاس دپليتيدو يقين يا ظن غالب راشي نو په اوبو کي دغوپه کولو نه مخکي ددي وينځل فرض دي او که دوينځلو نه مخکي يي په اوبو کي غوپه کړي نو اوبه به گنده شي او که صرف دناپاکۍ احتمال وي نو بيا دلاسونو وينځل سنت مؤکد دي نو که په دي صورت کي دوينځلو نه بغير چا لاسونه په اوبو کي غوپه کړل او دا يوفقهي قانون دي "اليقين لايزول بالشك" يعني که کومه خبره يقيني وي هغه په شك نه ختميږي او که لاسونه په يقيني طور پاك وي نو داسي وخت کي په اوبو کي دغوپه کولو نه مخکي ددي وينځل مستحب دي دي وخت کي به دحکم تعلق صرف دنظافت سره وي.
**دراوي حالات**: په ما قبل بابونو کي بار بار تير شوي دي.

***************

## ٢٠ـ بَابُ مَا جَاءَ فِي التَّسْمِيَةِ عِنْدَ الْوُضُوءِ

## د اودس وخت کي د بسم الله وئيلو بيان

٢٥ـ حَدَّثَنَا نَصْرُ بْنُ عَلِيٍّ الْجَهْضَمِيُّ، وَبِشْرُ بْنُ مُعَاذٍ الْعَقَدِيُّ، قَالَا: حَدَّثَنَا بِشْرُ بْنُ الْمُفَضَّلِ، عَنْ عَبْدِ الرَّحْمَنِ بْنِ حَرْمَلَةَ، عَنْ أَبِي ثِفَالٍ الْمُرِّيِّ، عَنْ رَبَاحِ بْنِ عَبْدِ الرَّحْمَنِ بْنِ أَبِي سُفْيَانَ بْنِ حُوَيْطِبٍ، عَنْ جَدَّتِهِ، عَنْ أَبِيهَا، قَالَ: سَمِعْتُ رَسُولَ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ يَقُولُ: "لَا وُضُوءَ لِمَنْ لَمْ يَذْكُرِ اسْمَ اللَّهِ عَلَيْهِ". قَالَ: وَفِي الْبَابِ عَنْ عَائِشَةَ، وَأَبِي سَعِيدٍ، وَأَبِي هُرَيْرَةَ، وَسَهْلِ بْنِ سَعْدٍ، وَأَنَسٍ. قَالَ أَبُو عِيسَى: قَالَ أَحْمَدُ بْنُ حَنْبَلٍ: لَا أَعْلَمُ فِي هَذَا الْبَابِ حَدِيثًا لَهُ إِسْنَادٌ جَيِّدٌ. وقَالَ إِسْحَاقُ: إِنْ تَرَكَ التَّسْمِيَةَ عَامِدًا أَعَادَ الْوُضُوءَ وَإِنْ كَانَ نَاسِيًا أَوْ مُتَأَوِّلًا أَجْزَأَهُ. قَالَ مُحَمَّدُ بْنُ إِسْمَاعِيلَ: أَحْسَنُ شَيْءٍ فِي هَذَا الْبَابِ حَدِيثُ رَبَاحِ بْنِ عَبْدِ الرَّحْمَنِ. قَالَ أَبُو عِيسَى: وَرَبَاحُ بْنُ عَبْدِ الرَّحْمَنِ، عَنْ جَدَّتِهِ، عَنْ أَبِيهَا، وَأَبُوهَا سَعِيدُ بْنُ زَيْدِ بْنِ عَمْرِو بْنِ نُفَيْلٍ، وَأَبُو ثِفَالٍ الْمُرِّيُّ

Scanned with C

اسْمُهُ: ثُمَامَةُ بْنُ حُصَيْنٍ، وَرَبَاحُ بْنُ عَبْدِ الرَّحْمَنِ هُوَ أَبُو بَكْرِ بْنُ حُوَيْطِبٍ. مِنْهُمْ مَنْ رَوَى هَذَا الحَدِيثَ. فَقَالَ: عَنْ أَبِي بَكْرِ بْنِ حُوَيْطِبٍ. فَنَسَبَهُ إِلَى جَدِّهِ. (1)

**ترجمه** :د سعيد بن زيد رضي الله عنه بيان دي درسول الله صلي الله عليه وسلم نه مي اوريدلي دي چي فرمائيل يي ځوك چي د اودس وخت كي بسم الله اونه لولي نو اودس يي نه كيږي.

امام ترمذي وائي په دي باب كي د عائشه، ابوهريره، ابو سعيد خدري، سهل بن سعد او انس رضي الله عنهم نه هم احاديث وارد دي.

دامام احمد بن حنبل قول دي ماته په دي باب كي هيڅ يو صحيح حديث معلوم نه دي چي سند يي بهتر وي.

اسحاق بن راهويه وائي كچري ځوك قصدا بسم الله ونيل پريږدي نو هغه دي دوباره اودس اوكړي او كه په هيره ورنه پاتي شي او يا هغه په دي حديث كي تاويل كوي نو دا به دده دپاره كافي وي.

دمحمد بن اسماعيل بخاري قول دي چي په دي باب كي دټولو نه ښكلي سند والا زير بحث حديث د رباح بن عبدالرحمن دي يعني دسعيد بن زيد بن عمرو بن نفيل حديث دي.

***************

٢٦ـ حَدَّثَنَا الحَسَنُ بْنُ عَلِيٍّ الحُلْوَانِيُّ، حَدَّثَنَا يَزِيدُ بْنُ هَارُونَ، عَنْ يَزِيدَ بْنِ عِيَاضٍ، عَنْ أَبِي ثِفَالٍ المُرِّيِّ، عَنْ رَبَاحِ بْنِ عَبْدِ الرَّحْمَنِ بْنِ أَبِي سُفْيَانَ بْنِ حُوَيْطِبٍ، عَنْ جَدَّتِهِ بِنْتِ سَعِيدِ بْنِ زَيْدٍ، عَنْ أَبِيهَا، عَنِ النَّبِيِّ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ مِثْلَهُ.

**تشريح** : دماقبل سره ربط ظاهر دي چي د اودس دپاره دلاس وينځلو وخت كي نيت كول كافي دي دا په هغه وخت كي كله چي تسميه په نيت محمول شي او كه تسميه پخپله معني محمول كړئ نو مطلب به دا وي چي عند الوضوء بسم الله لولئ.

په دي باره كي دفقهاؤ اختلاف دي چي دتسميه عندالوضوء حيثيت څه دي.

### مذاهب داهل علمو په باره دتسميه عندالوضوء كي

اول مذهب دائمه ثلاثه دي ددوئ په مشهور قول كي داودس په شروع كي بسم الله ونيل سنت دي.

---

1 سنن ابن ماجه/الطهارة ٤١ (٣٩٨) (تحفة الأشراف: ٤٤٧٠) مسند احمد (٤/٧٠) و (٥/٣٨١٣٨٢) و ٣٨٢/٦) (حسن).

دويم ابن عربي دترمذي په شرح کي او علامه عيني په عمدة القاري کي دامام مالك دا قول نقل کړي دي چي تسميه عند الوضوء بدعت دي.
دريم مذهب داهل ظواهر دي ددوئ په نزد تسميه عند الوضوء واجب ده
علامه ابن همام هم دتسميه عند الوضوء په وجوب قول کړي دي ليکن دده دشاګرد قاسم بن قطلوبغه قول دي چي دا قول دتفرداتو دشيخ نه دي او ابن همام تقريبا لس تفردات کړي دي.
دلائل دجمهورو: په قران ايت کي چي د اودس متعلق دي صرف دڅلوو فرائضو ذکر دي او که تسميه عند الوضوء فرض وي نو په دي ايت کي به ددي ذکر هم شوي دي.
دويم دليل: درسول الله صلي الله عليه وسلم د اودس نقل کونکي چي کوم صحابه دي ددوئ تعداد تقريبا ۲۴ دي او په دوئ کي هيڅا هم دتسيمه ذکر نه دي کړي که تسميه فرض يا واجب وي نو صحابه کرامو به درسول الله د اودس بيانولو وخت کي ددي ذکر هم کړي وو.
حافظ جمال الدين ذيلعي په نصب الرايه کي دڅلو صحابه کرامو نه په پوره تفصيل سره دنقل کولو نه پس ليکي هذا يعني په دي تمامو احاديثو کي ما هيچرته هم دتسميه حکم اونه موندلو، ابن عمر او عبدالله ابن مسعود رضي الله عنهما روايت دي "من توضاء وذکر اسم الله عليه کانت طهور لجميع بدنه ومن توضاء ولم يذکر اسم الله عليه کانت طهورا لاعضاء وضوئه" يعني څوك چي د اودس په شروع کي بسم الله اووائي نو په دي اودس دده تمام اندامونه پاکيږي او که بسم الله اونه وائي نو صرف د اودس اندامونه به يي پاك شي.
دا حديث په دي خبره دلالت کوي که څوك بسم الله اووائي نو ثواب يي زياتيږي او که څوك يي پريږدي نو اعضاء دطهارت يي پاك شول مګر ثواب يي کامل نشو.
په نورو تطهيراتو دقياس تقاضا داده لکه څرنګه چي په دوئ کي تسميه فرض او واجب نه ده دا رنګي د اودس نه مخکي هم فرض او واجب نه ده.
اهل ظواهر چي قائلين دوجوب دي دحديث الباب نه استدلال کوي مګر دمذکوره حديث نه متعدد جوابات شوي دي.
(۱) دا حديث ضعيف دي ددينه په وجوب استدلال نشي کيدي چنانچي امام ترمذي دامام احمد قول نقل کړي دي "قال احمد لااعلم في هذا الباب حديثا له اسناد جيد".
(۲) په قطع دنظر سره دسند نه دا حديث په وجوب دتسميه کي محکم نه دي ځکه چي د لا استعمال دنفس شي او وصف شي دنفي دپاره هم راځي لکه "لاايمان لمن لاامانة له".
(۳) په اودس کي دوه حيثيتونه دي (۱) دعبادت کيدو په حيثيت په دي باندي اجر او ثواب مرتب کيږي (۲) کونه مفتاحا للصلوة، دحديث مدلول دادي چي دعبادت کيدو په حيثيت تسميه ضروري ده مګر ددينه دا چرته لازميږي چي دمفتاح الصلوة کيدو دپاره هم تسميه ضروري ده همدا وجه ده چي په حديث کي طهور لفظ نشته بلکه لاوضوء لفظ دي بلکه وضوء

په معني د وضاعت دي يعني د اعضاؤ پرقيدل (غر المحجلين) شرط نه دي خکه چي ددي تعلق داخرت د امورو سره دي دحديث مطلب دادي چي دقيامت په ورل به دتارك تسميه اعضاء نه پرقيږي او اودس بي كيږي معلومه شوه چي د اثارو دترتب په اعتبار سره تسميه ضروري ده او دطهارت په حيثيت سره ضروري نه ده مدني رحمة الله عليه فرمائي په دي حديث كي دا بنكلي توجيه دامام ابوحنيفه رحمة الله عليه نه مروي ده.

***************

## ٢١_ بَابُ مَا جَاءَ فِي الْمَضْمَضَةِ وَالِاسْتِنْشَاقِ

## د غرغري او استنشاق (په پوزي اوخوله كي اوبوا چولو) بيان

٢٧_ حَدَّثَنَا قُتَيْبَةُ بْنُ سَعِيدٍ، حَدَّثَنَا حَمَّادُ بْنُ زَيْدٍ، وَجَرِيرٌ، عَنْ مَنْصُورٍ، عَنْ هِلَالِ بْنِ يَسَافٍ، عَنْ سَلَمَةَ بْنِ قَيْسٍ، قَالَ: قَالَ رَسُولُ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ: " إِذَا تَوَضَّأْتَ فَانْتَثِرْ، وَإِذَا اسْتَجْمَرْتَ فَأَوْتِرْ ". قال: وَفِي الْبَاب عَنْ عُثْمَانَ، وَلَقِيطِ بْنِ صَبِرَةَ، وَابْنِ عَبَّاسٍ، وَالْمِقْدَامِ بْنِ مَعْدِي كَرِبَ، وَوَائِلِ بْنِ حُجْرٍ، وَأَبِي هُرَيْرَةَ. قال أبو عيسى: حَدِيثُ سَلَمَةَ بْنِ قَيْسٍ حَسَنٌ صَحِيحٌ، وَاخْتَلَفَ أَهْلُ الْعِلْمِ فِيمَنْ تَرَكَ الْمَضْمَضَةَ وَالِاسْتِنْشَاقَ، فَقَالَتْ طَائِفَةٌ مِنْهُمْ: إِذَا تَرَكَهُمَا فِي الْوُضُوءِ حَتَّى صَلَّى، أَعَادَ الصَّلَاةَ وَرَأَوْا ذَلِكَ فِي الْوُضُوءِ وَالْجَنَابَةِ سَوَاءً وَبِهِ. يَقُولُ ابْنُ أَبِي لَيْلَى، وَعَبْدُ اللَّهِ بْنُ الْمُبَارَكِ، وَأَحْمَدُ، وَإِسْحَاق، وقَالَ أَحْمَدُ: الِاسْتِنْشَاقُ أَوْكَدُ مِنَ الْمَضْمَضَةِ. قَالَ أَبُو عِيسَى: وَقَالَتْ طَائِفَةٌ مِنْ أَهْلِ الْعِلْمِ: يُعِيدُ فِي الْجَنَابَةِ وَلَا يُعِيدُ فِي الْوُضُوءِ، وَهُوَ قَوْلُ سُفْيَانَ الثَّوْرِيِّ وَبَعْضِ أَهْلِ الْكُوفَةِ، وَقَالَتْ طَائِفَةٌ: لَا يُعِيدُ فِي الْوُضُوءِ وَلَا فِي الْجَنَابَةِ لِأَنَّهُمَا سُنَّةٌ مِنَ النَّبِيِّ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ، فَلَا تَجِبُ الْإِعَادَةُ عَلَى مَنْ تَرَكَهُمَا فِي الْوُضُوءِ وَلَا فِي الْجَنَابَةِ، وَهُوَ قَوْلُ مَالِكٍ، وَالشَّافِعِيِّ فِي آخِرَةٍ. ([1])

**ترجمه** : سلمه بن قيس رضي الله عنه نه روايت دي فرمائي چي رسول الله صلي الله عليه وسلم فرمائيلي دي كله چي اودس كوئ نو پوزه سوڼ كړئ او كله چي په لوټو استنجاء كوئ نو طاق لوټي استعمال كړئ.

امام ترمذي وائي په دي باب كي د عثمان بن عفان، لقيط بن صبره، ابن عباس، مقدام بن معدي كرب، وائل بن حجر، او ابوهريره رضي الله عنهم احاديث وارد دي.

ليكن د سلمه بن قيس والاحديث حسن صحيح دي.

[1] سنن النسائي/الطهارة ٧٢ (٨٩) سنن ابن ماجه/الطهارة ٤٤ (٤٠٦) (تحفة الأشراف: ٤٥٥٦)

او چي څوك غرغره اونکړي او په پوزه کي اوبه وانچوي دهغه باره کي په اهل علمو کي اختلاف دي ديوي ډلي قول دي کله چي څوك دا دواړه څيزونه په اودس کي پريږدي او مونځ اوکړي نو دا مونځ دي راوګرځوي ددي خلقو دا خيال دي چي د اودس او دجنابت په غسل کي دا حکم يو شان دي.

ابن ابي ليلي، عبدالله بن مبارك، احمد بن حنبل، اسحاق بن راهويه (رحمهم الله)رحمهم الله مذکوره قول کړي دي مګر امام احمد مزيد وائي چي په پوزه کي اوبه اچولو حکم دغرغړي دحکم نه زيات معتد دي

داهل علمو يو جماعت وائي چي په غسل کي غرغره نه کولو او په پوزو کي اوبه نه اچولو په صورت کي دي دوئ مونځ راوګرځوي او اودس دي نه راګرځوي دا قول د سفيان ثوري او بعضي اهل کوفه دي او ديوي ډلي قول دي چي نه به اودس راګرځوي او نه به غسل راګرځوي ځکه چي دا دواړه کارونه مسنون دي نو څوك چي دي لره په اودس او غسل کي پريږدي په هغه دمونځ او غسل اعاده واجب نه ده دا قول دامام مالك او امام شافعي اخري قول دي.

**حل لغات** : اعاد اعاد يعيد باب افعال په معني دواپس کولو او په مجردو کي دنصر نه عود ګرځيدل ددي نه علاوه دنورو معانيو دپاره هم راځي.

**تشريح** : د مضمض الماء في فيه معني په خوله کي اوبه ګرځول دي يعني غرغره کوئ او داستنشاق معني په پوزه کي اوبه راښکل دي او بيا د ساه په طاقت دي لره بهر غورځولو ته استنثار ونيلي شي.

## دمضمضي او استنشاق دحکم متعلق مذاهب دفقهاؤ

(۱) دعبدالله بن مبارك امام احمد، اسحاق بن راهويه، او ابن ابي ليلي قول دي چي مضمضه او استنشاق په اودس او غسل دواړو کي واجب دي او دامام احمد دا قول هم دي چي استنشاق او استنثار دمضمضي نه زيات مؤکد دي

(۲) مګر دامام شافعي او امام مالك په نزد باندي په اودس او غسل دواړو کي مضمضه او استنشاق سنت دي

(۳) دامام ابو حنيفه او امام ثوري قول دي چي په اودس کي دواړه سنت دي او په غسل کي غرغره واجب ده

ارشاد نبوي دي کله چي تاسو اودس کوئ نو پوزه سونړ کړئ او چي داستنجاء دپاره کاڼري لټوئ نو طاق عدد استعمال کړئ . په استجمر کي س ت دطلب دپاره دي او ماده يي جمع ده چي معني يي کاڼري دي او دلته دطاق نه مراد بالاجماع ديو نه پس طاق عدد دي.

مګر امام شافعي دحديث د دويمي جملي نه استدلال کړي دي او وجوب يې مراد کړي دي چنانچي دهغه په نزد په استنجاء کي تثليث واجب ده او د اولني جملي نه يې استنجاء مراد کړي ده چنانچي امام شافعي مضمضه او استنشاق سنت ګڼړي او امام مالك دحديث په دواړو جملو کي استحباب مراد کړي دي او امام احمد په دواړو جملو کي وجوب مراد کړي دي خکه چي دده په نزد په استنجاء کي تثليث او په اودس کي مضمضه او استنشاق دواړه واجب دي

دامام احمد استدلال داسي دي چي انتثر او اوتر دواړه دامر صيغي دي او امر مقتضي دوجوب دي نو په دي وجه دا دواړه واجب دي مګر امام مالك او امام شافعي وائي چي بيشکه امر مقتضي دوجوب دي مګر دقرائنو په موجودګۍ کي دامر بله معني هم مراد کيدي شي ددوی په نزد په دواړو کي داستحباب دپاره دي خکه چي مضمضه او استنشاق په امورو دفطرت کي شميرلي شوي دي او دفطرت معني سنت ده او دجنابت په غسل کي په ظاهري بدن وينځلو حکم دي او دخولي او پوزي داخلي حصه اګر چي من وجه ظاهر ده مګر من وجه باطن ده نو خکه ددوی په نزد په غسل کي ددي دواړو وينځل ضروري نه دي.

ليکن دامام ابو حنيفه او امام ثوري په نزد دواړه په اودس کي سنت دي خکه چي دا د فطرت دامورو نه دي مګر په غسل دجنابت کي دواړه واجب دي خکه چي ارشاد الهي دي "وان کنتم جنبا فاطهروا" يعني که تاسو په جنابت کي يئ نو ښه پاکي حاصله کړئ او دښي پاکۍ حاصلولو طريقه همدا ده چي دبدن هره ظاهري حصه وي دا اووينځلي شي او چي کومه من وجه ظاهري ده لکه دخولي پوزي دننه حصه دا هم اووينځلي شي

ددي تفصيل دادي چي په جسم کي دري حصي دي يوه حصه مکمل ظاهر ده او بعضي حصه مکمل باطن ده او بعضي من وجه ظاهر ده او من وجه باطن ده کومه حصه چي مکمل باطن ده دهغي وينځل نه په اودس کي ضروري دي او نه په غسل کي اوچي کومه حصه مکمل ظاهر ده دهغي وينځل په دواړو کي ضروري دي اوچي کومه حصه بين بين ده لکه دخولي او پوزي داخلي حصه نو ددي وينځل په اودس کي فرض نه دي مګر سنت دي ليکن په غسل کي ددي وينځل فرض دي خکه چي په جنابت دغسل کي دښه پاکۍ حاصلولو حکم دي او دخولي او پوزي داخلي حصه خکه بين بين ده چي دروژي په حالت کي په خوله او پوزه کي اوبو اچولو سره روژه نه ماتيږي معلومه شوه چي دا ظاهري ده او په لعاب تيرولو سره هم روژه نه ماتيږي دا رنګي که ځوك خوله بنده کړي نو بيا ورته دننه حصه نه ښکاري او که پوزه بنده کړي نو ددي داخلي حصه ورته هم نه ښکاري مګر که خوله وازه کړي او پوزه پورته کړي نو بيا يې داخلي حصه ښکاريدي شي نو په دي وجه دا دواړه من وجه باطن دي او من وجه ظاهر دي او دسترګي

حال هم اګر چي همداسې دي مګر ددي په وينځلو کي حرج دي نو ښکه ددي دوينځلو حکم نشته.

**فائده**: امام مالك رحمة الله عليه دنبي پاکۍ حاصلولو شکل دا تجويز کړي دي چي په غسل دجنابت کي دلك يعني مږل دبدن ضروري دي او دا يي فرض ګرځولي دي نو ښکه يي مضمضه استنشاق فرض کړي نه دي

***************

## ٢٢_ بَابُ الْمَضْمَضَةِ وَالإِسْتِنْشَاقِ مِنْ كَفٍّ وَاحِدٍ

## په مضمضه او استنشاق( خولي او پوزي ته اوبه اچول ) په يوه لپه کي

کف ورغوي ته وئيلي شي او مراد ورنه چونك وي ددواړو په يو ځاي کولوسره اوبه راخستل لکه لپه ډکول او چي په يو لاس کي راواخلي نو ديته چونك وئيلي شي.

په احاديثو کي دمضمضي او استنشاق مختلفي طريقي راغلي دي په بعضي کي ديو چونك ذکر دي په بعضي کي د دوو او په بعضي کي د دريو او په بعضي کي دشپږو ذکر راغلي دي پس اودس کونکو ته چي څنګه اسانه وي هغه شان دي وکړي.

دټولي دنيا حالات يو شان نه وي زمونږ په علاقو کي خو دالله په فضل اوبه ډيري دي ليکن په دنيا کي بعضي داسي ځايونه هم شته چرته د اوبو کمي وي هلته په يوي لوټي اوبو پوره کور اودس کوي ددي قسمه مسائلو اهميت په هغه ځاي کي وي چرته چي داوبو کمي وي ليکن که څوك انتهائي کامل پاکي حاصلول غواړي نو مضمضه او استنشاق دي دري پيري اوکړي لکه چي دنبي کريم صلي الله عليه وسلم نه سوال اوکړي شو چي په يوه کپړه کي مونځ کيږي؟ رسول الله اوفرمائيل "اولکلکم ثوبان" يعني په تاسو کي دهر يو سړي دوه دوه جامي دي نو بيا دا ضروري څنګه ګرځيدي شي دابئ بن کعب نه مروي دي "الصلوة في الثوب الواحد سنة" يعني په يوه کپړه کي مونځ کول سنت دي او مونږ به درسول الله په زمانه کي داسي کول او زمونږ دا عمل به بدنه ګڼړلي کيدو مګر ابن مسعودرضي الله عنه فرمائي دا حکم په هغه وخت کي دي کله چي دجامو کمي وي او چي کله الله تعالي فراخي راوستله دهغي نه پس مونځ په دوه جامو کي بهتر دي (مشکوة باب الستر) دلته هم دا مسئله ده چي په کومو علاقو کي داوبو کمي دي هغوئ په هر يو روايت عمل کولي شي ليکن په کومو علاقو کي چي اوبه ډيري دي دهغه مقام دخلقو دپاره په افضل عمل کول بهتر دي.

************

۲۸_ حَدَّثَنَا يَحْيَى بْنُ مُوسَى، حَدَّثَنَا إِبْرَاهِيمُ بْنُ مُوسَى الرَّازِيُّ، حَدَّثَنَا خَالِدُ بْنُ عَبْدِ اللَّهِ، عَنْ عَمْرِو بْنِ يَحْيَى، عَنْ أَبِيهِ، عَنْ عَبْدِ اللَّهِ بْنِ زَيْدٍ، قَالَ: " رَأَيْتُ النَّبِيَّ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ مَضْمَضَ وَاسْتَنْشَقَ مِنْ كَفٍّ وَاحِدٍ، فَعَلَ ذَلِكَ ثَلَاثًا ". قَالَ أَبُو عِيسَى: وَفِي الْبَاب عَنْ عَبْدِ اللَّهِ بْنِ عَبَّاسٍ. قال أبو عيسى: وَحَدِيثُ عَبْدِ اللَّهِ بْنِ زَيْدٍ حَسَنٌ غَرِيبٌ، وَقَدْ رَوَى مَالِكٌ، وَابْنُ عُيَيْنَةَ وَغَيْرُ وَاحِدٍ هَذَا الْحَدِيثَ، عَنْ عَمْرِو بْنِ يَحْيَى، وَلَمْ يَذْكُرُوا هَذَا الْحَرْفَ أَنَّ النَّبِيَّ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ مَضْمَضَ وَاسْتَنْشَقَ مِنْ كَفٍّ وَاحِدٍ، وَإِنَّمَا ذَكَرَهُ خَالِدُ بْنُ عَبْدِ اللَّهِ، وَخَالِدُ بْنُ عَبْدِ اللَّهِ ثِقَةٌ حَافِظٌ عِنْدَ أَهْلِ الْحَدِيثِ، وقَالَ بَعْضُ أَهْلِ الْعِلْمِ: الْمَضْمَضَةُ وَالِاسْتِنْشَاقُ مِنْ كَفٍّ وَاحِدٍ يُجْزِئُ، وقَالَ بَعْضُهُمْ: تَفْرِيقُهُمَا أَحَبُّ إِلَيْنَا، وقَالَ الشَّافِعِيُّ: إِنْ جَمَعَهُمَا فِي كَفٍّ وَاحِدٍ فَهُوَ جَائِزٌ، وَإِنْ فَرَّقَهُمَا فَهُوَ أَحَبُّ إِلَيْنَا.[1]

**ترجمه** : دعبدالله بن زيد رضي الله عنه نه روايت دي فرمائي چي ما نبي كريم صلي الله عليه وسلم ليدلي وو چي په يو چونكه كي يي اوبه راواخستلي او غرغره يي ورباندي اوكړه او په پوزه كي يي واچولي او دا كار يي دري پيري اوكړو.

امام ترمذي وائي په دي باب كي د عبدالله ابن عباس رضي الله عنهما نه هم يو روايت وارد دي.

دعبدالله بن زيد رضي الله عنهما دا حديث حسن غريب دي.

امام مالك، سفيان ثوري، ابن عيينه او بعضي نورو اهل علمو دا حديث دعمرو بن يحي په سند روايت كړي دي ليكن دوئ دا خبره نه ده ذكر كړي چي رسول الله صلي الله عليه وسلم په يو چونك اوبو غرغره او استنشاق دواړه اوكړل دا رنګي صرف خالد ذكر كړي دي او خالد دمحدثينو په نزد ثقه او حافظ دي ليكن دبعضي اهل علمو قول دي چي صرف په يو چونك اوبو غرغره او استنشاق كول كافي دي او دبعضي نورو اهل علمو قول دي چي ددواړو دپاره جدا جدا اوبه راخستل زيات بهتر دي امام شافعي وائي چي دا دواړه يي په يو چونك كي جمع كړل نو جائز دي ليكن كه په جدا جدا چونك يي اوكړي نو دا زمونږ په نزد زيات بهتر دي.

**حل لغات** : الاستنشاق: معني په پوزه كي اوبه اچول، مصدر د باب استفعال دى.

---

[1] صحيح البخاري/الوضوء ۳۸ (۱۸۵) ، و۳۹ (۱۸٦) ، و٤۱ (۱۹۱) ، و٤۲ (۱۹۲) ، و٤٥ (۱۹٧) . صحيح مسلم/ الطهارة ٧ (۲۳٥) . سنن ابي داود/ الطهارة ٥۰ (۱۱۸) . سنن النسائي/الطهارة ۸۰-۸۲ (۹٧، ۹۸، ۹۹) . سنن ابن ماجه/الطهارة ٥۱ (٤۲۲) تحفة الأشراف : (٥۳۰۸) موطا امام مالک/الطهارة ۱(۱) . مسند احمد (٤/۳۸، ۳۹) . سنن الدارمي/الطهارة ۲۸ (٧۲۱)

تفريقهما فرّق تفريقا وتفرقة جدا جدا كول شعره يعني په ويختو كي لاړ وخكل . الفاروق معني هغه كس څوك چي حقي فيصلي كوي.

**تشريح** : په دي مسئله كي اختلاف دي چي په مضمضه او استنشاق كي فصل اولي دي او كه وصل اولي دي؟ دفصل په صورت كي دواړو دپاره شپږ پيري اوبو پورته كولو ته حاجت راځي او دوصل په صورت كي ددواړو دپاره دري پيري اوبه پورته كول پكار دي پس په دي باره كي دوه مذاهب دي دامام احمد په نزد په مضمضه او استنشاق كي وصل اولي دي او همدا قول په يو روايت كي دامام شافعي او امام مالك هم دي دوئ دحديث الباب نه استدلال كوي چي "مضمض او استنشق من كف واحد فعل ذلك ثلاثا" ددينه معلومه شوه چي وصل اولي دي.

**د شوافعو د استدلال نه جوابات** ددوئ داستدلال نه مختلف جوابات دي يو جواب دادي دا روايت په بيان دجواز محمول دي او دجواز خو مونږ هم قائل يو.

دويم جواب دادي: د من كف واحد مطلب دادي چي رسول الله په مضمضه او استنشاق كي يو لاس استعمال كړي دي په خلاف دنورو اعضاؤ د اودس څكه چي ددوئ دپاره دواړه لاسونو استعمالولو ته ضرورت وي.

دريم جواب: من كف واحد دتنازع الفعلان دقبيلي نه دي او ددي تعلق به دمضمضي او استنشاق دواړو ته به وي تقدير دعبارت به داسي وي مضمضه من كف واستنشق من كف او دواحد قيد دتثنيه داحتراض دپاره دي او د فعل ذلك ثلاثا تعلق ددواړو جملو سره جدا جدا دي معني به دا وي فعل ذلك كل واحد من المضمضه والاستنشاق ثلاثه مرات ددينه دا ثابته شوه چي فصل اولي دي او وصل اولي نه دي

**دويم مذهب د امام ابو حنيفه دي** دده په نزد په مضمضه او استنشاق كي فصل اولي دي او وصل اوني نه دي او همدا قول په يو روايت كي دامام مالك او امام شافعي نه هم منقول دي.

ددوئ دليل: په ابوداود كي دطلحه بن مصرف رضي الله عنه روايت دي وفيه "فرائيته يفصل بين المضمضه والاستنشاق" يعني ما رسول الله صلي الله عليه وسلم اوليدلو چي د اودس په دوران كي يي په مضمضه او استنشاق كي فصل يعني جدائي راوستله.

دويم دليل د ابو داود دا روايت دي "فتمضمض ثلاثا واستنشق ثلاثا" ددي حديث نه هم فصل ثابتيږي معلومه شوه چي فصل اولي دي

**د راوي عبدالله بن زيد رضي الله عنه حالات:**

نوم عبدالله كنيه ابو محمد قبيله خزرج دپلار نوم يي زيد دی او دمور نوم يي ام عماره وو دهجرت نه پس مسلمان شوی وو او دبدر نه علاوه په تمامو غزواتو كي شريك شوی دی او هم

Scanned with C

ده مسليمه الكذاب دتوري په وار قتل کړی وو کله چي وحشي وهلی وو.
په ۲۳هجري کي وفات شوی دی چي عمر يي په دغه وخت کي ۷۵کلونه وو په کتابونو کي دده يو دوه نور نومونه هم راغلي دي اول خلاد ، دويم علي يو څو روايات ورنه منقول دي او دده نه نقل دروايت کونکي عباد بن تميم، سعيد بن مسيب، يحيي بن عماره، واسع بن حبان، عباده بن حبيب وغيره دي.

***************

## ۲۳_ بَابُ مَا جَاءَ فِي تَخْلِيلِ اللِّحْيَةِ

## د ږيري دخلالولو بيان

۲۹_ حَدَّثَنَا ابْنُ أَبِي عُمَرَ، حَدَّثَنَا سُفْيَانُ بْنُ عُيَيْنَةَ، عَنْ عَبْدِ الْكَرِيمِ بْنِ أَبِي الْمُخَارِقِ أَبِي أُمَيَّةَ، عَنْ حَسَّانَ بْنِ بِلَالٍ، قَالَ: رَأَيْتُ عَمَّارَ بْنَ يَاسِرٍ تَوَضَّأَ، فَخَلَّلَ لِحْيَتَهُ، فَقِيلَ لَهُ: أَوْ قَالَ: فَقُلْتُ لَهُ: أَتُخَلِّلُ لِحْيَتَكَ، قَالَ: وَمَا يَمْنَعُنِي وَلَقَدْ "رَأَيْتُ رَسُولَ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ يُخَلِّلُ لِحْيَتَهُ".(۱)

**ترجمه** : دحسان بن بلال نه روايت دي فرمائي چي عمار بن ياسر رضي الله عنه مي اوليدو چي کله يي اودس اوکړو نو خپله ږيره يي خلال کړه ورته اوونيلي شول او که حسان راوي اوونيل چي ما ورته اوونيل ايا ته دخپلي ږيري خلال کوي؟ هغه په جواب کي اوونيل دږيري خلال به ولي نه کوم دکله نه چي ما رسول الله صلي الله عليه وسلم لره دږيري په خلال کولو ليدلي دي

**تخريج**: سنن ابن ماجه/الطهارة ۵۰ (۴۲۹) (تحفة الأشراف : ۱۰۳۳۶) .

**حل لغات** : خلّل: خلّل يُخَلِّلُ تخليلا : د باب تفعيل نه ږيره خلالول.

**تشريح** : ددي حديث په ضمن کي دوه مسئلي دي اوله مسئله داده ږيره په دوه قسمه ده يوه رنګيږيره ده او بله ګڼره ږيره ده که ږيره رنګيږ وي او دويختو لاندي څرمن ښکاري نو په داسي صورت کي دلاندي څرمن وينخل ضروري دي او که ږيره ګڼره وي يعني دويختو لاندي څرمن نه ښکاري نو څومره ويخته چي دمخ په دائره کي داخل دي دهغي وينځل فرض دي او چي کوم ويخته دمخ د داريږ نه خارج دي دهغي وينځل فرض نه دي او نه يي مسح ضروري دي البته دږيري خلال کول يو ادب دي.

---

او په شرح وقايه كي چي كومه مسئله بيان شوي ده چي دږيري دځلورمي حصي وينځل فرض دي دا مفتي به قول نه دي اشرف علي تهانوي په امدادالفتاوي كي دشامي په حواله ليكلي دي چي دږيري كوم ويخته دمخ په حدودو كي داخل دي دهغي وينځل فرض دي او دزوړندو ويختو وينځل فرض نه دي البته اولي دي (امداد الفتاوي) دويمه مسئله داده د ائمه ثلاثه او امام ابو يوسف په نزد دږيري خلال كول سنت دي او دامام ابوحنيفه او امام محمد په نزد ادب دي دادب تعريف دادي مايحمد فعله ولايذم تركه. يعني چي كول يي قابل دتعريف وي او پريخودل يي سبب دمذمت نه وي د ادب درجه دندب د درجي نه لږه لاندي ده امام ابو حنيفه دږيري دتخليل د ادب كيدو قول په يو څو وجو اختيار كړي دي، اوله وجه داده ددي باب تمام روايات ضعيف دي دعمار رضي الله عنه دروايت په اولني سند كي عبدالكريم راوي ضعيف دي بيا دحسان نه دعبدالكريم سماع ثابت نه ده پس دا روايت منقطع هم دي، دويم دعثمان رضي الله عنه نه روايت دي چي رسول الله صلي الله عليه وسلم به دخپلي ږيري خلال كولو ددي روايت سند هم څه خاص دكار نه دي ځكه چي په عامر شعبي امام ذهبي دمستدرك په تلخيص كي تنقيد كړي دي مګر دامام ترمذي او امام بخاري په قول دا راوي ثقه دي ځكه دي حديث ته ترمذي حسن صحيح وئيلي دي مګر په حقيقت كي دا روايت داعلي درجي نه دي، دريم دا چي عمار رضي الله عنه يي دږيري په خلالولو اوليدو ددينه دشاګردانو تعجب كول او سوال كول چي هغه په ږيره كي خلال كولو ددي خبري دليل دي چي دعمار فعل نااشنا وو او دا خبره هغه صورت كي ممكن ده كله چي په مسلمانانو كي ددي رواج نه وي كچري تخليل دږيري سنت وي نو دا كار به په مسلمانانو كي ضرور رائج وو مګر چونكه روايات متعدد دي نو په دي وجه دوئ لږ دڅه ناڅه درجي اعتبار دي پس ددينه صرف د ادب د درجي حكم ثابت كيدي شي.

**دعماربن ياسر رضي الله عنه حالات**

نوم عمار كنيه ابو اليقظان دپلار نوم ياسر د مور نوم سميه عمار او صهيب بن ثنان په يو ځاي دارقم بن ابي ارقم په كور كي مسلمانان شوي وو او تردغه وخته تقريبا ديرشت كسان مسلمانان شوي وو (فتح الباري).

دي خاندان ددين دپاره ډير مشقت برداشت كړو دده مور داسلام په تاريخ كي هغه اولنۍ زنانه ده كومه چي داسلام دپاره شهيده شوي ده او دده پلار ياسر او دده ورور عبدالله هم شهيدان شوي وو (اصابه).

يوځل نبي كريم صلي الله عليه وسلم اوفرمائيل اى دعمار خاندان ستاسو دپاره دي بشارت وي جنت ستاسو انتظار كوي.

ليكن دتاريخ والا په دي كي اختلاف دى چي حبشي ته يي هجرت كړى وو او كه نه وو ليكن مديني ته يي هجرت كړى وو او رسول الله صلي الله عليه وسلم دده ورورولي دحذيفه بن اليمان

Scanned with C

انصاري سره مقرر کړې وه په ټولو غزواتو کې درسول الله سره شريك شوی وو او په جنګ يمامه کې يې يوغوږ شهيد شو بيا عمر رضي الله عنه دهجرت په شلم کال کال صفر کې دکوفې والي مقرر کړو يو کال او نهه مياشتې والي پاتې شوی.
شهادت په جنګ صفين کې شهيد شو کله چې ده ته دځکلو دپاره شوده ورکړی شو نو ونيل يې چې رسول الله صلي الله عليه وسلم فرمائيلي دي چې په دنيا کې به ستا اخري توخه شوده وي ابن الغاويه په نيزه اووهلو او زخمي شو او بيا يو بل شامي دده سر دتن نه جدا کړو ،طبقات ابن سعد).
علي رضي الله عنه ورباندې جنازه اوکړه او په دې وخت کې دده عمر ۹۱ کلونه وو او په کوفه کې همدا صحابي دفن شوی دی.
۱۲۲احاديث دده نه مروي دي چې دوه په دې کې متفق عليه دي.
****************

٣٠ـ حَدَّثَنَا ابْنُ أَبِي عُمَرَ. حَدَّثَنَا سُفْيَانُ بْنُ عُيَيْنَةَ. عَنْ سَعِيدِ بْنِ أَبِي عَرُوبَةَ. عَنْ قَتَادَةَ. عَنْ حَسَّانَ بْنِ بِلَالٍ. عَنْ عَمَّارٍ عَنِ النَّبِيِّ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ مِثْلَهُ. قَالَ أَبُو عِيسَى: وَفِي الْبَابِ عَنْ عُثْمَانَ. وَعَائِشَةَ. وَأُمِّ سَلَمَةَ. وَأَنَسٍ. وَابْنِ أَبِي أَوْفَى. وَأَبِي أَيُّوبَ. قال أبو عيسى: وسَمِعْت إِسْحَاقَ بْنَ مَنْصُورٍ. يَقُولُ: سَمِعْتُ أَحْمَدَ بْنَ حَنْبَلٍ. قَالَ: قَالَ ابْنُ عُيَيْنَةَ: لَمْ يَسْمَعْ عَبْدُ الْكَرِيمِ مِنْ حَسَّانَ بْنِ بِلَالٍ حَدِيثَ التَّخْلِيلِ. وقَالَ محمد بْنُ إِسْمَاعِيل: أَصَحُّ شَيْءٍ فِي هَذَا الْبَابِ حَدِيثُ عَامِرِ بْنِ شَقِيقٍ. عَنْ أَبِي وَائِلٍ. عَنْ عُثْمَانَ. قال أبو عيسى: وقَالَ بِهَذَا أَكْثَرُ أَهْلِ الْعِلْمِ مِنْ أَصْحَابِ النَّبِيِّ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ. وَمَنْ بَعْدَهُمْ رَأَوْا تَخْلِيلَ اللِّحْيَةِ. وَبِهِ يَقُولُ الشَّافِعِيُّ. وقَالَ أَحْمَدُ: إِنْ سَهَا عَنْ تَخْلِيلِ اللِّحْيَةِ فَهُوَ جَائِزٌ. وقَالَ إِسْحَاقُ: إِنْ تَرَكَهُ نَاسِيًا أَوْ مُتَأَوِّلًا أَجْزَأَهُ. وَإِنْ تَرَكَهُ عَامِدًا أَعَادَ. (1)

**ترجمه** : په دې سند سره هم دعمار بن ياسر نه دپورتني حديث هم معني روايت مرفوعاً مروي دی.
امام ترمذي وائي په دې باب کې د عثمان، عائشه، ام سلمه، انس، ابن ابي اوفي او ابو ايوب رضي الله عنهم نه هم احاديث وارد دي
دمحمد بن اسماعيل بخاري قول دی په دې باب کې دټولو نه زيات صحيح حديث دعامر بن شقيق دی کوم چې هغه دابو وائل نه او ابو وائل دعثمان رضي الله عنه نه نقل کړی دی.

[1] سنن ابن ماجه/الطهارة ٥٠(٤٢٩) (تحفة الأشراف : ١٠٣٣٦)

په صحابؤو او تابعينو كي اكثر اهل علم ددي قائل دي ددي خلقو رائي ده چي دږيري خلا
مسنون دي او ددي قول قائل امام شافعي دي امام احمد بن حنبل وائي كه دچا نه دږيري خلال
كول په اودس كي هير شي نو اودس به يي جائز وي ليكن داسحاق بن راهويه قول دي چي څوك
يي قصدا پريږدي او يا دخلال والاحديث تاويل كوي نو څه باك نشته او كه قصدا يي پريږدي
نو دي به اودس راګرځوي

## دعماربن ياسر رضي الله عنه حالات:

نوم عمار كنيه ابو اليقظان دپلار نوم ياسر د مور نوم سميه عمار او صهيب بن سنان په يو خاي دارقم بن ابي ارقم په كور كي مسلمانان شوي وو او تردغه وخته تقريبا ديرشت كسان مسلمانان شوي وو (فتح الباري)

په جنګ صفين كي شهيد شو كله چي ده ته دڅكلو دپاره شوده وركړى شو نو وئيل يي چي رسول الله صلي الله عليه وسلم فرمائيلي دي چي په دنيا كي به ستا اخري توخه شوده وي ابن الغاويه په نيزه اووهلو او زخمي شو او بيايو بل شامي دده سر دتن نه جدا كړو (طبقات ابن سعد)

علي رضي الله عنه ورباندي جنازه اوكړه او په دي وخت كي دده عمر ۹۱ كلونه وو او په كوفه كي همدا صحابي دفن شوى دى.

۱۶۲احاديث دده نه مروي دي چي دوه په دي كي متفق عليه دي

****************

۳۱ـ حَدَّثَنَا يَحْيَى بْنُ مُوسَى، حَدَّثَنَا عَبْدُ الرَّزَّاقِ، عَنْ إِسْرَائِيلَ، عَنْ عَامِرِ بْنِ شَقِيقٍ، عَنْ أَبِي وَائِلٍ، عَنْ عُثْمَانَ بْنِ عَفَّانَ، أَنَّ النَّبِيَّ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ كَانَ "يُخَلِّلُ لِحْيَتَهُ". قَالَ أَبُو عِيسَى: هَذَا حَسَنٌ صَحِيحٌ.[1]

**ترجمه** : د عثمان بن عفان رضي الله عنه نه روايت دي چي رسول الله صلي الله عليه وسلم به دخپلي ږيري خلال كولو

امام ترمذي وائي دا حسن صحيح دي

**حل لغات** : خلّل يُخَلِّلُ تخليلا : د باب تفعيل نه ږيره خلالول

**تشريح** : په دي كي داهل علمو اختلاف دي چي دږيري دخلالولو څه حكم دي په دي باره كي دعلماؤ دوه مذاهب دي

---

[1] سنن ابن ماجه/الطهارة ۵۰ (۴۳۰) (تحفة الأشراف : ۹۸۰۹) .

(۱) دامام اسحاق په نزد تخليل دږيري واجب دي او دليل يي روايت دعثمان رضي الله عنه دي چي "ان النبي صلي الله عليه وسلم كان يخلل لحيته" په دي حديث كي كان په مضارع داخل شوي دي او قاعده داده كله چي كان په مضارع داخل نو فائده د دوام او استمرار به وركوي او كله كله واقع كيدل دوجوب علامه نه ده

(۲) دجمهورو اهل علمو په نزد تخليل د لحي واجب نه دي دبعضو په نزد سنت دي او دبعضو په نزد مستحب دي ددي اولني دليل دادي چي د اودس طريقه ډيرو صحابه كرامو نه منقول ده ليكن دږيري دتخليل ذكر يو څو صحابه كرامو كړي ده ددينه معلومه شوه چي دا واجب نه دي او كه واجب وي نو تمامو صحابه كرامو به نقل كړي وي.

دويم دليل دادي چي دږيري دتخليل دليل اخبار احاد دي او په ايت د اودس كي دتخليل ذكر نشته او كه مونږ ورته واجب اووايو نو دخبر واحدپه ذريعه به په كتاب الله زيادت راشي او دا جائز نه دي.

دريم دليل دعمار بن ياسر رضي الله عنه روايت دي فرمائي چي كله ما دږيري خلال اوكړو نو په ما باندي اعتراض اوشو چي دږيري تخليل دي ولي اوكړو جواب كي مي اوويل چي نبي كريم صلي الله عليه وسلم مي په داسي عمل كولو ليدلي دي، عمار رضي الله عنه دمعترض په جواب كي چي څه ذكر كړل ددينه معلوميږي چي تخليل دلحي واجب نه دي.

"قال ابو عيسي سمعت" الخ. دامام ترمذي قول دي چي په مذكوره باب كي دحسان بن بلال نه نقل كونكي دوه دي (۱) عبدالكريم بن ابي المخارق (۲) قتاده دي . دعبدالكريم والاسند په باره كي امام ترمذي دامام احمد دا قول نقل كړي دي چي دعبدالكريم سماع دحسان نه ثابت نه ده لهذا دا روايت منقطع دي او په قتاده والاروايت اګر چي امام ترمذي سكوت كړي دي ليكن نورو محدثينو دا هم منقطع ګرځولي دي څكه چي دقتاده سماع هم دحسان بن بلال نه ثابت نه ده.

## دعثمان بن عفان رضي الله عنه حالات

نوم عثمان كنيه ابوعبدالله ، ابو عمر ، ابوليلي او ذي النورين يي لقب وو دپلار نوم يي عفان وو او دمورنوم يي اروي ، دعثمان رضي الله عنه خاندان دااسلام نه مخكي هم ډير عزت او اقتدار لرلو.

دعام الفيل په شپږم كال يي پيدائش شوی دی او په اسلام كي يي دداخليدو نمبر ۳۴ دی. رسول الله صلي الله عليه وسلم دځپلي لور رقيه رضي الله عنها نكاح چونكه دعتبه بن ابو لهب سره كړي وه ليكن چي عتبه طلاق وركړل نو دعثمان رضي الله عنه سره يي نكاح اوشوه حبشي ته دهجرت كونكو نه وو ليكن كله چي مديني ته هجرت شروع شو نو ده هم هجرت

اوكړو طبقات ابن سعد)
په غزوه بدر كي يې درقيه رضي الله عنها دبيمارئ په وجه شركت اونكړى شو او ددينه علاوه په نورو تمامو غزواتو كي شريك شوى دى. عثمان رضي الله عنه كاتب دوحي هم وو (كنز العمال)
دقران پاك سره يې ډيره مينه وه ددنيا نه چي رخصتيدو نو رخصتي يې هم دقران لوستلو په حال كي شوي وه ددينه علاوه پكي نوري ډيري خوبياني هم وي لكه خوف الهي ، حب رسول ، اتباع سنن، احترام رسول، حياء ، تواضع، زهد ، سخاوت، ايثار، حسن سلوك
وفات دجمعي په ورځ دمازيگر په وخت كي په ظالمانه طور سره شهيد شو چي دوه ورځو پورې بې كفه او بې گوره پروت وو او بيا يو څو كسانو دفن كړو ، دمسند احمد دروايت نه معلوميږي چي جنازه ورباندي زبير رضي الله عنه كړي وه او دابن سعد دروايت نه معلوميږي چي زبير بن مطعم ورباندي جنازه كړي وه، دجنت البقيع نه شاته په حش كوكب كي خاورو ته اوسپارلى شو او بيا دغه ديوال مات كړى شو او په جنة البقيع كي شامل كړى شو
مرويات چونكه په نقل دروايت كي ډير محتاط وو نو په دي وجه ورنه صرف ۱۴۲ روايات منقول دي چي اته پكي متفق عليه دي او پنځه په مسلم كي دي او شپاړس په بخاري كي دي

*****************

## ٢٤ ـ بَابُ مَا جَاءَ فِي مَسْحِ الرَّأْسِ أَنَّهُ يَبْدَأُ بِمُقَدَّمِ الرَّأْسِ إِلَى مُؤَخَّرِهِ

**بيان ددي چي د سر مسح به د مخامخ طرف نه شروع كوي او شاته به يې بوځي**

٣٢ ـ حَدَّثَنَا إِسْحَاقُ بْنُ مُوسَى الأَنْصَارِيُّ. حَدَّثَنَا مَعْنُ بْنُ عِيسَى الْقَزَّازُ. حَدَّثَنَا مَالِكُ بْنُ أَنَسٍ، عَنْ عَمْرِو بْنِ يَحْيَى، عَنْ أَبِيهِ، عَنْ عَبْدِ اللَّهِ بْنِ زَيْدٍ، أَنَّ رَسُولَ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ " مَسَحَ رَأْسَهُ بِيَدَيْهِ فَأَقْبَلَ بِهِمَا وَأَدْبَرَ. بَدَأَ بِمُقَدَّمِ رَأْسِهِ ثُمَّ ذَهَبَ بِهِمَا إِلَى قَفَاهُ ثُمَّ رَدَّهُمَا حَتَّى رَجَعَ إِلَى الْمَكَانِ الَّذِي بَدَأَ مِنْهُ، ثُمَّ غَسَلَ رِجْلَيْهِ ". قَالَ أَبُو عِيسَى: وَفِي الْبَاب عَنْ مُعَاوِيَةَ، وَالْمِقْدَامِ بْنِ مَعْدِي كَرِبَ، وَعَائِشَةَ. قال أبو عيسى: حَدِيثُ عَبْدِ اللَّهِ بْنِ زَيْدٍ أَصَحُّ شَيْءٍ فِي هَذَا الْبَابِ وَأَحْسَنُ، وَبِهِ يَقُولُ الشَّافِعِيُّ، وَأَحْمَدُ، وَإِسْحَاق. ([1])

---

[1] صحيح البخاري/الوضوء ٣٨ (١٨٥) و٣٩ (١٨٦) و٤١ (١٩١) ، و٤٢ (١٩٢) ، و٤٥ (١٩٧) ، صحيح مسلم / الطهارة ٧ (٢٣٥) ، سنن ابي داود/ الطهارة ٥٠ (١١٨) ، سنن النسائي/الطهارة ٨٠-٨٢ (٩٧، ٩٨، ٩٩) ، سنن ابن ماجه/الطهارة ٥١ (٤٣٤) تحفة الأشراف : ٥٣٠٨) موطا امام مالك/الطهارة ١(١) ، مسند احمد (٤/٣٨، ٣٩) ، سنن الدارمي/ الطهارة ٢٨ (٧٢١)

**ترجمه** : دعبدالله بن زيدؓ رضي الله عنه نه روايت دي چي رسول الله صلي الله عليه وسلم پخپلو لاسونو دسر مسح اوكړه او دا يي دمخامخ طرف نه شاته راښكل او دشانه يي بيا مخي ته راښكل يعني دسر دمخامخ حصي نه يي شروع اوكړه او بيا يي واپس مخي طرف ته راورسول تردي چي هغه خاي ته يي راورسول دكوم خاي نه چي يي شروع كړي وه او بيا يي دواړه خپي اووينځلي.

دامام ترمذي قول دي په دي باب كي د معاويه، مقدام بن معديكرب او عائشه رضي الله عنهم نه هم احاديث وارد دي.

په دي باب كي دعبدالله بن زيد رضي الله عنه حديث دټولو نه زيات صحيح او عمده دي او هم ددي قول قائل امام شافعي او احمد او اسحاق (رحمهم الله) دي

**تشريح** : په دي كي اختلاف دي چي دسر مسح دكوم خاي نه شروع كول افضل دي په دي كي دعلماؤ دري مذاهب دي

(١) دجمهورو په نزد مقدم طرف دسر نه ابتداء كول بهتردي ددويٰ دليل په مذكوره باب كي دعبدالله بن زيد روايت دي چي "بداء بمقدم راسه" يعني رسول الله دسر مسح دمقدم طرفٰ نه شروع كړ او دا حديث امام ترمذي اصح مافي الباب ګرخولي دي.

(٢) دويم مذهب دوكيع بن جراح دي ددويٰ په نزد دسر دمسح ابتداء دمؤخري حصي دسر نه كولي شي.

دويٰ په ابو داود كي دربيع بن معوض دروايت نه استدلال كوي او په دي كي دسر دمينځ نه دمسح دابتداء ذكر دي.

دمذكوره دواړو روايتونو جواب دادي چي دويٰ په بيان دجواز محمول دي او دجواز خو مونږ هم قائل يو دمذكوره باب دروايت په ابتداء او انتهاء كي ظاهرا تعارض دي او هغه داسي چي داقبال معني ده دمؤخر طرف دسر نه مقدم طرف ته لاس راوړل او دادبار معني دمقدم نه مؤخر طرف ته لاس اوړل دي ددي جملي نه ظاهرا دا ثابتيږي چي دسر دمسحي ابتداء دمؤخري حصي نه شوي ده او ددي په روستيٰ جمله كي بداء بمقدم راسه الفاظ دي چي دسر دمسحي ابتداء دمقدم طرف نه شوي ده.

جواب دادي داقبال او ادبار په مينځ كي واو حرف عاطفه دمطلق جمعيت دپاره دي او د ترتيب دپاره نه دي او اقبال په ادبار مقدم كول داهل عرب عادت دي اګر كه ترتيب نفس الامري ددي برعكس وي.

## دعبدالله بن زيد رضي الله عنه حالات:

نوم عبدالله كنيه ابو محمد قبيله خزرج دپلار نوم يي زيد دی او دمور نوم يي ام عماره وو

دهجرت نه پس مسلمان شوی وو او دبدر نه علاوه په تمامو غزواتو کي شريك شوی دی او هم ده مسليمه الکذاب دتوري په وار قتل کړی وو کله چي وحشي وهلی وو
په ۲۳هجري کي وفات شوی دی چي عمر يي په دغه وخت کي ۷۵کلونه وو په کتابونو کي دده يو دوه نور نومونه هم راغلي دي اول خلاد ، دويم علي يو څو روايات ورنه منقول دي او دده نه نقل دروايت کونکي عباد بن تميم، سعيد بن مسيب، يحيي بن عماره، واسع بن حبان، عباده بن حبيب (رحمهم الله) وغيره دي.

***************

## ۲۵_ بَابُ مَا جَاءَ أَنَّهُ يُبْدَأُ بِمُؤَخَّرِ الرَّأْسِ

## اول شروع به دمسح د سر په مؤخر طرف کوي

۳۳_ حَدَّثَنَا قُتَيْبَةُ بْنُ سَعِيدٍ، حَدَّثَنَا بِشْرُ بْنُ الْمُفَضَّلِ، عَنْ عَبْدِ اللَّهِ بْنِ مُحَمَّدِ بْنِ عَقِيلٍ، عَنِ الرُّبَيِّعِ بِنْتِ مُعَوِّذِ ابْنِ عَفْرَاءَ، أَنَّ النَّبِيَّ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ "مَسَحَ بِرَأْسِهِ مَرَّتَيْنِ، بَدَأَ بِمُؤَخَّرِ رَأْسِهِ ثُمَّ بِمُقَدَّمِهِ وَبِأُذُنَيْهِ كِلْتَيْهِمَا ظُهُورِهِمَا وَبُطُونِهِمَا".

قَالَ أَبُو عِيسَى: هَذَا حَسَنٌ، وَحَدِيثُ عَبْدِ اللَّهِ بْنِ زَيْدٍ أَصَحُّ مِنْ هَذَا وَأَجْوَدُ إِسْنَادًا. وَقَدْ ذَهَبَ بَعْضُ أَهْلِ الْكُوفَةِ إِلَى هَذَا الْحَدِيثِ، مِنْهُمْ وَكِيعُ بْنُ الْجَرَّاحِ. [1]

**ترجمه** : دربيع بنت معوذ بن عفراء رضي الله عنها نه روايت دي چي رسول الله صلي الله عليه وسلم پخپل سر باندي دوه خله مسح اوکړه او د سر د روستي طرف نه يي شروع اوکړه او په دويم خل يي د سر دمخکي حصي نه شروع اوکړه او دخپلو دواړو غوږونو د داخلي او خارجي حصو مسح يي اوکړه.

امام ترمذي وائي دا حديث دحسن درجي دي، او د عبدالله بن زيد حديث دسند په اعتبار ددينه زيات صحيح او عمده دي.

دبعضي اهل کوفه دا حديث معمول بها دي چي يو په هغوی کي وکيع بن جراح هم شامل دي.

**حل لغات** : قدم يقدم قدامة په معني دزړيدو اود باب سمع نه په معني د راتلو اود باب تفعيل نه په معني دمخکي کيدو، او مؤخر د مقدم مقابل دی داهم د باب تفعيل نه اسم مفعول دی.

اجود: جاد يجود جودا دنصر نه معني په بخشش کي غالب کيدل اجود داسم تفضيل صيغه ده په معني دزيات سخي کيدو،دلته يي مصدر جيدا نه مستعمل دی په معني د کره او

---

[1] سنن ابي داود/ الطهارة ۵۰ (۱۲۶)، سنن ابن ماجه/الطهارة ۵۲ (۳۹۰)، و ۵۲ (۴۴۰) (تحفة الأشراف : ۱۵۸۳۷) (حسن)

مستحكم

**تشريح** : محمد بن عقيل صدوق دي مګر سيء الحفظ چي ذکر يي مخکي تير شوي دي او دا حديث دهغه وهم دي دصحيح حديث الفاظ دابن عقيل د روايت نه پس په راتلونکي باب کي راروان دي "مسح راسه ومسح ما اقبل منه وما ادبر" يعني دا حديث په حقيقت کي مجمل دي او کلام دمحاوري مطابق دي کله کله يي محمد بن عقيل بن معني نقل کوي او د اقبل تفسير مخکي تيرشوي دي او د ادبر تفسير روسته راروان دي داقبل او ادبر يي دوه خل مسح ګرځولي ده او حال دادي چي دا صرف يو خل مسح دي چنانچي ما د وکيع نه علاوه دبل هيچا نه دا طريقه نه ده اوريدلي، دامام ترمذي قول دي ددي حديث نه هغه حديث اصح دي کوم چي په سابقه باب کي تير شوي دي

****************

## ٢٦_ بَابُ مَا جَاءَ أَنَّ مَسْحَ الرَّأْسِ مَرَّةٌ

## بيان ددي خبري چي مسح د سر صرف يوځل ده

٣٤_ حَدَّثَنَا قُتَيْبَةُ، حَدَّثَنَا بَكْرُ بْنُ مُضَرَ، عَنِ ابْنِ عَجْلَانَ، عَنْ عَبْدِ اللهِ بْنِ مُحَمَّدِ بْنِ عَقِيلٍ، عَنِ الرُّبَيِّعِ بِنْتِ مُعَوِّذِ ابْنِ عَفْرَاءَ، أَنَّهَا رَأَتِ النَّبِيَّ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ "يَتَوَضَّأُ. قَالَتْ: مَسَحَ رَأْسَهُ وَمَسَحَ مَا أَقْبَلَ مِنْهُ وَمَا أَدْبَرَ، وَصُدْغَيْهِ وَأُذُنَيْهِ مَرَّةً وَاحِدَةً". قال أبو عيسى: وَفِي الْبَابِ عَنْ عَلِيٍّ وَجَدِّ طَلْحَةَ بْنِ مُصَرِّفِ بْنِ عَمْرٍو. قال أبو عيسى: وَحَدِيثُ الرُّبَيِّعِ حَسَنٌ صَحِيحٌ. وَقَدْ رُوِيَ مِنْ غَيْرِ وَجْهٍ، عَنِ النَّبِيِّ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ أَنَّهُ مَسَحَ بِرَأْسِهِ مَرَّةً. وَالْعَمَلُ عَلَى هَذَا عِنْدَ أَكْثَرِ أَهْلِ الْعِلْمِ مِنْ أَصْحَابِ النَّبِيِّ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ وَمَنْ بَعْدَهُمْ. وَبِهِ يَقُولُ جَعْفَرُ بْنُ مُحَمَّدٍ. وَسُفْيَانُ الثَّوْرِيُّ، وَابْنُ الْمُبَارَكِ، وَالشَّافِعِيُّ، وَأَحْمَدُ، وَإِسْحَاقُ: رَأَوْا مَسْحَ الرَّأْسِ مَرَّةً وَاحِدَةً.

حَدَّثَنَا مُحَمَّدُ بْنُ مَنْصُورٍ الْمَكِّيُّ، قَالَ: سَمِعْتُ سُفْيَانَ بْنَ عُيَيْنَةَ، يَقُولُ: سَأَلْتُ جَعْفَرَ بْنَ مُحَمَّدٍ عَنْ مَسْحِ الرَّأْسِ: أَيُجْزِئُ مَرَّةً؟ فَقَالَ: إِي وَاللهِ. [1]

**ترجمه** : دربيع بنت معوذ بن عفراء رضي الله عنها نه روايت دي چي رسول الله صلي الله عليه وسلم مي په داسي حال کي اوليدو چي اودس يي اوکړو. دربيع بيان دي پخپل سر باندي يي مسح اوکړه د غوږونو په مخامخ طرف او د غوږونو په شا طرف باندي هم او په مرونډونو باندي هم او په غوږونو باندي هم يو خل مسح وکړله

---

[1] سنن ابي داود/ الطهارة ٥٠ (١٢٦)، سنن ابن ماجه/الطهارة ٣٩ (٣٩٠)، و ٥٢ (٤٤٠) (تحفة الأشراف : ١٥٨٣٤) (حسن)

امام ترمذي وائي په دي باب کي دعلي، اود طلحه بن مصرف د نيکه هم احاديث وارد دي.
امام ترمذي وائي دا حديث دحسن صحيح درجي دي، او دا حديث د رسول الله نه ددي سند نه علاوه په نورو سندونو هم مروي دی چي رسول الله په سر يو خل مسح کړي ده، او په صحابه کراموا و تابعينو کي داکثرو په دي باندي عمل دی. دارنګي جعفر بن محمد. سفيان ثوري ابن مبارك او شافعي او احمد او اسحاق هم دا وايي چي د سر مسح يوخل ده
د سفيان بن عيينه قول دی چي د جعفر بن محمد نه مي د سر دمسح باره کي تپوس وکړو چي ايا يوخل سر مسح کول په اودس کي کافي دي او که نه ؟هغه راته ووېل په قسم چي يو خل مسح کول کافي دي.

**حل لغات** توضأ يتوضأ وضوء معني اودس کول، وضاه يعني په اوبو يي پاك کړو

**تشريح** : په دي مسئله کي اختلاف دي چي دسر په مسح کي تثليث مسنون دي او کنه دي په دي باره کي داهل علمو دوه مذاهب دي.
(١) اول مذهب دجمهورو علماؤ دي ددوئ په نزد دسر په مسح کي تثليث مسنون نه دي بلکه دسر مسح به يو خل کولي شي ، دوئ دخپلي دعوي دپاره دحديث الباب يعني دربيع بن معوذ دحديث نه استدلال کړي دي په دي کي مذکوردي چي نبي کريم صلي الله عليه وسلم دسر مسح يو خل کړي ده.
ددوئ دويم دليل عقلي دي او هغه دادي که مسح په سر کي تثليث مسنون اوګرځولي شي نو بيا به دا مسح پاتي نشي بلکه دمسح د تکرار په وجه به ددينه غسل جوړشي.
(٢) دويم مذهب دامام شافعي دي دده دمشهور روايت مطابق په مسح دسر کي تثليث مسنون دي او دغير مشهور روايت مطابق تثليث مسنون نه دي او امام ترمذي هم دا قول ذکر کړي دي.
دامام شافعي دليل په ابو داود کي دعثمان رضي الله عنه روايت دي چي هغه دنبي کريم صلي الله عليه وسل د اودس دحکايت کولو په حال کي اوفرمائيل "مسح راسه ثلاثا" يعني رسول الله دسر مسح دري پيري اوکړه.
ددي جواب دادي چي دا روايت شاذ دي ځکه چي دعثمان رضي الله عنه نه نور متعدد روايات دوضوء دحکايت په نقل کولو کي ثابت دي او په هغوئ کي دتثليث ذکر نشته امام ابو داود تصريح کړي ده چي دعثمان رضي الله عنه ددي روايت نه علاوه په نورو رواياتو کي دتثليث ذکر نشته دي.

دامام شافعي دويم دليل قياسي دي چي هغه مسح دسر لره په اعضاء مغسوله قياس كوي يعني لكه څرنگه چي اعضاء مغسوله دري پيري وينخل مسنون دي دارنگي په مسح دسر كي به هم تثليث مسنون وي.

ددي جواب دادي په اعضاء مغسوله دمسحي قياس كول درست نه دي خكه چي ممسوح لره په مغسول قياس كول قياس مع الفارق دي كچري په قياس ددي ثابتولو ته ضرورت وي نو په موزو يي قياس كول پكار دي او په مسح علي الجبيره يي قياس كول پكار دي لكه څرنگه چي په دوئ كي تثليث مسنون دي نو دارنگي به په مسح دسر كي تثليث مسنون كول پكار دي بلكه مسح به مرة واحدة وي.

سوال: دمذكوره باب نه په ماقبل باب كي دربيع بنت معوذ په روايت كي مذكور دي (مسح براسه مرتين) ددينه معلومه شوه چي مسح مرة واحدة مسنون نه ده.

جواب: په دي روايت كي داقبال او ادبار دوه حركتونو ذكر دي دا په حقيقت كي مسح مرتين نه ده بلكه دسر داستيعاب يوه طريقه ده

***************

## ٢٧_ بَابُ مَا جَاءَ أَنَّهُ يَأْخُذُ لِرَأْسِهِ مَاءً جَدِيدًا

## دسر دمسح دپاره دتازه اوبو راخستلو بيان

٣٥_ حَدَّثَنَا عَلِيُّ بْنُ خَشْرَمٍ، أَخْبَرَنَا عَبْدُ اللَّهِ بْنُ وَهْبٍ، حَدَّثَنَا عَمْرُو بْنُ الحَارِثِ، عَنْ حَبَّانَ بْنِ وَاسِعٍ، عَنْ أَبِيهِ، عَنْ عَبْدِ اللَّهِ بْنِ زَيْدٍ، أَنَّهُ رَأَى النَّبِيَّ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ "تَوَضَّأَ، وَأَنَّهُ مَسَحَ رَأْسَهُ بِمَاءٍ غَيْرِ فَضْلِ يَدَيْهِ". قَالَ أَبُو عِيسَى: هَذَا حَسَنٌ صَحِيحٌ، وَرَوَى ابْنُ لَهِيعَةَ هَذَا الحَدِيثَ، عَنْ حَبَّانَ بْنِ وَاسِعٍ، عَنْ أَبِيهِ، عَنْ عَبْدِ اللَّهِ بْنِ زَيْدٍ، أَنَّ النَّبِيَّ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ تَوَضَّأَ وَأَنَّهُ مَسَحَ رَأْسَهُ بِمَاءٍ غَيْرِ فَضْلِ يَدَيْهِ، وَرِوَايَةُ عَمْرِو بْنِ الحَارِثِ عَنْ حَبَّانَ أَصَحُّ، لِأَنَّهُ قَدْ رُوِيَ مِنْ غَيْرِ وَجْهٍ هَذَا الحَدِيثُ، عَنْ عَبْدِ اللَّهِ بْنِ زَيْدٍ وَغَيْرِهِ، أَنَّ النَّبِيَّ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ أَخَذَ لِرَأْسِهِ مَاءً جَدِيدًا، وَالعَمَلُ عَلَى هَذَا عِنْدَ أَكْثَرِ أَهْلِ العِلْمِ رَأَوْا أَنْ يَأْخُذَ لِرَأْسِهِ مَاءً جَدِيدًا. (1)

**ترجمه**: دعبدالله بن زيد رضي الله عنه نه روايت دي فرمائي چي رسول الله صلي الله عليه وسلم مي په داسي حال كي اوليدو چي اودس يي اوكړو او پخپلو دوارو لاسونو كي دپاتي شوو اوبو نه يي علاوه په نوو اوبو دسر مسح اوكړه

[1] صحيح مسلم/الطهارة ٧ (٢٣٦)، سنن ابي داود/الطهارة ٥٠ (١٢٠)، وانظر أيضا رقم: ٢٨ (تحفة الأشراف: ٥٣٠٤)

دامام ترمذي قول دي دا حديث حسن صحيح دي.
ابن لهيعه دا حديث دابن حبان په سند د واسع نه او هغه دخپل پلار نه نقل كړي دي، عبدالله بن زيد رضي الله عنه اوفرمائيل رسول الله صلي الله عليه وسلم اودس اوكړو او د خپل سرمسح يي په لاسونو كي د پاتي شوو اوبو نه علاوه په نوو اوبو اوكړه
دعمرو بن حارث نه روايت دي كوم چي ابن حبان نقل كړي دي او دا دابن حبان دروايت نه زيات صحيح دي ځكه چي په نورو ډيرو سندونو سره هم دا حديث دعبدالله بن زيد رضي الله عنه نه مروي دي چي نبي كريم صلي الله عليه وسلم د خپل سر مسح دپاره دنوو اوبو استعمال اوكړو. داكثرو اهل علمو په همدي باندي عمل دي دامام ترمذي دا رائي چي دسر دمسحي دپاره به نوي اوبه راخستلي شي.
**تشريح** : دي باب كي په دي مسئله كي داختلاف بيان دي دي چي دسر دمسح دپاره ماء جديد ضروري وي او كنه په دي باره كي مذاهب دفقهاؤ دوه دي.
(١) اول مذهب دامام ابو حنيفه دي چي دسر دمسح دپاره ماء جديد ضروري نه دي او د جمهورو اهل علمو په نزد دسر دمسح دپاره ماء جديد شرط دي.
دلائل داحنافو: ماء جديد والاروایاتو ذكر كولو ته ضرورت نشته ځكه چي په باب كي مذكور دي البته هغه دلائل ذكر كول پكار دي دكومو نه چي دا معلوميږي چي د بلل باقيه سره مسح دسر جائز ده او كنه ده په دي باره كي حديث الباب قوي شاهد دي ددي حديث نه په بلل باقيه دسر دمسح جواز ثابت شو دا حديث ګويا كي ضعيف دي مګر دمتابعاتو دوجوب په وجه په دي كي قوت پيدا شوي دي او دهغوئ په وجه دا حجت ګرځيدلي دي او متابعات يي دادي
په ابوداود باب صفة وضوء النبي صلي الله عليه وسلم كي دربيع بن معوذ الفاظ دادي "مسح براسه من فضل ماء كان في يده".
دويم دليل دحافظ عراقي په قول په دارقطني او بيهقي كي روايت دي "مسح راسه بماء فضلت في يده وفي رواية بلل في يده واسناده حسن".
دشوافعو دليل. دا حديث دعبدالله بن زيد دي چي ترمذي دعمرو بن حارث په سند نقل كړي دي "انه راي ان النبي صلي الله عليه وسلم توضأ وانه مسح راسه بماء غير فضل يديه" دا نص صريح دي په دي خبره كي چي رسول الله دماء جديد استعمال كړي دي.
داحنافو دطرفه ددي جواب دادي چي ددي حديث نه دماء جديد وجود معلوميږي او وجوب نه معلوميږي او د عدم وجوب مونږ كله انكار كړي دي لهذا دا په افضليت محمول دي.

**فائده:** په "انه مسح راسه بماء غير فضل يديه" په دي جمله كي غير په معني د بقيه دي ماء موصوله او غير صله دي او كه بماء وي نو مطلب ظاهر دي چي ماء به عبارت وي دماء نه او په فضل يديه كي رفع نصب جر دري واړه جائز دي جر به بناء په بدليت وي او ماء غير مبدل منه ده مبارك فوري وائي په قلمي نسخو كي من فضل يديه راغلي دي نو من به بيانيه وي يعني دسر مسح يي اوكړه په هغهٔ اوبو باندي كومي چي پاتي شوي وي دلاسونو نه او كه ميم نه وي بناء بر بدليت وي نصب ځكه جائز دي چي دلته من مقدر دي او دا به منصوب بنزع الخافظ وي او رفع ځكه جائز دي چي خبر دمبتداء محذوف دي بهر حال اولني دواړه روايتونه متضاد دي داولني روايت نه معلوميږي چي ماء جديد يي استعمال كړي وي او دابن لهيعه د روايت نه معلوميږي چي هم هغه پاتي شوي اوبه يي استعمال كړي وي.

**د راوي عبدالله بن زيد رضي الله عنه حالات:**

نوم عبدالله كنيه ابو محمد قبيله خزرج دپلار نوم يي زيد دى او دمور نوم يي ام عماره وو دهجرت نه پس مسلمان شوى وو او دبدر نه علاوه په تمامو غزواتو كي شريك شوى دى او هم ده مسيلمه الكذاب دتوري په وار قتل كړى وو كله چي وحشي وهلى وو.

په ۳۲ هجري كي وفات شوى دى چي عمر يي په دغه وخت كي ۷۵ كلونه وو په كتابونو كي دده يو دوه نور نومونه هم راغلي دي اول خلاد ، دويم علي يو څو روايات ورنه منقول دي او دده نه نقل د روايت كونكي عباد بن تميم، سعيد بن مسيب، يحيي بن عماره، واسع بن حبان، عباده بن حبيب (رحمهم الله) وغيره دي.

****************

## ۲۸ـ بَابُ مَا جَاءَ فِي مَسْحِ الأُذُنَيْنِ ظَاهِرِهِمَا وَبَاطِنِهِمَا

## د غوږونو د ظاهر او باطن طرفونو د مسح كولو بيان

۳۶ـ حَدَّثَنَا هَنَّادٌ، حَدَّثَنَا عَبْدُ اللَّهِ بْنُ إِدْرِيسَ، عَنْ مُحَمَّدِ بْنِ عَجْلَانَ، عَنْ زَيْدِ بْنِ أَسْلَمَ، عَنْ عَطَاءِ بْنِ يَسَارٍ، عَنْ ابْنِ عَبَّاسٍ، أَنَّ النَّبِيَّ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ "مَسَحَ بِرَأْسِهِ وَأُذُنَيْهِ ظَاهِرِهِمَا وَبَاطِنِهِمَا". قَالَ أَبُو عِيسَى: وَفِي الْبَاب عَنْ الرُّبَيِّعِ. قال أبو عيسى: وَحَدِيثُ ابْنِ عَبَّاسٍ حَسَنٌ صَحِيحٌ. وَالْعَمَلُ عَلَى هَذَا عِنْدَ أَكْثَرِ أَهْلِ الْعِلْمِ يَرَوْنَ مَسْحَ الأُذُنَيْنِ ظُهُورِهِمَا وَبُطُونِهِمَا.[1]

---

[1] صحيح البخاري/الوضوء ۷ (۱۴۰) . سنن ابي داود/ الطهارة ۵۲ (۱۳۷) . سنن النسائي/الطهارة ۸۴ (۱۰۱، ۱۰۲) . (تحفة الأشراف: ۵۹۷۸) (حسن صحيح)

**ترجمه** : دعبدالله ابن عباس رضي الله عنهما نه روايت دي چي رسول الله صلي الله عليه وسلم دخپل سر او دخپلو غوږونو پورتنۍ او داخلي حصو مسح اوکړه

امام ترمذي وائي دابن عباس حديث حسن صحيح دي.

په دي باب کي دربيع رضي الله عنها نه هم حديث مروي دي

داکثرو اهل علمو په دي باندي عمل دي ددوی قول دادي چي ددواړو غوږونو پورتنۍ حصه او داخلي حصي مسح کول پکار دي

**تشريح** : په دي کي دفقهاؤ اختلاف دي چي دغوږ دپاره وينځل پکار دي او که مسح کول پکار دي؟

ائمه اربعه او جمهور فقهاء وائي ظاهر الاذنين او باطن او الاذنين ممسوخ دي او دمسح وخت هغه دي کله چي په لاسونو دسر مسح کول.

دويم مذهب دامام شافعي دي فرمائي چي دغوږونو مخامخ حصي حکم دغسل دي او دمخ دوينځلو وخت کي به دا هم وينځلي شي او امام ترمذي دجمهورو دقول مطابق باب قائم کړي دي دجمهورو استدلال دحديث الباب نه دي چي رسول الله دغوږونو ظاهر او باطن مسح کوي.

قال ابو عيسي حديث ابن عباس حديث حسن صحيح. په راتلونکي باب کي حديث دي الاذنان من الراس. يعني غوږونه دسر په حکم کي دي څنګه چي په سرباندي مسح کيږي نو په غوږونو باندي به هم مسح کيږي او ددي تائيد دنسائي په روايت کيږي.

## د حديث د راوي ابن عباس رضي الله عنهما فضيلت

عن ابن عباس رضي الله عنهما ، قَالَ : كَانَ عمر ﷺ يُدْخِلُنِي مَعَ أَشْيَاخِ بَدرٍ فكأنَّ بَعْضَهُمْ وَجَدَ في نفسِهِ ، فَقَالَ : لِمَ يَدْخُلُ هَذَا معنا ولَنَا أَبْنَاءٌ مِثْلُهُ ؟! فَقَالَ عُمَرُ : إنَّهُ منْ حَيثُ عَلِمْتُمْ ! فَدعاني ذاتَ يَومٍ فَأَدْخَلَنِي مَعَهُمْ فما رَأَيتُ أَنَّهُ دعاني يومَئِذٍ إلاَّ لِيُرِيَهُمْ ، قَالَ : مَا تقُولُون في قولِ الله : ﴿ إِذَا جَاءَ نَصْرُ اللهِ وَالْفَتْحُ ﴾ ؟ [ الفتح : ١ ] فَقَالَ بعضهم : أُمِرْنَا نَحْمَدُ اللهَ وَنَسْتَغْفِرُهُ إِذَا نَصَرَنَا وَفَتَحَ عَلَيْنَا ، وَسَكَتَ بَعْضُهُمْ فَلَمْ يَقُلْ شَيئاً . فَقَالَ لي : أَكَذلِكَ تقُول يَا ابنَ عباسٍ ؟ فقلت : لا . قَالَ : فما تقول ؟ قُلْتُ : هُوَ أَجَلُ رَسُول الله ﷺ أعلَمَهُ لَهُ، قَالَ : ﴿ إِذَا جَاءَ نَصْرُ اللهِ وَالْفَتْحُ ﴾ وذلك علامةُ أَجَلِكَ ﴿ فَسَبِّحْ بِحَمْدِ رَبِّكَ وَاسْتَغْفِرْهُ إِنَّهُ كَانَ تَوَّاباً ﴾ فَقَالَ عمر ﷺ : مَا أعلم مِنْهَا إلاَّ مَا تقول . رواه البخاري .

أخرجه : البخاري ٥/١٨٩ ( ٤٢٩٤ ) في التفسير باب تفسير سورة اذا جاء نصر الله. وباب الانبياء وباب علامات النبوة في الاسلام والترمذي في تفسير سورة الفتح وفي المغازي باب نزول النبي صلي الله عليه وسلم يوم الفتح . ومسلم في الصلاة باب مايقال في الركوع والسجود اخرجه احمد في المسند ١/٣١٣٧

والترمذي والطبراني والبيهقي في الدلائل والنسائي في الكبري بالفاظ متقاربة .
ابن عباس رضي الله عنه فرمائي دعمر فاروق رضي الله عنه دا عادت وو چي زه به يې دبدروالو مشرانو صحابو سره دننه غوښتم نو څني کسانو دا محسوسه کړه دده هومره خو زمونږ زامن دي هغه ورته اوونيل ددي وجه تاسو ته معلومه ده (چي داهل بيتو نه دی او دقران شريف عالم دی) (ابن عباس رضي الله عنه فرمائي) چي يوه ورځ عمر ددي مشرانو سره زه هم راوغوښتم او زما دا خيال دی چي هغوئ ته يې زما دقدر خودلو دپاره راغوښتی وم بيا يې هغوئ نه تپوس اوکړو چي په دي کي "اذا جاء نصر الله والفتح" تاسو څه واني؟ څنو اوونيل مونږ ته حکم شوی دی چي کله په مشرکانو غلبه او فتحه بيامومو چي دالله تعالي شکر اداء کړو او حمد وثنا اووايو او څني غلي پاتي شو. عمر رضي الله عنه ماته اوونيل ابن عباس! ستا هم دغه خيال دی؟ ما ورته اوونيل نه هغه اوونيل نو بيا ته يکي څه واني؟ ما ورته اوونيل دا درسول الله صلي الله عليه وسلم دوفات اطلاع ده الله تعالي خبر ورکړو چي کله ته غلبه او فتح بيامومي نو پوهه شه چي ستا کار پوره شو. درحلت وخت دی نژدي شو نو دالله تعالي صفت او ثنا ډيره وايه او بخښنه ترينه غواړه بيشکه هغه ډير توبه قبلونکی دی عمر رضي الله عنه اوونيل تاچي څه اوونيل ددي نه علاوه يې بله معني ماته نه ده معلومه (بخاري)

"يدخلني مع اشياخ بدر" يعني زه به يې په مجلس کي دبدري صحابه کرامو سره شريك کينولم فكان بعضهم وجد في نفسه" يعني بعضي کسانو دی بنه اونه ګنړلو دابن نحوي په قول ددي نه عبدالرحمن بن عوف رضي الله عنه مراد دی لکه چي دبخاري په روايت کي ددي تصريح موجود دده.

"انه من حيث علمتم" عمر رضي الله عنه اوفرمائيل دابن عباس مرتبه تاسو ته نه ده معلومه . په يوبل روايت کي دي قال المهاجرون لعمر الا تدعو ابنائنا كما تدعوا ابن عباس قال ذاكم فتي الكحول ان له لسانا سؤلا وقلبا عقولا .

فما رائيت انه دعاني يومئذ الا ليريهم. يعني عمر رضي الله عنه زه راوغوښتم ددي دپاره چي دوئ ته زما علميت معلوم شي .

دابن سعد په روايت کي داسي دي اما اني ساريكم اليوم منه ما تعرفون به فضله ذلك علامة اجلك.
په همدي وجه بعضي مفسرينو ددي سورت نوم سورت التوديع ايخودلی دی ددي سورة دنزول نه تقريبا اتيا ورځي پس رسول الله صلي الله عليه وسلم ددنيا نه رخصت شوی دی
په دي سورة کي دا خودلی شوي دي چي دکوم مقصد دپاره رسول الله صلي الله عليه وسلم مبعوث کړی شوی وو هغه مقصد پوره شو.

ما اعلم منها الا ما تقول يعني زما علم هم هغه دی کوم چي تاسو بيـانوئ ليـکن پـه مسند احمد کي ددي الفاظو په ځاي دا الفاظ دي کيف تلومونی علي ما ترون.
ددينه معلومه شوه چي دانسان عزت او مرتبه په عمر سره نه ده بلکه په عقل او فهم سره ده.

***************

## ٢٩ـ بَابُ مَا جَاءَ أَنَّ الأُذُنَيْنِ مِنَ الرَّأْسِ

## بيان ددي خبري چي غوږونه د حکم په اعتبار په سر کي داخل دي

**٣٧ـ حَدَّثَنَا قُتَيْبَةُ. حَدَّثَنَا حَمَّادُ بْنُ زَيْدٍ، عَنْ سِنَانِ بْنِ رَبِيعَةَ، عَنْ شَهْرِ بْنِ حَوْشَبٍ، عَنْ أَبِي أُمَامَةَ، قَالَ: " تَوَضَّأَ النَّبِيُّ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ. فَغَسَلَ وَجْهَهُ ثَلَاثًا وَيَدَيْهِ ثَلَاثًا وَمَسَحَ بِرَأْسِهِ، وَقَالَ: الأُذُنَانِ مِنَ الرَّأْسِ ". قَالَ أَبُو عِيسَى: قَالَ قُتَيْبَةُ: قَالَ حَمَّادٌ: لَا أَدْرِي هَذَا مِنْ قَوْلِ النَّبِيِّ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ أَوْ مِنْ قَوْلِ أَبِي أُمَامَةَ، قَالَ: وَفِي البَابِ عَنْ أَنَسٍ. قال أبو عيسى: هَذَا حَدِيثٌ لَيْسَ إِسْنَادُهُ بِذَاكَ القَائِمِ، وَالعَمَلُ عَلَى هَذَا عِنْدَ أَكْثَرِ أَهْلِ العِلْمِ مِنْ أَصْحَابِ النَّبِيِّ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ، وَمَنْ بَعْدَهُمْ أَنَّ الأُذُنَيْنِ مِنَ الرَّأْسِ، وَبِهِ يَقُولُ: سُفْيَانُ الثَّوْرِيُّ، وَابْنُ المُبَارَكِ، وَالشَّافِعِيُّ، وَأَحْمَدُ، وَإِسْحَاق، وقَالَ بَعْضُ أَهْلِ العِلْمِ: مَا أَقْبَلَ مِنَ الأُذُنَيْنِ فَمِنَ الوَجْهِ وَمَا أَدْبَرَ فَمِنَ الرَّأْسِ، قَالَ إِسْحَاق: وَأَخْتَارُ أَنْ يَمْسَحَ مُقَدَّمَهُمَا مَعَ الوَجْهِ وَمُؤَخَّرَهُمَا مَعَ رَأْسِهِ، وقَالَ الشَّافِعِيُّ: هُمَا سُنَّةٌ عَلَى حِيَالِهِمَا يَمْسَحُهُمَا بِمَاءٍ جَدِيدٍ.** [1]

**ترجمه** : دابوامامه رضي الله عنه نه روايت دي چي رسول الله صلي الله عليه وسلم اودس اوکړو او خپل مخ يي دري پيري اووينځو او خپل لاسونه يي دري ځل اووينځل او په سر يي مسح اوکړه او بيا يي اوفرمائيل دواړه غوږونه په سر کي داخل دي.
امام ترمذي وائي دقتيبه بيان دي چي حماد وئيلي دي ماته معلومه نه ده چي دا درسول الله قول دي او که دابوامامه قول دي.
په دي باب کي د انس او ددي خبري دقائلينو لکه سفيان ثوري، ابن مبارك، او اسحاق بن راهويه روايات هم مذکور دي او دبعضو قول دي دغوږونو مخامخ حصه دمخ حصه ده دادي اووينځلي شي او روستنۍ حصه يي په سر کي داخل ده نو په دي دي مسح اوکړي شي، اسحاق بن راهويه وائي زه دا خبره خوښوم چي دغوږونو مخامخ حصه په مخ کي داخل ده او روستنۍ

[1] سنن ابي داود/ الطهارة ٥٠ (١٣٤) سنن ابن ماجه/الطهارة ٥٣ (٤٤٣) (تحفة الأشراف : ٤٨٨٤) مسند احمد (٥/٢٥٨، ٢٦٨).

حصه يې په سر کې داخل ده، دامام شافعي قول دی چې دا دواړه جدا جدا سنت دي او په دې وجه به دواړه جدا جدا اوبو باندې کیږي.

**حل لغات:** فغسل: اغتسل يغتسل اغتسالا معنى غسل كول ، غسل يغسل غسلا ويندخل مغتسل معنى غسل خانه ، غسيل وينخلي شوي ، غاسل معنى دوبي.

**تشريح:** په دې مسئله کې دفقهاؤ اختلاف دی چې دغوږونو دمسحې دپاره ماء جديد استعمالول مسنون دي او کنه دي؟ په دې کې دوه مذاهب دي.

(۱) مذهب دامام ابوحنيفه دې امام صاحب وائي سنت دادې چې ماء جديد استعمال نشي بلکه په کومو اوبو چې يې دسر مسح کړې وه او په همدغه لمدو لاسو به دغوږونو مسح هم کوي.

(۲) دويم مذهب دامام شافعي. امام شافعي وائي چې دماء جديد استعمال سنت دي.

امام صاحب په زير بحث حديث کې دابو امامه باهلي رضي الله عنه دروايت نه استدلال کوي چې "توضاء النبي صلى الله عليه وسلم غسل وجهه ثلاثا ويديه ثلاثا" دا دبيان مقام دی او په دې روايت کې دا هم دي "الاذنان من الراس" يعني غوږونه دحکم په اعتبار په سر کې داخل دي او ددې تائيد دنسائي په يو روايت کيږي چې يو کس کله دخپل سر مسح کوي نو د سر متعلق تمام ګناهونه يې ختم شي تردې چې داذنين ګناه هم زائل شي.

ددېنه معلومه شوه چې اذنين دسر تابع وي لهذا دسر دپاره راخستې اوبه به ددې دپاره کافي وي دامام صاحب په دليل دشوافعو يو څو اعتراضات دي.

اول اعتراض دادې: امام ترمذي وائي ددې حديث يو راوي حماد بن زيد دی حماد وائي ماته نه ده معلومه چې الاذنان من الراس مرفوع جمله ده او که دابو امامه قول دی ددې شبهې په وجه ددې حديث مرفوع کيدل مشکوک شول احناف وائي داحديث په نورو سندونو ثابت دی چې الاذنان من الراس مرفوع جمله ده او دحماد بن زيد په شك کولو هيڅ اثر نه پريوځي

دويم اعتراض دادې: امام ترمذي ددې حديث باره کې وائي "هذا حديث ليس اسناده بذاك القائم" يعني ددې حديث په سند کې ضعف دی.

ددې يو جواب دادې امام ترمذي ددې حديث تضعيف دشهر بن حوشب په وجه کړې دی او شهر متکلم فيه راوي دی مګر بعضي محدثينو داحديث حس ګرځولي دي مثلا باب الله الاعظم، او باب فضل فاطمه کې ددې بيان دي

دويم جواب: داحديث په ډيرو سندونو ثابت دی که دا سند يې ضعيف وي نو نور ډير قوي سندونه لري.

اعتراض: په "الاذنان من الراس" فرمائيلو سره رسول الله داذنين خلقت بيان كړي دي او حكم يي نه دي بيان كړي.
جواب: رسول الله صلي الله عليه وسلم د اشياؤ دخلقت بيانولو دپاره نه دي مبعوث شوي بلكه دحكم بيانولو دپاره راغلي دي قرينه داده چي رسول الله صلي الله عليه وسلم دا جمله دسر نه فورا پس فرمائيلي ده معلومه شوه چي ددي تعلق دمسح سره دي.
دامام شافعي دليل په طبراني كي دابوذر رضي الله عنه روايت دي او په دي روايت كي دا مذكور دي چي رسول الله صلي الله عليه وسلم داذنين دمسح دپاره دماء جديد استعمال كړي دي.
ددينه جواب دادي چي دا استدلال صحيح نه دي ځكه چي ددي حديث په سند كي عمر بن ابان راوي ضعيف دي بل جواب دادي دا حكم په هغه صورت محمول دي كله چي لاسونه اوچ شوي وي په دي صورت كي مونږ هم منو چي ماء جديد به استعمالولي شي.
اعتراض: هر كله چي غوږونه دسرحصه ده نو بيا به دغوږونو په شمول دسر دڅلورمي حصي مسح كوي په داسي مسح خو تاسو تميز هم نه كيږي نو بيا غوږونه دسر حصه څنګه شوه.
ددي جواب دادي مسح دسر قطعي فرض دي او غوږونه من الراس كيدل ظني دي لهذا دسر مسح كول ضروري دي دا داسي ده لكه يو سړي چي حطيم طرف ته روان شي او مونځ اوكړي نو مونځ يي نه كيږي ځكه چي دحطيم كعبه كيدل په ظني حديث ثابت دي.

**د ابو امامه اياس بن ثعلبه حارثي رضي الله عنه حالات:**

نوم اياس ليكن دبعضو په نزد دده نوم عبدالله بن ثعلبه وو او ددي برعكس ثعلبه بن عبدالله هم ونيلي شوي دي كنيه يي ابو امامه وه اودپلار نوم يي ثعلبه يا عبدالله وو او دقبيله خزرج سره يي تعلق وو دده نه دوه يا دري روايتونه منقول دي يو په بخاري كي دى او يو په مسلم كي.

***************

## ٣٠ـ بَابُ مَا جَاءَ فِي تَخْلِيلِ الأَصَابِعِ

## دګوتو دخلال بيان

**٣٨ـ حَدَّثَنَا قُتَيْبَةُ، وَهَنَّادٌ، قَالَا: حَدَّثَنَا وَكِيعٌ، عَنْ سُفْيَانَ، عَنْ أَبِي هَاشِمٍ، عَنْ عَاصِمِ بْنِ لَقِيطِ بْنِ صَبِرَةَ، عَنْ أَبِيهِ، قَالَ: قَالَ النَّبِيُّ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ: "إِذَا تَوَضَّأْتَ فَخَلِّلِ الأَصَابِعَ". قَالَ: وَفِي البَابِ عَنْ ابْنِ عَبَّاسٍ، وَالمُسْتَوْرِدِ وَهُوَ: ابْنُ شَدَّادٍ الفِهْرِيُّ، وَأَبِي أَيُّوبَ الأَنْصَارِيِّ. قَالَ أَبُو عِيسَى: هَذَا حَسَنٌ صَحِيحٌ. وَالعَمَلُ عَلَى هَذَا عِنْدَ أَهْلِ العِلْمِ أَنَّهُ يُخَلِّلُ أَصَابِعَ رِجْلَيْهِ فِي الوُضُوءِ، وَبِهِ يَقُولُ**

Scanned with Ca

أَحْمَدُ، وَإِسْحَاقُ، قَالَ إِسْحَاقُ: يُخَلِّلُ أَصَابِعَ يَدَيْهِ وَرِجْلَيْهِ فِي الْوُضُوءِ. وَأَبُو هَاشِمٍ اسْمُهُ: إِسْمَاعِيلُ بْنُ كَثِيرٍ الْمَكِّيُّ. ([1])

**ترجمه** : لقيط بن صبره رضي الله عنه فرمائي چي رسول الله صلي الله عليه وسلم فرمائيلي دي کله چي تاسو اودس کوئ نو دګوتو خلال به کوئ.

امام ترمذي وائي په دي باب کي دابن عباس ، مستورد بن شداد ، او ابو ايوب انصاري رضي الله عنهم نه هم احاديث وارد دي

دامام ترمذي قول دي دا حديث حسن صحيح دي.

داهل علمویه همدي باندي عمل دي چي په اودس کي به دګوتو دبندونو خلال کوي او ددي قول قائل امام احمد او اسحاق بن راهويه دي اسحاق بن راهويه وائي چي په اودس کي ددواړو لاسونو او ددواړو خپو دګوتو خلال کول پکار دي.

**حل لغات** : خلّل: خلّل يُخَلِّلُ تخليلا : د باب تفعيل نه ږيره خلالول. توضأ : يتوضأ وضوء معني اودس کول، وضاء يعني په اوبو يي پاك کړو.

**تشريح** : دګوتو دخلالولو څه حکم دي په دي کي دعلماؤ دوه مذاهب دي

(۱) دجمهور اول قول دادي دجمهورو په نزد تخليل داصابع مسنون دي.

(۲) قول داهل ظواهر دي ددوئ په نزد تخليل داصابع واجب دي

دليل دجمهورو ايت داودس دي او حديث داعرابي المسيء في الصلوة دي دارنګي درسول الله صلي الله عليه وسلم دعمل نقل کونکي تقريبا ۲۲ صحابه کرام دي چي تخليل داصابع يي نه دي نقل کړي.

اهل ظواهر دحديث الباب نه استدلال کوي چي "اذا توضات فخلل الاصابع" په دي روايت کي خلل دامر صيغه ده او امر دوجوب دپاره راځي ددينه معلومه شوه چي تخليل داصابع واجب دي.

ددي جواب دادي الله تعالي په قران کي د اودس دپاره څلور فرائض ذکر کړي دي او دتخليل ذکر پکي نشته پاتي شو دا حديث نو دا خبر واحد دي او دخبر واحد په فرضيت ثابتولو به په کتاب الله زيادت راشي په دي وجه دفرضيت قول قابل قبول نه دي

داهل ظواهر دطرفه اعتراض دادي چي داصابع دمنضم کيدو په صورت کي هم خو دفرضيت قول کول پکار نه دي کنه نو په کتاب الله به زيادت راشي

---

[1] سنن ابي داود/ الطهارة ۵۵ (۱۴۲) سنن النسائي/الطهارة ۷۱ (۸۷) سنن ابن ماجه/الطهارة ۴۴ (۴۰۷) ويأتي عند المؤلف في الصيام (۷۸۸) (تحفة الأشراف: ۱۱۱۷۲) مسند احمد (۴/۳۳) سنن الدارمي/الطهارة ۳۴ (۷۳۲)

جواب داصابع بالمنضم كيدو په صورت كي دخلال فرضيت من باب اداء ماورد به كتاب دي او دباب دزيادت نه نه دي باقي پاتي شو دامام صاحب دخپلو مونځونو اعاده كول نو دا دهغه خپله تقوي وه او دهغه فتوي نه وه، په فتوي او تقوي كي فرق وي فتوي خو همدا ده چي مونځونه دي اداء شول والله اعلم

طريقه دتخليل د اصابع اليد: داصابع اليد دتخليل طريقه دا نه ده چي تشبيك اوكړي شي بلكه دتخليل طريقه داده چي ديو لاس په ګوتو كي دبل لاس ګوتو لره دشا دطرفه داخل كړي

دخپو دګوتو دتخليل طريقه: دا كار دي دلاس په كچي ګوته اوكړي او دبنۍ خپي دګوتي نه دي شروع اوكړي او دګسي خپي په كچه ګوته دي خلال ختم كړي.

***************

٣٩ـ حَدَّثَنَا إِبْرَاهِيمُ بْنُ سَعِيدٍ وَهُوَ الْجَوْهَرِيُّ، حَدَّثَنَا سَعْدُ بْنُ عَبْدِ الْحَمِيدِ بْنِ جَعْفَرٍ، حَدَّثَنَا عَبْدُ الرَّحْمَنِ بْنُ أَبِي الزِّنَادِ، عَنْ مُوسَى بْنِ عُقْبَةَ، عَنْ صَالِحٍ مَوْلَى التَّوْءَمَةِ، عَنِ ابْنِ عَبَّاسٍ، أَنَّ رَسُولَ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ، قَالَ: "إِذَا تَوَضَّأْتَ فَخَلِّلْ بَيْنَ أَصَابِعِ يَدَيْكَ وَرِجْلَيْكَ". قَالَ أَبُو عِيسَى: هَذَا حَسَنٌ غَرِيبٌ. [1]

**ترجمه** : دعبدالله ابن عباس رضي الله عنهما نه روايت دي چي رسول الله صلي الله عليه وسلم اوفرمائيل كله چي تاسو اودس كوئ نو د خپلو لاسونو او خپو دګوتو په مينځ كي خلال اوكړئ

دامام ترمذي قول دي دا حديث دحسن غريب درجي دي.

***************

٤٠ـ حَدَّثَنَا قُتَيْبَةُ، حَدَّثَنَا ابْنُ لَهِيعَةَ، عَنْ يَزِيدَ بْنِ عَمْرٍو، عَنْ أَبِي عَبْدِ الرَّحْمَنِ الْحُبُلِيِّ، عَنِ الْمُسْتَوْرِدِ بْنِ شَدَّادٍ الْفِهْرِيِّ، قَالَ: "رَأَيْتُ النَّبِيَّ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ إِذَا تَوَضَّأَ دَلَكَ أَصَابِعَ رِجْلَيْهِ بِخِنْصَرِهِ". قَالَ أَبُو عِيسَى: هَذَا حَسَنٌ غَرِيبٌ، لَا نَعْرِفُهُ إِلَّا مِنْ حَدِيثِ ابْنِ لَهِيعَةَ. [2]

**ترجمه** : دمستورد بن شداد فهري رضي الله عنه نه روايت دي فرمائي چي نبي كريم صلي الله عليه وسلم مي په داسي حالت كي ليدلي وو چي كله به يي اودس كولو نو دخپلو دوارو خپو ګوتي به يي دلاس په كچي ګوته خلال كول

[1] سنن ابن ماجه/الطهارة ٥٣ (٤٤٧) (تحفة الأشراف: ٥٦٨٥)

امام ترمذي وائي دا حديث حسن غريب دي او مونږ ته صرف د ابن لهيعه په سند رارسيدلي دي.

**تخريج**: سنن ابي داود/ الطهارة ٥٨ (١٢٨) سنن ابن ماجه/الطهارة ٥٢ (٢٢٦) (تحفة الأشراف : ١١٢٥٦)

مسند احمد (٢/٢٢٩)

**تشريح** : په دي مسئله كي اختلاف دي چي دګوتو دتخليل څه حكم دي؟ په دي باره كي دوه مذاهب دي چي په تفصيل سره ددي بيان په حديث نمبر ٣٨كي تير شو

**د مستورد بن شداد رضي الله عنه حالات:**

نوم مستورد دپلار نوم شداد قبيله فهري چي دقريشوسره يي تعلق دی او په كوفيانوكي شميرلی شوی دی او په مصر كي يي رهائش كولو؛اسد الغابه،

دا عجيب اتفاق دی چي په كومه ورځ نبي كريم صلي الله عليه وسلم ددنيا نه رخصت شو نو دی ډير وړوكی وو ليكن ددي باوجود يي رسول الله نه احاديث اوريدلي دي تقريبا اوه احاديث ورنه مروي دي څلور داهل مصر نه او دوه داهل كوفه نه په مسلم كي ورنه دا روايت موجود دی او بخاري ورنه نقل دروايت نه دی كړی

***************

## ٣١_ بَابُ مَا جَاءَ «وَيْلٌ لِلأَعْقَابِ مِنَ النَّارِ»

## په اودس كي دپوندو په وينځلو كي دكوتاهي كونكو دپاره داوروعيد

٤١_ حَدَّثَنَا قُتَيْبَةُ قَالَ: حَدَّثَنَا عَبْدُ العَزِيزِ بْنُ مُحَمَّدٍ، عَنْ سُهَيْلِ بْنِ أَبِي صَالِحٍ، عَنْ أَبِيهِ، عَنْ أَبِي هُرَيْرَةَ، أَنَّ النَّبِيَّ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ، قَالَ: " وَيْلٌ لِلأَعْقَابِ مِنَ النَّارِ ". قَالَ: وَفِي البَاب عَنْ عَبْدِ اللَّهِ بْنِ عَمْرٍو، وَعَائِشَةَ، وَجَابِرِ بْنِ عَبْدِ اللَّهِ بْنِ الحَارِثِ هُوَ ابْنُ جَزْءٍ الزُّبَيْدِيُّ، وَمُعَيْقِيبٍ، وَخَالِدِ بْنِ الوَلِيدِ، وَشُرَحْبِيلَ ابْنِ حَسَنَةَ، وَعَمْرِو بْنِ العَاصِ، وَيَزِيدَ بْنِ أَبِي سُفْيَانَ. قال أبو عيسى: حَدِيثُ أَبِي هُرَيْرَةَ حَسَنٌ صَحِيحٌ، وَقَدْ رُوِيَ عَنِ النَّبِيِّ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ، أَنَّهُ قَالَ: " وَيْلٌ لِلأَعْقَابِ وَبُطُونِ الأَقْدَامِ مِنَ النَّارِ ". قَالَ: وَفِقْهُ هَذَا الحَدِيثِ أَنَّهُ لَا يَجُوزُ المَسْحُ عَلَى القَدَمَيْنِ، إِذَا لَمْ يَكُنْ عَلَيْهِمَا خُفَّانِ أَوْ جَوْرَبَانِ. (١)

**ترجمه** : دابوهريره رضي الله عنه نه روايت دي دپوندو په وينځلو کي کوتاهي کونکو دپاره کوتاهي ده يعني دجهنم اور دي
امام ترمذي وائي دابو هريره حديث حسن صحيح دي
په دي باب کي دعبدالله ابن عمر، عائشه، جابر، عبدالله بن حارث بن جزء زبيدي، معيقيب، خالد بن وليد شرحبيل عمرو بن العاص، او يزيد بن ابي سفيان رضي الله عنهم نه هم احاديث وارد دي، ارشاد نبوي دي چي دخپو دتلو دپاره کوم چي په اودس کي اوچ پاتي شي تباهي ده يعني دجهنم اور دي ددي حديث مطلب دادي چي په خپو مسح کول جائز نه دي خو چي په دي باندي موزي يا جرابي نه وي.

**حل لغات** يجوز جاز يجوز جوازا د نصر ينصر باب نه په معني د جائز کيدو دی.
اعقبني. اعقاب چالره جانشين مقررول ، يا بنه بدله ورکول ، العقوبة: العقبني کار بدله يا دهرڅيز اخر، اخرت.

**تشريح** : مذاهب دفقهاؤ چي په اودس کي دخپو دپاره وينځل دي او که مسح؟ په دي باره کي دوه مذاهب دي (۱) داهل سنت والجماعت او تمامو خلفو او سلفو دي (۲) مذهب دشيعه اماميه په نزد د رجلين دپاره مسح دي او غسل نشته.

منشاء داختلاف داده "وارجلكم الي الكعبين" (المائده٦) په دي کي دوه قرائتونه دي چي په اوه قاريانو کي دي لره حفص، نافع، ابن عامر، کسائي، په نصب سره لولي، په دي صورت کي به دا په ايدي عطف وي او دا به ي پشان به دا هم وي باقي قراء دي لره په جر سره لولي او ددي قرائت په اعتبار سره دا به په رؤس معطوف وي پس درؤس پشان به ددي دپاره مسح کول کار دي.
اهل سنت والجماعت نصب والا قرائت اختيار کړي دي او په جر والا قرائت کي يي توجيهات کړي دي ليکن شيع ددي برعکس کار کړي دي چي جر والا قرائت يي اختيار کړي دي او په نصب والا قرائت کي يي توجيهات کړي دي نو ددي کار نه دا اختلاف پيدا شوي دي.
دجمهورو دويم دليل نبوي عمل دي چي په نقل متواتر دشلو نه دزياتو صحابه کرامو نه درسول الله صلي الله عليه وسلم عمل منقول دي او تولو غسل درجلين نقل کړي دي.
دريم دليل حديث دويل للاقاب من النار دي چي دلسو صحابه کرامو نه منقول دي او قرينه په دي باندي دالي الكعبين غايه ده خکه چي دغسل غايه بيانيږي او دمسح غايه نه بيانيږي
څلورم دليل احاديث دخروج الخطاء من اعضاء الوضوء دي په دي احاديثو کي دخپو دګناهونو دخروج ترتب په غسل دي دلته که درجلين حکم مسح وي نو ددي په وينځلو کي به اجر او ثواب نه وي.

پنځم دليل اجماع دصحابه کرامو ده دابن ابي ليلي قول دي "لقد اجمع اصحاب رسول الله صلي الله عليه وسلم علي غسل القدمين" يعني صحابه کرامو په اودس کي د خپو په وينځلو اجماع کړي ده (اخرجه سعيد في سنن) دا رنګي په طحاوي کي د عبدالملك بن سليمان قول دي فرماني چي "قلت لعطاء ابلغت عن احد من اصحاب النبي صلي الله عليه وسلم مسح عي القدمين قال لا" عبدالملك وائي دعطاء نه مي تپوس اوکړو چي ايا تاته درسول الله په صحابه کرامو کي دکوم صحابي نه دا خبر رارسيدلي دي چي په اودس کي دخپو دپاره مسح کول کافي دي نو وېي فرمائيل هرګز نه عطاء بن ابي رباح علم او فضل کي کمال ته رسيدلي دي.

شپږم دليل: دخپو مسح کول دحکيم دحکمت نه مستبعد دي او دا ځکه کوم اعضاء چي په ګرد او غبار ملوث وي دهغي دوينځلو حکم کول پکار دي نه چي په مسح روافض وائي چي خپي په اعضاء ممسوحه کي داخلول پکار دي او د اودس دايت نه استدلال کوي چي په دي ايت کي خپي په رؤسکم عطف دي او چي کوم حکم دمعطوف عليه دي همدا حکم دمعطوف دپاره هم پکار دي يعني لکه څرنګه چي دسر دپاره مسح ده دارنګي درجلين دپاره حکم هم دمسح دي.

**داهل سنت والجماعت دطرفه دجر په قرائت کي تاويلات او ددوئ د دلائلو نه جوابات**

اول تاويل دادي چي دا جر په جوار محمول دي او دا مطلب نه دي چي په رؤس باندي معطوف دي په دي توجيه دري اعتراضات راځي.

اول اعتراض بعضي نحويانو دجر دجوار نه انکار کړي دي او دا يي دفصاحت خلاف ګڼړلي دي ددي جواب دادي په دومره کثرت سره ددي مثالونه موجود دي چي انکار ورنه نشي کيدي په قران کي هم او دقران نه غير هم ددي دليدو نه پس ددينه انکار کول او يا دا خلاف دفصاحت ګڼړل مکابره ده قراني ايت دي "اني اخاف عليكم عذاب يوم اليم" (هود:٢٦) په دي اليم جر دجوار دي او حال دادي چي دا دعذاب صفت دي دا خو منسوب کول پکار وو

دويم اعتراض جر دجوار هلته وي چرته چي دمقصد دغير مقصد سره التباس نه وي او دلته خو التباس راځي.

جواب دادي کچري دالي الكعبين غايه نه وي نو بيشکه چي التباس راتلو ليکن ددي ترك کولو نه پس هيڅ التباس باقي پاتي نشو

اعتراض (٣) جر دجوار کچري په توسط کي دعطف نه وي نو بيا ددي دوجوب نه انکار نشي

جواب: دسوچ خبره داده چي عطف قطع راولي او كه وصل؟ ظاهره ده چي وصل راولي بلكه عطف دوصل تاكيد كوي ددي موجود كيدل او نه موجود كيدل يوبرابر دي، بغير دتوسط دعطف نه جائز كيدو سره بتوسط العطف هم جائز دي او ددي دجواز هم دا ايت پخپله دليل دي.

دويمه توجيه امام طحاوي او داود ظاهري كړي ده او حافظ نقل كړي ده چي دوئ وائي "مسح الرجلين كان ثم نسخ" يعني دجر والا قرائت په وجه درجلين دپاره مسح حكم وو ليكن بيا منسوخ شو.

دريمه توجيه: دجر قرائت په صورت كي دا لفظ په رؤس معطوف دي ليكن په دي وجه نه دي چي دارجل دپاره مسح دي بلكه دارجل دپاره غسل دي ليكن په عام طور سره په غسل درجلين كي چونكه داوبو اسراف كيږي نو ددينه دمنعي دپاره يي په رؤس باندي عطف دي دا جواب هم حافظ عراقي نقل كړي دي.

څلورمه توجيه: دجر قرائت په صورت كي ارجل لفظ په رؤس عطف دي او دعطف په وجه مسح په دي باندي هم مسلط شوي ده ليكن دمسح نه مراد عرفي مسح نه ده بلكه دالي الكعبين قريني مذكور كيدو په وجه باندي مسح لغوي مراد دي يعني غسل خفيف مراد دي دا جواب هم حافظ نقل كړي دي.

داهل شيعه دطرف دنصب والا قرائتونو توجيهات او دهغوئ جوابات ضعيف دي او دعوي يي باطلي دي چي تفصيل يي دعلم فقه په كتابونو كي موجود دي.

****************

## ٣٢_ بَابُ مَا جَاءَ فِي الْوُضُوءِ مَرَّةً مَرَّةً

## په اودس كي دا ندامونو په يو يو ځل وينځلو دا اكتفا كولو بيان

٤٢_ حَدَّثَنَا أَبُو كُرَيْبٍ، وَهَنَّادٌ، وَقُتَيْبَةُ، قَالُوا: حَدَّثَنَا وَكِيعٌ، عَنْ سُفْيَانَ. ح قَالَ: وحَدَّثَنَا مُحَمَّدُ بْنُ بَشَّارٍ، حَدَّثَنَا يَحْيَى بْنُ سَعِيدٍ، قَالَ: حَدَّثَنَا سُفْيَانُ، عَنْ زَيْدِ بْنِ أَسْلَمَ، عَنْ عَطَاءِ بْنِ يَسَارٍ، عَنِ ابْنِ عَبَّاسٍ، أَنَّ النَّبِيَّ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ "تَوَضَّأَ مَرَّةً مَرَّةً". قَالَ أَبُو عِيسَى: وَفِي البَابِ عَنْ عُمَرَ، وَجَابِرٍ، وَبُرَيْدَةَ، وَأَبِي رَافِعٍ، وَابْنِ الفَاكِهِ. قَالَ أَبُو عِيسَى: وَحَدِيثُ ابْنِ عَبَّاسٍ أَحْسَنُ شَيْءٍ فِي هَذَا البَابِ وَأَصَحُّ، وَرَوَى رِشْدِينُ بْنُ سَعْدٍ وَغَيْرُهُ هَذَا الحَدِيثَ، عَنِ الضَّحَّاكِ بْنِ شُرَحْبِيلَ، عَنْ زَيْدِ بْنِ أَسْلَمَ، عَنْ أَبِيهِ، عَنْ عُمَرَ بْنِ الخَطَّابِ، أَنَّ النَّبِيَّ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ تَوَضَّأَ مَرَّةً مَرَّةً. قَالَ: وَلَيْسَ هَذَا بِشَيْءٍ، وَالصَّحِيحُ مَا رَوَى ابْنُ عَجْلَانَ، وَهِشَامُ بْنُ سَعْدٍ، وَسُفْيَانُ الثَّوْرِيُّ، وَعَبْدُ

الْعَزِيزِ بْنُ مُحَمَّدٍ، عَنْ زَيْدِ بْنِ أَسْلَمَ، عَنْ عَطَاءِ بْنِ يَسَارٍ، عَنِ ابْنِ عَبَّاسٍ، عَنِ النَّبِيِّ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ. (1)

**ترجمه** : دعبدالله ابن عباس رضي الله عنهما نه روايت دي چي رسول الله صلي الله عليه وسلم اعضاء دوضوء يو يو خل اووينځل

امام ترمذي وائي په دي باب كي دعمر، جابر، بريده، ابورافع، او ابن الفاكه رضي الله عنهم نه هم احاديث وارد دي او دابن عباس حديث په دي باب كي عمده او صحيح دي

رشدين بن سعد وغيره په سند دضحاك بن شرحبيل عن زيد بن اسلم عن ابيه روايت كړي دي چي عمر رضي الله عنه به فرمائيل نبي كريم صلي الله عليه وسلم اعضاء دوضوء يو يو خل اووينځل ددي روايت هيڅ حيثيت نشته صحيح روايت هغه دي كوم چي ابن عجلان ، هشام بن سعد ، سفيان ثوري او عبدالعزيز بن محمد په سند دزيد بن اسلم عن عطاء بن يسار عن ابن عباس عن النبي صلي الله عليه وسلم سره نقل كړي دي

**تشريح** : ترديـ خاي پوري په تيرو شوو ابوابو كي د اودس د كيفيت بيان وو، ددينه وراندي كميت بيانول غواړي چي درسول الله صلي الله عليه وسلم اودس په څلور قسمه دي (1) وضوء مرة مرة دي، يعني د اغضاء مغسوله په وينځلو يي يو يو اكتفاء كوله او دا واجب ده، وضوء مرتين مرتين او وضوء ثلاثا ثلاثا دافضلي درجي دي او وضوء مخلوط يعني بعضي اعضاء يو خل وينځل او بعضي دوه پيري او بعضو لره دري خله وينځل هم جائز دي په اولني باب كي دوه قسمه او په دريم باب كي دويم او دريم قسم بيان شو او په دريم باب كي د دريم او څلورم قسم بيان دي او په څلورم باب كي د اودس دري واړه اقسام جمع كړي دي او په پنځم باب كي يي مخلوط اودس ذكر كړي دي گوياكي وضوء مرة مرة او مرتين مرتين هم جائز دي ليكن مونږ دپاره ددي عادت جوړول پكار نه دي بلكه دثلاثا عادت پكار دي بيا دا هم ياد ساتل پكار دي چي دوضوء په خاي دري اقسامو كي په هر خل كي استيعاب كول هم پكار دي او دثلاثا نه زيات اسراف او مكروه تحريمي دي او په ثلاثا چاته اطمينان حاصل نشي نو فقهاء وائي دهغه دپاره په دي باندي هم زيادت جائز دي خو په دي شرط چي انسان به متوهم الميزاج نه وي كچري متوسوس او متوهم وي نو دهغه دپاره د دريو نه زيات جائز نه دي (بلكه زيادت حرام دي).

---

[1] صحيح البخاري/الوضوء ٢٢ (١٥٧) . سنن ابي داود/ الطهارة ٥٣ (١٣٨) . سنن النسائي/الطهارة ٦٢ (٨٠) . ق ٤٥ (٤١١) (تحفة الأشراف : ٥٩٧٦) مسند احمد (١/٣٣٢) . سنن الدارمي/الطهارة ٢٩ (٧٢٣)

"قال ابو عيسى حديث ابن عباس احسن شيء" ددي مقام نه امام ترمذي دا بيان دي چي حديث الباب په دوه کسانو ثابت دي (۱) رشدين بن سعد (۲) ابن عجلان، په دي دواړو روايتونو کي دوه قسمه فرق دي يو فرق دادي چي په رشدين والا روايت کي نقل کونکي صحابي دزيد بن اسلم پلار دي او دويم فرق دادي چي رشدين والا روايت کي نقل کونکي صحابي عمر رضي الله عنه او په ابن عجلان والا روايت کي صحابي عبدالله ابن عباس رضي الله عنهما دي ليکن امام ترمذي ابن عجلان والا روايت اصح مافي الباب ګرځولي دي.

***************

## ۳۳_ بَابُ مَا جَاءَ فِي الْوُضُوءِ مَرَّتَيْنِ مَرَّتَيْنِ

## په اودس کي دا ندامونو په دوه دوه ځل وينځلو د اکتفا کولو بيان

٤٣_ حَدَّثَنَا أَبُو كُرَيْبٍ، وَمُحَمَّدُ بْنُ رَافِعٍ، قَالَا: حَدَّثَنَا زَيْدُ بْنُ حُبَابٍ، عَنْ عَبْدِ الرَّحْمَنِ بْنِ ثَابِتِ بْنِ ثَوْبَانَ، قَالَ: حَدَّثَنِي عَبْدُ اللَّهِ بْنُ الْفَضْلِ، عَنْ عَبْدِ الرَّحْمَنِ بْنِ هُرْمُزَ هُوَ الْأَعْرَجُ، عَنْ أَبِي هُرَيْرَةَ، أَنَّ النَّبِيَّ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ "تَوَضَّأَ مَرَّتَيْنِ مَرَّتَيْنِ". قَالَ أَبُو عِيسَى: وَفِي الْبَابِ عَنْ جَابِرٍ. قَالَ أَبُو عِيسَى: هَذَا حَدِيثٌ حَسَنٌ غَرِيبٌ، لَا نَعْرِفُهُ إِلَّا مِنْ حَدِيثِ ابْنِ ثَوْبَانَ، عَنْ عَبْدِ اللَّهِ بْنِ الْفَضْلِ، وَهُوَ إِسْنَادٌ صَحِيحٌ. قَالَ أَبُو عِيسَى: وَقَدْ رَوَى هَمَّامٌ، عَنْ عَامِرٍ الْأَحْوَلِ، عَنْ عَطَاءٍ، عَنْ أَبِي هُرَيْرَةَ أَنَّ النَّبِيَّ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ تَوَضَّأَ ثَلَاثًا ثَلَاثًا. [1]

**ترجمه** : دابوهريره رضي الله عنه نه روايت دي چي رسول الله صلي الله عليه وسلم اعضاء دوضوء دوه دوه خله اووينځل.

دامام ترمذي قول دي دا حديث حسن غريب دي.

په دي باب کي دجابر رضي الله عنه نه هم يو روايت مروي دي

مونږ ته دا معلومه ده چي هغه ته صرف ابن ثوبان دعبدالله بن فضل نه روايت نقل کړي دي او دا سند حسن صحيح دي.

حمام په سند دعامر الاحول عن عطاء عن ابي هريره رضي الله عنه سره نقل کړي دي چي رسول الله صلي الله عليه وسلم اعضاء دوضوء مرتين مرتين اووينځل

---

[1] سنن ابي داود/ الطهارة ٥٢ (١٣٦) (تحفة الأشراف: ١٣٩٢٠)

**حل لغات** : توضأ : يتوضأ وضوء معني اودس كول، وضاء يعني په اوبو يې پاك كړو.

**تشريح** فائده: كله چې ددې حديث سند حسن صحيح دې نو بيا امام ترمذي دې لره ولې صرف دحسن درجې ګرځولې دې؟ زما په خيال كې په اول ځل دغريب سره دحسن اضافه كاتبانو كړې ده صحيح صرف غريب دې اول يې غرابت دسند بيان كړې دې او بيا يې په اسناد في نفسه حكم لګولې دې.

**دثوبان رضي الله عنه حالات**

نوم ثوبان كنيه ابو عبدالله چې په يمن كې دمشهور خاندان حمير سره يې تعلق وو ثعبان يو غلام وو رسول الله صلي الله عليه وسلم اوفرمائيل كه خوښه دې وي خپل خاندان ته لاړ شه او كه زمونږ سره دې اوسيدل خوښ وي نو اوسيږه ته به داهل بيتو نه شميرلى شې نو په دې بنا ثوبان په اهل بيتو كې شميرلو ته پخپل خاندان ترجيح وركړه.

هميشه به يې درسول الله صلي الله عليه وسلم خدمت كولو او د رسول الله دفرمان سره به يې دځان نه زيات محبت كولو يو ځل نبي كريم صلي الله عليه وسلم اوفرمائيل هيڅ كله به چاته لاس نه خوروي نو ددينه پس كه به دده نه داس چابك هم اوغورځيدو نو پخپله به ورپسې كوځيدو او اوچتولو به يې خو دچانه به يې سوال نه كولو (مسند احمد)

دنبي كريم صلي الله عليه وسلم دخدمت كولو په وجه يې پخپله بهترينه استفاده اوكړه په همدې وجه ابن عبدالبر ليكلي دې چې ثوبان دهغه درې كسانو نه دې چاچې احاديث محفوظ كړي دي او ددې اشاعت يې هم كړى دى (استيعاب) دمروياتو شمير يې ۱۲۷ دى

****************

## ٣٤ـ بَابُ مَا جَاءَ فِي الْوُضُوءِ ثَلَاثًا ثَلَاثًا

## په اودس كې دا ندامونو درې درې ځل وينځلو بيان

٤٤ـ حَدَّثَنَا مُحَمَّدُ بْنُ بَشَّارٍ، حَدَّثَنَا عَبْدُ الرَّحْمَنِ بْنُ مَهْدِيٍّ، عَنْ سُفْيَانَ، عَنْ أَبِي إِسْحَاقَ، عَنْ أَبِي حَيَّةَ، عَنْ عَلِيٍّ، أَنَّ النَّبِيَّ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ "تَوَضَّأَ ثَلَاثًا ثَلَاثًا". قَالَ أَبُو عِيسَى: وَفِي الْبَابِ عَنْ عُثْمَانَ، وَعَائِشَةَ، وَالرُّبَيِّعِ، وَابْنِ عُمَرَ، وَأَبِي أُمَامَةَ، وَأَبِي رَافِعٍ، وَعَبْدِ اللَّهِ بْنِ عَمْرٍو، وَمُعَاوِيَةَ، وَأَبِي هُرَيْرَةَ، وَجَابِرٍ، وَعَبْدِ اللَّهِ بْنِ زَيْدٍ، وَأُبَيِّ بْنِ كَعْبٍ. قَالَ أَبُو عِيسَى: حَدِيثُ عَلِيٍّ أَحْسَنُ شَيْءٍ فِي هَذَا الْبَابِ وَأَصَحُّ، لِأَنَّهُ قَدْ رُوِيَ مِنْ غَيْرِ وَجْهٍ عَنْ عَلِيٍّ رِضْوَانُ اللَّهِ عَلَيْهِ، وَالْعَمَلُ عَلَى هَذَا عِنْدَ عَامَّةِ أَهْلِ الْعِلْمِ أَنَّ الْوُضُوءَ يُجْزِئُ مَرَّةً مَرَّةً، وَمَرَّتَيْنِ أَفْضَلُ، وَأَفْضَلُهُ ثَلَاثٌ، وَلَيْسَ بَعْدَهُ شَيْءٌ. وقَالَ ابْنُ

الْمُبَارَكِ: لَا آمَنُ إِذَا زَادَ فِي الْوُضُوءِ عَلَى الثَّلَاثِ أَنْ يَأْثَمَ، وَقَالَ أَحْمَدُ، وَإِسْحَاقُ: لَا يَزِيدُ عَلَى الثَّلَاثِ إِلَّا رَجُلٌ مُبْتَلًى. ([1])

**ترجمه** : دعلي رضي الله عنه نه روايت دي چي درسول الله صلي الله عليه وسلم اعضاء دوضوء دري دري خله اووينځل

امام ترمذي وائي په دي باب كي دعثمان ، عائشه، ربيع، ابن عمر ، ابوامامه، ابورافع، عبدالله بن عمرو، ابوهريره ، عبدالله بن زيد او ابي بن كعب رضي الله عنهم نه هم احاديث وارد دي او دعلي رضي الله عنه حديث اصح مافي الباب دي ځكه چي دعلي رضي الله عنه نه په نورو سندونو هم مروي دي.

داهل علمو په دي باندي عمل دي چي اعضاء دوضوء يو يو خل وينځل كافي دي او دوه دوه خله وينځل افضل دي او ددينه زيات افضل دري پيري وينځل دي او ددينه زيات گنجائش نشته ، ابن مبارك كله چي څوك اعضاء دوضوء د دري پيرو نه زيات اووينځي نو ماسره ددي دگناهگاريدو خطره ده، امام احمد او اسحاق بن راهويه وائي د دري پيرو نه زيات اعضاء دوضوء وينځل پكار نه دي او دا كار هغه څوك كوي څوك چي په ليوتوب او وسوسه كي مبتلا وي.

**حل لغات** . يجزي دضرب نه معني قادر كيدل اود باب افعال نه معني بدله وركول.

**تشريح** : دري پيري وينځل كمال دسنت دي چنانچي امام ترمذي وائي "وافضله ثلاث وليس بعده شيئا" يعني افضل په وينځلو كي دري پيري دي او ددينه زيات پكار نه دي.

د اودس د اعضاؤ دوينځلو دتعداد باره كي مذاهب دفقهاؤ:

### كه څوك د دري پيرو نه زيات اعضاء د اودس اووينځي نو حكم يي څه دي

كه اعضاء كامل اووينځي او په وسوسه نسيان كي هم مبتلا نه وي مگر بيا هم زيات وينځل كوي نو دا په اتفاق دعلماؤ ناجائز دي او په اسراف كي داخل دي او كچري يو سړي په وسوسه كي مبتلاوي چي شايد كوم خاي به اوچ پاتي شوي وي نو دابن مبارك په قول ماسره ددا كس په گناه كي دمبتلاكيدو خطره ده.

دويم قول دامام احمد او اسحاق بن راهويه دي "لايزيد علي الثلاث الا رجلا ابتلي" يعني زما په نزد د اودس داندامونو په وينځلو كي د دري پيرو نه زيادت دليونو نه علاوه بل څوك نه كوي

---

[1] سنن ابي داود/ الطهارة٥٠ (١١٦) سنن النسائي/الطهارة٧٩ (٩٦) و٩٣ (١١٥) و١٠٣ (١٣٦) (تحفة الأشراف : ١٠٣٢١، و١٠٣٢٣) مسند احمد (١/١٢٢) ويأتي برقم: ٣٨. وانظر مايأتي برقم ٣٩

دمبتلا نه مراد مجنون دي يعني صرف زيادت كونكي مجنون كيدي شي او د صحيح دماغ انسان دپاره جائز نه دي په دي صورت كي به دابن مبارك دقول سره فرق پاتي نشي دويمه معني دمبتلا موسوس دي او په دي كي اختلاف دي ددي قول نه معلوميږي چي دموسوس دپاره زيادت جائزدي او ددي توجيه بنياد په يو بل روايت دي وهو قوله عليه السلام "دع مايريبك الي ما لايريبك" يعني مشكوك څيز پريږدئ يقيني اختيار كړئ نو دزائد استعمال دموسوس دپاره په لايريبك كي داخل دي لهذا زيادت جائز دي ملاعلي قاري واني دموسوس دپاره هم د دري پيرو نه زيات غسل جائز نه دي او دا ځكه كله چي په دري پيرو اطمينان نه وي نو په زيات يي هم اطمينان نه وي او د هغه روايت نه استدلال كوي په كوم كي چي يو اعرابي د اودس باره كي سوال كړي وو نو رسول الله په اودس كي اندامونه دري دري پيري ورته بيان كړل او بيا يي اوفرمائيل "هكذا الوضوء فمن زاد علي هذا او نقص فقد اساء او ظلم" يعني درست اودس همداسي دي څوك چي په دي باندي اضافه كوي يا كمي كوي يقينا چي هغه به ظلم او بد كار كوي.

وفي الباب_ عنوان لاندي د دولس صحابه كرامو احاديثو حواله وركړي ده، باب ماجاء في الوضوء مرة مرة وهو مرتين وثلاثا داحديث په دوه طريقو مروي دي يوه طريقه دشريك ده او بله طريقه دوكيع ده په دوئ كي فرق دادي چي دشريك په روايت كي د توضأ مرة نه د مرتين مرتين ثلاثا ثلاثا اضافه ده او دوكيع په روايت كي د توضأ مرة نه پس مرتين او ثلاثا اضافه ده امام ترمذي په دي كي فرق كوي چي دوكيع سنت ته فوقيت حاصل دي لكه چي په دي كي ترك هم دير او راويان يي هم ثقه دي ليكن شريك غير ثقه دي او د كثيرالغلط كيدو په وجه ضعيف دي او په دي وجه به ثابت بن صفيه بن جعفر نه ددي حديث باره كي سوال كولو تردي چي سند عالي شي.

## دعلي رضي الله عنه حالات

نوم علي ابو الحسن او ابو تراب كنيه او حيدر يي لقب دی دپلار نوم يي ابو طالب او دمور نوم يي فاطمه وه علي رضي الله عنه نجيب الطرفين هاشمي وو او درسول الله صلي الله عليه وسلم دتره حقيقي خوي وو علي رضي الله عنه دبعثت نبوي نه لس كاله مخكي پيدا شوی دی تقريبا دلسو كالو په عمر كي په اسلام مشرف شوی دی دبعضو قول دی چي دخديجه رضي الله عنها نه ابوبكر رضي الله عنه مسلمان شو او دبعضو قول دی چي دخديجي نه پس علي رضي الله عنه مسلمان شوی دی په مكه كي يي ديارلس كاله درسول الله صلي الله عليه وسلم سره تير كړل او بيا دعثمان رضي الله عنه دشهادت نه په دريمه ورځ ٢١ ذي الحجه ددوشنبي په ورځ په مسجد نبوي كي خليفه مقرر كړی شو (طبري).

وفات ۴۰ هجري کي دسحر دمونځ په امامت کي مشغول وو چي ابن ملجم ورباندي دتوري يو مضبوط وار اوکړو چي سر يي زخمي شو خلقو ابن ملجم اونيولو (طبري)
بيا په همدي ورځ په شلم رمضان دهجرت په ۴۰کال ددنيا نه رخصت شو
دماشوموالي نه واخله دوفات کيدو پوري تقريبا ديرشت کاله يي دنبي کريم صلي الله عليه وسلم خدمت کړی دی ليکن داحاديثو په نقل کولو کي ډېر احتياط مالك وو دحديث په کتابونو کي دده روايات ډير کم موندلی شي چي ټوټل ورنه ۵۸۲روايات منقول دي چي شل په دي کي متفق عليه دي نهه صرف په بخاري کي دي لس په مسلم کي دي او باقي اصحاب السنن ذکر کړي دي

***************

## ۳۵_ بَابُ مَا جَاءَ فِي الْوُضُوءِ مَرَّةً وَمَرَّتَيْنِ وَثَلاَثًا

## په اودس کي دا ندامونو د يويو، دوه دوه، دري دري وينځلو بيان

**٤٥_ حَدَّثَنَا إِسْمَاعِيل بْنُ مُوسَى الْفَزَارِيُّ، حَدَّثَنَا شَرِيكٌ، عَنْ ثَابِتِ بْنِ أَبِي صَفِيَّةَ، قَالَ: قُلْتُ لِأَبِي جَعْفَرٍ: حَدَّثَكَ جَابِرٌ، أَنَّ النَّبِيَّ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ "تَوَضَّأَ مَرَّةً مَرَّةً، وَمَرَّتَيْنِ مَرَّتَيْنِ، وَثَلَاثًا ثَلَاثًا". قَالَ: نَعَمْ.**[1]

**ترجمه** : دابو همزه ثابت بن ابي صفيه شمالي نه روايت دي فرماني چي دابو جعفر نه مي تپوس اوکړو چي ايا تاته جابر رضي الله عنه دا بيان کړي دي چي نبي کريم صلي الله عليه وسلم د اودس اندامونه يو يو خل اووينځل او که دوه دوه خل يي اووينځل او که دري دري خل يي اووينځل؟ هغوئ اونيل هو،(يعني دا يي بيان کړي دي

**تشريح** : ددي باب تمام راويان ثقه دي او ددي باب قائمولو دوه مطلبونه دي يو مطلب يي دفع دتوهم دي توهم دا وو چي مرتين او ثلاثا به جدا جائز وي او په يو اودس کي به نه وي نو دا توهم يي ختم کړو چي په يو اودس کي هم دا جائز دي، دويم مطلب دادي چي دامام ترمذي دا ابواب متعارض اونه ګڼړلي شي تردي چي بيا بعضو ته په بعضو ترجيح ورکړي شي بلکه ټول روايات متفق دي

***************

---

[1] سنن ابن ماجه/الطهارة ٣٥ (٤١٠) (تحفة الأشراف : ٢٥٩٢)..

٤٦ـ قَالَ أَبُو عِيسَى: وَرَوَى وَكِيعٌ هَذَا الحَدِيثَ، عَنْ ثَابِتِ بْنِ أَبِي صَفِيَّةَ قَالَ: قُلْتُ لِأَبِي جَعْفَرٍ: حَدَّثَكَ جَابِرٌ، أَنَّ النَّبِيَّ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ "تَوَضَّأَ مَرَّةً مَرَّةً". قَالَ: نَعَمْ. وحَدَّثَنَا بِذَلِكَ هَنَّادٌ، وَقُتَيْبَةُ، قَالَا: حَدَّثَنَا وَكِيعٌ، عَنْ ثَابِتِ بْنِ أَبِي صَفِيَّةَ. قَالَ أَبُو عِيسَى: وَهَذَا أَصَحُّ مِنْ حَدِيثِ شَرِيكٍ، لِأَنَّهُ قَدْ رُوِيَ مِنْ غَيْرِ وَجْهٍ هَذَا، عَنْ ثَابِتٍ نَحْوَ رِوَايَةِ وَكِيعٍ، وَشَرِيكٌ كَثِيرُ الغَلَطِ، وَثَابِتُ بْنُ أَبِي صَفِيَّةَ هُوَ أَبُو حَمْزَةَ الثُّمَالِيُّ. (۱)

**ترجمه** : امام ترمذي واني دا حديث وكيع دثابت بن ابي صفيه نه نقل كړي دي فرماني چي ما دابوجعفر (محمد بن علي بن حسين الباقر) نه تپوس اوكړو چي ايا تاته جابر دا بيان كړي دي چي رسول الله صلي الله عليه وسلم د اودس اندامونه يو يو ځل اووينځل او كنه. هغوي زاته په جواب كي اوفرمائيل هو

امام ترمذي واني چي دا روايت دشريك دروايت نه زيات صحيح دي ځكه چي دا دثابت نه او هغه دوكيع نه علاوه په نورو ډيرو سندونو سره هم مروي دي او شريك يو كثير الغلط راوي دي.

**تشريح** : ددي باب دي روايت ته دمحدثينو په اصطلاح كي جامع ونيلي شي دجامع مطلب دا دي چي نبي كريم صلي الله عليه وسلم دكوم عمل تمام اړخونه په كوم روايت كي ذكر كړي دي نو اول يي مرة مرتين وغيره متفرق ذكر كړي دي نو په دي باب كي يي دواړه جمع كړل په نورو الفاظو به داسي اووائي چي دا اجمال بعدالتفصيل دي كوم چي اوقع في الذهن وي په دي كي دي خبري ته اشاره ده چي تمام اعمال دي فرض اونه ګڼړلي شي بلكه بعضي فرائض دي، بعضي سنن دي بعضي اداب دي، او اختلاف درواياتو بيانول په بيان دجواز محمول دي.

دلته ظاهر دكف او باطن دكف دواړه مراد دي يعني انقاهما من الوسخ

په دي حديث داحنافو داستدلال تائيد كيږي چي په مضمضه او استنشاق كي تفريق دي او ابن حجر رحمة الله عليه پخپله دا تسليم كړي ده چي دلته ظاهري مطلب همدادي چي په مضمضه او استنشاق كي تفريق دي.

"ومسح براسه مرة" په دي كلام هم دجمهورو دمسلك تائيد كيږي چي په مسح دسر كي تثليث نشته، ابن حجر په دي كي دا توجيه كړي ده چي "ومسح براسه مرة" دجواز دبيان دپاره دي دابن حجر دقول جواب دادي چي بيان دجواز دشارع حق دي او علي رضي الله عنه شارع نه دي.

"ثم غسل قدميه من الكعبين" په دي كلام كي هم دجمهورو تائيد دي او څوك چي دمسح القدمين قائل دي او نسبت يي علي رضي الله عنه ته كوي يعني روافض دهغوئ دقول ترديد هم اوشو چي علي رضي الله عنه په غسل دقدمينو عمل كونكي وو بيا علي رضي الله عنه ددي پوره عمل حواله وركړه چي زه دنبي كريم صلي الله عليه وسلم عمل بيانول غواړم ددينه معلومه شوه چي د اودس نه دپاتي شوو اوبو څكل مسنون دي ددي وجه داده چي ددي اوبو استعمال دعبادت دپاره شوي دي او دا بركتي دي

"ثم قام فأخذ فضل طهوره فشربه وهو قائم" يوه مسئله داده چي شرب قائما جائز دي او كنه دي؟ په دي كي دواړه قسمه احاديث موجود دي اولني قسم احاديث كوم چي په نهي محمول دي هلته نهي تنزيهي مراد ده او احاديث داباحت په بيان دجواز محمول دي

دويم تطبيق دادي په احاديثو دنهي كي چي كومه نهي ده هغه د طب په لحاظ ده يعني په ولاړه اوبه څكل دصحت دپاره مضر دي او د اباحت داحاديثو نه جواز معلوميږي دريم تطبيق دنهي د احاديثو مدلول دبركتي اوبو نه علاوه اوبه دي په احاديثو داباحت كي بركتي اوبه مراد دي.

څلورم تطبيق دادي احاديث دنهي منسوخ دي او احاديث داباحت ناسخ دي.

**سوال** علي رضي الله عنه په ولاړه اوبه ولي اوڅكلي.

**جواب** دادي چي علي رضي الله عنه ته دنهي د احاديثو دمنسوخيت علم نه وو.

سوال ددي برعكس عمل يي ولي اونكړو.

جواب څكه چي په دي صورت كي نسخ مرتين لازميږي، څكه چي ابتداء اباحت وو بيا دنهي په وجه اباحت منسوخ شو بيا نهي منسوخ شوه داباحت په وجه

اسنادي كلام ددي روايت په سند كي يو راوي خالد بن علقمه دي دده صحيح نوم همدا دي او دشعبي نه غلطي شوي ده چي دا قول يي كړي دي چي دده نوم مالك بن عرفطه وو او ابو عوانه هم ددي حديث راوي دي په دواړو طريقه روايت كوي دخالدبن علقمه نه هم او دمالك بن عرفطه نه هم

****************

## ٣٦ـ بَابُ مَا جَاءَ فِيمَنْ يَتَوَضَّأُ بَعْضَ وُضُوئِهِ مَرَّتَيْنِ وَبَعْضَهُ ثَلَاثًا

## بيان دهغه چا چي بعضي اندامونه په اودس كي يوځل او بعضي دوه ځله او بعضي دري ځه وينځي

٤٧ـ حَدَّثَنَا مُحَمَّدُ بْنُ أَبِي عُمَرَ. حَدَّثَنَا سُفْيَانُ بْنُ عُيَيْنَةَ، عَنْ عَمْرِو بْنِ يَحْيَى، عَنْ أَبِيهِ، عَنْ عَبْدِ اللَّهِ بْنِ زَيْدٍ، أَنَّ النَّبِيَّ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ "تَوَضَّأَ فَغَسَلَ وَجْهَهُ ثَلَاثًا وَغَسَلَ يَدَيْهِ مَرَّتَيْنِ مَرَّتَيْنِ وَمَسَحَ بِرَأْسِهِ وَغَسَلَ رِجْلَيْهِ مَرَّتَيْنِ". قَالَ أَبُو عِيسَى: هَذَا حَسَنٌ صَحِيحٌ، وَقَدْ ذُكِرَ فِي غَيْرِ حَدِيثٍ، أَنَّ النَّبِيَّ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ تَوَضَّأَ بَعْضَ وُضُوئِهِ مَرَّةً وَبَعْضَهُ ثَلَاثًا، وَقَدْ رَخَّصَ بَعْضُ أَهْلِ الْعِلْمِ فِي ذَلِكَ: لَمْ يَرَوْا بَأْسًا أَنْ يَتَوَضَّأَ الرَّجُلُ بَعْضَ وُضُوئِهِ ثَلَاثًا وَبَعْضَهُ مَرَّتَيْنِ أَوْ مَرَّةً. [1]

**ترجمه** : دعبدالله بن زيد رضي الله عنه بيان دي فرمائي چي نبي كريم صلي الله عليه وسلم اودس اوكړو او مخ يي دري پيري اووينځلو او دواړه لاسونه يي دوه دوه پيري اووينځل او بيا يي په سر باندي مسح اوكړه او بيا يي دواړه خپي اووينځلي

امام ترمذي وائي دا حديث حسن صحيح دي ددينه علاوه په نورو احاديثو كي هم دا خبره مذكور ده چي نبي كريم صلي الله عليه وسلم بعضي اعضاء د اودس يو يو ځل اووينځل او بعضي يي دري دري ځله اووينځل

بعضي اهل علمو ددي خبري اجازت وركړي دي چي ددوئ په خيال په اودس كي بعضي اعضاء دري ځله وينځلي شي او بعضي دوه ځله اوبعضي يو ځل او كه داسي اوشي په دي كي هيڅ خرج نشته.

**حل لغات** : يمسح مسح مسحا الشيء دفتح باب نه په معني درسيدو سره يو شي ته لكه چي ونيلي شي مسح الله مابك من علة يعني الله تعالي دي ستا بيماري ختمه كړي

**د راوي عبدالله بن زيد رضي الله عنه حالات:**

نوم عبدالله كنيه ابو محمد قبيله خزرج دپلار نوم يي زيد دی او دمور نوم يي ام عماره وو دهجرت نه پس مسلمان شوی وو او دبدر نه علاوه په تمامو عزواتو كي شريك شوی دی او هم دد مسليمه الكذاب دتوري په وار قتل كړی وو كله چي وحشي وهلی وو.

په ۷۳هجري كي وفات شوی دی چي عمر يي په دغه وخت كي ۷۵كلونه وو په كتابونو كي دده يو دوه نور نومونه هم راغلي دي اول خلاد ، دويم علي يو څو روايات ورنه منقول دي او دده نه نقل دروايت كونكي عباد بن تميم، سعيد بن مسيب، يحيي بن عماره، واسع بن حبان، عباده بن حبيب رحمهم الله وغيره دي.

***************

[1] (صحيح الإسناد). صحيح الإسناد. وقوله في الرجلين: "مرتين" شاذ. صحيح أبي داود (١٠٩) . صحيح سنن أبي داود برقم (١٠٩ ١١٨) . ضعيف سنن النسائي (٣/ ٩٩).

## ٣٧_ بَابُ مَا جَاءَ فِي وُضُوءِ النَّبِيِّ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ كَيْفَ كَانَ

**د رسول الله د اودس د كيفيت بيان**

٤٨_ حَدَّثَنَا هَنَّادٌ، وَقُتَيْبَةُ، قَالَا: حَدَّثَنَا أَبُو الأَحْوَصِ، عَنْ أَبِي إِسْحَاق، عَنْ أَبِي حَيَّةَ، قَالَ: " رَأَيْتُ عَلِيًّا تَوَضَّأَ فَغَسَلَ كَفَّيْهِ حَتَّى أَنْقَاهُمَا ثُمَّ مَضْمَضَ ثَلَاثًا، وَاسْتَنْشَقَ ثَلَاثًا، وَغَسَلَ وَجْهَهُ ثَلَاثًا، وَذِرَاعَيْهِ ثَلَاثًا، وَمَسَحَ بِرَأْسِهِ مَرَّةً، ثُمَّ غَسَلَ قَدَمَيْهِ إِلَى الْكَعْبَيْنِ، ثُمَّ قَامَ فَأَخَذَ فَضْلَ طَهُورِهِ فَشَرِبَهُ وَهُوَ قَائِمٌ، ثُمَّ قَالَ: أَحْبَبْتُ أَنْ أُرِيَكُمْ كَيْفَ كَانَ طُهُورُ رَسُولِ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ ". قَالَ أَبُو عِيسَى: وَفِي الْبَاب عَنْ عُثْمَانَ، وَعَبْدِ اللهِ بْنِ زَيْدٍ، وَابْنِ عَبَّاسٍ، وَعَبْدِ اللهِ بْنِ عَمْرٍو، وَالرُّبَيِّعِ، وَعَبْدِ اللهِ بْنِ أُنَيْسٍ، وَعَائِشَةَ رِضْوَانُ اللهِ عَلَيْهِمْ. ([1])

**ترجمه** : دابوحيه بيان دي فرمائي چي علي رضي الله عنه مي په اودس كولو اوليدو چي دواړه لاسونه يي اووينځل تردي چي ښه يي پاك كړل او بيا يي دري ځلي غرغره اوكړه او بيا يي دري ځلي په پوزه اوبه راښكلي او بيا يي دري ځلي مخ اووينځلو او بيا يي دري ځلي مټي اووينځلي او يو ځل يي په سر مسح اوكړه او بيا يي دواړه خپي د ګيټو پوري اووينځلي بيا داودس كولو نه پس اودريدو او د اودس نه پاتي شوي اوبه يي په ولاړه اوڅكلي او بيا يي اووئيل ماتاسوته خودل غوښتل چي درسول الله صلي الله عليه وسلم اودس څنګه وو

امام ترمذي وائي په دي باب كي دعثمان، عبدالله بن زيد، ابن عباس، عبدالله ابن عمرو، ربيع، عبدالله ابن انيس او عائشه رضي الله عنهم نه هم احاديث مروي دي

**حل لغات** انقي ينقي انقاءً ماضي ده دباب افعال په معني د پاكولو راځي

**تشريح** : ددي باب دي روايت ته دمحدثينو په اصطلاح كي جامع ونيلي شي دجامع مطلب دا دي چي نبي كريم صلي الله عليه وسلم دكوم عمل تمام اړخونه په كوم روايت كي ذكر كړي دي نو اول يي مرة مرتين وغيره متفرق ذكر كړي دي نو په دي باب كي يي دواړه جمع كړل په نورو الفاظو به داسي اووائي چي دا اجمال بعدالتفصيل دي كوم چي اوقع في الذهن وي په دي كي دي خبري ته اشاره ده چي تمام اعمال دي فرض اونه ګڼلي شي بلكه بعضي فرائض دي، بعضي سنن دي بعضي اداب دي، او اختلاف درواياتو بيانول په بيان دجواز محمول دي.

دلته ظاهر دكف او باطن دكف دواړه مراد دي يعني انقاهما من الوسخ.

---

[1] سنن ابي داود/ الطهارة ٥٠ (١١٦) سنن النسائي/الطهارة ٧٩ (٩٦) و ٩٣ (١١٥) و ١٠٣ (١٣٦) (تحفة الأشراف : ١٠٣٢١، و١٠٣٢٢) مسند احمد (١/١٢٢) ويأتي برقم: ٤٨، وانظر ما يأتي برقم ٤٩

Scanned with C

په دي حديث داحنافو داستدلال تائيد کيږي چې په مضمضه او استنشاق کې تفريق دي او ابن حجر رحمة الله عليه پخپله دا تسليم کړي ده چې دلته ظاهري مطلب همدادي چې په مضمضه او استنشاق کې تفريق دي.

"ومسح براسه مرة" په دي کلام هم دجمهورو دمسلك تائيد کيږي چې په مسح دسر کې تثليث نشته، ابن حجر په دي کې دا توجيه کړي ده چې "ومسح براسه مرة" دجواز دبيان دپاره دي دابن حجر دقول جواب دادي چې بيان دجواز دشارع حق دي او علي رضي الله عنه شارع نه دي.

"ثم غسل قدميه من الكعبين" په دي کلام کې هم دجمهورو تائيد دي او ځوك چې دمسح القدمين قائل دي او نسبت يې علي رضي الله عنه ته کوي يعني روافض دهغوئ دقول ترديد هم اوشو چې علي رضي الله عنه په غسل دقدمينو عمل کونکي وو بيا علي رضي الله عنه ددي پوره عمل حواله ورکړه چې زه دنبي کريم صلي الله عليه وسلم عمل بيانول غواړم ددېنه معلومه شوه چې د اودس نه دپاتي شوو اوبو څکل مسنون دي ددي وجه داده چې ددي اوبو استعمال دعبادت دپاره شوي دي او دا برکتي دي.

"ثم قام فأخذ فضل طهوره فشربه وهو قائم. يوه مسئله داده چې شرب قائما جائز دي او کنه دي؟ په دي کې دواړه قسمه احاديث موجود دي اولني قسم احاديث کوم چې په نهي محمول دي هلته نهي تنزيهي مراد ده او احاديث داباحت په بيان دجواز محمول دي

دويم تطبيق دادي په احاديثو دنهي کې چې کومه نهي ده هغه د طب په لحاظ ده يعني په ولاړه اوبه څکل دصحت دپاره مضر دي او د اباحت داحاديثو نه جواز معلوميږي دريم تطبيق دنهي د احاديثو مدلول دبرکتي اوبو نه علاوه اوبه دي په احاديثو داباحت کې برکتي اوبه مراد دي

څلورم تطبيق دادي احاديث دنهي منسوخ دي او احاديث داباحت ناسخ دي.

**سوال** علي رضي الله عنه په ولاړه اوبه ولي اوڅکلي.

**جواب** دادي چې علي رضي الله عنه ته دنهي د احاديثو دمنسوخيت علم نه وو

سوال ددي برعکس عمل يې ولي اونکړو

جواب څکه چې په دي صورت کې نسخ مرتين لازميږي، څکه چې ابتداء اباحت وو بيا دنهي په وجه اباحت منسوخ شو بيا نهي منسوخ شوه داباحت په وجه

اسنادي کلام: ددي روايت په سند کې يو راوي خالد بن علقمه دي دده صحيح نوم همدا دي او دشعبي نه غلطي شوي ده چې دا قول يې کړي دي چې دده نوم مالك بن عرفطه وو او ابو عوانه هم ددي حديث راوي دي په دواړو طريقو روايت کوي دخالدبن علقمه نه هم او دمالك بن عرفطه نه هم.

*****************

٤٩_ حَدَّثَنَا قُتَيْبَةُ وَهَنَّادٌ، قَالَا: حَدَّثَنَا أَبُو الأَحْوَصِ، عَنْ أَبِي إِسْحَاقَ، عَنْ عَبْدِ خَيْرٍ ذَكَرَ، عَنْ عَلِيٍّ مِثْلَ حَدِيثِ أَبِي حَيَّةَ، إِلَّا أَنَّ عَبْدَ خَيْرٍ، قَالَ: "كَانَ إِذَا فَرَغَ مِنْ طُهُورِهِ أَخَذَ مِنْ فَضْلِ طَهُورِهِ بِكَفِّهِ فَشَرِبَهُ". قَالَ أَبُو عِيسَى: حَدِيثُ عَلِيٍّ رَوَاهُ أَبُو إِسْحَاقَ الْهَمْدَانِيُّ، عَنْ أَبِي حَيَّةَ، وَعَبْدِ خَيْرٍ، وَالْحَارِثِ، عَنْ عَلِيٍّ، وَقَدْ رَوَاهُ زَائِدَةُ بْنُ قُدَامَةَ وَغَيْرُ وَاحِدٍ، عَنْ خَالِدِ بْنِ عَلْقَمَةَ، عَنْ عَبْدِ خَيْرٍ، عَنْ عَلِيٍّ رَضِيَ اللَّهُ عَنْهُ حَدِيثَ الْوُضُوءِ بِطُولِهِ، وَهَذَا حَسَنٌ صَحِيحٌ. قَالَ: وَرَوَى شُعْبَةُ هَذَا الْحَدِيثَ، عَنْ خَالِدِ بْنِ عَلْقَمَةَ فَأَخْطَأَ فِي اسْمِهِ وَاسْمِ أَبِيهِ، فَقَالَ: مَالِكُ بْنُ عُرْفُطَةَ، عَنْ عَبْدِ خَيْرٍ، عَنْ عَلِيٍّ، قَالَ: وَرُوِيَ عَنْ أَبِي عَوَانَةَ، عَنْ خَالِدِ بْنِ عَلْقَمَةَ، عَنْ عَبْدِ خَيْرٍ، عَنْ عَلِيٍّ قَالَ: وَرُوِيَ عَنْ مَالِكِ بْنِ عُرْفُطَةَ مِثْلُ رِوَايَةِ شُعْبَةَ، وَالصَّحِيحُ خَالِدُ بْنُ عَلْقَمَةَ. (1)

**ترجمه** : عبدخیرهم دعلي رضي الله عنه نه دابوحیه دحدیث پشان روایت بیان کړي دي مګر دعبدخیر په روایت کې داسې دي چې کله به هغه دخپل اودس نه فارغ شو نو د اودس نه پاتې شوې اوبه به یې پخپل چونګ کې راواخستلې او بیا به یې اوڅکلې

امام ترمذي دا دحدیث په مختلفو طریقو ذکر کړي دي او بیا یې فرمائیل چې دا حدیث حسن صحیح دی.

**حل لغات**: فشربه شرب یشرب شربا د سمع یسمع نه راخې په معنې دڅکلو

**تشریح** : په دې باب کې دنبي کریم صلی الله علیه وسلم مکمل اودس بیان کړي شوي دي او په هر بو حدیث کې ترې تمام جزئیات جمع شوي دي داسې حدیث ته دمحدثینو په اصطلاح کې جامع وئیلې شي او په دې اعتبارسره ذې بحث روایت هم جامع دي او دا حدیث په شمول دخپلو تمامو اجزاؤ دامام صاحب دمسلك مؤید دې ددې حدیث نه دا هم معلومه شوه چې د اودس نه پاتې شوې اوبه په ولاړه څکل مستحب او مسنون دي.

**دراوي حالات** : د علي رضي الله عنه حالات د زندګۍ په حدیث نمبر ۴۴ کې تیر شول

*****************

## ٣٨_ بَابُ مَا جَاءَ فِي النَّضْحِ بَعْدَ الْوُضُوءِ

---

[1] سنن ابي داود/ الطهارة ٥٠ (١١١) سنن النسائي/الطهارة ٧٤ (٩١) و٧٥ (٩٢) و٧٦ (٩٣) (تحفة الأشراف : ١٠٢٠٣) مسند احمد (١/١٢٢) سنن الدارمي/الطهارة ٣١ (٧٢٩) وانظر رقم ٤٤

## د اودس نه پس د اوبو پونه کولو بيان

٥٠ حَدَّثَنَا نَصْرُ بْنُ عَلِيٍّ الْجَهْضَمِيُّ، وَأَحْمَدُ بْنُ أَبِي عُبَيْدِ اللهِ السَّلِيمِيُّ الْبَصْرِيُّ، قَالَا: حَدَّثَنَا أَبُو قُتَيْبَةَ سَلْمُ بْنُ قُتَيْبَةَ، عَنِ الْحَسَنِ بْنِ عَلِيٍّ الْهَاشِمِيِّ، عَنْ عَبْدِ الرَّحْمَنِ الْأَعْرَجِ، عَنْ أَبِي هُرَيْرَةَ، أَنَّ النَّبِيَّ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ، قَالَ: "جَاءَنِي جِبْرِيلُ، فَقَالَ: يَا مُحَمَّدُ إِذَا تَوَضَّأْتَ فَانْتَضِحْ". قَالَ أَبُو عِيسَى: هَذَا غَرِيبٌ، قَالَ: وَسَمِعْتُ مُحَمَّدًا يَقُولُ: الْحَسَنُ بْنُ عَلِيٍّ الْهَاشِمِيُّ مُنْكَرُ الْحَدِيثِ، وَفِي الْبَاب عَنْ أَبِي الْحَكَمِ بْنِ سُفْيَانَ، وَابْنِ عَبَّاسٍ، وَزَيْدِ بْنِ حَارِثَةَ، وَأَبِي سَعِيدٍ الْخُدْرِيِّ، وقَالَ بَعْضُهُمْ: سُفْيَانُ بْنُ الْحَكَمِ أَوْ الْحَكَمُ بْنُ سُفْيَانَ، وَاضْطَرَبُوا فِي هَذَا الْحَدِيثِ. [1]

**ترجمه** : دابوهريره رضي الله عنه نه روايت دي چي نبي كريم صلي الله عليه وسلم فرمائيلي دي ماته جبريل راغي او راته يي اووئيل اي محمد (صلي الله عليه وسلم) كله چي اودس كوي نو پخپله شرمګاه داوبو چنړكاو كوه.

امام ترمذي وائي دا حديث حسن غريب دي دمحمد بن اسماعيل بخاري نه مي اوريدلي دي چي حسن بن علي الهاشمي منكر الحديث راوي دي.

دذي حديث په سند كي بعضي راويان داضطراب ښكار شوي دي.

په دي باب كي ابوالحكم بن سفيان ابن عباس، زيد بن حارثه، او ابوسعيد خدري رضي الله عنهم نه هم احاديث وارد دي.

**حل لغات** : واضطر بوا: جمع مذكر ماضي معلوم ده د باب افتعال نه معني يي په كوم شي كي ګډوډ كيدل دي.

**تشريح** : دنضح دري معاني دي (١) ددي معني استنجاء بالماء ده په دي صورت كي به دحديث معني دا وي اذا اردت الوضوء فاستنج بالماء، دويم دنضح معني ده د اودس نه پاتي شوي اوبه په تندي باندي بهيول او دا عمل هم دنبي كريم صلي الله عليه وسلم نه ثابت دي (٣) دا چي تحت الازار داوبو څاڅكي كولو كي دوه حكمتونه دي يو داچي دي سره وسوسي ختميږي دويم دا چي اودس په حقيقت كي باطني طهارت دي اګر چي دظاهري اعضاؤ طهارت دي دباطني طهارت داستحضار دپاره د دوه څيزونو حكم دي يو د اودس نه دپاتي شوو اوبو څكل او دويم تحت الازار داوبو څاڅكي كول څكه چي په انساني بدن كي اكثر دګناه اسباب دوه اندامونه دي فم، او فرج، دپاتي شوو اوبو دڅكلو حكم يي اوكړو تردي چي دبطن

[1] قال الشيخ الألباني: ضعيف، ابن ماجة (٤٦٣). // ضعيف سنن ابن ماجة (١٠٣). الضعيفة (١٣١٢). الصحيحة (٢ / ٥١٩، ٥٢٠). المشكاة (٣٦٧ / الحقيق الثاني). ضعيف الجامع الصغير بترتيب رقم (٢٦٢٢).

دشهواتو انسداد اوشي او تحت الازار دڅاڅکو کولو حکم يې اوکړو تردې چې دفرج دشهواتو ازاله اوشي

"قال بعضهم سفيان" په دې عبارت کې امام ترمذي اضطراب في الاسناد بيانول غواړي او هغه داسې چې په زيربحث باب کې امام ترمذي دابو الحکم بن سفيان حواله ورکړې ده او دده په نوم کې اضطراب دې ديو قول مطابق دده نوم ابو الحکم بن سفيان دې او ددويم قول مطابق دده نوم سفيان بن الحکم دې او د دريم قول مطابق دده نوم حکم بن سفيان دې.

**دراوي حالات** : ماقبل بانوبو کې مفصل تير شوي دي

***************

## ٣٩_ بَابُ مَا جَاءَ فِي إِسْبَاغِ الْوُضُوءِ

## د بهترين او کامل اودس کولو فضيلت

٥١_ حَدَّثَنَا عَلِيُّ بْنُ حُجْرٍ، أَخْبَرَنَا إِسْمَاعِيل بْنُ جَعْفَرٍ، عَنِ الْعَلَاءِ بْنِ عَبْدِ الرَّحْمَنِ، عَنْ أَبِيهِ، عَنْ أَبِي هُرَيْرَةَ، أَنَّ رَسُولَ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ، قَالَ: " أَلَا أَدُلُّكُمْ عَلَى مَا يَمْحُو اللَّهُ بِهِ الْخَطَايَا وَيَرْفَعُ بِهِ الدَّرَجَاتِ " قَالُوا: بَلَى يَا رَسُولَ اللَّهِ، قَالَ: " إِسْبَاغُ الْوُضُوءِ عَلَى الْمَكَارِهِ، وَكَثْرَةُ الْخُطَا إِلَى الْمَسَاجِدِ، وَانْتِظَارُ الصَّلَاةِ بَعْدَ الصَّلَاةِ، فَذَلِكُمُ الرِّبَاطُ ".(١)

**ترجمه** : دابوهريره رضي الله عنه نه روايت دی چې رسول الله صلي الله عليه وسلم فرمائيلي دي ايا تاسو ته داسې کار اونه ښايم چې ستاسو ګناهونه ختم کړي او ستاسو درجې اوچتې کړي اصحابو عرض اوکړو يا رسول الله ! ضرور يې راته اوښايه رسول الله صلي الله عليه وسلم اوفرمائيل اودس په کامله طريقه کول. دتکليف په وخت (يعني يخنۍ کې يادتنګسيا په وخت) او جماعت ته ډير قدمونه اخستل (يعني دهر مونځ دپاره جومات ته ځان رسول، او دې مونځ نه پس بل مونځ ته انتظار کول نو دغه ستاسو (دجماعت سره) تعلق دی (مسلم).

**حل لغات** : دلّ يدلّ دلالة دنصر نه په معني داشاري کولو او رهنمايۍ کولو دي

خطاياه: خطايا جمع دخطية ده ګناه ته وئيلي شي او دبعضو په نزد ارادي ګناه ته وئيلي شي صفت يې خاطئ دي او جمع خطاة دي

ادلکم: دلّ دلالة ودلولة دنصر نه په معني درهنمايي کولو او لاري خودلو دي.

---

(١) صحيح مسلم / الطهارة ١٣ (٢٥١) سنن النسائي/الطهارة ١٠٦ (١٤٣) (تحفة الأشراف : ١٣٩٨١) موطا امام مالک/السفر ١٨ (٥٥) مسند احمد (٢/٢٧٧، ٣٠٣)

**يمحو** محي محيا دنصر نه په معنی دورانولو دي.

الرباط رباط هغه څيز وي په کوم چي څه تړلی شي.

**تشريح** : "الا ادلكم"كله كله دسوال نه مقصود خلقو متوجه کول دي او جواب يې ضروري نه وي مګر که خلق جواب ورکړي نو بهتر دي دحديث په شروع کي چي کوم سوال دي ددي هم دا مطلب دي.

(۲) دمثبت دکلام په جواب کي نعم بهتردي او دمنفي كلام په جواب کي بلي بهتردي لکه اجائني زيد په جواب کي نعم وئيلي شي او د "الست بربکم" په جواب کي بلي دي نو په دي حديث کي هم دنفي په جواب کي بلي راغلي ده په دي حديث کي دګناه ختمونکي څيزونو او د درجاتو لوړونکو دري کارونوذکرشوي دي چي يو دمشقت باوجود په سختئ کي کامل اودس کول دي، دويم مسجد طرف ته په کثرت سره قدمونه اخستل دي، دريم ديومونځ نه پس دبل مونځ انتظار کول دي برابره خبره ده چي په مسجد کي وي او که په کور کي وي ددوارو صورتونو احاديثو کي فضيلت راغلي دي چي تفصيل مندرجه ذيل دي:

"يمحوالله به الخطايا" يعني الله تعالي په دي باندي ګناهونه معاف کوي دقاضي عياض په قول دا کنايه دد دمغفرت نه او همدارنګي دا هم مراد دی چي الله تعالي داعمالو په برکت سره ګناهونه زائل کوي.

"اسباغ الوضوء" يعني په مبالغي سره اودس کول داعضاؤ يو څل وينځل خو فرض دي او دري پيري وينځل سنت او مستحب دي ليکن د دريو نه زيات پيري وينځل ددي روايت په بنا جائز معلوميږي.

علامه شامي قول دی چي دوينځلو دتعداد په باره کي داحنافو علماؤ کوم قول منقول نه دی او دا يي هم فرمائيلي دي لوزاد علي الثلاث لطمانية القلب لاباس به لقوله عليه السلام دع ما يريبك الي ما لايريبك

علي المکاره: يعني دمشقت سره ددي مراد دادی يا خو يخني زياته وي يا اوبه په زيات قيمت خرخيږي او يا دجسماني تکليف په وجه داوبو استعمال مضر وي

انتظار الصلوة بعد الصلوة: يعني ديو مونځ کولو نه پس دبل مونځ انتظار کول . ددي مطلب دادی چي سړی مونځ اوکړي اوپخپل خاي ناست پاتي شي دبل مونځ دوخت راتلو دپاره يا دا مطلب دی چي دمسجد نه خو اګر چي لاړ شي مګر "قلبه معلق بها" مګر زړه يي دمونځ سره انختلی وي

"فذا كم الرباط" يعني همدي ته رباط ونيلى شي ، درباط مطلب ددشمن دخطري نه دسرحداتو حفاظت كول دي نو دي اعمالو ته رباط ځكه ونيلى شوي دي چي ددي په زريعه دشيطاني وسوسو نه هم حفاظت ملاويږي لكه چي په نورو روايتونو كي راغلي دي "رجعنا من الجهاد الاصغر الا كبر" يعني ددشمنانو سره دجهاد كولو نه واپس راغلو مګر اوس به دنفس سره جهاد كوو چي نګراني به يي كوو دا روايت امام مالك په مؤطا كي دوه پيري ذكر كړى دى او همدا رنګي دا جمله په ترمذي كي هم دري پيري راغلي ده.

**دراوي حالات** : ماقبل بابونو كي مفصل تير شوي دي.

****************

٥٢ـ وحَدَّثَنَا قُتَيْبَةُ. حَدَّثَنَا عَبْدُ الْعَزِيزِ بْنُ مُحَمَّدٍ، عَنِ الْعَلَاءِ نَحْوَهُ. وقَالَ قُتَيْبَةُ فِي حَدِيثِهِ: فَذَلِكُمُ الرِّبَاطُ. فَذَلِكُمُ الرِّبَاطُ. فَذَلِكُمُ الرِّبَاطُ ثَلَاثًا". قَالَ أَبُو عِيسَى: وَفِي الْبَابِ عَنْ عَلِيٍّ، وَعَبْدِ اللَّهِ بْنِ عَمْرٍو، وَابْنِ عَبَّاسٍ، وَعَبِيدَةَ، وَيُقَالُ: عُبَيْدَةُ بْنُ عَمْرٍو، وَعَائِشَةَ، وَعَبْدِ الرَّحْمَنِ بْنِ عَائِشٍ الْحَضْرَمِيِّ، وَأَنَسٍ. قَالَ أَبُو عِيسَى: وَحَدِيثُ أَبِي هُرَيْرَةَ فِي هَذَا الْبَابِ حَسَنٌ صَحِيحٌ، وَالْعَلَاءُ بْنُ عَبْدِ الرَّحْمَنِ هُوَ ابْنُ يَعْقُوبَ الْجُهَنِيُّ الْحُرَقِيُّ، وَهُوَ ثِقَةٌ عِنْدَ أَهْلِ الْحَدِيثِ. [1]

**ترجمه** : دقتيبه حديث هم د علي بن حجر دحديث پشان دي مګر دقتيبه په حديث كي فذالكم الرباط جمله دري پيري مكرر راغلي ده، امام ترمذي وايي چي پدي باب كي د علي، عبد الله بن عمرو، ابن عباس، عبيده بن عمرو، عائشه، عبد الرحمن بن عائش حضرمي، انس بن مالك رضي الله عنهم نه هم احاديث وارد دي. ليكن حديث د ابو هريره په دي باب كي حسن صحيح دى، او علاء بن عبد الرحمن د يعقوب الجهني الخرقي خوي دى او دمحدثينو په نزد ثقه راوي دي.

**حل لغات** توسيقه وسق يوسق توسيقا مصدر د باب تفعيل دى معني يي چالره كره كنړل دي، والله اعلم كما مر مرارا.

**دراوي حالات** : ماقبل بابونو كي مفصل تير شوي دي.

****************

## ٤٠ـ بَابُ مَا جَاءَ فِي التَّمَنْدُلِ بَعْدَ الْوُضُوءِ

---

[1] صحيح مسلم/ الطهارة ١٤ (٢٥١) سنن النسائي/الطهارة١٠٧ (١٤٣) (تحفة الأشراف : ١٣٩٨١) موطا امام مالك/السفر١٨ (٥٥) مسند احمد (٢/٢٧٧، ٣٠٣)

## د اودس نه پس د وچولو دپاره د کپړې استعمال

۵۳_ حَدَّثَنَا سُفْيَانُ بْنُ وَكِيعِ بْنِ الْجَرَّاحِ. حَدَّثَنَا عَبْدُ اللَّهِ بْنُ وَهْبٍ. عَنْ زَيْدِ بْنِ حُبَابٍ. عَنْ أَبِي مُعَاذٍ. عَنِ الزُّهْرِيِّ. عَنْ عُرْوَةَ. عَنْ عَائِشَةَ. قَالَتْ: "كَانَ لِرَسُولِ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ خِرْقَةٌ يُنَشِّفُ بِهَا بَعْدَ الْوُضُوءِ". قَالَ أَبُو عِيسَى: حَدِيثُ عَائِشَةَ لَيْسَ بِالْقَائِمِ. وَلَا يَصِحُّ عَنِ النَّبِيِّ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ فِي هَذَا الْبَابِ شَيْءٌ. وَأَبُو مُعَاذٍ يَقُولُونَ: هُوَ سُلَيْمَانُ بْنُ أَرْقَمَ. وَهُوَ ضَعِيفٌ عِنْدَ أَهْلِ الْحَدِيثِ. قَالَ: وَفِي الْبَابِ عَنْ مُعَاذِ بْنِ جَبَلٍ.[1]

**ترجمه** : دام المؤمنین عائشه رضي الله عنها نه روايت دي فرمائي چي درسول الله صلي الله عليه وسلم سره يوه جامه وه په كومي چي به يې د اودس نه پس خپل بدن اوچولو

امام ترمذي وائي دعائشه رضي الله عنها روايت درست نه دي او درسول الله صلي الله عليه وسلم نه په دي باب كي هيڅ يو صحيح روايت نشته.

ابو معاذ سليمان بن ارقم دمحدثينو په نزد ضعيف دي په دي باب كي دمعاذ بن جبل رضي الله عنه نه هم روايت مروي دي

**حل لغات**: ينشف: د سمع يسمع باب نه په معني د وچولو مستعمل دي

**تشريح** : د اودس نه پس دمخ په اوچولو كي دفقهاء يو څو مذاهب دي

منديل: يوه داسي اله دد دكومي په ذريعه چي دخيري ازاله كيږي.

د اودس او دغسل نه پس د دسپاك وغيره داستعمال حكم؟ دجمهورو په نزد مباح دي زيات نه زيات داستحباب درجه لري او د شوافعو په نزد پنځه اقوال دي ليكن راجح قول دادي چي ترك دمنديل مباح دي او استعمالول يې مكروه تنزيهي دي او دامام زهري او سعيد بن مسيب همدا قول دي.

دجمهورو دليل حديث دعائشه او سلمان رضي الله عنهما دي چي ابن ماجه نقل كړي دې "كانت لرسول الله صلي الله عليه وسلم خرقة ينشف بها بعدالوضوء" او دارنګي دمعاذ بن جبل په حديث كي دي "اذا توضاء مسح وجهه بطرف ثوبه" الخ

سوال امام ترمذي ددي احاديثو تضعيف كړي دي دمعاذ دحديث باره كي فرمائي دا حديث ضعيف دي څكه چي په دي كي رشدين ، ابن سعد او عبدالرحمن بن زياد ضعيف دي او دعائشه رضي الله عنها په حديث كي سلمان بن ارقم ضعيف راوي دي.

---

[1] تفرد به المولف (تحفة الأشراف : ۱۶۴۵۷) (حسن).

جواب کثرت دطرقو تدارک دضعف کوي، دويم جواب دادي مونږ چرته وجوب نه ثابتوو زيات نه زيات اباحت او استحباب ثابتوو او اباحت او استحباب خو په احاديث ضعيفه ثابتيږي

دشوافع دليل حديث دميمونه رضي الله عنها دي اخرجه الشيخان وابوداود په دي حديث کي دي کله چي رسول الله دغسل نه فارغ شو "فتناولته المنديل فلم يأخذها" يعني ما ورته رومال پيش کړو ليکن وايي نخستلو کچري دا مباح او مستحب وي نو رسول الله به رد کړي نه وو بلکه اخستلي به يي وو او رسول الله په داسي حال کي واپس شو چي دلاس نه يي اوبه څڅيدلي

دا حديث ددي خبري دليل دي چي عمل نبوي خو همدا وو چي په يوه جامه به يي مخ لاس اوچولو نو چي په دي وخت کي يي کپړه وانخستله دځه عوارضو وجه وه او په عوارضو کي يو عارض دا هم کيدي شي چي رسول الله برودت باقي پريخودل غوښتل، دويمه وجه داده کيدي شي چي دغه کپړه دريښمو وه يا دا چي رسول الله صلي الله عليه وسلم عدم وجوب خودل غوښتل

دويم استدلال قياس علي دم الشهيد . چي دشهيد وينه وينځل نه وي پکار ترڅو چي په وزن کي پکار راشي د اودس د اوبو هم په هغي باندي قياس شوي دي.

دريم استدلال بخاري دميمونه رضي الله عنها نه چي کوم روايت نقل کړي دي.

جواب: وزن دهغه اوبو کيږي په کومو چي اودس شوي وي او کومي اوبه چي په اندامونو پرتي وي دهغي وزن نه کيږي او که بالفرض اومنو چي ددي اوبو وزن هم کيږي نو دا هغه وي کومي چي وچي شوي نه وي او په دي کي خو وچوالي دغير په وجه راغلي دي او توري خو شهيد لره پاك کړو فلايقاس عليه.

"حدثنا جرير" ددي عبارت مطلب دادي جرير وائي ما دخپل شاګرد مجاهد په نزد دا حديث بيان کړو نو ديوي زماني نه پس دوباره حاضر شو او دا حديث يي ماته دوباره بيان کړو ما ورته اوونيل دا حديث دي چرته اوريدلي دي علي بن مجاهد اوونيل چي ستاسو نه مي اوريدلي دي اګر چي علي بن مجاهد ثقه دي نو په دي وجه که ماته ياد نه وي ليکن دا حديث صحيح دي خکه چي دا زماثقه شاګرد دي ددي دري صورتونه دي يو داده چي استاذ دشاګرد په رايادولو سره دهغه تکذيب اوکړي، دويم دادي تکذيب اونکړي ليکن داسي الفاظ استعمال کړي کوم چي په عدم تکذيب دلالت کوي، دريم دا چي دشاګرد توثيق اوکړي که اولني صورت مراد وي نو روايت مردود دي او که دويم صورت مراد شي نو مقبول دي دجمهورو په نزد ليکن په دريم صورت کي بالاتفاق مقبول دي.

## د راویه حدیث ام المومنین عائشه رضی الله عنها مختصر حالات

نوم عائشه رضي الله عنها، صديقه ، حميرا لقب ، ام عبد الله كنيت . د پلار نوم ابوبكر صديق رضي الله عنه او د مور نوم ئي زينب وو او د هغې كنيت ام رومان وو . د بعثت نه څلور كاله پس پيدا شوه په مكه معظمه كي ئي د نبي كريم (صلي الله عليه وسلم) سره نكاح اوشوه د نهو (۹) كالو په عمر كي او په مدينه منوره كي ئي رخصتي اوشوه . د غزواتو نه په غزوه احد كي شريكه وه . (بخاري ۵۸۱/۲)

دغه شان ددې شركت په غزوه بنو مصطلق كي هم معلوميږي چي په دې كي ددې هار (امیل) روک شوی وو .

د ام المؤمنين عائشه رضي الله عنها په نورو ښځو باندې عموماً او په باقي امهات المؤمنين باندې خصوصاً په څو وجوهاتو سره فوقيت حاصل وو ابو موسى اشعري رضي الله عنه فرمائي چي په مونږ به كله څه مشكل راغی نو د هغی علم به مونږ د عائشه رضي الله عنها سره بيا مونده . (ترمذي) ، په دې كي سخاوت ، عبادت ، تواضع انتهائي زياته وه اكثر به ئي روژه نيوله هر كال به ئي حج كولو او غلامان به ئي ازادول ام المؤمنين عائشه رضي الله عنها په مكثرينو صحابو كي داخله وه يعني هغه صحابه چي د هغه نه زيات روايات منقول دي . ددې د رواياتو تعداد د احاديثو په كتابونو كي ۲۲۱۰ موندلی شي چي ددې نه په ۱۷۴ باندې بخاري او مسلم اتفاق كړی دی ، امام بخاري منفرداً ۵۴ احاديث روايت كړي دي او په ۶۸ احاديثو كي امام مسلم منفرد دی (عمدة القاري ۳۸/۱)

**وفات:** د امير معاويه رضي الله عنه په اخير زمانه كي وفات شوه په دې وخت كي ئي عمر څلور شپيته كاله وو . په جنت البقيع كي د وصيت مطابق دفن كړی شوه

****************.

۵۴ـ حَدَّثَنَا قُتَيْبَةُ، حَدَّثَنَا رِشْدِينُ بْنُ سَعْدٍ، عَنْ عَبْدِ الرَّحْمَنِ بْنِ زِيَادِ بْنِ أَنْعُمٍ، عَنْ عُتْبَةَ بْنِ حُمَيْدٍ، عَنْ عُبَادَةَ بْنِ نُسَيٍّ، عَنْ عَبْدِ الرَّحْمَنِ بْنِ غَنْمٍ، عَنْ مُعَاذِ بْنِ جَبَلٍ، قَالَ: "رَأَيْتُ النَّبِيَّ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ إِذَا تَوَضَّأَ مَسَحَ وَجْهَهُ بِطَرَفِ ثَوْبِهِ". قَالَ أَبُو عِيسَى: هَذَا غَرِيبٌ وَإِسْنَادُهُ ضَعِيفٌ، وَرِشْدِينُ بْنُ سَعْدٍ، وَعَبْدُ الرَّحْمَنِ بْنُ زِيَادِ بْنِ أَنْعُمٍ الأَفْرِيقِيُّ يُضَعَّفَانِ فِي الْحَدِيثِ. وَقَدْ رَخَّصَ قَوْمٌ مِنْ أَهْلِ الْعِلْمِ مِنْ أَصْحَابِ النَّبِيِّ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ وَمَنْ بَعْدَهُمْ فِي التَّمَنْدُلِ بَعْدَ الْوُضُوءِ. وَمَنْ كَرِهَهُ إِنَّمَا كَرِهَهُ مِنْ قِبَلِ أَنَّهُ قِيلَ إِنَّ الْوُضُوءَ يُوزَنُ، وَرُوِيَ ذَلِكَ عَنْ سَعِيدِ بْنِ الْمُسَيِّبِ،

وَالزُّهْرِيِّ، حَدَّثَنَا مُحَمَّدُ بْنُ حُمَيْدٍ الرَّازِيُّ، حَدَّثَنَا جَرِيرٌ، قَالَ: حَدَّثَنِيهِ عَلِيُّ بْنُ مُجَاهِدٍ عَنِّي وَهُوَ عِنْدِي ثِقَةٌ، عَنْ ثَعْلَبَةَ، عَنِ الزُّهْرِيِّ، قَالَ: إِنَّمَا كُرِهَ الْمِنْدِيلُ بَعْدَ الْوُضُوءِ، لِأَنَّ الْوُضُوءَ يُوزَنُ.(1)

**ترجمه** : دمعاذ بن جبل رضي الله عنه نه روايت دي فرماني چي ما رسول الله صلي الله عليه وسلم ليدلي وو چي كله به يي اودس اوكړو نو مخ به يي دخپلو جامويه كناره اوچولو امام ترمذي وائي دا حديث حسن غريب دي او سند يي هم ضعيف دي، رشدين بن سعداو عبدالرحمن بن زياد بن انعم الافريقي دواړه په حديث كي ضعيف راويان دي دصحابه كرامو نه پس وريسي خلقو ته داهل علمو يوي ډلي د اودس نه پس په رومال دمخ اوچولو اجازت وركړي دي او څوك چي ورته مكروه وائي صرف په دي وجه چي وئيلي كيږي چي اودس به دقيامت په ورځ راوړلي شي داخبره دسعيد بن مسيب او زهري نه مروي ده.

دزهري قول دي چي د اودس نه پس درومال استعمال دوچولو دپاره مكروه دي خكه چي داودس اوبه به دقيامت په ورځ راوستلي شي.

**حل لغات** رخصَ ماضي د باب تفعيل ده يعني اجازت يي وركړو

## دمعاذ رضي الله عنه حالات:

نوم معاذ كنيه ابو عبدالرحمان لقب امام الفقهاء نذيل العلماء چي دقبيله خزرج سره يي تعلق وو او داتلسو كالو په عمر كي دمصعب بن عمير په لاس مسلمان شوى وو درسول الله صلي الله عليه وسلم ورسره ډير محبت وو او په تمامو عزواتو كي درسول الله سره شريك شوى وو چي كله يي يمن ته ليږلو نو يمن والاته يي اوليكل "اني بعثت اليكم خيراهلي" يعني ماپخپلو كسانو كي تاسو ته بهترين كس دروليږلو كله چي عمرفاروق رضي الله عنه مجلس شوره جوړه كړه نو دهغي يو ركن معاذ رضي الله عنه هم وو اميرالمومنين دمعاذ په باره كي اوفرمائيل "اعلمهم بالحلال والحرام معاذ بن جبل" يعني په صحابه كرامو كي دحلال او حرام په علم زيات خبردار معاذ بن جبل دى او په يو بله موقعه كي يي هم فرمائيلي وو لولا معاذ لهلك عمر.

وفات دطاعون عمواس په كال وفات شوى وو چي عمريي ۳۲ كلونه وو دهجرت په اتلسم كال په هغه ځاي كي دفن كړى شو دكوم ځاي نه چي عيسي عليه السلام اسمان ته پورته كړى شوى وو.

دابن سعد دقول مطابق دمعاذ رضي الله عنه ليږل دفتح مكي په كال په ربيع الثاني كي

---

[1] تفرد به المؤلف (تحفة الأشراف: ۱۱۳۲۴).

دهجرت په اتم کال شوي وو او ابن حجر لسم هجري بيان کړي دي.

***************

## ٤١ـ بَابُ فِيمَا يُقَالُ بَعْدَ الْوُضُوءِ

## د اودس نه پس څه وئيل پکار دي

٥٥ـ حَدَّثَنَا جَعْفَرُ بْنُ مُحَمَّدِ بْنِ عِمْرَانَ الثَّعْلَبِيُّ الْكُوفِيُّ، حَدَّثَنَا زَيْدُ بْنُ حُبَابٍ، عَنْ مُعَاوِيَةَ بْنِ صَالِحٍ، عَنْ رَبِيعَةَ بْنِ يَزِيدَ الدِّمَشْقِيِّ، عَنْ أَبِي إِدْرِيسَ الخَوْلَانِيِّ، وَأَبِي عُثْمَانَ، عَنْ عُمَرَ بْنِ الخَطَّابِ، قَالَ: قَالَ رَسُولُ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ: "مَنْ تَوَضَّأَ فَأَحْسَنَ الوُضُوءَ، ثُمَّ قَالَ: أَشْهَدُ أَنْ لَا إِلَهَ إِلَّا اللَّهُ وَحْدَهُ لَا شَرِيكَ لَهُ وَأَشْهَدُ أَنَّ مُحَمَّدًا عَبْدُهُ وَرَسُولُهُ، اللَّهُمَّ اجْعَلْنِي مِنَ التَّوَّابِينَ وَاجْعَلْنِي مِنَ المُتَطَهِّرِينَ، فُتِحَتْ لَهُ ثَمَانِيَةُ أَبْوَابِ الجَنَّةِ يَدْخُلُ مِنْ أَيِّهَا شَاءَ". قَالَ أَبُو عِيسَى: وَفِي البَابِ عَنْ أَنَسٍ، وَعُقْبَةَ بْنِ عَامِرٍ. قَالَ أَبُو عِيسَى: حَدِيثُ عُمَرَ قَدْ خُولِفَ زَيْدُ بْنُ حُبَابٍ فِي هَذَا الحَدِيثِ، قَالَ: وَرَوَى عَبْدُ اللَّهِ بْنُ صَالِحٍ وَغَيْرُهُ، عَنْ مُعَاوِيَةَ بْنِ صَالِحٍ، عَنْ رَبِيعَةَ بْنِ يَزِيدَ، عَنْ أَبِي إِدْرِيسَ، عَنْ عُقْبَةَ بْنِ عَامِرٍ، عَنْ عُمَرَ، وَعَنْ رَبِيعَةَ، عَنْ أَبِي عُثْمَانَ، عَنْ جُبَيْرِ بْنِ نُفَيْرٍ، عَنْ عُمَرَ، وَهَذَا فِي إِسْنَادِهِ اضْطِرَابٌ يَصِحُّ عَنِ النَّبِيِّ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ، فِي هَذَا البَابِ كَبِيرُ شَيْءٍ. قَالَ مُحَمَّدٌ: وَأَبُو إِدْرِيسَ لَمْ يَسْمَعْ مِنْ عُمَرَ شَيْئًا.[1]

**ترجمه** : دعمر بن الخطاب رضي الله عنه نه روايت دي فرمائي چي څوك اودس اوكړي او په ښه شان سره اودس اوكړي او بيا دا كلمات اووائي "اشهدان لا اله الا الله وحده لاشريك له واشهدان محمدا عبده ورسوله اللهم اجعلني من التوابين واجعلني من المتطهرين" يعني زه ګواهي وركوم ددي خبري چي دالله نه علاوه بل معبود نشته او هغه يواځي دي چي هيڅوك شريك نه لري او زه ګواهي وركوم چي محمد صلي الله عليه وسلم دهغه بنده او رسول دي او اي الله مالره دتوبه كونكو او پاكي كونكو نه اوګرځوي، نو دده دپاره به دجنت اته واړه دروازي پرانيستلي شي او په كومه چي جنت ته داخليدل غواړي په هغي به داخليږي.

[1] تفرد به المؤلف (تحفة الأشراف : ١٣٠٨٠) وأخرجه بدون قوله " اللهم اجعلني ... " كل من: صحيح مسلم/الطهارة ٦ (٢٣٣) ، والطهارة ٦٥ (١٦٩) ، و سنن النسائي/الطهارة ١٠٩ (١٤٨) ، والطهارة ٦٠ (٢٤٠) ، و مسند احمد (١/١٣٦، ١٥١، ١٥٣) من طريق عقبة بن عامر عن عمر (تحفة الأشراف ١٠٦٠٩) .

امام ترمذي وائي په دي باب کي د انس، عقبه بن عامر رضي الله عنهما نه هم احاديث مروي دي امام ترمذي عمر رضي الله عنه دحديث طرق ذکر کولو نه پس فرمائي چي ددي حديث په سند کي اضطراب دي په دي باب کي اکثر څيزونه نبي کريم صلي الله عليه وسلم نه صحيح ثابت نه دي.

**حل لغات** احسن دنيکي: کار کول يا په ښې طريقي سره کار کول دنصر باب نه مستعمل دي

**تشريح** : دا حديث په مسلم کي هم دمعاويه بن صالح دشاګرد عبدالرحمن بن مهدي په سند مذکور دي او په دي کي د دعااخري حصه "اللهم اجعلني " نشته (مسلم کتاب الطهارت باب الذکر المستحب عقيب الوضوء).

دجنت دروازي څو دي نو دسورة الحجرات ۴۴نمبر ايت کي دجنت د اوه دروازو ذکر دي او دسورة الزمر په ۷۳ ايت کي دجنت د دروازو ذکر دي ليکن دجنت دروازي څو دي ددي خبري په قران کي ذکر نشته البته په احاديثوکي ددي تصريح راغلي ده چي دجنت دروازي اته دي يعني دجهنم د دروازو نه يي يوه دروازه زياته ده او همدا دحکمت الهيه مقتضي ده لکه څرنګه چي دجهنم دروازي مختلفي دي دارنګي دجهنميانو ډلي هم مختلفي دي دارنګي به دجنت دپاره هم دروازي وي او دجنتيانو به هم جدا جدا حصي وي او ديوي دروازي زياتوالي ددي دپاره دي چي رحمت الهيه په غضب الهي باندي غالب دي (رحمة الله الواسع ۴۹/۴).

په مسلم کي ددي حديث اصل واقعه ده عقبه بن عامر وائي ما او عمرفاروق به په نمبر نمبر اوښان څرول يوه ورځ به ما اوښان بوتلل او عمرفاروق به په مجلس نبوي کي حاضري کوله او چي کومي خبري به يي اوريدلي وي هغه به يي ماته دشپي بيانولي او دويمه ورځ به عمرفاروق اوښان بوتلل او زه به په مجلس نبوي کي حاضر وم او دټولي ورځي خبري به مي ورته اورولي يوه ورځ زما داوښانو بوتلو نمبر وو مګر ډيره ښه ګيا او پاڼي راته ملاؤ شوي داوښانو خيټي زر ډکي شوي او په جلتۍ سره مي اوښان واپس راوستل دمازيګر دمونځ نه پس وخت وو چي ما اوښان اوتړل او ځان مي مسجد نبوي ته اورسولو چي هلته نبي کريم صلي الله عليه وسلم خلقو ته خطاب کولو زه چي راورسيدم دمجلس په اخر کي کيناستم زه چي څه وخت راورسيدم نو نبي کريم صلي الله عليه وسلم دا فرمانيل چي هر مسلمان اودس اوکړي او په ښه شان سره اودس اوکړي او بيا دوه رکعاته نفل اوکړي او ديته يي زړه او مخ متوجه وي نو دداسي کس دپاره جنت واجب شو زما دخولي نه بي اختياره يو دم اووتل واه واه زما مخامخ عمر رضي الله عنه ناست وو ما طرف ته متوجه شو او ويي فرمائيل ستا دراتلو نه مخکي رسول الله صلي الله عليه وسلم څه بيان کړي دي په هغي ددينه ډېل واه واه دي ستا دراتلو نه مخکي يي فرمائيلي وو چي څوک بهترين اودس اوکړي او بيا دا ذکر اوکړي "اشهد" الخ، نو ده ته به دجنت اته

دروازي پرانيستلي شي او چي په کومه داخليدل غواړي په هغي به داخليږي ددينه معلومه
شوه چي دا حديث عقبه بن عامر درسول الله صلي الله عليه وسلم نه براه راست نه دي اوريدلي 1/11
او په مينځ کي دعمرفاروق واسطه ده پس صحيح سند دعبدالله بن صالح وغيره دي او د زيد
بن حباب سند صحيح نه دي ددينه علاوه دابو ادريس خولاني ملاقات دعمر رضي الله عنه سره
ثابت نه دي او نه يي سماع ثابت ده لکه چي امام بخاري هم ونيلي دي.

دزيد بن حباب او دعبدالله بن صالح په سندونو کي فرق: دزيد بن حباب او د ابوادريس خولاني او دعثمان په مينځ کي او دعمر رضي الله عنه په مينځ کي کومه واسطه نه ذکر کوي او عبدالله بن صالح دابو ادريس خولاني او عمر په مينځ کي دعقبه واسطه ذکر کوي او ابو عثمان دعمر په مينځ کي د جبير بن نفير واسطه ذکر کوي پس ټول دري سندونه شول يو دزيد بن حباب دي او دوه دعبدالله بن صالح دي مګر دسند په مينځ کي تحويل دي دربيعه نه دواړه سندونه جدا کيږي.

**دراوي حالات** : د امير المؤمنين عمر فاروق حالات د کتاب په شروع کي تير شوي دي.

***************

## ٤٢ـ بَابٌ فِي الْوُضُوءِ بِالْمُدِّ

## په يو مد اوبو داودس کولو بيان

٥٦ـ وحَدَّثَنَا أَحْمَدُ بْنُ مَنِيعٍ، وَعَلِيُّ بْنُ حُجْرٍ. قَالَا: حَدَّثَنَا إِسْمَاعِيل ابْنُ عُلَيَّةَ، عَنْ أَبِي رَيْحَانَةَ، عَنْ سَفِينَةَ، أَنَّ النَّبِيَّ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ كَانَ "يَتَوَضَّأُ بِالْمُدِّ وَيَغْتَسِلُ بِالصَّاعِ". قَال: وَفِي الْبَاب عَنْ عَائِشَةَ، وَجَابِرٍ، وَأَنَسِ بْنِ مَالِكٍ. قَالَ أَبُو عِيسَى: حَدِيثُ سَفِينَةَ، حَسَنٌ صَحِيحٌ. وَأَبُو رَيْحَانَةَ اسْمُهُ: عَبْدُ اللَّهِ بْنُ مَطَرٍ. وَهَكَذَا رَأَى بَعْضُ أَهْلِ الْعِلْمِ: الْوُضُوءَ بِالْمُدِّ وَالْغُسْلَ بِالصَّاعِ. وقَالَ الشَّافِعِيُّ، وَأَحْمَدُ، وَإِسْحَاق: لَيْسَ مَعْنَى هَذَا الْحَدِيثِ عَلَى التَّوَقِّي أَنَّهُ لَا يَجُوزُ أَكْثَرُ مِنْهُ وَلَا أَقَلُّ مِنْهُ وَهُوَ قَدْرُ مَا يَكْفِي.[1]

**ترجمه** : دسفينه رضي الله عنها بيان دي چي رسول الله صلي الله عليه وسلم به په يو مد اوبو اودس او په يو صاع اوبو غسل کولو.

امام ترمذي وائي دسفينه حديث حسن صحيح دي.

[1] صحيح مسلم/الحيض١٠ (٣٢٦) سنن ابن ماجه/الطهارة١ (٢٦٧) (تحفة الأشراف : ٤٤٨٩) مسند احمد (٥/٢٢٢) سنن الدارمي/الطهارة ٢٣ (٦٨٥)

په دي باب کي دعائشه، جابر، انس بن مالك رضي الله عنهم نه هم احاديث وارد دي
دبعضي اهل علمو قول دي چي په يو مد اوبو به اودس کولي شي او په يو صاع اوبو به غسل کولي شي، دامام شافعي، احمد او اسحاق بن راهويه رحمهم الله قول دي چي ددي حديث مقصد تحديد نه دي چي ددينه زيات يا کم جائز نه دي بلکه ددي مطلب دادي چي دا داسي مقدار دي کوم چي اکثرو وختونو کي کافي کيږي

**حل لغات** اغتسل اغتسل يغتسل اغتسالا معني غسل کول . غسل يغسل غسلا وينخل مغتسل معني غسل خانه ، غسيل وينځلي شوي . غاسل معني دوبي
سفينة السفينة په معني دکشتئ او جهاز سره جمع يي سفين سفن او سفان راځي
خرقنا تخرق وانخرق په معني دشليدو او سوري کيدو سره دي

**تشريح** : صاع دځلورو مدونو نه جوړوي يعني دري کلو يوسل پنځوس ګرام او يو مد دوه رطل وي يعني اوه سوه نوي ګرامه هم دومره مقدار د اودس او دغسل دپاره کافي دي که دا حديث په داسي مقام کي بيان کړي شي چرته چي اوبه زياتي وي نو دحديث مطلب به دا وي چي په اودس او غسل کي اسراف کول پکار نه دي نبي کريم صلي الله عليه وسلم به په هم دومره اوبو اودس او غسل کولو او که حديث په داسي مقام کي بيان کړي شي چرته چي اوبه کمي وي نو مطلب به داوي چي په اودس او غسل کي بخيلي کول پکار نه دي په ډيرو لږو اوبو په اودس او غسل کولو کي په بدن کي د اوچ ځاي پاتي کيدو احتمال دي، نبي کريم صلي الله عليه وسلم به داوبو دقلت باوجود په اته سوه ګرامه په اوبو اودس کولو او په پاؤباندي دري ليتره اوبو به يي غسل کولو پس دخلقو دپاره هم پکار دي چي داوبو په استعمال کي بخل اونکړي.

دا خبره خو اتفاقي ده چي په يو مد اوبو اودس کول پکار دي اوپه يو صاع اوبو غسل کول پکار دي او دا جائز مقدار دي او په دي خبره هم اتفاق دي چي د اودس او غسل دپاره شرعا داوبو کوم خاص مقدار مقرر نه دي داسراف نه بغير په قدر دضرورت اوبه استعمالول پکار دي مګر اختلاف په دي خبره کي دي چي دمد مقدار څومره دي په دي کي داهل علمو دوه مذاهب دي.

اول مذهب دامام شافعي او امام احمد دي ددوئ په نزد يو مد يو رطل او ثلث درطل وي په دي حساب به يو صاع پنځه رطله او يو ثلث وي، دوئ په تعمل داهل مدينه استدلال کوي ځکه چي دامام مالك په زمانه کي همدا صاع په مدينه کي رائج وو

دويم مذهب دامام ابو حنيفه او امام احمد دي ددوئ په نزد يو مد دوه رطله وي او په دي اعتبار سره يو صاع اته رطله وي ددوئ دليل په طحاوي کي دجابر رضي الله عنه روايت دي

چي مونږ دعائشه رضي الله عنها په خدمت کي حاضر شو او اوبه مو اوغوښتلي هغي راته په يو لوښي کي اوبه راکړي او ويي فرمائيل نبي کريم صلي الله عليه وسلم به په همدي لوښي غسل کولو ما چي دهغه لوښي اندازه اولګوله نو هغه تقريبا ۹،۸ ، ۱۰ ، رطله وي او دشک په صورت کي عدد اقل متعين وي.

**دراوي حالات** : (عن أبي ريحانة) اسمه عبد الله ابن مطر البصري. مشهور بكنيته صدوق تغير بآخره من الثالثة (عن سفينة) هو مولى رسول الله صلى الله عليه وسلم يكنى أبا عبد الرحمن يقال كان اسمه مهران أو غير ذلك فلقب سفينة لكونه حمل شيئاً كبيراً في السفر. مشهور . له أحاديث.(تحفة الاحوذى)

*****************

## ٤٣_ بَابُ مَا جَاءَ فِي كَرَاهِيَةِ الإِسْرَافِ فِي الْوُضُوءِ بِالْمَاءِ

## د اودس په اوبو کي د اسراف کولو د کراهت بيان

**٥٧_ حَدَّثَنَا مُحَمَّدُ بْنُ بَشَّارٍ، حَدَّثَنَا أَبُو دَاوُدَ الطَّيَالِسِيُّ، حَدَّثَنَا خَارِجَةُ بْنُ مُصْعَبٍ، عَنْ يُونُسَ بْنِ عُبَيْدٍ، عَنِ الْحَسَنِ، عَنْ عُتَيِّ بْنِ ضَمْرَةَ السَّعْدِيِّ، عَنْ أُبَيِّ بْنِ كَعْبٍ، عَنِ النَّبِيِّ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ قَالَ: "إِنَّ لِلْوُضُوءِ شَيْطَانًا، يُقَالُ لَهُ: الْوَلَهَانُ، فَاتَّقُوا وَسْوَاسَ الْمَاءِ". قَالَ: وَفِي الْبَابِ عَنْ عَبْدِ اللَّهِ بْنِ عَمْرٍو، وَعَبْدِ اللَّهِ بْنِ مُغَفَّلٍ. قَالَ أَبُو عِيسَى: حَدِيثُ أُبَيِّ بْنِ كَعْبٍ غَرِيبٌ، وَلَيْسَ إِسْنَادُهُ بِالْقَوِيِّ وَالصَّحِيحِ عِنْدَ أَهْلِ الْحَدِيثِ، لأَنَّا لاَ نَعْلَمُ أَحَدًا أَسْنَدَهُ غَيْرَ خَارِجَةَ، وَقَدْ رُوِيَ هَذَا الْحَدِيثُ مِنْ غَيْرِ وَجْهٍ عَنِ الْحَسَنِ قَوْلَهُ: وَلاَ يَصِحُّ فِي هَذَا الْبَابِ عَنِ النَّبِيِّ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ شَيْءٌ، وَخَارِجَةُ لَيْسَ بِالْقَوِيِّ عِنْدَ أَصْحَابِنَا وَضَعَّفَهُ ابْنُ الْمُبَارَكِ.** [1]

**ترجمه** : دابي بن کعب رضي الله عنه نه روايت دي چي رسول الله صلي الله عليه وسلم فرمائيلي دي د اودس دپاره يو شيطان وي چي "ولهان" ورته وئيلي شي تاسو دده د وسوسو په سبب داوبو ډيرو خرچ کولو نه خان بچ کړئ.

امام ترمذي وائي په دي باب کي دعبدالله ابن عمر، او عبدالله بن معفل رضي الله عنهم نه هم احاديث وارد دي.

---

[1] سنن ابن ماجه/الطهارة ٣٨ (٤٢١) (تحفة الأشراف : ٦٦) . و مسند احمد (٥/١٣٦)

حديث دابي بن كعب غريب دي.
ددي حديث سند دمحدثينو په نزد قوي نه دي ځکه چي مونږ ته دا نه ده معلومه چي دخارجه نه علاوه بل چا دا مسند نقل کړي وي دا حديث په نورو سندونو دحسن بصري نه موقوفا مروي دي يعني دا يې دحسن قول ګرځولي دي او په دي باب کي يې هيڅ يو شي دنبي کريم صلي الله عليه وسلم نه ثابت نه دي او خارجه زمونږ دعلماؤ په نزد قوي نه دي ابن مبارك دهغه تضعيف کړي دي

**تشريح** په اودس او غسل کي اسراف کول يعني دضرورت نه زياتي اوبه خرچ کول مکروه دي په مسند احمد او ابن ماجه کي روايت دي چي يو ځل سعد بن ابي وقاص رضي الله عنه اودس کولو او هلته دنبي کريم صلي الله عليه وسلم تيريدل اوشول رسول الله ورته اوکتل نو هغه په اودس کي اسراف کول نو تنبيه يې ورته ورکړه او ورته يې اوفرمائيل اي سعد فضول خرچي ولي کوي سعد عرض اوکړو اي دالله رسوله ايا په اودس کي هم اسراف وي رسول الله صلي الله عليه وسلم اوفرمائيل هو ، کچري ته په روان نهر باندي يې نو هم (مشکوة باب سنن الوضوء) ددينه علاوه په نورو احاديثو کي هم داسراف نه ممانعت راغلي دي امام ترمذي چي په دي باب کي کوم روايت ذکر کړي دي هغه ضعيف دي او امام ترمذي کله کله داسي کوي چي دصحيح روايت په موجودګۍ کي ضعيف هم راوړي تردي چي طالب علم ورنه خبردارشي.
ارشاد نبوي دي نبي کريم صلي الله عليه وسلم فرمائيلي دي بيشکه د اودس دپاره يو شيطان وي چي ولهان ورته وئيلي شي پس په اوبو کي دوسوسو نه بچ شي داحديث ابن ماجه او مسند احمد نه هم مذکوردي غزازيل په خلقو کي دنه صان پيدا کولو اوخورولو دپاره شيطانان په مختلفو کارونو مقرر کړي دي يوه ډله دشيطانانو په دي کار مقرر کړي ده چي دمومنانو په طهارت کي شك پيدا کړي په دي کار دمقرر شوي شيطان نوم ولهان دي دا لفظ د وله "حيران" نه ماخوذ دي او په دي به الف او نون زائدتان وي او په دي وجه نبي کريم صلي الله عليه وسلم رهنمائي اوکړه چي مومن دپاره په اوبو کي دوسوسو کولو نه ځان ساتل پکار دي يعني داندامونو دوينځلو سره دي روان شي اګر که ددي په وينځلو يې يقين هم نه وي نو ددي په وينځلو به يو بالتي اوبه ضايع کړي او مومن دپاره پکار دي چي دشريعت په مقرر کړي حد باندي اودريږي يعني اندامونه دري پيري اووينځي او زيات يې اونه وينځي تردي چي اوبه فضول ضايع نشي.

**فائده:** شريعت هر هغه سوره بنده کړي ده دکومي نه چي دمومن په طبيعت کي وسوسي پيدا کيدي شي او هم ددي حکمت په وجه په غسل خانه کي دمتيازو کولو نه منع راغلي ده او هم ددي حکمت په وجه زنانه چي په کومو اوبو غسل دجنابت کړي وي دهغي نه په پاتي شوو اوبو

دنارينه دپاره غسل كول او استعمالول منع كړي شوي دي او هم ددي حكمت په وجه نبي كريم صلي الله عليه وسلم دښځو په جامو كي مونځ نه اداء كولو

## دابي بن كعب رضي الله عنه حالات

نوم ابیٔ كنيه ابوالطفيل لقب سيد القري ، سيد الانصار ، سيد المسلمين دمور نوم يي صهيله وو په عقبه ثانيه كي مسلمان شوی وو دبدر نه واخله دطائفه پوري په تمامو جنګونو كي شريك شوی دی ابوبكر رضي الله عنه دقران د تدوين او ترتيب دپاره يو څو صحابه كرام مقرر كړي وو چي يو په دویٔ كي ابیٔ بن كعب هم وو عمر رضي الله عنه ورته صرف د دارالافتا كار حواله كړی وو كله چي ده درخواست اوكړو چي ما هم چرته عامل مقرر كړه نو عمر رضي الله عنه ورته اوفرمائيل زه ستا دين په دنيا خرابول او خيرنول نه غواړم (بخاري)

ابیٔ بن كعب دقران سره سره د تورات او انجيل هم عالم وو دده د درس په حلقه كي عرب عجم روم او شام او ډيرو علاقو نه راغلي خلق شريك وو .

دحب رسول يي دا حالت وو چي استوانه حنانه يي پخپل كور كي په طور دتبرك ساتلي وه .

وفات: ۳۹ هجري كي دعثمان دخلافت په زمانه كي وفات شو او عثمان رضي الله عنه ورباندي جنازه اوكړه او په مدينه كي خاورو ته اوسپارلی شو.

مرويات: چونكه داحاديثو په بيانولو كي يي زيات احتياط كولو نو په دي وجه ورنه صرف ۱۴۲ روايات منقول دي چي دري پكي متفق عليه دي يو په بخاري كي دی او اوه په مسلم كي.

****************

## ٤٤_ بَابُ مَا جَاءَ فِي الْوُضُوءِ لِكُلِّ صَلاَةٍ

## د هر مونځ دپاره د مستقل او نوي اودس كولو بيان

٥٨_ حَدَّثَنَا مُحَمَّدُ بْنُ حُمَيْدٍ الرَّازِيُّ، حَدَّثَنَا سَلَمَةُ بْنُ الْفَضْلِ، عَنْ مُحَمَّدِ بْنِ إِسْحَاقَ، عَنْ حُمَيْدٍ، عَنْ أَنَسٍ، أَنَّ النَّبِيَّ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ كَانَ " يَتَوَضَّأُ لِكُلِّ صَلاَةٍ طَاهِرًا أَوْ غَيْرَ طَاهِرٍ "، قَالَ: قُلْتُ لِأَنَسٍ: فَكَيْفَ كُنْتُمْ تَصْنَعُونَ أَنْتُمْ ؟ قَالَ: كُنَّا نَتَوَضَّأُ وُضُوءًا وَاحِدًا. قَالَ أَبُو عِيسَى: وَحَدِيثُ حُمَيْدٍ، عَنْ أَنَسٍ، حَسَنٌ غَرِيبٌ هَذَا الْوَجْهِ. وَالْمَشْهُورُ عِنْدَ أَهْلِ الْحَدِيثِ حَدِيثُ عَمْرِو بْنِ عَامِرٍ

الْأَنْصَارِيِّ. عَنْ أَنَسٍ، وَقَدْ كَانَ بَعْضُ أَهْلِ العِلْمِ يَرَى الْوُضُوءَ لِكُلِّ صَلَاةٍ اسْتِحْبَابًا لَا عَلَى الْوُجُوبِ.([1])

**ترجمه** : دانس رضي الله عنه بيان دي چي نبي كريم صلي الله عليه وسلم به دهر مونځ دپاره اودس كولو كه اودس به يي وو او كه نه به وو حميد وائي چي دانس رضي الله عنه نه مي تپوس اوكړو چي تاسو به څنګه كول هغوئ اوفرمائيل مونږ به صرف يو اودس كولو

امام ترمذي وائي دحميد حديث په واسطه د انس ددي سند په اعتبار غريب دي او دمحدثينو په نزد مشهور عمرو بن عامر والا حديث دي كوم چي په واسطه دانس مروي دي او دبعضي اهل علمو رائي داده چي هر مونځ دپاره اودس مستحب دي واجب نه دي

**حل لغات**: طاهر په معني دپاك طهر يطهر طهرا دنصر او كرم نه مستعمل دي طاهر يي صفت دي جمع يي اطهار راځي اودتفعيل نه په معني دپاكولو دي.

**د حديث دراوي انس بن مالك رضي الله عنه مختصر حالات**

نوم انس او كنيه يي ابو حمزه او لقب يي خادم رسول الله قبيله يي بنو نجار وه او دپلار نوم يي مالك او دمور نوم يي ام سليم سهله بنت ملحان انصاريه وه درشتي په لحاظ سره ام سليم درسول الله صلي الله علليه وسلم ترور كيدله.

انس رضي الله عنه داته يا نهه كالو په عمر كي دخپلي مور سره يو ځاي مسلمان شوى وو كله چي لس كالو ته ورسيدو نو مور يي اووئيل اى دالله رسوله انس پخپله غلامئ كي قبول كړه نو رسول الله قبول كړو تقريبا لس كاله درسول الله صلي الله عليه وسلم په خدمت كي پاتي شو په سفر او حضر كي به ورسره يو ځاي وو او په صلح حديبيه، بيعت رضوان، خيبر طائف، او حجة الوداع كي يي درسول الله سره ملګرتيا كړي ده

صديق اكبر رضي الله عنه دبحرين عامل مقرر كړو او عمر فاروق رضي الله عنه دتعليم او تربيت دپاره بصري ته وليږلو دفتني په زمانه كي ګوشانشين شو، دده په زندګئ په خصوصي عاداتو كي حق ګويي، تواضع، اشاعت اسلام حب رسول او اتباع رسول شامل وو.

**مرويات**: انس رضي الله عنه دمكثرينو صحابه كرامو دجملي نه وو دده دمروياتو تعداد ۱۲۸۶ دى چي ۱۳۸ پكي متفق عليه دي او ۸۲ صرف په بخاري كي دي او ۷۱ صرف په مسلم كي دي (تهذيب الكمال).

**وفات**: د هجرت په ۹۳ كال كي دسلو كالو نه په زيات عمر كي وفات شو دوفات كيدو نه مخكي يي

[1] تفرد به المؤلف (تحفة الأشراف ٧٣٠)

خپل شاګرد ثابت بناني ته اوونيل چي زما دژړي نه لاندي درسول الله صلي الله عليه وسلم ويخته مبارك کيږده نو هغه دحکم تعميل اوکړو او په همدي حال کي ورنه روح پرواز اوکړو غرض دا چي فسطن بن کلاب وربانديي جنازه اوکړه او خپل کور ته نزدي په لف مقام کي دفن کړی شو. (روضة الصالحين شرح رياض الصالحين).

****************

٥٩ـ وَقَدْ رُوِيَ فِي حَدِيثٍ عَنْ ابْنِ عُمَرَ، عَنِ النَّبِيِّ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ، أَنَّهُ قَالَ: "مَنْ تَوَضَّأَ عَلَى طُهْرٍ، كَتَبَ اللَّهُ لَهُ بِهِ عَشْرَ حَسَنَاتٍ". قَالَ: وَرَوَى هَذَا الحَدِيثَ الأَفْرِيقِيُّ، عَنْ أَبِي غُطَيْفٍ، عَنْ ابْنِ عُمَرَ، عَنِ النَّبِيِّ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ حَدَّثَنَا بِذَلِكَ الحُسَيْنُ بْنُ حُرَيْثٍ المَرْوَزِيُّ، حَدَّثَنَا مُحَمَّدُ بْنُ يَزِيدَ الوَاسِطِيُّ، عَنْ الأَفْرِيقِيِّ، وَهُوَ إِسْنَادٌ ضَعِيفٌ، قَالَ عَلِيُّ بْنُ المَدِينِيِّ: قَالَ يَحْيَى بْنُ سَعِيدٍ القَطَّانُ: ذُكِرَ لِهِشَامِ بْنِ عُرْوَةَ هَذَا الحَدِيثُ، فَقَالَ: هَذَا إِسْنَادٌ مَشْرِقِيٌّ، قَالَ: سَمِعْتُ أَحْمَدَ بْنَ الحَسَنِ، يَقُولُ: سَمِعْتُ أَحْمَدَ بْنَ حَنْبَلٍ، يَقُولُ: مَا رَأَيْتُ بِعَيْنِي مِثْلَ يَحْيَى بْنِ سَعِيدٍ القَطَّانِ. ([1])

**ترجمه** : دعبدالله بن عمر رضي الله عنهما نه روايت دي چي رسول الله صلي الله عليه وسلم اوفرمائيل څوك چي د اودس دپاسه اودس کوي دهغه دپاره به لس نيکئ ليکلي کيږي.

امام ترمذي وائي دا حديث افريقي دابو غطيف نه او ابو غطيف دابن عمر نه او ابن عمر درسول الله صلي الله عليه وسلم نه نقل کړي دي، مونږ ته دا حديث حسين بن حريث مروزي دمحمد بن يزيد په واسطه بيان کړي دي او محمد بن يزيد دافريقي نه نقل کړي دي او دا سند ضعيف دي.

دعلي بن مديني قول دي چي يحيي بن سعيد القطان به ونيل هغوئ ددي حديث ذکر دهشام بن عروه نه اوکړو نو دي وخت کي يې اوونيل چي دا مشرقي سند دي

داحمد بن حسن نه مي اوريدلي دي هغه ونيل چي احمد بن حنبل نه مي اوريدلي دي چي ما پخپلو سترګو ديحيي بن سعيد القطان پشان بل څوك نه دي ليدلي.

**حل لغات** : "كتب" كتابا وكتابة دنصر نه دی په معني دليکلو لکه چي ونيلی شي كتب عليه كذا يعني دفلاني متعلق يې فيصله اوکړه

---

[1] سنن ابي داود/ الطهارة ٣٢ (٦٢) سنن ابن ماجه/الطهارة ٢٣ (٥١٢) (تحفة الأشراف : ٨٥٩٠) قال الشيخ الألباني: ضعيف. ابن ماجة (٥١٢) . // ضعيف سنن ابن ماجة (١١٤)

حسنات د کرم او نصر نه مستعمل دي په معنی د ښکلي سره، صفت یې حسن او جمع یې حسان راځي مؤنث یې حسنة او حسناء او حسان او حسنات راځي.

**د راوي حالات**: عبد الله بن عمر رضي الله عنهما حالات د کتاب په ابتداء کې تیر شوي دي.

****************

٦٠ـ حَدَّثَنَا مُحَمَّدُ بْنُ بَشَّارٍ، حَدَّثَنَا يَحْيَى بْنُ سَعِيدٍ، وَعَبْدُ الرَّحْمَنِ هُوَ ابْنُ مَهْدِيٍّ، قَالَا: حَدَّثَنَا سُفْيَانُ بْنُ سَعِيدٍ، عَنْ عَمْرِو بْنِ عَامِرٍ الْأَنْصَارِيِّ، قَالَ: سَمِعْتُ أَنَسَ بْنَ مَالِكٍ يَقُولُ: "كَانَ النَّبِيُّ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ يَتَوَضَّأُ عِنْدَ كُلِّ صَلَاةٍ، قُلْتُ: فَأَنْتُمْ مَا كُنْتُمْ تَصْنَعُونَ؟ قَالَ: كُنَّا نُصَلِّي الصَّلَوَاتِ كُلَّهَا بِوُضُوءٍ وَاحِدٍ مَا لَمْ نُحْدِثْ". قَالَ أَبُو عِيسَى: هَذَا حَسَنٌ صَحِيحٌ، وَحَدِيثُ حُمَيْدٍ عَنْ أَنَسٍ حَدِيثٌ جَيِّدٌ غَرِيبٌ حَسَنٌ.[1]

**ترجمه**: دعمرو بن عامر انصاري بیان دی فرمائي چې دانس بن مالك رضي الله عنه نه مې اوریدلي دي فرمائیل یې چې نبي کریم صلي الله علیه وسلم به دهر مونځ دپاره اودس کولو راوي وائي چې دانس نه مې تپوس اوکړو چې تاسو به څنګه کول انس رضي الله عنه راته په جواب کې اووئیل چې څو پورې به زمونږ اودس نه وو مات شوي ترهغې به مو ټول مونځونه په یو اودس کول.

امام ترمذي وائي دا حدیث حسن صحیح دي او د انس نه چې دحمید حدیث مروي دي جید غریب حسن دي.

**حل لغات** تصنعون صنع یصنع صنعا معني دڅه شي کول.

**تشریح**: **ربط** دې مقام پورې په تیرو شوو ابوابو کې د اودس دتمامو متعلقاتو او جزنیاتو ذکر دې ددې ځاې نه په دوه بابونو کې دا مسئله ذکر کوي چې په یو اودس باندې څومره مونځونه کیدې شي.

## د "وضوء لكل صلاة" باره کې دفقهاؤ مذاهب

(١) دجمهورو علماؤ په نزد په یو اودس ډیر مونځونه اداء کول جائز دي څو چې بې اودسي پېښه شوې نه وي.

[1] صحيح البخاري/الطهارة ٥٤ (٢١٤) سنن النسائي/الطهارة ١٠١ (١٣١) سنن ابن ماجه/الطهارة ٧٢ (٥٠٩) (تحفة الأشراف: ١١١٠) مسند احمد (٣/١٣٢، ١٩٤، ٢٦٠) سنن الدارمي/الطهارة ٤٦ (٧٢٤)

دبعضي اهل ظواهرو په نزد دهر مونځ دپاره اودس واجب دي، امام طحاوي نقل کړي دي چې دمقيمينو په حق کي لکل صلوة واجب دي ليکن په مسافر باندي واجب نه دي

دجمهورو دليل حديث دانس رضي الله عنه دي "كان النبي صلي الله عليه وسلم يتوضاء لكل صلوة فقلت لانتم ماتصنعون قال نصلي الصلوة كلها لوضوء واحد مالم نحدث"

وضوء لكل صلوة واجب نه دي او په دي باندي عمل تواتر قائم دي پاتي شوه دا چې نبي كريم صلي الله عليه وسلم دهر مونځ دپاره اودس كړي وو دي باره كي يو قول دادي چې په رسول الله باندي وضوء لكل صلاة ابتداء كي واجب وو ليكن بيا روسته رسول الله په يو اودس باندي ډير مونځونه اداء كول.

(۲) دويم قول وضوء لكل صلوة باندي درسول الله مداومت كول داستحباب په درجه كي دي، دغزوه خيبر او فتح مكه په موقع بيانا للجواز وضوء واحد سره متعدد مونځونه كيدي شي.

داهل ظواهر دليل ايت د اودس "يا ايها الذين امنوا اذا قمتم" الخ (المائده ٦) په طور د دليل ذكر كړي دي مگر دجمهورو په نزد وجوب د بي اودسه دپاره دي مطلق او عمومي نه دي دجمهورو دطرفه ددوی د مستدل ايت جوابات دادي.

جواب نمبر (۱) امام نووي په دي خبره اجماع نقل كړي ده چې په دي ايت كي وانتم محدثون قيد معتبر دي لكه چې خبر واحد دقران د ايت وضاحت جوړيدي شي او د ايت اجماع ختمولي شي دا رنگي كار اجماع هم كولي شي قراني ايت او احاديث كثيره داجماع په قطعي حجت كيدو باندي دلالت كوي.

(۲) دامام مالك نه منقول دي چې ددي ايت تقدير داسي دي "يا ايها الذين امنوا اذا قمتم من النوم (اي المنام) الي الصلوة فاغسلوا اي فتوضؤوا" اوس نه كوم تاويل ته حاجت پاتي شو او نه حدث قيد معتبر كولو ته مگر دي لره دحديث نه يا په كوم كراهت باندي ثابتول ضروري دي.

جواب نمبر (۳) القران يفسر بعضه بعضاً" هر كله چې مونږ دقران بل ايت ته اوكتل نو معلومه شوه چې په تيمم كي كوم چې خليفه د اودس دي د اودس ماتيدل شرط گرځولي شوي دي نو په وضوء كي كوم چې اصل دي په دي كي به دحدث كيدل شرط وي او په داسي شان سره په وان كنتم جنبا فاطهروا" كي په جنابت كي چې كوم حدث اكبر دي دي لره يي شرط گرځولي دي دطهارت اكبر دپاره لهذا حدث اصغر د طهارت اصغر دپاره شرط شو.

داهل ظواهر دويم دليل حديث دانس رضي الله عنه دي چې "يتوضوء لكل صلوة" دي.

جواب دادي چې اولا مونږ دا وايو دا عمل په طور داستحباب وو او ثانيا دا وايو كه په طور دوجوب وو نو بيا دا درسول الله خصوصيت وو او په دي خبره قرينه داده چې "كنا نصلي الصلوة

كلها لوضوء واحد مالم نحدث" دصحابه كرامو په يو اودس ډير مونځونه كول په دي باندي قرينه ده چي داپه استحباب منقول دي.

**دسند حال:** حديث دانس رضي الله عنه په دوه طريقو مروي دي يو په طريقه دحميد او دويم په طريقه دعمرو بن عامر او امام ترمذي طريقي دعمرو بن عامر ته ترجيح وركړي ده دترجيح اولني وجه داده چي په محدثينو كي اسحاق دتدليس مرتكب دي او په عن سره روايت كوي او دداسي راوي عنعنه مقبول نه ده

"قال من توضاء علي طهر" دا عبارت دفع ديو اعتراض ده اعتراض دادي هر كله چي رسول الله دهر مونځ دپاره اودس كولو نو بيا صحابه كرامو ولي په يو اودس ډير مونځونه كول، جواب دادي من توضاء علي طهر كتب له به عشر حسنات ددينه مراد دلسو اودسونو ثواب دي حافظ منذري وائي كوم چي مشهور شوي دي په خلقو كي "الوضوء علي الوضوء نور علي نور" يعني د اودس دپاسه بل اودس كول نور علي نور دا حديث مونږ چرته نه دي ليدلي شايد چي دا به په سلفو كي دچا مقوله وي، بل اعتراض دادي چي دلسو تخصيص يي ولي كړي دي.

جواب: په اودس كي ددي خبري صلاحيت دي چي پنځه مونځونه ورباندي اوكړي شي او كيدي هم شي نو ځكه دلسو تخصيص شوي دي.

بل جواب دادي د "وضوء علي الوضوء والاحديث ضعيف دي ځكه چي ددي دسند په سلسله كي عبدالرحمن بن زياد افريقي متكلم فيه دي او ابو عطيب مجهول دي دده په وجه حديث ضعيف دي، قال علي قال يحيي بن علي بن مديني عن يحيي بن سعيد القطان چي كله دوضوء علي الوضوء فضيلت والاحديث د هشام بن عروه په وړاندي بيان كړي شو نو هغه اوونيل ددي اسناد مشرقي دي. دا يو اصطلاح ده چي دمكي او مديني طرف ته چي كومي علاقي واقع دي ددي حديث په راويانو كي كوم راوي دمشرقي علاقو اوسيدونكي وي نوځكه اوونيلي شول چي دا مشرقي سند دي او دكوم سند راوي چي مكي مدني مصري وي نو ونيلي كيږي ددي سند حجازي دي په دي كي دا خودل مقصود نه دي چي مشرقي سند ضعيف دي مگر دلته اتفاقا مشرقي سند ضعيف دي اگر چي امام شافعي فرمائي مشرقي سند په هغه وخت كي حجت وي كله چي مغربي سند ددي مؤيد وي ددي وجه داده چي اكثر فتني په مشرقي بلادو كي پيدا كيږي ليكن دا دامام شافعي رائي ده. مگر دجمهورو په نزد دصحت دار مدار په ضبط او عدالت دي.

****************

## ٤٥_ بَابُ مَا جَاءَ أَنَّهُ يُصَلِّي الصَّلَوَاتِ بِوُضُوءٍ وَاحِدٍ

## په يو اودس د ډيرو مونځونو کولو بيان

٦١ـ حَدَّثَنَا مُحَمَّدُ بْنُ بَشَّارٍ. حَدَّثَنَا عَبْدُ الرَّحْمَنِ بْنُ مَهْدِيٍّ. عَنْ سُفْيَانَ. عَنْ عَلْقَمَةَ بْنِ مَرْثَدٍ. عَنْ سُلَيْمَانَ بْنِ بُرَيْدَةَ. عَنْ أَبِيهِ. قَالَ: كَانَ النَّبِيُّ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ يَتَوَضَّأُ لِكُلِّ صَلَاةٍ. فَلَمَّا كَانَ عَامُ الْفَتْحِ صَلَّى الصَّلَوَاتِ كُلَّهَا بِوُضُوءٍ وَاحِدٍ وَمَسَحَ عَلَى خُفَّيْهِ. فَقَالَ عُمَرُ: إِنَّكَ فَعَلْتَ شَيْئًا لَمْ تَكُنْ فَعَلْتَهُ. قَالَ: "عَمْدًا فَعَلْتُهُ". قَالَ أَبُو عِيسَى: هَذَا حَسَنٌ صَحِيحٌ. وَرَوَى هَذَا الْحَدِيثَ عَلِيُّ بْنُ قَادِمٍ. عَنْ سُفْيَانَ الثَّوْرِيِّ وَزَادَ فِيهِ: تَوَضَّأَ مَرَّةً مَرَّةً. قَالَ: وَرَوَى سُفْيَانُ الثَّوْرِيُّ هَذَا الْحَدِيثَ أَيْضًا. عَنْ مُحَارِبِ بْنِ دِثَارٍ. عَنْ سُلَيْمَانَ بْنِ بُرَيْدَةَ. أَنَّ النَّبِيَّ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ كَانَ يَتَوَضَّأُ لِكُلِّ صَلَاةٍ. وَرَوَاهُ وَكِيعٌ. عَنْ سُفْيَانَ. عَنْ مُحَارِبٍ. عَنْ سُلَيْمَانَ بْنِ بُرَيْدَةَ. عَنْ أَبِيهِ. قَالَ: وَرَوَاهُ عَبْدُ الرَّحْمَنِ بْنُ مَهْدِيٍّ وَغَيْرُهُ. عَنْ سُفْيَانَ. عَنْ مُحَارِبِ بْنِ دِثَارٍ. عَنْ سُلَيْمَانَ بْنِ بُرَيْدَةَ. عَنِ النَّبِيِّ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ مُرْسَلًا. وَهَذَا أَصَحُّ مِنْ حَدِيثِ وَكِيعٍ. وَالْعَمَلُ عَلَى هَذَا عِنْدَ أَهْلِ الْعِلْمِ. أَنَّهُ يُصَلِّي الصَّلَوَاتِ بِوُضُوءٍ وَاحِدٍ مَا لَمْ يُحْدِثْ. وَكَانَ بَعْضُهُمْ يَتَوَضَّأُ لِكُلِّ صَلَاةٍ. اسْتِحْبَابًا وَإِرَادَةَ الْفَضْلِ. وَيُرْوَى عَنِ الْأَفْرِيقِيِّ. عَنْ أَبِي غُطَيْفٍ. عَنِ ابْنِ عُمَرَ. عَنِ النَّبِيِّ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ. قَالَ: "مَنْ تَوَضَّأَ عَلَى طُهْرٍ كَتَبَ اللَّهُ لَهُ بِهِ عَشْرَ حَسَنَاتٍ". وَهَذَا إِسْنَادٌ ضَعِيفٌ وَفِي الْبَابِ عَنْ جَابِرِ بْنِ عَبْدِ اللَّهِ. أَنَّ النَّبِيَّ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ صَلَّى الظُّهْرَ وَالْعَصْرَ بِوُضُوءٍ وَاحِدٍ. [1]

**ترجمه** : دبريده رضي الله عنه نه روايت دي فرماني چي نبي کريم صلي الله عليه وسلم به دهر مونځ دپاره اودس کولو، مګر کله چي دفتح مکه کال راغي نو بيا يي ډير مونځونه په يو اودس اداء کړل او په موزو يي مسح اوکړه، عمر رضي الله عنه عرض اوکړو چي تاسو يو داسي کار اوکړو کوم چي مو هيڅ کله نه وو کړي رسول الله صلي الله عليه وسلم اوفرمائيل دا مي قصدا داسي اوکړل

امام ترمذي وائي دا حديث حسن صحيح دي، او دا حديث علي بن قادم هم دسفيان ثوري نه نقل کړي دي مګر دده په روايت کي دومره اضافه ده چي د اودس اندامونه يي يو يو ځل اووينځل سفيان ثوري دمحارب بن دثار په سند عن سليمان بن بريده مرسلا نقل کړي دي چي نبي کريم صلي الله عليه وسلم به دهر مونځ دپاره اودس کولو، دا رنګي دا روايت وکيع په سند دسفيان عن محارب عن سليمان بن بريده عن بريده نقل کړي دي، دا رنګي دا روايت

---

[1] صحيح مسلم/الطهارة ٢٥ (٢٧٧) سنن ابي داود/ الطهارة ٦٦ (١٧٢) سنن ابن ماجه/الطهارة ٧٢ (٥١٠) (تحفة الأشراف: ١٩٢٨) مسند احمد (٥/٣٥٠، ٣٥١، ٣٥٨) سنن الدارمي/الطهارة ٣ (٦٨٥)

عبدالرحمن بن مهدي وغيره په سند دسفيان عن محارب بن دثار عن سليمان بن بريده مرسلا نقل کړي دي او دا روايت دوکيع دروايت نه زيات صحيح دي او داهل علمو په همدي باندي عمل دي چي په يو اودس ډير مونځونه اداء کيدي شي خو چي څو پوري بي اودسي راغلي نه وي، بعضي اهل علم داستحباب او دفضيلت په اراده دهر مونځ دپاره اودس کولو دارنګي عبدالرحمن افريقي په سند د ابي غطيف عن ابن عمر دا روايت نقل کړي دي چي نبي کريم صلي الله عليه وسلم فرمائيلي دي څوك چي ديو اودس دپاسه بل اودس کوي الله تعالي به دده دپاره لس نيکياني اوليکي ددي حديث سند ضعيف دي، او په دي باب کي دجابر بن عبدالله نه هم يو روايت وارد دي چي نبي کريم صلي الله عليه وسلم په يو اودس دماسپخين او مازيګر دواړه مونځونه اداء کړل

**حل لغات** "كتب" كتابا وكتابة دنصر نه دي په معني دليکلو لکه چي ونيلی شي كتب عليه كذا يعني دفلاني متعلق يی فيصله اوکړه .

حسنات: د کرم او نصر نه مستعمل دي په معني دښکلي سره، صفت يي حسن او جمع يي حسان راځي مؤنث يي حسنة او حسناء او حسان او حسنات راځي.

**تشريح** : ددي باب خلاصه داده چي درسول الله صلي الله عليه وسلم نه په يو اودس ډيرو مونځونو کول ثابت دي "فقال عمر انك فعلت شيئا لم تكن تفعله قال عمدا فعلته" ددي شيء نه څه مراد دي ځکه چي په ماقبل کي دوه عملونه مذکور دي (١) په يو اودس ډير مونځونه کول (٢) مسح الخفين.

جواب: ددينه مراد په يو اودس ډير مونځونه اداء کول دي.

اعتراض: دا واقعه خو په غزوه خيبر کي هم شوي ده کومه چي بخاري په کتاب المغازي کي دسويد بن نعمان رضي الله عنه نه نقل کړي ده نو بيا عمر ولي اووئيل چي "انك فعلت شيئا لم تكن تفعله".

جواب: غزوه خيبر والا واقعه باره کي دعمر رضي الله عنه علم نه وو دا خبره يي دخپل علم مطابق کړي ده او دهغه دعلم په اعتبار درسته ده، او په فتح مکه کي چي کومه واقعه پيښه شوه دهغي باره کي دوه احتمالات دي (١) دا فعل دوجوب وضوء لکل صلاة دپاره ناسخ دي او هغه منسوخ دي (٢) ددي وجوب نسخ به ددينه مخکي شوي وي ليکن رسول الله صلي الله عليه وسلم په اکثرو حالاتو کي چي دخان دپاره خومره مشقت خوښولو هغه يي دامت دپاره نه خوښولو نو په تجديد داستحباب دعمل کولو دپاره دفتح مکي په ورځ دااستحباب پريخودو ترڅو چي دچا په زړه کي دوجوب وهم پيدا نشي.

"وهذا اصح من حديث وكيع" ددي مطلب دا سوال دي چي حديث دوكيع متصل دي او دا مرسل دي او متصل دمرسل نه قوي وي جواب دادي پکار خو همداسي ده چي متصل راجح شي ليکن کله کله دمتصل راوي ضعيف وي نو په دي وجه دمتصل کيدو باوجود متصل مرجوح دي او دلته هم داسي شوي ده.

سفيان ثوري دا حديث دمحارب بن دثار نه نقل کړي دي او بيا دهغه بعضي شاگردانولکه وکيع په متصل سند بيان کړي دي يعني په اخر کي يي دبريده ذکر نه دي کړی امام ترمذي مرسل روايت ته ترجيح ورکړي ده خکه چي دهغه مزاج هم داسي وو او کوم طرف چي رغړېند وي اوبه هم هغه طرف ته بهيږي يعني چي په کوم سند کي کمزوري نه وي هغه لره اصح گرخوي، نو بيا دمحارب نه دثوري مسند روايت ته په ترجيح ورکولو کي کوم يو څيز مانع کيدي شي.

**دراوي حالات** : قال المباركفوري : (سليمان بن بريدة) بن الحصيب الأسلمي المروزي. ثقة وثقه ابن معين وأبو حاتم قال الحاكم لم يذكر سماعاً من أبيه قال الخزرجي حديثه عن أبيه في مسلم في عدة مواضع (عن أبيه) هو بريدة بن الحصيب بمهملتين مصغراً صحابي أسلم قبل بدر مات سنة ٦٣ ثلاث وستين. (التحفة الاحوذي)

*****************

## ٤٦ــ بَابُ مَا جَاءَ فِي وُضُوءِ الرَّجُلِ وَالْمَرْأَةِ مِنْ إِنَاءٍ وَاحِدٍ

## د يو لوښي نه د سړي او ښځي د اودس کولو بيان

٦٢ــ حَدَّثَنَا ابْنُ أَبِي عُمَرَ. حَدَّثَنَا سُفْيَانُ بْنُ عُيَيْنَةَ. عَنْ عَمْرِو بْنِ دِينَارٍ. عَنْ أَبِي الشَّعْثَاءِ. عَنْ ابْنِ عَبَّاسٍ. قَالَ: حَدَّثَتْنِي مَيْمُونَةُ. قَالَتْ: "كُنْتُ أَغْتَسِلُ أَنَا وَرَسُولُ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ مِنْ إِنَاءٍ وَاحِدٍ مِنَ الْجَنَابَةِ". قَالَ أَبُو عِيسَى: هَذَا حَسَنٌ صَحِيحٌ. وَهُوَ قَوْلُ عَامَّةِ الْفُقَهَاءِ: أَنْ لَا بَأْسَ أَنْ يَغْتَسِلَ الرَّجُلُ وَالْمَرْأَةُ مِنْ إِنَاءٍ وَاحِدٍ. قَالَ: وَفِي الْبَابِ عَنْ عَلِيٍّ. وَعَائِشَةَ. وَأَنَسٍ. وَأُمِّ هَانِئٍ. وَأُمِّ صُبَيَّةَ الْجُهَنِيَّةِ. وَأُمِّ سَلَمَةَ. وَابْنِ عُمَرَ. قال أبو عيسى: وَأَبُو الشَّعْثَاءِ اسْمُهُ: جَابِرُ بْنُ زَيْدٍ. (1)

---

[1] صحيح مسلم/الحيض١٠ (٣٢٢) سنن النسائي/الطهارة ١٣٦ (٢٣٧) سنن ابن ماجه/الطهارة ٣٥ (٣٧٧) (تحفة الأشراف : ١٨٠٩٤) مسند احمد (٦/٣٢٩)

**ترجمه** : دعبدالله بن عباس رضي الله عنهما نه روايت دي فرمائي چي ميمونه رضي الله عنها راته بيان کړل چي ما او رسول الله صلي الله عليه وسلم دواړو به ديو لوښي نه غسل دجنابت کولو.

امام ترمذي وائي دا حديث حسن صحيح دي او اکثرو فقهاؤ په دي باندي قول کړي دي چي ديو لوښي نه دسړي او ښځي په غسل کولو کې هيڅ خرج نشته، په دي باب کي دعلي ، عائشه، انس، ام هاني، ام حبيبه ، ام سلمه، او ابن عمر رضي الله عنهم نه هم احاديث وارد دي

**حل لغات** اغتسل اغتسل يغتسل اغتسالا معني غسل کول ، غسل يغسل غسلا وينخل مغتسَل معني غسل خانه ، غسيل وينخلي شوي ، غاسل معني دوبي

**تشريح** : غرض دامام ترمذي ددي باب نه بعضي مسائل بيانول دي چي په نصوصو سره وضوء الرجل مع المرءة في اناة واحد دعدم جواز وهم پيدا کيږي لکه دترمذي باب دي "باب ما جأء انه لا يقطع الصلوة الا الکلب والحمار والمراة" دا رنګي قراني ايت دي "اولامستم النساء فلم تجدوا ماء" او ددي پشان نورو نصوصو نه معلوميږي چي دسړي دپاره د اودس او مونځ په حالت کي تلبس مع المراة پکار نه دي او ددينه وضوءالرجل مع المراة في اناء واحد دعدم جوازوهم پيداکيږي نو مصنف ددي عنوان په راوړلو سره ددي وهم ازاله اوکړه، دويم مقصد يي ددي باب نه اقوال دفقهاؤ بيانول دي چي په دي کي يو څو صورتونه جوړيږي او کوم کوم صورتونه په دي کي ناجائز دي (۱) چي ښځه دسړي نه په پاتي شوو اوبو اودس اوکړي (۲) چي ښځه دسړي نه په پاتي شوو اوبو غسل اوکړي (۳) نارينه او زنانه يوځاي غسل اوکړي (۴) نارينه او زنانه يوځاي اودس اوکړي (۵) دښځي نه په پاتي شوو اوبو اودس کول (۲) دښځي نه په پاتي شوو اوبو غسل کول

په دي شپږو صورتونو کي دبعضي صورتونو حکم په احاديثو کي صراحتا ثابت دي داولني صورت حکم چي نارينه اوزنانه يوځاي غسل اوکړي ددي جواز داولني باب په حديث کي دي او ددويم صورت حکم چي نارينه او زنانه يوځاي اودس اوکړي داهم په احاديثو کي صراحتا موجود دي د دريم صورت حکم چي ښځه د سړي په پاتي شوو اوبو اودس اوکړي دا هم دائمه اربع په نزد جائز دي دڅلورم صورت حکم چي ښځه دسړي په پاتي شوو اوبو غسل اوکړي ددي متعلق په يو حديث کي ممانعت دي مګر دائمه اربعه په نزد بالاتفاق دا صورت جائز دي دپنځم صورت حکم چي نارينه دزنانه په پاتي شوو اوبو غسل يا اودس اوکړي په دي باره کي مذاهب دفقهاؤ دادي

دجمهورو محدثينو او فقهاؤ په نزد دا ټول صورتونه جائز دي.

امام احمد او اسحاق بن راهويه وائي كه ښځي يواځي اوبه استعمال كړي په اودس يا غسل كي نو ددينه په پاتي شوو اوبو سړي نه اودس كولي شي او نه غسل بلكه ددي استعمال مكروه دي

دجمهورو دلائل په زير بحث باب كي دعبدالله بن عباس روايت دي چي ميمونه رضي الله عنها فرمائيلي دي ما او رسول الله صلي الله عليه وسلم به ديو لوښي نه غسل كولو ددي حديث نه اغتسال معا جواز ثابت شو

دويم دليل ددينه پس په دريم راتلونكي باب كي عبدالله بن عباس روايت دي چي يو ځل ميمونه رضي الله عنها غسل اوكړو او دهغي نه پس چي كله نبي كريم صلي الله عليه وسلم دهغي نه په پاتي شوو اوبو د اودس كولو اراده اوكړه نو ميمونه رضي الله عنها اوفرمائيل چي ما ددي اوبو نه دجنابت غسل كړي دي رسول الله صلي الله عليه وسلم اوفرمائيل "ان الماء لا يجنب" ددي حديث نه فضل طهور المرء بالرجل . يو دبل نه پس داستعمال جواز ثابت شو.

مگر دامام احمد په نزد ښځه دسړي نه دپاتي شوو اوبو استعمال نشي كولي امام احمد په دي باره كي دحديث الباب نه استدلال كوي او په دي پسي د وروسته باب نه استدلال كوي په هغي كي مذكور دي چي نبي كريم صلي الله عليه وسلم نارينه دښځو نه په پاتي شوو اوبو داستعمال نه منع كړي دي

جواب دا روايت په نهي تنزيهي محمول دي ځكه چي ښځي اكثر دطهارت اهتمام كم كوي او كه دا روايت په كراهت تنزيهي محمول نكړي شي نو بيا يي د دريم باب دروايت سره تعارض راځي بيا روسته كراهت تنزيهي هم منسوخ شوي دي ځكه چي رسول الله صلي الله عليه وسلم دميمونه رضي الله عنها نه دغسل په پاتي شوو اوبو اودس كړي دي.

جواب مصنف هم دا قول صحيح نه دي گڼړلي دا حديث حسن دي او شايد چي ديته صحيح نه ونيل په همدي وجه وي چي ددي په متن كي اضطراب دي

فائده معارف السنن والادشاه انورشاه كشميري په حواله ليكلي دي چي شرعي قانون دادي چي دوي دوسوسو قطع كولو اهتمام اوكړي كه سړي دښځو پاتي شوي اوبه استعمال كړي نو دنهي علت اوښايي چي مستعملي اوبه پريوځي اوس دا احتمال هم شته چي دښځي په بدن بوري نجاست وي نو يقينا چي وسوسه پيدا كيدي شي په دي وسوسي دقطع كولو دپاره رسول الله صلي الله عليه وسلم دمنعي حكم كړي دي تردي چي حصول دطهارت يقيني شي او دا دمعاشرت د ادابو دقبيلي نه وي او دجمهورو همدا قوي قول دي

په حديث كي د "غسل الرجل والمرءة" لفظ دي او په باب كي وضوء الرجل والمراة الفاظ دي په دي كي دوه خبرو ته اشاره ده، اوله خبره داده هر كله چي غسل جائز دي نو اودس به په

طريقه اولي جائز وي او ثابت به وي او يا دا مطلب دي چي چونکه په غسل کي اودس هم داخل وي لهذا اودس هم ضمنا ثابت شو.

دي مقام پوري د اودس دابوابو بيان وو نو که دغسل عنوان يي قائم کړي وي دماقبل سره يي ربط ختميدو نو خکه يي د اودس په نوم باب قائم کړو چي ربط باقي پاتي شي لهذا دماقبل سره هم مربوط شي او په مابعد کي داوبو مسائل ذکر کوي ددي سره يي هم ربط باقي پاتي شو

## دام المؤمنين ميمونه رضي الله عنها حالات

نوم ميمونه قبيله قريش د پلار نوم حارث او دمور نوم يي هند بنت عوف وو دميمونه رضي الله عنها اولني نکاح دمسعود بن عمرو ثقفي سره شوي وه او بيايي د ابو رهم سره نکاح اوشوه او دهجرت په اوم کال دابورهم د وفات نه وروسته يي رسول الله صلي الله عليه وسلم سره نکاح اوشوه دا هغه وخت وو کله چي رسول الله عمري ته تلی وو او دهجرت اوم کال وو او د همدي احرام په حالت کي يي نکاح اوشوه دا درسول الله صلي الله عليه وسلم اخري نکاح وه او ميمونه يي دټولو نه وروستی ښځه وه ددي په باره کي ام المؤمنين عائشه رضي الله عنها فرمائي انها كانت اتقانالله واصلنا للرحم (الاصابه).

يعني ميمونه په مونږه ټولو کي ډيره تقوي داره او دالله نه ويريدونکي وه او په مونږه ټولو کي ډيره صله رحمي پالونکي وه.

وفات: دا ناشنا اتفاق وو چي په کوم ځاي کي يي نکاح شوي وه يعني مقام صرف نو هم هلته وفات شوه (بخاري).

ابن عباس رضي الله عنهما ورباندي جنازه اوکړه او د صحيح قول مطابق دا دهجرت ۵۱کال وو او دمروياتو شمير يي ۴۶دی.

****************

## ٤٧_ بَابُ مَا جَاءَ فِي كَرَاهِيَةِ فَضْلِ طَهُورِ الْمَرْأَةِ

## دښځي د اوس نه دپاتي شوو اوبو د استعمال د کراهت بيان

٦٣_ حَدَّثَنَا مَحْمُودُ بْنُ غَيْلَانَ، قَالَ: حَدَّثَنَا وَكِيعٌ، عَنْ سُفْيَانَ، عَنْ سُلَيْمَانَ التَّيْمِيِّ، عَنْ أَبِي حَاجِبٍ، عَنْ رَجُلٍ مِنْ بَنِي غِفَارٍ، قَالَ: " نَهَى رَسُولُ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ عَنْ فَضْلِ طَهُورِ الْمَرْأَةِ

". قال: وَفِي الْبَابِ عَنْ عَبْدِ اللَّهِ بْنِ سَرْجِسَ. قال أبو عيسى: وَكَرِهَ بَعْضُ الْفُقَهَاءِ الْوُضُوءَ بِفَضْلِ طَهُورِ الْمَرْأَةِ، وَهُوَ قَوْلُ أَحْمَدَ، وَإِسْحَاقَ: كَرِهَا فَضْلَ طَهُورِهَا وَلَمْ يَرَيَا بِفَضْلِ سُؤْرِهَا بَأْسًا. [1]

**ترجمه** : دبني غفار قبيلي ديو كس (حكم بن عمرو) بيان دي چي رسول الله صلي الله عليه وسلم دښځي نه په پاتي شوو اوبو د اودس كولو نه منع فرمائيلي ده.

امام ترمذي وائي په دي باب كي دعبدالله بن سرجس رضي الله عنه نه هم يو روايت وارد دي.

بعضي فقهاؤ داسي اوبه مكروه ګنړلي دي او دا د امام احمد او اسحاق بن راهويه قول هم دي دوئ دواړو دښځي نه دپاتي شوو اوبو استعمال مكروه ګنړلي دي ليكن ددوئ په قول ددي دجوټي په استعمال كي څه خرج نشته.

**حل لغات** فضل صاحب فضيلت كيدل فضل يفضل فضلا دنصر او سمع نه فضلا په معني دزياتي اود كرم نه صاحب فضيلت كيدل.

**دراوي حالات** : (أبي حاجب) اسمه سودة بن عاصم العنزي البصري. صدوق يقال إن مسلماً أخرج له من الثالثة (عن رجل من بني غفار) هو الحكم بن عمرو قاله الحافظ. (شرح الترمذي)

*****************

٦٤ـ حَدَّثَنَا مُحَمَّدُ بْنُ بَشَّارٍ، وَمَحْمُودُ بْنُ غَيْلَانَ، قَالَا: حَدَّثَنَا أَبُو دَاوُدَ، عَنْ شُعْبَةَ، عَنْ عَاصِمٍ، قَالَ: سَمِعْتُ أَبَا حَاجِبٍ يُحَدِّثُ، عَنِ الْحَكَمِ بْنِ عَمْرٍو الْغِفَارِيِّ، أَنَّ النَّبِيَّ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ " نَهَى أَنْ يَتَوَضَّأَ الرَّجُلُ بِفَضْلِ طَهُورِ الْمَرْأَةِ "، أَوْ قَالَ: " بِسُؤْرِهَا ". قَالَ أَبُو عِيسَى: هَذَا حَسَنٌ. وَأَبُو حَاجِبٍ اسْمُهُ: سَوَادَةُ بْنُ عَاصِمٍ. وقَالَ مُحَمَّدُ بْنُ بَشَّارٍ فِي حَدِيثِهِ: نَهَى رَسُولُ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ أَنْ يَتَوَضَّأَ الرَّجُلُ بِفَضْلِ طَهُورِ الْمَرْأَةِ "، وَلَمْ يَشُكَّ فِيهِ مُحَمَّدُ بْنُ بَشَّارٍ. [2]

**ترجمه** : دحكم بن عمرو غفاري بيان دي چي رسول الله صلي الله عليه وسلم دښځي نه په پاتي شوو اوبو د اودس كولو نه منع فرمائيلي ده، او كه داسي يي اوفرمائيل دښځو په جوټي اودس كوئ، امام ترمذي وائي دا حديث حسن صحيح دي.

---

[1] سنن ابي داود/ الطهارة ٤٠ (٨٢) سنن النسائي/المياه ١٢(٣٤٥) سنن ابن ماجه/الطهارة ٣٤ (٣٧٣) (تحفة الأشراف : ٣٤٢١). مسند احمد (٢١٣/٤، ٦٦٥)

محمد بن بشار پخپل حديث كي وائي چي رسول الله صلي الله علي وسلم ددي خبري نه منع فرمانيلي ده چي يو سړي ديوي ښځي نه په پاتي شوو اوبو اودس اوكړي او محمد بن بشار په دي روايت كي "اوبسورهما" والا دشك كلمه نه ده بيان كړي

**تخريج**: سنن ابي داود/ الطهارة ۴۰ (۸۲) سنن النسائي/المياه ۱۲ (۳۴۵) سنن ابن ماجه/الطهارة ۳۴ (۳۷۳) (تحفة الأشراف: ۳۴۲۱) . مسند احمد (۴/۲۱۳، ۶۶۵)

**تشريح** : دسور معني باقي پاتي شوي ده دا لفظ هم دفضل پشان عام دي او په پښتو كي يي ترجمه جوټه ده مگر په اسلام كي ددي هيڅ حقيقت نشته دا دهندوانو يو رسم دي په اسلام كي هر يو شي پاك دي او چي كوم قومونه يوخاي اوسيږي دهغوئ تهذيب يو دبل نه متاثر كيږي پس په دي وجه په دي خبره ښه خان پوهول پكار دي چي انسان كه هر څوك وي دهغه نه پاتي شوي خوراك اوبه پاكي وي او خوراك ورسره يوخاي هم كولي شي او دهغه نه پاتي شوي څيز روسته هم خوړلي شي.

اوكوم حديث چي مشهور دي "سور المؤمن شفاء" دمسلمان په جوټه كي شفا ده ددي حديث هيڅ اصل نشته ملاعلي قاري په الموضوعات الكبري كي ليكلي دي او همدارنگي په مسلمانانو كي ددي رواج هم نشته يعني كه په كور كي څوك بيمار شي نو يو كس اوبه يا خوراك راواخلي او په كوروالا يا يي دمحلي په خلقو اوخوروي او بيا دهغوئ نه پاتي شوي په بيمار باندي اوخوروي په مسلمانانو كي ددي كار هيڅ رواج نشته او كچري داحديث صحيح وي نو دمسلمانانو په معاشره كي به معمول بها وو.

دمسلمانانو په معاشره كي دتبرك رواج دي يعني دكوم نيك انسان جوټه خلق اكثر په شوق سره استعمالوي او تبرك په حديث ثابت دي يو خل نبي كريم صلي الله عليه وسلم شوده اوڅكل او نبي طرف ته يي ام هاني ناسته وه نو رسول الله صلي الله عليه وسلم باقي پاتي شوي ام هاني ته وركړل او هغي د روژي نيولو باوجود اوڅكل او روژه يي ماته كړه ځكه چي دروژي خو قضاء هم كيدي شوه مگر كه تبرك يي دلاس نه تلي وي دا بيا نه راگرځيدو غرض دا چي تبرك ثابت دي او په مسلمانانو كي رائج هم دي مگر ديو مومن پاتي شوي جوټه كي شفاء كيدل بي دليله خبره ده او په مسلمانانو كي رائج هم نه ده ډير لوي لوي خلق په دي غلطئ كي مبتلا دي او دا جمله په طور دحديث بيانوي نو په دي وجه ددي خبري نه خبرداري ضروري ده.

ددي حديث په سند كي يو راوي ابوحاجب راغلي دي دده پوره نوم سوادة بن عاصم دي دا دمعمولي درجي راوي دي ونيلي شوي دي چي په مسلم كي دده نه روايت موجود دي او ددي راوي په وجه امام ترمذي دي حديث ته صرف حسن ونيلي دي.

**دراوي حالات** : اسمه هو الحكم بن عمرو قاله الحافظ. (تحفة الاحوذي بشرح الترمذي)

****************

## ٤٨_ بَابُ مَا جَاءَ فِي الرُّخْصَةِ فِي ذَلِكَ

## بيان درخصت په دې کې

٦٥_ حَدَّثَنَا قُتَيْبَةُ، حَدَّثَنَا أَبُو الأَحْوَصِ، عَنْ سِمَاكِ بْنِ حَرْبٍ، عَنْ عِكْرِمَةَ، عَنِ ابْنِ عَبَّاسٍ، قَالَ: اغْتَسَلَ بَعْضُ أَزْوَاجِ النَّبِيِّ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ فِي جَفْنَةٍ، فَأَرَادَ رَسُولُ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ أَنْ يَتَوَضَّأَ مِنْهُ، فَقَالَتْ: يَا رَسُولَ اللَّهِ إِنِّي كُنْتُ جُنُبًا، فَقَالَ: "إِنَّ المَاءَ لَا يُجْنِبُ". قَالَ أَبُو عِيسَى: هَذَا حَسَنٌ صَحِيحٌ، وَهُوَ قَوْلُ سُفْيَانَ الثَّوْرِيِّ، وَمَالِكٍ، وَالشَّافِعِيِّ. [1]

**ترجمه**: دعبدالله ابن عباس رضي الله عنهمابيان دي چي دنبي كريم صلي الله عليه وسلم يوي بي بي ديو بالتي نه غسل اوكړو او رسول الله صلي الله عليه وسلم دهغي نه په پاتي شوو اوبو اودس كول اوغوښتل بي بي عرض اوكړو اي دالله رسوله زه ناپاكه وم رسول الله صلي الله عليه وسلم اوفرمائيل اوبو ته جنابت نه رسيږي.

امام ترمذي وائي داحديث حسن صحيح دي او همدا دسفيان ثوري او امام مالك او امام شافعي رحمهم الله قول دي.

**دراوي حالات**: ماقبل كي بار بار تير شوي دي.

****************

## ٤٩_ بَابُ مَا جَاءَ أَنَّ الْمَاءَ لَا يُنَجِّسُهُ شَيْءٌ

## اوبه په هيڅ شي نه پليږي

٦٦_ حَدَّثَنَا هَنَّادٌ، والحَسنُ بن عليّ الخَلالُ، وَغَيْرُ وَاحِدٍ، قَالُوا: حَدَّثَنَا أَبُو أُسَامَةَ، عَنِ الوَلِيدِ بْنِ كَثِيرٍ، عَنْ مُحَمَّدِ بْنِ كَعْبٍ، عَنْ عُبَيْدِ اللَّهِ بْنِ عَبْدِ اللَّهِ بْنِ رَافِعِ بْنِ خَدِيجٍ، عَنْ أَبِي سَعِيدٍ الخُدْرِيِّ، قَالَ: قِيلَ: يَا رَسُولَ اللَّهِ أَنَتَوَضَّأُ مِنْ بِئْرِ بُضَاعَةَ وَهِيَ بِئْرٌ يُلْقَى فِيهَا الحِيَضُ وَلُحُومُ الكِلَابِ وَالنَّتْنُ، فَقَالَ رَسُولُ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ: "إِنَّ المَاءَ طَهُورٌ لَا يُنَجِّسُهُ شَيْءٌ". قَالَ أَبُو عِيسَى: هَذَا حَسَنٌ، وَقَدْ جَوَّدَ أَبُو أُسَامَةَ هَذَا الحَدِيثَ، فَلَمْ يَرْوِ أَحَدٌ حَدِيثَ أَبِي سَعِيدٍ فِي بِئْرِ بُضَاعَةَ

---

[1] سنن ابي داود/ الطهارة ٣٥ (٦٨) سنن النسائي/المياه١ (٣٢٦) (بلفظ "لاينجسه شئ" ٣٣ (٣٧٠، ٣٧١) (تحفة الأشراف: ٦١٠٣) مسند احمد (١/٢٣٣) سنن الدارمي/الطهارة ٥٧ (٧٦١)

أَحْسَنَ مِمَّا رَوَى أَبُو أُسَامَةَ. وَقَدْ رُوِيَ هَذَا الْحَدِيثُ مِنْ غَيْرِ وَجْهٍ عَنْ أَبِي سَعِيدٍ. وَفِي الْبَابِ عَنْ ابْنِ عَبَّاسٍ، وَعَائِشَةَ. [1]

**ترجمه** : دابوسعيدخدري رضي الله عنه بيان دي فرماني چي يو كس عرض اوكړو اي دالله رسوله ايا مونږ دبضاعه نوم كوهي نه اودس كولي شو؟اوحال دادي هغه يو داسي كوهي وو په كوم كي چي دزنانوو دبيمارۍ ناپاكه كپړي اود سپو غوښي او بدبوداره څيزونه پراته وو؟ رسول الله صلي الله عليه وسلم اوفرمائيل اوبه يو پاك څيز دي دي لره هيڅ يو شي نشي پليتولي

امام ترمذي وائي دا حديث حسن دي

دابوسعيد خدري داحديث چي په څومره بهتر سند سره اسامه نقل كړي دي بل چا داسي نه دي نقل كړي

داحديث په يو څو نورو سندونو هم دابوسعيد خدري رضي الله عنه نه مروي دي، او په دي باب كي دابن عباس او عائشه رضي الله عنها نه هم احاديث وارد دي.

**تشريح** : په دي مسئله كي اختلاف دي چي اوبه په وقوع دنجاست پليتيږي او كنه؟ په دي باره كي دعلماؤ دري مذاهب دي

(۱) اولني مذهب دامام ابو حنيفه دي دهغه په نزد ماء قليل په وقوع دنجاست پليتيږي اگر كه په اوصاف ثلاثه كي يي كوم وصف متغير شوي نه وي او ماء كثير په وقوع دنجاست نه پليتيږي چي څو پوري په اوصاف ثلاثه كي ددي كوم وصف بدل شوي نه وي دقلت او كثرت اعتبار په رائي دمبتلي به دي

**اولني دليل** دزير بحث باب نه پس په دريم باب كي دابو هريره رضي الله عنه روايت دي چي "لايبولن احدكم في الماء الدائم" په دي حديث كي مذكور دي چي نبي كريم صلي الله عليه وسلم په ولاړو اوبو كي دمتيازو كولو نه منع فرمائيلي ده ددينه معلومه شوه چي ماء قليل په وقوع دنجاست پليتيږي اگر كه اوصاف ثلاثه يي بدل شوي نه وي.

**دويم دليل**: په ترمذي كي دابوهريره رضي الله عنه روايت دي چي بعضي صحابه كرامو دنبي كريم صلي الله عليه وسلم نه سوال اوكړو مونږ كله كله په سمندر كي سفر كوو او زمونږ سره اوبه كمي وي كه په دي باندي اودس اوكړو نو دڅكلو دپاره زمونږ سره نه پاتي كيږي نو ايا

---

[1] سنن ابي داود/ الطهارة ۳۴ (۶۶) سنن النسائي/ المياه ۲ (۳۲۷، ۳۲۸) (تحفة الأشراف: ۴۱۴۴) مسند احمد (۳/۱۵، ۱۶، ۳۱، ۸۶).

مونږ دسمندر په اوبو اودس کولي شو؟ رسول الله ورته په جواب کي اوفرمائيل چي دسمندر اوبه استعمالولي شي. ددينه معلومه شوه چي ماء کثير په وقوع دنجاست نه پليتيږي ترڅو پوري چي اوصاف ثلاثه بدل شوي نه وي ځکه چي په سمندر کي په يقيني طور ځناور هم مره کيږي

**دريم دليل:** په ترمذي کي حديث دمستيقظ دي دابوهريره رضي الله عنه نه مروي دي "اذا استيقظ احدکم من الليل فلا يدخل يده في الاناء" الخ. ددينه معلومه شوه چي ماء قليل په وقوع دنجاست پليتيږي خو چي په اوصاف ثلاثه کي کوم وصف بدل شوي نه وي

**دليل رابع:** په طحاوي کي حديث دولوغ الکلب دي دابوهريره رضي الله عنه نه مروي دي چي نبي کريم صلي الله عليه وسلم اوفرمائيل کله چي سپي په يو لوښي کي خوله اووهي نو دا لوښي په ښه شان سره پاك کړئ او بيا يي استعمال کړئ ددينه معلومه شوه چي ماء قليل په وقوع دنجاست پليتيږي خو چي په اوصاف ثلاثه کي کوم وصف بدل شوي نه وي.

په دي باره کي **دويم مذهب دامام مالک دي** دهغه په نزد اوبه په وقوع دنجاست نه گنده کيږي قليل وي او که کثير وي مگر په دي شرط چي په اوصاف ثلاثه کي به کوم وصف بدل شوي نه وي.

**دليل دامام مالک:** دحديث الباب نه دي کوم چي دابوسعيد خدري نه مروي دي چي په مدينه منوره کي دبير بضاعه په نوم يو کوهي وو ددي کوښي باره کي صحابه کرامو دمسئلي تپوس اوکړو چي ايا مونږ ددي په اوبو اودس کولي شو په داسي حال کي چي په دي کي به هر قسم گندگياني موجود وي نورسول الله اوفرمائيل "ان الماء طهور لاينجسه شيء" يعني اوبه پاکي دي او هيڅ يو شي يي گنده کولي نشي ددينه معلومه شوه چي اوبه په وقوع دنجاست نه گنده کيږي لږي وي او که ډيري وي

علماؤ ددينه دا جواب کړي دي چي په "ان الماء" کي الف لام عهد خارجي دي او مراد ورنه عامي اوبه نه دي بلکه د بير بضاعه اوبه مراد دي دا کوهي په رغرنده زمکه کي جوړ وو صحابه کرامو ته دا وهم عارض شو چي ددي کوهي ځلورو طرفونو ته نجاستونه پراته دي او دباران وغيره په وجه به دا گندگي دي کوهي ته پريوځي نورسول الله ورته په جواب کي اوفرمائيل چي صرف دوهم او خيال په وجه اوبه نه پليتيږي

دويم جواب مذکوره سوال دبير بضاعه دپاکيدونه پس شوي دي او هغه داسي چي صحابه کرامو ته دا وهم عارض شو اگر چي گندگياني ددي کوهي نه ويستلي شوي دي ليکن پليتي اوبه دکوهي په ديوالونو پوري لگيدلي دي او خاوري هم جذب کړي دي نو ايا دا به بيا هم پاك شوي وي رسول الله ددي په جواب کي اوفرمائيل په داسي طريقه اوبه نه گنده کيږي چي بيا

پاکي نشي لکه چي رسول الله ابوهريره ته په يو موقعه کي اوفرمائيل "ان المؤمن لاينجس" يعني مومن نه پليتيږي بلکه ددي معني داده مومن داسي ناپاك نه وي چي بيا پاکيدي نشي

دريم جواب: امام طحاوي وائي بير بضاعه دماء جاري په حکم کي دي او ددي دوه وجي دي يوه وجه داده چي ددي کوهي په اوبوبه زمکي او باغونه په کثرت سره سيراب کيدل، دويمه وجه داده چي ددي کوهي اوبه حقيقتاً دنهر پشان جاري دي.

دريم مذهب دامام شافعي او امام احمد دي ددوئ په نزد ماء قليل په وقوع دنجاست گنده کيږي مطلقا برابره خبره ده چي په اوصاف ثلاثه کي کوم وصف بدل شوي وي او کنه وي او ماء کثير په وقوع دنجاست نه گنده کيږي ترڅو پوري چي په اوصاف ثلاثه کي کوم وصف بدل شوي نه وي ددوئ په نزد دقلت او کثرت مقدار تخفيفي دي په داسي شان سره که اوبه قلتين وي نو دا به کثير گنړلي شي او که ددينه کمي وي نو قليل به وي.

دليل: دوئ ددي باب د دويم حديث نه استدلال کوي کوم چي دعبدالله بن عمر رضي الله عنهما نه مروي دي چي يو خل درسول الله صلي الله عليه وسلم نه دځنگل دکوهيانو او حوضونو باره کي تپوس اوکړي شو چي هلته عموما دحفاظت څه انتظام نه وي ځناور او هر قسم ځاروي ددينه اوبه څکي نوايا دا پاك دي او که ناپاکه دي رسول الله په جواب کي اوفرمائيل چي کله اوبه قلتين وي نو دا به نه پليتيږي.

جواب: صاحب دهدايه وائي د "لم يحمل الخبث" معني داده چي کله اوبه قلتين وي نو دا نجاست برداشت کولي نشي يعني گنده کيږي.

دويم جواب: دا روايت ضعيف دي ځکه چي په دي کي اضطراب دي سنداً او مکنا متنا او مصداقا

**اضطراب في السند:** ددي حديث په سند کي څلور قسمه اضطراب موجود دي

(۱) په بعضي سندونو کي دمحمد بن اسحاق استاذ محمد بن جعفر دي او په بعضي سندونو کي دده داستاذ نوم زهري دي

(۲) په بعضي سندونو کي محمد بن اسحاق په ځاي وليد دي او بيا د وليد په استاذ کي اختلاف دي په بعضي سندونو کي دمحمد بن جعفر دي او په بعضو کي حماد بن جعفر دي.

(۳) دمحمد بن جعفر په استاذ کي اختلاف دي په بعضو سندونو کي دده نوم عبدالله دي او په بعضو کي عبيدالله دي.

(۴) بعضي راويانو داحديث مرفوع بيان کړي دي او بعضو موقوف بيان کړي دي.

**اضطراب في المتن:** په متن کي اضطراب داسي دي چي په دي حديث کي پنځه قسمه الفاظ منقول دي (١) اذا کان الماء قلت (٢) اذا کان الماء قلتين (٣) اذا کان الماء قدر قلتين (٤) اذا کان الماء ثلاث قلال (٥) اذا کان الماء اربعين قلة.

**اضطراب في المعنى:** دقلة يوه معني قامة الرجل دي دويمه معني راس الجبل دي، دريمه معني منګي دي که اولني دوه معني مراد کړي شي نو بيا ددينه ماء کثير جوړيږي.

**اضطراب في المصداق:** که بالفرض دا ومنلي شي چي دقلة معني منګي دي ليکن دا متعين نه ده چي دا څنګه منګي دي او څومره لوي دي ځکه چي منګي لوي هم وي او واړه هم وي.

سوال په بعضي روايتونو کي "من قلال هجر" مذکور دي هجر په يمن کي ديوي علاقي نوم دي ددينه معلومه شوه چي دمنګي تعين ثابت دي ځکه چي په حديث کي دهجر مقام منګي مراد دي.

جواب: د "من قلال هجر" زيادت صرف مغيره بن سقلاب ذکر کړي دي او دا منکر الحديث راوي دي.

****************

## ٥٠ـ بَابٌ مِنْهُ آخَرُ

## ددي متعلق يو بل باب

٦٧ـ حَدَّثَنَا هَنَّادٌ، حَدَّثَنَا عَبْدَةُ، عَنْ مُحَمَّدِ بْنِ إِسْحَاقَ، عَنْ مُحَمَّدِ بْنِ جَعْفَرِ بْنِ الزُّبَيْرِ، عَنْ عُبَيْدِ اللَّهِ بْنِ عَبْدِ اللَّهِ بْنِ عُمَرَ، عَنِ ابْنِ عُمَرَ، قَالَ: سَمِعْتُ رَسُولَ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ وَهُوَ يُسْأَلُ عَنِ الْمَاءِ يَكُونُ فِي الْفَلَاةِ مِنَ الْأَرْضِ وَمَا يَنُوبُهُ مِنَ السِّبَاعِ وَالدَّوَابِّ، قَالَ: فَقَالَ رَسُولُ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ: "إِذَا كَانَ الْمَاءُ قُلَّتَيْنِ لَمْ يَحْمِلِ الْخَبَثَ". قَالَ عَبْدَةُ: قَالَ مُحَمَّدُ بْنُ إِسْحَاقَ: الْقُلَّةُ هِيَ: الْجِرَارُ، وَالْقُلَّةُ الَّتِي يُسْتَقَى فِيهَا. قَالَ أَبُو عِيسَى: وَهُوَ قَوْلُ الشَّافِعِيِّ، وَأَحْمَدَ، وَإِسْحَاقَ، قَالُوا: إِذَا كَانَ الْمَاءُ قُلَّتَيْنِ لَمْ يُنَجِّسْهُ شَيْءٌ مَا لَمْ يَتَغَيَّرْ رِيحُهُ أَوْ طَعْمُهُ، وَقَالُوا: يَكُونُ نَحْوًا مِنْ خَمْسِ قِرَبٍ. [1]

---

[1] سنن ابي داود/ الطهارة ٣٣ (٦٣) سنن النسائي/الطهارة ٤٤ (٥٢)، والمياه ٢ (٣٢٩)، سنن ابن ماجه/الطهارة ٧٥ (٥١٧، ٥١٨) (تحفة الأشراف: ٧٣٠٥)، مسند احمد (١/١٢، ٢٦، ٣٨، ١٠٧)، سنن الدارمي/الطهارة ٥٥ (٧٥٨)

**ترجمه** : دعبدالله ابن عمر رضي الله عنهما نه روايت دي فرماني چي درسول الله صلي الله عليه وسلم نه مي اوريدلي دي او دهغو اوبو باره كي ورنه تپوسونه كيدل كومي چي په ميدانونو كي وي ځاروي او ځناور ورته راځي پس ويي فرمانيل كله چي اوبه دوه قلي وي نو هغه ګندګئ لره مؤثر كيدو ته نه پريږدي دي لره دفع كوي. دمحمد بن اسحاق قول دي چي دقلة نه مراد منګي دي، او قله هغه بهوكي ته هم وائي په كومي چي دفصلونو او باغونو اوبه خوركولي شي

امام ترمذي وائي همدا قول دامام شافعي او اسحاق هم دي دوئ وائي كله چي اوبه دوه قلي وي دي لره هيڅ يو شي نجس كولي نشي تر څو پوري چي ددي خوند يا بوئ يا رنګ خراب شوي نه وي او دوئ وائي قله دپنځه مشكونو سره برابروي

**حل لغات**. لم يحملوا : حمّل يحمّل تحميلا ، دباب تفعيل نه معني پورته كول.

ناب ينوب نوبا معني په نمبر نمبر راتلل

**تشريح** : دمحمد بن اسحاق په استاذ كي اختلاف دي چا محمد بن جعفر الزبير ذكر كړي دي اوچا محمد بن جعفر او چا محمد بن عباد بن جعفر ذكر كړي دي او دده استاذ عبيدالله دابن عمر رضي الله عنهما خوي دي او دا عبيدالله عمري نه دي هغه دعمر رضي الله عنه دخوي عاصم نوسي دي اود اعلي درجي ثقه راوي دي.

ناب ينوب نوبا معني په نمبر نمبر راتلل يعني پخپل خپل نمبر كي راځئ يعني دورځي هلته ځاروي اوبو څكلو له راځي او دشپي ځناور.

دقلة معني منګي دي او جرار دجرة جمع ده چي معني يي عام منګي دي برابره خبره ده چي اوبه پكي راوړلي كيږي او كه په كور كي پروت وي په دي وجه ابن اسحاق دويمه جمله استعمال كړي ده چي دلته ورنه مراد هغه منګي دي كوم چي داوبو نه ډكولي شي او په سر راوړلي شي.

دقلة نور معاني هم شته او شارحين دهغه معني ګانو په بيانولو سره په حديث كي داضطراب پيداكولو كوشش كوي دوئ وائي چي دقلة معني دانسان خپه او دغر څوكه هم ده مګر دسوچ كولو خبره ده چي په لغت كي كه ديو لفظ معاني جمع كړي شي نو هيڅ يو لفظ به محكم پاتي نشي او تمام الفاظ به مشتبه شي په دي وجه دا طريقه درسته نه ده متكلم چي لفظ استعمالول ددي سياق او سباق په دي خبره دلالت كوي چي په دي كلام كي ددي لفظ دا معني مراد ده.

شوافع او حنابله د اوبو مقدار لره هم اعتبار وركوي او خوروالي لره هم اعتبار وركوي دوه قلي يعني پنځه مشكونه يعني پنځه سوه رطلونه يعني دوه نيم سوه كلو اوبه ددوئ په نزد ماء كثير

Scanned with C

دي او دځلورو طرفونو نه دسلو سلو ګزونو والاحوض ددوئ په نز دحوض ادني درجه ده او دا اندازه دعوامي سهولت دپاره مقرر کړي شوي ده.

**دراوي حالات** : د ابن عمر رضي الله عنهما حالات ما قبل بابونو کي تير شوي دي

****************

## ٥١_ بَابُ مَا جَاءَ فِي كَرَاهِيَةِ الْبَوْلِ فِي الْمَاءِ الرَّاكِدِ

## په ولاړو اوبو کي دمتيازو کولو د کراهت بيان

٦٨_ حَدَّثَنَا مَحْمُودُ بْنُ غَيْلَانَ، حَدَّثَنَا عَبْدُ الرَّزَّاقِ، عَنْ مَعْمَرٍ، عَنْ هَمَّامِ بْنِ مُنَبِّهٍ، عَنْ أَبِي هُرَيْرَةَ، عَنِ النَّبِيِّ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ، قَالَ: "لَا يَبُولَنَّ أَحَدُكُمْ فِي الْمَاءِ الدَّائِمِ ثُمَّ يَتَوَضَّأُ مِنْهُ".

قَالَ أَبُو عِيسَى: هَذَا حَسَنٌ صَحِيحٌ، وَفِي الْبَابِ عَنْ جَابِرٍ. [1]

**ترجمه** : دابوهريره رضي الله عنه نه روايت دي فرمائي چي نبي کريم صلي الله عليه وسلم فرمايلي دي په تاسو کي دي هيڅ يو کس په ولاړو اوبو کي متيازي نه کوي چي بيا ورنه اودس اوکړي.

امام ترمذي وائي دا حديث حسن صحيح دي او په دي باب کي دجابر رضي الله عنه نه هم حديث وارد دي.

**حل لغات** : لا يبولن : بال يبول بولا معني متيازي کول ، مبال دمتيازو نالئ دبول جمع ابوال راځي دذکر جمع ذکور راځي معني دنارينه شرمګاه ده.

**تشريح** : راکد معني اودرولي شوي دي يعني نه بهيدونکي او دائم هميشه موجود دي يعني نه بهيدونکي پس ددواړو الفاظو مفهوم يو دي ددي مقابل ماء جاري دي نبي کريم صلي الله عليه وسلم په نه بهيدونکو اوبو کي دمتيازو کولو نه منع فرمائيلي ده او که په روانو اوبو کي څوك متيازي اوکړي دا شرعا ممنوع نه دي او په ولاړو اوبو کي دمتيازوکولو نه ممانعت په دي وجه راغلي دي چي دا اوبه کچري لږي وي نو په متيازو کولو سره پليتي شي چي نه به بيا دده په کار راتلي شي او که ډيري وي نو اګر چي پليتيږي نه مګر په دي کي متيازي کول

---

[1] صحيح البخاري/الوضوء ٦٨ (٢٣٩) . صحيح مسلم/الطهارة ٢٨ (٢٨٢) . سنن ابي داود/ الطهارة ٣٦ (٦٩) . سنن النسائي/الطهارة ٣٤ (٥٨) . و١٣٩ (٢٢١) . و١٤٠ (٢٢٢) . سنن ابن ماجه/الطهارة ٢٥ (٣٤٣) . (تحفة الأشراف : ١٤٧٢٢) . مسند احمد (٢/٣١٦، ٣٦٢، ٣٦٤) . سنن الدارمي/ الطهارة ٥٤ (٧٥٤)

دنظافت خلاف وي چي بيا دي كله ددي اوبو نه اودس كوي نو په زړه كي به يي څه تيريږي شريعت خو دنظافت حكم كړي دي او نظافت يي نيم ايمان ګرځولي دي.

**دراوي حالات** : د ابو هريره رضي الله عنه حالات ما قبل بابونو كي تير شوي دي.

**************

## ٥٢ـ بَابُ مَا جَاءَ فِي مَاءِ الْبَحْرِ أَنَّهُ طَهُورٌ

## بيان ددي خبري چي سمندر اوبه پاكي دي

٦٩ـ حَدَّثَنَا قُتَيْبَةُ، عَنْ مَالِكٍ. ح وحَدَّثَنَا الأَنْصَارِيُّ إِسْحَاق بْنُ مُوسَى، حَدَّثَنَا مَعْنٌ، حَدَّثَنَا مَالِكٌ، عَنْ صَفْوَانَ بْنِ سُلَيْمٍ، عَنْ سَعِيدِ بْنِ سَلَمَةَ مِنْ آلِ ابْنِ الأَزْرَقِ، أَنَّ الْمُغِيرَةَ بْنَ أَبِي بُرْدَةَ وَهُوَ مِنْ بَنِي عَبْدِ الدَّارِ أَخْبَرَهُ، أَنَّهُ سَمِعَ أَبَا هُرَيْرَةَ، يَقُولُ: سَأَلَ رَجُلٌ رَسُولَ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ فَقَالَ: يَا رَسُولَ اللَّهِ إِنَّا نَرْكَبُ الْبَحْرَ وَنَحْمِلُ مَعَنَا الْقَلِيلَ مِنَ الْمَاءِ، فَإِنْ تَوَضَّأْنَا بِهِ عَطِشْنَا، أَفَنَتَوَضَّأُ مِنْ مَاءِ الْبَحْرِ ؟ فَقَالَ رَسُولُ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ: " هُوَ الطَّهُورُ مَاؤُهُ الْحِلُّ مَيْتَتُهُ ". قَالَ: وَفِي الْبَابِ عَنْ جَابِرٍ، وَالْفِرَاسِيِّ. قال أبو عيسى: هَذَا حَسَنٌ صَحِيحٌ، وَهُوَ قَوْلُ أَكْثَرِ الْفُقَهَاءِ مِنْ أَصْحَابِ النَّبِيِّ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ، مِنْهُمْ أَبُو بَكْرٍ، وَعُمَرُ، وَابْنُ عَبَّاسٍ لَمْ يَرَوْا بَأْسًا بِمَاءِ الْبَحْرِ، وَقَدْ كَرِهَ بَعْضُ أَصْحَابِ النَّبِيِّ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ الْوُضُوءَ بِمَاءِ الْبَحْرِ، مِنْهُمْ ابْنُ عُمَرَ، وَعَبْدُ اللَّهِ بْنُ عَمْرٍو، وَقَالَ عَبْدُ اللَّهِ بْنُ عَمْرٍو: هُوَ نَارٌ. [1]

**ترجمه** : دبني عبدالدار قبيلي يو خوان چي نوم يي مغيره دي د ابوهريره رضي الله عنه نه روايت نقل كوي چي دبني مدلج قبيلي يو كس دنبي كريم صلي الله عليه وسلم نه سوال اوكړو چي مونږ په سمندر كي سفر كوو او دخان سره مو دڅكلو دپاره لږي اوبه اخستلي وي نو اوس كه مونږ په دي اوبو اودس اوكړو نو دتندي نه به مړه شو څكه چي دسمندر اوبه دڅكلو قابل نه دي نو اياداسي وخت كي مونږ دسمندر په اوبو اودس كولي شو؟

نبي كريم صلي الله عليه وسلم اوفرمائيل دسمندر اوبه پاكونكي دي او ددي مرداره حلاله ده.

**حل لغات** عطشنا: عطش يعطش د ضرب يضرب باب نه ماضي متكلم دى صفت يي

[1] سنن ابي داود/ الطهارة ٤١ (٨٣) سنن النسائي/الطهارة ٤٧ (٥٩) والمياه ٥ (٣٣٢) والصيد ٣٥ (٤٣٥٥) سنن ابن ماجه/الطهارة ٣٩ (٣٨٦) (تحفة الأشراف : ١٤٦١٨) موطا امام مالك/الطهارة ٣ (١٢) مسند احمد (٢/٢٣٧، ٣٦١، ٣٧٨) سنن الدارمي/الطهارة ٥٣ (٧٥٦)

عطشان راخي په معني د تګي کيدو سره.

**تشريح**: په دي مسئله کي اختلاف دي چي په سمندري خناورو کي کوم يو حلال دي په دي باره کي دعلماؤ څلور مذاهب دي اولني مذهب دامام ابو حنيفه دي دده په نزد په سمندري خناورو کي دمهي نه علاوه نور ټول حرام دي او ددي مسئلي دپاره ددي قراني ايت "ويحرم عليهم الخبائث" نه استدلال کوي چي دخبائث نه مراد هر هغه مخلوق دي دکوم نه چي انساني طبيعت نفرت کوي او دمهي نه علاوه تمام سمندري خناورو نه انساني طبيعت نفرت کوي ددينه معلومه شوه چي دمهي نه علاوه تمام سمندري خناور په خبائث کي داخل دي او خبائث خو الله تعالي حرام کړي دي.

دويم دليل: ابو داود کي دعبدالله ابن عمر رضي الله عنه روايت دي "احلت لنا ميتتان ودمان" الخ. يعني ارشاد نبوي دي زمونږ دپاره دوه مرداري حلالي دي يوه دسمندر او يو ملخ او دوهويني زمونږ دپاره حلالي دي يعني کبد او طحال ددينه معلومه شوه چي ددينه علاوه نور تمام خناور "انما حرم عليكم الميتة" په عموم کي داخل دي.

دريم دليل: دنبي کريم صلي الله عليه وسلم په دور کي او دهغه د دور نه پس دصحابه کرامو په دور کي يو خل هم دهيڅا نه دمهي نه علاوه دبل سمندري خناور خوړل ثابت نه دي او که لږ ګنجائش هم موجود وي نو کم از کم دجواز دبيان دپاره به ضرور استعمال شوي وي.

دويم مذهب دامام شافعي دي: دده په نزد ديو روايت مطابق ضفدع (چيندخ) نه علاوه نور تمام خناور حلال دي او د دويم روايت مطابق هر هغه خناور دکوم نظير چي په اوچي کي حرام وي هغه په سمندر کي هم حرام دي او دکوم نظير چي په اوچي کي حلال وي هغه به حلال وي.

دريم مذهب دامام مالك دي: دهغه په نزد د خنزير نه علاوه نورټول خناور حلال دي او دخنزير استثني دقراني نص په وجه کوي.

څلورم مذهب دامام احمد دي: دده په نزد تمام سمندري خناور حلال دي مګر علاوه دضفدع، خنزير، او تمساح نه دخنزير استثني دقراني نص په وجه کوي او د ضفدع استثني دحديث په وجه کيږي د تمساح استثني دقياس په وجه کيږي (او باقي دلائل دائمه ثلاثه مشترك دي).

اولني دليل: قراني دي دي چي په ايت "احل لكم صيد البحر وطعامه" کي صيد لفظ عام دي ددينه معلومه شوه چي هر بحري خناور حلال دي.

جواب: ددي ايت لفظ استدلال هله صحيح وي چي صيد په معني دصيد مراد وي او اضافت داستغراق دپاره تسليم شوي وي او حال دا دي چي مصدر دمفعول په معني اخستل مجاز دي او مجازي معني بغير دضرورت نه درسته نه وي ددينه معلومه شوه چي دلته صيد مصدر دي

او سياق دكلام په دي باندي قرينه ده څکه چي دلته دهغه افعالو ذکر دي کوم چي دمحرم دپاره جائز يا ناجائزوي ددينه صرف دومره ثابته شوه چي بحري ښکار کول دمحرم دپاره جائزدي او ددينه دخوراك حلت نه ثابتيږي.
دويم دليل دزير بحث باب روايت دي "الحل ميتته" په دي حديث كي مطلقا مذكور دي چي سمندري مرداره حلال ده ددينه معلومه شوه چي هر بحري ميته حلاله ده البته اشياء ثلاثه به مستثني وي.
جواب: په مذكوره حديث كي د ميتة په اضافت كي اعتراض دي چي دا داستغراق دپاره نه دي بلكه دعهد خارجي دپاره دي او معني داده چي دسمندرهغه خاص مرداره وي دكومي حلت چي په نص ثابت وي او هغه سمك دي.
دريم دليل: په بخاري كي دعنبر حديث دي چي "فالقي لنا البحر دابة" يعني صحابه كرامو پنځلس ورځو پوري يو سمندري څناور خوړلو چي نوم يې عنبر دي په دي حديث كي د دابة لفظ نه معلومه شوه چي هغه څناور دمهي نه علاوه وو.
جواب: په بخاري كي په يو روايت كي الفاظ دي "فالقي البحر حوتا ميتا" ددينه معلومه شوه چي په مذكوره حديث كي د دابة نه مراد مهي دي.
**دراوي حالات**: د ابو هريره رضي الله عنه حالات ما قبل بابونو كي تير شوي دي.

****************

## ٥٣ـ بَابُ مَا جَاءَ فِي التَّشْدِيدِ فِي الْبَوْلِ

## د متيازو متعلق دوعيد بيان

٧٠ـ حَدَّثَنَا هَنَّادٌ، وَقُتَيْبَةُ، وَأَبُو كُرَيْبٍ، قَالُوا: حَدَّثَنَا وَكِيعٌ، عَنِ الأَعْمَشِ، قَالَ: سَمِعْتُ مُجَاهِدًا يُحَدِّثُ، عَنْ طَاوُسٍ، عَنِ ابْنِ عَبَّاسٍ، أَنَّ النَّبِيَّ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ مَرَّ عَلَى قَبْرَيْنِ، فَقَالَ: "إِنَّهُمَا يُعَذَّبَانِ، وَمَا يُعَذَّبَانِ فِي كَبِيرٍ: أَمَّا هَذَا فَكَانَ لَا يَسْتَتِرُ مِنْ بَوْلِهِ، وَأَمَّا هَذَا فَكَانَ يَمْشِي بِالنَّمِيمَةِ". قَالَ أَبُو عِيسَى: وَفِي البَابِ عَنْ أَبِي هُرَيْرَةَ، وَأَبِي مُوسَى، وَعَبْدِ الرَّحْمَنِ بْنِ حَسَنَةَ، وَزَيْدِ بْنِ ثَابِتٍ، وَأَبِي بَكْرَةَ. قال أبو عيسى: هَذَا حَسَنٌ صَحِيحٌ، وَرَوَى مَنْصُورٌ هَذَا الحَدِيثَ، عَنْ مُجَاهِدٍ، عَنِ ابْنِ عَبَّاسٍ وَلَمْ يَذْكُرْ فِيهِ عَنْ طَاوُسٍ، وَرِوَايَةُ الأَعْمَشِ أَصَحُّ، قَالَ: وسَمِعت أَبَا بَكْرٍ مُحَمَّدَ بْنَ أَبَانَ

الْبَلْخِيَّ مُسْتَمْلِي وَكِيعٍ، يَقُولُ: سَمِعْتُ وَكِيعًا، يَقُولُ: الأَعْمَشُ أَحْفَظُ لإِسْنَادِ إِبْرَاهِيمَ مِنْ مَنْصُورٍ. (1)

**ترجمه** : دعبدالله ابن عباس رضي الله عنهما نه روايت دي چي درسول الله صلي الله عليه وسلم تيريدل يو خل په دوه قبرونو باندي اوشول ويې فرمانيل ددي دواړو قبرونو والا په عذاب كي مبتلا دي او په كومه لويه ګناه كي ورته عذاب نه وركولي كيږي (چي بچ كيدل ورته مشكل وي) دا يو چي وو ده خو به دخپلو متيازو نه خان نه بچ كولو او دي بل به چغلي كوله
امام ترمذي واني دا حديث حسن صحيح دي، په دي باب كي دابوهريره، دابو موسي عبدالرحمن بن حسنه، زيد بن ثابت، او ابوبكره رضي الله عنهم نه هم احاديث وارد دي.

**حل لغات** : قبرين د القبر تثنيه ده معني هغه خاي چرته چي مړي دفن كولي شي . قبر يقبر قبرا مقبرا معني مړي دفن كول، اقبره معني قبر ته يي داخل كړو.

**تشريح** : تشديد په معني دسختي دي او مراد ورنه وعيد دي او دمتيازو نه انساني متيازي مراد دي او دنورو حيواناتو دمتيازو حكم وړاندي راروان دي دانسان متيازي بالاجماع ناپاكي دي او نجاست غليظه دي داسي ګندګي چي د درهم نه كمه وي معاف ده او چي د درهم په مقدار يا ددينه زياته وي معاف نه ده پس هر چا لره دخپلو متيازو نه دخان ساتلو فكر كول پكار دي كه په جامو متيازي اولګي او په مقدار د درهم وي نو مونځ ورباندي نه كيږي هر چا لره پكار دي چي دمتيازو نه پس لوټه استعمال كړي او يا د استنجاء كاغذ استعمال كړي او يا لنګ دخان نه جدا اوباسي او يا ښه استبراء اوكړي او اوبه استعمال كړي.

دبخاري په روايت كي د "ومايعذبان في كبير" نه پس ثم قال بلي هم راغلي دي يعني ولي نه دوي ته په يوه لويه خبره كي عذاب وركولي شي دا دواړه خبري په داسي شان جمع شوي دي چي دعمل په اعتبار دواړه معمولي خبري دي دمتيازو نه خان ساتل څه مشكل دي او په چغلي كي څه فائده ده مګر دنتيجي په اعتبار دواړه درني خبري دي كه دمتيازو نه څوك خان اونه ساتي نو ټول مونځونه به يي برباد شي او چغلي دفساد سبب دي په دي باندي د دين جنازه اوخي.
په مذكوره حديث كي يوه قصه بيان شوي ده الخ....
سوال: ايا دا دواړه قبرونه دمسلمانانو وو او كه دكافرانو وو

---

(1) صحيح البخاري/الوضوء ٥٥ (٢١٦) و٥٦ (٢١٨) والجنائز ٨١ (١٣٦١) و٨٨ (١٣٧٨) والأدب ٤٦ (٦٠٥٢) و٤٩ (٦٠٥٥) صحيح مسلم/الطهارة ٣٤ (٢٩٢) سنن ابي داود/ الطهارة ١١ (٢٠) سنن النسائي/الطهارة ٢٧ (٣١) والجنائز ١١٦ (٢٠٧٠) سنن ابن ماجه/الطهارة ٢٦ (٣٤٧) (تحفة الأشراف : ٥٧٤٧) مسند احمد (١/٢٢٥) سنن الدارمي/ الطهارة ٦١ (٧٦٦)

جواب په دي كي دعلماؤ دوه اقوال دي اول قول دادي چي دا قبرونه دكافرانو دي، دويم قول دادي دادمسلمانانو قبرونه وو او همدا قول په دريو وجو راجح دي ، اوله وجه داده ارشاد نبوي دي "ومايعذبان في كبير" كچري دوئ كافران وي نو دوئ ته به دكفر په وجه عذاب وركولي كيدو خكه چي كفر اكبر الكبائر دي

دويم وجه داده په مسند احمد كي دي چي دصحابه كرامو نه رسول الله سوال اوكړو "من دفنتم اليوم هاهنا" يعني نن مو دلته څوك دفن كړي دي نو صحابه كرام چي څوك دفن كوي هغه ضرور مسلمان وي

دريمه وجه داده رسول الله صلي الله عليه وسلم دكجوري يوه لختـه راماته كړه او په دي قبرونو يي كيخوده او بيا يي اوفرمائيل ترڅو پوري چي په دي لختـه كي رطوبت وي ترهغي به ددوئ په عذاب كي تخفيف وي او دكافرانو باره كي ارشاد الهي دي "لايخفف عنهم العذاب".

سوال رسول الله فرمائيلي دي "ومايعذبان في كبير" اوحال دادي چي نميمه ګناه كبيره ده.

جواب دلته كبير په معني دمشكل وي معني داده چي دكوم شي په وجه دوئ ته عذاب وركولي كيږي ددينه ځان ساتل څه مشكل كار نه وو.

سوال په بعضي روايتونو كي دنميمه په ځاي دغيبت ذكر دي او دا دواړه جداجدا څيزونه دي خكه چي دغيبت معني "ذكر العيب علي وجه الغيب" ده. او دنميمه معني نقل الحديث علي جهة الفساد. ده.

جواب دنميمه اوغيبت مينځ كي نسبت دعموم خصوص من وجه دي او چرته چي نسبت دعموم خصوص من وجه وي هلته دري مادي پكار وي يوه ماده اجتماعي پكار ده او دوه مادي افتراقي پكاردي ماده اجتماعي داده بعضي مقام داسي وي چرته چي غيبت او نميمه دواړه جمع كيږي يعني ذكرالعيب علي وجه الغيب به هم وي او علي جهت فساد به هم وي، اولنئ افتراقي ماده داده يو مقام به داسي وي چي هلته به غيبت وي ليكن نميمه به نه وي يعني ذكرالعيب علي جهة الغيب به وي ليكن علي وجه الفساد به نه وي. دويمه افتراقي ماده داده چي يو مقام به داسي وي چي هلته به نميمه وي خو غيبت به نه وي يعني نقل الحديث علي جهة الفساد به وي ليكن علي وجه الغيب به نه وي

سوال اهل بدعت بريلويانو دزيربحث حديث نه استدلال كړي دي چي داولياؤ الله په قبرونو ګلان اچول جائزدي ايا دا استدلال درست دي؟

جواب (۱) دا استدلال غلط دي خكه چي دا دنبي معجزه ده خكه چي دا دعقل خلاف ده او هغه داسي چي مقصود نبوي دا وو په دي لختو كي رطوبت ددېره وخته پوري وي ترڅو به په عذاب كي تخفيف وي او دعقل تقضاداده چي ددېر وخته پوري درطوبت ساتلو دپاره قطع وي شق نه

وي او قاعده داده چي کوم څيز عقل خلاف وي هغه پخپل مورد کي بند وي بيا حصر په دوه قسمه دي يو حصر علي الذات دي يعني دا کار صرف دنبي خصوصيت دي ځکه چي هغه ته دوحي په ذريعه خودلي شوي دي چي دا دوه قبرونو والاپه عذاب کي مبتلا دي او دلختو ايخودلو تدبير ورته هم دوحي په ذريعه خودلي شوي دي او په کوم بل څيز دا معلوميدي نشوه، دويم حصر علي النوع دي يعني چي کوم څيز ورباندي رسول الله ايخودلي دي هم هغه څيز به ايخودلي کيږي يعني ذکجوري لختي ګلان پکي دکوم خاي نه راغلي دي.

جواب نمبر (۲) ددي حديث نه داولياؤ په قبرونو دګلانو اچولو دپاره استدلال کول داولياؤ پشان کي ګستاخي لره مستلزم وي ځکه چي رسول الله دمعذب ګنړلو په فکر کي په دوی باندي لختي ايخودلي وي نو ايادوئ اولياء الله لره معذب ګنړي؟ که معذب يي ګنړي نو دا خو ګستاخي دد او که معذب يي نه ګنړي نو بيا خو دحديث مطابق عمل اونشو

**د راوي حالات**: د ابن عباس رضي الله عنهما حالات په ماقبل ابوابو کي تير شوي دي.

***************

## ٥٤_ بَابُ مَا جَاءَ فِي نَضْحِ بَوْلِ الْغُلَامِ قَبْلَ أَنْ يَطْعَمَ

**دداسي ماشوم په متيازو اوبه پونه کول کافي دي چي خوراک يي لا شروع نه وي کړی**

**٧١_ حَدَّثَنَا قُتَيْبَةُ، وَأَحْمَدُ بْنُ مَنِيعٍ، قَالَا: حَدَّثَنَا سُفْيَانُ بْنُ عُيَيْنَةَ، عَنِ الزُّهْرِيِّ، عَنْ عُبَيْدِ اللَّهِ بْنِ عَبْدِ اللَّهِ بْنِ عُتْبَةَ، عَنْ أُمِّ قَيْسٍ بِنْتِ مِحْصَنٍ، قَالَتْ: "دَخَلْتُ بِابْنٍ لِي عَلَى النَّبِيِّ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ لَمْ يَأْكُلِ الطَّعَامَ، فَبَالَ عَلَيْهِ، فَدَعَا بِمَاءٍ فَرَشَّهُ عَلَيْهِ". قَالَ: وَفِي الْبَابِ عَنْ عَلِيٍّ، وَعَائِشَةَ، وَزَيْنَبَ، وَلُبَابَةَ بِنْتِ الْحَارِثِ وَهِيَ أُمُّ الْفَضْلِ بْنِ عَبَّاسِ بْنِ عَبْدِ الْمُطَّلِبِ، وَأَبِي السَّمْحِ، وَعَبْدِ اللَّهِ بْنِ عَمْرٍو، وَأَبِي لَيْلَى، وَابْنِ عَبَّاسٍ. قَالَ أَبُو عِيسَى: وَهُوَ قَوْلُ غَيْرِ وَاحِدٍ مِنْ أَهْلِ الْعِلْمِ مِنْ أَصْحَابِ النَّبِيِّ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ وَالتَّابِعِينَ وَمَنْ بَعْدَهُمْ، مِثْلِ أَحْمَدَ، وَإِسْحَاقَ، قَالُوا: يُنْضَحُ بَوْلُ الْغُلَامِ وَيُغْسَلُ بَوْلُ الْجَارِيَةِ، وَهَذَا مَا لَمْ يَطْعَمَا، فَإِذَا طَعِمَا غُسِلَا جَمِيعًا.** [1]

---

[1] صحيح البخاري/الوضوء ٥٩ (٢٢٣)، والطب ١٠ (٥٦٩٣)، صحيح مسلم/الطهارة ٣٢ (٢٨٧)، سنن ابي داود/الطهارة ١٣٤ (٣٧٤)، سنن النسائي/الطهارة ١٨٩ (٣٠٣)، سنن ابن ماجه/الطهارة ٧٧ (٥٢٤)، (تحفة الأشراف: ١٨٣٤٢) موطا امام مالک/٣٠ (١١٠)، مسند احمد (٣٥٥/٦، ٣٥٦)، سنن الدارمي/الطهارة ٦٣ (٧٦٤)

**ترجمه** : دام قيس بنت محصن رضي الله عنها نه روايت دي چي ما خپل بچي راواخستلو او نبي کريم صلي الله عليه وسلم ته ورغلم تردغه وخته زما بچي لاخوراك نه وو شروع کړي چي په رسول الله يي متيازي اوکړي نو هغوئ اوبه راوغوښتلي او پخپلو جامو يي داوبو پونه اوکړه امام ترمذي وائي په دي باب کي دعلي، عائشه، زينب، دفضل بن عباس دمور لبابه بنت حارث، ابوالمسيح ، عبدالله بن عمر، ابوليلي، او ابن عباس رضي الله عنهم نه هم احاديث وارد دي.

دصحابه کرامو او دتابعينو او ددوئ نه پس خلقو هم دا قول دي چي دهلك په متيازودي اوبه پونه کړي شي او دجينئ متيازي دي اووينځلي شي. دا حکم دهغه وخته پوري دي ترڅو چي دوئ خوراك شروع کړي نه وي او چي کله خوراك شروع کړي نو بيا بالاتفاق به د دواړو متيازي وينځلي شي.

**تشريح** : مذاهب دفقهاؤ په باره دمتيازو دپئ خوړونکي هلك او جينئ کي

دائمه اربعه په دي خبره اتفاق دي چي د پئ خوړونکي هلك او جينئ متيازي ګنده دي اګر چي بعضي شوافعو او مالکيانو دا قول کړي دي چي دجينئ متيازي نجسي دي او د هلك پاکي دي البته ددي په پاکولو کي اختلاف دي.

داحنافو او مالکيانو په نزد طريقه دتطهير وينځل دي او هيڅ فرق نشته په دوئ کي البته فرق دومره دي که پئ خوړونکي جينئ وي نو ددي متيازي به دمړلو په طريقه وينځل ضروري وي او که هلك وي نو معمولي وينځل ورله کافي دي.

دشوافعو او حنابله په نزد دپئ خوړونکي جينئ دمتيازو پاکولو طريقه وينځل دي او که وهلك وي نو ددي دمتيازو دپاکولو طريقه داوبو پونه کول دي، شوافعو په طريقه دتطهير کي فرق کړي دي ليکن احنافو په دي کي فرق نه دي کړي ليکن په کيفيت کي فرق دي.

داحنافو دليل: حديث دعائشه رضي الله عنها دي "اتباع الماء ياصب الماء" ددي حديثونو تخريج امام مسلم کړي دي او دا په وينځلو دلالت کوي يعني لکه څرنګه چي دجينئ دمتيازو دپاره وينځل ضروري دي دا رنګي دهلك دمتيازو وينځل هم ضروري دي، دا رنګي دجينئ په متيازو کي بحسب الازمنه په تطهير کي هيڅ فرق نشته کومه طريقه دتطهير چي دخوراك شروع کولو نه پس ده هم هغه طريقه دخوراك شروع کولو نه مخکي هم ده لهذا دقياس تقاضاداده چي بحسب الازمنه په طريقه دتطهير کي فرق اونکړي شي چي دهلك په متيازو کي دخوراك شروع کولو نه پس غسل لازمي دي نو دخوراك شروع کولو نه مخکي هم غسل پکار دي اوهمدارنګي په دي خبره اجماع ده چي دخوراك شروع کولو نه پس دهلك او جينئ دمتيازو

په تطهير کي هيڅ فرق نشته البته دقياس تقاضا داده چي دخوراك شروع کولو نه مخکي هم دداړو دمتيازو دتطهير په طريقه کي فرق اونکړي شي

دشوافع او حنبليانو دليل دوئ ددي باب داحاديثو نه استدلال کوي په کومو کي چي دپوني کولو ذکر دي دا دواړه احاديث په دي خبره دلالت کوي چي دماشوم په متيازو داوبو پونه کول دطهارت دپاره کافي وي

جواب نضح او رش کنايه ده دغسل خفيف نه دليل په دي دادي په ترمذي کي دسهل بن حميد رضي الله عنه روايت دي چي په جامه دمزيد لګيدلو په صورت کي د رسول الله صلي الله عليه وسلم نه سوال اوکړي شو چي دا به څنګه پاکولي شي نو وبي فرمائيل "يكفيك ان تاخذ كفا من ماء فتنضح به ثوبك حيث ترى انه اصاب منه".

دټولو علماؤ په دي اتفاق دي چي دلته دنضح معني غسل دي معلومه شوه چي دفصحاء او بلغاء کلام کي نضح دغسل په معني راځي پاتي شوه دا خبره چي په دي څه دليل دي چي رش په معني دغسل خفيف دي نو ددي دليل امام ترمذي په باب ماجاء في غسل دم الحيض من الثوب کي داسماء بنت ابي بکر رضي الله عنها نه نقل کړي دي په هغه حديث کي دا سوال دي چي په کومه جامه دحيضويني اولګي نو دا به څنګه پاکيږي په دي باره کي چي کله سوال اوکړي شو نو نبي کريم صلي الله عليه وسلم اوفرمائيل "حتيه ثم اقرصيه ثم رشيه وصلي فيه" اوګورئ دلته رش په معني دغسل دي

سوال هر کله چي ددواړو متيازي پليتي وي او ددواړووينځل واجب وي نو بيا بلاتاکيد او مع التاکيد فرق سره دذکر کولو څه وجه ده.

جواب ددي ډير وجوهات دي:

(۱) دا فرق دمجازي خصوصيت په وجه دي چي دجينئ په مزاج کي برودت غالب وي او ددي په متيازو کي عفونت زيات وي نو په دي وجه دلته دتاکيدي غسل ضرورت دي او د هلك په مزاج کي حرارت غالب دي او په دي کي عفونت کم وي نو ځکه دلته دغسل خفيف حکم شوي دي

(۲) دجينئ متيازي خوري وري وي او دهلك متيازي داسي نه وي نو ځکه په دواړو کي فرق شوي دي

(۳) په بعضي مسائلو کي شريعت چي کله اوکتل چي بلوي زياته ده نو په هغي کي يي تخفيف اوکړو ځکه چي دجينئ په نسبت په هلك کي بلوي زياته وي ځکه چي دخلقو دخامنو سره محبت زيات وي او مجلس ته يي ددوئ دراوستلو عادت وي او ماشومان ورباندي بيا متيازي کوي نو ځکه په دي حکم کي تخفيف شوي دي په خلاف دحکم دجينئ

فائده: علامه سندي ليکلي دي دهلکانو په سلسله کي انتهاء ادم علیه السلام پوري راځي او دجينکو دسلسلي انتهاء حواء علیها السلام پوري ده او د ادم علیه السلام پیدائش دخاورونه شوي دي خاوره پاکه ده مګر دحواء پیدائش دغوښي او ويني نه شوي دي او غوښه وينه پليته وي نو په دي وجه دهلك په متيازو کي طهارت غالب وي او دجينۍ په متيازو کي نجاست غالب وي ددي غالبيت والاخاصيت په وجه دهلك او دجينۍ په متيازو کي فرق شوي دي او ددينه امام شافعي په بول الغلام من الماء والطين او په بول الجاريه من اللحم والدم تعبير کړي دي.

خلاصه: دامام ابوحنيفه په مزاج کي احتياط دي کله چي دعباداتو په رواياتو کي تعارض راشي نو امام صاحب داحتياط لاره اختياروي او کله چي په معاملات کي تعارض راشي نو دانصاف لاره اختياروي.

**دراوي حالات**: داد عكاشة بن محصن مشهور صحابي خور ده (مبارکفوري) مروي دي چي يوکس (ام قيس) نومي زنانه ته دنکاح پيغام وليږلونوهغې ددې وخته پورې دنکاح کولونه انکار وکړو، ترڅوچي دی هجرت ونه کړي نوده ددی شرط په وجه هجرت وکړو او هلته دتلونه پس ددواړو نکاح وتړلی شوه

***************

## ٥٥_ بَابُ مَا جَاءَ فِي بَوْلِ مَا يُؤْكَلُ لَحْمُهُ

## د حلال ځاړي د متيازو بيان

٧٢_ حَدَّثَنَا الحَسَنُ بْنُ مُحَمَّدٍ الزَّعْفَرَانِيُّ، حَدَّثَنَا عَفَّانُ بْنُ مُسْلِمٍ، حَدَّثَنَا حَمَّادُ بْنُ سَلَمَةَ، حَدَّثَنَا حُمَيْدٌ، وَقَتَادَةُ، وَثَابِتٌ، عَنْ أَنَسٍ، أَنَّ نَاسًا مِنْ عُرَيْنَةَ قَدِمُوا المَدِينَةَ فَاجْتَوَوْهَا، فَبَعَثَهُمْ رَسُولُ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ فِي إِبِلِ الصَّدَقَةِ، وَقَالَ: "اشْرَبُوا مِنْ أَلْبَانِهَا وَأَبْوَالِهَا". فَقَتَلُوا رَاعِيَ رَسُولِ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ وَاسْتَاقُوا الإِبِلَ وَارْتَدُّوا عَنِ الإِسْلَامِ، فَأُتِيَ بِهِمُ النَّبِيُّ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ فَقَطَعَ أَيْدِيَهُمْ وَأَرْجُلَهُمْ مِنْ خِلَافٍ وَسَمَرَ أَعْيُنَهُمْ وَأَلْقَاهُمْ بِالحَرَّةِ. قَالَ أَنَسٌ: فَكُنْتُ أَرَى أَحَدَهُمْ يَكُدُّ الأَرْضَ بِفِيهِ حَتَّى مَاتُوا. وَرُبَّمَا قَالَ حَمَّادٌ: يَكْدُمُ الأَرْضَ بِفِيهِ حَتَّى مَاتُوا. قَالَ أَبُو

Scanned with C

عيسى: هَذَا حَسَنٌ صَحِيحٌ، وَقَدْ رُوِيَ مِنْ غَيْرِ وَجْهٍ عَنْ أَنَسٍ، وَهُوَ قَوْلُ أَكْثَرِ أَهْلِ الْعِلْمِ. قَالُوا: لَا بَأْسَ بِبَوْلِ مَا يُؤْكَلُ لَحْمُهُ. (1)

**ترجمه** : دانس رضي الله عنه نه روايت دي فرماني چي يو خل دعيينه قبيلي څه کسان مديني منوري ته راغلل او په هغوئ دمديني اب او هوا موافق رانغله چنانچي هغوئ رسول الله صلي الله عليه وسلم دزکوة داوښانو سره اوليږل او ورته يي اوفرمانيل تاسو به ددي اوښانو پئ او متيازي څکئ (هلته چي لاړل نو ددي اشياؤ دخوړلو څکلو نه پس ځاربه شول) نو دوئ درسول الله صلي الله عليه وسلم شپونکي قتل کړو او اوښان يي اوتښتول او د اسلام نه مرتد شول تردي چي دوئ اونيولي شول او نبي کريم صلي الله عليه وسلم ته پيش کړي شول نورسول الله ددوئ ديو طرف د لاس او دبل طرف دخپي کټ کولو حکم اوکړو تردي چي دوئ سره همدا کار اوکړي شو او ددوئ په سترګو کي ګرم سلايان رابنکلي شول او په ګرمه زمکه اوغورځولي شول انس رضي الله عنه فرماني چي ما په دوئ کي يو کس ليدلي وو چي د سختي تندي په وجه يي په ژبه زمکه څټله تردي چي په همدي حالت کي مړه شول.

امام ترمذي وائي دا حديث حسن صحيح دي او په ډيرو سندونو دانس رضي الله عنه نه مروي دي، او د اکثرو اهل علمو همداقول دي چي دکوم ځاروي غوښه خوړلي شي (يعني حلال) دهغه په متيازو څکلو کي څه خرج نشته.

## دحلال ځاروي دبول څکلو دجوازپه مسئله کي دفقهاؤ اختلاف

په دي خبرد د اهل علمو اجماع ده چي د مالايؤکل لحمه متيازي پليتي دي نو ځکه يي په عنوان کي تخصيص کړي دي او اختلاف په دي خبره کي دي چي دماکل اللحم بول پاك دي او که ناپاك دي.

دشيخينو او شوافعو په نزد بول دمايؤکل لحمه پاکي دي، دامام احمد بن حنبل نه په دي باره کي دوه قسمه روايتونه دي او دامام ابويوسف په نزد نجاست غليظه ده او دامام ابو حنيفه په نزد نجاست خفيفه دي ځکه چي دعلماؤ اختلاف دهغه په نزد مقتضي دتخفيف وو.

---

[1] صحيح البخاري/الوضوء ٦٦ (٢٣٣) ، والزكاة ٦٨ (١٥٠١) ، والجهاد ١٥٢ (٣٠١٨) ، والمغازي ٣٦ (٤١٩٢) ، وتفسير المائدة ٥ (٤٦١٠) ، والطب ٥ (٥٦٨٥) ، و٦ (٥٦٨٦) ، و٢٩ (٥٧٢٧) ، والحدود ١٥ (٦٨٠٢) ، و١٧ (٦٨٠٣) ، و١٨ (٦٨٠٥) ، والديات ٢٢ (٦٨٩٩) . صحيح مسلم/القسامة ١٣ (١٦٧١) ، سنن ابي داود/ الحدود ٣ (٤٣٦٤، وأيضا٤٣٦٤) ، سنن النسائي/الطهارة ١٩١ (٣٠٥) ، والمحاربة ٧ (٤٠٢٩، ٤٠٣٢) ، و٨ (٤٠٣٣، ٤٠٤٠) ، و٩ (٤٠٤٨) ، سنن ابن ماجه/الطب ٣٠ (٣٥٠٣) (تحفة الأشراف : ٣١٧) . مسند احمد (٣/١٠٧، ١٦١، ١٦٣، ١٧٠، ١٧٧، ١٩٨، ٢٠٥، ٢٣٣، ٢٨٧، ٢٩٠، ويأتي عند المؤلف برقم: ١٨٤٥و٢٠٤٢

**داحنافو او شوافعو دلائل:** په باب التشديد في البول کي د ابن عباس روايت دي کما مر سابقا او په دي کي "فكان لايستنزه من بوله" هـ ضمير اګر چي قبر والا ته راجع دي مګر په بعضي رواياتو کي مطلق ذکر دي يعني من البول نو بول د عذاب قبر باعث دي کچري دا پاکي وي نو ددي په وجه به دقبر په عذاب کي مبتلاکيدل نه کيدل

**دويم استدلال:** حاکم په مستدرك کي او ابن خزيمه په صحيح کي روايت نقل کړي دي "استنزهوا من البول فان عامة عذاب القبر منه" يعني دمتيازو نه خان ساتئ ځکه چي عذاب قبر عموما ددي په وجه وي.

حاکم دا روايت علي شرط البخاري ګرځولي دي داحديث دخپل عموم په وجه هر کله بول ته شامل دي برابره خبره ده چي انساني وي او که حيواني وي ماکول اللحم وي او که غير ماکول اللحم وي.

لکه څرنګه چي په حديث دابوهريره کي عموم دي دارنګي حديث دابن عباس او انس هم عام دي، دا رنګي حديث د ابوامامه رضي الله عنه دي "اتقوا البول فانه اول ما يحاسب به العبد في القبر" يعني دمتيازو نه خان اوساتئ ځکه چي په قبر کي دټولو نه مخکي دمتيازوباره کي محاسبه کيږي په دي حديث کي بول عام دي انساني وي او که حيواني وي ماکول اللحم وي او که غير ماکول اللحم وي ټولوته شامل دي

**استدلال نمبر(۳):** دسعد بن معاذ رضي الله عنه دوفات واقعه ده کله چي سعد بن معاذ دفن کړي شو نو زمکي ورته زور ورکړو نبي کريم صلي الله عليه وسلم اوفرمائيل ده به دمتيازو نه خان نه ساتلو (رواه احمد).

**استدلال نمبر(٤):** امام طحاوي وائي چي په لحوم دبني ادم کي لحوم، دماء، ابوال کي لحوم طاهر دي ليکن خوړل يي جائز نه دي دحرمت په وجه او دماء نجس دي او په دي باندي اجماع ده چي په بني ادم کي ابوال تابع د دماء دي نه چي دلحوم نو په همدي وجه اجماع ده چي بول نجس وي دا رنګي په ماکول اللحم خناورو کي دري څيزونه دي لحوم ، دماء، بول، لهذا که ابوال دلحوم تابع کړئ نو ابوال به پاك شي او که د دماء تابع شي نو پليتي به شي لهذا په انسان باندي په قياس کولو سره دا قول کول پکار دي چي ابوال دي دلحوم تابع نه وي بلکه د دماء تابع دي وي

**استدلال دمالکيانو:** واقعه دعرينه ، حديث الباب، حديث دانس رضي الله عنه دي "اشربوا من البانها وابوالها" يعني ددي اوښانو شوده او متيازي اوڅکئ، ددي حديث نه معلومه شوه چي دماکول اللحم شوده او متيازي پاکي دي ځکه چي رسول الله ددي دڅکلو حکم کړي دي او

په دي وجه پاك دي چي په حديث كي دابل طاهر كيدل بيان كړي شوي دي او دباقي ماكول اللحم متيازي به په دي باندي قياس كولي شي معلومه شوه چي ابوال دجميع ماكول اللحم پاك دي

جواب نمبر (۱) په دي حديث كي ذكر دابوال مدرج من الراوي دي څكه چي په ابوداود او نسائي كي دابوال لفظ نشته

**جواب نمبر** (۲) كه بالفرض مونږ اومنو چي ابوال لفظ د حديث حصه ده نو دا به وايو چي دا د "علفتها تبناً وماء بارداً" دقبيلي نه دي چي حديث مؤل دي كله چي دعاملين مختلفين دوه مختلف معمولان وي او هغوئ دواړه په كوم غرض كي متحد وي نو اولني عامل به حذف كولي شي او ددي معمول به داولني عامل په معمول عطف كولي شي نو اوس به په حديث كي اشربوا من البانها وابوالها تقدير دعبارت به داسي وي "اشربوا من البانها وشموا من ابوالها" يعني بويول غرض دا چي نبي كريم صلي الله عليه وسلم دشرب د البان حكم اوكړو او دشرب ابوال حكم يي نه دي كړي بلكه داستنشاق حكم يي كړي دي. په احاديث صحيحه كي دشرب د البان ذكر دي باقي دا چي ددي اوبنانو متيازي څكل ددوئ خپل فعل وو لكه چي په بخاري كي په ص ۴۲۳ كي دا مضمون دي په كومو رواياتو كي چي دشرب البان سره سره دشرب ابوال ذكر راغلي دي دا يي دروايت بالمعني دقبيلي نه ذكر كړي دي.

**جواب نمبر** (۳) مونږ منو چي نبي كريم صلي الله عليه وسلم دمتيازو څكلو حكم كړي دي ليكن د طاهر كيدو په وجه يي نه دي كړي بلكه په طور د علاج يي حكم كړي وو

**دليل نمبر** (٤) عيينه والاحديث منسوخ دي او احاديث د استنزهوا من البول والاناسخ دي.

**دليل ثاني:** په كوم كي چي په مرابض الغنم كي دمونځ كولو حكم راغلي دي ددينه معلومه شوه چي دچيلئ غوښه هم پاكه ده (رواه البخاري، ص ۱/۲۱، باب الصلوة في مرابض الغنم.

**جواب نمبر** (۱) دمونځ كولو دا مطلب نه دي چي په دي كي دمتيازو سره مباشرت اوشي بلكه مطلب دا دي چي په جدا خاي كي مسئله اوغوړولي شي او مونځ اوكړي شي

**جواب نمبر** (۲) كه په مرابض الغنم كي د مونځ كولو نه د چيلئ دمتيازو طاهر كيدل معلوميږي نو په نورو روايتونو كي په مبارك الابل كي دمونځ كولو نه منع راغلي ده بيا خو د اوبنانو متيازي ناپاكي كيدل پكار دي "فماهو جوابكم فهو جوابنا".

دليل ثالث د دارقطني په حديث كي دي "لاباس ببول ما ياكل لحمه" او دا حديث هم په دارقطني كي دي "ماياكل لحمه لا باس ببوله" يعني چي دكوم څاروي غوښه خوړلي شي دهغه

دمتيازو باره كي څه خرج نشته دا رنګي دا هم په دارقطني كي دي الاول ما اكل لحمه. اللفظ الثاني ما اكل لحمه فلاباس ببوله. ددي جواب دادي چي دا دواړه روايتونه ضعيف دي او قابل داستدلال نه دي

**مسئله نمبر(۲): تداوي بالمحرمات جائز ده او كنه ده:**

په اضطراري حالت كي يعني كله چي څوك دمرګ دخطر سره مخامخ شو په داسي حال كي تداوي بالحرام بالاتفاق جائز دي لكه دا قول دالله تعالي "وقد فصل لكم ماحرم عليكم الا ما اضطررتم اليه" (الانعام:۱۱۹).

البته هغه ستاسو دپاره هغه څيزونه حلال كړي دي چي كوم يي په تفصيل سره بيان كړل مګر هغه څيزونه دكومو خوړلو ته چي تاسو مجبور شئ

مګر كله چي دمرګ خطره نه وي او صرف د تداوي دپاره علاج بالحرام وي نو په دي باره كي اختلاف دي او په دي كي دعلماو مذاهب دي

(۱) دامام ابوحنيفه او حنبليانو په نزد مطلقاناجائز دي.

(۲) دامام مالك په نزد مطلقا جائز دي.

(۳) دشوافعو په نزد تداوي بالمحرمات المذكر جائز نه دي ليكن دضرورت مطلب دادي كه يو قابل طبيب فيصله اوكړي چي دتداوي بالحرام نه علاوه ددي مريض دپاره په بله طريقه علاج ممكن نه وي نو بيا جائز دي.

داختلاف وجه تعارض داحاديثو دي واقعه دعرنين ده جواز دتداوي بالحرام معلوميږي او د "لاشفاء في الحرام" او د "ان الله لم يجعل شفائكم في ما حرم عليكم" (بخاري باب شرب الحلو والعسل) نه عدم جواز معلوميږي دابوداود په روايت كي دي لاتتداوو بالحرام صورت دتطبيق دادي چي دكومو احاديثو نه جواز معلوميږي هغه محمول دي په حالت دضرورت كي او چي دكومو نه عدم جواز معلوميږي هغه محمول دي دضرورت نه په علاوه حالاتو او واقعه دعرنين دليل دامام ابو يوسف دي چي رسول الله ته به دوحي په ذريعه خبر وركړي شوي وي چي ددي خلقو دپاره شفاء په همدي څيزونو كي ده ليكن نور طبيبان ظني فيصله كوي ددي مسئلي مزيد جوابات په تيري شوي مسئله كي كتلئ شئ.

**مسئله نمبر(۳) مساوات في الخصاص شته او كنه:**

يعني قاتل چي څنګه قتل كړي وي قصاص به هم هغه شان اخستلي شي او كنه صرف په توره به يي سر وهلي شي په دي باره كي دعلماؤ اختلاف دي.

داحنافو مسلك دادي چي هيڅ قسم مساوات في القصاص شرط نه دي قصاص به په توره اخستلي شي.
دشوافعو مسلك دادي چي دکوم څيز په ذريعه قاتل قتل کړي وي نو په هم دغه څيز به قصاص اخستلي کيږي ليکن يو څو صورتونه مستثني دي که چا يو کس په اور کي سوزولي وي يا يي دبدکارئ په ذريعه قتل کړي وي نو هغه به دمساوات دصورت نه مستثني وي.

**دلائل داحنافو:** حديث دابن ماجه دي "لا قود الا بالسيف" يعني قصاص به صرف په توره اخستلي شي دا روايت ناطق دي، دويم دليل: نبي کريم صلي الله عليه وسلم دمثلي نه منع فرمائيلي ده يعني دلاش خرابولو نه، کچري دقتل نه مخکي دزخمونو قصاص اخلي نو په دي کي دلاس خرابيدل لازمي دي او عقلي دليل دادي چي دقاتل ختمول مقصود دي. او اصل مقصود د زړه براس ويستل نه دي.

**دامام شافعي دليل نمبر (۱):** "والجروح قصاص" (المائده ۴۵) او دزخمونو به هم بدل اخستلي شي دا ايت عام دي برابره خبره ده چي دزخمي کولو نه پس مجروح مړ شوي وي او که ژوندي پاتي شوي وي په دواړو صورتونو کي به دزخمونو قصاص اخستلي شي.

**دويم دليل حديث الباب دي:** چي دعرينه واقعه پکي مذکور ده چي دجانب مخالف لاس خپي کټ کول دي او دا کټ کول دقطاع الطريق دحد په لحاظ سره وو او يا په دي وجه وو چي هغوئ د شپونکو لاسونه خپي کټ کړي وي ليکن تسميل العين په طور دقصاص وو څکه چي هغوئ دشپونکو په ژبو او سترګو کي ازغي منډلي وو.

**داحنافو دطرفه جواب:** ايت کريمه والجروح قصاص عام نه دي بلکه ددينه هغه زخم مراد دي دکوم نه پس چي مجروح جوړ شوي وي او دحديث الباب جواب دادي چي رسول الله دا کار سياستا او تعذيرا کړي دي او امام خو تعذيرا سخت ترينه سزا ورکولي شي

**جواب نمبر (۲)** دا دهغه وخت واقعه ده کله چي داحدود احکام نازل شوي نه وو

ملحدينو په دي دا اعتراض کړي دي چي رسول الله صلي الله عليه وسلم دومره سخته سزا ولي ورکړي ده چي دوئ ته يي اوبه هم ورنکړي تردي چي هغوئ دزمکي ځټل شروع کړل او حال دادي چي هغه خو رحمة للعالمين په صفت موصوف راليږلي شوي.

**جواب** ستاسو دواقع په يو طرف نظر وي او په بل طرف مو نظر نه وي چي هغوئ مديني ته راغلل نو په تکليف کي دواقع کيدو په وجه رسول الله هغوئ ته علاج اوخودو او اوښان يي ورکړل او هغه هم لنګي اوښي چي د اب هوا دپاره بهتر ځاي ته لاړشي مګر کله چي دوئ روغ شول نو اوښان يي اوتختول او شپونکي يي مړه کړل لاسونه خپي يي ورله پري کړي او په

سترګو کي يي ورته ازغي اومنډل خو بيا هم رسول الله په دومره سزا باندي اکتفاء اوکړه ددوئ دپاره خو ددينه هم زياته سزا پکار وه پاتي شوه دا خبره چي رسول الله دوئ ته اوبه نه دي ورکړي دا هم قصاصا حکم وو څکه چي هغوئ هم درسول الله شپونکو ته اوبه نه وي ورکړي نو دوئ ته يي په طور دتعذير هم اوبه ورنکړي.

**جواب نمبر(۲) دا** واقعه درسول الله په عدم موجودګئ کي شوي وه او هغه درباندي خبر شوي نه وو او اودا دصحابه کرامو عمل وو

**فائده** دا اته کسان وو چي څلور پکي دعرينه قبيلي والا وو او دري کسان دعکل قبيلي والا وو او يو په دوئ کي دخيل وو نو په دي دواړو کي دکومي قبيلي نه وو په دي حديث کي داسي راځي "ان الناسا من عرينه" او په بعضي رواياتو کي "ان ناسا من عرينه وعکل" او په بعضي رواياتو کي "ان ناسا من عرينه او عکل" راغلي دي چي په اصل کي دوئ اته کسان وو په بعضي رواياتو کي اکثر ته په کتلو سره عرينه وئيلي شوي دي او بعضي رواياتودواړوذکر کړي دي او بعضي روايات په شك بناء دي "جواء" دخيتي يوه بيماري وه دبعضو قول دي چي د جواء معني مطلق مرض دي حاصل دکلام دادي چي دمديني اب او هوا ورباندي موافق رانغله او بيماران شول لکه چي عموما داسي کيږي باندچيان چي کله ښار ته لاړ شي اکثر په هغو باندي دښار اب او هوا موافق نه راځي نو ددوئ سره هم داسي کار شوي وو د ديهاتو اب او هوا لطيفه وي دانساني صحت دپاره مفيد وي همدا وجه ده چي دهاتيان اکثر صحت مند وي، او دښار اب او هوا کثيف وي نو په دي وجه دښار خلق اکثر بيماران وي دکتلو نه هم داسي معلوميږي لکه چي دحوض نه چيندخان راوتلي وي او ناست وي.

"فبعثهم رسول الله صلي الله عليه وسلم في ابل الصدقة" ددي اوښانو نسبت صدقي ته کيږي چي دا دصدقي اوښان وو او کله يي رسول الله ته نسبت کيږي چي دا اوښان درسول الله صلي الله عليه وسلم وو

**جواب** په اصل کي دا دصدقي اوښان وو ليکن رسول الله صلي الله عليه وسلم دخپل غنيمت دحصي اوښان هم دلته اودرولي وو لهذا دواړو ته يي نسبت صحيح دي

**حل لغات** قدم يقدم معني راتلل او قدّم يقدّم تقديما معني مخکي کول

**دراوي حالات** : د انس بن مالك رضي الله عنه حالات ما قبل ابوابو کي تير شوي دي

****************

Scanned with C

٧٣_ حَدَّثَنَا الفَضْلُ بْنُ سَهْلٍ الأَعْرَجُ البَغْدَادِيُّ، حَدَّثَنَا يَحْيَى بْنُ غَيْلَانَ، قَالَ: حَدَّثَنَا يَزِيدُ بْنُ زُرَيْعٍ، حَدَّثَنَا سُلَيْمَانُ التَّيْمِيُّ، عَنْ أَنَسِ بْنِ مَالِكٍ، قَالَ: " إِنَّمَا سَمَلَ النَّبِيُّ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ أَعْيُنَهُمْ، لِأَنَّهُمْ سَمَلُوا أَعْيُنَ الرُّعَاةِ ". قَالَ أَبُو عِيسَى: هَذَا غَرِيبٌ، لَا نَعْلَمُ أَحَدًا ذَكَرَهُ غَيْرَ هَذَا الشَّيْخِ، عَنْ يَزِيدَ بْنِ زُرَيْعٍ، وَهُوَ مَعْنَى قَوْلِهِ وَالْجُرُوحَ قِصَاصٌ سورة المائدة آية ٤٥، وَقَدْ رُوِيَ عَنْ مُحَمَّدِ بْنِ سِيرِينَ، قَالَ: إِنَّمَا فَعَلَ بِهِمُ النَّبِيُّ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ هَذَا، قَبْلَ أَنْ تَنْزِلَ الْحُدُودُ. (1)

**ترجمه** : دانس بن مالك رضي الله عنه نه روايت دي فرماني چي رسول الله صلي الله عليه وسلم ددوی په سترګو کي ګرم سلایان خکه رابنکل چي دوی هم دشپونکیانو په سترګو کي ګرم سلایان رابنکلي وو

امام ترمذي واني داحديث حسن غريب دي

او دالله تعالي د فرمان "والجروح قصاص " همدا مطلب دي

دمحمد بن سيرين نه مروي دي چي نبي كريم صلي الله عليه وسلم ددوی سره دا معامله دحدودو داحكامو دنازليدونه مخكي كړي وه

**د راوي حالات** : د انس بن مالك رضي الله عنه حالات ما قبل ابوابو كي تير شوي دي

***************

## ٥٦_ بَابُ مَا جَاءَ فِي الْوُضُوءِ مِنَ الرِّيحِ

### دهوا خارجيدو په وجه داودس ماتيدو بيان

٧٤_ حَدَّثَنَا قُتَيْبَةُ، وَهَنَّادٌ، قَالَا: حَدَّثَنَا وَكِيعٌ، عَنْ شُعْبَةَ، عَنْ سُهَيْلِ بْنِ أَبِي صَالِحٍ، عَنْ أَبِيهِ، عَنْ أَبِي هُرَيْرَةَ، أَنَّ رَسُولَ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ، قَالَ: "لَا وُضُوءَ إِلَّا مِنْ صَوْتٍ أَوْ رِيحٍ". قَالَ أَبُو عِيسَى: هَذَا حَسَنٌ صَحِيحٌ. (2)

**ترجمه** : دابوهريره رضي الله عنه نه مروي دي چي رسول الله صلي الله عليه وسلم اوفرمانيل اودس تر هغه وخته پوري نه واجب كيږي ترڅو پوري چي اواز يا بوي پيداشوي نه وي.

امام ترمذي واني دا حديث حسن صحيح دي

**حل لغات** ريحا الريح هوا ، جمع ارياح او ارواح او رياح او ريح راخي او جمع الجمعه يي راويح او اراويح ده معني بوي ، بنه خيز ، رحمت، مدت، قوت غلبه الريحة ، هوا او بوي، وبر

---

[1] صحيح مسلم /القسامة ٥ (الحدود) ٢ (١٢/١٦٧١) سنن النسائي/المحاربة ٩ (٤٠٢٨) (تحفة الأشراف : ٨٨٥)

[2] سنن ابن ماجه/الطهارة ٤٣ (٥١٥) (تحفة الأشراف ١٢٦٨٣) مسند احمد (٢/٤١٠، ٤٣٥، ٤٧١)

Scanned with C

په معني د خيمي مدر معني كور.

***************

٧٥ـ حَدَّثَنَا قُتَيْبَةُ، حَدَّثَنَا عَبْدُ الْعَزِيزِ بْنُ مُحَمَّدٍ، عَنْ سُهَيْلِ بْنِ أَبِي صَالِحٍ، عَنْ أَبِيهِ، عَنْ أَبِي هُرَيْرَةَ، أَنَّ رَسُولَ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ، قَالَ: " إِذَا كَانَ أَحَدُكُمْ فِي الْمَسْجِدِ فَوَجَدَ رِيحًا بَيْنَ أَلْيَتَيْهِ فَلَا يَخْرُجْ حَتَّى يَسْمَعَ صَوْتًا أَوْ يَجِدَ رِيحًا ". قَالَ: وَفِي الْبَاب عَنْ عَبْدِ اللَّهِ بْنِ زَيْدٍ، وَعَلِيِّ بْنِ طَلْقٍ، وَعَائِشَةَ، وَابْنِ عَبَّاسٍ، وَابْنِ مَسْعُودٍ، وَأَبِي سَعِيدٍ. قَالَ أَبُو عِيسَى: هَذَا حَسَنٌ صَحِيحٌ، وَهُوَ قَوْلُ الْعُلَمَاءِ أَنْ لَا يَجِبَ عَلَيْهِ الْوُضُوءُ، إِلَّا مِنْ حَدَثٍ يَسْمَعُ صَوْتًا أَوْ يَجِدُ رِيحًا، وقَالَ عَبْدُ اللَّهِ بْنُ الْمُبَارَكِ: إِذَا شَكَّ فِي الْحَدَثِ، فَإِنَّهُ لَا يَجِبُ عَلَيْهِ الْوُضُوءُ حَتَّى يَسْتَيْقِنَ اسْتِيقَانًا يَقْدِرُ أَنْ يَحْلِفَ عَلَيْهِ، وَقَالَ: إِذَا خَرَجَ مِنْ قُبُلِ الْمَرْأَةِ الرِّيحُ وَجَبَ عَلَيْهَا الْوُضُوءُ، وَهُوَ قَوْلُ الشَّافِعِيِّ، وَإِسْحَاق.[1]

**ترجمه** : دابوهريره رضي الله عنه نه روايت دي فرماني چي رسول الله صلي الله عليه وسلم فرمائيلي دي كله چي په تاسو كي دچا نه په مسجد كي هوا خارج شي او دهغه پخپل خان باندي شك پيدا شي نو تر هغه وخته پوري دي دمسجد نه نه خارجيږي چي څو پوري يي اواز اوريدلي نه وي او يا يي بوي محسوس كړي نه وي او يا دبوي نه بغير دخيتي نه خارجيدونكي هوا بوي محسوس كړي نه وي.

امام ترمذي وائي داحديث حسن صحيح دي او په دي باب كي دعبدالله بن زيد علي بن طلق، عائشه، ابن عباس، ابن مسعود، او ابوسعيد خدري رضي الله عنهم نه هم احاديث وارد دي.

او په همدي باندي علماؤ قول كړي دي چي اودس دحدث په صورت كي واجب كيږي چي كله دحدث اواز واوري يابوي محسوس كړي.

دعبدالله بن مبارك قول دي څو پوري چي په حدث كي شك وي نو اودس نه واجب كيږي يعني ترڅو پوري چي دومره يقين ته رسيدلي نه وي چي دي درباندي قسم كولي شي دا رنګي ابن مبارك داهم وائي ..... نو په دي باندي اودس واجب كيږي او همداقول دامام شافعي او اسحاق بن راهويه هم دي.

**حل لغات** ريحا: الريح هوا . جمع ارياح او ارواح او رياح او ريح راځي او جمع الجمعه يي راويح او اراويح ده معني بوي . بنه څيز ، رحمت، مدت، قوت غلبه الريحة ، هوا او بوي، وبر.

---

[1] صحيح مسلم/الحيض ٢٦ (٣٦٢) . سنن ابي داود/ الطهارة ٦٨ (١٤٠) . (تحفة الأشراف : ١٢٦١٨) . مسند احمد (٢/٣٠، ٢١٣) سنن الدارمي/الطهارة ٤٧ (٧٢٨)

په معني د خيمه مدر معني کور

*****************

۷۶_ حَدَّثَنَا مَحْمُودُ بْنُ غَيْلَانَ، حَدَّثَنَا عَبْدُ الرَّزَّاقِ، أَخْبَرَنَا مَعْمَرٌ، عَنْ هَمَّامِ بْنِ مُنَبِّهٍ، عَنْ أَبِي هُرَيْرَةَ، عَنِ النَّبِيِّ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ، قَالَ: "إِنَّ اللهَ لَا يَقْبَلُ صَلَاةَ أَحَدِكُمْ إِذَا أَحْدَثَ حَتَّى يَتَوَضَّأَ". قَالَ أَبُو عِيسَى: هَذَا حَسَنٌ صَحِيحٌ. ([1])

**ترجمه** : دابوهريره رضي الله عنه نه مروي دي چي رسول الله صلي الله عليه وسلم فرمائيلي دي کله چي په تاسو کي دچا اودس مات شي نو الله تعالي دهغه مونځ تر هغه وخته پوري نه قبلوي ترڅو پوري چي يي اودس نه وي کړي.

**تشريح** : ريح من وجه پاك دي او من وجه ناپاك دي او په لمدو جامو تيرشي نو هم نه پليتيږي خکه چي په دي صورت کي دپاکوالي جانب لره اعتبار دي او ددي په وتلو اودس ماتيږي، په دي کي دناپاکئ جانب لره اعتبار دي او ددي باب همدا مطلب دي چي په ريح کي دناپاکئ جانب پيش نظرساتلي شي او خکه ددي په وجه اودس هم ماتيږي، ارشاد نبوي دي چي اودس صرف د اواز يا د بدبويي په وجه وي په بل حديث کي راځي په تاسو کي چي څوك په مسجد کي هوا خارجه کړي او هوا محسوس کړي نو هغه وخته پوري دي دمسجد نه نه اوځي چي ترڅو يي اواز اوريدلي نه وي يا يي بدبويي محسوس کړي نه وي دواړه حديثونه دابوهريره رضي الله عنه نه مروي دي مګر اولني حديث مجمل دي او دويم مفصل دي او بيا يي مجمل مفصل ته راجع کړي دي ددواړو احاديثو حاصل دادي چي څو پوري په خروج دريح يقين نه وي راغلي ترهغه پوري اودس نه ماتيږي کله کله داسي اوشي چي په خيټه کي ګړبړ پيداشي او مخرج ته باد راورسيږي او بيا واپس شي دشکي خلقو په خروج دريح شك پيداشي پس دا حديث دداسي خلقو دپاره دي چي څو پوري يي په خروج دريح يقين نه وي راغلي ترهغې يي اودس نه ماتيږي او ديقين راتلو ډيري طريقي دي يوه طريقه اواز اوريدل دي، دويمه طريقه بوي محسوسول دي، پس که دچا په کومه بله طريقه په خروج دريح يقين راشي نو بيا يي هم اودس ماتيږي غرض دا چي دا حديث دقطع وسنواس دباب نه دي او په دي کي دنقض دوضوء دتمامو صورتونو بيان نه دي شوي او د فقه قانون دادي "اليقين لايزول بالشك" يعني يقيني خبره دشك په وجه نه زائله کيږي، او دا قاعده په داسي قسم احاديثونه جوړه شوي ده.

---

[1] صحيح البخاري/الوضوء ۲ (۱۳۵) . والحيل ۲ (۶۹۵۴) . صحيح مسلم/الطهارة ۲ (۲۲۵) . سنن ابي داود/ الطهارة ۳۱ (تحفة الأشراف : ۱۴۶۹۳) . مسند احمد (۲/۳۱۸)

********************

## ٥٧_ بَابُ مَا جَاءَ فِي الْوُضُوءِ مِنَ النَّوْمِ

### د خوب نه د بيداريدو صورت کي د اودس تازه کولو بيان

٧٧_ حَدَّثَنَا إِسْمَاعِيل بْنُ مُوسَى كُوفِيٌّ، وَهَنَّادٌ، وَمُحَمَّدُ بْنُ عُبَيْدٍ الْمُحَارِبِيُّ الْمَعْنَى وَاحِدٌ، قَالُوا: حَدَّثَنَا عَبْدُ السَّلَامِ بْنُ حَرْبٍ الْمُلَائِيُّ، عَنْ أَبِي خَالِدٍ الدَّالَانِيِّ، عَنْ قَتَادَةَ، عَنْ أَبِي الْعَالِيَةِ، عَنْ ابْنِ عَبَّاسٍ، أَنَّهُ رَأَى النَّبِيَّ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ نَامَ وَهُوَ سَاجِدٌ حَتَّى غَطَّ أَوْ نَفَخَ، ثُمَّ قَامَ يُصَلِّي فَقُلْتُ: يَا رَسُولَ اللَّهِ إِنَّكَ قَدْ نِمْتَ، قَالَ: " إِنَّ الْوُضُوءَ لَا يَجِبُ إِلَّا عَلَى مَنْ نَامَ مُضْطَجِعًا، فَإِنَّهُ إِذَا اضْطَجَعَ اسْتَرْخَتْ مَفَاصِلُهُ ". قَالَ أَبُو عِيسَى: وَأَبُو خَالِدٍ اسْمُهُ: يَزِيدُ بْنُ عَبْدِ الرَّحْمَنِ، قَالَ: وَفِي الْبَابِ عَنْ عَائِشَةَ، وَابْنِ مَسْعُودٍ، وَأَبِي هُرَيْرَةَ. (1)

**ترجمه** : دعبدالله ابن عباس رضي الله عنهما نه روايت دي فرمائي چي ما رسول الله صلي الله عليه وسلم په داسي حالت کي اوليدو چي دسجدي په حالت کي اوده وو تردي پوري چي خراري يي شروع کړو او بيا پاڅيدو په مونځ اودريدو ماعرض اوکړو اي دالله رسوله ته خو اوده شوي وي؟ رسول الله اوفرمائيل اودس صرف په هغه چا واجب کيږي څوك چي په اړخ پروت وي اوداځکه کله چي سړي پريوځي نو جوړونه يي سست شي.

امام ترمذي وائي په دي باب کي د عائشه ، ابن مسعود ، او ابوهريره رضي الله عنهم نه هم احاديث مروي دي.

**حل لغات** : المفاصل: مفصل المفصل په معني دبندونو او جوړونو دبدن دي او جمع يي مفاصل راځي.

********************

٧٨_ حَدَّثَنَا مُحَمَّدُ بْنُ بَشَّارٍ، حَدَّثَنَا يَحْيَى بْنُ سَعِيدٍ، عَنْ شُعْبَةَ، عَنْ قَتَادَةَ، عَنْ أَنَسِ بْنِ مَالِكٍ، قَالَ: "كَانَ أَصْحَابُ رَسُولِ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ يَنَامُونَ، ثُمَّ يَقُومُونَ فَيُصَلُّونَ وَلَا يَتَوَضَّئُونَ". قَالَ أَبُو عِيسَى: هَذَا حَسَنٌ صَحِيحٌ، قَالَ: وَسَمِعْت صَالِحَ بْنَ عَبْدِ اللَّهِ، يَقُولُ: سَأَلْتُ عَبْدَ اللَّهِ بْنَ الْمُبَارَكِ عَمَّنْ نَامَ قَاعِدًا مُعْتَمِدًا، فَقَالَ: لَا وُضُوءَ عَلَيْهِ. قَالَ أَبُو عِيسَى: وَقَدْ رَوَى حَدِيثَ ابْنِ

---

1 سنن ابي داود/ الطهارة ٨٠ (٢٠٢) ، (تحفة الأشراف : ٥٤٢٥) ، مسند احمد (١/٢٤٥، ٣٤٣) قال الشيخ الألباني: ضعيف، ضعيف أبي داود (٢٥).

عَبَّاسٍ سَعِيدُ بْنُ أَبِي عَرُوبَةَ، عَنْ قَتَادَةَ، عَنِ ابْنِ عَبَّاسٍ قَوْلَهُ. وَلَمْ يَذْكُرْ فِيهِ أَبَا الْعَالِيَةِ، وَلَمْ يَرْفَعْهُ، وَاخْتَلَفَ الْعُلَمَاءُ فِي الْوُضُوءِ مِنَ النَّوْمِ. فَرَأَى أَكْثَرُهُمْ أَنْ لَا يَجِبَ عَلَيْهِ الْوُضُوءُ إِذَا نَامَ قَاعِدًا أَوْ قَائِمًا، حَتَّى يَنَامَ مُضْطَجِعًا، وَبِهِ يَقُولُ الثَّوْرِيُّ، وَابْنُ الْمُبَارَكِ، وَأَحْمَدُ، قَالَ: وَقَالَ بَعْضُهُمْ: إِذَا نَامَ حَتَّى غُلِبَ عَلَى عَقْلِهِ وَجَبَ عَلَيْهِ الْوُضُوءُ، وَبِهِ يَقُولُ إِسْحَاق، وقَالَ الشَّافِعِيُّ: مَنْ نَامَ قَاعِدًا فَرَأَى رُؤْيَا أَوْ زَالَتْ مَقْعَدَتُهُ لِوَسَنِ النَّوْمِ، فَعَلَيْهِ الْوُضُوءُ. (1)

**ترجمه** : دانس بن مالك رضي الله عنه نه مروي دي فرماني چي صحابه كرام به كله پريوتل او بيا به پاڅيدل مونځ به يي كولو او اودس به يي نه كولو.

امام ترمذي وائي دا حديث حسن صحيح دي دصالح بن عبدالله نه مي اوريدلي دي چي فرمائيل يي دعبدالله بن مبارك نه مي دهغه كس په باره كي تپوس اوكړو څوك چي په ناسته اوده شي راته يي اوفرمائيل چي په ده باندي اودس نشته

ابن عباس والاحديث سعيد بن ابي عروبه په سند دقتاده عن ابن عباس موقوفا نقل كړي دي او په دي كي دابو العاليه ذكر نشته په خوب داودس ماتيدو باره كي علماؤ كي اختلاف دي داكثرو اهل علمو رائي داده چي څوك په ولاړه اوده شي نو اودس ورباندي واجب نه دي چي څو پوري پريوتلي نه وي همداقول دسفيان ثوري او ابن مبارك دي مګر امام احمد وائي دبعضي علماؤ قول دي چي كله خوب دروند وي چي په عقل باندي غالب شي نو اودس واجب كيږي او همدا قول داسحاق بن راهويه دي مګر دامام شافعي قول دادي چي څوك په ناسته اوده شي او خوب ليدل شروع كړي او يا دخوب دغلبي په وجه دده مخرج دخپل خاي نه بي خايه كړي نو اودس به ورباندي واجب كيږي.

**حل لغات** : ينامون: نام ينام نوما ونياما اوده كيدل نائم يي فاعل دي جمع يي نيام او نوّم او نيّم او نوّام راځي.

**تشريح** : په حديث كي غط او نفخ راغلي دي غط دغطيط نه مشتق دي معني يي په خوب كي خراري كول دي او دنفخ معني اوږده اوږده ساه اخستل دي.

الفرق بين السنة والنعاس والنوم: دانسان دمعدي نه چي كوم بخارات پورته كيږي كچري دا بخارات پورته كړي شي او صرف داحاطة العين پوري وي نو ديته سنة ونيلي شي او كه احاطة الدماغ پوري اورسيږي دا نعاس دي او كه احاطة القلب ته ورسيږي نو دا نوم دي، په سنة او نعاس كي بالاجماع اودس نه ماتيږي صرف نوم ناقض للوضوء دي او په دي باندي هم

---

1 صحيح مسلم/الحيض ٣٣ (٣٧٦/ ١٢٣). سنن ابي داود/الطهارة ٨٠ (٢٠٠). (تحفة الأشراف: ١٢٤١). مسند احمد (٢٧٧/٣

اتفاق دي چي دخوب ناقض للوضوء کيدل هم دخپل ذات په اعتبار سره نه دي بلکه ناقض للوضوء کيدل دريح دخروج په اعتبار سره دي او خروج دريح يو باطني څيز دي چي خبريدل وريباندي ممکن نه دي لهذا په همدي وجه خوب علت گرځولي شوي دي او دا يو داسي څيز دي لکه چي دسفر په دوران کي دقصر دپاره علت مشقت دي او مشقت يوباطني څيز دي او په دي وجه سفر دمشقت دپاره علت گرځولي شوي دي

**مذاهب دفقهاو:** دائمه اربعه په دي اتفاق دي چي نوم کثير ناقض للوضوء دي او قليل نه دي ددي وجه داده چي په دي باره کي روايات متعدد دي په بعضو کي د بنقض دوضوء ذکر دي او په بعضو کي دعدم نقض ذکر دي لهذا نقض دوضوء به په نوم کثير حمل کوو او عدم نقض والا به په نوم قليل حمل کوو بيا دقليل اوکثير دپاره په حدبندئ کي اهل علمو داجتهاد نه کار اخستلي دي په دي کي اختلاف دي چي دا کوم خوب دي په کوم کي چي دا علت موندلي کيږي او هغه ناقض للوضوء وي؟

داحنافو په نزد هر هغه خوب په کوم کي چي استرخاء دمتاصلو وي هغه ناقض للوضوء دي او په کوم کي چي نه وي هغه ناقض للوضوء نه دي او کوم خوب چي په هيئت صلاتيه وي په هغه کي استرخاء دمفاصلو نه راځي اوچي کوم خوب مضطجعا يا مستلقيا يا مستندا وي په دي کي استرخاء دمفاصلو راځي.

دويم قول دشوافعو دي ددوئ په نزد هر هغه خوب ناقض للوضوء نه دي په کوم کي چي مقعد متمکن علي العرف وي او ددينه علاوه هر قسم خوب ناقض للوضوء دي.

دريم قول دمالکيانو او حنابله دي ددوئ په نزد هر هغه خوب کوم چي قليل وي ناقض للوضوء نه دي او کوم چي کثير وي هغه ناقض للوضوء دي او دقليل او کثير په مينځ کي فرق په عرف باندي بناء دي

داحنافو دليل. په دي باره کي احناف دحديث الباب نه استدلال کوي چي رسول الله صلي الله عليه وسلم په سجده پريوتو اوده شو او دبيداريدو نه پس بي مونځ جاري اوساتلو دابن عباس بيان دي ما عرض اوکړو چي اي دالله رسوله ته خو اوده شوي وي راته ويي فرمائيل "ان الوضوء لايجب الا علي من نام مضطجعا فانه اذا اضطجع استرخت مفاصله" يعني اودس دهغه وخته پوري نه ماتيږي ترڅو پوري چي څوك په ډډه پريوتلي نه وي ځکه چي په داسي حالت کي استرخاء دمفاصلو راځي يعني اودس صرف په مضطجعا حالت باندي دي او ددي دپاره يي علت استرخاء دمفاصلو گرځولي ده نو مستلقيا او مستندا هم استرخاء دمفاصلو وي په دي حالت کي به هم اودس ماتيږي دامام شافعي مستدل حديث دانس دي "کان اصحاب رسول الله صلي

الله عليه وسلم ينومون ثم يقومون فيصلون ولايتوضؤن" يعني صحابه كرام به دخوب نه بيدار شول او د اودس كولو نه بغير به يي مونځونه كول.
شوافع وائي په دي كي تمكن دمقعد علي الارض وو ځكه دا ناقض دوضوء نه دي او مالكيان وائي چي دا نوم قليل وو.
جواب: دصحابه كرامو خوب دسنة او نعاس په درجه كي دي او دا ناقض للوضوء نه وي.
دويم جواب: دشوافعو دقول مطابق علت تمكن علي الارض دي او دمالكيانو دقول مطابق علت نوم قليل دي دا دواړه علتونه غير منصوص وي او استرخاء دمفاصل منصوص عليه ده او غير منصوص دمنصوص سره معارض كيدي نشي او دخوب په باره كي نور اقوال هم شته يو قول دادي نوم مطلقا ناقض للوضوء نه دي بل قول دادي مطلقا ناقض للوضوء دي بل قول دادي هر هغه نوم كوم چي دسجدي په حالت كي وي ناقض للوضوء دي او ددينه علاوه ناقض للوضوء نه دي بل قول ددي په عكس دي يو قول دادي داخل في الصلوة نوم ناقض للوضوء نه دي او خارج في الصلاة ناقض للوضوء نه دي.
داحنافو په دليل پنځه اعتراضات شوي دي چي دري امام ابو داود كړي دي او دوه ترمذي كړي دي دترمذي اولني اعتراض دادي چي سعيد بن ابي عروبه دا روايت دقتاده نه نقل كړي دي "ولم يرفعه" او قتاده دابن عباس نه موقوفا نقل كړي دي دويم اعتراض دادي سعيد بن ابي عروبه دقتاده نه او دقتاده او ابن عباس په مينځ كي دابو العاليه واسطه نه ده ذكر كړي لهذا روايت منقطع شو، دريم اعتراض دادي ابو خالد راوي ضعيف دي او دثقاتو مخالفت كوي كله چي يو راوي دثقاتو مخالفت كوي نو حديث منكر ګرځي بل اعتراض دادي حديث دابو خالد دحديث دعائشه سره معارض دي ځكه چي په دي كي ارشاد دي "تنام عيناي ولا ينام قلبي" حاصل يي دادي چي زما خوب ناقض للوضوء نه دي ليكن دابوخالد دحديث مدلول دادي چي نوم مضطجعا ناقض للوضوء دي او دا عام دي ددينه چي خوب دنبي او كه دغير نبي وي اخري اعتراض دادي امام شعبي وائي دابو العاليه نه دقتاده سماع صرف په ځلورو احاديثو كي ثابته ده چي دقتاده او ابوالعاليه په مينځ كي انقطاع وي ددينه په اعتراض باندي هم تعبير كيدي شي داولني او دويم اعتراض جواب دادي اګر چي په خالد باندي جرح شوي ده مګر ډيرو محدثينو يي توثيق هم كړي دي او صحيح يي ګرځولي دي يحيي بن معين چي په جرح كي متشدد وو وائي "لاباس به" او ابو حاتم صدوق ګڼړلي دي اوامام احمد وائي لاباس به. ځلورم اعتراض دادي حاكم وائي اهل علمو دده په حفظ ګواهي وركړي وه نواب صديق حسن خان وائي ابوخالد ثقه دي او دده روايت علامه شوكاني هم تسليم كړي دي حاصل دا چي

ابو خالد ثقه دي او دثقه زيادت مقبول وي دي لره مرفوعاً بيانول دزياداتو دثقه نه دي او واسطه ذكر كول هم دزياداتو دثقه دقبيلي نه دي اوقاعده داده "زيادة الثقة مقبولة".

دريم جواب ابوداود چي ددي روايت په منكر كيدوقول كړي دي دا قول درست نه دي ځكه چي په منكر روايت كي دوه خبري دي اول ضعف دراوي دي. دويم مخالفت دثقاتو دي اودلته خو دواړه خبري نشته ابو خالد ضعيف هم نه دي او مخالفت دثقاتو يي هم نه كولو البته داسي ځيز به يي ذكر كړو كوم چي به ثقاتو نه وو ذكر كړي

څلورم جواب ددي حديث مدلول خوب دامت دي او خوب دنبي نه دي

پنځم جواب دا قول كول چي دخپل علم په اعتبارسره چنانچي امام بيهقي د دوه نورو احاديثو اضافه كړي وه او ممكن ده چي الله چاته نور علم وركړي او هغوئ هم اضافي اوكړي لهذا احتمال موجود دي ددي خبري چي دا حديث هم قتاده دابوالعاليه نه اوريدلي وي

اعتراض ابن عباس دا سوال څنګه اوكړو حال دادي چي داخبره خوډيره مشهوره ده چي خوب دنبي ناقض للوضوء نه وي ددي دوه جوابات دي اول جواب دادي ابن عباس رضي الله عنهما دكثرانو صحابو نه وو دصلح حديبيه يا فتح مكه نه پس راغلي وو دا ضروري نه ده چي ټول مسائل ورته معلوم وي او ددي مسئلي علم ورته هم وي

جواب ثاني دا هم كيدي شي چي مسئله ورته معلومه وي ليكن پخپله يي درسول الله نه اوريدلي نه وي او په دغه ورځ يي درسول الله دخولي نه ددي اوريدل غوښتلي وو او په دي وجه يي ورته سوال كړي وي.

****************

## ٥٨_ بَابُ مَا جَاءَ فِي الْوُضُوءِ مِمَّا غَيَّرَتِ النَّارُ

### په اوربانديي دپاخه شوو ځيزونو دخوړلو په وجه داودس كولو بيان

يو په بل پسي متصل دوه بابونه دي ديو باب حاصل دادي چي د مامست النار دخوړلو په وجه اودس ماتيږي او په دويم باب كي ددي په خوړلو د اودس نه ماتيدلو بيان دي نبي كريم صلي الله عليه وسلم خلفاء راشدينو او اكثر صحابه كرامو به په اور پاخه شوي ځيزونه خوړل او بيا به يي مونځ كولو او مونځ به يي وركولو او نوي اودس به يي نه كولو په دي مسئله كي اول لږ شان اختلاف وو مګر اوس په اودس نه ماتيدو دامت اجماع ده په اولني باب كي چي كوم احاديث وارد دي دا قولي احاديث دي او په دويم باب كي ټول فعلي احاديث دي او ټول داعلي درجې دي علماء كرامو په دي كي دتطبيق پيدا كولو دپاره مختلفي لاري اختيار كړي دي:

(١) د اولني باب احاديث منسوخ دي او د دويم باب احاديث ناسخ دي يعني درسول الله دزندګئ دوه دورونه دي په اولني دور كي به يي د مامست النار دخوړلو په وجه اودس كولو

ليكن بيا يي عمل بدل كړو دليل په دي باندي دجابر رضي الله عنه حديث دي فرمائي چي "كان اخر الامرين من رسول الله صلي الله عليه وسلم ترك الوضوء مما غيرة النار" يعني درسول الله صلي الله عليه وسلم په دوه عملونو كي اخري عمل دما مست النار دخوړلو په وجه د اودس نه كولو دي (ابو داود) معلومه شوه چي په كومو احاديثو كي دمامست النار څيزونو په خوړلو د اودس حكم دي دا مخكني روايات دي او منسوخ دي

مګر دا تطبيق اطمينان نشي پيدا كولي ځكه چي دجابر رضي الله عنه په مذكوره حديث كي داخرالامرين نه درسول الله دزندګۍ چي دوه دورونه مراد كړي شوي دي دا تفسير متعين نه دي ممكن ده چي دا حديث ديوي تفصيلي واقعي اختصار وي اولنۍ واقعه داده چي يو خل رسول الله او شيخين دابوالهيثم بن تيهان انصاري رضي الله عنه دكجورو باغ ته لاړل او هغوۍ دميلمنو دپاره دچيلۍ غوښه پخه كړه رسول الله صلي الله عليه وسلم او صحابه كرامو غوښه اوخوړله او تازه كجوري يي هم اوخوړلي كله چي دماسپخين دمونځ وخت راغي نو ټولو اودس اوكړو او مونځ يي اداء كړو دمونځ نه پس ټول كيناستل خبري جاري وي دمازيګر دمونځ نه مخكي دچيلۍ دغوښي هغه حصي كومي چي په طور دتفكه خوړلي شي راوړلي شوي ټولو اوخوړلي شي او بيا ټولو دنوي اودس كولو نه بغير دمازيګر مونځ اداء كړو دا په يوه ورځ كي چي دوه معاملي اوشوي يعني دماسپخين دمونځ دپاره يي اودس اوكړو او مونځ يي اوكړو او دمازيګر مونځ يي بغير دنوي اودس نه اوكړو د امرين نه همدا دوه خبري مراد كيدي پس ددي حديث (كان اخر الامرين) لره دنسخ دليل ګرځول درست نه دي ځكه چي دا احتمال موجود دي چي د مامست النار دخوړلو په وجه د اودس حكم روسته راغلي وي

(۲) د اولني باب احاديث معمول بها دي او امر داستحباب دپاره دي يعني دمامست النار دخوړلو په وجه اودس كول مستحب دي دا توجيه هم عموما ډيره ښكلي نه ده او دفقهي په كوم كتاب كي چا مستحب ليكلي نه دي علاوه ددي حديث دراوي نه (ابوهريره) چي هغه ددينه وجوب مراد كوي پس بناء په دي توجيح دراوي قطع كيدل لازميږي

(۳) علامه بلياوي وائي چي په احاديثو كي د مامست النار په خوړلو كي د اودس حكم دامت دخواصو دپاره دي او خواص دامت هغه څوك دي دچا ذهن چي دمسبب نه سبب طرف ته منتقل كيږي ددا سي خلقو دپاره نوي اودس كول پكار دي او ددويم باب په احاديثو كي دعامو مسلمانانو دپاره مسئله بيان شوي ده چي په داسي صورت كي نوي اوس كول واجب نه دي ددي تفصيل نه معلومه شوه چي په دنيا كي څومره مسببات دي ددوۍ دپاره ظاهري اسباب دي په خوړلو خيټه مړيږي او په څكلو تنده ختميږي او په اور كي غورخيدوسره سوزيدل كيږي دا ظاهري اسباب دي او ددي په مقابل كي نور حقيقي اسباب دي او هغه دالله تعالي صفات دي او دا تمام جهان دالله تعالي دصفاتو مظهردي جهنم دالله تعالي دغضب صفت دي او

دجهنم مظهر په دي دنيا كي اور دي پس څوك چي دامت دخواصو نه وي چي كله اوغواړي نو
څكي به او دده ذهن به فورا دگرم چاي نه اور ته منتقل كيږي او د اور نه به جهنم طرف ته او
دجهنم نه به دالله غضب ته منتقل كيږي پس كله چي ذهن دالله غضب ته منتقل شو نو هغه لره
په دي حال كي مونځ كول پكار نه دي بلكه هغه لره پكار دي چي نوي اودس اوكړي تردي چي
داوبو په استعمال كي دده ذهن جنت طرف ته منتقل شي او دجنت نه دالله درحمت صفاتو ته
منتقل شي پس كله چي ذهن د الله تعالي رحمت صفت ته منتقل شي نو دي دي دمونځ
كولودپاره اودريږي.

(۴) يو توجيه دا هم شوي ده چي په مامست النار روايت كي لغوي وضوء مراد ده يعني لاسونه
او خوله وينځل او په نورو رواياتو كي چي كومه نفي راغلي ده دهغي نه دشرعي اودس عدم
وجوب مراد دي.

په يو حديث كي وارد دي ابوهريره رضي الله عنه فرمائي چي په اور باندي دپاخه شوو څيزونو
په خوړلو اودس كول ضروري دي برابره خبره ده چي دا دوچو شوو شودو تكړه ولي نه وي ابن
عباس رضي الله عنهما سوال اوكړو كچري مونږ په بدن تيل اولگوو يا په گرمو اوبو اودس
اوكړو نو زمونږ دپاره څه حكم دي يعني دخارجي استعمال څه حكم دي؟ دا يو مشكل سوال
وو كه ابوهريره رضي الله عنه ددي جواب وركړي وي چي په دي باندي اودس نه ماتيږي او په
گرمو اوبو اودس جائز دي نو ابن عباس به عرض كړي وو چي د داخلي استعمال دپاره هم دا
حكم پكار دي او كه بل جواب يي وركړي وي نو بيا دا په دليل كي پيش كول مشكل كيدل نو
په دي وجه يي ابن عباس اورتلو چي كله مي نږ درسول الله حديث بيان كړو نو ته به عقلي اسونه
نه زغلوي.

په يوه موقعه همدا اعتراض ابن عباس رضي الله عنهما هم كړي دي ابن عباس وړوكي وو نو
خكه يي اورتلو مگر ابن عمر په علم او فضل كي دده سره برابر بلكه دده نه زيات وو هغه ده لره
اورتلو مگر خاموش كولي يي نشو خكه يي ده ته دا جواب وركړو چي ته قريشي يي او زه
دوسي يم ابن عمر پوهه شو او ويي فرمائيل كه دالله پاك دارشاد "بل هم قوم خصمون" سورة
الزخرف ۵۱، لاندي پناه اخلي، دا ايت دقريشي كافرانو په باره كي نازل شوي دي چي دا يو
جنگيري قوم دي ددي سره تكر وهل اسان نه دي (طحاوي).

دسوچ خبره ده دوئ دواړو چي كوم اعتراض اوكړو دابوهريره سره ددي كوم جواب نه وو خو
ددي باوجود هم دوئ دابوهريره دحديث تكذيب اونكړو معلومه شوه چي دا حديث ددوئ په
نزد هم صحيح دي مگر راوي چي ددينه كومه مسئله معلوموي دهغي سره ددي اتفاق نشته.

**************

٧٩_ حَدَّثَنَا ابْنُ أَبِي عُمَرَ. قَالَ: حَدَّثَنَا سُفْيَانُ بْنُ عُيَيْنَةَ، عَنْ مُحَمَّدِ بْنِ عَمْرٍو، عَنْ أَبِي سَلَمَةَ، عَنْ أَبِي هُرَيْرَةَ، قَالَ: قَالَ رَسُولُ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ: "الْوُضُوءُ مِمَّا مَسَّتِ النَّارُ وَلَوْ مِنْ ثَوْرِ أَقِطٍ". قَالَ: فَقَالَ لَهُ ابْنُ عَبَّاسٍ: يَا أَبَا هُرَيْرَةَ أَنَتَوَضَّأُ مِنَ الدُّهْنِ أَنَتَوَضَّأُ مِنَ الْحَمِيمِ ؟ قَالَ: فَقَالَ أَبُو هُرَيْرَةَ: يَا ابْنَ أَخِي إِذَا سَمِعْتَ حَدِيثًا عَنْ رَسُولِ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ فَلَا تَضْرِبْ لَهُ مَثَلًا. قَالَ: وَفِي الْبَابِ عَنْ أُمِّ حَبِيبَةَ، وَأُمِّ سَلَمَةَ، وَزَيْدِ بْنِ ثَابِتٍ، وَأَبِي طَلْحَةَ، وَأَبِي أَيُّوبَ، وَأَبِي مُوسَى. قَالَ أَبُو عِيسَى: وَقَدْ رَأَى بَعْضُ أَهْلِ الْعِلْمِ الْوُضُوءَ مِمَّا غَيَّرَتِ النَّارُ، وَأَكْثَرُ أَهْلِ الْعِلْمِ مِنْ أَصْحَابِ النَّبِيِّ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ وَالتَّابِعِينَ، وَمَنْ بَعْدَهُمْ عَلَى تَرْكِ الْوُضُوءِ مِمَّا غَيَّرَتِ النَّارُ. (١)

**ترجمه** : دابوهريره رضي الله عنه نه روايت دي چي رسول الله صلي الله عليه وسلم فرمائيلي دي په اور دپاخه شوو څيزونو دخوړلو په صورت کي اودس کول لازم دي اګر که دا د پنير ټوکړه ولي نه وي دي وخت کي ابن عباس ورته اووئيل اي ابوهريره دا راته اووايه که مونږ غوړي او ګرمي اوبه هم استعمال کړو نو څه حکم به يي وي ابوهريره اووئيل اي ورارِه کله چي د رسول الله کوم حديث واورئ نو عمل ورباندي کوه او ذخان نه خبري مه جوړوه او دمثال په بيانولو قياس مه کوه

امام ترمذي وائي په دي باب کي دام حبيبه، ام سلمه، زيد بن ثابت، ابوطلحه، ابو ايوب انصاري او ابو موسي اشعري رضي الله عنهم نه هم احاديث وارد دي.

دبعضي اهل علمو رائي داده چي په اور دتيارشوو څيزونو دخوړلو په صورت کي اودس کول ضروري دي ليکن په صحابه کرامو او تابعينو کي او ددوئ نه په روستنو خلقو کي داکثرو اهل علمو مذهب دادي چي په دي کي اودس نشته.

**حل لغات** حدّث يحدّث تحديثا دباب تفعيل نه معني حديث بيانول ، حادثه معني ګفتګو يي ورسره وکړله.

***************

## ٥٩_ بَابُ مَا جَاءَ فِي تَرْكِ الْوُضُوءِ مِمَّا غَيَّرَتِ النَّارُ

**په اور باندي دپاخه شوو څيزونو دخوړلو په وجه د اودس نه کولو بيان**

٨٠_ حَدَّثَنَا ابْنُ أَبِي عُمَرَ. حَدَّثَنَا سُفْيَانُ بْنُ عُيَيْنَةَ، قَالَ: حَدَّثَنَا عَبْدُ اللَّهِ بْنُ مُحَمَّدِ بْنِ عَقِيلٍ، سَمِعَ جَابِرًا، قَالَ سُفْيَانُ: وَحَدَّثَنَا مُحَمَّدُ بْنُ الْمُنْكَدِرِ، عَنْ جَابِرٍ، قَالَ: " خَرَجَ رَسُولُ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ

(١) سنن ابن ماجه الطهارة ٦٥ (٤٨٥) (تحفة الأشراف: ١٥٠٣٠) مسند احمد (٢/٢٦٥، ٢٧١، ٤٥٨، ٤٧٠، ٤٧٩، ٥٠٣) (حسن)

عَلَيْهِ وَسَلَّمَ وَأَنَا مَعَهُ، فَدَخَلَ عَلَى امْرَأَةٍ مِنَ الأَنْصَارِ، فَذَبَحَتْ لَهُ شَاةً، فَأَكَلَ وَأَتَتْهُ بِقِنَاعٍ مِنْ رُطَبٍ، فَأَكَلَ مِنْهُ ثُمَّ تَوَضَّأَ لِلظُّهْرِ وَصَلَّى ثُمَّ انْصَرَفَ، فَأَتَتْهُ بِعُلَالَةٍ مِنْ عُلَالَةِ الشَّاةِ، فَأَكَلَ ثُمَّ صَلَّى الْعَصْرَ وَلَمْ يَتَوَضَّأْ". قال: وَفِي الْبَابِ عَنْ أَبِي بَكْرٍ الصِّدِّيقِ، وَابْنِ عَبَّاسٍ، وَأَبِي هُرَيْرَةَ، وَابْنِ مَسْعُودٍ، وَأَبِي رَافِعٍ، وَأُمِّ الْحَكَمِ، وَعَمْرِو بْنِ أُمَيَّةَ، وَأُمِّ عَامِرٍ، وَسُوَيْدِ بْنِ النُّعْمَانِ، وَأُمِّ سَلَمَةَ. قَالَ أَبُو عِيسَى: وَلَا يَصِحُّ حَدِيثُ أَبِي بَكْرٍ فِي هَذَا الْبَابِ مِنْ قِبَلِ إِسْنَادِهِ، إِنَّمَا رَوَاهُ حُسَامُ بْنُ مِصَكٍّ، عَنِ ابْنِ سِيرِينَ، عَنِ ابْنِ عَبَّاسٍ، عَنْ أَبِي بَكْرٍ الصِّدِّيقِ، عَنِ النَّبِيِّ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ وَالصَّحِيحُ. إِنَّمَا هُوَ عَنِ ابْنِ عَبَّاسٍ، عَنِ النَّبِيِّ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ. هَكَذَا رَوَاهُ الْحُفَّاظُ، وَرُوِيَ مِنْ غَيْرِ وَجْهٍ، عَنِ ابْنِ سِيرِينَ، عَنِ ابْنِ عَبَّاسٍ، عَنِ النَّبِيِّ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ، وَرَوَاهُ عَطَاءُ بْنُ يَسَارٍ، وَعِكْرِمَةُ، وَمُحَمَّدُ بْنُ عَمْرِو بْنِ عَطَاءٍ، وَعَلِيُّ بْنُ عَبْدِ اللَّهِ بْنِ عَبَّاسٍ، وَغَيْرُ وَاحِدٍ عَنِ ابْنِ عَبَّاسٍ، عَنِ النَّبِيِّ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ، وَلَمْ يَذْكُرُوا فِيهِ عَنْ أَبِي بَكْرٍ الصِّدِّيقِ، وَهَذَا أَصَحُّ. قَالَ أَبُو عِيسَى: وَالْعَمَلُ عَلَى هَذَا عِنْدَ أَكْثَرِ أَهْلِ الْعِلْمِ مِنْ أَصْحَابِ النَّبِيِّ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ وَالتَّابِعِينَ وَمَنْ بَعْدَهُمْ، مِثْلِ: سُفْيَانَ الثَّوْرِيِّ، وَابْنِ الْمُبَارَكِ، وَالشَّافِعِيِّ، وَأَحْمَدَ، وَإِسْحَاقَ رَأَوْا تَرْكَ الْوُضُوءِ مِمَّا مَسَّتِ النَّارُ، وَهَذَا آخِرُ الأَمْرَيْنِ مِنْ رَسُولِ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ، وَكَأَنَّ هَذَا الْحَدِيثَ نَاسِخٌ لِلْحَدِيثِ الأَوَّلِ حَدِيثِ الْوُضُوءِ مِمَّا مَسَّتِ النَّارُ. [1]

**ترجمه** : دجابر رضي الله عنه بيان دي چې رسول الله صلي الله عليه وسلم په مدينه کي بهر اووتلو او زه ورسره وم او ديوي انصاريه ښځي کره لاړو او هغي درسول الله دپاره يوه چيلئ ذبح کړه او رسول الله اوخوړله او بيا هغي يو خانك تازه کجوري هم راوړي نو رسول الله ددينه هم خوراك اوکړو او بيا يې دماسپخين مونځ دپاره اودس اوکړو او مونځ يې اداء کړو رسول الله دواپسي تلو اراده کړي وه چې هغي دوباره دچيلئ په پاتي شوي غوښه کي څه حصه حاضره کړه نو رسول الله دا هم اوخوړله او بيا يې دمازيگر مونځ اوکړو او دوباره يې نوي اودس اونکړو.

امام ترمذي واني په دي باب کي دابوبکر صديق، ابن عباس، ابوهريره، ابن مسعود، ابو رافع، ام الحکم، عمرو بن اميه، ام عامر، سويد بن نعمان او ام سلمه رضي الله عنهم نه هم احاديث وارد دي

او دابوبکر رضي الله عنه کوم حديث کوم چې ابن عباس نقل کړي دي سنداً ضعيف دي او دابن عباس مرفوعاً حديث زيات صحيح دي او حافظانو همداسي روايت کړي دي.

---

[1] تفرد به المؤلف (تحفة الأشراف : ٢٣٦٨) وانظر مسند احمد (٣/١٢٥، ٢٦٩) (حسن صحيح)

دصحابه كرامو او تابعينو او ددوئ نه پس په روستنو خلقو كي داكثرو اهل علمو لكه سفيان ثوري، ابن مبارك، شافعي، احمد، او اسحاق بن راهويه رحمهم الله رحمهم الله هم په دي باندي عمل دي چي په اور باندي په پاخه شوي څيزونو خوړلو كي اودس كول نشته اوهمدا درسول الله صلي الله عليه وسلم اخري فعل دي گويا كي دا حديث دسابقه باب دپاره ناسخ دي په كوم كي چي په اور دپخو شوو څيزونو په خوړلو نوي اودس كول لازميږي

**حل لغات** الحفاظ حفاظ د حافظ جمع ده لكه چي حافظ القران يا حافظ الحديث ته ونلى شي

**تشريح** : په دي مسئله كي اختلاف دي چي په اور باندي پخوو شوو څيزونو په خوړلو اودس ماتيږي او كنه؟ په دي كي دوه مذاهب دي

(١) دجمهورو په نزد دا اشياء غير ناقض للوضوء دي

اولني دليل زير بحث حديث دي دجابر رضي الله عنه نه روايت دي چي يوي انصاري ښځي رسول الله ته دخوراك دپاره دعوت وركړي وو او چيلئ يي ذبح كړي وه نو رسول الله اوخوړلو او بيا يي اودس اوكړو او دماسپخين مونځ يي اوكړو بيا يي دماسپخين دمونځ نه پس باقي خوراك اوكړو او بيا يي دنوي اودس كولو نه بغير دمازيگر مونځ اوكړو ددينه معلومه شوه چي د ما مست النار خوړل موجب داودس او ناقض للوضوء نه دي

دليل ثاني دويم دليل عقلي دي او هغه دادي يو څيز اوردي او يو څيز بل څيزدي هر كله چي مونږ په دوئ كي په هر يو باندي جدا جدا غور اوكړو نو معلومه شوه چي دا ناقض للوضوء نه دي، شي بذات خود ناقض للوضوء نه دي او دا خكه كچري دا څيز خام استعمال كړي شي نو ناقض للوضوء نه دي او دا رنگي اور هم د اودس په ماتولو كي دخل نه لري او دا خكه كه يو كس په گرمو اوبو اودس اوكړي نو اودس يي كيږي كله چي دا څيزونه جدا جدا موجب د اودس ماتولو نه وي نو ددواړو مجموعه به هم موجب دپاره د نقض د وضوء نه وي ددينه معلومه شوه چي ما مست النار ناقض للوضوء نه دي

(٢) دبعضي اهل علمو په نزد خوړل دمامست النار ناقض للوضوء دي ددوئ دليل په سابقه باب كي روايت دابوهريره دي.

جواب نمبر (١) دا حكم په ابتداء كي وو بيا منسوخ شوي دي لكه چي امام ترمذي دجابر رضي الله عنه دحديث په ضمن كي پخپله وضاحت كړي دي چي "هذا اخر الامرين من رسول الله صلي الله عليه وسلم"

جواب نمبر (۲)، په كومو رواياتو كي چي داودس حكم دي هلته وجوب مراد نه دي بلكه په استحباب محمول دي خكه چي بعضي وخت رسول الله اودس كړي دي او بعضي وخت يي نه دي كړي او دا شان داستحباب دي

جواب نمبر (۳)، په كومو رواياتو كي چي د اودس كولو ذكر دي هلته وضوء لغوي مراد دي يعني لاسونه او خوله وينځل او ددي دليل په ترمذي كي روايت دعكراش دي چي رسول الله خوراك اوكړو او بيا يي اوبه راوغوښتلي لاسونه او خوله يي اووينځلي او بيا يي لاسونو رطوبت په مخ باندي راښكل او بيا يي اوفرمائيل ياعكراش هذا الوضوء مما مست النار.

***************

## ٦٠_ بَابُ مَا جَاءَ فِي الْوُضُوءِ مِنْ لُحُومِ الإِبِلِ

## د اوښانو د غوښي خوړلو په صورت کي د اودس کولو بيان

٨١_ حَدَّثَنَا هَنَّادٌ، حَدَّثَنَا أَبُو مُعَاوِيَةَ، عَنِ الأَعْمَشِ، عَنْ عَبْدِ اللَّهِ بْنِ عَبْدِ اللَّهِ الرَّازِيِّ، عَنْ عَبْدِ الرَّحْمَنِ بْنِ أَبِي لَيْلَى، عَنِ الْبَرَاءِ بْنِ عَازِبٍ، قَالَ: سُئِلَ رَسُولُ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ عَنِ الْوُضُوءِ مِنْ لُحُومِ الإِبِلِ، فَقَالَ: "تَوَضَّئُوا مِنْهَا"، وَسُئِلَ عَنِ الْوُضُوءِ مِنْ لُحُومِ الْغَنَمِ، فَقَالَ: "لَا تَتَوَضَّئُوا مِنْهَا". قال: وَفِي الْبَاب عَنْ جَابِرِ بْنِ سَمُرَةَ، وَأُسَيْدِ بْنِ حُضَيْرٍ. قَالَ أَبُو عِيسَى: وَقَدْ رَوَى الْحَجَّاجُ بْنُ أَرْطَاةَ هَذَا الْحَدِيثَ، عَنْ عَبْدِ اللَّهِ بْنِ عَبْدِ اللَّهِ، عَنْ عَبْدِ الرَّحْمَنِ بْنِ أَبِي لَيْلَى، عَنْ أُسَيْدِ بْنِ حُضَيْرٍ، وَالصَّحِيحُ حَدِيثُ عَبْدِ الرَّحْمَنِ بْنِ أَبِي لَيْلَى، عَنِ الْبَرَاءِ بْنِ عَازِبٍ، وَهُوَ قَوْلُ أَحْمَدَ، وَإِسْحَاق، وَرَوَى عُبَيْدَةُ الضَّبِّيُّ، عَنْ عَبْدِ اللَّهِ بْنِ عَبْدِ اللَّهِ الرَّازِيِّ، عَنْ عَبْدِ الرَّحْمَنِ بْنِ أَبِي لَيْلَى، عَنْ ذِي الْغُرَّةِ الْجُهَنِيِّ، وَرَوَى حَمَّادُ بْنُ سَلَمَةَ هَذَا الْحَدِيثَ، عَنِ الْحَجَّاجِ بْنِ أَرْطَاةَ فَأَخْطَأَ فِيهِ، وَقَالَ فِيهِ: عَنْ عَبْدِ اللَّهِ بْنِ عَبْدِ الرَّحْمَنِ بْنِ أَبِي لَيْلَى، عَنْ أَبِيهِ، عَنْ أُسَيْدِ بْنِ حُضَيْرٍ وَالصَّحِيحُ، عَنْ عَبْدِ اللَّهِ بْنِ عَبْدِ اللَّهِ الرَّازِيِّ، عَنْ عَبْدِ الرَّحْمَنِ بْنِ أَبِي لَيْلَى، عَنِ الْبَرَاءِ بْنِ عَازِبٍ، قَالَ إِسْحَاق: صَحَّ فِي هَذَا الْبَابِ حَدِيثَانِ، عَنْ رَسُولِ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ، حَدِيثُ الْبَرَاءِ، وَحَدِيثُ جَابِرِ بْنِ سَمُرَةَ، وَهُوَ قَوْلُ أَحْمَدَ، وَإِسْحَاق، وَقَدْ رُوِيَ عَنْ بَعْضِ أَهْلِ الْعِلْمِ مِنَ التَّابِعِينَ وَغَيْرِهِمْ، أَنَّهُمْ لَمْ يَرَوْا الْوُضُوءَ مِنْ لُحُومِ الإِبِلِ، وَهُوَ قَوْلُ سُفْيَانَ الثَّوْرِيِّ، وَأَهْلِ الْكُوفَةِ. [1]

[1] سنن ابي داود/ الطهارة ٧٢ (١٨٤)، سنن ابن ماجه/الطهارة ٦٧ (٤٩٤)، (تحفة الأشراف: ١٧٨٣)، مسند احمد (٤/٢٨٨)

**ترجمه** : دبراء بن عازب رضي الله عنه نه روايت دي فرمائي چي درسول الله صلي الله عليه وسلم نه د اوښ دغوښي خوړلو باره كي تپوس اوكړي شو نو ويي فرمائيل ددي دخوړلو په صورت كي اودس كوئ او چي دچيلئ دغوښي په باره كي ورنه تپوس اوكړي شو نو ويي فرمائيل ددي دخوړلو په صورت كي اودس مه كوئ
امام ترمذي وائي په دي باب كي دجابر بن سمره او اسد بن حضير رضي الله عنهما نه هم احاديث وارد دي
او همدا قول دامام احمد او عبدالله او اسحاق بن راهويه رحمهم الله دي اسحاق بن راهويه رحمهم الله وائي چي په دي باب كي درسول الله صلي الله عليه وسلم نه دوه احاديث ثابت دي يو دبراء بن عازب كوم چي مؤلف ذكر كړي دي او ددي په سند يي كلام كړي دي او دويم دجابر بن سمره دي. څلورم همدا قول دامام احمد او اسحاق بن راهويه دي او په تابعينو وغيره كي دبعضي اهل علمو نه مروي دي چي داوښ دغوښي دخوړلو په صورت كي اودس نشته او همدا دسفيان ثوري قول دي
**تشريح** : خوړل دغوښي د اوښانو په باره كي مذاهب دفقهاؤ چي دا موجب د اودس ده او كنه په دي باره كي دفقهاؤ دوه مذاهب دي. اول مذهب دجمهورو دي ددوئ په نزد موجب للوضوء نه دي. دويم مذهب دحنابله او اسحاق بن راهويه دي ددوئ په قول اكل دلحوم الابل موجب للوضوء دي
دجمهورو دليل داسي يو صحيح حديث دي كوم چي په دي خبره كي محكم دي چي په اكل دلحوم الابل موجب للوضوء كيدو باندي داسي بل حديث نشته گويا كي عدم دليل دجمهورو دليل دي.
حنبليان په دي مسئله كي دحديث الباب نه استدلال كوي چي درسول الله صلي الله عليه وسلم نه كله داوښانو دغوښي په باره كي تپوس اوكړي شونو ويي فرمائيل ددي دخوړلو په صورت كي اودس كوئ او چي دچيلئ دغوښي په باره كي ورنه تپوس اوكړي شو نو ويي فرمائيل ددي دخوړلو په صورت كي اودس مه كوئ. امام احمد او اسحاق وائي چونكه رسول الله داوښ غوښي دخوړلو په صورت كي د اودس حكم كړي دي نو په دي وجه ددي غوښي خوراك ناقض للوضوء دي. البته كه څوك داوښ كليجي، پرپوس، گورده، زړه يا لري وغيره اوخوري نو ددي دخوړلو په صورت كي اودس نه ماتيږي څكه چي پدي څيزونو دغوښي اطلاق نه كيږي او اودس صرف ددي دغوښي په خوړلو ماتيږي ددي باب روايات چي د امام احمد مستدلات دي جمهورو ددينه متعدد جوابات كړي دي

جواب نمبر (۱) داكل دلحوم الابل موجب للوضوء كيدو والا روايات منسوخ دي او ناسخ "كان اخر الامرين ترك الوضوء مما مست النار" روايات دي.
جواب نمبر (۲) په دي امت داوښانوغوښي حلالي دي او په نورو امتونو حرامي وي ددي اباحت دشكريه اداء كولو دپاره داوښانو دغوښي خوړلو په صورت كي د اودس حكم شوي دي.
جواب نمبر (۳) په مدينه منوره كي په شروع كي د يهوديانو دتاليف قلب دپاره رسول الله صلي الله عليه وسلم ددوئ سره په بعضي امورو كي مشابهت اختيارولو لكه دبيت الله په ځاي مسجد اقصي (بيت المقدس ته مونځ كول وغيره) او د اوښانو مسئله يوه داسي مسئله وه چي يو طرف ته دعربو محبوب ترين مال اوښان وو او ديو بهترين څيز تشبيه به يي داوښ سره وركوله بل طرف ته يهوديانو داوښانو نه سخت نفرت كولو ددي وجه دا وه چي يعقوب عليه السلام په يوه بيمارئ كي نذر منلي وو چي الله تعالي كه ده ته صحت وركړو نو د اوښ غوښه به نه خوري نو يهوديانو داوښ غوښه په ځان حرامه كړي وه نو ددوئ په اولاد كي هم ددينه نفرت راروان وو او ديهودو نه په مخالفت كولو كي دفتني خطره وه او كه پليته يي ګرځولي وي نو مشركين خرابيدل پس په دي وجه رسول الله صلي الله عليه وسلم په دغه وخت كي د اودس كولو حكم اوكړو چي خوړلي يي شئ مګر ددي دخوړلو نه پس به اودس كوئ روسته چي كله دا علت ختم شو او د "خالفوا اليهود" اعلانات اوشول نو داودس كولو حكم منسوخ شو لكه څنګه چي ديهوديانوسره نورممانعتونه ممنوع اوګرځيدل.
جواب نمبر (۴) وضوء په دوه قسمه دي يو وضوء شرعي دي او بل لغوي دي شرعي وضوء هغه دي كوم چي دمونځ دپاره شرط دي او لغوي وضوء دمخ لاس وينځلو ته وائي او دلته هم دا معني مراد دي كما مر
سوال كه وضوء لغوي مراد وي نوبيا داوښانو او چيلو دغوښي په خوړلو كي فرق كول نه وو پكار؟
جواب دادي په دي كي فرق دي ځكه چي داوښانو غوښي دخوړلو په صورت كي دلاسونو وينځل علي وجه التاكيد مستحب دي مګر دچيلو دغوښي دخوړلو په صورت كي دلاسونو وينځل نفس مستحب دي ځكه چي داوښانو په غوښه كي ځليښت زيات وي په خلاف دچيلو دغوښي ځكه چي په دي كي كم وي. دويمه وجه داستحباب داده چي دجاهليت په دور كي خلقو دنظافت خيال نه ساتلو نه به يي غرغره كوله او نه به يي خلال كولو او غوښه به يي په شوكولو خوړله نو په غابنونو كي دغوښي پاتي كيدل يو يقيني خبره ده دا رنګي چونكه داوښانو په غوښه كي ځليښت زيات وي نو لاسونه هم ځليښت كوي نو استحبابا ددي دخوړلو

په صورت کي د اودس حکم اوشو دپاره دنظافت په دې کي مزید سابقه توجیهات هم کیدې شي.
علامه ابن قیم اعتراض کړي دي چي دا حدیث څنګه ناسخ کرځیدې شي دلحوم الابل دخوړلو په صورت کي د اودس کولو دپاره ځکه چي لحوم الابل داوړ په وجه ناقض نه وي بلکه دلحوم الابل کیدو په وجه ناقض وي مګر په حدیث کي صرف ترك الوضوء مما غیرت النار ذکر راغلي دي او د اوښ غوښه که خامه هم اوخوړلې شي نو ناقض بالوضوء دي ځکه چي حدیث مطلق دي او عام دي خامي غوښي ته هم شامل دي
جواب کچري تاسو روایت لره په خامي او پخي غوښي دواړو باندي حمل کړئ نو بیا دلحوم الابل په لیدلو اوبوي کولو او لاس لګیدو سره هم اودس ماتیدل پکار دي اوحال دادې چي تاسو ددې قائل نه یئ بلکه دې لره په متعارف حمل کوئ او متعارف خو داوښ نو دپخي غوښي خوړل دي نه چي دخامي جویولو لهذا دا روایت دجابر رضي الله عنه په روایت منسوخ دي
"قال ابو عیسی" مقصد دامام ترمذي دادې چي روایت دعبدالله دري شاګردانو نقل کړې دي اول اعمش، دویم حجاج بن ارطاة، دریم عبیدة . بیا د اعمش په روایت کي دي چي دا روایت دبراء بن عازب دمسنداتو نه دي او د حجاج په روایت کي دي چي دا روایت داسید بن حضیر دمسنداتو نه دي او په یو بل روایت کي دحجاج شاګرد حماد بن سلمه هم دا روایت داسید بن حضیر په مسنداتو کي شمیرلي دي مګر په دې کي دعبدالله بن عبدالرحمن عن ابیه ذکر کوي والصحیح عبدالله بن عبدالرحمن عبیده دي لره د ذي العزة نه نقل کوي. امام ترمذي وائي چي په دې باب کي صرف دوه صحیح روایتونه دي چي یو روایت دجابر دې کوم چي په مسلم کي دې او یو روایت دبراء بن عازب دې کوم چي ورنه اعمش نقل کوي نو داعمش روایت دحجاج او عبیده په مقابله کي صحیح دې ددې یوه وجه داده چي عبدالرحمن بن ابي یعلی روایت دبراء بن عازب سره متصل دې ځکه چي ددوئ ملاقات ثابت دې.

## دبراء بن عازب رضي الله عنه دژندګئ حالات

نوم براء، کنیه ابو عماره او دبنو حارثه سره یې تعلق وو دپلار نوم یې عازب دی دده ماما ابوبرده بن نیار چي بدري صحابي دی په عقبه کي اسلام قبول کړی دی او دهغه په برکت سره دهغه په خاندان کي اسلام خور شو او چي مسلمان شو نو په مدینه کي یې دمصعب بن عمیر او ابن ام مکتوم رضي الله عنهما نه قران یادول شروع کړل په بدر کي براء حاضر شوی وو لیکن دماشوم توب په وجه رسول الله صلي الله علیه وسلم واپس کړی وو (بخاري)
عرض دا چي په احد . خندق، خدیبیه، خیبر، او حنین کي یې شرکت کړی دی او دطائف په محاصره حجة الوداع کي یې هم درسول الله صلي الله علیه وسلم ملګرتیا کړي ده تردې چي په

پنځلس غزواتو کي شريك شوی دی (مسند احمد)
تواضع او عاجزي او انکساري يي امتيازي صفات دي خپل ځان به يي ناچيز ګڼرلو په کوفه کي يي يو کوز جوړ کړی وو او په هغي کي اوسيدو په رواياتو کي به يي ډير احتياط کولو چي دمروياتو شمير يي ۳۰۵ دی ۳۲ متفق عليه دي په احاديثو نقل کولو کي به يي داحتياط په مناسبت ونيل "ماكل الحديث سمعناه من رسول الله صلي الله عليه وسلم كان يحدثنا اصحابنا عنه كانت شغلنا عنه رعية الابل . مسند احمد".
يعني ټومره احاديث چي زه بيانوم په هغي کي دا ضروري نه ده چي ټول مي دي درسول الله صلي الله عليه وسلم نه اوريدلي دي مونږ خو به اوښان څرول نو په دي وجه به هر وخت درسول الله په خدمت کي حاضريدی نشو

****************

## ٦١ـ بَابُ الْوُضُوءِ مِنْ مَسِّ الذَّكَرِ

٨٢ـ حَدَّثَنَا إِسْحَاقُ بْنُ مَنْصُورٍ، قَالَ: حَدَّثَنَا يَحْيَى بْنُ سَعِيدٍ الْقَطَّانُ، عَنْ هِشَامِ بْنِ عُرْوَةَ، قَالَ: أَخْبَرَنِي أَبِي، عَنْ بُسْرَةَ بِنْتِ صَفْوَانَ، أَنَّ النَّبِيَّ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ قَالَ: " مَنْ مَسَّ ذَكَرَهُ فَلَا يُصَلِّ حَتَّى يَتَوَضَّأَ ". قَالَ: وَفِي الْبَابِ عَنْ أُمِّ حَبِيبَةَ، وَأَبِي أَيُّوبَ، وَأَبِي هُرَيْرَةَ، وَأَرْوَى ابْنَةِ أُنَيْسٍ، وَعَائِشَةَ، وَجَابِرٍ، وَزَيْدِ بْنِ خَالِدٍ، وَعَبْدِ اللَّهِ بْنِ عَمْرٍو. قَالَ أَبُو عِيسَى: هَذَا حَسَنٌ صَحِيحٌ. قَالَ: هَكَذَا رَوَاهُ غَيْرُ وَاحِدٍ مِثْلَ هَذَا، عَنْ هِشَامِ بْنِ عُرْوَةَ، عَنْ أَبِيهِ، عَنْ بُسْرَةَ. (١)

**ترجمه** : د بسره بنت صفوان بيان دی چي رسول الله فرمائيلي دي: څوك چي دخپلي شرمګاه سره لاس ولګوي نو چي ترڅو يي اودس نه وي کړی تر هغي دي مونځ نه کوي.
امام ترمذي وايي دبسره حديث حسن صحيح دی.
او په دي باب کي د ام حبيبه، ابو ايوب، ابو هريره، اروي بنت انيس، عائشه، جابر، زيد بن خالد، او عبد الله بن عمر رضي الله عنهم نه هم احاديث وارد دي.
بعضي راويانو دا روايت د هشام بن عروه نه اوهغه دخپل پلار نه او هغه دبسره نه نقل کړی دی

[1] سنن ابي داود/ الطهارة ٧٠ (١٨١) سنن النسائي/الطهارة ١١٨ (١٦٣) . والغسل ٣٠ (٤٤٧) . سنن ابن ماجه/الطهارة ٦٣ (٤٧٩) (تحفة الأشراف ١٥٧٨٥) . موطا امام مالك/الطهارة ١٥ (٥٨ مسند احمد (٦/٤٠٦) ٤٠٧) . سنن الدارمي/الطهارة ٥٠ (٧٥١)

Scanned with C

**د راوي حالات** : (بسرة بنت صفوان) بضم الموحدة وسكون السين صحابية لها سابقة وهجرة عاشت إلى ولاية معاوية(تحفة الاحوذي).

****************

٨٣ـ وَرَوَى أَبُو أُسَامَةَ، وَغَيْرُ وَاحِدٍ هَذَا الْحَدِيثَ، عَنْ هِشَامِ بْنِ عُرْوَةَ، عَنْ أَبِيهِ، عَنْ مَرْوَانَ، عَنْ بُسْرَةَ، عَنِ النَّبِيِّ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ نَحْوَهُ، حَدَّثَنَا بِذَلِكَ إِسْحَاقُ بْنُ مَنْصُورٍ، حَدَّثَنَا أَبُو أُسَامَةَ بِهَذَا. ([1])

**ترجمه** : ابو اسامه او بعضي كسانو دا حديث په دي سند نقل كړی دی هشام بن عروه عن ابيه عن مروان بن بسره عن رسول الله صلي الله عليه وسلم

**د راوي حالات** : تقدم ذكرها قريبا فيما قبل.

****************

٨٤ـ وَرَوَى هَذَا الْحَدِيثَ أَبُو الزِّنَادِ، عَنْ عُرْوَةَ، عَنْ بُسْرَةَ، عَنِ النَّبِيِّ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ. حَدَّثَنَا بِذَلِكَ عَلِيُّ بْنُ حُجْرٍ، قَالَ: حَدَّثَنَا عَبْدُ الرَّحْمَنِ بْنُ أَبِي الزِّنَادِ، عَنْ أَبِيهِ، عَنْ عُرْوَةَ، عَنْ بُسْرَةَ، عَنِ النَّبِيِّ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ نَحْوَهُ، وَهُوَ قَوْلُ غَيْرِ وَاحِدٍ مِنْ أَصْحَابِ النَّبِيِّ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ وَالتَّابِعِينَ، وَبِهِ يَقُولُ الأَوْزَاعِيُّ، وَالشَّافِعِيُّ، وَأَحْمَدُ، وَإِسْحَاقُ. قَالَ مُحَمَّدٌ: وَأَصَحُّ شَيْءٍ فِي هَذَا الْبَابِ حَدِيثُ بُسْرَةَ، وقَالَ أَبُو زُرْعَةَ: حَدِيثُ أُمِّ حَبِيبَةَ فِي هَذَا الْبَابِ صَحِيحٌ، وَهُوَ حَدِيثُ الْعَلَاءِ بْنِ الْحَارِثِ، عَنْ مَكْحُولٍ، عَنْ عَنْبَسَةَ بْنِ أَبِي سُفْيَانَ، عَنْ أُمِّ حَبِيبَةَ، وقَالَ مُحَمَّدٌ: لَمْ يَسْمَعْ مَكْحُولٌ مِنْ عَنْبَسَةَ بْنِ أَبِي سُفْيَانَ، وَرَوَى مَكْحُولٌ، عَنْ رَجُلٍ، عَنْ عَنْبَسَةَ غَيْرَ هَذَا الْحَدِيثِ، وَكَأَنَّهُ لَمْ يَرَ هَذَا الْحَدِيثَ صَحِيحًا. ([2])

---

[1] سنن ابي داود/ الطهارة ٧٠ (١٨١) ، سنن النسائي/الطهارة ١١٨ (١٦٣) ، والغسل ٣٠ (٤٣٧) ، سنن ابن ماجه/الطهارة ٦٣ (٤٧٩) (تحفة الأشراف : ١٥٧٨٥) ، موطا امام مالک/الطهارة ١٥ (٥٨ مسند احمد (٦/٤٠٦ ، ٤٠٧) ، سنن الدارمی/الطهارة ٥٠ (٧٥١)

[2] سنن ابي داود/ الطهارة ٧٠ (١٨١) ، سنن النسائي/الطهارة ١١٨ (١٦٣) ، والغسل ٣٠ (٤٣٧) ، سنن ابن ماجه/الطهارة ٦٣ (٤٧٩) (تحفة الأشراف : ١٥٧٨٥) ، موطا امام مالک/الطهارة ١٥ (٥٨ مسند احمد (٦/٤٠٦ ، ٤٠٧) ، سنن الدارمی/الطهارة ٥٠ (٧٥١)

**ترجمه** : دارنګي دا روايت داسي هم منقول دی ابو الزناد بسنده عن عروة عن النبي صلى الله عليه وسلم او همدا په صحابه کرامو او تابعينو کي د بعضو قول دی، اوهم ددي قول قائلين اوزاعي، شافعي، احمد او اسحاق بن راهويه (رحمهم الله) هم دي
امام بخاري وايي چي د بسره حديث په دي باب کي دټولو نه زيات صحيح دی، ابو زرعه وايي د ام حبيبه حديث هم په دي باب کي صحيح دی. امام بخاري داهم وايي چي د مکحول سماع د عمرو بن عنبسه نه ثابت نه ده. او مکحول ديو کس نه اوهغه د عنبسه نه ددي روايت نه علاوه يو بل روايت هم نقل کړی دی ، ګويا کي امام بخاري دا روايت صحيح نه ګني
**تشريح** : مس الذکر مسئله د امام ابو حنيفه په نزد ناقض للوضوء نه ده اود طلق بن علي د روايت نه استدلال کوي.
**دراوي حالات** : تقدم ذکرها قريبا فيما قبل

**************

## ٦٢ـ بَابُ مَا جَاءَ فِي تَرْكِ الْوُضُوءِ مِنْ مَسِّ الذَّكَرِ

٨٥ـ حَدَّثَنَا هَنَّادٌ، حَدَّثَنَا مُلَازِمُ بْنُ عَمْرٍو، عَنْ عَبْدِ اللَّهِ بْنِ بَدْرٍ، عَنْ قَيْسِ بْنِ طَلْقِ بْنِ عَلِيٍّ هُوَ الْحَنَفِيُّ، عَنْ أَبِيهِ، عَنِ النَّبِيِّ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ، قَالَ: "وَهَلْ هُوَ إِلَّا مُضْغَةٌ مِنْهُ؟ أَوْ بَضْعَةٌ مِنْهُ؟".
قَالَ: وَفِي الْبَابِ عَنْ أَبِي أُمَامَةَ. قَالَ أَبُو عِيسَى: وَقَدْ رُوِيَ عَنْ غَيْرِ وَاحِدٍ مِنْ أَصْحَابِ النَّبِيِّ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ وَبَعْضِ التَّابِعِينَ، أَنَّهُمْ لَمْ يَرَوْا الْوُضُوءَ مِنْ مَسِّ الذَّكَرِ، وَهُوَ قَوْلُ أَهْلِ الْكُوفَةِ، وَابْنِ الْمُبَارَكِ، وَهَذَا الْحَدِيثُ أَحْسَنُ شَيْءٍ رُوِيَ فِي هَذَا الْبَابِ، وَقَدْ رَوَى هَذَا الْحَدِيثَ أَيُّوبُ بْنُ عُتْبَةَ، وَمُحَمَّدُ بْنُ جَابِرٍ، عَنْ قَيْسِ بْنِ طَلْقٍ، عَنْ أَبِيهِ، وَقَدْ تَكَلَّمَ بَعْضُ أَهْلِ الْحَدِيثِ فِي مُحَمَّدِ بْنِ جَابِرٍ، وَأَيُّوبَ بْنِ عُتْبَةَ، وَحَدِيثُ مُلَازِمِ بْنِ عَمْرٍو، عَنْ عَبْدِ اللَّهِ بْنِ بَدْرٍ، أَصَحُّ وَأَحْسَنُ. [1]
**ترجمه** : د طلق بن علي رضي الله عنه نه روايت دی فرماني چي رسول الله د عضو تناسل په سلسله کي اوفرمائيل: دا خو د جسم يود لکچي دار ټکړه ده.
امام ترمذي وايي په دي سلسله کي د ابو امامه رضي الله عنه نه هم يو روايت وارد دی. بعضي صحابه کرامو او بعضي تابعينو هم پدي قول کړی دی چي د عضو تناسل په مسه کولو اودس نه ماتيږي او همدا د اهل کوفه او ابن مبارك قول دی، ددي باب په مروي احاديث کي د ټولو نه

---
[1] سنن ابي داود/الطهارة ٧١ (١٨٣) . سنن النسائي/الطهارة ١١٩ (١٦٥) . سنن ابن ماجه/الطهارة ٦٣ (٤٨٣) (تحفة الأشراف : ٥٠٢٣) مسند احمد (٤/٢٢، ٢٣)

زيات عمده او قوي روايت همدادى ابو ايوب عتبه او محمد بن جابر هم دا روايت د قيس بن طلق نه د عن ابيه په سند سره نقل كړى دى ، بعضي محدثينو په محمد بن جابر او ايوب بن عتبه باندي كلام كړى دى. د ملازم بن عمرو روايت كوم چي د عبد الله بن بدر نه نقل كړى دي د تولو نه عمده او صحيح ترين روايت دى

**تشريح** : دا باب د ماقبل باب مقابل دى او په دي كي د احنافو دپاره دليل دى ددلائلو تفصيل په تعليمات محمدي كي مذكور دى

**د ابو امامه اياس بن ثعلبه حارثي رضي الله عنه حالات**

نوم اياس ليكن دبعضو په نزد دده نوم عبدالله بن ثعلبه وو او ددي برعكس ثعلبه بن عبدالله هم ونيلى شوى دى كنيه يي ابو امامه وه اودپلار نوم يي ثعلبه يا عبدالله وو او دقبيله خزرج سره يي تعلق وو دده نه دوه يا دري روايتونه منقول دي يو په بخاري كي دى او يو په مسلم كي

****************

## ٦٣ـ بَابُ مَا جَاءَ فِي تَرْكِ الْوُضُوءِ مِنَ الْقُبْلَةِ

٨٦ـ حَدَّثَنَا قُتَيْبَةُ، وَهَنَّادٌ، وَأَبُو كُرَيْبٍ، وَأَحْمَدُ بْنُ مَنِيعٍ، وَمَحْمُودُ بْنُ غَيْلَانَ، وَأَبُو عَمَّارٍ الحُسَيْنُ بْنُ حُرَيْثٍ، قَالُوا: حَدَّثَنَا وَكِيعٌ، عَنِ الأَعْمَشِ، عَنْ حَبِيبِ بْنِ أَبِي ثَابِتٍ، عَنْ عُرْوَةَ، عَنْ عَائِشَةَ، أَنَّ النَّبِيَّ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ "قَبَّلَ بَعْضَ نِسَائِهِ، ثُمَّ خَرَجَ إِلَى الصَّلَاةِ وَلَمْ يَتَوَضَّأْ، قَالَ: قُلْتُ: مَنْ هِيَ إِلَّا أَنْتِ، قَالَ: فَضَحِكَتْ". قَالَ أَبُو عِيسَى: وَقَدْ رُوِيَ نَحْوُ هَذَا، عَنْ غَيْرِ وَاحِدٍ مِنْ أَهْلِ العِلْمِ مِنْ أَصْحَابِ النَّبِيِّ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ وَالتَّابِعِينَ، وَهُوَ قَوْلُ سُفْيَانَ الثَّوْرِيِّ، وَأَهْلِ الكُوفَةِ، قَالُوا: لَيْسَ فِي القُبْلَةِ وُضُوءٌ، وقَالَ مَالِكُ بْنُ أَنَسٍ، وَالأَوْزَاعِيُّ، وَالشَّافِعِيُّ، وَأَحْمَدُ، وَإِسْحَاقُ: فِي القُبْلَةِ وُضُوءٌ، وَهُوَ قَوْلُ غَيْرِ وَاحِدٍ مِنْ أَهْلِ العِلْمِ مِنْ أَصْحَابِ النَّبِيِّ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ وَالتَّابِعِينَ، وَإِنَّمَا تَرَكَ أَصْحَابُنَا حَدِيثَ عَائِشَةَ عَنِ النَّبِيِّ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ فِي هَذَا، لِأَنَّهُ لَا يَصِحُّ عِنْدَهُمْ لِحَالِ الإِسْنَادِ، قَالَ: وسَمِعْت أَبَا بَكْرٍ العَطَّارَ البَصْرِيَّ يَذْكُرُ، عَنْ عَلِيِّ بْنِ المَدِينِيِّ، قَالَ: ضَعَّفَ يَحْيَى بْنُ سَعِيدٍ القَطَّانُ هَذَا الحَدِيثَ جِدًّا، وَقَالَ: هُوَ شِبْهُ لَا شَيْءَ، قَالَ: وسَمِعْت مُحَمَّدَ بْنَ إِسْمَاعِيلَ يُضَعِّفُ هَذَا الحَدِيثَ، وقَالَ: حَبِيبُ بْنُ أَبِي ثَابِتٍ لَمْ يَسْمَعْ مِنْ عُرْوَةَ، وَقَدْ رُوِيَ عَنْ إِبْرَاهِيمَ التَّيْمِيِّ، عَنْ عَائِشَةَ، أَنَّ النَّبِيَّ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ قَبَّلَهَا وَلَمْ يَتَوَضَّأْ، وَهَذَا لَا يَصِحُّ أَيْضًا، وَلَا نَعْرِفُ

لِإِبْرَاهِيمَ التَّيْمِيِّ سَمَاعًا مِنْ عَائِشَةَ. وَلَيْسَ يَصِحُّ عَنِ النَّبِيِّ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ فِي هَذَا الْبَابِ شَيْءٌ.[1]

**ترجمه** : د عائشه رضي الله عنها نه مروي دي چي رسول الله پخپلو ببيانو كي كومه يوه بي بي ښكل كړه او بيا مونځ ته روان شو او او نوي اودس يي ونكړو، عروه وايي چي ما خپلي ترور عائشي ته ووئيل شايد هغه به ته وى نو ام المؤمنين په خندا شوه

امام ترمذي وايي په صحابه كرامو او تابعينو كي د ډيرو كسانو نه داسي اقوال مروي دي، او همدا د سفيان ثوري او اهل كوفه قول هم دى، چي په ښكلولو اودس نه واجب كيږي، مګر مالك بن انس، اوزاعي، شافعي، احمد او اسحاق بن راهويه (رحمهم الله)وايي په ښكلولو اودس ماتيږي او همدا قول دبعضي صحابه كرامو او بعضي تابعينو هم دى.

زمونږ علماؤ د عائشه په حديث كوم چي د رسول الله نه مروي دى صرف په دي وجه عمل ندى كړي چي داد سند په اعتبار درست نه دى، يحي بن سعيد القطان يي تضعيف كړى دى، وايي چي دا روايت ليس بشيء دى ، اود امام بخاري نه مي هم ددي روايت تضعيف اوريدلى دي، وايي چي د حبيب بن ثابت سماع د عروه نه ثابت نه ده، دارنګي ابراهيم تيمي هم د عائشه نه روايت نقل كړى دى چي رسول الله بوسه واخستله او او نوي اودس يي ونكړو، ليكن دا روايت هم صحيح نه دى، ځكه چي د عائشي نه دابراهيم سماع مونږ ته معلومه نه ده، او په دي باب كي هيڅ يو روايت درسول الله صلي عليه وسلم نه په صحيح درجه ثابت نه دى.

**حل لغات** : يُقَبِّل: قبَّل يُقبِّل تقبيلا د باب تفعيل نه په معني دمسه كولو، اوچا لره دښكلولو په معني دي.

**تشريح** : په مسئله د مس المراءة كي هم اختلاف دى چي دا ناقض الوضوء ده او كنه په دي باره كي دوه مذاهب دي.

(١) مذهب د ائمه ثلاثه په نزد ناقض للوضوء دي.

(٢) مذهب د امام ابو حنيفه دى دده په نزد ناقض للوضوء نه دي. دلائل د جانبينو او موازنه بين الادلة په مطولاتو او مباحثو د فقهاؤ كي مذكور ده ، من ارادها فليراجع.

****************

## ٦٤_ بَابُ مَا جَاءَ فِي الْوُضُوءِ مِنَ الْقَيْءِ وَالرُّعَافِ

---

[1] سنن ابي داود/ الطهارة ٦٩ (١٧٩، ١٨٠) . سنن النسائي/الطهارة ١٢١ (١٧٠) سنن ابن ماجه/الطهارة ٦٩ (٥٠٢) . (تحفة الأشراف: ١٧٣٧١) . مسند احمد (٦/٢٠٧)

## په قي او په پوزي جاري كيدو باندي داودس ماتيدو بيان

٨٧ـ حَدَّثَنَا أَبُو عُبَيْدَةَ بْنُ أَبِي السَّفَرِ وَهُوَ أَحْمَدُ بْنُ عَبْدِ اللَّهِ الْهَمْدَانِيُّ الْكُوفِيُّ، وَإِسْحَاقُ بْنُ مَنْصُورٍ، قَالَ أَبُو عُبَيْدَةَ: حَدَّثَنَا، وَقَالَ إِسْحَاقُ: أَخْبَرَنَا عَبْدُ الصَّمَدِ بْنُ عَبْدِ الْوَارِثِ، حَدَّثَنِي أَبِي، عَنْ حُسَيْنٍ الْمُعَلِّمِ، عَنْ يَحْيَى بْنِ أَبِي كَثِيرٍ، قَالَ: حَدَّثَنِي عَبْدُ الرَّحْمَنِ بْنُ عَمْرٍو الْأَوْزَاعِيُّ، عَنْ يَعِيشَ بْنِ الْوَلِيدِ الْمَخْزُومِيِّ، عَنْ أَبِيهِ، عَنْ مَعْدَانَ بْنِ أَبِي طَلْحَةَ، عَنْ أَبِي الدَّرْدَاءِ، أَنَّ رَسُولَ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ "قَاءَ، فَأَفْطَرَ، فَتَوَضَّأَ، فَلَقِيتُ ثَوْبَانَ فِي مَسْجِدِ دِمَشْقَ، فَذَكَرْتُ ذَلِكَ لَهُ، فَقَالَ: صَدَقَ أَنَا صَبَبْتُ لَهُ وَضُوءَهُ". قَالَ أَبُو عِيسَى: وقَالَ إِسْحَاقُ بْنُ مَنْصُورٍ: مَعْدَانُ بْنُ طَلْحَةَ. قَالَ أَبُو عِيسَى: وَابْنُ أَبِي طَلْحَةَ أَصَحُّ. قَالَ أَبُو عِيسَى: وَقَدْ رَأَى غَيْرُ وَاحِدٍ مِنْ أَهْلِ الْعِلْمِ مِنْ أَصْحَابِ النَّبِيِّ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ وَغَيْرِهِمْ مِنَ التَّابِعِينَ، الْوُضُوءَ مِنَ الْقَيْءِ وَالرُّعَافِ، وَهُوَ قَوْلُ سُفْيَانَ الثَّوْرِيِّ، وَابْنِ الْمُبَارَكِ، وَأَحْمَدَ، وَإِسْحَاقَ، وقَالَ بَعْضُ أَهْلِ الْعِلْمِ: لَيْسَ فِي الْقَيْءِ وَالرُّعَافِ وُضُوءٌ، وَهُوَ قَوْلُ مَالِكٍ، وَالشَّافِعِيِّ، وَقَدْ جَوَّدَ حُسَيْنٌ الْمُعَلِّمُ هَذَا الْحَدِيثَ، وَحَدِيثُ حُسَيْنٍ أَصَحُّ شَيْءٍ فِي هَذَا الْبَابِ، وَرَوَى مَعْمَرٌ هَذَا الْحَدِيثَ، عَنْ يَحْيَى بْنِ أَبِي كَثِيرٍ فَأَخْطَأَ فِيهِ، فَقَالَ: عَنْ يَعِيشَ بْنِ الْوَلِيدِ، عَنْ خَالِدِ بْنِ مَعْدَانَ، عَنْ أَبِي الدَّرْدَاءِ، وَلَمْ يَذْكُرْ فِيهِ الْأَوْزَاعِيَّ، وَقَالَ: عَنْ خَالِدِ بْنِ مَعْدَانَ، وَإِنَّمَا هُوَ: مَعْدَانُ بْنُ أَبِي طَلْحَةَ.[1]

**ترجمه** : دابو الدرداء رضي الله عنه نه روايت دي فرماني چي رسول الله صلي الله عليه وسلم قي اوكړو نو روژه يې ماته كړه او اودس يې اوكړو معدان واني چي بيا ما دثوبان رضي الله عنه سره دمشق په جامع مسجد كي ملاقات اوكړو او ددي خبري ذكر مي ورته اوكړو هغه اوونيل چي ابو الدرداء ربنتيا ونيلي دي او خاص ما په رسول الله صلي الله عليه وسلم باندي اوبه اړولي وي.

امام ترمذي واني په صحابه كرامو او تابعينو كي ډيرو اهل علمو رائي داده چي په قي او پوزي جاري كيدو باندي اودس ماتيږي او همدا دسفيان ثوري او ابن مبارك او امام احمد او اسحاق بن راهويه رحمهم الله قول دي او بعضي اهل علم واني چي دقي او دپوزي جاري كيدو په صورت كي اودس نه ماتيږي دا دامام مالك او امام شافعي قول دي دحديث دسندونو ذكر

---

[1] سنن ابي داود/ الصوم ٣٢ (٢٣٩١)، (تحفة الأشراف: ١٠٩٦٣)، مسند احمد (٥/١٩٥، و٦/٤٤٣)، سنن الدارمي/الصوم ٢٤ (١٧٦٩).

کولو نه پس امام ترمذي وائي چي دحسين المعلم راوي حديث په دي باب کي دټولومروي احاديثو نه زيات صحيح دي.

**حل لغات** يلقي : يلقي دباب افعال نه معني غورځول او په مجردوکي دسمع نه لقي يلقي په معني دملاقات کولو، القي يلقي القاءً د باب افعال نه ناقص يايي دی معني يي غورځيدل دي.

**تشريح** : دقي کولو او پوزي جاري کيدو په وجه د اودس په ماتيدو کي دفقهاؤ اختلاف.

دانسان دبدن نه خارجيدونکي څيز عموما په دوه قسمه دي اول هغه څيز دي چي طاهر وي او خارج من غير السبيلين وي لکه اوښکي. خوله وغيره دا پخپله هم پاکي دي او ددي په وتلو اودس هم نه ماتيږي

(۲) هغه څيزونه دي کوم چي نجس دي او د سبيلين نه خارجيږي لکه ورو کي او لوي اودس ماتي وغيره دا څيزونه پخپله هم بالاتفاق نجس دي او ددي په خروج باندي نقض د وضوء هم بالاتفاق لازمي دي.

(۳) هغه څيزونه دي کوم چي ناپاك دي ليکن دغير سبيلين نه خارجيږي لکه چي دزخم نه وينه لاړه شي او يا پوزه جاري شي يا څوك دويني يا دخوراك قي په ډکه خوله اوکړي په دي څيزونو اودس ماتيدو باره کي علماؤ کي اختلاف دي.

احناف او حنبليان وائي دا رنګي دعيني په قول دعشره مبشره همدا مذهب دي چي نجاست خارج من غير السبيلين ناقض للوضوء دي، او دشوافع او مالکيانو په نزد نجاست خارج من غير السبيلين ناقض للوضوء نه دي لهذا قي او رعاف ناقض للوضوء نه دي.

احناف او حنابله دحديث الباب نه استدلال کوي چي "ان رسول الله صلي الله عليه وسلم قاء فتوضاء طريقه داستدلال داده چي فاء دسببيت دپاره دي لهذا قي سبب د اودس دي او ظاهره ده چي د توضاء ترتب په قاء باندي دي او ضابطه داده چي کله کوم حکم مشتق وي نو همدا حکم به مبداء داشتقاق وي او دقاء مبداء داشتقاق قي دي لهذا قي ناقض للوضوء دي ليکن احناف دا شرط لګوي چي کله قي ملءالفم وي او خالص بلغم نه وي.

اعتراض: په حديث کي صرف دقي ناقض للوضوء کيدل ثابت دي او درعاف ناقض للوضوء کيدل ثابت نه دي.

جواب چونکه قائل بالفصل هيڅوك نشته دچا په نزد چي ناقض للوضوء وي دهغوی په نزد دواړه ناقض للوضوء دي او دچا په نزد چي ناقض للوضوء نه دي دهغوی په نزد دواړه ناقض للوضوء نه وي او همدا وجه ده کله چي ديو څيز ناقض للوضوء کيدل ثابت شي نو ددويم څيز ناقض للوضوء کيدل هم ثابت شول او حديث الباب دسند په اعتبار دومره قوي دي چي امام

احمد دخپلو ملګرو نه په دي مسئله کي جدا شوي دي او وائي چي که وينه زياته لاړه شي يا قي زيات وي نو اودس ماتيږي.

دليل نمبر (۲) په ابن ماجه کي دعائشه رضي الله عنها دا حديث دي "اذا صلي احدكم فأحدث فاليمسك علي انفه ثم لينصرف" يعني په تاسو کي چي دچا اودس مات شي او مونځ کوي نو دهغه دپاره اول دا پکار دي چي پوزه بنده کړي او بيا دي دمونځ نه لاړ شي ددينه معلومه شوه چي پوزه جاري کيدل حدث وي او که ناقض للوضوء نه وي نو رسول الله به منصرف ته دا حيله ولي خودله.

دليل نمبر (۳) ابن ماجه په باب ماجاء في البناء علي الصلوة کي دعائشه رضي الله عنها نه حديث نقل کړي دي "قالت قال رسول الله صلي الله علي وسلم من اصابه قيء او رعاف" الخ. ددينه هم معلومه شوه چي قي او رعاف وغيره (کوم چي خارج من غير سبيلين دي) ناقض للوضوء دي.

دليل نمبر (۴) حديث دمستحاضه دي "انما ذلك عرق" په دي حديث کي مستحاضه ته د اودس حکم شوي دي رسول الله ددي څيز دناقض للوضوء کيدو په موقعه دسبيلينو هيڅ ذکر نه دي کړي بلکه د دم عرق کيدو ذکر يي کړي دي ددينه معلومه شوه چي سيلان د دم چي دبدن دهري حصي نه ناقض للوضوء دي.

دامام مالك او شافعي دليل (۱) ددوئ دټولو نه لوي دليل په ابو داود باب الوضوء من الدم کي ديو مهاجر او انصاري هغه حصه ده کومه چي په غزوه ذات الرقاع کي پيښه شوي ده دانصاري نوم عباد بن بشر وو او دمهاجر نوم عمار بن ياسر وو دوئ دواړه رسول الله صلي الله عليه وسلم دشپي په پهرداری اودرولي وو او هغوئ دشپي پهرداري پخپل مينځ کي تقسيم کړي وه مهاجر اوده شو او انصاري پهره شروع کړه او په نفل مونځ اودريدو بل طرف ته دشمن دموقعي په تلاش کي وو هغوئ چي کله انصاري لره په نفل مونځ کي مشغول اوليدو نو په غشي يي اوويشتلو کوم لره چي انصاري راوويستلو بيا يي په دويم غشي اوويشتلو او بيا يي په دريم باندي مګر هغه خپل مونځ جاري اوساتلو او بيا يي خپل ملګري رابيدار کړو هغه چي هر کله دخپل انصاري ملګري حالت اوليدو نو ويي ونيل زه دي مخکي ولي نه بيدارولم نو هغه اوونيل "كنت في قرائة سورة اقراها فلم احب اقطعها" يعني زه ديو صورت په لوستلو کي مصروف وم دکوم قطع کول چي زما زړه نه غوښتل دوئ ددي حديث نه داستدلال کولو په حال کي وائي چي سيلان د دم ناقض نه دي کچري ناقض وي دغه انصاري اصحابي به خپل مونځ قطع کړي وي او مونځ به يي جاري نه وو ساتلي.

جواب: احناف اعتراض کوي چي دا قصه خو دشوافعو هم خلاف ده ځکه چي ددي صحابي وينه به دده په جامو باندي هم راغلي وي او دده په بدن به هم لګيدلي وي په کومي چي دده جامي او بدن نجس شو نو په دي اعتبار سره ددي انصاري مونځ دشوافعو په نزد باندي هم کيدل نه دي پکار "فما هو جوابكم هاهنافهو جوابنا" حافظ عراقي وائي چي دعدم نقض دپاره دا قصه ډير مضبوط دليل دي مګر زمونږ سره داحنافو داعتراض هيڅ جواب نشته لهذا دلته داحنافو اعتراض برحال پاتي دي.

امام بخاري په دي باندي هم استدلال کړي دي قال الحسن ماز المسلمون يصلون في جراحاتهم" دحسن قول دي دمسلمانانو دا مسلسل عمل راروان دي چي په زخمي حالت کي به يي مونځ کولو بخاري باب من لم يري الوضوء الا من المخرجين القبل والدبر. امام بخاري په دي مقام کي بعضي نور اقوال هم نقل کړي دي ددي اجمالي جواب دادي چي په اختلافي مسائلو کي دمخالف جمله اقوالو ترجيح کول لازمي نه وي.

داحنافو طرفه ددي توجيه جوابات دادي

جواب نمبر (۱) دا دصحابي خپل اجتهاد دي او استدلال هله تام وي کله چي ستاسو درسول الله په وړاندي دا کار شوي وي او هغه تقرير کړي وي لهذا دا واقعه داحاديث مرفوعه په مقابل کي قابل داستدلال نه ده.

جواب نمبر (۲) ددي قصي دالفاظو نه معلوميږي چي دي صحابي خپل مونځ دسورة پوره کولو دپاره جاري ساتلي وو.

جواب نمبر (۳) دا واقعه سنداً کمزوري ده امام بخاري په يذکر سره ذکر کړي ده او کله چي امام بخاري په مجهوله صيغه يو شي ذکر کړي په دي کي دهغي ضعف ته اشاره وي.

جواب نمبر (۴) دا يوه واقعه جزئيه ده او نور روايات قواعد کليه دي او ترجيح قاعده کليه لره وي.

جواب نمبر (۵) دا غلبه داستغراق په حالت کي شوي وه چي صحابي په قرائت کي دومره مشغول وو چي پته ورته هم اونه لګيده چي وينه وتلي ده او کنه ده او دي طرف ته يي ذهن منتقل نشو چي دم خارج من غير سبيلين ناقض للوضوء دي او کنه دي په ابوداود کي دي چي کله دويم صحابي پاڅيدو نو هغه اووئيل چي زه دي مخکي ولي نه بيدارولم هغه اووئيل چي زه په يو داسي ځيز کي مشغول وم چي دهغي دمکمل کولو نه مخکي په مينځ کي پريخودل ما مناسب نه ګڼرل ددي نظير واقعه دعلي رضي الله عنه ده چي دهغه پندۍ په غشي لګيدلي وه او دمونځ په حالت کي وو.

## تقييد دملء الفم

امام ابو حنيفه دا قيد ځکه لګوي تردي چي دمعدي نه ددي منبت کيدل متحقق شو کوم چي محل دنجاست دي او که ددينه کم وي نو بيا دمعدي نه ددي منبت کيدل نه متحقق کيږي دويمه وجه داده په دي سلسله کي دواړه قسمه روايات راغلي دي بعضي مطلقا ناقض للوضوء دي او بعضي کي دعدم نقض ذکر دي نو دملء الفم قيد يي ځکه اولګولو چي په احاديثو کي جمع او تطبيق راشي او هغه داسي که قليل وي نو ناقض نه دي او که کثير وي نو ناقض به وي

"وروي معمرو هذا الحديث عن يحيي بن كثير فاخطاء فيه" دمعمرو نه دلته دري خطاګاني شوي دي (۱) ديحيي بن کثير نه پس داوزاعي ذکر نه کولو او اوزاعي ديحيي استاذ دي، دويم دمعدام بن ابو طلحه په ځاي خالد بن معدان ونيل هم خطاء ده (۳) ديعيش بن وليد او معدان په مينځ کي په سند کي عن ابيه واسطه نه ذکر کول هم يوه خطاء ده همداوجه ده چي مصنف دمعمرو روايت مرجوح ګرځولي دي او ددي په مقابل کي يي دحسين بن معلم روايت راجح ګرځولي دي ځکه چي دحسين په روايت کي خطاګاني نشته (معمرو او حسين دواړه ديحيي شاګردان دي).

### دابو ادريس خولاني حالات

نوم عائذ الله کنيه ابوادريس نسبت خولاني دده ولادت دغزوه حنين په کال شوی دی او په کبارو تابعين کي شميرلی شوی دی او په شام کي دابو الدرداء رضي الله عنه نه پس دتولو نه لوي عالم وو چي په اتيا هجري کي وفات شوی دی.

***************

## ٦٥ـ بَابُ مَا جَاءَ فِي الْوُضُوءِ بِالنَّبِيذِ

## په نبيذ داودس کولو بيان

٨٨ـ حَدَّثَنَا هَنَّادٌ، حَدَّثَنَا شَرِيكٌ عَنْ أَبِي فَزَارَةَ، عَنْ أَبِي زَيْدٍ، عَنْ عَبْدِ اللَّهِ بْنِ مَسْعُودٍ، قَالَ: سَأَلَنِي النَّبِيُّ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ: " مَا فِي إِدَاوَتِكَ ؟ فَقُلْتُ: نَبِيذٌ. فَقَالَ: تَمْرَةٌ طَيِّبَةٌ وَمَاءٌ طَهُورٌ، قَالَ: فَتَوَضَّأَ مِنْهُ ". قَالَ أَبُو عِيسَى: وَإِنَّمَا رُوِيَ هَذَا الْحَدِيثُ، عَنْ أَبِي زَيْدٍ، عَنْ عَبْدِ اللَّهِ، عَنِ النَّبِيِّ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ. وَأَبُو زَيْدٍ رَجُلٌ مَجْهُولٌ عِنْدَ أَهْلِ الْحَدِيثِ، لَا تُعْرَفُ لَهُ رِوَايَةٌ غَيْرُ هَذَا الْحَدِيثِ. وَقَدْ رَأَى بَعْضُ أَهْلِ الْعِلْمِ الْوُضُوءَ بِالنَّبِيذِ، مِنْهُمْ سُفْيَانُ الثَّوْرِيُّ وَغَيْرُهُ، وقَالَ بَعْضُ أَهْلِ الْعِلْمِ: لَا يُتَوَضَّأُ بِالنَّبِيذِ، وَهُوَ قَوْلُ الشَّافِعِيِّ، وَأَحْمَدَ، وَإِسْحَاق، وقَالَ إِسْحَاق: إِنِ ابْتُلِيَ رَجُلٌ بِهَذَا فَتَوَضَّأَ

بِالنَّبِيذِ وَتَيَمَّمَ أَحَبُّ إِلَيَّ. قَالَ أَبُو عِيسَى: وَقَوْلُ مَنْ يَقُولُ: لَا يُتَوَضَّأُ بِالنَّبِيذِ أَقْرَبُ إِلَى الْكِتَابِ، وَأَشْبَهُ لِأَنَّ اللَّهَ تَعَالَى قَالَ: فَلَمْ تَجِدُوا مَاءً فَتَيَمَّمُوا صَعِيدًا طَيِّبًا (النساء : ٤٣). [1]

**ترجمه** : دعبدالله ابن مسعود رضي الله عنه نه روايت دي فرمائي چي نبي كريم صلي الله عليه وسلم راته اوفرمائيل ستا په مشكيزه كي څه دي ما عرض اوكړو چي نبيذ دي راته يي اوفرمائيل كجوري هم پاكي دي او اوبه هم پاكي دي او په همدي يي اودس اوكړو.

امام ترمذي وائي ابوزيد دمحدثينو په نزد مجهول راوي دي ددي حديث نه علاوه نور روايات دهغه نه مشهور نه دي

دبعضي اهل علمو رائي ده چي په نبيذ باندي اودس جائز دي چي يو په هغوئ كي سفيان ثوري دي او دبعضي اهل علمو قول دي چي په نبيذ اودس جائز نه دي دا دامام شافعي او احمد او اسحاق قول دي اسحاق بن راهويه وائي كه څوك دي كار كولو ته مجبور كړي شي نو په نبيذ دي اودس اوكړي او بيا دي تيمم اوكړي دا كار زما په نزد زيات بهتر دي او څوك چي په نبيذ اودس كول جائز نه ګڼري دهغوئ قول قران ته زيات قريب او قرين دقياس دي ځكه چي الله تعالي فرمائيلي دي "فان لم تجدوا ماء فتيمموا صعيدا طيبا" كله چي تاسو اوبه نه مومئ نو په پاكه خاوره تيمم اوكړئ (النساء ۴۳).

**حل لغات** : جهلي: جهل يجهل جهلا دسمع نه معني ناپوهي صفت يي جاهل او مجهول راځي اود باب تفعل نه په تكلف سره ځان جاهل كول خطيئ ؛ خطا يخطي خطاء معني غلطي كول.

**تشريح** : نبيذ: فعيل وزن دي او داسم مفعول به معني دي معني يي غورځولي شوي ده او په اصطلاح كي نبيذ هغه اوبو ته وئيلي شي په كومو كي چي كجوري يا اوچ انګور وغيره واچولي شي او دي ځيزونو په اوبو كي خوند پريخودلي وي او اوبه يي خوږي كړي وي.

دنبيذ اوبو باره كي مذاهب دفقهاؤ

(۱) تمام ائمه په دي متفق دي چي دكجورو دنبيذ نه علاوه په نورو نبيذونو اودس كول جائز نه دي.

(۲) او په كومو اوبو كي چي كجوري يا اوڅكي واچولي شي او په اوبو كي ددي اثر نه وي ظاهر شوي نو په دي اودس بالاتفاق كول جائز دي.

(۳) او كه كجوري په اوبو كي پستي شوي وي او اوبه يي تينګي كړي وي يا په دي كي نشه پيدا شوي وي نو بالاتفاق په دي باندي اودس كول جائز نه دي.

---

[1] سنن ابي داود/ الطهارة ۴۲ (۸۴) سنن ابن ماجه/الطهارة ۳۷ (۳۸۴) - (تحفة الأشراف : ۹۶۰۳) ، مسند احمد (۱/۴۰۲)
قال الشيخ الألباني: ضعيف، ابن ماجة (۳۸٤) . //. ضعيف أبي داود (۱٤ / ۸٤) .

(۴) که د کجورو اثر په اوبو کي ظاهر شوي وي يعني اوبه خوږي شوي وي مګر دا اوبه بهيدونکي وي او پخې شوي هم نه وي نو په دي باندي د اودس کولو په جواز او عدم جواز کي اختلاف دي

دائمه ثلاثه او امام ابو يوسف په نزد په دي باندي اودس کول جائز نه دي ځکه چي ارشاد الهي دي "فلم تجدوا ماء فتيمموا صعيدا طيبا" او نبيذ ته اوبه نشي وئيلي کيدي ځکه په دي باندي اودس جائز نه دي او تيمم ضروري دي

دامام ابو حنيفه نه په دي مسئله کي څلور اقوال دي

(۱) په نبيذ اودس ضروري دي او تيمم جائز نه دي

(۲) اودس او تيمم دي دواړه جمع کړي او دا جمع کول مستحب دي او د اسحاق بن راهويه همدا قول دي

(۳) دواړه به جمع کوي او جمع کول واجب دي دامام محمد هم دا قول دي

(۴) دا قول دامام صاحب دائمه ثلاثه دپاره سره موافق دي يعني په دي اودس جائز دي او تيمم دي اوکړي او همدا مبتداء به قول دي او په دي باندي فتوي ده پس دمبتداء به قول مطابق هيڅ اختلاف پاتي نشو په دي وجه په مسئله کي زيات بحث ضروري نه دي مګر په دي اعتبار بحث ضروري دي چي دسابقه اقوالو څه دليل دي او ددي دلائلو نه امام صاحب ځنګه رجوع کړي وه

عبدالله ابن مسعود رضي الله عنه فرمائي چي نبي کريم صلي الله عليه وسلم رانه تپوس اوکړو ستا په لوښي کي څه دي؟ ما عرض اوکړو اي دالله رسوله نبيذ دي رسول الله اوفرمائيل دا خو پاکي کجوري او پاکونکي اوبه دي او بيا يي په همدي اوبو اودس اوکړو

امام ترمذي دا حديث مختصر بيان کړي دي تفصيلي واقعه داده چي په مکي دوړ کي يي يوه شپه دماخوستن دمونځ نه پس نبي کريم صلي الله عليه وسلم ابن مسعود رضي الله عنه ته دپاتي کيدو حکم اوکړو بيا دشپي دڅه حصي تيريدو نه پس ابن مسعود رضي الله عنه نبي عليه السلام دخان سره قبرستان ته روان کړو او حجون طرف ته لاړل دمکي دابادئ دختميدو نه پس يي ابن مسعود په يوځاي کي کينولو او دهغه نه يي ګيرچاپير يوه ګول دائره جوړه کړه او ورته يي اوفرمائيل په هيڅ حال کي هم ددي دائري نه بهر مه اوځه او رسول الله يواځي وړاندي لاړو يوه شيبه پس ابن مسعود رضي الله عنه اوکتل چي ډير عجيب او غريب خلق هغه طرف ته روان دي کوم طرف ته چي رسول الله صلي الله عليه وسلم تلي دي دابن مسعود بيان دي چي ماسره درسول الله په باره کي خطره پيدا شوه او د دغه طرف ته مي دتلو اراده اوکړه مګر درسول الله تاکيد راياد شو مګر اودريدم بيا چي کله شپه صبا کيدو ته نژدي شوه دابن مسعود بيان دي چي دا کسان مي د واپسي تلو په حالت کي اوليدل او يوه شيبه پس رسول الله صلي الله عليه وسلم راورسيدو او تپوس يي اوکړو تاسره په لوښي کي څه دي ابن مسعود واني چي

ما عرض اوکړو اې د الله رسوله نبيذ دي رسول الله اوفرمائيل دا خو پاکي کجوري او پاکونکي اوبه دي او بيا يي په همدي اوبو اودس اوکړو ابن مسعود وائي چې په دي دوران کي مي ورته تپوس اوکړو چي دا خلق څوك وو راته يي اوفرمائيل دنصيبين مقام جنات وو دهغوی په درخواست هغوی ته د دين خودلو دپاره تلي وم.

په دي حديث دري اعتراضات شوي دي مګر دټولو نه معقول جوابات شوي دي او په همدي وجه دا حديثِ قابل داستدلال دي

اولنى اعتراض دادي چي ددي حديث يو راوي ابوزيد دي او ابوزيد مجهول دي مجهول العين هم دي او مجهول الحال هم دي، مجهول الحال هغه راوي وي چي ائمه دجرحي تعديل نه په هغه جرح کړي وي او نه يي دهغه توثيق کړي وي او مجهول العين هغه راوي دي دچا نه روايت کونکي صرف يو راوي دي ابوزيد مجهول الحال دي ځکه چي علماؤ نه دده توثيق کړي دي او نه يي وړباندي جرح کړي ده او مجهول العين هم دي ځکه چي دده نه روايت کونکي صرف ابوفزاره دي.

جواب دادي دابوزيد نه روايت کونکي صرف ابو فزاره راشد بن کيسان يواځي نه دي بلکه دده نه ابوروق عطيه بن حارث هم روايت کوي پس ابوزيد مجهول العين نشو همدارنګي دابن مسعود رضي الله عنه نه په روايت کولو کي ابوزيد منفرد هم دي بلکه دده څوارلس متابعين موجود دي هغوی هم دابن مسعود نه دا حديث په دي طريقه نقل کړي دي او مجهول الحال ځکه نه دي چي دصحابه نه روايت کونکو تابعينو دمخکني طبقي احوال محفوظ کيدي نشو او نه هغه وخت کي ائمه دجرح او تعديل موجود وي او نه دا سلسله شروع شوي ده نو په همدي وجه محدثينو ددي طبقي باره کي چشم پوشي کړي ده لکه دپيشو دجوتي حديث روايه چي ابوکفشه او حنيده کوي او دواړه مجهول الحال دي مګر امام ترمذي وړباندي دحسن صحيح حکم کړي دي.

، دويم اعتراض: دابو فزاره راوي پته نه لګي چي څوك دي که راشد بن کيسان وي خو ټيك دي او که بل څوك وي نو بيا خو يي حال معلوم نه دي.

جواب: بالکل راشد بن کيسان دي او صرف احتمالاتو پسي تلل يوه داسي بيماري ده دکومي چي هيڅ علاج نشته.

دريم اعتراض: په ليلة الجن کي درسول الله صلي الله عليه وسلم سره دابن مسعود معيت ثابت نه دي دهغه خوي ابوعبيده ددينه انکار کړي دي

جواب: دا اعتراض هم درست نه دي ماقبل کي صحيح حديث تير شوي دي ابن مسعود رضي الله عنه فرمائي چي زه په ليلة الجن کي درسول الله صلي الله عليه وسلم سره موجود وم او دابوعبيده دانکار توجيه داده چي چرته دجناتو سره ملاقات شوي وو هلته ورسره موجود نه وو

ابن مسعود خو په لاره کي کينولي شوي وو او په نبيذ د اودس کولو واقعه هم دلته پيښه شوي ده.

(۲) دامام ابو حنيفه دريمبي قول دليل همدا حديث دي مګر روسته شک پيدا شو چي نبيذ جوړ شوي وو او کنه؟ دارشاد نبوي "تمرة طيبة وماء طهور" نه معلوميږي چي لاته دي جوړ شوي دغه وخت کي کجوري دکجورو په حالت کي وي اوبه د اوبو په حالت کي وي او دکجورو اثر په اوبو کي لاخور شوي نه دي نو په دي وجه امام ابو حنيفه دويم قول اوکړو او د اودس او تيمم استحبابا جمع کولو قول اوکړو بيا دا شک قوي شو نو ددواړو جمع کولو دوجوب قول يي اوکړو بيا شک په يقين باندي بدل شو چي دغه وخت کي لانبيذ جوړ شوي نه وو نو په دي وجه يي څلورم او اخري قول اوکړو او ابن مسعود رضي الله عنه ورته نبيذ مجازا ونيلي دي ځکه چي دنبيذ جوړولو دپاره دغه وخت کي کجوري په اوبو کي اچولي کيدي.

: «فإن لم تجدوا ماء فتيمموا صعيدا طيباً» "(النساء: ٤٣)

: «يا أيها الذين آمنوا لا تقربوا الصلاة وأنتم سكارى حتى تعلموا ما تقولون ولا جنباً إلا عابري سبيل حتى تغتسلوا وإن كنتم مرضى أو على سفر أو جاء أحد منكم من الغائط أو لامستم النساء فلم تجدوا ماء فتيمموا صعيدا طيباً فامسحوا بوجوهكم وأيديكم إن الله كان عفوا غفورا»

## د حديث دراوي عبدالله بن مسعود رضي الله عنه مختصر حالات

نوم عبدالله کنه ابو عبدالرحمان او دپلار نوم مسعود او دمور نوم يي ام عبد وه. اسد الغابه کي دده داسلام راوړو واقعه داسي ليکلي ده چي يوه ورځ رسول الله صلي الله عليه وسلم دابوبکر رضي الله عنه سره روان وو او عبدالله بن مسعود په لاره کي چيلي څرولي صديق اکبر ورنه پي اوغوښتل عبدالله ورته اوونيل دا چيلي ما سره امانت دي ځکه يي نشم درکولی رسول الله صلي الله عليه وسلم ورته اوفرمائيل ايا ستا سره داسي چيلي هم شته چي بچي يي نه وي راوړي عرض يي اوکړو هو نوهغه چيلي يي پيش کړه رسول الله ورباندي لاس راښکل نو غلانځ يي دشودونه ډکه شوه غرض دا چي دوی دري واړو په مړه خيټه اوڅکل نو ابن مسعود ددي معجزي دليدو نه پس مسلمان شو او ددينه پس يي خپل ټول ژوند په خدمت نبوي صلي الله عليه وسلم کي تير کړو (اسد الغابه)

کله چي د مديني ته هجرت اوکړو او راغی نو رسول الله ورته دمسجد نبوي سره متصل يوه توته زمکه ورکړه (طبقات ابن سعد).

په تمامو غزواتو کي رسول الله سره ملګری پاتي شوی دی او دهجرت په شلم کال دکوفي قاضي مقرر شو او لس کاله يي هلته قضاوت اوکړو خصوصي اوصاف يي دادي چي دعلم سره يي انتهائي شوق وو او دقران کريم دتفسير ماهر هم وو په قرات کي ورته هم کمال حاصل وو

رسول الله صلي الله عليه وسلم ورنه پخپله هم قران اوريدلى دى ابن مسعود به د روايت په بيانولو كي ډير احتياط كولو او دخپلي زماني دفقهاؤ سردار هم وو شقيق ابن ابراهيم به په مسجد كي ناست وو اودابن مسعود دراوتو انتظار به يي كولو (مسند احمد)

وفات: ۳۲هجري كي دشپيته كالو په عمر كي وفات شو او عثمان بن عفان رضي الله عنه ورباندي جنازه اوكړه او دعثمان بن مزعون په خوا كي دفن كړى شو طبقات ابن سعد

مرويات: دده دمروياتو شمير ۸۴۸ دى ۶۴ متفق عليه دي ۲۱ صرف په بخاري كي او ۳۵ صرف په مسلم كي (تهذيب الكمال ۲۳۴)

****************

## ٦٦ـ بَابٌ فِي الْمَضْمَضَةِ مِنَ اللَّبَنِ

### دشودو څكلو نه پس دغرغري كولو بيان

٨٩ـ حَدَّثَنَا قُتَيْبَةُ، حَدَّثَنَا اللَّيْثُ، عَنْ عُقَيْلٍ، عَنِ الزُّهْرِيِّ، عَنْ عُبَيْدِ اللَّهِ بْنِ عَبْدِ اللَّهِ، عَنِ ابْنِ عَبَّاسٍ، أَنَّ النَّبِيَّ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ شَرِبَ لَبَنًا، فَدَعَا بِمَاءٍ، فَمَضْمَضَ، وَقَالَ: "إِنَّ لَهُ دَسَمًا". قَالَ: وَفِي الْبَابِ عَنْ سَهْلِ بْنِ سَعْدٍ السَّاعِدِيِّ، وَأُمِّ سَلَمَةَ. قَالَ أَبُو عِيسَى: وَهَذَا حَسَنٌ صَحِيحٌ، وَقَدْ رَأَى بَعْضُ أَهْلِ الْعِلْمِ الْمَضْمَضَةَ مِنَ اللَّبَنِ، وَهَذَا عِنْدَنَا عَلَى الِاسْتِحْبَابِ، وَلَمْ يَرَ بَعْضُهُمُ الْمَضْمَضَةَ مِنَ اللَّبَنِ. [1]

**ترجمه**: دعبدالله ابن عباس بيان دي چي نبي كريم صلي الله عليه وسلم شوده اوڅكل او اوبه يي راوغوښتلي او غرغره يي اوكړه او بيا يي اوفرمائيل په دي كي ثليښت وي

امام ترمذي وائي دا حديث حسن صحيح دي او په دي باب كي دسهل بن سعد ساعدي او ام سلمه رضي الله عنها نه هم احاديث وارد دي دبعضي اهل علمو قول دي غرغره كول دشودو څكلو په وجه دي او دا حكم زمونږ په نزد مستحب دي

**حل لغات**: الدعاء: دعا يدعو دعاء دنصر نه دعوي ودعوة په معني دچغي وهلو ، رغبت طلب كولو او مدد طلب كولو دي الدعاء مصدر دي جمع يي ادعية راځي

[1] صحيح البخاري/الوضوء ۵۲ (۲۱۱)، والأشربة ۱۲ (۵۶۰۹)، صحيح مسلم/الطهارة ۲۴ (۳۵۸)، سنن ابي داود/الطهارة ۷۸ (۱۹۶)، سنن النسائي/الطهارة ۲۵ (۱۸۷)، سنن ابن ماجه/الطهارة ۶۸ (۴۹۸)، (تحفة الأشراف ۵۸۳۳)، مسند احمد (۱/۲۲۳، ۲۲۷، ۳۲۹، ۳۳۷، ۳۷۳)

Scanned with C

**تشريح** : مذاهب دفقهاء ذي دجمهورو په نزد دشودو څکلو نه پس اودس مستحب دي او امام ترمذي په دي باره کي دري مذاهب بيان کړي دي اولني قول دوجوب دي او دويم قول دجمهورو د استحباب دي او دريم قول دبعضو علماء دي دوي وائي چي مستحب هم نه دي داستحباب دقائلينو دليل حديث الباب دي او دوجوب دقائلينو دليل حديث دام سلمه دي چي ابن ماجه نقل کړي دي "اذاشربتم اللبن فمضمضوا" او په بعضي روايتونو کي مضمضوا من اللبن راغلي دي او په بعضي روايتونو کي دا معلوميږي چي امر داستحباب دپاره دي او دليل په استحباب باندي دادي چي په بعضي وختونو کي رسول الله دشودوڅکلونه پس غرغره نه ده کړي

***************

## ٦٧_ بَابٌ فِي كَرَاهَةِ رَدِّ السَّلاَمِ غَيْرَ مُتَوَضِّئٍ

## بغير داودس نه دسلام جواب ورکولو دکراهت بيان

٩٠_ حَدَّثَنَا نَصْرُ بْنُ عَلِيٍّ، وَمُحَمَّدُ بْنُ بَشَّارٍ، قَالَا: حَدَّثَنَا أَبُو أَحْمَدَ مُحَمَّدُ بْنُ عَبْدِ اللَّهِ الزُّبَيْرِيُّ، عَنْ سُفْيَانَ، عَنْ الضَّحَّاكِ بْنِ عُثْمَانَ، عَنْ نَافِعٍ، عَنْ ابْنِ عُمَرَ "أَنَّ رَجُلًا سَلَّمَ عَلَى النَّبِيِّ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ وَهُوَ يَبُولُ، فَلَمْ يَرُدَّ عَلَيْهِ". قَالَ أَبُو عِيسَى: هَذَا حَسَنٌ صَحِيحٌ، وَإِنَّمَا يُكْرَهُ هَذَا عِنْدَنَا، إِذَا كَانَ عَلَى الْغَائِطِ وَالْبَوْلِ، وَقَدْ فَسَّرَ بَعْضُ أَهْلِ الْعِلْمِ ذَلِكَ، وَهَذَا أَحْسَنُ شَيْءٍ رُوِيَ فِي هَذَا الْبَابِ. قَالَ أَبُو عِيسَى: وَفِي الْبَابِ عَنْ الْمُهَاجِرِ بْنِ قُنْفُذٍ، وَعَبْدِ اللَّهِ بْنِ حَنْظَلَةَ، وَعَلْقَمَةَ بْنِ الْفَغْوَاءِ، وَجَابِرٍ، وَالْبَرَاءِ. (١)

**ترجمه** : دعبدالله ابن عمر رضي الله عنهما بيان دي چي يو کس نبي کريم صلي الله عليه وسلم ته سلام اوکړو او رسول الله صلي الله عليه وسلم په وړوکي اودس ماتي کولو کي مشغول وو نو سلام کونکي ته يي دسلام جواب ورنکړو

امام ترمذي وائي دا حديث حسن صحيح دي او زمونږ په نزد دسلام جواب ورکول په هغه صورت کي مکروه دي کله چي يو سړي لوي اودس ماتي کوي او يا وړوکي اودس ماتي کوي بعضي اهل علمو ددي همدا تفسير کړي دي دا دټولو نه عمده حديث دي کوم چي په دي باب

کي راوړلي شوي دي او په دي باب کي دمهاجر بن قنفذ ، عبدالله بن حنظله، علقمه بن شفواء، جابر او براء بن عازب رضي الله عنهم نه هم احاديث وارد دي.

**حل لغات**: رَدّ يردُ ردا واپس کول د باب نصر ينصر نه مستعمل دی

**تشريح**: د سلام اصول او ادابو او شرائطو باره کي شيخ الحديث مولانا ابو سعيد مرحوم پخپل تفسير الفوائد التفسيرية کي د سورة النساء: په ۸۲ ايت کي اعلي ترين تحقيق کړی دی چي ستاسو دپاره يې لفظ په لفظ نقل کوو:

**دسلام دمختلفو احکامو تذکره**

(۱) {يٰٓاَيُّهَا الَّذِيْنَ اٰمَنُوْا لَا تَدْخُلُوْا بُيُوْتًا غَيْرَ بُيُوْتِكُمْ حَتّٰى تَسْتَاْنِسُوْا وَتُسَلِّمُوْا عَلٰٓى اَهْلِهَا ذٰلِكُمْ خَيْرٌ لَّكُمْ لَعَلَّكُمْ تَذَكَّرُوْنَ} [النور:۲۷]

اي مومنانو دخپلو کورونو نه علاوه پردو کورونو ته بغير داجازت اخستلو نه مه داخليږئ دا ستاسو په حق کي بهتر دي (او مونږ درته دا نصيحت ددي دپاره کوو) چی شايد تاسو يې ياد اوساتئ.

(۲) {فَاِذَا دَخَلْتُمْ بُيُوْتًا فَسَلِّمُوْا عَلٰٓى اَنْفُسِكُمْ تحية مِّنْ عِنْدِ الله مباركة طيبة كَذٰلِكَ يُبَيِّنُ الله لَكُمُ الْاٰيٰتِ لَعَلَّكُمْ تَعْقِلُوْنَ} (النور:۶۱).

کله چی کورونو ته ورځئ نو په کور کي دننه کسانو ته سلام کوئ دا دالله تعالي دطرفه مبارکه او پاکه تحفه ده او الله تعالي خپل ايتونه په وضاحت سره بيانوي ددي دپاره چی تاسو پوهه شئ.

(۳) {وَاِذَا حُيِّيْتُمْ بتحية فَحَيُّوْا بِاَحْسَنَ مِنْهَآ اَوْ رُدُّوْهَا اِنَّ الله كَانَ عَلٰى كُلِّ شَيْءٍ حَسِيْبًا} (النساء :۸۶).

کله چي تاسو ته څوك په مشروع طريقه سلام اوکړي لو تاسو په جواب کي دهغي نه په بهتر و کلمو سره دهغه جواب اوکړئ يا هم هغه شان الفاظ اووائي يقينا الله تعالي دهر څيز حساب اخستونکی دی.

(۴) {هَلْ اَتٰىكَ حَدِيْثُ ضَيْفِ اِبْرٰهِيْمَ الْمُكْرَمِيْنَ {۲۴} اِذْ دَخَلُوْا عَلَيْهِ فَقَالُوْا سَلٰمًا قَالَ سَلٰمٌ} {۲۵} (الذاريات)

ايا راغلی دی تاته خبر دعزتمندو ميلمنو دابراهيم عليه السلام ؟ کله چی هغوئ ده ته راغلي وو نو ويې وئيل سلام نو هغه هم په جواب کي سلام اووئيلو.

(۵) {وَاِذَا جَآءُوْكَ حَيَّوْكَ بِمَا لَمْ يُحَيِّكَ بِهِ الله وَيَقُوْلُوْنَ فِيْٓ اَنْفُسِهِمْ لَوْلَا يُعَذِّبُنَا الله بِمَا نَقُوْلُ حَسْبُهُمْ جَهَنَّمُ يَصْلَوْنَهَا فَبِئْسَ الْمَصِيْرُ} (مجادله:۸)



Scanned with C

او کله چی دوئ تاته درځي نو سلام کوي تاته په هغه کلمو سره چی الله تعالي په هغي سره تاته سلام نه دی فرمائیلی او پخپل زړه کي وائي (که واقعي دی پیغمبر وي)، نو مونږ چی څه وایو الله تعالي به ددي مونږ ته سزا راکړي وه (اي پیغمبره)، ددوئ دپاره ددوزخ سزا کافي ده او دوئ به دیته داخلیږي او دا یو ډیر بد خاي دورتلو دی.

(٦){وَإِذَا جَآءَکَ الَّذِيْنَ يُؤْمِنُوْنَ بِاٰيٰتِنَا فَقُلْ سَلٰمٌ عَلَيْكُمْ كَتَبَ رَبُّكُمْ عَلٰى نَفْسِهِ الرحمة} (الانعام:٥٣)۔

کله چی تاته داسي کسان درځي څوك چی زمونږ په ایتونو ایمان لري نو دوئ ته السلام علیکم وایه او مقرر کړي دي ستا رب پخپل خان باندي مهرباني کول.

(٧){وَنَادَوْا أَصْحٰبَ الجنة أَنْ سَلٰمٌ عَلَيْكُمْ لَمْ يَدْخُلُوْهَا وَهُمْ يَطْمَعُوْنَ} {٣٦} (اعراف)۔

جنتیانو ته به اواز کوي چی په تاسو باندي دي سلامتي وي او دوئ به په دغه وخت کي جنت ته داخل شوي نه وي مګر امید به یي لري.

(٨) {دَعْوَاهُمْ فِيْهَا سُبْحَانَكَ اللّٰهُمَّ وَتَحِيَّتُهُمْ فِيْهَا سَلَامٌ وَآخِرُ دَعْوَاهُمْ أَنِ الْحَمْدُ لِلّٰهِ رَبِّ الْعَالَمِيْنَ{١٠} (یونس)

کله چي دوئ په دي جنت کي دهغوئ نعمتونه ووینی نو بي اختیاره به وائي سبحان الله او پخپل مینځ کي به ددوئ دعا "السلام علیکم" وي او ددوئ اخري قول به هم دا وي چی رب العالمین لره ثنا ده او دهغه شکر دی.

(٩){وَلَقَدْ جَآءَتْ رُسُلُنَآ اِبْرٰهِيْمَ بِالْبُشْرٰى قَالُوْا سَلٰمًا قَالَ سَلٰمٌ} {٦٩} (هود)۔

او زمونږ فرشتي ابراهیم علیه السلام ته دزیري دپاره ورغلی نو سلام یي اووئیل نو هغوئ هم په جواب کي سلام اووئیل.

(١٠){وَإِذَا سَمِعُوا اللَّغْوَ اَعْرَضُوْا عَنْهُ وَقَالُوْا لَنَآ اَعْمَالُنَا وَلَكُمْ اَعْمَالُكُمْ سَلٰمٌ عَلَيْكُمْ لَا نَبْتَغِي الْجٰهِلِيْنَ} {٥٥} (قصص:)

کله چی لغوه خبري اوري نو مخ ورنه اړوي او وائي چي زمونږ دپاره زمونږ عملونه دي او ستاسو دپاره ستاسو عملونه دي تاسو ته دي سلام وي مونږ جاهلانو لره نه غواړو

په دي موضوع ددي نه علاوه نور قراني ایتونه هم شته لیکن دلته ددی په ذکر کولو اکتفاء کوو په دي مبارکو ایتونو کي دسلام دمختلفو احکامو ذکر شوی دی چی تفصیل یي په مندرجه ذیل احادیثو کي راروان دی نو په دي وجه دلته تفصیل کولو ته ضرورت نه محسوسوم، او اوس هغه احادیث ذکر کوم په کومو کي چی دسلام متعلق احکام او فضائل موجود دي

**سلام دادم عليه السلام تحيه وه**

(۱) عن ابي هريـرةؓ انه قال:قال رسول اللهﷺخلق الله آدمر على صورته. طوله ستون ذراعا. فلماخلقه قال اذهب فسلّم على اولئک النفر. وهم نفرمن الملائكة جلوس. فاستمع مايحيّونک. فانهاتحيتک وتحية ذريتک. فذهب. قال السلام عليكم. فقالوا السلام عليک ورحمة الله. قال فزادوه. ورحمة الله. الحديث(بخاری:۳۲۲٦ومسلم:۲۸۴۱)۔

دابو هريره رضي الله عنه نه روايت دی چی. رسول الله صلي الله عليه وسلم فرمانيلي دي :الله تعالي ادم عليه السلام لرد پخپل صورت پيدا كړو چی اوږدوالی يي شپيته ګزه وو په كوم وخت كي چی يي پيدا كړو نو ويې فرمائيل ورشه او دي ډلي ته سلام اوكړه او هلته دفرشتو يوه ډله ناسته وه او ګوره چی دوئ څه جواب دركوي؟ پس هغه به ستا او ستا داولاد تحيه وي نو دی ورغی او وويل سلام دي وي هغوئ هم اوونيل په تا دي سلام وي او رحمتونه دالله تعالي دي وي پس هغوئ د "ورحمة الله" الفاظ په جواب كي اضافه كړل.

**سلام داسلام په حقيقت كي داخل دی**

(۲)عن عبدالله بن عمر. ان رجلاسأل النبیﷺای الاسلام خیر؟ قال:تطعم الطعام وتقرئ السلام على من عرفت ومن لم تعرف۔ (بخاری:۱۲ومسلم:۲۹۱٦۲)۔

دعبدالله بن عمر رضي الله عنهما نه روايت دی چی يو كس دنبي كريم صلي الله عليه وسلم نه سوال اوكړو چی كوم يو اسلام بهتر دی؟ نو رسول الله ورته اوفرمائيل خلقو ته خوراك وركول او سلام كول په هر هغه چا باندي چی ته يي پيژني او كه نه پيژني

**سلام كول په هغه شپږو خصلتونو كي داخل دي كوم چی ديو مسلمان په بل مسلمان باندي حق دی**

(۳) ''عن ابي هريرةؓ قال قال رسول اللهﷺ: للمومن على المومن ست خصال:يعوده اذا مرض. ويشهده اذامات. ويجيبه اذا دعاه. ويسلم عليه اذا لقيه. ويشمّته اذا عطس .وينصح له اذا غاب اوشهد۔ رواه النسائي۔ (۴/ ۵۳)۔

دابو هريره رضي الله عنه نه روايت دی چی : رسول الله صلي الله عليه وسلم فرمانيلي دي :دهر يو مسلمان په بل مسلمان باندي شپږ حقوق دي ،او هغه دادي، كله چی څوك بيمار شي نو بل مسلمان دي دهغه بيمارپرسي اوكړي . او كله چی څوك مړ شي نو دهغه په جنازه كي دي شريك شي، او كله چی څوك مسلمان چاته دعوت وركړي نو دهغه دعوت دي قبول كړي. او چی كله ورسره ملاوېږي نو سلام دي ورته كوي ، او كله چی پرنجی اوكړي نو دهغي جواب دي وركړي، او كله چی غائب وي او

که حاضر وي مګر دی به يي خيرخواهي کوي.

(٤) عن علي رضي الله عنه انه قال: قال رسول الله صلى الله عليه وسلم: للمسلم على المسلم ست بالمعروف. يسلّم عليه اذا لقيه .ويجيبه اذا دعاه. ويشمّته اذا عطس .ويعوده اذا مرض. ويتبع جنازته اذا مات. ويحب له مايحب لنفسه. رواه الترمذي حديث(٢٧٣٦. و الدارمي: ٢٧٥/٢. وابن ماجة: ١٤٣٣).

دعلي رضي الله عنه نه روايت دی چې رسول الله صلي الله عليه وسلم فرمائيلي دي ديو مسلمان په بل مسلمان شپږ بهترين حقوق دي کله چې ورسره مخامخ شي نو سلام به ورته کوي او کله چې ورته کوم مسلمان دخوراك دعوت ورکړي نو دی به يي قبلوي، او کله چې اوپرنجيږي نو دی به يي جواب ورکوي ، کله چې کوم مسلمان بيمار وي نو دی به يي بيمار پرسي کوي او کله چې کوم مسلمان مړ شي نو دی به يي دجنازي سره خي او دی به دخپل مسلمان ورور دپاره هغه څيز خوښوي کوم چې دخپل ځان دپاره خوښوي

## ددوستانه تعلق قائمولو دپاره سلام بهترينه ذريعه ده

(٥) عن ابي هريرة رضي الله عنه قال: قال رسول الله صلى الله عليه وسلم لاتدخلون الجنة حتى تومنوا .ولاتومنون حتى تحابوا. اولادلکم على شي اذا فعلتموه تحاببتم؟ افشوا السلام بينکم -(مسلم (٩٣. ٥٤. ابو داود).

دابو هريره رضي الله عنه نه روايت دی چې : رسول الله صلي الله عليه وسلم فرمائيلي دي تاسو جنت ته داخليدی نشئ تر څو چې مو ايمان نه وي راوړی او ستاسو ايمان دهغه وخته پوري کامل ګرځيدی نشي تر څو چې تاسو پخپل مينځ کي دوستانه تعلقات نه وي او بيايي اوفرمائيل ايا تاسو ته يو داسي څيز اونښايم چې کله تاسو هغه لره اختيار کړئ نو په تاسو کي به محبت او تعلق پيدا شي او هغه ذريعه داده چې تاسو پخپل مينځ کي دسلام استعمال زيات کړئ ، يعني چې اشنا او ناشنا هر چاته يي اوکړئ

## دلاري حقوق

(٦) عن ابي سعيد الخدري رضي الله عنه عن النبي صلى الله عليه وسلم: انه قال: اياکم و الجلوس بالطرقات .فقالو يارسول الله! مالنا من مجالسنابد. نتحدث فيها. قال:فاذا ابيتم الا المجلس. فاعطوا الطريق حقه. قالوا وماحق الطريق يارسول الله؟ قال:غض البصر . وکف الاذی. ورد السلام. و الامر. بالمعروف و النهی عن المنکر- (بخاري: ٢٤٦٥ ومسلم :٢١٢١).

دابوسعيد خدري رضي الله عنه نه روايت دی چې : رسول الله صلي الله عليه وسلم فرمائيلي دي دلاري په سر دکيناستو نه ځان ساتئ صحابه کرامو عرض اوکړو اي دالله رسوله زمونږ دپاره دلاري په

سر دکیناستو نه بله چاره نشته او دلته خو مونږ خبري اتري کوو رسول الله صلي الله علیه وسلم اوفرمائیل کچري ضرور کینئ نو بیابه دلاري حق ادا کوئ صحابه کرامو عرض اوکړو اي دالله رسوله دلاري حق څه دی نو ویې فرمائیل سترګي به کنټرول ساتئ او مضر څیزونه به دلاري نه لري کوئ، دسلام جواب به ورکوئ، دنیکو خبرو حکم به کوئ، او دبدو کارونو نه به منع کول کوئ دا دي مضمون په سلسله کي یو بل حدیث دابوهریره رضي الله عنه نه او یو روایت دعمر رضي الله عنه نه هم مروي دي (ابوداود ۴۸۱۶، ۴۸۱۷).

**څوک به چاته سلام کوي**

(۷) عن ابي هريرة رضي الله عنه قال: قال رسول الله صلى الله عليه وسلم: يسلم الراكب على الماشي. و الماشي على القاعد. و القليل على الكثير. (بخاري: ۶۲۳۲. مسلم: ۲۱۶۰)

دابو هریره رضي الله عنه نه روایت دی چې: رسول الله صلي الله علیه وسلم فرمائیلي دي سور به په پیدل تلونکي سلام اچوي او پیدل تلونکی به په ناست سلام اچوي او لږ به په زیاتو سلام اچوي. همدا رنګي په یو بل روایت کي رسول الله صلي الله علیه وسلم فرمائیلي دي:

(۸) يسلم الصغير على الكبير. و المار على القاعد. و القليل على الكثير. (بخاري: ۶۲۳۱)

سلام به اچوي ماشوم په لوي باندي او تلونکی په ناست باندي او کم تعداد والا به په زیات تعداد والا باندي سلام اچوي

**د رسول الله انکساري اوشفقت**

(۹) :ان رسول الله صلى الله عليه وسلم مر على غلمان فسلم عليهم (بخاري: ۶۲۴۷. مسلم: ۲۱۶۸).

چې رسول الله صلي الله علیه وسلم دیو څو هلکانو په خوا کي تیر شو او دوئ ته یې سلام اوکړو.

**غیر مسلموته دسلام کولو حکم**

(۱۰) عن ابي هريرة رضي الله عنه قال قال رسول الله صلى الله عليه وسلم لاتبدؤوا اليهود ولا النصارى بالسلام. واذا لقيتم احدهم في طريق فاضطروه الى اضيقه. (مسلم: ۲۱۶۷).

دابو هریره رضي الله عنه نه روایت دی چې رسول الله صلي الله علیه وسلم فرمائیلي دي یهودیانو او نصاري ته په سلام اچولو کي مخکي کیدل مه کوئ او کله چې ورسره په لار کي مخامخ شئ نو په لاره کي یې تنګ طرف ته مجبوره کړئ.

**دسلام الفاظ غلط ویل نه دي پکار**

(۱۱) عن عائشة رضي الله عنها انها قالت استأذن رهط من اليهود على النبي صلى الله عليه وسلم. فقالوا السام عليك. فقلت بل عليكم السام واللعنة. فقال يا عائشة. ان الله رفيق. يحب الرفق في الامر كله. قلت.

اولم تسمع ماقالو؟ قال: قد قلت. وعليكم ـ (بخاري: ٦٩٢٧)ـ
دعائشه رضي الله عنها نه روايت دی چي ديهوديانو يوي ډلي دنبي كريم صلي الله عليه وسلم نه دراتلو دپاره اجازت اوغوښتلو كله چی راغلل نو ويي ونيل السام عليك ,يعني ستا دپاره دي مرګ وي، ما اوونيل بلكه ستاسو دپاره دي مرګ او په تاسو دي لعنت وي رسول الله صلي الله عليه وسلم اوفرمائيل اي عائشي الله تعالي محبت او نرمي كونكی خوښوي . په ټولو كارونو كي نرمي كول خوښوي ما اوونيل ايا تا وانوريدل چی هغوئ څه اوونيل رسول الله اوفرمائيل ما هم په جواب كي وعليكم ونيلي دي.

## دمسلم اوغير مسلم په مخلوط مجلس كي دسلام كولو حكم

١٢ عن اسامة بن زيد رضي الله عنه ان رسول الله صلى الله عليه وسلم مر بمجلس فيه اخلاط من المسلمين والمشركين.

عبدة الاوثان. و اليهود. فسلم عليهم ـ (بخاري: ٦٢٥٤، مسلم: ١٣٢٣)ـ
داسامه بن زيد رضي الله عنه نه روايت دی چي رسول الله صلي الله عليه وسلم ديو مجلس په خوا كي تير شو په كوم كي چی مسلمانانو او مشركانو خبري اتري كولي او هلته ناست وو او بت پرست او يهوديان هم وو نو رسول الله صلي الله عليه وسلم دوئ ته سلام اوكړو.

## دسلام په ثواب كي داضافي باعث الفاظ

(١٣) عن عمران بن حصين رضي الله عنه ان رجلا جاء الى النبي صلى الله عليه وسلم. فقال السلام عليكم .فردعليه .ثم جلس .فقال النبي صلى الله عليه وسلم عشر . ثم جاء اخر .فقال السلام عليكم ورحمة الله. فردعليه. فجلس .فقال عشرون. ثم جاء اخر فقال السلام عليكم ورحمة الله وبركاته. فردعليه . فجلس. فقال ثلاثون ـ (ابو داود ٥١٩٥ و النسائي في سنن كبرى ١٠١٦٩)
د عمران بن حصين رضي الله عنه نه روايت دی چی يو كس دنبي كريم صلي الله عليه وسلم په خدمت كي حاضر شو او ويي ونيل السلام عليكم نو رسول الله دهغه دسلام جواب وركړو او هغه كيناستو رسول الله اوفرمائيل دده دپاره لس نيكياني اوليكلی شوي ، بيا دويم كس راغی او هغه اوونيل السلام عليكم ورحمة الله نو رسول الله دهغه دسلام جواب وركړو او هغه كيناستو او بيايي اوفرمائيل دده دپاره شل نيكئ اوليكلی شوي بيا يو بل كس راغی او ويي ونيل السلام عليكم ورحمة الله وبركاته رسول الله دده دسلام جواب وركړو او ويي فرمائيل دده دپاره ديرش نيكئ اوليكلی شوي
دبعضي علماؤ په نزد كه په مذكوره الفاظو د "ومغفرته لفظ اضافه اوكړی شي نو په دي كي څه حرج نشته لكه چی امام بيهقی په شعب الايمان (٢٤٦/١١) كي ذكر كړي دي.

**د ''ومغفرته '' لفظ داضافي حکم**

(١٤)عن معاذبن انس رضی الله عنه عن النبی ﷺ بمعناه .وزاد "ثم اتی اخر .فقال السلام علیکم ورحمة الله وبرکاته ومغفرته. فقال اربعون " هکذا تکون الفضائل۔ ابو داود(٥١٩٦)

معاذ بن انس رضي الله عنه دنبي کریم صلي الله علیه وسلم نه دسابقه روایت یو هم معني روایت نقل کړی دی په کوم کي چی یي ددي الفاظو مزید اضافه نقل کړي ده چی بیا یو بل کس راغی او وي وئیل" السلام علیکم ورحمة الله وبرکاته ومغفرته" نو رسول الله اوفرمائیل دده دپاره څلویښت نیکئ اولیکلی شوي. او همدا رنګي دا يي هم اوفرمائیل چی په دي شان سره به ثواب زیاتیږي ابن حجر دا سند قوي ګڼړلی دی فتح الباری (٥/١١) اومختاراحمد ندوی د شعب الایمان په حاشیه کي په دي روایت دحسن حکم کړی دی (١١: ٢٤٥) او امام بیهقي دزید بن ارقم رضي الله عنه نه ددي یو شاهد هم نقل کړی دی

البته ابن سنی په عمل الیوم واللیلة (١٩٧) کي دانس رضي الله عنه روایت نقل کړی دی په کوم کي چی د "ورضوانه" لفظ اضافه راغلي ده لیکن ددي حدیث سند صحیح نه دی ځکه چی ددي داسناد په سلسله کي نوح بن ذکوان راوي دی او هغه منکر الحدیث دی کذافی المجروحین لابن حبان (٣/٤٧)

**په سلام اچولو کي دمخکي کیدو فضیلت**

(١٥) عن ابی امامة قال: قال رسول الله ﷺ ان اولی الناس بالله من بدأ بالسلام ۔(ابوداود ٥١٩٧.والترمذی٢٦٩٤)۔

دابو امامه رضي الله عنه نه روایت دی چی رسول الله صلي الله علیه وسلم فرمائیلي دي په خلقو کي الله تعالي ته ډیر نزدي هغه کس دی څوك چی په سلام کولو کي مخکي کیدل کوي

**په جماعت کي دیو کس سلام کول دټولو دپاره کفایت کوي**

(١٦) عن علی رضی الله عنه قال :قال رسول الله ﷺ یجزئ عن الجماعة اذامروا. ان یسلم احدهم .ویجزئ عن الجلوس ان یرد احدهم ۔(ابو داود:٥٢١٠)۔

ددي یو شاهد په ادب مفرد ٩٩٢، کي دی. دعلي رضي الله عنه نه روایت دی چی رسول الله صلي الله علیه وسلم فرمائیلي دي دپوره جماعت دطرف نه کله چی په تیریدونکي کي یو کس سلام اوکړي او په ناستو کي یو کس جواب اوکړي کفایت کوي

**اجنبي ښځوته سلام کولو حکم**

(خوچی دفتني اندیښنه نه وي)

(١٧) وعن جریر رضی الله عنه ان النبی ﷺ مر علی نسوة فسلم علیهن ۔ مسند احمد (٣٥٧/٣)۔

دجرير نه روايت دی چی يو خل رسول الله صلي الله عليه وسلم داجنبياتو ښځو په خوا کي تير شو او په دوئ يي سلام واچولو

## داشارو په ذريعه سلام کول

(۱۸) عن عمرو بن شعيب رضي الله عنه عن ابيه عن جده .ان رسول الله ﷺ قال. ليس منا من تشبّه بغيرنا.لاتشبّهوا باليهود ولا بالنصارى . فأن تسليم اليهود الاشارة بالاصابع وتسليم النصارى الاشارة بالاكف۔ (ترمذی: ۲٦۹۵)۔

دابن عمر رضي الله عنه نه روايت دی چی : رسول الله صلي الله عليه وسلم فرمائيلي دي هغه کس زمونږ نه نه دی څوك چی زمونږ نه علاوه داغيارو سره مشابهت اختياروي. يعني يهودو او نصاري سره به مشابهت نه اختياروئ ديهوديانو سلام د ګوتو په اشاري کولو سره وي او دنصرانيانو سلام دورغوو په اشاري کولو سره وي.

علماؤ ليکلي دي که چاته سلام کول مقصود وي او هغه لري وي او اواز يي نه اوري نو په دي صورت کي دلاس دپورته کولو په ذريعه په سلام کي څه خرج نشته خو په دي شرط چی په سلام به تلفظ کوي او صرف دلاس په پورته کولو به اکتفاء نه کوي لکه چی په راتلونکي حديث کي به راشي.

## په هر ملاقات کي سلام کول

(۱۹) عن ابي هريرة رضي الله عنه عن النبی ﷺ قال اذالقى احدكم اخاه فليسلّم عليه. فان حالت بينهماشجرة اوجدار اوحجر ثم لقيه فليسلّم عليه۔رواهابوداود(۴/۳۹۱رقم:۵۲۰۰)۔

دابو هريره رضي الله عنه نه روايت دی چی : رسول الله صلي الله عليه وسلم فرمائيلي دي کله چی په تاسو کي څوك ديو مسلمان ورور سره مخامخ شي نو سلام دي ورسره اوکړي نو که ددوارو په مينځ کي کومه ونه يا ديوال يا لوي کاڼړی حائل شي او دهغي نه پس ورسره بيا مخامخ شي نو هم دي ورته سلام اوکړي.

## دسلام په الفاظو کي تقديم او تاخير هم ناجائز دی

(۲۰)عن ابي جری الهجيمی رضي الله عنه قال اتيت النبی ﷺفقلت عليک السلام يارسول الله. فقال لاتقل عليک السلام .فان عليک السلام تحية الموتى. ولكن قل سلام عليكم۔ ابوداود(۵۲۰۹، والنسائي فی سنن کبری: ۱۰۱۴۹. ترمذی: ۲۷۲۲)۔

د ابو جري هجيمي رضي الله عنه نه روايت دی فرماني چی دنبي کريم صلي الله عليه وسلم په خدمت کي حاضرشوم اوداسي سلام مي اوکړو "عليك السلام " نو رسول الله اوفرمائيل عليك السلام مه وايه ځکه چي دجاهليت په زمانه کي به عليك السلام د مړو دتحيي په طور استعماليدو بلکه السلام عليکم وايه.

**په خپل کوروالا باندی به هم سلام اچوئ**

(۲۱) عن انس رضي الله عنه ان رسول الله صلى الله عليه وسلم. قال يابني اذادخلت على اهلک فسلّم .يكون بركة عليک وعلی اهل بیتک۔رواہ الترمذی(۲۶۹۸)

دانس رضي الله عنه نه روایت دی چې : رسول الله صلي الله عليه وسلم فرمائيلي دي : اي بچیه کله چې ته خپل کور والا ته ورداخليږي نو سلام وایه او دا سلام به ستا او ستا د کورنۍ دپاره دبرکت باعث وي.

**دکور نه دوتلو په وخت کې هم سلام کول پکار دي**

(۲۲)عن قتادة انه قال: قال النبی صلى الله عليه وسلم اذادخلتم بيتافسلموا على اهله. فأذاخرجتم فأودعوا اهله بالسلام۔رواہ البیهقی فی الشعب:رقم ۵۳۸۸.

دقتاده رضي الله عنه نه روايت دی چې : رسول الله صلي الله عليه وسلم فرمائيلي دي :کله چې تاسو کور ته داخليږئ نو په کور کې داخلو کسانو ته به سلام کوئ او کله چې د کور نه وځئ نو هم به په کور کې ناستو کسانو ته سلام کوئ او پدی سره به ئې رخصتي ورکوله.

**اول سلام او بیا کلام**

(۲۳) عن جابر رضي الله عنه قال قال رسول الله صلى الله عليه وسلم. السلام قبل الكلام۔(رواہ الترمذی رقم:۲۶۹۹)۔ شاهد سلسله صحیحه رقم:۸۱۶.

دجابر رضـي الله عنه نه روايت دی چې : رسول الله صلي الله عليه وسلم فرمائيلي دي : سلام کول دکلام نه مخکې وي (یعني دملاقات په وخت کي اول سلام کول پکار دي او خبري اتري ددینه پس کول پکار دي) ددي حدیث یو شاهد په سلسله صحيحه ۸۱۲کي ذکر شوی دی.

**درخصتیدو په وخت کي سلام کول**

(۲۴) عن ابي هريرة رضي الله عنه عن النبی صلى الله عليه وسلم انه قال: اذا انتهى احدكم الى مجلس فليسلّم. فان بداله ان يجلس فيجلس ثم اذاقام فليسلّم فليست الاولى باحق من الاخرة۔ (ابوداود:۵۲۰۸ .ترمذی:۲۸۴۹)۔

دابوهريره رضي الله عنه نه روايت دی چې رسول الله صلي الله عليه وسلم فرمائيلي دي کله چې په تاسو کي څوك کوم مجلس ته وررسيږي نو سلام دي اوکړي نو که دکيناستو ضرورت محسوس کړي هلته دي کيني او بيا چې کله پاڅيږي نو سلام دي اوکړي ځکه چې اولنی سلام دوروستني سلام نه زيات بهتر نه دی.

## په سلام کي مخکي کيدل دتکبر نه پاک کيدل دي

(۲۵)عن ابن مسعودؓعن النبیﷺقال البادئ بالسلام بریٔ من الکبر۔(شعب الایمان:۸۴۰۷)۔

دابن مسعود رضي الله عنه نه روايت دی چی رسول الله صلي الله عليه وسلم فرمائيلي دي : چی په سلام کي مخکي کيدونکی دتکبر نه بري وي.

## په سلام کي بخل نه کول

(۲۶) عن جابرؓ قال اتی رجل النبیﷺ.فقال. لفلان .فی حائطی غذق. وانه قدآذانی مکان عذقه .فارسل النبیﷺان بعنی عذقک. قال لا .قال فهب لی .قال لا.قال فبعنیه بعذق فی الجنة . فقال لا .قال رسول اللهﷺ. مارأیت الذی هوابخل منک. الا الذی یبخل بالسلام ۔(رواه احمد۔۳۲۸/۳)۔

دجابر رضي الله عنه نه روايت دی چی يو کس دنبي کريم صلي الله عليه وسلم په خدمت کي حاضر شو او عرض يي اوکړو زما دکجورو په باغ کي دفلاني کس يوه ونه ده او دغه وني ماته ډير تکليف پيښ کړی دی نو رسول الله دوني مالك ته جواب اوليږلو چی خپله ونه په ما باندي خرڅه کړه هغه اووئيل نه يي خرڅوم رسول الله ورته اوفرمائيل راته يي هبه کړه هغه اووئيل هبه کوم يي هم نه رسول الله ورته اوفرمائيل په مايي خرڅه کړه او تاته به ددي په بدل کي جنت دکجورو په ونو کي يوه ونه درکړی شي هغه اووئيل دا کار هم نه کوم رسول الله اوفرمائيل ستانه زيات بخيل خو ما بل چرته نه دی ليدلی مګر هغه کس څوك چی په سلام کولو کي بخل کوي

## داجازت حاصلولو دپاره سلام کول

(۲۷) عن کلدة بن حنبلؓ ان صفوان بن امیه بعث بلبن وجدایة. وضغابیس الی النبیﷺ. والنبیﷺ باعلی الوادی. قال فدخلت علیه ولم اسلّم. ولم استأذن. فقال النبیﷺ. ارجع فقل السلام علیکم أأدخل۔ (ابوداود: ۵۱۷۶. باب کیف الاستیذان . ترمذی:۲۷۱۰)۔

دکلده بن حنبل نه روايت دی چي صفوان بن اميه شوده او ورګه او واړه بادرنګ نبي کريم صلي الله عليه وسلم ته په هديه کي اوليږل او رسول الله په دغه وخت کي دمکي په يو لوړ مقام کي وو راوي وائي چی زه په رسول الله داخل شوم چی نه مي سلام اوکړو او نه مي دورتلو دپاره اجازت طلب کړو نو راته يي اوفرمائيل واپس لاړ شه او چی بيا راشي نو السلام عليکم اووايه

او دا هم اووايه ايا زه داخل شم؟

(۲۸) عن جابر رضی الله عنه ان النبیﷺ قال لا تأذنوا لمن لم يبدأبالسلام۔(بیہقی فی الشعب الایمان:۱۱/۲۱٦)

دجابر رضي الله عنه نه روايت دی چی : رسول الله صلي الله عليه وسلم فرمانيلي دي څوك چي دراتگ ابتداء په سلام سره اونكړي هغه ته دداخليدو اجازت مه وركوئ.

**سلام وئيل دسلامتئ سبب دی**

(۲۹)عن البراء بن عازب رضی الله عنه ان النبیﷺقال:افشوا السلام تسلموا۔ (شعب الایمان: ۱۱/۱۸۸)۔

دبراء بن عازب رضي الله عنه نه روايت دی چی رسول الله صلي الله عليه وسلم فرمانيلي دي سلام لره عام كړئ نو سالم به پاتي شئ.

**دتحيه دا الفاظ به جبريل عليه السلام هم استعمالول**

(۳۰)عن عائشه رضي الله عنها ان رسول اللهﷺقال:لهاان جبرئيل يقرئک السلام۔قالت وعليک السلام ورحمة الله وبركاته۔ (ترمذی:۷/۵۰۳)

دعائشه رضي الله عنها نه روايت دی چی : رسول الله صلي الله عليه وسلم فرمانيلي دي يقينا جبرائيل امين تاسو ته سلام كوي ، نو عائشه رضي الله عنها په جواب كي اووئيل وعليكم السلام ورحمة الله وبركاته.

(۳۱) عن انس بن مالک رضی الله عنه ان رسول اللهﷺ،كان اذاسلم. سلم ثلاثا. واذا تكلم بكلمة اعادها ثلاثا۔ (ترمذی:۷/۵۴۰)

فرمائي كله چی به رسول الله صلي الله عليه وسلم سلام كولو نو دري پيري به يي كولو او چی كومه ضروري خبره به يي كوله نو هغه به يي هم دري پيري تكراروله.

**رسول الله به په مړو هم سلام اچولو**

(۳۲) عن بريدة رضی الله عنه قال كان رسول اللهﷺيعلمهم اذا خرجوا الى المقابر. السلام عليكم اهل الديارمن المؤمنين والمسلمين وانا انشاء الله بكم لاحقون. نسأل الله لناولكم العافية۔(مسلم:۳/۴۸).

دبريده رضي الله عنه نه روايت دی چی رسول الله صلي الله عليه وسلم به خلقو ته قبرستان ته دتلو په وخت كي دسلام كولو تعليم وركولو چی ای مومنانو او مسلمانانو قبرونو والاپه تاسو دي سلام وی او مونږ هم په تاسو پسي درتلونكي يو او مونږ ستاسو او دخپل ځان دپاره دالله تعالي نه دعافيت دعا غواړو.

**دهجرت کولو په وخت کي رسول الله په سلام اچولو حکم کړی وو**

(۳۳)عن عبدالله بن سلام رضي الله عنه لماقدم رسول الله صلى الله عليه وسلم المدينة. انجفل الناس قِبَله فقالوا. قدم رسول الله صلى الله عليه وسلم.فجئت في الناس انظر .فلماتبيّنت وجهه .عرفت ان وجهه ليس بوجه كذاب. فتكلم. فكان اول شئ سمعته ياايهاالناس افشوالسلام .وصلواالارحام . واطعموا الطعام .وصلّوا بالليل و الناس نيام. تدخلوا الجنة بسلام۔(شعب الايمان:۱۱/۱۸۳، احمد:۵/۴۵۱)۔

دعبدالله بن سلام رضي الله عنه نه روايت دی فرمائي کله چی رسول الله صلي الله عليه وسلم مديني ته داخل شو نو خلق يي داستقبال کولو دپاره راجمع شول او وئيل يي چي رسول الله رارسيدلی دی نو زه هم دخلقو سره ورغلم او رسول الله مي په خلقو کي لټولو مګر کله چی زما دهغه په مخ مبارك نظر اولګيدو نو په غور سره مي ورته اوکتل او په دي پوهه شوم چی دا دروغژن مخ نه دی پس رسول الله خبري شروع کړي او دټولو نه ړومبی چي ما ورنه کومه خبره اوريدلي وه هغه دا وه اي خلقو سلام عام کړئ او صله رحمي قائمه کړئ او خلقو ته خوراکونه ورکوئ او دشپي به قيام کوئ په داسي وخت کي چی کله خلق اوده وي . پس تاسو به په سلامتئ سره جنت ته داخل شئ.

**په اعمالوکي سلام کول جنت ته دداخلي موجب دی**

(۳۴)عن ابي هريرة رضي الله عنه قلت يارسول اللهفانبئني بامراذا اخذت به دخلت الجنة؟. قال اطعم الطعام .وافش السلام . وصل الارحام . وصل والناس نيام۔(شعب الايمان:۱۱/۱۸۲)

دابوهريره رضي الله عنه نه روايت دی فرمائي چی ما عرض وکړو اي دالله رسوله يو داسي عمل راته وښايه چی زه يي شروع کړم او جنت ته پري داخل شم ؟ هغه راته اوفرمائيل دخلقو دپاره دخوراك انتظام کوه. سلام خوروه. اوصله رحمي پاله. اودشپي په داسي وخت کي قيام کوه چی نور خلق اوده وي.

**سلام کول په اسلام کي دفضيلت سبب دی**

(۳۵)عن عبدالله بن عمر رضي الله عنهماان رجلاسأل النبي صلى الله عليه وسلم اي الاسلام خير؟قال تطعم الطعام. وتقرئ السلام .على من عرفت ومن لم تعرف۔(رواه مسلم:۱/۶۳).

دعبدالله بن عمر رضي الله عنهما نه روايت دی چی يوکس دنبي کريم صلي الله عليه وسلم نه پوښتنه وکړله چی په اسلام کي کوم يو عمل ډير بهتر دی؟ ورته يي اوفرمائيل داچی ته خلقو ته خوراك ورکړي اوسلام واچوي په هر هغه چا چی ته يي پيژني اوکه نه يي پيژني

**دسلام جواب نه ورکولکي په خساره کي دی**

(۳۶)عن ابي هريرة رضي الله عنه ان ابخل الناس من بخل بالسلام، و المغبون من لم يرده. وان حالت بينک وبين اخيک شجرة. فان استطعت ان تبدأه بالسلام فافعل۔ (شعب الايمان:۱۱/۱۹۵)

دابوهريره رضي الله عنه نه روايت دی ده اوفرمائيل په خلقوکښې دټولو نه زيات بخيل هغه کس دی څوك چې په سلام کولو کي بخل کوي او تاواني هغه کس دی څوك چې دسلام جواب ورنکړي او کچرې ستا او ستاد ورور په مينځ کي ونه حائله شي نو که دوباره ورته دسلام اعاده کولی شې نو بهتره ده.

**سلام په خاص خلقواچول هم دقيامت يوه علامه ده**

(۳۷) لقي عبدالله رضي الله عنه رجلا . فقال السلام عليک ياابن مسعود رضي الله عنه. فقال عبدالله صدق الله ورسوله. سمعت رسول الله صلى الله عليه وسلم وهويقول:ان من اشراط الساعة ان يمر الرجل في المسجد لايصلي فيه ركعتين . وان لايسلم الرجل الا على من يعرف۔(صحيح ابن خزيمه:۱۳۲۶)۔

مروي دي چې يوکس دابن مسعود رضي الله عنه سره مخامخ شو او عرض يي وکړو سلام دی وي په تا باندي اي ابن مسعود ، ابن مسعود رضي الله عنه او فرمائيل الله او دهغه رسول ډير رښتوني دي. ما درسول الله صلي الله عليه وسلم نه اوريدلي دي فرمائيل يي چې دقيامت په علاماتو کي يوه علامه داده چې يوسړي دمسجد په خوا کي تير شي او دوه رکعته مونځ به پکي ونکړي او سلام به صرف په پيژندونکو خلقو اچوي.

**سلام لفظ د الله په نومونوکښې يو نوم دی**

(۳۸)عن ابي هريرة رضي الله عنه قال قال رسول الله صلى الله عليه وسلم ان السلام اسم من اسماء الله.وضعه الله في الارض .فافشوه بينکم۔ (مسندبزار:۴۱۷/۲، وشعب الايمان:۱۱/۲۰۰)۔

دابو هريره رضي الله عنه نه روايت دی چې رسول الله صلي الله عليه وسلم فرمائيلي دي سلام دالله تعالي په نومونو کي يو نوم دی کوم چې الله تعالي په زمکه کي ظاهر کړی دی. پس تاسو دي لره پخپل مينځ کي عام کړئ

**سلام دی دومره عام کړی شي چې په اودس ماتي ناست ته دی هم عرض کړی شي**

(۳۹)عن ابن عمر رضي الله عنهما ان رجلا سلم على النبي صلى الله عليه وسلم وهويبول. فلم يردعليه النبي صلى الله عليه وسلم يعني السلام۔ (الترمذي:۷/۵۳۶)

دعبدالله بن عمر رضي الله عنهما نه روايت دی چې يو کس په رسول الله صلي الله عليه وسلم سلام اووئيل او دا په داسې حالت کي وو چې رسول الله اودس ماتولو نو په دي وجه يي دسلام جواب ورنکړو او وروسته يي جواب ورکړو اود تاخير عذر يي پيش کړو او دا کس يي په

مذکوره حالت کي، دسلام ونيلو نه منع نکړو

**دغسل په دوران کي هم سلام پيش کول جائز دي**

(٣٠)عن ام هانیؓ تقول ذهبت الی رسول اللهﷺعام الفتح. فوجدته یغتسل . وفاطمة تستره بثوب. قالت فسلمت. فقال من هذه؟ قلت ام هانی. فقال مرحبا بام هانی۔ (٥/٢٣٦. ترمذی).

دام هاني رضي الله عنها نه روايت دی فرماني چی زه دفتح مکي په موقعه رسول الله صلي الله عليه وسلم ته ورغلم او رسول الله مي دغسل کولو په مصروفيت کي اوليدو چی فاطمه رضي الله عنها ورته دکپړي پرده کړي وه ما سلام عرض کړو رسول الله تپوس اوکړو چی څوک يي؟ ما اووئيل ام هاني يم نو رسول الله صلي الله عليه وسلم اوفرمائيل مرحبا بام هاني.

***************

## ٦٨_ بَابُ مَا جَاءَ فِي سُؤْرِ الْكَلْبِ

### دسپي دجوټي بيان

٩١_ حَدَّثَنَا سَوَّارُ بْنُ عَبْدِ اللَّهِ الْعَنْبَرِيُّ، حَدَّثَنَا الْمُعْتَمِرُ بْنُ سُلَيْمَانَ، قَالَ: سَمِعْتُ أَيُّوبَ يُحَدِّثُ، عَنْ مُحَمَّدِ بْنِ سِيرِينَ، عَنْ أَبِي هُرَيْرَةَ، عَنِ النَّبِيِّ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ. أَنَّهُ قَالَ: "يُغْسَلُ الْإِنَاءُ إِذَا وَلَغَ فِيهِ الْكَلْبُ سَبْعَ مَرَّاتٍ أُولَاهُنَّ أَوْ أُخْرَاهُنَّ بِالتُّرَابِ، وَإِذَا وَلَغَتْ فِيهِ الْهِرَّةُ غُسِلَ مَرَّةً". قَالَ أَبُو عِيسَى: هَذَا حَسَنٌ صَحِيحٌ، وَهُوَ قَوْلُ الشَّافِعِيِّ، وَأَحْمَدَ، وَإِسْحَاقَ، وَقَدْ رُوِيَ هَذَا الْحَدِيثُ مِنْ غَيْرِ وَجْهٍ، عَنْ أَبِي هُرَيْرَةَ، عَنِ النَّبِيِّ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ نَحْوَ هَذَا، وَلَمْ يُذْكَرْ فِيهِ إِذَا وَلَغَتْ فِيهِ الْهِرَّةُ غُسِلَ مَرَّةً. وَفِي الْبَاب عَنْ عَبْدِ اللَّهِ بْنِ مُغَفَّلٍ. [1]

**ترجمه** : دابوهريره رضي الله عنه نه روايت دي فرمائي چي رسول الله صلي الله عليه وسلم فرمانيلي دي کله چي په يو لوښي کي سپي خوله اووهي نو دا به اوه خله وينځلي شي، په اول خل اويا په اخري خل به په خاوره وينځلي او مړلي شي او چي کله پيشو په يو لوښي کي خوله اووهي نو دا به يو خل وينځلي شي.

---

[1] سنن ابی داود/ الطهارة ٣٧ (٧٢) وانظر أیضا: صحیح البخاری/الوضوء ٣٣ (١٧٢). صحیح مسلم/الطهارة ٢٧ (٢٧٩). سنن ابی داود/ الطهارة ٣٧ (٧١) سنن النسائی/الطهارة ٥١ (٦٣) والمیاه ٧ (٣٣٦). و (٣٤٠). سنن ابن ماجه/الطهارة ٣١ (٣٦٣، ٣٦٤). (تحفة الأشراف : ١٤٥٠٩). موطا امام مالک/الطهارة ٦ (٣٥) مسند احمد (٢/٢٤٥، ٢٥٣، ٢٦٥، ٢٧١، ٣٦٠، ٣٩٨، ٤٢٤، ٤٢٧، ٤٤٠، ٤٨٠، ٥٠٨)

امام ترمذي وائي دا حديث حسن صحيح دي او همدا دامام شافعي او احمد او اسحاق بن راهويه (رحمهم الله) قول دي

دابوهريره رضي الله عنه حديث دنبي كريم صلي الله عليه وسلم نه په دي طريقه په ډيرو سندونو مروي دي په كومو كي چي دپيشو دخولي وهلو په صورت كي دلوښي ديوځل وينځلو ذكر نه دي راغلي. او په دي باب كي دعبدالله بن معفل رضي الله عنه نه هم يو حديث وارد دي.

**حل لغات** ولغت: واحد مونث فعل ماضي ده مثال واوي لكه ولغت فيه الهرة يعني پيشو وركي خوله اووهله

**تشريح** : دسپي دجوتي په سلسله كي دري مسائل دي اول چي دسپي جوته پاكه ده او كه ناپاكه ده. دويم سپي چي په لوښي كي خوله اووهي نو ددي لوښي اوه پيري وينځل ضروري دي او كنه په دري ځل وينځلو هم لوښي پاكيږي. دريم په خاورې دمږلي څه حكم دي

اولنۍ مسئله دائمه ثلاثه په نزد دتمامو درندګانو جوته پاكه ده پس دسپي جوته هم پاكه كيدل پكار دي مګر امام مالك پخپل اصل قائم دي او دا قول يي كړي دي چي دسپي جوته ناپاكه ده مګر امام شافعي او امام احمد دخپل اصل نه تلي دي دوئ وائي چي دسپي جوته ناپاكه ده او داحنافو په نزد خو دهر درنده جوته ناپاكه ده برابره خبره ده چي سپي وي او كه شرمخ وي او كه خنزير وي

دويمه مسئله دائمه ثلاثه په نزد دولوغ الكلب په صورت كي دري پيري وينځل ضروري دي او دامام مالك په نزد دا حكم تعبدي دي او دباقي دوه امامانو په نزد دلوښي دپاكي دپاره وينځل ضروري دي او داحنافو په نزد په دري ځل وينځلو لوښي پاكيږي البته اوه پيري وينځل مستحب دي

ائمه ثلاثه په دي باره كي دحديث الباب نه استدلال كوي او په دي كي رسول الله صلي الله عليه وسلم داوه پيرو وينځلو حكم كوي امام ابوحنيفه وائي چي دا ارشاد نبوي داستحباب په طور دي ځكه چي دحديث دراوي ابوهريره فتوي ده چي په دري پيري وينځلو لوښي پاكيږي او دابوهريره دا فتوي طحاوي په باب سور الكلب كي ذكر كړي ده،

بيا دائمه ثلاثه په مينځ كي اختلاف دي چي د لوښي وينځلو حكم په څه وجه شوي دي دامام شافعي او امام احمد په نزد دا حكم دطهارت دپاره دي او دامام مالك په نزد تعبدي حكم دي ځكه چي دسپي جوته دهغه په نزد پاكه ده او دتعبدي مطلب دادي چي شريعت ددي دوينځلو حكم كړي دي ځكه يي وينځي او ددي وجه موږ ته نه ده معلومه جمهورو علماء دمسله

دروايت "طهور اناء احدكم اذا ولغ الكلب فيه ان يغسله سبع مرات" :مسلم ١٣٢/١ نه

استدلال کوي. او جمهور علماء دظهور لفظ نه استدلال کوي او امام مالك دا حديث په روايت بالمعني حمل کوي يعني دراوي چي څنګه خوښه وه هغه شان يي لفظ بدل کړي دي
دريمه مسئله دلوښي په خاوره مږل دامام شافعي او امام احمد په نزد واجب دي لهذا کچري يو کس اوه پيري لوښي اووينځي مګر په خاورو يي اونه مږي دا لوښي به ناپاك وي او دامام احمد په نزد دوه پيري په خاوره مږل ضروري دي يو خل په اوه پيرو کي دننه او بل په اخري اتم خل باندي ځکه چي دعبدالله بن مغفل په حديث کي والثامنة بالتراب لفظ راغلي دي او دامام شافعي په نزد په اوو کي دننه مږل کافي دي او اتمه پيره مږل مستحب دي او دامام ابو حنيفه او امام مالك په نزد مږل ضروري نه دي صرف مستحب دي.
دسور الکلب دروايت په جواب کي علماؤ دري موقفونه اختيار کړي دي اول موقف دنسخ دي بل دتنفير دي او بل دارشاد دي چي تفصيل يي داسي دي دائمه ثلاثه قول دي په دي حديث کي چي کوم حکم دي دا ددوئ په نزد امر شرعي دي يعني دا شرعي مسئله ده چي لوښي به دپاکيدو دپاره اوه پيري وينځلي شي او په خاوره مږل به ضروري وي البته امام مالك دا تعبدي حکم ګڼري او په خاوره مږل ضروري نه ګڼري. احنافو ددي روايت په سلسله کي دري موقفونه اختيار کړي دي اول موقف دنسخ دي يعني دا حديث منسوخ دي تفصيل دادي چي دعربو په مزاج کي سپي دومره دخيل شوي وو لکه څنګه چي اوس ديورب په مزاج کي دخيل دي مګر کله چي اسلام راغي نو دخلقو دزړونو نه يي دسپي دمحبت ويستل اوغوښتل او ددي دپاره يي په تدريج احکام مقرر کړل او دټولو نه مخکي يي خلقو ته دا اووئيل کچري څوك د شوق په وجه سپي ساتي نو روزانه به دده په ثواب کي يو قيراط کمي راځي ،د درهم شپږمه حصه، ثواب به ورنه کميږي احتياط کونکو خلقوپه همدغه وخت کي سپي پريخودل ځکه چي يو داسي ګناه لازميده چي ثواب نه لري او په دويم خل يي دلوښي د اوه پيري وينځلو حکم اوکړو او يو خل په خاورو مږلو حکم يي اوکړو . سپي په کور کي هر طرف ته ګرځي او دسحر نه تر مابنامه معلومه نه وي چي په څومره لوښو کي به خوله وهي خلق دلوښو په وينځلو وينځلو ستړي شول نو دا يي رخصت کړل بيا يي اخري حکم دسپو دوژلو اوکړو. بيا چي کله دزړونو نه دسپو محبت ختم شو او په مدينه کي هيڅ يو سپي پاتي نشو او بيا به چرته دقبائلو نه کومي ښځي دخان سره مديني ته سپي راوستو نو خلقو به ورمنډه کړو او دا سپي به يي مړ کړو هر کله چي نفرت دي لره ديته اورسوو نو اخري حکم دا وو چي تور سپي يي مستثني کړو اوس دعلماؤ په دي خبره اتفاق دي چي اولني حکم يعني دثواب دکميدو اوس هم باقي دي او په دويم حکم کي اختلاف دي چي دا اوس هم باقي دي او که منسوخ دي دائمه ثلاثه په نزد باقي دي او داحنافو په نزد دا هم منسوخ شوي دي مګر دا توجيح مقبول نه ده ځکه چي دتسبيع او دترتيب

داستحباب قول داحنافو په نزد موجود دي او که دا حکم ختم شوي وي نو استحباب به څنګه باقي پاتي شوي وو.
دويم موقف دتنفير دي يعني ددي حکم مقصد دخلقو په زړونو کي دسپو نه نفرت پيدا کول دي پس دتسبيع او ترتيب حکم وجوبي نه دي استحبابي دي دتنفير مقصد په دي صورت کي هم حاصليږي او دحديث دراوي فتوي دعدم وجوب دليل دي او دا توجيح مقبول ده.
دريم موقف ارشادي دي يعني خلقو ته يي ددوئ دخيګړي يوه خبره اوخودله چي ددوئ دپاره پکار دي چي د سپي جوټه کړي لوبني اوه پيري اووينځي او يو ځل يي په خاوره اومږي. علامه ابن رشد مالکي ددي دا وجه بيان کړي ده چي ممکن ده چي دا سپي چرته ليوني وي او دده دبيمارئ جراثيم پټ وي چي څو پوري مړ شوي نه وي نو دلوبني نه نه اوځي او ددي علاج نوشادر دي کوم چي په خاوره کي په هر ځاي کي موجود دي پس لوبني چي کله په خاوره اومږلي شي نو جراثيم يي مړه شي او په بار بار وينځلو راوځي او بيا انسان ددي دضرر نه بچ کيږي دا توجيه هم ښکلي ده او داستحباب دقول سره مشابه ده.

***************

## ٦٩_ بَابُ مَا جَاءَ فِي سُؤْرِ الْهِرَّةِ

### دپيشو دجوټي بيان

٩٢_ حَدَّثَنَا إِسْحَاقُ بْنُ مُوسَى الأَنْصَارِيُّ، حَدَّثَنَا مَعْنٌ، حَدَّثَنَا مَالِكُ بْنُ أَنَسٍ، عَنْ إِسْحَاقَ بْنِ عَبْدِ اللَّهِ بْنِ أَبِي طَلْحَةَ، عَنْ حُمَيْدَةَ بِنْتِ عُبَيْدِ بْنِ رِفَاعَةَ، عَنْ كَبْشَةَ بِنْتِ كَعْبِ بْنِ مَالِكٍ، وَكَانَتْ عِنْدَ ابْنِ أَبِي قَتَادَةَ، أَنَّ أَبَا قَتَادَةَ دَخَلَ عَلَيْهَا، قَالَتْ: فَسَكَبْتُ لَهُ وَضُوءًا، قَالَتْ: فَجَاءَتْ هِرَّةٌ تَشْرَبُ فَأَصْغَى لَهَا الإِنَاءَ حَتَّى شَرِبَتْ، قَالَتْ كَبْشَةُ: فَرَآنِي أَنْظُرُ إِلَيْهِ، فَقَالَ: أَتَعْجَبِينَ يَا بِنْتَ أَخِي؟ فَقُلْتُ: نَعَمْ، قَالَ: إِنَّ رَسُولَ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ قَالَ: " إِنَّهَا لَيْسَتْ بِنَجَسٍ إِنَّمَا هِيَ مِنَ الطَّوَّافِينَ عَلَيْكُمْ أَوِ الطَّوَّافَاتِ ". وَقَدْ رَوَى بَعْضُهُمْ، عَنْ مَالِكٍ، وَكَانَتْ عِنْدَ أَبِي قَتَادَةَ، وَالصَّحِيحُ ابْنُ أَبِي قَتَادَةَ، قَالَ: وَفِي البَابِ عَنْ عَائِشَةَ، وَأَبِي هُرَيْرَةَ. قَالَ أَبُو عِيسَى: هَذَا حَسَنٌ صَحِيحٌ، وَهُوَ قَوْلُ أَكْثَرِ الْعُلَمَاءِ مِنْ أَصْحَابِ النَّبِيِّ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ وَالتَّابِعِينَ وَمَنْ بَعْدَهُمْ، مِثْلِ الشَّافِعِيِّ، وَأَحْمَدَ،

Scanned with C

وَإِسْحَاق لَمْ يَرَوْا بِسُؤْرِ الْهِرَّةِ بَأْسًا. وَهَذَا أَحْسَنُ شَيْءٍ رُوِيَ فِي هَذَا الْبَابِ. وَقَدْ جَوَّدَ مَالِكٌ هَذَا الْحَدِيثَ، عَنْ إِسْحَاقَ بْنِ عَبْدِ اللَّهِ بْنِ أَبِي طَلْحَةَ. وَلَمْ يَأْتِ بِهِ أَحَدٌ أَتَمَّ مِنْ مَالِكٍ. (1)

**ترجمه** : دكبشه بنت كعب (چي دابن ابي قتاده په نكاح كي وه) نه روايت دي فرمائي چي ابوقتاده ماته راغي او ما دهغه دپاره اودس له اوبه تياري كړي دي وخت كي يوه پيشو راغله او د اودس دلوښو نه يي اوبه څكل شروع كړل ابو قتاده ورته داوبو لوښي راكوږ كړو تردي چي په اسانۍ سره يي اوبه اوڅكي كبشه وائي ابو قتاده ماته كتل چي زه دهغه نه تعجب كوم نو راته يي اوفرمائيل وريري ايا ته ددينه تعجب كوي؟ ما اووئيل هو، نو هغه اووئيل چي رسول الله صلي الله عليه وسلم فرمائيلي دي پيشو نجسه نه ده دا هر وخت تاسو ته تلونكي راتلونكي ده.

امام ترمذي وائي په دي باب كي دعائشه او ابوهريره رضي الله عنهم نه هم احاديث وارد دي او دا حديث حسن صحيح دي، دصحابه كرامو او دتابعينو او ددينه پس خلقو كي دډيرو اهل علمو مثلا امام شافعي، احمد، او اسحاق بن راهويه (رحمهم الله) هم دا قول دي چي دپيشو په جوټه كي څه حرج نشته اودا دټولو نه صحيح ترين روايت دي چي په دي باب كي وارد دي.

**حل لغات** . أَحْسَنُ شَيْءٍ يعني دا روايت اصح مافي الباب دي.احسن اسم تفضيل دي.

**تشريح** : دپيشو دجوټي حيثيت

په دي باره كي مذاهب دفقهاؤ دادي چي دطرفينو په نزد مكروه دي دابن همام په نزد مكروه تنزيهي ده او دامام طحاوي په نزد مكروه تحريمي ده، او دامام ابو يوسف او ائمه ثلاثه په نزد غير مكروه اوپاكه ده، دطرفينو دپاره دكراهت تنزيهي دليل چي دومره خبره كافي ده چي دپيشو دخولي ملوث نجاست كيدلو احتمال دي كيدي شي چي كومه مږه يي خوړلي وي او دمكروه تحريمي دپاره مستقل دلائل ضروري دي

دليل نمبر (1) احاديث دغسل داناء من ولوغ الهرة، مثلا حديث دابوهريره المتعلق بسور الكلب اذا ولغ فيه الهرة غسل، ددي جملي ناقلين ثقات دي او زيادت دثقه معتبر دي امام طحاوي نقل كړي دي "اذا ولغ فيه الهرة يغسل كما يغسل من ولوغ الكلب" او خاصكر ابن عمر او مجاهد به فتوي وركوله چي دپيشو په جوټه دي اودس اونكړي شي

دليل ثاني په مستدرك دحاكم كي يو روايت دي "الهرة سبع كبري لكان سور السباع" يعني پيشو يو لوي خناور دي او جوټه يي نجسه ده

---

1 سنن ابي داود/ الطهارة 38 (75) . سنن النسائي/الطهارة 54 (68) . والمياه 9 (341) . سنن ابن ماجه/الطهارة 32 (367) . (تحفة الأشراف : 12141) . مسند احمد (5/296، 303، 309) . سنن الدارمي/ الطهارة 58 (763)

دليل ثالث سور هميشه دلحم تابع وي چي لحم نجس وي نو سور به هم نجس وي
سوال د دريو وارو دلائلو تقاضادا ده چي جوتِه دپيشو پليته كړي شي
جواب د طواف دعلت په وجه فقهاؤ په مكروه تحريمي قول كړي دي
د دوئ دمقابلينو دليل حديث دابوقتاده دي
جواب په دي حديث كي دوه مضامين دي يو عمل دابوقتاده دي او بل مرفوع حديث دي اوس مونږ سوال كوو كچري ستاسو استدلال دعمل دابوقتاده نه وي نو بيا مونږ وايو چي دا خو دهغه اجتهاد دي او كه دمكروه حديث نه استدلال كوئ نو بيا مونږ وايو د "انها ليست بنجس" دوه معنې دي (١) دپيشو جوتِه ناپاكه ده (٢) دده بدن ناپاك نه دي "اذا جاء الاحتمال بطل الاستدلال" يعني چرته چي احتمال پيدا كيږي هلته استدلال پيدا كيږي
دويم دليل حديث دعائشه دي مروي دي چي عائشه رضي الله عنها ته حريسه (دغنمو دل) راوړلي شو او عائشه رضي الله عنها مونځ كولو نو په طاق كي دايخودو دپاره يي اشاره اوكړه هديه راوړونكي وائي چي پيشو ورنه خوراك اوكړئ او عائشه رضي الله عنها هم ددي ځاي نه خوراك اوكړو خادمه وائي ماتعجب اوكړو عائشه رضي الله عنها اوفرمائيل مانبي كريم صلي الله عليه وسلم ليدلي دي چي دپيشو په جوتِه به يي اودس كولو
جواب ستاسو استدلال دعمل دعائشي نه دي او كه عمل درسول الله صلي الله عليه وسلم نه دي كه عمل دعائشه نه وي نو بيا خو دا دهغي اجتهاد دي او كه دمرفوع حديث نه وي يعني دعمل درسول الله نه نو بيا كراهت تنزيهي دی او قائلين دا جواب كوي چي دا دجواز دبيان دپاره دي او دمكروه تحريمي قائلين وائي دا دهغه وخت واقعه وه كله چي دپيشو غوښه حرامه شوي نه وه يا كيدي شي چي درسول الله په وړاندي پيشو خوله پاكه كړي وي او بيا يي وروسته په اوبو كي خوله وهلي وي او دا څه دتعجب خبره نه ده دا درسول الله صلي الله عليه وسلم معجزه هم كيدي شي

"قال ابو عيسي وقد جود مالك" امام ترمذي وائي چي دامام مالك نه علاوه بل چا دا سند په ښه طريقه نه دي بيان كړي څومره چي امام مالك په عمده طريقه بيان كړي دي او بهتره طريقه يي اختيار كړي ده ځكه چي امام مالك دخپل استاذ نوم واضح بيان كړي دي چي عن اسحاق بن عبدالله بن ابي طلحه او باقي راويان په دومره وضاحت سره داستاذ نوم نه بيانوي

****************

## ٧٠ـ بَابٌ فِي الْمَسْحِ عَلَى الْخُفَّيْنِ

**په موزو د مسح كولو بيان**

۹۳_ حَدَّثَنَا هَنَّادٌ، حَدَّثَنَا وَكِيعٌ، عَنِ الأَعْمَشِ، عَنْ إِبْرَاهِيمَ، عَنْ هَمَّامِ بْنِ الحَارِثِ، قَالَ: بَالَ جَرِيرُ بْنُ عَبْدِ اللَّهِ، ثُمَّ تَوَضَّأَ وَمَسَحَ عَلَى خُفَّيْهِ، فَقِيلَ لَهُ: أَتَفْعَلُ هَذَا؟ قَالَ: وَمَا يَمْنَعُنِي وَقَدْ رَأَيْتُ رَسُولَ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ يَفْعَلُهُ. قَالَ إِبْرَاهِيمُ: وَكَانَ يُعْجِبُهُمْ حَدِيثُ جَرِيرٍ، لِأَنَّ إِسْلَامَهُ كَانَ بَعْدَ نُزُولِ الْمَائِدَةِ هَذَا قَوْلُ إِبْرَاهِيمَ يَعْنِي كَانَ يُعْجِبُهُمْ. قال: وَفِي البَابِ عَنْ عُمَرَ، وَعَلِيٍّ، وَحُذَيْفَةَ، وَالمُغِيرَةِ: وَبِلَالٍ، وَسَعْدٍ، وَأَبِي أَيُّوبَ، وَسَلْمَانَ، وَبُرَيْدَةَ، وَعَمْرِو بْنِ أُمَيَّةَ، وَأَنَسٍ، وَسَهْلِ بْنِ سَعْدٍ، وَيَعْلَى بْنِ مُرَّةَ، وَعُبَادَةَ بْنِ الصَّامِتِ، وَأُسَامَةَ بْنِ شَرِيكٍ، وَأَبِي أُمَامَةَ، وَجَابِرٍ، وَأُسَامَةَ بْنِ زَيْدٍ، وَابْنِ عُبَادَةَ، وَيُقَالُ: ابْنُ عِمَارَةَ، وَأُبَيُّ بْنُ عِمَارَةَ. قال أبو عيسى: وَحَدِيثُ جَرِيرٍ حَسَنٌ صَحِيحٌ.[1]

**ترجمه** : همام بن حارث وايي چي جرير بن عبد الله بول وكړل او بيا يي اودس وكړو او پخپلو موزو يي مسح وكړله دي وخت كي ورته ووئيلى شول داسي دي ولي وكړل؟ په جواب كي يي ووئيل ما ددي عمل نه څه شي منع كولى شي كله چي ما پخپله رسول الله صلي الله عليه وسلم په داسي عمل كولو ليدلى دى . ابراهيم نخعي وايي چي صحابه كرامو به د جرير د حديث نه تعجب كولو ځكه چي هغه د سورت مائدي دنزول نه پس اسلام قبول كړى دى
امام ترمذي وايي چي د جرير حديث حسن صحيح دى.
او په دي باب كي د عمر، علي، حذيفه، مغيره . بلال، ابو ايوب. سلمان، بريدة، عمرو بن اميه . انس، سهل بن سعد، يعلي بن مره، عبادة بن الصامت، اسامه بن شريك، ابو امامه، جابر، اسامه بن زيد، ابن عبادة چي ابن عماره هم ورته ونيلي شي، او ابن ابي عماره هم ورته ويلي شي رضي الله عنهم هم احاديث وارد دي.
**حل لغات** بال يبول بولا معني متيازي كول ، مبال دمتيازو نالى دبول جمع ابوال راځي دذكر جمع ذكور راځي معني دنارينه شرمګاه ده

**د همام بن الحارث رضي الله عنه حالات**

نوم همام دپلار نوم حارث بن قيس بن عمرو دقبيله نخع سره يي تعلق وو او دكوفي اوسيدونكى وو خپله زمانه كي لوي عالم او زاهد وو او جليل القدر تابعي وو چي علماؤ په ثقاتو كي شميرلى دى ۲۵ هجري كي وفات شوى دى چي يو لوي تعداد شاګردان يي دي.

[1] صحيح البخاري/الصلاة ۲۵ (۳۸۷) . صحيح مسلم/الطهارة ۲۲ (۲۷۲) . سنن ابي داود/ الطهارة ۵۹ (۱۵۴) . سنن النسائي/الطهارة ۹۶ (۱۱۸) . والقبلة ۲۳ (۷۷۵) . سنن ابن ماجه/الطهارة ۸۴ (۵۴۳) . (تحفة الأشراف : ۳۲۳۴)

***************

٩٤_ وَيُرْوَى عَنْ شَهْرِ بْنِ حَوْشَبٍ، قَالَ: رَأَيْتُ جَرِيرَ بْنَ عَبْدِ اللهِ تَوَضَّأَ وَمَسَحَ عَلَى خُفَّيْهِ، فَقُلْتُ لَهُ فِي ذَلِكَ، فَقَالَ: رَأَيْتُ النَّبِيَّ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ "تَوَضَّأَ، وَمَسَحَ عَلَى خُفَّيْهِ". فَقُلْتُ لَهُ: أَقَبْلَ الْمَائِدَةِ أَمْ بَعْدَ الْمَائِدَةِ؟ فَقَالَ: مَا أَسْلَمْتُ إِلَّا بَعْدَ الْمَائِدَةِ. حَدَّثَنَا بِذَلِكَ قُتَيْبَةُ، حَدَّثَنَا خَالِدُ بْنُ زِيَادٍ التِّرْمِذِيُّ، عَنْ مُقَاتِلِ بْنِ حَيَّانَ، عَنْ شَهْرِ بْنِ حَوْشَبٍ، عَنْ جَرِيرٍ، قَالَ: وَرَوَى بَقِيَّةُ، عَنْ إِبْرَاهِيمَ بْنِ أَدْهَمَ، عَنْ مُقَاتِلِ بْنِ حَيَّانَ، عَنْ شَهْرِ بْنِ حَوْشَبٍ، عَنْ جَرِيرٍ، وَهَذَا حَدِيثٌ مُفَسَّرٌ، لِأَنَّ بَعْضَ مَنْ أَنْكَرَ الْمَسْحَ عَلَى الْخُفَّيْنِ تَأَوَّلَ أَنَّ مَسْحَ النَّبِيِّ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ عَلَى الْخُفَّيْنِ كَانَ قَبْلَ نُزُولِ الْمَائِدَةِ، وَذَكَرَ جَرِيرٌ فِي حَدِيثِهِ، أَنَّهُ رَأَى النَّبِيَّ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ مَسَحَ عَلَى الْخُفَّيْنِ بَعْدَ نُزُولِ الْمَائِدَةِ. ([1])

**ترجمه** : شهر بن حوشب وائي ما جرير بن عبدالله اوليدو چي اودس يي اوکړو او پخپلو موزو يي مسح اوکړه ما چي ورسره کله په دي سلسله کي خبري اوکړي نو وئيل يي ما نبي کريم صلي الله عليه وسلم ليدلي وو چي اودس يي اوکړو او پخپلو موزو يي مسح اوکړه ما ورنه تپوس اوکړو چي ستاسو دا عمل دسورة مائدي دنزول نه مخکي دي او که روسته نو ويي وئيل زه خو دسورة مائدي دنزول نه پس مسلمان شوي يم او دا حديث داودس دايت تفسير کوي خکه چي کومو خلقو په موزو دمسح کولو نه انکار کړي دي په هغوئ کي بعضي کسانو دا تاويل کړي دي چي رسول الله صلي الله عليه وسلم چي په موزو مسح کړي وه دا دسورة مائدي دنزول نه مخکي وه مګر جرير پخپل روايت کي ذکر کړي دي چي هغه دسورة مائدي دنزول نه پس رسول الله صلي الله عليه وسلم په موزو په مسح کولو ليدلي دي

**حل لغات** : يتاول تاول تاولا دتفعل نه په معني د تفسير کولو دي د يوي خبري.

**تشريح** : دچمړي په موزو مسح جائز ده په اسلامي فرقو کي صرف شيعه او خوارج دا ناجائز ګنړي، خفين يي خکه ذکر کړي دي که چا دواړه موزي اغوستلي وي د هغه دپاره مسح جائز ده او که يوه يي اغوستلي وي او بله نه وي نو دداسي کس دپاره مسح جائز نه ده

سوال مسح علي الخفين جائز ده او کنه

جواب په دي کي اختلاف دي داهل سنت والجماعت مسلك دادي چي مسح علي الخفين جائز ده. روافض او خوارج او په روافضو کي دفرقه اماميه مسلك دادي چي مسح علي الخفين

---

[1] تفرد به المؤلف (تحفة الأشراف : ٣٢١٣)

جائز نه ده خوارج وائي چي دخپو وينځل ضروري دي او روافض وائي چي په بربنډو خپو مسح کول جائز دي
منکرينو دوه اعتراضات کړي دي دکومو په وجه چي هغوئ دمسح په عدم جواز قول کړي دي
اول اعتراض دادي مسح علي الخفين چي په کومو احاديثو ثابت ده هغه اخبار احاد دي او خبرواحد ظني وي او ظاهره ده چي کتاب الله قطعي دي او دظني په وجه قطعي نشي پريخودلي کيدي او دخوارجو په نزد قطعي غسل دي او دروافضو په نزد قطعي مسح ده
دويم اعتراض دادي په کومو احاديثو کي چي دمسح علي الخفين ذکر دي هغه احاديث دسورة مائدي دايت په وجه منسوخ دي دا دهغه وخت واقعات دي کله چي دسورة مائده ايت نه وو نازل شوي.
داولي شبهي جواب: مونږ دا نه منو چي په کومو احاديثو مسح علي الخفين ثابت ده هغه اخبار احاد دي بلکه مسح علي الخفين تقريبا داتلسو صحابه کرامو نه ثابت دي او علامه عيني دشرح معاني الاثار په شرح نقبط الافکار کي د ۵۳ صحابه کرامو حواله ورکړي ذي او په فتح الملهم کي علامه شبير احمد عثماني دحافظ ابن حجر قول نقل کړي دي او بعضي محدثينو دمسح علي الخفين داحاديثو روات په وجوه روات کي شمارلي دي او د اتياو نه اوړيدلي دي عشره مبشره هم په دوئ کي دي دحسن بصري قول دي "حدثني سبعون صحابيا" او دويم قول يي دادي "ادرکت سبعين بدريا من الصحابة کلهم يرون المسح علي الخفين" غرض دا چي مسح علي الخفين درسول الله صلي الله عليه وسلم نه په طريقه دتواتر ثابت دي دقاضي ابويوسف قول دي "انما يجوز نسخ القران بالسنة اذا وردت کورود المسح علي الخفين" يعني دمسح علي الخفين والااحاديث مشهور او متواتردي.
دامام ابو حنيفه قول دي "ما قلت بالمسح علي الخفين حتي جائني مثل ضوء النهار" يعني زه دهغه وخته پوري دمسح علي الخفين قائل نه وم ځو پوري چي ماته دروښانه ورځ پشان واضح شوي نه وه.
دامام کرخي قول دي "اني اخاف الکفر علي من لايري المسح علي الخفين" همدارنګي په دي باندي تواتر بالتعامل دلالت کوي چنانچي حافظ ابن عبدالبر دامت دتعامل نقل کولو په حال کي فرمائي چي مسح علي الخفين داهل بدر او حديبيه صحابيانو چي بدريان دري سوه ديارلس وو او حديبيه والاخوارلس سوه وو ټولو نه ثابته ده وراندي فرمائي "وغيره من المهاجرين والانصار وسائر الصحابة والتابعين وعامة اهل العلم والاثر" وراندي فرمائي لاينکره الامخذول مبتدع خارج عن جماعة المسلمين، يعني دبدعتني نه علاوه بل څوک ددينه انکار نشي کولي او هغه څوک به ددينه انکار کوي چي دمسلمانانو دجماعت نه خارج وي پس دامت عملي

تواتر يو لوي دليل دي په دي خبره كي مسح علي الخفين والاروايت اخبار احاد نه دي بلكه دا په احاديث متواترة المعني باندي ثابت دي علامه شبير احمد عثماني دا تمام اقوال په فتح الملهم كي ذكر كري دي

ددويمي شبهي جواب ددي شبهي دجواب دپاره خو حديث الباب يعني دجرير روايت كافي دي چنانچي په دي روايت كي دي چي هغه مسح اوكړه نو شاګردانو اووئيل مسح دي ولي اوكړه خكه چي دا په ايت دسورة ماندي منسوخ شوي دي جرير اووئيل زه دسورة ماندي د ايت دنزول نه پس په اسلام مشرف شوي يم او مارسول الله صلي الله عليه وسلم دمسح علي الخفين باندي ليدلي دي همدارنګي په حديث كي قال بال جرير ذكر كړل تردي چي دا وهم پيدانشي چي دا دوضوء علي الوضوء دقبيلي نه دي بلكه دحدث دازالي دپارد دي.

"وهذا حديث مفصل" مفسر لفظ بفتح السين هم لوستلي كيږي په دي صورت كي به معني دا وي چي په دي كي تفسير شوي دي چي درسول الله صلي الله عليه وسلم مسح كول دمائدي دايت دنزول نه مخكي هم ود او وروسته هم ثابت دي او په كسري دسين سره هم لوستلي كيږي په دي صورت كي به اولني معني وي چي په دي حديث كي تفسير دي ددي خبري چي مسح علي الخفين دمائدي دنزول نه مخكي وخت پوري خاص نه دد بلكه وروسته هم ود او دويمه معني دا دد چي دا حديث تفسير كونكي دقراني ايت دي چي په قران كي دغسل حكم په هغه صورت پوري خاص دي كله چي دعدم تخفف په صورت كي وي ليكن كله چي دتخفف صورت وي نو بيا دمسح حكم دي او دغسل حكم نشته

## دشهر بن حوشب رضي الله عنه حالات

نوم شهر دپلار نوم حوشب دی او مشهور تابعي دی دخپلي زماني دلويو علماؤ دجملي نه دی دعثمان بن عفان رضي الله عنه دخلافت په زمانه كي پيدا شوی وو انتهائي متقي انسان وو. وئيلی شوي دي چي يو وادد ته تلی وو او هلته ګاني وئيلی كيدي نو فوراً روان شو. امام احمد بن حنبل واني چي پخپل ښار كي ثقه دی دده روايات صحيح دي هغه همدا خبره معاويه بن صالح. احمد بن زبير. يحيي بن معيم هم دده په باره كي كړی دی په ۱۱۲ هجري كي وفات شوی دی صرف دوه روايتونه ورنه منقول دي

****************

## ۷۱_ بَابُ الْمَسْحِ عَلَى الْخُفَّيْنِ لِلْمُسَافِرِ وَالْمُقِيمِ

**دمسافر او دمقيم دپاره په موزو دمسح كولو دمودي بيان**

٩٥ـ حَدَّثَنَا قُتَيْبَةُ، حَدَّثَنَا أَبُو عَوَانَةَ، عَنْ سَعِيدِ بْنِ مَسْرُوقٍ، عَنْ إِبْرَاهِيمَ التَّيْمِيِّ، عَنْ عَمْرِو بْنِ مَيْمُونٍ، عَنْ أَبِي عَبْدِ اللَّهِ الْجَدَلِيِّ، عَنْ خُزَيْمَةَ بْنِ ثَابِتٍ، عَنِ النَّبِيِّ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ أَنَّهُ سُئِلَ عَنِ الْمَسْحِ عَلَى الْخُفَّيْنِ، فَقَالَ: "لِلْمُسَافِرِ ثَلَاثَةٌ وَلِلْمُقِيمِ يَوْمٌ". وَذُكِرَ عَنْ يَحْيَى بْنِ مَعِينٍ، أَنَّهُ صَحَّحَ حَدِيثَ خُزَيْمَةَ بْنِ ثَابِتٍ فِي الْمَسْحِ، وَأَبُو عَبْدِ اللَّهِ الْجَدَلِيُّ اسْمُهُ: عَبْدُ بْنُ عَبْدٍ، وَيُقَالُ: عَبْدُ الرَّحْمَنِ بْنُ عَبْدٍ. قَالَ أَبُو عِيسَى: هَذَا حَسَنٌ صَحِيحٌ. وَفِي الْبَابِ عَنْ عَلِيٍّ، وَأَبِي بَكْرَةَ، وَأَبِي هُرَيْرَةَ، وَصَفْوَانَ بْنِ عَسَّالٍ، وَعَوْفِ بْنِ مَالِكٍ، وَابْنِ عُمَرَ، وَجَرِيرٍ. (١)

**ترجمه** : د خزيمه بن ثابت رضي الله عنه نه روايت دي چي دنبي كريم صلي الله عليه وسلم نه په موزو دمسح كولو په باره كي تپوس اوكړي شو نو ويي فرمائيل دمسافر دپاره دري ورځي دي او دمقيم دپاره يوه ورځ ده.

امام ترمذي وائي دا حديث حسن صحيح دي، يحيي بن معين نه منقول دي چي هغوئ دمسح په سلسله كي دخذيمه بن ثابت حديث صحيح ګرځولي دي.

په دي باب كي دعلي، ابوبكره، ابو هريره، صفوان بن عسال، عوف بن مالك، ابن عمر او ابن جرير رضي الله عنهم نه هم احاديث وارد دي

**حل لغات** خفين ، خفافنا : خف موزي ته وئيلي شي، خفاف يي جمع راځي او خفين يي تثنيه ده والله اعلم

**تشريح** : ددي مسئلي متعلق قاضي ثناء الله په تفسير مظهري كي دسورت مائدي د اول ايت لاندي بهترينه تشريح كړي ده:

مسئله: په موزو باندي دمسح كولو ميعاد دمسافر دپاره دري شواروزه دي اودمقيم دپاره يوشواروز دي، دابوبكر صديق رضي الله عنه نه روايت دي چي دمسافردپاره دري ورځو پوري مسح كولو اودمقيم دپاره ديو شواروز مسح كولو اجازت وركړي شوي دي خوپه شرط دطهارت يعني چي دطهارت نه پس يي موزي اغوستلي وي «رواه الترمذي وصححه وابن خزيمة وابن حبان وابن الجارود والشافعي وابن ابي شيبة والبيهقي والدارقطني» بيهقي داهم ليكلي دي چي دامام شافعي په نزد باندي داحديث صحيح دي

مسئله. سفر وي اوكه اقامت وي چرمي موزي دڅپو وينځلو نه پس دطهارت په حالت كي اغوستلي شوي وي «نوداودس ماتيدو نه پس» په ځاي دڅپو وينځلو باندي مسح كول دجمهورو په نزد باندي كافي دي، امام مالك داقامت په حالت كي په موزو باندي دمسح كولو

قائل نه دي دسفر په حالت کي په صحيح رواياتو سره دامام مالك نه دجواز قول منقول دي.
ابوبکر بن داود او فرقه اماميه په نزد باندي په موزو باندي مسح کول په هر حالت کي جائز دي 1/21
، بعضي اهل تفسير ليکلي دي دارجلکم دلام که په فتحي سره اولوستلي شي نو ايدکم به
ورباندي عطف وي اودخپو وينځل به واجب وي، اوکچري په کسري سره اولوستلي شي نوبه
رؤسکم به عطف وي اودخپو مسح کول به واجب وي ليکن دا به په هغه صورت کي وي چي
خپي په موزو کي دننه وي ګويا کي دوه قراءتونه ددوه اياتونو په شان دي ديو قرائت حمل په
حقيقي معني او ددويم حمل په مجازي معنا وي دقراءت ترکيب اوتقدير دالفاظو ددويم قرائت
دترکيب اودتقدير دالفاظو نه جدا دي (ګويا په اول صورت کي حقيقتاً دخپو وينځل اوپه دويم
صورت کي مجازا په خپو مسح کول مراد وي، حقيقي مسح خو به په موزو مسح وي)

****************

٩٦_ حَدَّثَنَا هَنَّادٌ، حَدَّثَنَا أَبُو الأَحْوَصِ، عَنْ عَاصِمِ بْنِ أَبِي النَّجُودِ، عَنْ زِرِّ بْنِ حُبَيْشٍ، عَنْ صَفْوَانَ بْنِ عَسَّالٍ، قَالَ: كَانَ رَسُولُ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ "يَأْمُرُنَا إِذَا كُنَّا سَفَرًا أَنْ لَا نَنْزِعَ خِفَافَنَا ثَلَاثَةَ أَيَّامٍ وَلَيَالِيهِنَّ إِلَّا مِنْ جَنَابَةٍ، وَلَكِنْ مِنْ غَائِطٍ وَبَوْلٍ وَنَوْمٍ ". قَالَ أَبُو عِيسَى: هَذَا حَسَنٌ صَحِيحٌ. وَقَدْ رَوَى الحَكَمُ بْنُ عُتَيْبَةَ، وَحَمَّادٌ، عَنْ إِبْرَاهِيمَ النَّخَعِيِّ، عَنْ أَبِي عَبْدِ اللهِ الجَدَلِيِّ، عَنْ خُزَيْمَةَ بْنِ ثَابِتٍ، وَلَا يَصِحُّ. قَالَ عَلِيُّ بْنُ المَدِينِيِّ: قَالَ يَحْيَى بْنُ سَعِيدٍ: قَالَ شُعْبَةُ: لَمْ يَسْمَعْ إِبْرَاهِيمُ النَّخَعِيُّ مِنْ أَبِي عَبْدِ اللهِ الجَدَلِيِّ حَدِيثَ المَسْحِ. وقَالَ زَائِدَةُ: عَنْ مَنْصُورٍ كُنَّا فِي حُجْرَةِ إِبْرَاهِيمَ التَّيْمِيِّ وَمَعَنَا إِبْرَاهِيمُ النَّخَعِيُّ، فَحَدَّثَنَا إِبْرَاهِيمُ التَّيْمِيُّ، عَنْ عَمْرِو بْنِ مَيْمُونٍ، عَنْ أَبِي عَبْدِ اللهِ الجَدَلِيِّ، عَنْ خُزَيْمَةَ بْنِ ثَابِتٍ، عَنِ النَّبِيِّ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ فِي المَسْحِ عَلَى الخُفَّيْنِ. قَالَ مُحَمَّدُ بْنُ إِسْمَاعِيلَ: أَحْسَنُ شَيْءٍ فِي هَذَا البَابِ حَدِيثُ صَفْوَانَ بْنِ عَسَّالٍ المُرَادِيِّ. قَالَ أَبُو عِيسَى: وَهُوَ قَوْلُ أَكْثَرِ العُلَمَاءِ مِنْ أَصْحَابِ النَّبِيِّ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ وَالتَّابِعِينَ وَمَنْ بَعْدَهُمْ مِنَ الفُقَهَاءِ، مِثْلِ سُفْيَانَ الثَّوْرِيِّ، وَابْنِ المُبَارَكِ، وَالشَّافِعِيِّ، وَأَحْمَدَ، وَإِسْحَاقَ، قَالُوا: يَمْسَحُ المُقِيمُ يَوْمًا وَلَيْلَةً، وَالمُسَافِرُ ثَلَاثَةَ أَيَّامٍ وَلَيَالِيهِنَّ. قَالَ أَبُو عِيسَى: وَقَدْ رُوِيَ عَنْ بَعْضِ أَهْلِ العِلْمِ، أَنَّهُمْ لَمْ يُوَقِّتُوا فِي المَسْحِ عَلَى الخُفَّيْنِ، وَهُوَ قَوْلُ مَالِكِ بْنِ أَنَسٍ. قال أبو عيسى: وَالتَّوْقِيتُ أَصَحُّ، وَقَدْ رُوِيَ هَذَا الحَدِيثُ عَنْ صَفْوَانَ بْنِ عَسَّالٍ أَيْضًا، مِنْ غَيْرِ حَدِيثِ عَاصِمٍ. ([1])

---

[1] سنن النسائي/الطهارة ٩٨، ١١٣، ١١٣ (١٢٦)، و١١٣ (١٥٨)، و١١٣ (١٥٩)، سنن ابن ماجه/الطهارة ٦٣ (٤٧٨)، ويأتي برقم: ٣٥٣٥ (تحفة الأشراف: ٣٩٥٢)، مسند احمد (٢٣٩/٤، ٢٤٠) (حسن)

**ترجمه** : د صفوان بن عسال نه روایت دي فرمائي کله چي به مونږ په سفر کي وو نو رسول الله به مونږ ته حکم کولو چي پخپلو موزو تر دري شپو او دري ورځو پوري د ورکي او لوي اودس ماتي کولو یا د خوب په وجه د خپو نه ونه باسو مګر د جنابت په صورت کي

امام ترمذي وايي چي دا حديث حسن صحيح دی. اود امام بخاري قول دی چي په دي باب کي د صفوان بن عسال مرادي حديث د ټولو نه عمده او قوي دی.

د اکثرو صحابه کرامو او تابعينو اود هغوی نه د فقهاؤ او اهل علمو لکه سفيان ثوري، ابن مبارك ، شافعي، احمد ، او اسحاق په دي قول کړی دی، چي مقيم به په موزو يوه شپه او ورځ مسح کوي او مسافر به په موزو دري شپي او ورځي مسح کوي د بعضي علماؤ قول دی په موزو دمسح کولو دپاره دوخت تحديد نشته او داد مالك بن انس قول دی ليکن د تحديد والا قول زيات صحيح دی. امام ترمذي وايي چي توقيت والا قول زيات صحيح دی، اود عاصم د سند نه علاوه سند باندي هم دا حديث د صفوان بن عسال نه مروي.

**حل لغات** خفين ، خفافنا خف موزي ته ونيلي شي، خفاف يي جمع راخي او خفين يي تثنيه ده والله اعلم

**تشريح** : په موزو باندي دمسح کولو دجواز حديث معنا متواتر دي په کوم سره چي دقراني حکم منسوخ کيدل جائزدي دحديث دحافظانو يوي ډلي صراحت کړي دي چي په موزو باندي دمسح حکم متواتر دي ، بعضي خلقو مسح علي الخفين راويانو لره (کوم چي داولي طبقي دي) جمع کړي دي چي تعداد يي داتياؤ نه زياتيږي په دي تعداد کي عشره مبشره هم شامل دي ابن ابي شيبه وغيره ليکلي دي چي حسن بصري فرمائيلي دي ماته اويا صحابه کرامو په موزو باندي دمسح کولو حديث بيان کړي دي.

امام ابو حنيفه فرمائيلي دي زه ترهغه وخته پوري په موزو باندي دمسح کولو قائل نه يم ترڅوچي دورځي درڼا پشان دا ماته نه وي واضح شوي، دا هم دامام صاحب قول دي. څوك چي په موزو باندي مسح کول جائز نه ګنړي ماسره دده دکفر ويره ده.

امام احمد رحمة الله عليه فرمائيلي دي زما په زړه کي دموزو دمسح دجواز متعلق څه وسوسه نشته په دي سلسله کي درسول الله دصحابه کرامو نه څلويښت احاديث مروي دي چي بعضي په دي کي مرفوع دي او بعضي موقوف دي. امام احمد ددغه احاديثو نه دوه حديثونه بيان کړل يوحديث دمغيره بن شعبه دي چي فرمائيلي يي وو زه په يوسفر کي درسول الله صلي الله عليه وسلم سره موجود وم او ويي فرمائيل اي مغيره لوټه راواخله او بيا نبي عليه السلام دومره لري لاړو چي زما دنظر نه پناه شو او د حاجت پوره کولو نه پس واپس راغي ما ورته اوبه

واچولي او اودس يي اوكړو لكه څنګه چي به يي دمونځ دپاره اودس كولو اوپه دواړو موزو يي مسح اوكړه (متفق عليه).
دمغيره رضي الله عنه دا حديث تقريبا په شپيته سندونو نقل شوي دي په دوئ كي په پنځه څلويښت سندونوسره دي لره ابن منده هم بيان كړي دي، دويم حديث دجرير روايت دي، دجرير بيان دي چي ما رسول الله اوليدلو چي دمتيازو كولونه پس يي اودس اوكړو اوپه موزو يي مسح اوكړه . ابراهيم وئيلي دي چي دخلقو دا حديث ډير خوښ وو ځكه چي جرير دسورة مائدي دنزول نه پس مسلمان شوي وو (كچري دځپو وينځل ضروري وي لكه چي دسورة مائدي دايت نه معلوميږي نونبي عليه السلام به په موزو باندي مسح نه وه كړي داحديث بخاري اومسلم هم په صحيحينو كي نقل كړي دي).
دابن عبدالبر مالكي بيان دي چي هيچا په موزو باندي دمسح كولونه انكار نه دي كړي صرف دامام مالك انكار په يو روايت كي راغلي دي مګر په صحيح روايت سره ثابته ده چي په اخر كي امام مالك هم په دي باندي اقرار كړي وو.
په صحابه كراموكي هم هيڅوك دموزو دمسحي نه منكر نه وو د ابوهريره ابن عباس ، عائشه رضي الله عنهم انكارپه بعضي رواياتوكي راغلي دي ، دابن عباس او ابوهريره دانكاري قول په خلاف په صحيح سندونوسره پخپله ددوئ نه ددوئ اقرار منقول دي اوداثابته شوي ده چي دوئ دواړو هم دجمهورو صحابه كراموسره اتفاق كړي دي، پاتي شو دعائشه رضي الله عنها قول نوپه صحيح مسلم كي دشريح بن هاني په روايت سره ددي تفصيل راغلي دي شريح اووئيل ما دام المؤمنين نه په موزو باند، دمسح متعلق تپوس اوكړو نو راته يي اووئيل دابوطالب خوي ته ورشه اوتپوس ورنه اوكړه هغه درسول الله صلي الله عليه وسلم دسفر ملګري وو مونږ علي رضي الله عنه ته ورغلو اوتپوس مو ورنه اوكړو نوهغه اوفرمائيل رسول الله صلي الله عليه وسلم دمسافر دپاره دري ورځي او دري شپي او د مقيم دپاره يوه شپه او يوه ورځ ميعاد مقرر كړي دي (رواه ابو داود والترمذي وابن حبان).
دارقطني هم د مسح علي الخفين دجواز متعلق دعائشه رضي الله عنهاقول نقل كړي دي ، بعضي خلقو وئيلي دي چي علي رضي الله عنه فرمائيلي دي زه په دي كي هيڅ فرق نه كوم چي په موزو مسح اوكړم اوكه دخپل خر په شا باندي، دا قول سراسر غلط دي اوددي هيڅ اصل نشته بعضي كسانو دعائشه رضي الله عنها نه روايت بيان كړي دي چي فرمائيلي يي وو خپي پريكول ماته په موزو باندي دمسح كولونه بهتردي، دا روايت هم بالكل غلط دي دحديث حافظانو ددي په غلطوالي باندي صراحت كړي دي.
دمغيره رضي الله عنه هغه حديث كوم چي مونږ ذكر كړو په هغي كي دا هم دي چي ما عرض اوكړو اي دالله رسوله ايا موزي دي اونه باسم نو ويي فرمائيل پريګده دطهارت په حالت كي

مي په خپو کړي دي، ابن جوزي دعلي ، صفيان بن عسان، عمربن الخطاب، عمرو بن ابي اميه ضمري، ابوهريره، او خزيمه بن ثابت، احاديث په التحقيق کي نقل کړي دي اوموږ په منارالاحکام کي مرتب بيان کړي دي په دي احاديثو کي دمسح دمودي ذکر دي . امام مالک خو مقيم ته دموزو دمسحي اجازت نه ورکولو اومسافرته به يي اجازت ورکولو اودځه مودي تعين به يي نه کولو، دامام مالک دمسلک خلاف مذکوره احاديث قوي دلائل دي

**دصفوان ابن عسال رضي الله عنه حالات**

نوم صفوان دپلار نوم عسال دکوفي اوسيدونکي دي او اکثر يي نقل درِوايت داهل کوفه نه کړي دي چي يوڅو روايات ورنه منقول دي.

****************

## ٧٢_ بَابُ مَا جَاءَ فِي الْمَسْحِ عَلَى الْخُفَّيْنِ أَعْلاَهُ وَأَسْفَلِهِ

**په موزو دپاسه او دلاندي طرف نه دمسح کولو بيان**

٩٧_ حَدَّثَنَا أَبُو الْوَلِيدِ الدِّمَشْقِيُّ، حَدَّثَنَا الْوَلِيدُ بْنُ مُسْلِمٍ، أَخْبَرَنِي ثَوْرُ بْنُ يَزِيدَ، عَنْ رَجَاءِ بْنِ حَيْوَةَ، عَنْ كَاتِبِ الْمُغِيرَةِ، عَنِ الْمُغِيرَةِ بْنِ شُعْبَةَ، أَنَّ النَّبِيَّ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ " مَسَحَ أَعْلَى الْخُفِّ وَأَسْفَلَهُ ". قَالَ أَبُو عِيسَى: وَهَذَا قَوْلُ غَيْرِ وَاحِدٍ مِنْ أَصْحَابِ النَّبِيِّ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ وَالتَّابِعِينَ وَمَنْ بَعْدَهُمْ مِنَ الْفُقَهَاءِ، وَبِهِ يَقُولُ مَالِكٌ، وَالشَّافِعِيُّ، وَإِسْحَاق، وَهَذَا مَعْلُولٌ لَمْ يُسْنِدْهُ عَنْ ثَوْرِ بْنِ يَزِيدَ غَيْرُ الْوَلِيدِ بْنِ مُسْلِمٍ. قَالَ أَبُو عِيسَى: وَسَأَلْتُ أَبَا زُرْعَةَ، وَمُحَمَّدَ بْنَ إِسْمَاعِيل عَنْ هَذَا الْحَدِيثِ، فَقَالَا: لَيْسَ بِصَحِيحٍ، لِأَنَّ ابْنَ الْمُبَارَكِ رَوَى هَذَا عَنْ ثَوْرٍ، عَنْ رَجَاءِ بْنِ حَيْوَةَ، قَالَ: حُدِّثْتُ عَنْ كَاتِبِ الْمُغِيرَةِ مُرْسَلٌ، عَنِ النَّبِيِّ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ، وَلَمْ يُذْكَرْ فِيهِ الْمُغِيرَةُ. ([1])

**ترجمه** : دمغيره بن شعبه رضي الله عنه نه روايت دي چي رسول الله صلي الله عليه وسلم دموزو دپاسه او دلاندي په طرف مسح اوکره

امام ترمذي وائي داکثرو صحابه کرامو او تابعينو او ددوي نه پس داکثرو فقهاؤ همدا قول دي او امام شافعي او اسحاق بن راهويه (رحمهما الله)هم په دي باندي قول کړي دي

دا حديث معلول دي ما دابوزرعه او محمد بن اسماعيل بخاري نه په دي باره کي تپوس اوکړو نو دواړو اووئيل چي دا صحيح نه دي. خکه چي ابن مبارک دا حديث د ثور نه او هغه د رجاء بن

---

[1] سنن ابي داود/ الطهارة ٦٣ (١٦٥)، سنن ابن ماجه/ الطهارة ٨٥ (٥٥٠)، (تحفة الأشراف : ١١٥٣٤)

حيوه او هغه دمغيره بن شعبه د كاتب نه او هغه د نبي كريم صلي الله عليه وسلم نه مرسل نقل كړي دی

**حل لغات** خفين . خفافنا خف موزي ته ونيلي شي، خفاف يي جمع راخي او خفين يي تثنيه ده والله اعلم

**تشريح** : په دي مسئله كي اختلاف دي چي دمسح علي الخفين كه ظاهر طرف وي او كه په ظاهر او اسفل دواړو طرفونو وي په دي كي داهل علمو دوه مذاهب دي اول مذهب دامام ابوحنيفه او امام احمد دي ددوئ په نزد مسح صرف په ظاهر طرف كول دي او په دي مسئله كي مذهب اول والا ددي باب ددويم حديث نه چي دمغيره بن شعبه نه مروي دي استدلال كوي دمغيره بيان دي "رئيت رسول الله صلي الله عليه وسلم يمسح علي الخفين علي ظاهرهما"

دليل ثاني ددوئ دويم مستدل علي رضي الله عنه روايت دي كوم چي ابو داود نقل كړي دي او هغه دادي كه ددين پوهه په عقل موقوف وي نو مسح علي الخفين به په اسفل طرف وه ليكن ما رسول الله صلي الله عليه وسلم دخفينو په ظاهر طرف په مسح كولو ليدلي وو

دويم مذهب دامام شافعي او امام مالك دي ددوئ په نزد مسح علي الخفين په ظاهر او اسفل دواړو طرفونو باندي پكار ده دامام شافعي په نزد داسفل مسح مستحب ده او دامام مالك په نزد واجب ده

دليل دوئ په دي مسئله كي دحديث الباب نه استدلال كوي چي "ان النبي صلي الله عليه وسلم مسح اعلي الخف واسفله" ددي جواب دادي دامام ترمذي په نزد دا حديث معلول دي او معلول هغه حديث وي په كوم كي چي كوم خفيه علت قادحه موجود وي امام ترمذي ددي حديث دمعلول كيدو وجه دا بيان كړي ده چي همدا روايت عبدالله بن مبارك هم دثور بن يزيد نه نقل كړي دي او ددي سند په كاتب المغيره باندي ختميږي او ددينه پس په دي كي دمغيره بن شعبه څه ذكر نشته دوليد بن مسلم وهم پيدا شوي دي خكه چي موصولا بيان كړي دي

جواب نمبر (۲) په اصل كي رسول الله صلي الله عليه وسلم مسح صرف دخفين په ظاهري طرف باندي كړي وه ليكن دموزو دسخت والي په وجه يي لاندي طرف هم نيولي وو دكوم نه چي راوي په مسح علي الاسفل باندي تعبير كړي دي

**دراوي حالات** : امام نووي وايي چي د كاتب المغيرة نوم وراد دی. (رياض الصالحين)

****************

## ۷۳ـ بَابُ مَا جَاءَ فِي الْمَسْحِ عَلَى الْخُفَّيْنِ ظَاهِرِهِمَا

٩٨ـ حَدَّثَنَا عَلِيُّ بْنُ حُجْرٍ، قَالَ: حَدَّثَنَا عَبْدُ الرَّحْمَنِ بْنُ أَبِي الزِّنَادِ، عَنْ أَبِيهِ، عَنْ عُرْوَةَ بْنِ الزُّبَيْرِ، عَنِ الْمُغِيرَةِ بْنِ شُعْبَةَ، قَالَ: رَأَيْتُ النَّبِيَّ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ "يَمْسَحُ عَلَى الْخُفَّيْنِ عَلَى ظَاهِرِهِمَا". قَالَ أَبُو عِيسَى: حَدِيثُ الْمُغِيرَةِ حَسَنٌ، وَهُوَ حَدِيثُ عَبْدِ الرَّحْمَنِ بْنِ أَبِي الزِّنَادِ، عَنْ أَبِيهِ، عَنْ عُرْوَةَ، عَنِ الْمُغِيرَةِ، وَلَا نَعْلَمُ أَحَدًا يَذْكُرُ، عَنْ عُرْوَةَ، عَنِ الْمُغِيرَةِ عَلَى ظَاهِرِهِمَا غَيْرَهُ، وَهُوَ قَوْلُ غَيْرِ وَاحِدٍ مِنْ أَهْلِ الْعِلْمِ، وَبِهِ يَقُولُ سُفْيَانُ الثَّوْرِيُّ وَأَحْمَدُ، قَالَ مُحَمَّدٌ: وَكَانَ مَالِكُ بْنُ أَنَسٍ يُشِيرُ بِعَبْدِ الرَّحْمَنِ بْنِ أَبِي الزِّنَادِ.[1]

**ترجمه** :امام ترمذي وائي چي مغيره حديث حسن صحيح دي، دعبدالرحمن بن ابي الزناد نه علاوه ماته بل څوك نه دي معلوم چي دا يي په سند دعروه عن مغيره په دواړو موزو او پورتنۍ حصه دمسح كولو ذكر كړي وي او همدا داهل علمو قول دي او دسفيان ثوري او احمد هم دا قول دي.

**تشريح** : دا حديث دعروه بن زبير دي، صرف دده په روايت كي د علي ظاهرهما اضافه ده باقي ۵۸ راويانو دا حديث دمغيره نه نقل كړي دي او هغوئ ددي لفظ اضافه نه ده كړي صرف مسح علي الخفين كي ذكر كړي دي او دا حديث صحيح دي مګر امام ترمذي ورته صرف حسن وئيلي دي ځكه چي په دي كي يو راوي عبدالرحمن بن ابي الزناد دي او امام مالك ورباندي جرح كړي ده، امام ترمذي ددي جرح لحاظ كولو په وجه صرف حسن حكم لګولي دي او حال دادي درسته خبره داده چي عبدالرحمن داعلي درجي ثقه راوي دي او دامام مالك دجرح كولو يوه خاص وجه ده. عبدالرحمن به كتاب السبيعه دخپل پلار نه نقل كولو نو په دي وجه امام مالك اووئيل "اين كنا عن هذا" يعني مونږ ته دا كتاب ولي نه دي رارسيدلي عبدالرحمن ته دكوم ځاي نه راغي (التهذيب) بخپله امام ترمذي ورته په ابواب الباس باب ماجاء في الجمة كي ثقه وئيلي دي بلكه په مصري نسخو كي خو دا هم مذكور دي "كان مالك بن انس يوثقه ويامر بالكتابة عنه" يعني امام مالك به دده توسيق كولو او شاګردانو ته به يي دده داحاديثو ليكلو حكم كولو او په تمام صحاح سته كي دده روايات موجود دي البته امام بخاري تعليقا ذكر كړي دي او دثقه روايت معتبر وي پس دا روايت قابل داستدلال دي.

**دراوي حالات** : د مغيره رضي الله عنه حالات ماقبل ابوابو كي تير شوي دي.

***************

[1] سنن ابي داود/ الطهارة ٦٣ (١٦١) . (وراجع أيضا ما عنده برقم: ١٤٩) . (تحفة الأشراف: ١١٥١٢) (حسن صحيح)

Scanned with

## ٧٤_ بَابُ مَا جَاءَ فِي الْمَسْحِ عَلَى الْجَوْرَبَيْنِ وَالنَّعْلَيْنِ

### په دوارو موزو او پڼرو باندي دمسح کولو بيان

٩٩_ حَدَّثَنَا هَنَّادٌ، وَمَحْمُودُ بْنُ غَيْلَانَ، قَالَا: حَدَّثَنَا وَكِيعٌ، عَنْ سُفْيَانَ، عَنْ أَبِي قَيْسٍ، عَنْ هُزَيْلِ بْنِ شُرَحْبِيلَ، عَنِ الْمُغِيرَةِ بْنِ شُعْبَةَ، قَالَ: "تَوَضَّأَ النَّبِيُّ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ وَمَسَحَ عَلَى الْجَوْرَبَيْنِ وَالنَّعْلَيْنِ". قَالَ أَبُو عِيسَى: هَذَا حَسَنٌ صَحِيحٌ، وَهُوَ قَوْلُ غَيْرِ وَاحِدٍ مِنْ أَهْلِ الْعِلْمِ، وَبِهِ يَقُولُ سُفْيَانُ الثَّوْرِيُّ، وَابْنُ الْمُبَارَكِ، وَالشَّافِعِيُّ، وَأَحْمَدُ، وَإِسْحَاق، قَالُوا: يَمْسَحُ عَلَى الْجَوْرَبَيْنِ وَإِنْ لَمْ تَكُنْ نَعْلَيْنِ إِذَا كَانَا ثَخِينَيْنِ، قَالَ: وَفِي الْبَاب عَنْ أَبِي مُوسَى. قَالَ أَبُو عِيسَى: سَمِعْت صَالِحَ بْنَ مُحَمَّدٍ التِّرْمِذِيَّ قَال: سَمِعْتُ أَبَا مُقَاتِلٍ السَّمَرْقَنْدِيَّ، يَقُولُ: دَخَلْتُ عَلَى أَبِي حَنِيفَةَ فِي مَرَضِهِ الَّذِي مَاتَ فِيهِ، فَدَعَا بِمَاءٍ فَتَوَضَّأَ وَعَلَيْهِ جَوْرَبَانِ، فَمَسَحَ عَلَيْهِمَا، ثُمَّ قَالَ: فَعَلْتُ الْيَوْمَ شَيْئًا لَمْ أَكُنْ أَفْعَلُهُ، مَسَحْتُ عَلَى الْجَوْرَبَيْنِ وَهُمَا غَيْرُ مُنَعَّلَيْنِ. (١)

**ترجمه**: دمغيره بن شعبه رضي الله عنه بيان دي فرمائي چي ما نبي كريم صلي الله عليه وسلم اودس وكړو اوپه جورابو او پڼرو باندي يي مسح وكړله

امام ترمذي وائي دا حديث حسن صحيح دي او ډيرو اهل علمو په دي باندي قول كړي دي او د سفيان ثوري، ابن مبارك، شافعي، احمد او اسحاق بن راهويه (رحمهم الله)هم دا قول دي چي په جرابو او باندي مسح كيږي اگر كه پيزار نه وي. مگر چي جرابي پيړي وي امام ترمذي وائي په دي باب كي دابوموسي رضي الله عنه نه هم روايت وارد دي

ابو مقاتل سمرقندي وائي زه امام ابو حنيفه ته دهغه په بيمارۍ كي ورغلم په كومه كي چي هغه وفات شوي وو اوبه يي راوغوښتلي او اودس يي اوكړو او جرابي يي اغوستلي وي او په جرابو يي يي مسح اوكړه او بيا يي اووئيل ما نن داسي كار اوكړو چي مخكي مي نه كولو ما په جرابو مسح اوكړله او حال دا دي چي پيزار مي په خپو نه وو

**تشريح**: جوربين په دوه قسمه دي (١) ثخينين (٢) رقيقين . ثخانت د دري څيزونو مجموعي ته وائي (١) چي اوبه دننه خطرناك سطح ته نه رسيږي (٢) چي دپنډو پوري بغير دتړلو نه انختلي وي (٣) چي مسلسل يو فرسخ مزل كول په دي كي ممكن وي او كه په اوصاف ثلاثه كي كوم شئ كم وي نو دابه رسيخين وي (الفقه علي المذاهب الاربعه).

---

[1] سنن ابي داود/ الطهارة ٦١ (١٥٩) . سنن النسائي/الطهارة ٩٦ (١٢٣) . و١/٩٤ (١٣٥/م) . سنن ابن ماجه/الطهارة ٨٨ (٥٥٩) . (تحفة الأشراف: ١١٥٣٣) . مسند احمد (٣/٢٥٢)

بیا دچمړي په لحاظ جرابي په دوه قسمه دي (۱) مجلد (۲) منعل.
مجلدين هغه جرابي وي په کومو پوري چي دومره چمړه لګيدلي وي څومره چي خپه په اودس کي وينخل فرض وي
او منعلين هغه جرابي وي چي چمړه پکي ددي مقدار نه کمه لګيدلي وي په دي شان سره جرابي په شپږ قسمه شوي (۱) ثخينين مجلدين دا هغه جرابي دي په کومو کي چي پورتني مذکوره شرطونه موندلي کيږي او چمړه هم ورباندي لګيدلي وي په دومره مقدار کي څومره مقدار چي دخپي په اودس کي وينځل فرض وي پس دا جرابي دموزو په حکم کي داخل دي او په دي باندي بالاتفاق مسح جائز ده.
ثخينين منعلين: دا هغه جرابي دي په کومو کي چي پورتني شرائط موندلي کيږي او چمړه هم ورباندي لګيدلي وي مګر دا چمړه صرف په تلو باندي يا صرف په پوندو ياصرف دګوتو په سرونو يا ددينه کمه وي مګر چي دا چمړه دګيتو نه پورته نه وي دا هم دموزو په حکم کي داخل دي او مسح ورباندي جائز ده.
ثخينين ساذجتين دا هغه پيړي جرابي دي چي پورتني مذکوره شرائط پکي موجود وي ليکن چمړه ورباندي نه وي لګيدلي په دي کي اختلاف دي چي ايا دا هم دموزو په حکم کي داخل دي او کنه دي صاحبين دا هم دموزو په حکم کي داخل ګنړي مګر امام صاحب اول دا دموزو په حکم کي داخل نه ګنړلي مګر بيا يي دخپل قول نه رجوع اوکړه نو په دي وجه په دي باندي هم مسح کول جائز دي او همدا مفتي به قول دي.
رقيقين مجلدين داهغه جرابي دي په کومو کي چي په مذکوره شرائطو کي يو شرط کم وي ليکن په دي باندي دپنډو پوري چمړه لګيدلي وي نو دچمړي په وجه دا هم دموزو په حکم کي داخل شو او مسح ورباندي جائز ده
رقيقين منعلين دا هغه جرابي دي په کومو کي چي يو شرط دشرائط مذکوره نه کم وي او صرف په لاندي حصه کي يي چمړه لګيدلي وي په دي کي هم راجح قول دادي چي دا دموزو په حکم کي داخل نه دي او مسح به ورباندي نشي کيدي
رقيقين ساذجتين: دا هغه جرابي دي چي په مذکوره شرائطو کي يو شرط په دي کي کم وي او چمړه هم ورباندي لګيدلي نه وي په داسي جرابو باندي په اجماع دامت مسح کول جائز نه دي (البحرالرائق ۱۹۲/۱).
مګر داهل ظواهر اوغير مقلدينو په نزد په دي باندي هم مسح جائز ده او دليل په دي باندي حديث د مغيره بن شعبه پيش کوي چي "مسح علي الجوربين".
ددي اول جواب دادي ددي حديث نه صرف په جرابو مسح کول نه ثابتيږي بلکه په اصل کي مسح په پيزار باندي ثابت ده خکه چي پيزار دجرابودپاسه دي او جرابي لاندي وي نو اصل

مسح په پيزار باندي اوشوه او ددي هيڅوك قائل نه دي لكه چي علامه محمد يوسف بنوري ليكلي دي "لم يذهب احد من الائمة الي جواز المسح علي النعلين" معارف السنن. يعني په پيزار باندي دمسح په جواز هيڅا قول نه دي كړي، فما هو جوابكم فهو جوابنا.

دويم جواب: امام ابو داود وائي عبدالرحمن بن معدي به دا حديث نه بيانولو خكه چي دمغيره بن شعبه نه كوم روايت مشهور دي هغه په موزو دمسح كولو دي (ابوداود) امام بيهقي دا حديث منكر ګڼرلي دي، او سفيان ثوري عبدالرحمن بن معدي، احمد بن حنبل، يحيي بن معين، علي بن مديني او مسلم بن حجاج ددي روايت تضعيف كړي دي امام نووي وائي چي حفاظ حديث ددي حديث په ضعيف كيدو اتفاق كړي دي.

دويم جواب: حديث دمغيره بن شعبه دنكارت او شزور په مرتبه كي دي دمغيره دروايت په شپيته ناقلينو كي يو كم شپيته كسان د جوربين ذكر نه دي كړي امام بخاري هم دا حديث نقل كړي دي ليكن دموزو ذكر يي كړي دي او دجرابو ذكر يي بالكل نه دي كړي امام مسلم هم په حديث دمغيره كي صرف دموزو ذكركړي دي او دجرابو يي نه دي كړي بلكه امام مسلم دا فيصله كړي ده.

"لانترك ظاهر القران بمثل ابي قيس وهذيل وهذه قاعدة في اصول الدين في غاية من الاهمية والثبت ابوحنيفة بها اكثر من تشبث غيرها بها وذلك كما قال عمر لاندع كتاب الله وسنة نبي صلي الله عليه وسلم بقول امرئة لاندري احفظت ام نسيت" (معارف السنن. سنن كبري للبيهقي).

سوال: امام ترمذي ورته حسن هم وائي او صحيح هم دا ولي؟

جواب: امام نووي وائي دامت داكابرينو په مقابله كي دامام ترمذي تصحيح او تحسين قابل دالتفات نه دي امام نووي دا هم وائي اتفق الحفاظ علي تضعيفه (زيلعي).

عبدالرحمن مبارك فوري غير مقلد وائي "والحاصل انه ليس في باب مسح علي الجوربين حديث مرفوع صحيح خال عن الكلام" (تحفة الاحوذي).

دا رنګي فتاوي سناويه ليكلي دي په جرابو باندي مسح كول جائز نه دي خكه چي ددي په جواز صحيح دليل نشته، او د شراف الدين دهلي غير مقلد فتوي په جرابو دمسح كولو نه دقران نه ثابت دي او نه دمرفوع حديث نه او نه په اجماع او نه په قياس ثابت دي او نه دصحابه كرامو په فعل او نه دهغه په دلائلو او غسل درجلين په قراني نص ثابت دي لهذا دچمړي والا موزو نه علاوه جرابو باندي مسح كول ثابت نه دي (فتاوي ثنائيه).

عبدالجبار غزنوي غير مقلد ليکلي دي په جرابو باندي مسح کول دصحيح حديث نه ثابت نه دي او دمغيرد کوم روايت چي ترمذي نقل کړي دي ''مسح رسول الله صلي الله عليه وسلم علي الجوربين والنعلين نو دا حديث ضعيف دي.

خلاصه دکلام داده: بيشکه احاديث صحيحه متواتره کوم چي اهل علمو نقل کړي دي او دچا په تحقيق چي اعتماد دي په هغي کي په جرابو او پيزار باندي دمسح ذکر نشته او بيشکه په دي کي صرف دموزو دمسح ذکر کول دي پس په جرابو او پنړو باندي دمسح کولو روايات شاذ دي لکه چي علامه ابن حجر ليکلي دي "والمقصود من ذكر ذلك ان الروايات الصحيحة المتواتر التي رواه الحفاظ الاثبات الذين عليه المعلول والاعتماد في نقد الرجال ان الاحاديث الصحيح الواردة من رواية المغيرة بن شعبة رضي الله عنه في المسح علي الخفين الا علي الجوربين والنعلين وان الرواية الواردة في المسح علي الجوربين والنعلين مسح علي النعلين".

په ائمه اربعه کي هيڅوک ددي قائل نه دي چي په نعلين مسح شوي ده لهذا په دي کي به تاويل کولي شي.

جواب نمبر (۱) نعلين صفت د جوربين دي او جوربين موصوف دي او دموصوف او صفت په مينځ کي کله کله واو راځي

جواب نمبر (۲) مسح خو به اصلا شوي وي په خفين باندي مګر تبعا په نعلين باندي شوي ده

جواب نمبر (۳) دا حديث دوضوء علي الوضوء په صورت محمول دي.

جواب نمبر (۴) مسح علي النعلين يوه زمانه کي شوي وه او بيا منسوخ شوه

جواب نمبر (۵) يوکم شپيته ناقلين دمغيره دحديث مسح علي الخفين ذکر کوي ليکن دجوربين او نعلين ذکر نه کوي

***************

## ٧٥_ بَابُ مَا جَاءَ فِي الْمَسْحِ عَلَى الْعِمَامَةِ

### په پټکي د مسح کولو بيان

١٠٠_ حَدَّثَنَا مُحَمَّدُ بْنُ بَشَّارٍ، حَدَّثَنَا يَحْيَى بْنُ سَعِيدٍ الْقَطَّانُ، عَنْ سُلَيْمَانَ التَّيْمِيِّ، عَنْ بَكْرِ بْنِ عَبْدِ اللَّهِ الْمُزَنِيِّ، عَنِ الْحَسَنِ، عَنِ ابْنِ الْمُغِيرَةِ بْنِ شُعْبَةَ، عَنْ أَبِيهِ، قَالَ: "تَوَضَّأَ النَّبِيُّ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ وَمَسَحَ عَلَى الْخُفَّيْنِ وَالْعِمَامَةِ". قَالَ بَكْرٌ: وَقَدْ سَمِعْتُهُ مِنَ ابْنِ الْمُغِيرَةِ، قَالَ: وَذَكَرَ مُحَمَّدُ بْنُ بَشَّارٍ فِي هَذَا الْحَدِيثِ فِي مَوْضِعٍ آخَرَ: أَنَّهُ مَسَحَ عَلَى نَاصِيَتِهِ وَعِمَامَتِهِ، وَقَدْ رُوِيَ هَذَا الْحَدِيثُ مِنْ غَيْرِ وَجْهٍ، عَنِ الْمُغِيرَةِ بْنِ شُعْبَةَ، ذَكَرَ بَعْضُهُمُ الْمَسْحَ عَلَى النَّاصِيَةِ وَالْعِمَامَةِ، وَلَمْ

يَذْكُرْ بَعْضُهُمُ النَّاصِيَةَ، وسَمِعْت أَحْمَدَ بْنَ الْحَسَنِ، يَقُولُ: سَمِعْتُ أَحْمَدَ بْنَ حَنْبَلٍ، يَقُولُ: مَارَأَيْتُ بِعَيْنِي مِثْلَ يَحْيَى بْنِ سَعِيدٍ الْقَطَّانِ. قَالَ: وَفِي الْبَابِ عَنْ عَمْرِو بْنِ أُمَيَّةَ، وَسَلْمَانَ، وَثَوْبَانَ، وَأَبِي أُمَامَةَ. قَالَ أَبُو عِيسَى: حَدِيثُ الْمُغِيرَةِ بْنِ شُعْبَةَ حَسَنٌ صَحِيحٌ، وَهُوَ قَوْلُ غَيْرِ وَاحِدٍ مِنْ أَهْلِ الْعِلْمِ مِنْ أَصْحَابِ النَّبِيِّ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ، مِنْهُمْ أَبُو بَكْرٍ، وَعُمَرُ، وَأَنَسٌ، وَبِهِ يَقُولُ الْأَوْزَاعِيُّ، وَأَحْمَدُ، وَإِسْحَاق، قَالُوا: يَمْسَحُ عَلَى الْعِمَامَةِ، وقَالَ غَيْرُ وَاحِدٍ مِنْ أَهْلِ الْعِلْمِ مِنْ أَصْحَابِ النَّبِيِّ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ وَالتَّابِعِينَ: "لَا يَمْسَحُ عَلَى الْعِمَامَةِ إِلَّا بِرَأْسِهِ مَعَ الْعِمَامَةِ". وَهُوَ قَوْلُ سُفْيَانَ الثَّوْرِيِّ، وَمَالِكِ بْنِ أَنَسٍ، وَابْنِ الْمُبَارَكِ، وَالشَّافِعِيِّ. قَالَ أَبُو عِيسَى: وسَمِعْت الْجَارُودَ بْنَ مُعَاذٍ، يَقُولُ: سَمِعْتُ وَكِيعَ بْنَ الْجَرَّاحِ، يَقُولُ: إِنْ مَسَحَ عَلَى الْعِمَامَةِ يُجْزِئُهُ لِلْأَثَرِ.[1]

**ترجمه** : دمغيره بن شعبه رضي الله عنه نه روايت دي چي يو خل نبي كريم صلي الله عليه وسلم اودس اوكړو او په موزو او په پټكي يي مسح اوكړه امام ترمذي وائي د بكر قول دى : ابن مغيره نه مي اوريدلي دي وئيل يي دمحمد بن بشار په دي حديث كي يوه بله خبره ذكر كړله چي په تندي او پټكي باندي يي مسح وكړله ، او دا حديث ددي سند نه علاوه په نورو سندونو د مغيره بن شعبه نه مروي دي ، بعضي راويانو په دي كي مسح د تندي او پټكي ذكر كړي ده او بعضي د تندي مسح نه ده ذكر كړي، احمد بن حسن بن وئيل د احمد بن حنبل نه مي اوريدلي دي وئيل يي ما پخپلو د يحي بن سعيد القطان پشان عالم نه دي ليدلي. امام ترمذي وائي په دي باب كي د عمرو بن اميه اود سلمان او ثوبان او ابو امامه نه هم احاديث وارد دي او حديث دمغيره بن شعبه حسن صحيح دى، او دا په صحابه كرامو كي دمتعددو اهل علمو قول دي چي ابو بكر او عمر او انس رضي الله عنهم هم په دوي كي شامل دي، او امام اوزاعي او احمد او اسحاق هم په دي باندي قول كړى دى، دوي وايي مسح علي العمامه جائز ده، مگر په صحابه كرامو او تابعينو كي بعضي اهل علم وايي مسح علي العمامه جائز نه ده مگر په سر باندي سره د عمامي نه. او داد سفيان ثوري او مالك بن انس ابن مبارك او امام شافعي قول دى، امام ترمذي وائي د جارود بن معاذه نه مي اوريدلي دي او هغه دوكيع بن الجراح نه اوريدلي دي وئيل يي چي كه څوك په عمامه مسح وكړي نو دده دا عمل دهغه اثر په وجه جائز دي كوم چي په دي باب كي وارد دى.

**حل لغات** : العمامة السوداء يعني تور پټك.

**تشريح** : **مسئله دمسح علي العمامه**

---

[1] سنن ابي داود/الطهارة ٥٩ (١٥٠)، (تحفة الأشراف: ١١٤٩٢)، مسند احمد (٢٤٣/٤، ٢٤٨، ٢٥٠، ٢٥٤)

په مسح العمامه باندي اكتفاء كول جائز دي او كنه په دي باره كي دجمهورو قول دي چي په مسح العمامه اكتفاء كول جائز نه دي او امام احمد په نزد دعمامه په مسح علي الاكتفاء جائز ده خو شرط دادي چي عمامه به په تمام سر حاوي وي يعني ټول سر به يي پټ كړي وي.
دويم شرط دادي چي په طهارت كامله به عمامه تړلي شوي وي
دريم شرط دادي عمامه به متحنكر وي يعني دخني دلاندي طرف نه به په سرباندي تړلي شوي وي او ظاهره ده چي داسي عمامه سپړودل مشكل وي.

دجمهورو دليل: دا ايت قراني دي "وامسحوا برؤسكم" (المائده ٥).
په دي ايت كي دسر دمسح حكم دي نه چي دعمامه.
دويم دليل: په احاديث متواتر المعني كي دسر دمسح ذكر دي او د عمامه ذكر نشته
دحنبليانو دليل دترمذي دوه احاديث دي.

(١) روايت دمغيره بن شعبه "توضأ النبي صلي الله عليه وسلم ومسح علي الخفين والعمامة" يعني مغيره بن شعبه وائي چي رسول الله اودس اوكړو او په موزو او عمامه يي مسح اوكړه.
(٢) روايت دبلال دي "عن كعب بن عجرة عن بلال ان النبي صلي الله عليه وسلم مسح علي الخفين والخمار".

دلته د خمار نه مراد لوپټه نه ده بلكه عمامه ده اوددينه علاوه مزيد دلائلو ته امام ترمذي په وفي الباب جمله كي ځلورو روايتونو ته اشاره كړي په كومو كي چي دمسح العمامه ذكر دي او په مينځ كي دجابررضي الله عنه فتوي ده كوم چي دجمهورو مستدل دي.
دا احاديث په دلالت دي محكم نه دي ځكه چي په دوئ كي اختصار شوي دي په بعضي روايتونو كي دمسح علي الناصية ذكر هم راغلي دي لهذا فرض خو اداء شول په ناصيه باندي دمسح كولو په وجه او ددي تكميل اوشو دمسح علي العمامه په وجه چنانچي امام ترمذي دمغيره دحديث ذكر كولو نه پس فرمائي چي ددي حديث په بعضي سندونو كي دمسح علي الناصية ذكر دي او دا محل دمضاع نه دي او دبلال دحديث په بعضي سندونو كي دمسح علي الناصية ذكر دي ليكن امام ترمذي ورته اشاره نه ده كړي، ډاكټر حبيب الله مختار هغه احاديث جمع كړي دي دكومو حواله چي امام ترمذي په وفي الباب عنوان كي وركړي وه او په دوئ كي يي دبلال په حديث بحث كړي دي او په دي كي يي مسح علي الناصية هم ذكر كړي ده.
جواب ثاني: احاديث دمسح علي العمامه مئول دي مطلب دادي چي رسول الله په سر مسح اوكړه په داسي حال كي چي پټكي يي تړلي وو يعني دپټكي دپرانيستلو نه يي بغير مسح اوكړه.

جواب ثالث: احاديث مسح علي العمامه "كلها معلولة" حافظ ابن عبدالبر وائي چي احاديث دمسح علي العمامه معدول دي.
جواب رابع: احاديث دمسح علي العمامه اخبار احاد دي او دكتاب الله سره معارض دي دارنگي داحاديث متواتر المعني سره هم معارض دي او کوم حديث چي دكتاب الله او حديث متواتر المعني سره معارض وي هغه مرجوح وي.
تنبيه: "قال ابو عيسي حديث مغيرة بن شعبة منه ابو بكر وعمر رضي الله عنهم" دا قول درست نه دي خکه چي صرف په مسح علي العمامه اکتفاء کول په صحيح سند ثابت نه دي او که دمسح علي الناصيه سره مسح علي العمامه وي نو بيا خو دا دجمهورو دقول خلاف نه دي دلته دحدثنا قتيبة ابن سعيد روايت په مينځ کي دجابر رضي الله عنه فتوي ده او دادجمهورو مستدل دي لهذا حديث دبلال مقدم کول پکار دي او دا حديث دمؤخر کولو په حال کي په دې باندي مستقل باب ترل پکار دي.

***************

١٠١_ حَدَّثَنَا هَنَّادٌ، حَدَّثَنَا عَلِيُّ بْنُ مُسْهِرٍ، عَنِ الْأَعْمَشِ، عَنِ الْحَكَمِ، عَنْ عَبْدِ الرَّحْمَنِ بْنِ أَبِي لَيْلَى، عَنْ كَعْبِ بْنِ عُجْرَةَ، عَنْ بِلَالٍ، أَنَّ النَّبِيَّ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ "مَسَحَ عَلَى الْخُفَّيْنِ وَالْخِمَارِ".[1]

**ترجمه**: د بلال رضي الله عنه نه روايت دی چي رسول الله صلي الله عليه وسلم په موزو او خمار(پټکي) باندي مسح وکړله.

### دابوعبدالله بلال بن رباح رضي الله عنه حالات[1]:

نوم بلال کنيه ابو عبدالله دپلارنوم رباح دمور نوم يي حمامه وو دی يو حبشي غلام وو ليکن په مکه کي پيدا شوی وو بني يمح دده مالکان وو بلال دظاهري صورت په لحاظ سره تورزنګی حبشي وو چي داسلام په ابتداء کي مسلمان شوی وو ډير سخت ازمائش وربادي راغلی وو چي په ګرمو کانړو او بلو سکروټو څملولی شوی وو او ددي باوجود په اسلام باندي کلك وو ابوبکر رضي الله عنه واخستو او ازاد يي کړو کله چي دمکي نه دهجرت کولو حکم راغی نو هجرت يي اوکړو او مديني ته اورسيدو او داسلام ړومبنی مؤذن مقرر شو خکه چي دده اواز انتهائي تيز او دلکش وو دده په غير موجودګئ کي به ابومحذوره يا ابن ام مکتوم اذان کولو
په تمامو غزواتو کي شريك شوی وو او په فتح مکه کي هم رسول الله صلي الله عليه وسلم

---

[1] صحيح مسلم/الطهارة ٢٣ (٢٧٥) . سنن النسائي/الطهارة ٨٦ (١٠٣، ١٠٦) . سنن ابن ماجه/الطهارة ٨٩ (٥٦١) . (تحفة الأشراف : ٢٠٤٠) مسند احمد (٦/١٢، ١٣، ١٤، ١٥)

ملګرى وو دوفات نبوي نه پس شام ته منتقل شو او دبهترینې درجې اخلاقو مالك وو عمر رضي الله عنه به فرمائیل ابوبكر سیدنا واعتق سیدنا یعني ابوبكر چې زمونږ سردار دى هغه زمونږ سردار بلال لره ازاد كړى دى دهجرت په شلم كال چې عمر یې تقریبا شپیته كاله وو په دمشق كې وفات شو او دباب صغیر خواته دفن كړى شو ۴۴احادیث ورنه منقول دي چې یو په دي كې متفق علیه دى دوه په مسلم كې دي او یو په بخاري كې داسد الغابه او طبقات ابن سعد كې مزید تفصیل ذكر شوى دى.

*****************

١٠٢ـ حَدَّثَنَا قُتَيْبَةُ بْنُ سَعِيدٍ، حَدَّثَنَا بِشْرُ بْنُ الْمُفَضَّلِ، عَنْ عَبْدِ الرَّحْمَنِ بْنِ إِسْحَاقَ هُوَ الْقُرَشِيُّ، عَنْ أَبِي عُبَيْدَةَ بْنِ مُحَمَّدِ بْنِ عَمَّارِ بْنِ يَاسِرٍ، قَالَ: سَأَلْتُ جَابِرَ بْنَ عَبْدِ اللَّهِ، عَنِ الْمَسْحِ عَلَى الْخُفَّيْنِ، فَقَالَ: " السُّنَّةُ يَا ابْنَ أَخِي ". قَالَ: وَسَأَلْتُهُ عَنِ الْمَسْحِ عَلَى الْعِمَامَةِ، فَقَالَ: " أَمِسَّ الشَّعَرَ الْمَاءَ ".[1]

**ترجمه** : ابو عبیده بن محمد بن عمار بن یاسر فرمائي چې ما د جابر رضي الله عنه نه په موزو باندې د مسح باره كې تپوس وكړو ، هغه راته اوفرمائیل اي وراره دا سنت عمل دى، فرمائي چې ما هم دمسح علي العمامه باره كې سوال كړى وو نو راته یې فرمائیلي وو چې ویښته پریږده.

**حل لغات** : السُنة : په ضمې د نون معنې درسول الله صلي الله علیه وسلم مباركې طریقې او عادات مبارك، او السَنَة په فتحې د نون او سین معنې كال.

**تشریح** : د باب په اولني روایت كې مفصل تشریح تیره شوې ده، معاد كولو ته څه ضرورت نشته.

*****************

## ٧٦ـ بَابُ مَا جَاءَ فِي الْغُسْلِ مِنَ الْجَنَابَةِ

### دجنابت نه د غسل كولو بیان

١٠٣ـ حَدَّثَنَا هَنَّادٌ، حَدَّثَنَا وَكِيعٌ، عَنِ الْأَعْمَشِ، عَنْ سَالِمِ بْنِ أَبِي الْجَعْدِ، عَنْ كُرَيْبٍ، عَنِ ابْنِ عَبَّاسٍ، عَنْ خَالَتِهِ مَيْمُونَةَ، قَالَتْ: " وَضَعْتُ لِلنَّبِيِّ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ غُسْلًا، فَاغْتَسَلَ مِنَ الْجَنَابَةِ، فَأَكْفَأَ الْإِنَاءَ بِشِمَالِهِ عَلَى يَمِينِهِ، فَغَسَلَ كَفَّيْهِ ثُمَّ أَدْخَلَ يَدَهُ فِي الْإِنَاءِ فَأَفَاضَ عَلَى فَرْجِهِ،

---

[1] تفرد به المؤلف (تحفة الأشراف : ٢١٦٥) (صحيح الإسناد)

ثُمَّ دَلَكَ بِيَدِهِ الْحَائِطَ أَوِ الأَرْضَ، ثُمَّ مَضْمَضَ وَاسْتَنْشَقَ وَغَسَلَ وَجْهَهُ وَذِرَاعَيْهِ، ثُمَّ أَفَاضَ عَلَى رَأْسِهِ ثَلاثًا، ثُمَّ أَفَاضَ عَلَى سَائِرِ جَسَدِهِ، ثُمَّ تَنَحَّى فَغَسَلَ رِجْلَيْهِ ". قَالَ أَبُو عِيسَى: هَذَا حَسَنٌ صَحِيحٌ، وَفِي الْبَاب عَنْ أُمِّ سَلَمَةَ، وَجَابِرٍ، وَأَبِي سَعِيدٍ، وَجُبَيْرِ بْنِ مُطْعِمٍ، وَأَبِي هُرَيْرَةَ. [1]

**ترجمه** : دام المؤمنين ميمونه رضي الله عنها بيان دي فرماني چي ما درسول الله صلي الله عليه وسلم دپاره دغسل اوبه په لوښي كي تياري كړي نو دجنابت نه يي غسل اوكړو. لوښي يي خپل كس لاس ته راكوږ كړو او ښي لاس يي اووينځلو خپل لاسونه يي اووينځل او بيا يي لاس په لوښي كي داخل كړو بيا يي خپله شرمګاه اووينځله او بيا يي لاس د ديوال او كه په زمكه مسح كړو. بيا يي غړغړه اوكړله او پوزي ته يي اوبه واچولي او خپل مخ يي اووينځلو او خپل دواړه لاسونه يي اووينځل بيا يي دري پيري په سر اوبه اوبهيولي او بيا يي په ټول بدن اوبه اوبهيولي بيا ددغه ځاي نه لږ وړاندي شو او خپلي ښپي يي اووينځلي.

امام ترمذي وائي دا حديث حسن صحيح دي او په دي باب كي دام سلمه، دجابر، ابو سعيد، زبير بن مطعم او ابوهريره رضي الله عنهم نه هم احاديث وارد دي

**حل لغات** : يدخل: ادخل يدخل ادخالا معني داخلول. الفرج: په شيانو كي خلل پيداكول، سرحد، كشادګي، انساني شرمګاه ته هم فرج وئيلي شي. دباب نصر نه راځي

يغسلها: اغتسل يغتسل اغتسالا معني غسل كول ، غسل يغسل غسلا وينځل مغتسل معني غسل خانه ، غسيل وينځلي شوي ، غاسل معني دوبي

**تشريح** : د غسل سنت طريقه داده چي دټولو نه ړومبى خپل دواړه لاسونه تر مروندونو پوري اووينځي، ځكه چي دا دواړه د پاكولو آله ده، اوخپله شرمګاه اووينځي، ځكه چي هغه محل د نجاست دي.نواحتمال شته چي نجاست وربوى انختلى وى.اوكه په بدن پورې نجاست حقيقى لګيدلى وى.نو هغه دى هم لرى كړى چي د اوبو په لګيدو سره زيات نشى.بيا دى داسى اودس اوكړى.لكه څنګه چي د مانځه دپاره كوى.خوخپلى پښى به نه وينځى.بيا دى په سر باندې درى خله اوبه اوبيوى.اودرى خله دى په ټول بدن اوبه تيرى كړى.

---

[1] صحيح البخاري/الغسل ١ (٢٤٩) ، و٥ (٢٥٦) ، و٧ (٢٥٩) ، و٨ (٢٦٠) ، و١٠ (٢٦٥) ، و١١ (٢٦٦) ، و١٦ (٢٧٤) ، و١٨ (٢٧٦) ، و٢١ (٢٨١) ، صحيح مسلم/الحيض ٩ (٣١٧) ، سنن ابي داود/ الطهارة ٩٨ (٢٤٥) ، سنن النسائي/الطهارة ١٦١ (٢٥٣) ، والغسل ٧ (٤٠٨) ، و١٤ (٤١٨) ، و٢٢ (٤٢٨) ، سنن ابن ماجه/الطهارة ٩٤ (٥٧٣) ، (تحفة الأشراف : ١٨٠٦٤) ، مسند احمد (٦/٣٣٠، ٣٣٦) ، سنن الدارمي/الطهارة ٣٩ (٧٣٨) ، و٦٦ (٧٧٤) .

شمس الائمه حلواني فرمائيلي دی، چی اول دی په ښی اوږه دری خله اوبه راواچوی.او بيا په گسه باندې او بيا په ټول بدن باندې دويم:او بعضو فرمائيلي دی چی د ښۍ اوږی نه دی شروع اوکړی ،بيا په سر اوبيا دی په گسه اوږه اوبه اوبيوی.دريم:او بعضو وئيلي دی چی دسر نه دی شروع اوکړی.د قدوری دعبارت نه دا معلوميږی.بيا دی دهغه ځاي نه اخوا شی.او خپلی دواړه پښی دی اووينځی.

صاحب د هدايه فرمائی چی ميمونه رضی الله عنها د رسول پاك صلي الله عليه وسلم غسل هم داسی نقل کړې دې،صاحب د فتح القدير ابن الهمام پوره حديث داسی نقل کړې دې:
"روى الجماعة عنها قالت وضعت للرسول صلي الله عليه وسلم ماء يغتسل به فأفرغ على يديه فغسلهما مرتين أوثلاثا ثم أفرغ بيمينه على شماله .فغسل مذاكيره. ثم دلكه بيده الأرض ثم تمضمض واستنشق ثم غسل وجهه ويديه.ثم غسل رأسه ثلاثاً.ثم أفرغ على جسده ثم تنحى عن مقامه فغسل قدميه" دميمونه رضی الله عنها نه يوی ډلی دعالمانو روايت نقل کړې دې چی ميمونه رضی الله عنها فرمائيلي دی.ما د رسول الله ﷺ د غسل دپاره اوبه کيخودې،نو رسول پاك صلي الله عليه وسلم په خپلو دواړو لاسونو باندې راواچولې. دوه يا دری خله ئې خپل لاسونه اووينځل.بيا رسول پاك صلي الله عليه وسلم په خپل گس لاس د ښی لاس نه اوبه واچولې،بيا رسول پاك صلي الله عليه وسلم خپله شرمگاه اووينځله،بيا ئې خپل لاس په زمکه باندې اومګلو.بيا ئې په خوله کي اوبه واچولې، اوپه پوزه کي ئې اوبه واچولې.بيا ئې خپل مخ او لاسونه اووينځل،بيا ئې دری خله خپل سر اووينځلو.بيا ئې په خپل بدن باندې اوبه اوبيولې،بيا دهغه ځاي نه اخوا شو.او خپې ئې اووينځلې.

صاحب دهدايه فرمائی چی پښی به ددی وجې وروسته کوی چی هغه د مستعملو اوبو په ځاي کي جمع کيږی،نوکه په اوچت ځاي لکه تخته وغيره باندې ولاړ وی.اوغسل کوی،نود پښو دوينځلو وروسته کولو ته څه ضرورت نشته.

**دراوي حالات** : د ابن عباس رضي الله عنه حالات بار بار په ما قبل ابوابو کي مفصل تير شوي دي. من ارادها فليراجع

***************

١٠٤ـ حَدَّثَنَا ابْنُ أَبِي عُمَرَ. حَدَّثَنَا سُفْيَانُ بْنُ عُيَيْنَةَ. عَنْ هِشَامِ بْنِ عُرْوَةَ. عَنْ أَبِيهِ. عَنْ عَائِشَةَ. قَالَتْ: "كَانَ رَسُولُ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ إِذَا أَرَادَ أَنْ يَغْتَسِلَ مِنَ الْجَنَابَةِ بَدَأَ فَغَسَلَ يَدَيْهِ قَبْلَ أَنْ يُدْخِلَهُمَا الْإِنَاءَ. ثُمَّ غَسَلَ فَرْجَهُ وَيَتَوَضَّأُ وُضُوءَهُ لِلصَّلَاةِ. ثُمَّ يُشَرِّبُ شَعْرَهُ الْمَاءَ. ثُمَّ يَحْثِي عَلَى

رَأْسِهِ ثَلَاثَ حَثَيَاتٍ ". قَالَ أَبُو عِيسَى: هَذَا حَسَنٌ صَحِيحٌ، وَهُوَ الَّذِي اخْتَارَهُ أَهْلُ الْعِلْمِ فِي الْغُسْلِ مِنَ الْجَنَابَةِ، أَنَّهُ يَتَوَضَّأُ وُضُوءَهُ لِلصَّلَاةِ، ثُمَّ يُفْرِغُ عَلَى رَأْسِهِ ثَلَاثَ مَرَّاتٍ، ثُمَّ يُفِيضُ الْمَاءَ عَلَى سَائِرِ جَسَدِهِ، ثُمَّ يَغْسِلُ قَدَمَيْهِ، وَالْعَمَلُ عَلَى هَذَا عِنْدَ أَهْلِ الْعِلْمِ. وَقَالُوا: إِنِ انْغَمَسَ الْجُنُبُ فِي الْمَاءِ وَلَمْ يَتَوَضَّأْ أَجْزَأَهُ، وَهُوَ قَوْلُ الشَّافِعِيِّ، وَأَحْمَدَ، وَإِسْحَاقَ. [1]

**ترجمه**: دعائشه رضي الله عنها نه روايت دي فرمائي كله چي رسول الله صلي الله عليه وسلم دجنابت نه دغسل كولو اراده اوكړه نو لاسونه به يي لوبني ته د داخلولو نه مخكي اووينځل او بيا به يي شرمګاه وينځله اوداسي اودس به يي كولو څنګه چي دمونځ دپاره كولي شي بيا به يي ويخته په اوبو لامده كړل او بيا به يي دري پيري په سر اوبه راواړولي

امام ترمذي وائي دا حديث حسن صحيح دي او همدا حديث اهل علمو دعمل په سلسله كي اختيار كړي دي چي هغوئ دمونځ دپاره د اودس پشان اودس كوي بيا به په سر دري پيري اوبه راواړوي او بيا به په بدن اوبه اوبهيوي دوئ دا هم ونيلي دي چي جنب كه په اوبو كي غوپه اووهي او اودس اونكړي دا دده دپاره كافي كيږي او همدا قول دامام شافعي، احمد، او اسحاق بن راهويه هم رحمهم الله دي

**حل لغات**: يدخل: ادخل يدخل ادخالا معني داخلول، الفرج: په شيانو كي خلل پيداكول ، سرحد ، كشادګي، انساني شرمګاه ته هم فرج ونيلي شي. دباب نصر نه راځي.

يغسلها: اغتسل يغتسل اغتسالا معني غسل كول ، غسل يغسل غسلا وينځل مغتسل معني غسل خانه . غسل وينځلي شوي ، غاسل معني دوبي.

**تشريح**: د جنابت نه دغسل په سلسله كي قاضي ثناء الله د سورة مائدي په اولني ايت كي بهترين تحقيق كړی دی چي ستاسو د فائدي دپاره يي نقل كوو.

چونكه په جنابت كي دبنه پاكي كولو حكم دي نوپه دي وجه مونږ دخولي اودپوزي دننه حصه دبيروني جلد په حكم كي داخل كړه . امام مالك او امام شافعي په نزد داودس پشان غسل سنت دي.

[1] صحيح البخارى/الغسل١ (٢٤٨) ، و٩ (٢٦٢) ، و١٥ (٢٧٢) . صحيح مسلم/الحيض ٩ (٣١٦) . سنن ابي داود/ الطهارة ٩٨ (٢٤٢) . سنن النسائي/الطهارة ١٥٦ (٢٤٨) ، و١٥٧ (٢٤٩، ٢٥٠) . والغسل ١٦ (٤٢٠) ، و١٩ (٤٢٣) . (تحفة الأشراف : ١٦٩٣٥) . موطا امام مالك الطهارة١٧ (٦٧) . مسند احمد (٦/٥٢، ١٠١) هذا من طريق عروة عنها. وله طرق عنها. انظر: صحيح البخارى الغسل ٦ (٢٥٨) . صحيح مسلم/الحيض ٩ (٣١٨) ، و١٠ (٣٢٠، ٣٢١) . سنن ابي داود/ الطهارة ٩٨ (٢٤٠) . سنن النسائي الطهارة١٥٣ (٢٤٤) ، و٢٥٣ ، و١٥٤ (٢٤٦) ، و١٥٥ (٢٤٧) ، والغسل١٩ (٤٢٤) . مسند احمد (٦/١٤٣، ١٦١، ١٧٣)

دام سلمه رضي الله عنها بيان دي فرمائي چي ما عرض اوکړو اي دالله رسوله مادسر کمڅۍ ډيري سختي اودلي دي ايا دجنابت نه دغسل په وخت کي يي پرانستل ضروري دي ؟ نبي کريم صلي الله عليه وسلم اوفرمائيل نه دومره هم کافي ده چي دري لپي اوبه په سر راواچوي اوبيا په خان باندي اوبه اوبيوي اوپاکه شي. مونږ وايو ام سلمه رضي الله عنها دسر دوينخلو دکيفيت تپوس کړي وو چي ويښته پرانستل ضروري دي اوکه نه نونبي عليه السلام صرف هم ددي جواب ورکړي دي دغرغړي اوپه پوزه کي داوبواچولو يي نه اثبات کړي اونه نفي نوددينه څنګه معلومه شوه چي خوله اوپوزه وينځل داودس ارکان ندي؟

**مسئله:** سړي وي اوکه ښځه دهريوډپاره دسردويښتو بيخونوته اوبه رسول واجب دي اودږيري بيخ ته هم اوبه رسول لازمي دي ، دامام مالك په نزد اودامام شافعي په يوقول کي په اودس باندي په قياس کولوسره دږيري بيخ ته اوبه رسول واجب نه دي زمونږ په نزد په دواړوکي فرق دادي چي په غسل کي طهارت په مبالغي سره کول پکاردي اوپه اودس کي ديته ضرورت نشته ، درسول الله صلي الله عليه وسلم ارشاددي چي څرمني لره ښه پاکه کړئ ، دعلي رضي الله عنه بيان دي فرمائي چي ماپخپله درسول الله نه اوريدلي دي چي فرمائيل به يي چاچي دجنابت په غسل کي ديو ويخته په مقدار اوچ خاي پريخودو چي اوبه ورته اونه رسيږي نوالله تعالي به ورسره په دوزخ کي داسي داسي کوي ، علي رضي الله عنه اوفرمائيل هم ددي وجي نه مادخپلو ويښتوسره دشمني کړي ده (رواه ابو داود وابن ماجه واسناده صحيح) بعضي علماؤ وئيلي دي چي دي حديث لره موقوف ګرځول صحيح دي (مرفوع وئيل غلط دي)

مونږ وايو ثقه راوي مرفوع بيان کړي دي اودثقه زيادت قابل دقبول وي . اوبيادلته خو موقوف دمرفوع په حکم کي په يقيني طورسره دي ، خکه چي دعذاب داخرت اندازه په رائي سره نه شي کيدي (دوحي نه بغير ددي اندازه نه شي لګيدي او وحي خو صرف پيغمبر ته راخي ددينه معلومه شوه صحابي چي دکوم قول نسبت رسول الله ته اونکړي ليکن هغه قول داخرت دعذاب سره متعلق وي نويقينا هغه درسول الله فرمان دي)

دابوايوب انصاري رضي الله عنه نه يو مرفوع روايت مروي دي چي دجنابت نه غسل کول دامانت ادا کول دي خکه چي دهر يو ويښته دلاندي جنابت وي (رواه ابن ماجه) ليکن ددي اسناد ضعيف دي . په صحيحينو کي درسول الله صلي الله عليه وسلم دغسل دکيفيت په بيان کي عائشه رضي الله عنها فرمائيلي دي چي بيا به رسول الله ګوتي اوبوته داخلي کړي اودويښتو بيخونه به يي خلالول . دعائشه بيان دي چي اسماء رضي الله عنها دزنانه بيمارۍ متعلق درسول الله نه دغسل په باره کي تپوس اوکړو اوپه دي حديث کي داسي ذکر شوي دي چي سر دي ښه اوموږي تردي پوري چي اوبه دويښتو بيخونو ته ورسيږي (رواه مسلم)

ددي مبحث يوروايت داذر رضي الله عنه نه هم مروي دي په كوم كي چي راغلي دي كله چي اوبه بيامومي نوخپله ځرمن مسح كړه (رواه احمد).

**مسئله:** بدن مږل دجمهورو په نزد باندي واجب نه دي د امام مالك په نزد باندي واجب دي دجمهورو دليل دادي چي الله تعالي "حتي تغتسلوا" فرمائيلي دي اوداغتسال معني اوبه بيول دي مالش نه دي، دابو زبيررضي الله عنه نه روايت دي چي رسول الله صلي الله عليه وسلم فرمائيلي دي بيازه ډكه لپه اوبه راواخلم اوپه سر يي واچوم اوبيا ددينه پس يي په تمام بدن اوبيوم (متفق عليه)

اودغسل په كوم حديث كي داسي لفظ نه دي راغلي چي دمالش په وجوب باندي دلالت وكړي.

**مسئله:** واجب نه دي په ښځه باندي دكمڅو پرانيستل اودوينتونو دسرونو وينځل په اجماع سره دقياس تقاضا داوه چي دښځي اوسړي دواړو دپاره دوينتو پرانيستل اوكمڅئ وينځل دي واجب وي ځكه چي دغسل په طهارت كي مبالغه كول واجب دي (اوداحكم دسړي اوښځودواړودپاره دي) ليكن كمڅئ نه پرانيستل او تړلي وينته دنه كولاوولو دسلي حديث دام سلمه رضي الله عنهانه مونږ ذكر كړو (اونص لره په قياس باندي ترجيح حاصل وي) دعبيد بن عمير بيان دي فرمائي چي عائشه رضي الله عنها ته دا خبر ورسيدو چي عبدالله بن عمر به ښځوته حكم كولو چي كله غسل كوئ نودسرونو وينته به پرانيځئ، عائشه رضي الله عنها اوفرمائيل نوبيا يي ښځوته دسرونو خريلو حكم ولي نه كولو ما اورسول الله صلي الله عليه وسلم به ديو لوښي نه غسل كولو اودري پيري به مو په بدن باندي اوبه اچولي اوددينه علاوه به مو نور هيڅ نه كول، دسړو دپاره دړي وينتو پرانيستل ساقط نه دي ، دابوهريره رضي الله عنه نه روايت دي چي رسول الله صلي الله عليه وسلم فرمائيلي دي دهر وينته دلاندي جنابت وي نوپه دي وجه تاسو به وينته وينځئ اوځرمن به ښه پاكوئ (رواه ابو داود والترمذي وابن ماجة والبيهقي) مگر داروايت ضعيف دي ځكه چي مدار يي په حارث بن دحيه باندي دي اوحارث ډير ضعيف دي دارقطني ونيلي دي دا روايت صرف دمالك بن دينار نه مرسل مروي دي اوهمدارنگي سعيد بن منصور په روايت ديونس سره دحسن نه مرسل بيان كړي دي ، ابن جوزي ونيلي دي دا صرف دابوهريره رضي الله عنه قول دي (يعني موقوف حديث دي) بهر حال داحديث مرسل صحيح دي ياموقوف صحيح او متصل مرفوع نه دي ليكن مرسل هم حجت وي اوخصوصا په هغه وخت كي كله چي ددينه تائيد په كوم مسند حديث يااثرسره كيږي.

**فصل**

په غسل کي نيت اوتوالي سنت دي اوددوارو خپو په پريخودلو سره باقي اودس کول اوبيا په بدن باندي اوبه بهيول اوبيا دغسل دځاي نه په لري کيدو سره خپي وينځل هم درسول الله صلي الله عليه وسلم سنت دي ، دغسل په نيت کي هغه اختلاف دي کوم چي داودس په نيت کي دي او توالي درسول الله په دوامي عمل سره ثابت دي ، دباقي امورومسنون کيدل دميمونه رضي الله عنها دحديث نه ثابت دي دميمونه رضي الله عنها بيان دي چي ما درسول الله دپاره دغسل اوبه ايخودلي وي اوهغه درباندي دجنابت غسل وکړو ، اول ني لوښي په ګس لاس راکوږ کړو اوپه ښي لاس ني اوبه واچولي اولاسونه ئي دري پيري ووينځل اوبيا ني په سر باندي دري پيري اوبه واچولي اوبيائي په باقي بدن باندي اوبه واړولي اوبيا دهغه ځاي نه وړاندي شو اوخپي ني ووينځلي(متفق عليه)

**فائده:** کچري بدن په نجاست حقيقيه لړلي وي نوددي لري کول واجب دي نوځکه ني دغسل په سنتونو کي ددي ذکر ونکړولکه څنګه چي ني داودس په سنتونو کي داستنجاء ذکر ندي کړي ، دباقي بدن ددري پيري وينځلو هيڅ دليل ماته معلوم نشو....

***************

## ٧٧ ـ بَابُ هَلْ تَنْقُضُ الْمَرْأَةُ شَعْرَهَا عِنْدَ الْغُسْلِ

### ايا ښځه به په غسل کي کمڅۍ پرانيزي

١٠٥ ـ حَدَّثَنَا ابْنُ أَبِي عُمَرَ. حَدَّثَنَا سُفْيَانُ. عَنْ أَيُّوبَ بْنِ مُوسَى. عَنْ سَعِيدٍ الْمَقْبُرِيِّ. عَنْ عَبْدِ اللهِ بْنِ رَافِعٍ. عَنْ أُمِّ سَلَمَةَ. قَالَتْ: قُلْتُ: يَا رَسُولَ اللهِ إِنِّي امْرَأَةٌ أَشُدُّ ضَفْرَ رَأْسِي أَفَأَنْقُضُهُ لِغُسْلِ الْجَنَابَةِ؟ قَالَ: "لَا إِنَّمَا يَكْفِيكِ أَنْ تَحْثِينَ عَلَى رَأْسِكِ ثَلَاثَ حَثَيَاتٍ مِنْ مَاءٍ. ثُمَّ تُفِيضِينَ عَلَى سَائِرِ جَسَدِكِ الْمَاءَ فَتَطْهُرِينَ" أَوْ قَالَ: "فَإِذَا أَنْتِ قَدْ تَطَهَّرْتِ". قَالَ أَبُو عِيسَى: هَذَا حَسَنٌ صَحِيحٌ. وَالْعَمَلُ عَلَى هَذَا عِنْدَ أَهْلِ الْعِلْمِ: أَنَّ الْمَرْأَةَ إِذَا اغْتَسَلَتْ مِنَ الْجَنَابَةِ فَلَمْ تَنْقُضْ شَعْرَهَا. أَنَّ ذَلِكَ يُجْزِئُهَا بَعْدَ أَنْ تُفِيضَ الْمَاءَ عَلَى رَأْسِهَا. [1]

**ترجمه** : دام سلمه رضي الله عنها بيان دي فرمائي چي ما عرض اوکړو اي دالله رسوله مادسر کمڅۍ ډيري سختي اودلي دي ايا دجنابت نه دغسل په وخت کي يي پرانستل ضروري دي ؟

---

[1] صحيح مسلم/الحيض ١٢ (٣٣٠) . سنن النسائي/الطهارة ١٥٠ (٢٤٢) . سنن ابن ماجه/الطهارة ١٠٨ (٦٠٣) . (تحفة الأشراف : ١٨١٧٢) . مسند احمد (٦/٣١٥) . سنن الدارمي/الطهارة ١١٣ (١١٩٦)

نبي كريم صلي الله عليه وسلم اوفرمائيل نه دومره هم كافي ده چي دري لپي اوبه په سر راواچوي اوبيا په ځان باندي اوبه اوبيوي اوپاكه شي. او كه داسي يي اوفرمائيل چي بيا ته پاكه شوي
امام ترمذي وايي دا حديث حسن صحيح دى اود اكثرو اهل علمو په همدي باندي عمل دى چي كله يوه ښځه د جنابت نه غسل وكړي او كمڅۍ ونه سپړي نو به څه حرج نشته په سر باندي اوبه راړول هم ددي دپاره كافي دي
**اللغات**: " تنقض " نقض ينقض دنصر ينصر دباب نه په معني دماتولوسره. اوهمدارنګي په رسۍ ترلي شوي ته هم نقض وئيلي شي " ضفائر " ضفيرة جمع ده په معني دكمڅو سره " اصول "جمع داصل ده جرړو او بنياد ته وئيلي شي "البل" مصدر دي دباب نصر ينصر نه په معني دلوندوالي " ذوائب " جمع ده مفردیي ذائبة راځي په معني دكمڅئى سره مقدار " اثناء " مينځ

## په غسل كي د كمڅواو ږيرې وينځلو حكم

مسئله داده چي د ښځې د كمخو د ويختو بيخونو ته اوبه رسي. نويه هغې باندې د خپلو كمڅو پرانستل واجب نه دی.دليل ئې په صحيح مسلم وغيره كي د ام سلمه رضى الله عنها حديث دې،"قلت يارسول الله إنى إمرأة أشد ضفر رأسي أفأنقضه في غسل الجنابة فقال لا إنما يكفيك أن تحثي على رأسك ثلاث حثيات ثم تفيض عليك الماء فتطهرين" (فتح القدير) يعنى ام سلمه رضى الله عنها عرض اوكړو.يا رسول الله ﷺ زه داسي ښځه يم چې د خپلو ويختو كمڅۍ سختی ترم.نو آيا د جنابت په غسل كي دا پرانيزم؟نو رسول پاك صلي الله عليه وسلم ورته اوفرمائيل:نه. ستا دپاره دا كافي ده چي ته په خپل سر دری لپی واچوې.اوبيا په خپل بدن اوبه اوبيوې.نوپاكه به شي. ددی حديث نه معلومه شوه چي په هغه ښځه باندې د ويختو لمدول واجب نه دی چی كمڅۍ ئې جوړی كړې وی،
صاحب دهدايه فرمائی چي په دی ښځه باندې د كمڅولوندول هم واجب نه دی.هم دا صحيح قول دې، ځكه چي د كمخو په لوندولو كي دښځی دپاره تكليف دې.
ليكن ږيره ددی په خلاف ده. ځكه چي دهغی مينځ ته اوبو رسولو كي څه تكليف نشته،نو ږيرى ته دننه اوبه رسول واجب دی . دغه شان كه د ښځی ويخته پرانستی وی،نود هغی مينځ ته اوبه رسول واجب دی . ځكه چي په دی صورت كي په كي څه تكليف او مشقت نشته.

## ٧٨_ بَابُ مَا جَاءَ أَنَّ تَحْتَ كُلِّ شَعْرَةٍ جَنَابَةً

### دهر يو ويخته لاندي جنابت دي

١٠٦_ حَدَّثَنَا نَصْرُ بْنُ عَلِيٍّ، حَدَّثَنَا الحَارِثُ بْنُ وَجِيهٍ، قَالَ: حَدَّثَنَا مَالِكُ بْنُ دِينَارٍ، عَنْ مُحَمَّدِ بْنِ سِيرِينَ، عَنْ أَبِي هُرَيْرَةَ، عَنِ النَّبِيِّ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ، قَالَ: "تَحْتَ كُلِّ شَعْرَةٍ جَنَابَةٌ فَاغْسِلُوا الشَّعْرَ وَأَنْقُوا البَشَرَ". وَفِي البَابِ عَنْ عَلِيٍّ، وَأَنَسٍ. قَالَ أَبُو عِيسَى: حَدِيثُ الحَارِثِ بْنِ وَجِيهٍ غَرِيبٌ، لَا نَعْرِفُهُ إِلَّا مِنْ حَدِيثِهِ، وَهُوَ شَيْخٌ لَيْسَ بِذَاكَ، وَقَدْ رَوَى عَنْهُ غَيْرُ وَاحِدٍ مِنَ الأَئِمَّةِ، وَقَدْ تَفَرَّدَ بِهَذَا الحَدِيثِ، عَنْ مَالِكِ بْنِ دِينَارٍ، وَيُقَالُ: الحَارِثُ بْنُ وَجِيهٍ، وَيُقَالُ: ابْنُ وَجْبَةَ. ([1])

**ترجمه** : دابوهريره رضي الله عنه نه مروي دي چي نبي كريم صلي الله عليه وسلم فرمانيلي دي دهر ويخته دلاندي دجنابت اثر وي نو په دي وجه يي په ښه شان سره وينځئ او ځرمن به په ښه طريقه مږئ.

امام ترمذي وائي په دي باب كي دانس رضي الله عنه نه هم يو روايت مروي دي. او دحارث بن وجيه روايت غريب دي مونږ ته صرف دده په سند معلوم دي او حارث قوي نه دي حارث دمالك بن دينار نه ددي روايت په نقل كولو كي منفرد دي.

**حل لغات** الدلك: دلك يدلك دلكا په معني دمږلو سره دي.

**تشريح** : دحديث مطلب دادي دبدن ويختـه ولاړ نه وي په جسم باندي پراته وي او دي پرتـو ويختو چي دبدن كومه حصه پټه كړي ده هغه حصه دتحت كل شعرة نه مراد ده همدارنگي د ويختو كومه حصه چي دځرمني سره يوځاي ده هغه هم ددينه مراد ده پس تول ويختـه وينځل ضروري دي او ددي لاندي پټه شوي ځرمن وينځل هم ضروري دي هم ددي حديث په بنياد امام مالك دلك يعني دجسم مږل فرض كړي دي مگر دا حديث ضعيف دي ځكه چي ابو محمد حارث بن وجيه بصري ددي په نقل كولو كي منفرد دي او دا ضعيف راوي دي حارث د اتمي طبقي راوي دي امام ترمذي ابو داود. او ابن ماجه دده نه اخذ دروايت كړي دي

**************

## ٧٩_ بَابُ مَا جَاءَ فِي الوُضُوءِ بَعْدَ الغُسْلِ

### دغسل نه پس د اودس كولو بيان

١٠٧_ حَدَّثَنَا إِسْمَاعِيلُ بْنُ مُوسَى، حَدَّثَنَا شَرِيكٌ، عَنْ أَبِي إِسْحَاقَ، عَنِ الأَسْوَدِ، عَنْ عَائِشَةَ، أَنَّ النَّبِيَّ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ كَانَ "لَا يَتَوَضَّأُ بَعْدَ الغُسْلِ". قَالَ أَبُو عِيسَى: هَذَا حَسَنٌ صَحِيحٌ. قَالَ أَبُو

[1] سنن ابي داود/ الطهارة ٩٨ (٢٤٨). سنن ابن ماجه/الطهارة ١٠٦ (٥٩٧). (تحفة الأشراف : ١٤٥٠٢)

عِيسَى: وَهَذَا قَوْلُ غَيْرِ وَاحِدٍ مِنْ أَصْحَابِ النَّبِيِّ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ وَالتَّابِعِينَ أَنْ لَا يَتَوَضَّأَ بَعْدَ الْغُسْلِ. ([1])

**ترجمه** : دام المؤمنين عائشه رضي الله عنها نه مروي دي چي نبي كريم صلي الله عليه وسلم به دغسل نه پس اودس كولو.

امام ترمذي وائي داحديث حسن صحيح دي او دمتعددو صحابه كرامو تابعينو او اهل علمو په دي باندي عمل دي چي دغسل نه پس اودس كول نشته.

**تشريح** : وضوء بعد الغسل د فقهاؤ په اتفاق ضروري نه دى البته شوافع وايي كه د اودس نه پس مسئله د مس الذكر عارضي شي نو اودس كول به ضروري وي.

****************

## ٨٠ـ بَابُ مَا جَاءَ إِذَا الْتَقَى الْخِتَانَانِ وَجَبَ الْغُسْلُ

### كله چي شرمڅاه د شرمڅاه سره يوځاي شي نو غسل واجب شي

١٠٨ـ حَدَّثَنَا أَبُو مُوسَى مُحَمَّدُ بْنُ الْمُثَنَّى، حَدَّثَنَا الْوَلِيدُ بْنُ مُسْلِمٍ، عَنِ الْأَوْزَاعِيِّ، عَنْ عَبْدِ الرَّحْمَنِ بْنِ الْقَاسِمِ، عَنْ أَبِيهِ، عَنْ عَائِشَةَ، قَالَتْ: "إِذَا جَاوَزَ الْخِتَانُ الْخِتَانَ فَقَدْ وَجَبَ الْغُسْلُ، فَعَلْتُهُ أَنَا وَرَسُولُ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ فَاغْتَسَلْنَا". قَالَ: وَفِي الْبَاب عَنْ أَبِي هُرَيْرَةَ، وَعَبْدِ اللَّهِ بْنِ عَمْرٍو، وَرَافِعِ بْنِ خَدِيجٍ. ([2])

**ترجمه** : د عائشه رضي الله عنها نه مروي دي چي فرمائيل يي كله چي شرمڅاه د شرمڅاه سره يوځاي شي نو غسل واجب شي، ما او رسول الله صلي الله عليه وسلم هم داسي كړي وو نو غسل مو وكړل

امام ترمذي وايي چي په دي باب كي د ابو هريره، عبد الله بن عمرو او رافع بن خديج رضي الله عنهم نه هم احاديث وارد دي.

**حل لغات** : " ختانان " د ختن تثنيه ده معني دختني كولو ځاي مجازا ورنه الات دتناسل مراد وي "

---

[1] سنن النسائي/الطهارة ١٦٠ (١٥٣) . والغسل ٢٣ (٣٣٠) . سنن ابن ماجه/الطهارة ٩٦ (٥٧٩) . (تحفة الأشراف : ١٦٠٢٥) . مسند احمد (٦/٦٨ . ١١٩ . ١٥٣ . ١٩٢ . ٢٥٣ . ٢٥٨) . وانظر أيضا: سنن ابي داود/ الطهارة ٩٩ (٢٥٠)

[2] سنن ابن ماجه/الطهارة ١١١ (٣٠٨) . (تحفة الأشراف : ١٧٣٩٩) . وراجع أيضا: صحيح مسلم/الحيض ٢٢ (٣٤٩) . وط/الطهارة ١٨ (٧٣) . و مسند احمد (٦/٤٧ . ٩٧ . ١١٣ . ٢٢٧ . ٢٣٩ . ٢٦٥)

**تشريح : غسل واجبونکي اسباب**

اول سبب په شهوت او ټوپ سره د منیٔ وتل دی ،که انزال د منیٔ د سړی نه وی اوکه د ښځی نه،اوکه دخوب په حالت کي وی اوکه د ويخی په حالت کښې،په هر صورت کي غسل واجب دی،دويم: امام شافعی او امام مالك رحمه الله فرمائي چي په مطلق خروج د منیٔ سره غسل واجبيږی،که مني په شهوت سره وتلی وی اوکه بغير د شهوت نه.

نوکه د وزن اوچتولو دوجې منی اووتل،يا د اوچت ځای نه په راغورځيدو سره اووتل ،يا دلرګی يا بل څه په ګزار سره د شاه نه اووتل نوپه دی صورتونوکي زمونږ په نزد غسل نه واجبيږی، او دامام مالك رحمه الله او امام شافعی رحمه الله په نزدواجبيږی.

دامام مالك رحمه الله او امام شافعی رحمه الله دليل د رسول پاك صلي الله عليه وسلم داقول دې چی "الماء من الماء" يعنی غسل په منیٔ سره واجبيږی،دا حديث د شهوت د قيد نه مطلق دې،(دا قيد په کي نشته چی په شهوت سره وتلی وی،نو غسل واجبيږی) نود "المطلق يجری علی إطلاقه" مطابق به په خپل اطلاق باقی پاتې کيږی.

زمونږ دليل دا دې چی الله تعالی فرمائيلی دی،﴿وَإِن كُنتُمْ جُنُبًا فَاطَّهَّرُوا﴾ آيت کي د تطهير حکم جنب ته هم شامل دې،او په لغت کي جنابت وائی،په شهوت سره د منیٔ وتلو ته،کله چی سړې د ښځی نه خپل شهوت پوره کړی،نو عرب وائی،"أجنب الرجل" نومعلومه شوه چی د منیٔ په شهوت سره وتل جنابت دې،نو چی انزال د منیٔ په شهوت سره اوشی،نو غسل به واجب وی.

پاتې شو هغه حديث کوم چی امام شافعی رحمه الله پيش کړې دې، دهغی نه جواب دا دې چی دا حديث په شهوت سره د منیٔ په خروج باندې محمول دې،ددی وجې چی حديث دخپلو الفاظو په اعتبار سره عام دې، ځکه چی دا متيازو، مذیٔ ، ودیٔ، منیٔ ته که په شهوت وی اوکه بغير د شهوته وی،ټولو ته شامل دې،او په اتفاق سره په حديث کي ټول څيزونه مراد نه دی،چونکه منی چی په شهوت سره اوځی،نو په دی باندې په اتفاق سره غسل واجبيږی،نو ځکه به دا حديث هم په دی حمل کولی شی.زمونږ د مذهب تائيد د عائشه رضی الله عنها د تفسير نه هم کيږی،کوم چی هغی د منیٔ په باره کي کړې دې،فرمائي "المنی ماء أبيض ثخين ينکسر منه الذکر" يعنی منی سپينی اوبه وی چی په هغی سره خاص اندام مړاوی کيږی،اودا خبره ښکاره ده. چی مړاوی توب د شهوت نه پس راځی،نو معلومه شوه چی بغير د شهوت نه کومی اوبه اوځی،هغه منی نه ده چی غسل پری واجب شی.احناف علماء په دی خو متفق دی چی دغسل د وجوب دپاره دا ضروری ده چی کله منی دخپل ځای نه يعنی شاه

نه جدا شي چې په شهوت سره وي.ليكن چې كله د عضوتناسل نه بهر ته اوځي.نوپه هغه وخت كي د شهوت وجود شرط دى كه نه دى ؟ نوپه دى باره كي اختلاف دې.اول:د طرفينو په نزد د منئ دظهور په وخت د شهوت وجود ضروري نه دې.دويم:اود امام ابو يوسف رحمه الله په نزد په هغه وخت كي هم د شهوت وجود ضروري دې.

دامام ابو يوسف رحمه الله دليل قياس دې چې لكه څنګه منى دځپل محل يعنى شاه نه راوځي.نوپه هغه وخت كي شهوت ضروري دې،نودغه شان د عضو تناسل نه د وتلو په وخت كي هم د شهوت وجود ضروري دې،اوجامع دا دې چې دغسل تعلق د دواړو سره دې.

د طرفينو دليل دا دې چې د منئ د انفصال په وخت كي شهوت موجود وو.نود دى تقاضا ده چې غسل واجب شي.او دخروج په وخت چونكه شهوت نه وو.نوددى تقاضا ده چې غسل دى واجب نه شي،نو په دى صورت كي دغسل وجوب اوعدم وجوب دواړه احتمال شته،خومونږ په احتياط باندې عمل وكړو او غسل مو واجب كړلو.

فائده د اختلاف داده چې يوسړي استمناء باليد اوكړله او عضوتناسل ئې اونيولو.كله چې ئې شهوت ختم شو،نو منى بغير ذشهوت نه خارج شوه.په دى صورت كي به د طرفينو په نزد غسل واجب وي.او دامام ابو يوسف رحمه الله په نزد به واجب نه وي.

انزال د باب افعال مصدر دى .نزاله (دنون سره) نه ماخوذ دې.معنى ئې ده د سړي اوبه.دلته كي درى الفاظ قابل ذكر دى.منى ،مذى او ودى.اول موجب دغسل ده.اودويمه او دريمه موجب د اودس دى.په دى درى واړو كي فرق مصنف عبدالرزاق په خپل مصنف كي د قتاده او عكرمه نه نقل كړې دې،فرمائى چې منى هغه د ټوپ اوبه دى چې شهوت ورسره وي.او دهغى نه بچى پيدا كيدى شى.اومذى هغه اوبه دى چې د لوبو په وخت كي اوځى.او ودى هغه اوبه دى چې د متيازو نه پس اوځى.(عينى)علامه ابن الهمام په فتح ا لقدير كي ليكلى دى چې يوى ښځى د عائشى رضي الله عنه نه د مذئ په باره كي تپوس وكړو.نوهغوى ورته اوفرمائيل .دهر سړى نه مذى ځى،او دا په حقيقت كي درى څيزونه دى.اول مذى دويم: ودى دريم:منى.نومذى خودا ده چې سړې د خپلى بى بى سره لوبى كوى.اود هغه په عضو تناسل باندې يوڅيزښكاره شى.نوهغه دى خپل ذكر او خصيتين اووينځى.او اودس دى اوكړى.غسل دى نه كوى.او.ودى هغه ده چې كومه د متيازو نه پس راځى.دلته كي هم د خپل ذكر او خصيتينو وينځل اواودس كول واجب دى.اوغسل نه دې.او منى هغه ټينګى اوبه دى چې په شهوت سره اوځى.په دى كي غسل دې.

علامه نووى فرمائى چې مذى سپينى نرمى او ځليځناكى اوبه وي.كومى چې د لوبو په وخت په شهوت سره اوځى.ليكن ددى نه پس په طبعيت كي فتورنه راځى. صاحب د هدايه

فرمانی چی مذی هغه اوبه دی چی نرمی اوسپین والی ته مانلی وی.د لوبو په وخت کي اوخي.

*****************

۱۰۹_ حَدَّثَنَا هَنَّادٌ، حَدَّثَنَا وَكِيعٌ، عَنْ سُفْيَانَ، عَنْ عَلِيِّ بْنِ زَيْدٍ، عَنْ سَعِيدِ بْنِ الْمُسَيِّبِ، عَنْ عَائِشَةَ، قَالَتْ: قَالَ النَّبِيُّ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ: "إِذَا جَاوَزَ الْخِتَانُ الْخِتَانَ وَجَبَ الْغُسْلُ". قَالَ أَبُو عِيسَى: حَدِيثُ عَائِشَةَ حَسَنٌ صَحِيحٌ، قَالَ: وَقَدْ رُوِيَ هَذَا الْحَدِيثُ عَنْ عَائِشَةَ، عَنِ النَّبِيِّ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ مِنْ غَيْرِ وَجْهٍ، إِذَا جَاوَزَ الْخِتَانُ الْخِتَانَ فَقَدْ وَجَبَ الْغُسْلُ، وَهُوَ قَوْلُ أَكْثَرِ أَهْلِ الْعِلْمِ مِنْ أَصْحَابِ النَّبِيِّ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ، مِنْهُمْ أَبُو بَكْرٍ، وَعُمَرُ، وَعُثْمَانُ، وَعَلِيٌّ، وَعَائِشَةُ، وَالْفُقَهَاءِ مِنَ التَّابِعِينَ وَمَنْ بَعْدَهُمْ، مِثْلِ: سُفْيَانَ الثَّوْرِيِّ، وَالشَّافِعِيِّ، وَأَحْمَدَ، وَإِسْحَاقَ، قَالُوا: إِذَا الْتَقَى الْخِتَانَانِ وَجَبَ الْغُسْلُ. ([1])

**ترجمه** : د عائشه رضي الله عنها نه مروي دي چي نبي کريم صلي الله عليه وسلم فرمانيل کله چي شرمګاه د شرمګاه سره يوځاي شي نو غسل واجب شي

امام ترمذي وايي چي د عائشه حديث حسن صحيح دی، او حديث د عائشي په ډيرو سندونو د رسول الله نه مرفوعاهم مروي دی. کله چي شرمګاه د شرمګاه سره يوځاي شي نو غسل واجب شي. اوداد اکثرو صحابه کرامو قول دی چي په دوئ کي ابو بکر ، او عمر او عثمان او علي او عائشه رضي الله عنهم هم شامل دي، اوداد اکثرو فقهاؤ او تابعينو قول هم دی لکه سفيان ثوري، شافعي او احمد او اسحاق دوي وايي کله چي شرمګاه د شرمګاه سره يوځاي شي نو غسل واجب شي

**تشريح**: **التقاء دختانينوموجب دغسل دي**

ختان د ښځی او سړی د ختنه (کټ کولو) ځاي دی ،دعربو عادت وو چی هغوی به د هلکانو په شان د جينکو ختنه هم کوله.ابن الهمام ليکی چی ختنه د سړو دپاره سنت ده.اود ښځو دپاره عزت. ځکه چی د مختونی ښځی سره په جماع کولو کي زيات خوند وی.سړي که ختنه پريږدی.نوهغه به مجبورولی شی.البته که په ختنه کي دهلاکت غالب ګمان وی، نو بيا به نشی مجبورولي

مسئله ده.که ختانين دواړه ضم شی او خشفه (دذکر سر) دښځی په شرمګاه کي پټ شی،نويه دواړو به غسل واجب وی.که انزال شوي وی اوکه نه وی.

---

[1] تفرد به المؤلف. وانظر ماقبله (تحفة الأشراف : ١٦١١٩)

دليل ددي قول دا حديث دی: "إذا إلتق الختان الختان وغابت الخشفة وجب الغسل أنزل اولم ينزل" يعنی کله چی دواړه ختان په خپل مينځ کي يو ځاي شی،نوغسل واجبيږی،که انزال شوي وی اوکه نه وی : دويم دليل دا دی چی په کوم ځيز حکم مرتب کيږی،هغه مخفی وی،اودهغی سبب ښکاره وی،نو هغه ظاهری سبب به د پټ ځيز قائم مقام وی،او حکم به په دغه سبب باندي مرتب وی،نودلته کي التقاء د ختانينوسبب د انزال دی،او په نفس انزال باندي دغسل ترتب دی،او هغه يوپټ ځيز دی، ځکه چی د سترګو نه پټ وی،اوکله د منی د قلت دوجی دا پته هم نه لږی چی انزال شوی دی اوکه نه دی،نو ځکه به التقاء د انزال قائم مقام وی،او دغسل ترتب به په التقاء وی په انزال به نه وی.اوکه دفرج نه علاوه ئې په دبر کي ادخال وکړو،نوهم به غسل واجب وی، ځکه چی په دی صورت کي هم کمال سببيت موجود دی،او ډير فاسقان د فرج په مقابله کي په دی لاره باندي شهوت پوره کولو ته ترجيح ورکوی، ځکه بعضی فقهاء ليکلی دی چی په مانځه کي د بی ږيری هلکانوپه برابری کي داسی مونځ فاسدوی،لکه څنګه چی د ښځو په محاذاة باندي مونځ ماتيږی،صاحب دهدايه فرمائی چی احتياطاً په مفعول به باندي هم غسل واجب دی، ځکه چی دا احتمال هم شته چی مفعول به هم خوند محسوس کړی، او منی تری خارج شی،اودا احتمال هم شته چی هغه خوند محسوس نکړی،او خروج د منی اونشی،اوطهارت کي چونکه احتياط مطلوب دی،نو ځکه په مفعول به هم احتياطاً غسل واجب دی.

ددی په خلاف که د ځناور سره د ادخال کار اوکړی شی،يا د سبيلينو نه علاوه په پتون وغيره باندي دا کار اوکړی،نود انزال نه بغير صرف په ادخال باندي غسل نه واجبيږی،د دی وجی چی په دی صورتونو کي سببيت ناقص دی، ځکه چی طبعييت سليمه ددی نه نفرت کوی.

***************

## ٨١_ بَابُ مَا جَاءَ أَنَّ الْمَاءَ مِنَ الْمَاءِ

### بابد غسل د مني وتلوپه وجه لازميږي

١١٠_ حَدَّثَنَا أَحْمَدُ بْنُ مَنِيعٍ. حَدَّثَنَا عَبْدُ اللهِ بْنُ الْمُبَارَكِ. أَخْبَرَنَا يُونُسُ بْنُ يَزِيدَ. عَنِ الزُّهْرِيِّ، عَنْ سَهْلِ بْنِ سَعْدٍ، عَنْ أُبَيِّ بْنِ كَعْبٍ. قَالَ: "إِنَّمَا كَانَ الْمَاءُ مِنَ الْمَاءِ رُخْصَةً فِي أَوَّلِ الْإِسْلَامِ. ثُمَّ نُهِيَ عَنْهَا".([1])

---

[1] سنن ابي داود/ الطهارة ٨٤ (٢١٣) . سنن ابن ماجه/الطهارة ١١١ (٩٠٦) . (تحفة الأشراف : ٢٧) . مسند احمد (١١٥/٥، ١١٦) . سنن الدارمي/الطهارة ٧٣ (٧٨٦)

**ترجمه** : د ابي بن كعب رضي الله عنه نه مروي دي چي د مني د وتلو په وجه وجوب د غسل په ابتداء د اسلام كي وو مگر بيا ممنوع شو

**تشريح : موجباب دغسل**

اول سبب په شهوت او توپ سره د منی وتل دی ،که انزال د منی د سری نه وی اوکه د ښځی نه،اوکه دخوب په حالت کي وی اوکه د ویښی په حالت کښې،په هر صورت کي غسل واجب دی،دویم: امام شافعی او امام مالك رحمه الله فرمائی چی په مطلق خروج د منی سره غسل واجبیږی،که منی په شهوت سره وتلی وی اوکه بغیر د شهوت نه،

نوکه د وزن اوچتولو دوجې منی اووتل،یا د اوچت ځاي نه په راغورځیدو سره اووتل ،یا دلرگی یا بل څه په گزار سره د شاه نه اووتل نوپه دی صورتونوکي زمونږ په نزد غسل نه واجبیږی، او دامام مالك رحمه الله او امام شافعی رحمه الله په نزدواجبیږی.

دامام مالك رحمه الله او امام شافعی رحمه الله دلیل د رسول پاك صلي الله علیه وسلم داقول دې چی "الماء من الماء" یعنی غسل په منی سره واجبیږی،دا حدیث د شهوت د قید نه مطلق دې،(دا قید په کي نشته چی په شهوت سره وتلی وی،نو غسل واجبیږی) نود "المطلق یجری علی إطلاقه" مطابق به په خپل اطلاق باقی پاتې کیږی.

زمونږ دلیل دا دې چی الله تعالی فرمائیلی دی،﴿وَإِن كُنتُمْ جُنُبًا فَاطَّهَّرُوا﴾ آیت کي د تطهیر حکم جنب ته هم شامل دې،او په لغت کي جنابت وائی،په شهوت سره د منی وتلو ته،کله چی سړې د ښځی نه خپل شهوت پوره کړی،نو عرب وائی،"أجنب الرجل" نومعلومه شوه چی د منی په شهوت سره وتل جنابت دې،نو چی انزال د منی په شهوت سره اوشی،نو غسل به واجب وی.

پاتې شو هغه حدیث کوم چی امام شافعی رحمه الله پیش کړې دې، دهغی نه جواب دا دې چی دا حدیث په شهوت سره د منی په خروج باندې محمول دې،ددی وجې چی حدیث دخپلو الفاظو په اعتبار سره عام دې، ځکه چی دا متیازو، مذی، ودی، منی ته که په شهوت وی اوکه بغیر د شهوته وی،ټولو ته شامل دې،او په اتفاق سره په حدیث کي ټول څیزونه مراد نه دی.چونکه منی چی په شهوت سره اوځی،نو په دی باندې په اتفاق سره غسل واجبیږی،نو ځکه به دا حدیث هم په دی حمل کولی شی.زمونږ د مذهب تائید د عائشه رضی الله عنها د تفسیر نه هم کیږی،کوم چی هغی د منی په باره کي کړې دې،فرمائیل یې "المنی ماء أبیض ثخین ینکسر منه الذکر" یعنی منی سپینی اوبه وی چی په هغی سره خاص اندام مراوی کیږی.اودا خبره ښکاره ده، چی مراوی توب د شهوت نه پس راځی،نو معلومه شوه چی بغیر

د شهوت نه کومی اوبه اوځی،هغه منی نه ده چې غسل پرې واجب شي.احناف علماء په دې خو متفق دي چې دغسل د وجوب دپاره دا ضروری ده چې کله منی دخپل ځاې نه یعنی شاه نه جدا شی چې په شهوت سره وی.لیکن چې کله د عضوتناسل نه بهر ته اوځی.نوپه هغه وخت کي د شهوت وجود شرط دی که نه دی ؟ نوپه دی باره کي اختلاف دې.اول:د طرفینو په نزد د منیٔ دظهور په وخت د شهوت وجود ضروری نه دې.دویم:اود امام ابو یوسف رحمه الله په نزد په هغه وخت کي هم د شهوت وجود ضروری دې.

دامام ابو یوسف رحمه الله دلیل قیاس دې چې لکه څنګه منی دخپل محل یعنی شاه نه راوځی.نوپه هغه وخت کي شهوت ضروری دې.نودغه شان د عضو تناسل نه د وتلو په وخت کي هم د شهوت وجود ضروری دې.اوجامع دا دې چې دغسل تعلق د دواړو سره دې.

د طرفینو دلیل دا دې چې د منیٔ د انفصال په وخت کي شهوت موجود وو.نود دې تقاضا ده چې غسل واجب شي.او دخروج په وخت چونکه شهوت نه وو.نوددې تقاضا ده چې غسل دې واجب نه شي.نو په دې صورت کي دغسل وجوب اوعدم وجوب دواړه احتمال شته.خومونږ په احتیاط باندې عمل وکړو او غسل مو واجب کړلو.

فائده د اختلاف داده چې یوسړی استمناء بالید اوکړله او عضوتناسل ئې اونیولو.کله چې ئې شهوت ختم شو.نو منی بغیر دشهوت نه خارج شوه.په دې صورت کي به د طرفینو په نزد غسل واجب وی.او دامام ابو یوسف رحمه الله په نزد به واجب نه وی.

انزال د باب افعال مصدر دی .نزاله (دنون سره) نه ماخوذ دې،معنی ئې ده د سړی اوبه.دلته کي دری الفاظ قابل ذکر دی.منی .مذی او ودی.اول موجب دغسل ده.اودویمه او دریمه موجب د اودس دی.په دې دری واړو کي فرق مصنف عبدالرزاق په خپل مصنف کي د قتاده او عکرمه نه نقل کړې دې.فرمائی چې منی هغه د ټوپ اوبه دی چې شهوت ورسره وی.او دهغی نه بچی پیدا کیدی شي.اومذی هغه اوبه دی چې د لوبو په وخت کي اوځی.او ودی هغه اوبه دی چې د متیازو نه پس اوځی.(عینی)علامه ابن الهمام په فتح ا لقدیر کي لیکلی دی چې یوی ښځی د عائشی رضي الله عنه نه د مذیٔ په باره کي تپوس وکړو ،نوهغوی ورته اوفرمائیل .دهر سړی نه مذی ځی.او دا په حقیقت کي دری څیزونه دی.اول مذی دویم: ودی دریم:منی.نومذی خودا ده چې سړې د خپلی بی بی سره لوبی کوی.اود هغه په عضو تناسل باندې یوڅیزښکاره شي.نوهغه دی خپل ذکر او خصیتین اووینځی.او اودس دی اوکړی.غسل دی نه کوی.او .ودی هغه ده چې کومه د متیازو نه پس راځی.دلته کي هم د خپل ذکر او خصیتینو وینځل اواودس کول واجب دی.اوغسل نه دې.او منی هغه ټینګی اوبه دی چې په شهوت سره اوځی.په دې کي غسل دې.

علامه نووي فرمائي چې مذي سپيني نرمې او ځليخناکې اوبه وي، کومې چې د لوبو په وخت په شهوت سره اوځي، ليکن ددې نه پس په طبعيت کې فتورنه راځي. صاحب د هدايه فرمائي چې مذي هغه اوبه دي چې نرمې اوسپين والې ته مائلې وي، د لوبو په وخت کې اوځي.

*****************

۱۱۱ـ حَدَّثَنَا أَحْمَدُ بْنُ مَنِيعٍ، حَدَّثَنَا عَبْدُ اللهِ بْنُ الْمُبَارَكِ، أَخْبَرَنَا مَعْمَرٌ، عَنِ الزُّهْرِيِّ بِهَذَا الإِسْنَادِ مِثْلَهُ. قَالَ أَبُو عِيسَى: هَذَا حَسَنٌ صَحِيحٌ، وَإِنَّمَا كَانَ الْمَاءُ مِنَ الْمَاءِ فِي أَوَّلِ الإِسْلَامِ، ثُمَّ نُسِخَ بَعْدَ ذَلِكَ، وَهَكَذَا رَوَى غَيْرُ وَاحِدٍ مِنْ أَصْحَابِ النَّبِيِّ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ، مِنْهُمْ أُبَيُّ بْنُ كَعْبٍ، وَرَافِعُ بْنُ خَدِيجٍ، وَالْعَمَلُ عَلَى هَذَا عِنْدَ أَكْثَرِ أَهْلِ الْعِلْمِ عَلَى أَنَّهُ إِذَا جَامَعَ الرَّجُلُ امْرَأَتَهُ فِي الْفَرْجِ وَجَبَ عَلَيْهِمَا الْغُسْلُ وَإِنْ لَمْ يُنْزِلَا. (¹)

**ترجمه** : امام ترمذي وايي چې دا حديث حسن صحيح دی . د مني د وتلو په وجه وجوب د غسل په ابتداء د اسلام کې وو مګر بيا منسوخ شو

اود بې شميره صحابه کرامو نه دا مضمون مروي دی لکه ابی بن کعب او رافع بن خديج رضي الله عنهما اود اکثرو اهل علمو په دې باندې عمل دی چې کله يو کس د خپلې ښځې سره په فرج کې جماع وکړي نو په دواړو غسل واجب کيږي اګر که انزال يې نه وي شوی

***************

۱۱۲ـ حَدَّثَنَا عَلِيُّ بْنُ حُجْرٍ، أَخْبَرَنَا شَرِيكٌ، عَنْ أَبِي الْجَحَّافِ، عَنْ عِكْرِمَةَ، عَنِ ابْنِ عَبَّاسٍ، قَالَ: "إِنَّمَا الْمَاءُ مِنَ الْمَاءِ فِي الِاحْتِلَامِ". قَالَ أَبُو عِيسَى: سَمِعْتُ الْجَارُودَ، يَقُولُ: سَمِعْتُ وَكِيعًا، يَقُولُ: لَمْ نَجِدْ هَذَا الْحَدِيثَ إِلَّا عِنْدَ شَرِيكٍ. قَالَ أَبُو عِيسَى: وَأَبُو الْجَحَّافِ اسْمُهُ: دَاوُدُ بْنُ أَبِي عَوْفٍ، عَنْ سُفْيَانَ الثَّوْرِيِّ، قَالَ: حَدَّثَنَا أَبُو الْجَحَّافِ وَكَانَ مَرْضِيًّا. قَالَ أَبُو عِيسَى: وَفِي الْبَابِ عَنْ عُثْمَانَ بْنِ عَفَّانَ، وَعَلِيِّ بْنِ أَبِي طَالِبٍ، والزبير، وطلحة، وأبي أيوب، وأبي سعيد، عَنِ النَّبِيِّ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ، أَنَّهُ قَالَ: "الْمَاءُ مِنَ الْمَاءِ".(²)

**ترجمه** : د ابن عباس رضي الله عنهما نه مروي دي چې صرف د مني په وتلو باندې غسل واجب کيږي د احتلام په صورت کې

---

[1] تفرد به المؤلف (تحفة الأشراف : ٦٠٨٠)

[2] تفرد به المؤلف (تحفة الأشراف : ٦٠٨٠)

امام ترمذي وايي په دي باب کي د عثمان بن عفان، علي بن ابي طالب ، زبير، طلحه، ابو ايوب، او ابو سعيد خدري رضي الله عنهم د رسول الله صلي الله عليه وسلم نه مرفوعاً روايات نقل کړي دي، چي رسول الله فرمائيلي دي چي د مني په وتلو باندي غسل واجب کيږي.

****************

## ٨٢_ بَابُ مَا جَاءَ فِيمَنْ يَسْتَيْقِظُ فَيَرَى بَلَلاً وَلاَ يَذْكُرُ احْتِلاَمًا

### حکم دهغه چا چي د خوب نه بيدارشي او لوندوالي ووينى او احتلام ورته ياد نه وي

١١٣_ حَدَّثَنَا أَحْمَدُ بْنُ مَنِيعٍ. حَدَّثَنَا حَمَّادُ بْنُ خَالِدٍ الْخَيَّاطُ. عَنْ عَبْدِ اللَّهِ بْنِ عُمَرَ هُوَ الْعُمَرِيُّ. عَنْ عُبَيْدِ اللَّهِ بْنِ عُمَرَ. عَنِ الْقَاسِمِ بْنِ مُحَمَّدٍ. عَنْ عَائِشَةَ. قَالَتْ: سُئِلَ رَسُولُ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ عَنِ الرَّجُلِ يَجِدُ الْبَلَلَ وَلَا يَذْكُرُ احْتِلَامًا. قَالَ: " يَغْتَسِلُ ". وَعَنِ الرَّجُلِ يَرَى أَنَّهُ قَدِ احْتَلَمَ وَلَمْ يَجِدْ بَلَلًا. قَالَ: " لَا غُسْلَ عَلَيْهِ ". قَالَتْ أُمُّ سَلَمَةَ: يَا رَسُولَ اللَّهِ هَلْ عَلَى الْمَرْأَةِ تَرَى ذَلِكَ غُسْلٌ ؟ قَالَ: " نَعَمْ إِنَّ النِّسَاءَ شَقَائِقُ الرِّجَالِ ". قَالَ أَبُو عِيسَى: وَإِنَّمَا رَوَى هَذَا الْحَدِيثَ عَبْدُ اللَّهِ بْنُ عُمَرَ. عَنْ عُبَيْدِ اللَّهِ بْنِ عُمَرَ. حَدِيثَ عَائِشَةَ فِي الرَّجُلِ يَجِدُ الْبَلَلَ وَلَا يَذْكُرُ احْتِلَامًا. وَعَبْدُ اللَّهِ بْنُ عُمَرَ. ضَعَّفَهُ يَحْيَى بْنُ سَعِيدٍ مِنْ قِبَلِ حِفْظِهِ فِي الْحَدِيثِ. وَهُوَ قَوْلُ غَيْرِ وَاحِدٍ مِنْ أَهْلِ الْعِلْمِ مِنْ أَصْحَابِ النَّبِيِّ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ وَالتَّابِعِينَ: إِذَا اسْتَيْقَظَ الرَّجُلُ فَرَأَى بِلَّةً أَنَّهُ يَغْتَسِلُ. وَهُوَ قَوْلُ سُفْيَانَ الثَّوْرِيِّ. وَأَحْمَدَ. وَقَالَ بَعْضُ أَهْلِ الْعِلْمِ مِنَ التَّابِعِينَ: إِنَّمَا يَجِبُ عَلَيْهِ الْغُسْلُ إِذَا كَانَتِ الْبِلَّةُ بِلَّةَ نُطْفَةٍ. وَهُوَ قَوْلُ الشَّافِعِيِّ. وَإِسْحَاقَ. وَإِذَا رَأَى احْتِلَامًا وَلَمْ يَرَ بِلَّةً. فَلَا غُسْلَ عَلَيْهِ عِنْدَ عَامَّةِ أَهْلِ الْعِلْمِ. (1)

**ترجمه** : د عائشه رضي الله عنها نه مروي دي چي د رسول الله صلي الله عليه وسلم نه دداسي کس په باره کي تپوس وکړی شو چي د خوب نه بيدار شي او لوند والي ووينى او احتلام ورته ياد نه وي، نو رسول الله ورته اوفرمائيل چي غسل به کوي، اود هغه چا متعلق ورنه سوال وکړی شو چي احتلام ورته ياد وي ليکن لوندوالي ونه ويني ورته يي وفرمائيل چي په ده باندي غسل نشته، ام سلمه رضي الله عنها عرض وکړو چي که يوي ښځي ته احتلام عارض شي نو ايا هغه به هم غسل کوي؟ رسول الله اوفرمائيل ښځي (په شرعي احکامو کي) د سړو پشان دي.

---

[1] سنن ابي داود/الطهارة ٩٥ (٢٣٦) . سنن ابن ماجه/الطهارة ١١٢ (٦١٢) . (تحفة الأشراف : ١٧٥٣٩) . مسند احمد (٦/٢٥٦).

Scanned with C

امام ترمذي وايي چي د عائشه رضي الله عنها دا روايت چي لوند والي ويني او احتلام ورته ياد نه وي صرف عبد الله بن عمر عمري د عبيد الله نه نقل کړی دی او يحي بن سعيد د عبد الله بن عمر عمري د حافظي په سلسله کي تضعيف کړی دی، د اکثرو صحابه کرامو او تابعينو هم دا قول دی چي که يوکس لوندوالي ويني او احتلام ورته ياد نه وي نو غسل به کوي، سفيان ثوري او امام احمد هم په دي باندي قول کړی دی. په تابعينو کي بعض اهل علم وايي چي غسل په هغه وخت کي واجب کيږي چي کله لوندوالي دنطفي وي . دامام شافعي او اسحاق بن راهويه هم دا قول دی، او چي احتلام يي وشي او لوندوالي نه وي نو د اکثرو اهل علمو په نزد په داسي کس باندي غسل کول نشته.

**حل لغات** احتلم يحتلم احتلاما مصدر د باب تفعيل دي په معني د خوب ليدلو

**تشريح** : "ان النساء شقائق الرجال" شقائق په معني د مشابه لرونکي دی مطلب دادي چي ښځي په خلقت او طبيعت کي د سړو پشان دي اوددوي سره مشابه دي څنګه چي سړو ته احتلام عارض کيږي داسي ښځو ته هم عارض کيږي.مګر دسړو په نسبت د ښځو د احتلام وقوع کم وي ، ښځو ته اکثر په پوخ عمر کي احتلام عارض کيږي

***************

## ٨٣_ بَابُ مَا جَاءَ فِي الْمَنِيِّ وَالْمَذْيِ

### دمني او مذي بيان

١١٤_ حَدَّثَنَا مُحَمَّدُ بْنُ عَمْرٍو السَّوَّاقُ الْبَلْخِيُّ، حَدَّثَنَا هُشَيْمٌ، عَنْ يَزِيدَ بْنِ أَبِي زِيَادٍ. ح قَالَ: وحَدَّثَنَا مَحْمُودُ بْنُ غَيْلَانَ، حَدَّثَنَا حُسَيْنٌ الْجُعْفِيُّ، عَنْ زَائِدَةَ، عَنْ يَزِيدَ بْنِ أَبِي زِيَادٍ، عَنْ عَبْدِ الرَّحْمَنِ بْنِ أَبِي لَيْلَى، عَنْ عَلِيٍّ، قَالَ: سَأَلْتُ النَّبِيَّ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ، عَنِ الْمَذْيِ، فَقَالَ: " مِنَ الْمَذْيِ الْوُضُوءُ، وَمِنَ الْمَنِيِّ الْغُسْلُ ". قَالَ: وَفِي الْبَابِ عَنِ الْمِقْدَادِ بْنِ الْأَسْوَدِ، وَأُبَيِّ بْنِ كَعْبٍ. قَالَ أَبُو عِيسَى: هَذَا حَسَنٌ صَحِيحٌ، وَقَدْ رُوِيَ عَنْ عَلِيِّ بْنِ أَبِي طَالِبٍ، عَنِ النَّبِيِّ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ مِنْ غَيْرِ وَجْهٍ: مِنَ الْمَذْيِ الْوُضُوءُ وَمِنَ الْمَنِيِّ الْغُسْلُ، وَهُوَ قَوْلُ عَامَّةِ أَهْلِ الْعِلْمِ مِنْ أَصْحَابِ النَّبِيِّ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ وَالتَّابِعِينَ وَمَنْ بَعْدَهُمْ، وَبِهِ يَقُولُ سُفْيَانُ، وَالشَّافِعِيُّ، وَأَحْمَدُ، وَإِسْحَاقَ.(١)

---

[1] سنن ابن ماجه/الطهارة ٧٠ (٥٠٣) . مسند احمد (١/ ٨٧، ١١٠، ١١٢، ١٢١) . (تحفة الأشراف : ١٠٢٢٥) . وراجع أيضا: صحيح البخاري/ الغسل ١٣ (٢٦٩) . سنن ابي داود/ الطهارة ٨٣ (٢٠٦) . سنن النسائي/الطهارة ١١٢ (١٥٢) . والغسل ٢٨ (٤٣٦) . مسند احمد (١/ ٨٢، ١٠٨) .

**ترجمه** : د علي رضي الله عنه نه روايت دي چي د رسول الله صلي الله عليه وسلم نه مي دمذي متعلق تپوس وکړو نو راته يي اوفرمائيل چي دمذي خارجيدو په صورت کي اودس کول دي، اود مني خارجيدو په صورت کي غسل کول دي

امام ترمذي وايي چي دا حديث حسن صحيح دی اوپه دي باب کي د مقداد بن اسود او ابی بن کعب رضي الله عنهما نه هم احاديث وارد دی ، دا حديث د علي رضي الله عنه نه په متعددو سندونو مرفوعاً منقول دي چي دمذي خارجيدو په صورت کي اودس کول دي، اود مني خارجيدو په صورت کي غسل کول دي په صحابه کرامو او تابعينو د اکثرو هم دا قول دي . سفيان ثوري او شافعي او احمد او اسحاق رحمهم الله هم په دي باندي قول کړی دی.

**تشريح : دمذي او ودي په وتلو د اودس وجوب**

عائشه رضی الله عنها "المنی ماء أبيض ثخين ينكسر منه الذكر" يعنی منی سپنی اوبه وی چی په هغی سره خاص اندام مړاوی کيږی،اودا خبره ښکاره ده. چی مړاوی توب د شهوت نه پس راځی،نو معلومه شوه چی بغير د شهوت نه کومی اوبه اوځی.هغه منی نه ده چی غسل پری واجب شی.احناف علماء په دی خو متفق دی چی دغسل د وجوب دپاره دا ضروری ده چی کله منی دځپل ځاي نه يعنی شاه نه جدا شی چی په شهوت سره وی.ليکن چی کله د عضوتناسل نه بهر ته اوځی،نوپه هغه وخت کي د شهوت وجود شرط دی که نه دی ؟ نوپه دی باره کي اختلاف دی،اول:د طرفينو په نزد د منیٔ دظهور په وخت د شهوت وجود ضروری نه دی،دويم:اود امام ابو يوسف رحمه الله په نزد په هغه وخت کي هم د شهوت وجود ضروری دی.

دامام ابو يوسف رحمه الله دليل قياس دی چی لکه څنګه منی دځپل محل يعنی شاه نه راوځی،نوپه هغه وخت کي شهوت ضروری دی،نودغه شان د عضو تناسل نه د وتلو په وخت کي هم د شهوت وجود ضروری دی،اوجامع دا دی چی دغسل تعلق د دواړو سره دی.

د طرفينو دليل دا دی چی د منیٔ د انفصال په وخت کي شهوت موجود وو .نود دی تقاضا ده چی غسل واجب شی،او دخروج په وخت چونکه شهوت نه وو .نوددی تقاضا ده چی غسل دی واجب نه شی،نو په دی صورت کي دغسل وجوب اوعدم وجوب دواړه احتمال شته،خومونږ په احتياط باندي عمل وکړو او غسل مو واجب کړلو.

فائده د اختلاف داده چی يوسړی استمناء باليد اوکړله او عضوتناسل ئې اونيولو .کله چی ئې شهوت ختم شو،نو منی بغير دشهوت نه خارج شوه،په دی صورت کي به د طرفينو په نزد غسل واجب وی،او دامام ابو يوسف رحمه الله په نزد به واجب نه وی.

انزال د باب افعال مصدر دی ،نزاله (دنون سره) نه ماخوذ دې.معنی ئې ده د سړی اوبه.دلته کي دری الفاظ قابل ذکر دی.منی ،مذی او ودی.اول موجب دغسل ده،اودویمه او دریمه موجب د اودس دی.په دی دری واړو کي فرق مصنف عبدالرزاق په خپل مصنف کي د قتاده او عکرمه نه نقل کړې دې.فرمائی چی منی هغه د تبوپ اوبه دی چی شهوت ورسره وی.او دهغی نه بچی پیدا کیدی شی،اومذی هغه اوبه دی چی د لوبو په وخت کي اوخی.او ودی هغه اوبه دی چی د متیازو نه پس اوخی.(عینی)علامه ابن الهمام په فتح ا لقدیر کي لیکلی دی چی یوی ښځی د عائشی رضي الله عنه نه د مذئ په باره کي تپوس وکړو.نوهغوی ورته اوفرمائیل ،دهر سړی نه مذی خی.او دا په حقیقت کي دری څیزونه دی.اول مذی دویم: ودی دریم: منی،نومذی خودا ده چی سړې د خپلی بی بی سره لوبی کوی.اود هغه په عضو تناسل باندې یوڅیزښکاره شی.نوهغه دی خپل ذکر او خصیتین اووینځی.او اودس دی اوکړی،غسل دی نه کوی.او،ودی هغه ده چی کومه د متیازو نه پس راخی.دلته کي هم د خپل ذکر او خصیتینو وینځل اواودس کول واجب دی.اوغسل نه دې.او منی هغه تینګی اوبه دی چی په شهوت سره اوخی،په دی کي غسل دې.

علامه نووی فرمائی چی مذی سپینی نرمی او ځلیخناکی اوبه وی.کومی چی د لوبو په وخت په شهوت سره اوخی.لیکن ددی نه پس په طبعیت کي فتورنه راخی. صاحب د هدایه فرمائی چی مذی هغه اوبه دی چی نرمی اوسپین والی ته مائلی وی.د لوبو په وخت کي اوخی.

د ودي او مذي د وتلو په صورت کي غسل واجب نه دې،بلکه اودس واجب دې،دلیل د رسول پاك صلي الله علیه وسلم ارشاد دې چی "کل فحل یمذی وفیه الوضوء".

امام احمد رحمه الله په یو روایت کي په دی دواړو د غسل د وجوب قائل دې.نو دلته کي ددی دواړو ذکر د امام احمد رحمه الله د قول د تردید دپاره ذکر شوې دې.

سوال : چی کله د ماقبل نه دا معلومه شوه چی "کل ما خرج من السبیلین" ناقض د اودس دی.نو په هغی کي دمذئ او ودئ ذکر هم موجود وو.نودی ځاي کي ددی د ذکر کولو څه ضرورت وو؟ ددی دواړو ذکر ئې صراحةً وکړو.دامام مالك رحمه الله د قول د تردید دپاره. ځکه چی امام مالك رحمه الله ددی دواړو په وتلو د اودس د وجوب قائل نه دې

دریم سوال دا کیږی چی د ودئ وتلو نه پس اودس ځنګه کیدی شی.حالانکه دا خو د متیازو د وتلونه پس خارجیږی،نو اودس د ودی د وتلو نه وړاندې د متیازو په وتلو سره واجبیږی.د ودئ په دی کي څه دخل نشته؟

ددی صورت دا دې چی متیازی اوکړی،بیا اودس اوکړی.اوبیا ودی اوخی،نوپه دغه کس دوباره اودس کول واجب شو.

****************

## ٨٤_ بَابُ مَا جَاءَ فِي الْمَذْيِ يُصِيبُ الثَّوْبَ

### په مذي د ککنده شوي جامي بيان

١١٥_ حَدَّثَنَا هَنَّادٌ، حَدَّثَنَا عَبْدَةُ، عَنْ مُحَمَّدِ بْنِ إِسْحَاقَ، عَنْ سَعِيدِ بْنِ عُبَيْدٍ هُوَ ابْنُ السَّبَّاقِ، عَنْ أَبِيهِ، عَنْ سَهْلِ بْنِ حُنَيْفٍ، قَالَ: كُنْتُ أَلْقَى مِنَ الْمَذْيِ شِدَّةً وَعَنَاءً فَكُنْتُ أُكْثِرُ مِنْهُ الْغُسْلَ، فَذَكَرْتُ ذَلِكَ لِرَسُولِ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ وَسَأَلْتُهُ عَنْهُ، فَقَالَ: "إِنَّمَا يُجْزِئُكَ مِنْ ذَلِكَ الْوُضُوءُ". فَقُلْتُ: يَا رَسُولَ اللَّهِ كَيْفَ بِمَا يُصِيبُ ثَوْبِي مِنْهُ؟ قَالَ: "يَكْفِيكَ أَنْ تَأْخُذَ كَفًّا مِنْ مَاءٍ فَتَنْضَحَ بِهِ ثَوْبَكَ حَيْثُ تَرَى أَنَّهُ أَصَابَ مِنْهُ". قَالَ أَبُو عِيسَى: هَذَا حَسَنٌ صَحِيحٌ، وَلَا نَعْرِفُهُ إِلَّا مِنْ حَدِيثِ مُحَمَّدِ بْنِ إِسْحَاقَ فِي الْمَذْيِ مِثْلَ هَذَا. وَقَدِ اخْتَلَفَ أَهْلُ الْعِلْمِ فِي الْمَذْيِ يُصِيبُ الثَّوْبَ. فَقَالَ بَعْضُهُمْ: لَا يُجْزِئُ إِلَّا الْغَسْلُ، وَهُوَ قَوْلُ الشَّافِعِيِّ، وَإِسْحَاقَ. وَقَالَ بَعْضُهُمْ: يُجْزِئُهُ النَّضْحُ، وقَالَ أَحْمَدُ: أَرْجُو أَنْ يُجْزِئَهُ النَّضْحُ بِالْمَاءِ. (1)

**ترجمه** : د سهل بن حنيف رضي الله عنه نه روايت دی فرمائي چي زما نه به مني په شدت سره خارجيدله او قصدا به مي هم خارجوله او زما اکثر غسل کول ددي په وجه وونو ما يو خل خپله معامله رسول الله صلي الله عليه وسلم ته ذکر کړله او په دي باره کي مي ورنه تپوس وکړو، راته يي اوفرمائيل په مذکوره صورت کي ستا دپاره اودس کول هم کافي دي. ما عرض وکړو اي د الله رسولله که زما جامه هم ورباندي پليته شوي وي نو دهغي د پاکولو څه حکم دی؟ ستا دپاره د جامو په پليتي شوي حصي باندي يو چونګ اوبه پونه کول هم کافي دي

امام ترمذي وايي چي دا حديث حسن صحيح دی ، اود مذي باره کي مونږ ته صرف همدا د محمد بن اسحاق روايت معلوم دی ، مګر په مذي باندي د پليتي جامي د حکم باره کي د اهل علمو اختلاف دی ، بعضي اهل علم وايي چي وينځل يي ضروري دي. د امام شافعي او اسحاق هم دا قول دي، اود بعضو په نزد په دي باندي د اوبو پونه کول هم کافي دي، امام احمد بن حنبل وايي چي زما په خيال د اوبو پونه کول هم کافي دي

[1] سنن ابي داود/الطهارة ٨٣ (٢١٠) ، سنن ابن ماجه/الطهارة ٧٠ (٥٠٦) ، (تحفة الأشراف : ٣٦٦٤) ، مسند احمد (٣/٤٨٥) ، سنن الدارمي/الطهارة ٤٩ (٧٥٠) (حسن)

Scanned with

**تشريح** : د علي رضي الله عنه په زير بحث حديث کي مذکور دي چي ما د رسول الله نه د مذي باره کي تپوس وکړو ، په بل روايت کي دي چي عمار د علي په حکم تپوس وکړو ، په دريم کي دي چي مقداد د علي په حکم تپوس وکړو ، دا روايتونه ظاهرا متعارض ښکاري؟
جواب علي رضي الله عنه مقداد ته د مسئلي معلولومولو حکم کړي وو ، دامر په حيثيت علي بن ابي طالب نسبت درست دی او د مامور په حيثيت يي عمار او مقداد ته نسبت درست دی، فلا تعارض.
په دي مسئله د اهل اسلام اتفاق دی چي مذي نجس دی، مگر په طريقه دتطهير کي اختلاف دی، دجمهورو په نزد به دا جامه وينځلی شي د نوروو نجاستونو پشان. او امام احمد وايي وينځل يي ضروري نه دي اوبه وربانذي پونه کول هم کافي دي اود ددي دپاره د زيربحث حديث نه استدلال کوي.

***************

## ٨٥_ بَابُ مَا جَاءَ فِي الْمَنِيِّ يُصِيبُ الثَّوْبَ

### په مني د ککنده شوي جامي بيان

١١٦_ حَدَّثَنَا هَنَّادٌ، حَدَّثَنَا أَبُو مُعَاوِيَةَ، عَنِ الأَعْمَشِ، عَنْ إِبْرَاهِيمَ، عَنْ هَمَّامِ بْنِ الحَارِثِ، قَالَ: "ضَافَ عَائِشَةَ ضَيْفٌ، فَأَمَرَتْ لَهُ بِمِلْحَفَةٍ صَفْرَاءَ، فَنَامَ فِيهَا فَاحْتَلَمَ، فَاسْتَحْيَا أَنْ يُرْسِلَ بِهَا وَبِهَا أَثَرُ الِاحْتِلَامِ، فَغَمَسَهَا فِي المَاءِ ثُمَّ أَرْسَلَ بِهَا، فَقَالَتْ عَائِشَةُ: لِمَ أَفْسَدَ عَلَيْنَا ثَوْبَنَا إِنَّمَا كَانَ يَكْفِيهِ أَنْ يَفْرُكَهُ بِأَصَابِعِهِ، وَرُبَّمَا فَرَكْتُهُ مِنْ ثَوْبِ رَسُولِ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ بِأَصَابِعِي". قَالَ أَبُو عِيسَى: هَذَا حَسَنٌ صَحِيحٌ، وَهُوَ قَوْلُ غَيْرِ وَاحِدٍ مِنْ أَصْحَابِ النَّبِيِّ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ وَالتَّابِعِينَ وَمَنْ بَعْدَهُمْ مِنَ الفُقَهَاءِ، مِثْلِ: سُفْيَانَ الثَّوْرِيِّ، وَالشَّافِعِيِّ، وَأَحْمَدَ، وَإِسْحَاقَ، قَالُوا فِي المَنِيِّ يُصِيبُ الثَّوْبَ: يُجْزِئُهُ الفَرْكُ وَإِنْ لَمْ يُغْسَلْ، وَهَكَذَا رُوِيَ عَنْ مَنْصُورٍ، عَنْ إِبْرَاهِيمَ، عَنْ هَمَّامِ بْنِ الحَارِثِ، عَنْ عَائِشَةَ، مِثْلَ رِوَايَةِ الأَعْمَشِ، وَرَوَى أَبُو مَعْشَرٍ هَذَا الحَدِيثَ، عَنْ إِبْرَاهِيمَ، عَنِ الأَسْوَدِ، عَنْ عَائِشَةَ، وَحَدِيثُ الأَعْمَشِ أَصَحُّ.[1]

---

[1] سنن ابن ماجه/الطهارة ٨٢ (٥٣١) . مسند احمد (٦/٤٣) . (تحفة الأشراف : ١٧٦٤٤) . وانظر أيضا: صحيح مسلم/الطهارة ٣٢ (٢٨٨) . سنن ابن ماجه/الطهارة ١٨٨ (٢٩٨) . سنن ابن ماجه/الطهارة ٨٢ (٥٣٤) . مسند احمد (٦/٦٧، ١٢٥، ١٣٥، ٢١٣، ٢٣٩، ٢٦٣، ٢٨٠)

**ترجمه** : د همام بن حارث نه مروي دي چي د ام المؤمنين عائشه رضي الله عنها كره يو ميلمه لاړو نو هغي ورته د پخانولو دپاره د يو زيړ څادر ورکولو حکم وکړو، نو هغه په دي کي اوده شو اود احتلام مسئله ورته پيښه شوه نو هغه شرم محسولو چي په همداسي ګنده حالات کي څادر واپس وليږي، چنانچي هغه په اوبو ووينځل او بيا يي اوليږل ، ام المؤمنين اوفرمائيل ده زمونږ څادر ولي خراب کړي دی؟ دا به يي پخپلو ګوتو ګرولی وو، بس همدومره کافي وه، اکثر به ما د رسول الله صلي الله عليه وسلم جامي هم داسي په ګوتو ګرولي

امام ترمذي وايي دا حديث حسن صحيح دی، په صحابه کرامو کي د اکثرو اوبعضي تابعينو اوپه فقهاؤ کي د سفيان ثوري ، شافعي او احمد او اسحاق بن راهويه (رحمهما الله) هم دا قول دی چي جامي کله په مني ګنده شي نو که دا ونه وينځي شي او صرف وګرولی شي نو دومره هم دتطهير دپاره کفايت کوي.

**تشريح** : په دي مسئله کي اختلاف دی چي مني پاکه ده او که ناپاکه ده؟ په دي باره کي د اهل علمو دوه مذاهب دي.

١ د امام ابو حنيفه او امام مالك (رحمهما الله) په نزد نجسه او پليته ده،

٢ د امام احمد او امام شافعي (رحمهما الله) په نزد مني پاکه ده

د فريق اول ړومبي دليل په قراني ايت کي وارد دي انا خلقناکم من ماء مهين ،مني ته ماء مهين ونيلي شوي دي او دا ورته دنجاست په وجه ويلي شوي دي.

٢ـ دليل په ابوداود کي د معاويه رضي الله عنه حديث دی، چي هغه د خپلي خور ام حبيبه نه سوال وکړو چي ايا رسول الله به د جماع په جامو کي مونځ کولو؟ ام حبيبه ووئيل هو خو ـ ي دګندګۍ اثر به ورباندي پروت نه وو، په دي حديث کي مني ته دنجاست په وجه ګندګي ونيلي شوي ده لکه چي په قران کي هم حيض ته ګندګي ونيلي شوي ده

مګر فريق ثاني په دي مسئله کي دحديث الباب نه استدلال کړی دی ، ددينه معلوميږي چي مني پاکه ده کنه نو په ګرولو به نه پاکيدله بلکه وينځل به يي ضروري وو

بل دليل د انبياؤ تخليق دمني نه شوي دی که مني ته نجس اووايو نو د انبياء عليهم السلام توهين لازميږي.

جواب دتخليق په صورت کي انقلاب دماهيت دی اوهغه داسي چي د مني نه علقه جوړه شي او دعلقي مضغه جوړه شي اوقاعده داده چي په انقلاب سره د يو شي د ماهيت حکم بدليږي دارنګي د مني نه وينه جوړيږي او وينه بالاتفاق نجسه ده

من اراد البسط فليراجع الي کتب الفقه والله اعلم

*****************

## ٨٦_ بَابُ غَسْلِ الْمَنِيِّ مِنَ الثَّوْبِ

١١٧_ حَدَّثَنَا أَحْمَدُ بْنُ مَنِيعٍ، قَالَ: حَدَّثَنَا أَبُو مُعَاوِيَةَ، عَنْ عَمْرِو بْنِ مَيْمُونِ بْنِ مِهْرَانَ، عَنْ سُلَيْمَانَ بْنِ يَسَارٍ، عَنْ عَائِشَةَ " أَنَّهَا غَسَلَتْ مَنِيًّا مِنْ ثَوْبِ رَسُولِ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ ". قَالَ أَبُو عِيسَى: هَذَا حَسَنٌ صَحِيحٌ، وَفِي الْبَابِ عَنِ ابْنِ عَبَّاسٍ، وَحَدِيثُ عَائِشَةَ أَنَّهَا غَسَلَتْ مَنِيًّا مِنْ ثَوْبِ رَسُولِ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ. لَيْسَ بِمُخَالِفٍ لِحَدِيثِ الْفَرْكِ. لِأَنَّهُ وَإِنْ كَانَ الْفَرْكُ يُجْزِئُ فَقَدْ يُسْتَحَبُّ لِلرَّجُلِ أَنْ لَا يُرَى عَلَى ثَوْبِهِ أَثَرُهُ، قَالَ ابْنُ عَبَّاسٍ: الْمَنِيُّ بِمَنْزِلَةِ الْمُخَاطِ فَأَمِطْهُ عَنْكَ وَلَوْ بِإِذْخِرَةٍ. (1)

**ترجمه** : د ام المؤمنين عائشه رضي الله عنها نه مروي دي چي ما درسول الله صلي الله عليه وسلم د جامو نه مني وينځلي وه.

امام ترمذي وايي چي دا حديث حسن صحيح دی، اوپه دي باب کي د ابن عباس رضي الله عنه نه هم يو روايت وارد دی.اود عائشي دا حديث د هغي د ګرولو والاحديث سره معارض نه دی، ځکه چي ګرول کافي دي، ليکن د سړي دپاره دا خوښولی شي چي دده په جامو دي دده څه اثر نه ښکاري ځکه چي سړي خو د خلقو په مجلسونو کي کيني ، د ابن عباس بيان دی چي مني د پوزي د ترينګو اوبو پشان وي، لهذا دا به پخپله پاکوئ اګر که اذخر (ګياه) سره وي

***************

## ٨٧_ بَابُ مَا جَاءَ فِي الْجُنُبِ يَنَامُ قَبْلَ أَنْ يَغْتَسِلَ

### د غسل کولو نه مخکي په جنابت کي د اوده کيدو بيان

١١٨_ حَدَّثَنَا هَنَّادٌ، حَدَّثَنَا أَبُو بَكْرِ بْنُ عَيَّاشٍ، عَنِ الْأَعْمَشِ، عَنْ أَبِي إِسْحَاقَ، عَنِ الْأَسْوَدِ، عَنْ عَائِشَةَ قَالَتْ: "كَانَ رَسُولُ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ يَنَامُ وَهُوَ جُنُبٌ وَلَا يَمَسُّ مَاءً". (2)

**ترجمه** : د ام المؤمنين عائشه رضي الله عنها نه مروي دي چي رسول الله به د جنابت په حال کي اوده شو او اوبو له به يي لاس نه وو ور وړی.

---

[1] صحيح البخاري/الوضوء ٦٣ (٢٢٩) ، و٦٥ (٢٣٢) . صحيح مسلم/الطهارة ٣٢ (٢٨٩) . سنن ابي داود/الطهارة ١٣٦ (٣٤٣) . سنن النسائي/الطهارة ١٨٧ (٢٩٦) . سنن ابن ماجه/الطهارة ٨١ (٥٣٦) . (تحفة الأشراف : ١٦١٣٥) . مسند احمد (٦/١٣٢، ٢٣٥)

[2] سنن ابي داود/الطهارة ٩٠ (٢٢٨) . سنن ابن ماجه/الطهارة ٩٨ (٥٨١) . (تحفة الأشراف : ١٦٠٢٤)

****************

١١٩_ حَدَّثَنَا هَنَّادٌ حَدَّثَنَا وَكِيعٌ، عَنْ سُفْيَانَ، عَنْ أَبِي إِسْحَاقَ نَحْوَهُ. قَالَ أَبُو عِيسَى: وَهَذَا قَوْلُ سَعِيدِ بْنِ الْمُسَيِّبِ وَغَيْرِهِ، وَقَدْ رَوَى غَيْرُ وَاحِدٍ عَنِ الأَسْوَدِ، عَنْ عَائِشَةَ، عَنِ النَّبِيِّ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ: "أَنَّهُ كَانَ يَتَوَضَّأُ قَبْلَ أَنْ يَنَامَ"، وَهَذَا أَصَحُّ مِنْ حَدِيثِ أَبِي إِسْحَاقَ، عَنِ الأَسْوَدِ، وَقَدْ رَوَى عَنْ أَبِي إِسْحَاقَ هَذَا الْحَدِيثَ شُعْبَةُ، وَالثَّوْرِيُّ وَغَيْرُ وَاحِدٍ، وَيَرَوْنَ أَنَّ هَذَا غَلَطٌ مِنْ أَبِي إِسْحَاقَ. (١)

**ترجمه** : په همدي سند باندي دا روايت د ابو اسحاق نه هم مروي دی

امام ترمذي وايي داد سعيد بن المسيب قول هم دی. په ډيرو سندونو د عائشه رضي الله عنها نه مروي دی، چي رسول الله به د اوده کيدو نه مخکي غسل کولو. اوداد ابو اسحاق سبيعي د حديث نه کوم چي يي د اسود نه نقل کړی دی زيات صحيح دی. اود ابو اسحاق سبيعي دا حديث شعبه او ثوري نورو اهل علمو هم نقل کړي دی . اوددوی په خيال په دي کي د ابو اسحاق سبيعي نه غلطي شوي ده.

**تشريح** : دا اتفاقي مسئله ده چي دجنب دپاره بغير دغسل نه اوده کيدل جائز دي، البته اختلاف په دي کي دی چي قبل النوم اودس کول واجب دي او که نه. په دي کي دوه مذاهب دي ، دائمه اربعه په نزد واجب نه دي، اود اهل ظواهر پـه نـزد قبل النوم د جنب دپاره اودس کول واجب دي. والله اعلم.

****************

## ٨٨_ بَابُ مَا جَاءَ فِي الْوُضُوءِ لِلْجُنُبِ إِذَا أَرَادَ أَنْ يَنَامَ

١٢٠_ حَدَّثَنَا مُحَمَّدُ بْنُ الْمُثَنَّى، حَدَّثَنَا يَحْيَى بْنُ سَعِيدٍ، عَنْ عُبَيْدِ اللَّهِ بْنِ عُمَرَ، عَنْ نَافِعٍ، عَنِ ابْنِ عُمَرَ، عَنْ عُمَرَ، أَنَّهُ سَأَلَ النَّبِيَّ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ: أَيَنَامُ أَحَدُنَا وَهُوَ جُنُبٌ؟ قَالَ: "نَعَمْ إِذَا تَوَضَّأَ". قَالَ: وَفِي الْبَابِ، عَنْ عَمَّارٍ، وَعَائِشَةَ، وَجَابِرٍ، وَأَبِي سَعِيدٍ، وَأُمِّ سَلَمَةَ. قَالَ أَبُو عِيسَى: حَدِيثُ عُمَرَ أَحْسَنُ شَيْءٍ فِي هَذَا الْبَابِ وَأَصَحُّ، وَهُوَ قَوْلُ غَيْرِ وَاحِدٍ مِنْ أَصْحَابِ النَّبِيِّ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ وَالتَّابِعِينَ، وَبِهِ يَقُولُ سُفْيَانُ الثَّوْرِيُّ، وَابْنُ الْمُبَارَكِ، وَالشَّافِعِيُّ، وَأَحْمَدُ، وَإِسْحَاقُ، قَالُوا: إِذَا أَرَادَ الْجُنُبُ أَنْ يَنَامَ تَوَضَّأَ قَبْلَ أَنْ يَنَامَ. (٢)

---

[1] انظر ما قبله (تحفة الأشراف: ١٦٠٢٢)

[2] مسلم/الحيض ٦ (٣٠٦)، (تحفة الأشراف: ١٠٥٥٢)، مسند احمد (١٧/١، ٣٥)

**ترجمه** : د عمر فاروق رضي الله عنه نه مروي دي چي د رسول الله صلي الله عليه وسلم نه سوال وکړي شو چي ايا په مونږ کي يوکس د جنابت په حالت کي اوده کيدي شي؟ ورته يي اوفرمائيل: هو مګر چي اودس وکړي

امام ترمذي وايي چي په دي باب کي د عمار، عائشه، جابر، ابو سعيد، او ام سلمه رضي الله عنهم نه هم احاديث وارد دي

او حديث د عمر په دي باب صحيح ترين او عمده دی. او همدا قول په صحابه کرامو او تابعينو کي د اکثرو اهل علمو دی، او همدا قول د سفيان ثوري، ابن مبارك، شافعي، احمد او اسحاق بن راهويه دي، دوئ وايي کله چي جنب د اوده کيدو اراده وکړي نود اوده کيدو نه دي مخکي اودس وکړي.

***************

## ٨٩_ بَابُ مَا جَاءَ فِي مُصَافَحَةِ الْجُنُبِ

١٢١_ حَدَّثَنَا إِسْحَاقُ بْنُ مَنْصُورٍ، حَدَّثَنَا يَحْيَى بْنُ سَعِيدٍ الْقَطَّانُ، حَدَّثَنَا حُمَيْدٌ الطَّوِيلُ، عَنْ بَكْرِ بْنِ عَبْدِ اللَّهِ الْمُزَنِيِّ، عَنْ أَبِي رَافِعٍ، عَنْ أَبِي هُرَيْرَةَ، أَنَّ النَّبِيَّ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ لَقِيَهُ وَهُوَ جُنُبٌ، قَالَ: فَانْبَجَسْتُ أَيْ فَانْخَنَسْتُ فَاغْتَسَلْتُ، ثُمَّ جِئْتُ، فَقَالَ: "أَيْنَ كُنْتَ أَوْ أَيْنَ ذَهَبْتَ؟". قُلْتُ: إِنِّي كُنْتُ جُنُبًا قَالَ: "إِنَّ الْمُسْلِمَ لَا يَنْجُسُ". قَالَ: وَفِي الْبَابِ عَنْ حُذَيْفَةَ، وَابْنِ عَبَّاسٍ. قَالَ أَبُو عِيسَى: وَحَدِيثُ أَبِي هُرَيْرَةَ حَسَنٌ صَحِيحٌ، وَمَعْنَى قَوْلِهِ فَانْخَنَسْتُ يَعْنِي: تَنَحَّيْتُ عَنْهُ، وَقَدْ رَخَّصَ غَيْرُ وَاحِدٍ مِنْ أَهْلِ الْعِلْمِ فِي مُصَافَحَةِ الْجُنُبِ وَلَمْ يَرَوْا بِعَرَقِ الْجُنُبِ وَالْحَائِضِ بَأْسًا. (1)

**ترجمه** : د ابو هريره رضي الله عنه نه روايت دی چي رسول الله صلي الله عليه وسلم ماسره د جنابت په حالت کي ملاو شو يعني زه جنب وم، فرمايي چي سترګي مي ښتي کړي او ووتم چي غسل مي وکړل نو په خدمت نبوي کي حاضر شوم رسول الله رانه تپوس وکړو چي چرته وي؟ او که چرته تلی وی؟ د راوي شك دی ما عرض وکړو چي زه په جنابت کي وم، رسول الله اوفرمائيل مسلمان کله هم نجس نه وي.

---

1 صحيح البخاري/الغسل ٢٣ (٢٨٣)، صحيح مسلم/الحيض ٢٩ (٣٧١)، سنن ابي داود/ الطهارة ٩٢ (٢٣٠)، سنن النسائي/الطهارة ١٧٢ (٢٧٠)، سنن ابن ماجه/الطهارة ٨٠ (٥٣٤)، (تحفة الأشراف : ١٤٦٤٨)، مسند احمد (٢/٢٣٥، ٢٨٢، ٤٧١)

امام ترمذي وايي په دي باب كي د حذيفه او ابن عباس رضي الله عنهما نه هم احاديث وارد دي، او دا حديث حسن صحيح دی ، اود فانخنست منه معني تنحيت عنه ده، او بي شميره اهل علمو د جنب سره دمصافحي كولو اجازت وركړی دی ددوی په نزد د جنب او حائضي په خوله كي څه حرج نشته.

***************

## ٩٠_ بَابُ مَا جَاءَ فِي الْمَرْأَةِ تَرَى فِي الْمَنَامِ مِثْلَ مَا يَرَى الرَّجُلُ

### دښځو په خوب كي هغه څه ليدل كوم چي سړيويني

١٢٢_ حَدَّثَنَا ابْنُ أَبِي عُمَرَ. حَدَّثَنَا سُفْيَانُ بْنُ عُيَيْنَةَ. عَنْ هِشَامِ بْنِ عُرْوَةَ. عَنْ أَبِيهِ. عَنْ زَيْنَبَ بِنْتِ أَبِي سَلَمَةَ. عَنْ أُمِّ سَلَمَةَ. قَالَتْ: جَاءَتْ أُمُّ سُلَيْمٍ بِنْتُ مِلْحَانَ إِلَى النَّبِيِّ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ. فَقَالَتْ: يَا رَسُولَ اللَّهِ إِنَّ اللَّهَ لَا يَسْتَحْيِي مِنَ الْحَقِّ. فَهَلْ عَلَى الْمَرْأَةِ تَعْنِي غُسْلًا إِذَا هِيَ رَأَتْ فِي الْمَنَامِ مِثْلَ مَا يَرَى الرَّجُلُ؟ قَالَ: "نَعَمْ إِذَا هِيَ رَأَتِ الْمَاءَ فَلْتَغْتَسِلْ". قَالَتْ أُمُّ سَلَمَةَ: قُلْتُ لَهَا: فَضَحْتِ النِّسَاءَ يَا أُمَّ سُلَيْمٍ. قَالَ أَبُو عِيسَى: هَذَا حَسَنٌ صَحِيحٌ، وَهُوَ قَوْلُ عَامَّةِ الْفُقَهَاءِ أَنَّ الْمَرْأَةَ إِذَا رَأَتْ فِي الْمَنَامِ مِثْلَ مَا يَرَى الرَّجُلُ فَأَنْزَلَتْ أَنَّ عَلَيْهَا الْغُسْلَ، وَبِهِ يَقُولُ سُفْيَانُ الثَّوْرِيُّ، وَالشَّافِعِيُّ. قَالَ: وَفِي الْبَابِ عَنْ أُمِّ سُلَيْمٍ، وَخَوْلَةَ، وَعَائِشَةَ، وَأَنَسٍ.[1]

**ترجمه** : د ام سلمه رضي الله عنها بيان دی چي ام سليم بنت ملحان د رسول الله په خدمت كي حاضره شوه او عرض يي وكړو چي اي د الله رسوله الله تعالي په حق وئيلو كي شرميدل نه خوښوي، ايا په ښځو باندي هم غسل لازميږي كله چي دا په خوب كي هغه څه ويني كوم چي سړي ويني؟ رسول الله ورته اوفرمائيل هو كله چي دا لوندوالي ويني نو غسل به كوي، ام سلمه وايي چي ما ام سليم ته ووئيل اي ام سليم ښځي دي وشرمولي.

امام ترمذي وايي دا حديث حسن صحيح دی او په دي باندي اكثرو فقهاؤ قول كړی دی چي ښځي ته كله په خوب كي د سړو پشان احتلام عارض شي او انزال يي وشي نو غسل ورباندي واجب كيږي، اوپه فقهاؤ كي سفيان ثوري، شافعي هم قول كړی دی، امام ترمذي وايي چي په دي باب كي د ام سليم، خوله، عائشه او انس رضي الله عنهم نه هم احاديث وارد دي.

---

[1] صحيح البخاري/العلم ٥٠ (١٣٠) . والغسل ٢٢ (٢٨٢) . والأنبياء ١ (٣٣٢٨) . والأدب ٦٨ (٦٠٩١) . و٧٩ (٦١٢١) . صحيح مسلم/الحيض ٧ (٣١٣) . سنن النسائي/الطهارة ١٣١ (١٩٧) . سنن ابن ماجه الطهارة ١٠٧ (٦١٠) . (تحفة الأشراف : ١٨٢٦٣) . مسند احمد (٦/٢٩٢، ٣٠٢، ٣٠٦)

****************

## ٩١_ بَابُ مَا جَاءَ فِي الرَّجُلِ يَسْتَدْفِئُ بِالْمَرْأَةِ بَعْدَ الْغُسْلِ

### دغسل نه پس دښځې په غيږ کې ګرمي حاصلولو بيان

١٢٣_ حَدَّثَنَا هَنَّادٌ، حَدَّثَنَا وَكِيعٌ، عَنْ حُرَيْثٍ، عَنِ الشَّعْبِيِّ، عَنْ مَسْرُوقٍ، عَنْ عَائِشَةَ، قَالَتْ: " رُبَّمَا اغْتَسَلَ النَّبِيُّ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ مِنَ الجَنَابَةِ، ثُمَّ جَاءَ فَاسْتَدْفَأَ بِي فَضَمَمْتُهُ إِلَيَّ وَلَمْ أَغْتَسِلْ ". قَالَ أَبُو عِيسَى: هَذَا لَيْسَ بِإِسْنَادِهِ بَأْسٌ، وَهُوَ قَوْلُ غَيْرِ وَاحِدٍ مِنْ أَهْلِ الْعِلْمِ مِنْ أَصْحَابِ النَّبِيِّ وَالتَّابِعِينَ: أَنَّ الرَّجُلَ إِذَا اغْتَسَلَ فَلَا بَأْسَ بِأَنْ يَسْتَدْفِئَ بِامْرَأَتِهِ وَيَنَامَ مَعَهَا قَبْلَ أَنْ تَغْتَسِلَ الْمَرْأَةُ، وَبِهِ يَقُولُ سُفْيَانُ الثَّوْرِيُّ، وَالشَّافِعِيُّ، وَأَحْمَدُ، وَإِسْحَاقَ. (1)

**ترجمه** : د عائشه رضي الله عنها نه مروي دي فرمائي چې ډير کرته به رسول الله دجنابت نه غسل وکړل او بيا به راغلو او ماسره به ګرم شو، نو مابه هم ځان ته راجوښت کړو او مابه غسل نه وو کړی، امام ترمذي وايي ددې روايت په سند کې څه اشکال نشته . اوپه دې باندې ډيرو صحابه کرامو او تابعينو قول کړی دی، چې يو کس که د جنابت نه غسل وکړي نو هيڅ باک نشته چې دغسل نه پس د خپلې ښځې سره ګرم شي، او ورسره اوده شي، مخکې ددېنه چې ښځه غسل وکړي. اوپه دې باندې سفيان ثوري او شافعي اواحمد او اسحاق رحمهم الله هم قول کړی دی.

****************

## ٩٢_ بَابُ مَا جَاءَ فِي التَّيَمُّمِ لِلْجُنُبِ إِذَا لَمْ يَجِدِ الْمَاءَ

### داوبو د نشتوالي په وخت کې دجنب دپاره دتيمم بيان

١٢٤_ حَدَّثَنَا مُحَمَّدُ بْنُ بَشَّارٍ، وَمَحْمُودُ بْنُ غَيْلَانَ، قَالَا: حَدَّثَنَا أَبُو أَحْمَدَ الزُّبَيْرِيُّ، حَدَّثَنَا سُفْيَانُ، عَنْ خَالِدٍ الحَذَّاءِ، عَنْ أَبِي قِلَابَةَ، عَنْ عَمْرِو بْنِ بُجْدَانَ، عَنْ أَبِي ذَرٍّ، أَنَّ رَسُولَ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ، قَالَ: " إِنَّ الصَّعِيدَ الطَّيِّبَ طَهُورُ الْمُسْلِمِ، وَإِنْ لَمْ يَجِدِ الْمَاءَ عَشْرَ سِنِينَ، فَإِذَا وَجَدَ الْمَاءَ فَلْيُمِسَّهُ بَشَرَتَهُ فَإِنَّ ذَلِكَ خَيْرٌ ". وقَالَ مَحْمُودٌ فِي حَدِيثِهِ: إِنَّ الصَّعِيدَ الطَّيِّبَ وَضُوءُ الْمُسْلِمِ. قَالَ: وَفِي البَاب عَنْ أَبِي هُرَيْرَةَ، وَعَبْدِ اللَّهِ بْنِ عَمْرٍو، وَعِمْرَانَ بْنِ حُصَيْنٍ. قَالَ أَبُو عِيسَى: وَهَكَذَا رَوَى غَيْرُ وَاحِدٍ، عَنْ خَالِدٍ الحَذَّاءِ، عَنْ أَبِي قِلَابَةَ، عَنْ عَمْرِو بْنِ بُجْدَانَ، عَنْ أَبِي ذَرٍّ، وَقَدْ

---

[1] سنن ابن ماجه/الطهارة ٩٧ (٥٨٠). (تحفة الأشراف: ١٦٢٠٤)

رَوَى هَذَا الحَدِيثَ أَيُّوبُ، عَنْ أَبِي قِلَابَةَ، عَنْ رَجُلٍ مِنْ بَنِي عَامِرٍ، عَنْ أَبِي ذَرٍّ وَلَمْ يُسَمِّهِ. قَالَ: وَهَذَا حَسَنٌ صَحِيحٌ. وَهُوَ قَوْلُ عَامَّةِ الفُقَهَاءِ، أَنَّ الجُنُبَ وَالحَائِضَ إِذَا لَمْ يَجِدَا المَاءَ تَيَمَّمَا وَصَلَّيَا. وَيُرْوَى عَنِ ابْنِ مَسْعُودٍ، أَنَّهُ كَانَ لَا يَرَى التَّيَمُّمَ لِلْجُنُبِ وَإِنْ لَمْ يَجِدِ المَاءَ، وَيُرْوَى عَنْهُ أَنَّهُ رَجَعَ عَنْ قَوْلِهِ، فَقَالَ: يَتَيَمَّمُ إِذَا لَمْ يَجِدِ المَاءَ، وَبِهِ يَقُولُ سُفْيَانُ الثَّوْرِيُّ، وَمَالِكٌ، وَالشَّافِعِيُّ، وَأَحْمَدُ، وَإِسْحَاقُ. (1)

**ترجمه** : دابوذر رضي الله عنه نه مروي دي چي نبي كريم صلي الله عليه وسلم فرمائيلي دي پاكه خاوره دمسلمان دپاره پاكونكي ده اگر كه دلسو كالو پوري دي اوبه بيانه مومي مگر دي چي كله اوبه بيامومي نو بخپل بدن دي دا راواړوي او همدا دده دپاره بهتر دي. محمود بن عيلان بخپل روايت كي داسي وائي پاكه خاوره دمسلمان دپاره اودس دي

امام ترمذي وائي دا حديث حسن صحيح دي او په دي باب كي دابوهريره، عبدالله بن عمرو، او عمران بن حصين رضي الله عنهم نه هم احاديث وارد دي او داكثرو فقهاؤ همدا قول دي چي جنب يا حائضه كله اوبه نه مومي نو تيمم دي اوكړي او مونځ دي اداء كړي، عبدالله بن مسعود رضي الله عنه به دجنب دپاره تيمم درست نه گنړلو اگر كه هغه ته اوبه نه ملاويږي، دابن مسعود رضي الله عنه نه دا هم مروي دي چي هغه دخپل قول نه رجوع كړي وه او دا يي وئيلي وو چي جنب كله اوبه نه بيامومي نو تيمم به كوي، دسفيان ثوري مالك، شافعي. احمد، او اسحاق بن راهويه هم دا قول دي.

**حل لغات** : دتيمم لغوى معنى مطلقاً اراده كول دى،اود حج لغوى معنى د څه معظم او لوئي څيز ارده كول،او د شريعت په اصطلاح كي د تيمم معنى ده،د طهارت حاصلولو دپاره د پاكي خاورى اراده كول.

**تشريح** : داودس د مقدم ذكر كولو اود تيمم د موخر ذكر كولو دوه وجوهات دي اوله وجه داده چي چونكه په اوبو باندي طهارت حاصلول اصل دي،او په خاوره باندي طهارت حاصلول ددى خليفه دي،اوخليفه د اصل نه پس وى،نو په دى وجه مصنف د ترمذي دتيمم باب داودس نه پس ذكر كړلو،دويم:ددى ترتيب دويمه وجه د قرآن كريم اتباع ده. په دى وجه چى د قرآن كريم په آيت ﴿إِذَا قُمْتُمْ إِلَى الصَّلَاةِ﴾ الخ كي اودس غسل او تيمم په دى ترتيب سره ذكر شوى دى.

---

[1] سنن النسائي/الطهارة ٢٠٣ (٣٢٣)، (تحفة الأشراف: ١٩٧١)، مسند احمد (١٥٥/٥، ١٨٠)

دتیمم لغوی معنی مطلقاً اراده کول دی.اود حج لغوی معنی د څه معظم او لوئې څيز اراده کول،او د شريعت په اصطلاح کي د تیمم معنی دہ.د طهارت حاصلولو دپاره د پاکې خاورې اراده کول، شيخ الادب په حاشيه دشرح نقايه کي د علامه ابن الهمام په حوالې سره ذکرکړې دی چې د تيمم شرعی تعریف د مخ او دواړو لاسونوپه پاکه خاوره باندې مسح کول دی.د تیمم ثبوت په قرآن او سنت دواړو کي موجود دې.اول:دالله ﷻ ارشاد دي ﴿فَلَمْ تَجِدُواْ مَاء فَتَيَمَّمُواْ صَعِيدًا طَيِّبًا﴾او درسول پاك صلي الله عليه وسلم نه روايت منقول دې چې "أنه قال جعلت لى الأرض مسجدا وطهورا أينما أدركتى الصلاة تيممت وصليت" يعنی رسول پاك صلي الله عليه وسلم فرمائيلى دی،زمکه زما دپاره مسجد او پاکونکی ګرځولي شوې دہ.په کوم ځاې کي چې راباندې مونځ راشی.نو تیمم به کوم او مونځ به کوم.دویم: اوپه بل حديث کي دی چې "التراب طهور المسلم ولوإلى عشر حجج ما لم يجد الماء" يعنی خاوره د مسلمان دپاره پاکونکی ده،اګرچې ترلس کالو پورې وی چې تر څو ئې اوبه نه وی موندلې.د عائشه رضی الله عنها قصه چې په هغی کي د تیمم آیت نازل شوې وو.ددی په ځاې اووخت کي اختلاف دې، د وخت په باره کي دری اقوال دی.(١) څلورمه هجری (٢) پنځمه هجری (٣) شپږمه هجری او د ځاې په باره کي دوه اقوال دی.(١) غزوه مريسيع چې هغی ته غزوه بنی مصطلق هم وائی،(٢) غزوه ذات الرقاع.

دلته دعالمانو يوخو اقوال دي، اول قول د جمهورو دی دوي وايي: تیمم دوه ضربه دې.په یو ضرب به د مخ مسح اوکړی،اوپه بل ضرب په د دواړو لاسونو ترځنګلو پورې مسح اوکړی،دويم:امام زهری فرمائی چې دترخونو پورې به مسح کوی.اود امام مالك رحمه الله نه هم دا يو روايت دې،دريم: حسن بن زياد د امام ابوحنيفه رحمه الله نه روايت کړې دې چې دواړه لاسونه دی تر مروندونو پورې مسح کوی،دغوره مذهب دليل د رسول پاك صلي الله عليه وسلم دا قول دی چې "التيمم ضربتان ضربة للوجه وضربة للذراعين"

د ابن عمر رضي الله عنه اوجابر رضي الله عنه درسول پاك صلي الله عليه وسلم تيمم نقل منقول دې فرمائی،د دی طريقه داده چې دواړه لاسونه به زمکی ته راپربردی.بيا به دا دومره اوسنډی چې خاوره تری لری شی.بيا دی په هغی باندې مخ مسح کړی.بيا دی په دويم ځل زمکه اووهی،او دا دی اوسنډی،اودخپل ګس لاس د څلورو ګوتو په باطن دی دخپل ښی لاس ظاهر په دی طريقه مسح کړی چې د ګوتو د سوکو نه به شروع اوکړی.او ترځنګلو پورې به اورسی،او بيا دی د خپل ګس تلی په باطن باندې دخپل ښی لاس باطن د مرونده پورې مسح کړی ، اودخپل ګس لاس د ګوتی په باطن دی دخپل ښی لاس د ګوتی په ظاهر باندې راکاږی،اوبيا دی دغه شان د ګس لاس مسح اوکړی.

په دي مسئله كي دوه روايتونه دي، اول دا چې په تيمم كي استيعاب شرط دې.كه څه هم بغير د مسح نه پاتې شو،نوتيمم نه كيږي.لكه چې په اودس كي دې.دا حكم دظاهرروايت مطابق دې،دويم: حسن بن زياد دامام ابوحنيفه رحمه الله نه روايت كړې دې چې اكثر دكل قائم مقام دې،او دليل دا دې چې په ممسوحاتو كي استيعاب شرط نه وی.لكه چې د موزی او سر په مسح كي استيعاب شرط نه دې،اود ظاهر روايت وجه داده چې تيمم د اودس قائم مقام دې،هم دا وجه ده چې فقهاء فرمائيلی دی چې په تيمم كي به خلال كوی.اوكه ګوتمه ئې اچولی وی.هغه به اوباسی چې مسح پوره اوشی.اوپه اودس كي ابستيعاب شرط دې.نو چې كوم څيز ددی قائم مقام وی.هغی كي به هم استيعاب شرط وی.يعنی تيمم.كه تيمم د اودس خليفه نه وو،نو مسح به تر اوږو پورې وه، په دی وجه چې الله تعالی د تيمم په آيت كي فرمائيلی دی،﴿فامسحوا بوجوهكم وأيديكم منه﴾ دا ئې بغير دغايت نه ذكر كړ ی دې.

*****************

## ٩٣_ بَابُ مَا جَاءَ فِي الْمُسْتَحَاضَةِ

### دمستحاضي بيان

١٢٥_ حَدَّثَنَا هَنَّادٌ، حَدَّثَنَا وَكِيعٌ، وَعَبْدَةُ، وَأَبُو مُعَاوِيَةَ، عَنْ هِشَامِ بْنِ عُرْوَةَ، عَنْ أَبِيهِ، عَنْ عَائِشَةَ، قَالَتْ: جَاءَتْ فَاطِمَةُ بِنْتُ أَبِي حُبَيْشٍ إِلَى النَّبِيِّ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ. فَقَالَتْ: يَا رَسُولَ اللَّهِ إِنِّي امْرَأَةٌ أُسْتَحَاضُ فَلَا أَطْهُرُ. أَفَأَدَعُ الصَّلَاةَ؟ قَالَ: "لَا إِنَّمَا ذَلِكِ عِرْقٌ وَلَيْسَتْ بِالحَيْضَةِ. فَإِذَا أَقْبَلَتِ الحَيْضَةُ فَدَعِي الصَّلَاةَ، وَإِذَا أَدْبَرَتْ فَاغْسِلِي عَنْكِ الدَّمَ وَصَلِّي". قَالَ أَبُو مُعَاوِيَةَ فِي حَدِيثِهِ: وَقَالَ: "تَوَضَّئِي لِكُلِّ صَلَاةٍ حَتَّى يَجِيءَ ذَلِكَ الوَقْتُ". قَالَ: وَفِي البَابِ عَنْ أُمِّ سَلَمَةَ. قَالَ أَبُو عِيسَى: حَدِيثُ عَائِشَةَ جَاءَتْ فَاطِمَةُ حَسَنٌ صَحِيحٌ، وَهُوَ قَوْلُ غَيْرِ وَاحِدٍ مِنْ أَهْلِ العِلْمِ مِنْ أَصْحَابِ النَّبِيِّ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ وَالتَّابِعِينَ، وَبِهِ يَقُولُ سُفْيَانُ الثَّوْرِيُّ، وَمَالِكٌ، وَابْنُ الْمُبَارَكِ، وَالشَّافِعِيُّ: أَنَّ الْمُسْتَحَاضَةَ إِذَا جَاوَزَتْ أَيَّامَ أَقْرَائِهَا اغْتَسَلَتْ وَتَوَضَّأَتْ لِكُلِّ صَلَاةٍ. (1)

---

1 البخاري/الوضوء ٦٣ (٢٢٨)، والحيض ٨ (٣٠٦)، و١٩ (٣٢٠)، و٢٤ (٣٢٥)، و٢٨ (٣٣١)، صحيح مسلم/الحيض ١٤ (٣٣٣) سنن ابي داود/الطهارة ١٠٩ (٢٨٢)، سنن النسائي/الطهارة ١٣٥ (٢١٣)، و١٣٨ (٢١٩، ٢٢٠)، والحيض ٤ (٣٥٩)، و٦ (٣٦٥، ٣٦٤)، سنن ابن ماجه/الطهارة ١١٥ (٦٢٦)، (تحفة الأشراف: ١٦٨٠٤٠، ١٧١٩٦، ١٧٢٥٩)، مسند احمد (٦/٨٣، ١٤١، ١٨٧)، سنن الدارمي/الطهارة ٨٣ (٨٠١)

Scanned with C

**ترجمه** : دام المؤمنین عائشه رضي الله عنها نه مروي دي چي فاطمه بنت ابي حبیش دنبي کریم صلي الله علیه وسلم په خدمت کي حاضره شوه او عرض یي اوکړو چي اي دالله رسوله زه یوه داسي ښځه یم چي داستحاضي وینه مي جاري وي او په ما باندي پاکوالي نه راځي ایا زه به مونځ پرېږدم؟ رسول الله اوفرمائیل هرګز نه، دا خو یو رګ دي او حیض نه دي کله چي حیض راشي نو مونځ پرېږده او کله چي دا واپس ختم شي (یعني ورځي پوره شي) نو وینه اووینځه (غسل اوکړه) او مونځ کوه ، دابومعاویه په روایت کي دي چي رسول الله صلي الله علیه وسلم اوفرمائیل دهر مونځ دپاره اودس کوه تردي پوري چي دحیض وخت راشي.

امام ترمذي وائي حدیث دعائشه رضي الله عنها حسن صحیح دي په دي باب کي دام سلمه رضي الله عنها نه هم روایت وارد دي په صحابه کرامو او تابعینو کي دډیرو دا قول دي او سفیان ثوري مالك، ابن مبارك، او شافعي رحمهم الله هم په دي باندي قول کړي دي چي دمستحاضه ښځي دحیض ورځي چي کله تیري شي نو غسل به کوي او دهر مونځ دپاره به نوي اودس کوي.

**تشریح** : که د ښځي وینه همیشه دپاره جاری شی،نو په دی صورت کي دعامو عالمانو په نزد خامخا څه مقدار مقرر کول ضروری دی،نوکه یوه ښځه په اول ځل حائضه شی. او ددی وینه بنده نشوه،نو په هره میاشت کي به لس ورځې د حیض وی،اوباقی ورځې به طهر شمارلی شی،نوکه میاشت د دیرشو ورځو وی،نوطهر به شل ورځی وی،اوکه میاشت د یوکم دیرش ورځو وی،نو طهر به نورلس ورځې وی.

بیان دمذاهبو په طهر دمستحاضه غیر مبتد ءه کښ:اول: اوکه دیوی ښځی په اول ځل دری ورځې وینه راغله،اوبیا دوه یا دری کاله پاکه وه،اوبیا نې وینه مسلسل جاری شوه، نو په دی صورت کي به دری ورځې حیض وی،اویوکال یا دوه کاله به طهرحسابیږی،اوکه دی ته خاوند طلاق ورکړلو،نوددی عدت به دری کاله یا شپږ کاله او نهه ورځې وی،دویم:اومحمد بن شجاع وایي چي په هره میاشت کي به ددی ښځی طهر نورلس ورځې وی. په دی وجه چي دحیض اکثرموده لس ورځې دی. نو باقی پاتې شوې،نورلس ورځې.دریم: اومحمد بن مسلمه وایي چي ددی طهر اوویشت ورځې دې. په دی وجه چي د حیض ادنی موده دری ورځې ده.نوباقی د طهر دپاره اوویشت ورځې پاتې شوې،څلورم اومحمد بن ابراهیم فرمائی چي ددی ښځی طهر یوساعت کم شپږ میاشتی دې، په دی وجه چي کمه موده چي حیض په کي نه راځی،هغه شپږ میاشتی دی،یعنی د حمل ادنی موده شپږ میاشتی ده،اواصل دا دې چي د طهر موده د حمل د مودی نه کمه وی،نو په دی وجه مونږ یوساعت کم کړلو،نوددی قول په بناء ددی ښځی طهر دری ساعته کم نورلس میاشتی دې،ددی صورت به دا وی چي

ښځی ته په حالت دحیض کي طلاق ورکړې شو ،نو ددی عدت به دری اطهار او دری حیضه وی،او یو طهر یوساعت کم شپږ میاشتی دې.اویو حیض لس ورځې دې.نوچی ټول جمع شی،دری ساعته کم نولس میاشتی شوې، اوحاکم شهید فرمائیلی دی چی ددی ښځی طهر به دوه میاشتی وی،اوبعضی وعالمان وایي چی یوطهر یوساعت کم څلورمیاشتی دی،صاحب دعنایه اوکفایه اوفتح القدیرلیکلی دی چی فتوی د حاکم په قول دہ.

****************

## ٩٤ـ بَابُ مَا جَاءَ أَنَّ الْمُسْتَحَاضَةَ تَتَوَضَّأُ لِكُلِّ صَلاَةٍ

### مستحاضه به دهر مونځ دپاره نوي اودس کوي

١٢٦ـ حَدَّثَنَا قُتَيْبَةُ، حَدَّثَنَا شَرِيكٌ، عَنْ أَبِي الْيَقْظَانِ، عَنْ عَدِيِّ بْنِ ثَابِتٍ، عَنْ أَبِيهِ، عَنْ جَدِّهِ، عَنِ النَّبِيِّ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ، أَنَّهُ قَالَ فِي الْمُسْتَحَاضَةِ: " تَدَعُ الصَّلاَةَ أَيَّامَ أَقْرَائِهَا الَّتِي كَانَتْ تَحِيضُ فِيهَا ثُمَّ تَغْتَسِلُ، وَتَتَوَضَّأُ عِنْدَ كُلِّ صَلاَةٍ وَتَصُومُ وَتُصَلِّي ".(١)

**ترجمه** : عدي بن ثابت دخپل پلار نه او هغه دده دنيکه نه روايت کوي چي رسول الله صلي الله عليه وسلم دمستحاضه باره کي اوفرمائيل چي دا به په هغه ورځو کي مونځ پريږدي په کومو کي چي ددي حيض راځي او بيا به غسل کوي او داستحاضي شروع کيدو سره به دهر مونځ دپاره اودس کوي او روژې به نيسي او مونځ به جاري ساتي

****************

١٢٧ـ حَدَّثَنَا عَلِيُّ بْنُ حُجْرٍ، أَخْبَرَنَا شَرِيكٌ نَحْوَهُ بِمَعْنَاهُ. قَالَ أَبُو عِيسَى: هَذَا حَدِيثٌ قَدْ تَفَرَّدَ بِهِ شَرِيكٌ، عَنْ أَبِي الْيَقْظَانِ، قَالَ: وَسَأَلْتُ مُحَمَّدًا عَنْ هَذَا الْحَدِيثِ، فَقُلْتُ: عَدِيُّ بْنُ ثَابِتٍ، عَنْ أَبِيهِ، عَنْ جَدِّهِ جَدُّ عَدِيٍّ مَا اسْمُهُ؟ فَلَمْ يَعْرِفْ مُحَمَّدٌ اسْمَهُ، وَذَكَرْتُ لِمُحَمَّدٍ قَوْلَ يَحْيَى بْنِ مَعِينٍ أَنَّ اسْمَهُ: دِينَارٌ، فَلَمْ يَعْبَأْ بِهِ، وقَالَ أَحْمَدُ، وَإِسْحَاق في المستحاضة: إِنِ اغْتَسَلَتْ لِكُلِّ صَلاَةٍ هُوَ أَحْوَطُ لَهَا، وَإِنْ تَوَضَّأَتْ لِكُلِّ صَلاَةٍ أَجْزَأَهَا، وَإِنْ جَمَعَتْ بَيْنَ الصَّلاَتَيْنِ بِغُسْلٍ وَاحِدٍ أَجْزَأَهَا.(٢)

**ترجمه** : دشريك نه هم ددي هم معني روايت مروي دي

---

[1] سنن ابي داود/ الطهارة ١١٣ (٢٩٧) . سنن ابن ماجه/الطهارة ١١٥ (٦٢٥) . (تحفة الأشراف : ٣٥٤٢) . سنن الدارمي/الطهارة ٨٣ (٨٢٠)

[2] سنن ابي داود/ الطهارة ١١٣ (٢٩٧) . سنن ابن ماجه/الطهارة ١١٥ (٦٢٥) . (تحفة الأشراف : ٣٥٤٢) . سنن الدارمي/الطهارة ٨٣ (٨٢٠)

دامام ترمذي قول دي چي دابواليقظان نه ددي په نقل کولو کي شريك متفرد دي. احمد او اسحاق بن راهويه دمستحاضي باره کي وائي کچري دا د هر مونځ دوخت دپاره غسل اوکړي نو ددي په حق کي به دزيات احتياط خبره وي او که دهر مونځ دپاره اودس اوکړي نو دا هم ددي دپاره کافي ده او که دا په يو غسل کي دوه مونځونه جمع کوي نو هم کافي ده

***************

## ٩٥_ بَابُ مَا جَاءَ فِي الْمُسْتَحَاضَةِ أَنَّهَا تَجْمَعُ بَيْنَ الصَّلَاتَيْنِ بِغُسْلٍ وَاحِدٍ

### مستحاضه ښځه په يو غسل دوه مونځونه جمع کولي شي

١٢٨_ حَدَّثَنَا مُحَمَّدُ بْنُ بَشَّارٍ. حَدَّثَنَا أَبُو عَامِرٍ الْعَقَدِيُّ، حَدَّثَنَا زُهَيْرُ بْنُ مُحَمَّدٍ، عَنْ عَبْدِ اللَّهِ بْنِ مُحَمَّدِ بْنِ عَقِيلٍ، عَنْ اِبْرَاهِيمَ بْنِ مُحَمَّدِ بْنِ طَلْحَةَ، عَنْ عَمِّهِ عِمْرَانَ بْنِ طَلْحَةَ، عَنْ أُمِّهِ حَمْنَةَ بِنْتِ جَحْشٍ، قَالَتْ: كُنْتُ أُسْتَحَاضُ حَيْضَةً كَثِيرَةً شَدِيدَةً، فَأَتَيْتُ النَّبِيَّ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ أَسْتَفْتِيهِ وَأُخْبِرُهُ، فَوَجَدْتُهُ فِي بَيْتِ أُخْتِي زَيْنَبَ بِنْتِ جَحْشٍ، فَقُلْتُ: يَا رَسُولَ اللَّهِ إِنِّي أُسْتَحَاضُ حَيْضَةً كَثِيرَةً شَدِيدَةً فَمَا تَأْمُرُنِي فِيهَا قَدْ مَنَعَتْنِي الصِّيَامَ وَالصَّلَاةَ، قَالَ: "أَنْعَتُ لَكِ الْكُرْسُفَ فَإِنَّهُ يُذْهِبُ الدَّمَ". قَالَتْ: هُوَ أَكْثَرُ مِنْ ذَلِكَ، قَالَ: "فَتَلَجَّمِي". قَالَتْ: هُوَ أَكْثَرُ مِنْ ذَلِكَ، قَالَ: "فَاتَّخِذِي ثَوْبًا". قَالَتْ: هُوَ أَكْثَرُ مِنْ ذَلِكَ إِنَّمَا أَثُجُّ ثَجًّا، فَقَالَ النَّبِيُّ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ: "سَآمُرُكِ بِأَمْرَيْنِ أَيَّهُمَا صَنَعْتِ أَجْزَأَ عَنْكِ، فَإِنْ قَوِيتِ عَلَيْهِمَا فَأَنْتِ أَعْلَمُ". فَقَالَ: "إِنَّمَا هِيَ رَكْضَةٌ مِنَ الشَّيْطَانِ، فَتَحَيَّضِي سِتَّةَ أَيَّامٍ أَوْ سَبْعَةَ أَيَّامٍ فِي عِلْمِ اللَّهِ، ثُمَّ اغْتَسِلِي، فَإِذَا رَأَيْتِ أَنَّكِ قَدْ طَهُرْتِ وَاسْتَنْقَأْتِ، فَصَلِّي أَرْبَعًا وَعِشْرِينَ لَيْلَةً أَوْ ثَلَاثًا وَعِشْرِينَ لَيْلَةً وَأَيَّامَهَا وَصُومِي وَصَلِّي، فَإِنَّ ذَلِكِ يُجْزِئُكِ، وَكَذَلِكِ فَافْعَلِي كَمَا تَحِيضُ النِّسَاءُ وَكَمَا يَطْهُرْنَ لِمِيقَاتِ حَيْضِهِنَّ وَطُهْرِهِنَّ، فَإِنْ قَوِيتِ عَلَى أَنْ تُؤَخِّرِي الظُّهْرَ وَتُعَجِّلِي الْعَصْرَ، ثُمَّ تَغْتَسِلِينَ حِينَ تَطْهُرِينَ وَتُصَلِّينَ الظُّهْرَ وَالْعَصْرَ جَمِيعًا، ثُمَّ تُؤَخِّرِينَ الْمَغْرِبَ وَتُعَجِّلِينَ الْعِشَاءَ، ثُمَّ تَغْتَسِلِينَ وَتَجْمَعِينَ بَيْنَ الصَّلَاتَيْنِ، فَافْعَلِي وَتَغْتَسِلِينَ مَعَ الصُّبْحِ وَتُصَلِّينَ، وَكَذَلِكِ فَافْعَلِي وَصُومِي إِنْ قَوِيتِ عَلَى ذَلِكَ". فَقَالَ رَسُولُ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ: "وَهُوَ أَعْجَبُ الْأَمْرَيْنِ إِلَيَّ". قَالَ أَبُو عِيسَى: هَذَا حَسَنٌ صَحِيحٌ، وَرَوَاهُ عُبَيْدُ اللَّهِ بْنُ عَمْرٍو الرَّقِّيُّ، وَابْنُ جُرَيْجٍ، وَشَرِيكٌ، عَنْ عَبْدِ اللَّهِ بْنِ مُحَمَّدِ بْنِ عَقِيلٍ، عَنْ إِبْرَاهِيمَ بْنِ مُحَمَّدِ بْنِ طَلْحَةَ، عَنْ عَمِّهِ عِمْرَانَ، عَنْ أُمِّهِ حَمْنَةَ، إِلَّا أَنَّ ابْنَ جُرَيْجٍ يَقُولُ: عُمَرُ بْنُ طَلْحَةَ وَالصَّحِيحُ: عِمْرَانُ بْنُ طَلْحَةَ، قَالَ: وَسَأَلْتُ مُحَمَّدًا عَنْ هَذَا الْحَدِيثِ، فَقَالَ: هُوَ حَدِيثٌ حَسَنٌ صَحِيحٌ، وَهَكَذَا

قَالَ أَحْمَدُ بْنُ حَنْبَلٍ: هُوَ حَدِيثٌ حَسَنٌ صَحِيحٌ. وقَالَ أَحْمَدُ، وَإِسْحَاقَ فِي الْمُسْتَحَاضَةِ: إِذَا كَانَتْ تَعْرِفُ حَيْضَهَا بِإِقْبَالِ الدَّمِ وَإِدْبَارِهِ، وَإِقْبَالُهُ أَنْ يَكُونَ أَسْوَدَ، وَإِدْبَارُهُ أَنْ يَتَغَيَّرَ إِلَى الصُّفْرَةِ، فَالْحُكْمُ لَهَا عَلَى حَدِيثِ فَاطِمَةَ بِنْتِ أَبِي حُبَيْشٍ، وَإِنْ كَانَتِ الْمُسْتَحَاضَةُ لَهَا أَيَّامٌ مَعْرُوفَةٌ قَبْلَ أَنْ تُسْتَحَاضَ، فَإِنَّهَا تَدَعُ الصَّلَاةَ أَيَّامَ أَقْرَائِهَا، ثُمَّ تَغْتَسِلُ وَتَتَوَضَّأُ لِكُلِّ صَلَاةٍ وَتُصَلِّي، وَإِذَا اسْتَمَرَّ بِهَا الدَّمُ وَلَمْ يَكُنْ لَهَا أَيَّامٌ مَعْرُوفَةٌ وَلَمْ تَعْرِفِ الْحَيْضَ بِإِقْبَالِ الدَّمِ وَإِدْبَارِهِ، فَالْحُكْمُ لَهَا عَلَى حَدِيثِ حَمْنَةَ بِنْتِ جَحْشٍ، وَكَذَلِكَ قَالَ أَبُو عُبَيْدٍ. وقَالَ الشَّافِعِيُّ: الْمُسْتَحَاضَةُ إِذَا اسْتَمَرَّ بِهَا الدَّمُ فِي أَوَّلِ مَا رَأَتْ فَدَامَتْ عَلَى ذَلِكَ، فَإِنَّهَا تَدَعُ الصَّلَاةَ مَا بَيْنَهَا وَبَيْنَ خَمْسَةَ عَشَرَ يَوْمًا، فَإِذَا طَهُرَتْ فِي خَمْسَةَ عَشَرَ يَوْمًا أَوْ قَبْلَ ذَلِكَ، فَإِنَّهَا أَيَّامُ حَيْضٍ، فَإِذَا رَأَتِ الدَّمَ أَكْثَرَ مِنْ خَمْسَةَ عَشَرَ يَوْمًا، فَإِنَّهَا تَقْضِي صَلَاةَ أَرْبَعَةَ عَشَرَ يَوْمًا، ثُمَّ تَدَعُ الصَّلَاةَ بَعْدَ ذَلِكَ. أَقَلَّ مَا تَحِيضُ النِّسَاءُ وَهُوَ يَوْمٌ وَلَيْلَةٌ. قَالَ أَبُو عِيسَى: وَاخْتَلَفَ أَهْلُ الْعِلْمِ فِي أَقَلِّ الْحَيْضِ وَأَكْثَرِهِ، فَقَالَ بَعْضُ أَهْلِ الْعِلْمِ: أَقَلُّ الْحَيْضِ ثَلَاثَةٌ وَأَكْثَرُهُ عَشَرَةٌ، وَهُوَ قَوْلُ سُفْيَانَ الثَّوْرِيِّ وَأَهْلِ الْكُوفَةِ، وَبِهِ يَأْخُذُ ابْنُ الْمُبَارَكِ، وَرُوِيَ عَنْهُ خِلَافُ هَذَا. وقَالَ بَعْضُ أَهْلِ الْعِلْمِ مِنْهُمْ عَطَاءُ بْنُ أَبِي رَبَاحٍ: أَقَلُّ الْحَيْضِ يَوْمٌ وَلَيْلَةٌ، وَأَكْثَرُهُ خَمْسَةَ عَشَرَ يَوْمًا، وَهُوَ قَوْلُ مَالِكٍ، وَالْأَوْزَاعِيِّ، وَالشَّافِعِيِّ، وَأَحْمَدَ، وَإِسْحَاقَ، وَأَبِي عُبَيْدٍ.[1]

**ترجمه** : دحمنه بن جحش رضي الله عنها بيان دي چي زه په يو سخت قسم استحاضه بيمارئ کي مبتلا وم يو خل دمسئلي دتپوس دپاره نبي کريم صلي الله عليه وسلم ته په خدمت کي حاضره شوم او ما رسول الله صلي الله عليه وسلم دخپلي خور زينب بنت جحش په کور کي اوموندلو عرض مي اوکړو اي دالله رسوله زه په يو سخت قسم استحاضه کي مبتلا يم په دي سلسله کي ماته څه حکم کوئ دي بيمارئ خو زه دمونځ او روژو نه منع کړي يم رسول الله صلي الله عليه وسلم اوفرمائيل زه تاته دمالوچ داستعمال حکم کوم په دي باندي به وينه بنده شي هغي عرض اوکړو دا خو ددينه هم زياته ده رسول الله اوفرمائيل چي لنګ استعمالوه يعني په دي باندي به هم بنده شي او ورسره دکپړي وغيره نه هم استفاده کوه هغي اووئيل چي خبره ددينه هم زياته ده نبي کريم صلي الله عليه وسلم اوفرمائيل بيا زه تاته د دوه خبرو حکم کوم که په دي دوارو کي دي هره يوه اوکړه نو ستا دپاره به کافي وي او که په دوارو دي قدرت وي نو ستا دپاره به بهتره وي رسول الله اوفرمائيل دا صرف دشيطان ګذار وو ته شپږ يا اوه ورځي

[1] سنن ابي داود/الطهارة ١١٠ (٢٨٧) . سنن ابن ماجه/الطهارة ١١٥ (٦٢٢) . (تحفة الأشراف : ١٥٨٢١) . مسند احمد (٦/٤٣٩) . سنن الدارمي/الطهارة ٨٣ (٨١٢) (حسن)

كومي چي دالله په علم کي دي هغه په حيض کي شماره او بيا غسل اوکړه او کله چي دي په پاکۍ يقين راشي نو څليريشت يا درويشت ورځي مونځ کوه او روژې نيسه دا ستا دپاره کافي دي او هميشه داسي کوه څنګه چي نوري حيض والا ښځي کوي دحيض په وختونو کي حائضي او دپاکۍ په وختونو کي پاکي وي او کچري ته په دي خبره قادر يي چي دماسپخين مونځ په تاخير سره اوکړي او دمازيګر مونځ ورته لږ رامخکي کړي نو دغسل کولو نه پس چي پاکه شي نو دواړه مونځونه په يوځاي کوه بيا دماښام مونځ لږ وروستو کوه او دماخوستن لږ رامخکي کوه او په يو غسل دواړه مونځونه کوه او دسحر مونځ دپاره جدا غسل کوه که په دي قادر يي نو داسي کوه او روژې نيسه بيا رسول الله صلي الله عليه وسلم اوفرمائيل په دي دواړو خبرو کي دويمه خبره زما زياته خوښه ده

امام ترمذي وائي دا حديث حسن صحيح دي، او محمد بن اسماعيل بخاري دي حديث ته حسن صحيح وئيلي دي او دا رنګي امام احمد بن حنبل هم وئيلي دي چي دا حديث حسن صحيح دي، امام احمد او اسحاق بن راهويه دمستحاضي باره کي وائي چي کله يوي ښځي ته دخپل حيض تلل او راتلل معلوم وي نو ددي حکم به دفاطمه بنت ابي حبيش دحديث مطابق وي او که مستحاضي ته دبيمارۍ نه مخکي ورځي معلومي وي نو دا به دخپلي بيمارۍ ورځي پريږدي او بيا به غسل کوي او دهر مونځ دپاره به جدا اودس کوي او چي کله وينه جاري وي او ورځي معلومي نه وي او نه دبيمارۍ تلل راتلل معلومولي شي نوددي حکم به دحمنه بنت جحش دحديث مطابق وي دا رنګي ابي عبيد وئيلي دي امام شافعي وائي کله چي دمستحاضي په اول خل وينه اووينې او مسلسل جاري وه نو دا به دويني شروع کيدو نه واخله پنځلس ورځو پوري مونځ پريږدي او که دپنځلسو ورځو نه مخکي پاکه شي نو ګويا کي دا ددي دبيمارۍ ورځي دي او که دپنځلسو ورځو نه واوړي نو دڅوارلسو ورځو مونځونو قضاء به راوړي او ددينه پس دښځو دبيمارۍ اقله موده چي يوه ورځ او يوه شپه ده ددي مونځونه به پريږدي، دزنانوو دبيمارۍ دکمي او زياتي مودي په تعين کي په اهل علمو کي اختلاف دي بعضي وائي چي اخري کمه موده دري ورځي ده او ددي تولو نه زياته لس ورځي ده دا دسفيان ثوري او اهل کوفه قول دي او همدا قول ابن مبارك اختيار کړي دي. مګر دده نه ددي په خلاف قول هم مروي دي په بعضي اهل علمو کي عطاء بن ابي رباح هم دي دده قول دي چي دحيض کمه موده يوه ورځ او يوه شپه ده او زياته نه زياته موده يي پنځلس ورځي او دا دامام مالك اوزاعي ،شافعي، احمد ، اسحاق بن راهويه (رحمهم الله)او ابو عبيده (رحمهم الله) قول هم دي.

***************

## ۹۶_ بَابُ مَا جَاءَ فِي الْمُسْتَحَاضَةِ أَنَّهَا تَغْتَسِلُ عِنْدَ كُلِّ صَلَاةٍ

## د هر مونځ دپاره د مستحاضي د غسل كولو بيان

١٢٩_ حَدَّثَنَا قُتَيْبَةُ، حَدَّثَنَا اللَّيْثُ، عَنْ ابْنِ شِهَابٍ، عَنْ عُرْوَةَ، عَنْ عَائِشَةَ، أَنَّهَا قَالَتْ: اسْتَفْتَتْ أُمُّ حَبِيبَةَ ابْنَةُ جَحْشٍ رَسُولَ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ، فَقَالَتْ: إِنِّي أُسْتَحَاضُ فَلَا أَطْهُرُ، أَفَأَدَعُ الصَّلَاةَ؟ فَقَالَ: "لَا إِنَّمَا ذَلِكِ عِرْقٌ، فَاغْتَسِلِي ثُمَّ صَلِّي". فَكَانَتْ تَغْتَسِلُ لِكُلِّ صَلَاةٍ. قَالَ قُتَيْبَةُ: قَالَ اللَّيْثُ: لَمْ يَذْكُرْ ابْنُ شِهَابٍ أَنَّ رَسُولَ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ أَمَرَ أُمَّ حَبِيبَةَ أَنْ تَغْتَسِلَ عِنْدَ كُلِّ صَلَاةٍ، وَلَكِنَّهُ شَيْءٌ فَعَلَتْهُ هِيَ. قَالَ أَبُو عِيسَى: وَيُرْوَى هَذَا الْحَدِيثُ عَنْ الزُّهْرِيِّ، عَنْ عَمْرَةَ، عَنْ عَائِشَةَ، قَالَتْ: اسْتَفْتَتْ أُمُّ حَبِيبَةَ بِنْتُ جَحْشٍ رَسُولَ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ. وَقَدْ قَالَ بَعْضُ أَهْلِ الْعِلْمِ: الْمُسْتَحَاضَةُ تَغْتَسِلُ عِنْدَ كُلِّ صَلَاةٍ، وَرَوَى الْأَوْزَاعِيُّ، عَنْ الزُّهْرِيِّ، عَنْ عُرْوَةَ، وَعَمْرَةَ، عَنْ عَائِشَةَ.(1)

**ترجمه** : دام المؤمنين عائشه رضي الله عنها نه مروي دي چي ام حبيبه بنت جحش د رسول الله صلي الله عليه وسلم نه ديوي شرعي مسئلي تپوس اوكړو او عرض يي اوكړو چي زما نه داستحاضه وينه جاري وي او پاكه نه پاتي كيږم نو ايا زه مونځ پريږدم؟ رسول الله ورته اوفرمائيل هرگز نه دا خو صرف يو رگ دي لهذا غسل كوه او بيا مونځ كوه نو ام حبيبه به د هر مونځ دپاره غسل كولو، ابن شهاب زهري ددي خبري ذكر نه دي كړي رسول الله صلي الله عليه وسلم ام حبيبه ته د هر مونځ په وخت كي دغسل كولو حكم كړي دي بلكه دا يو داسي عمل وو كوم چي به هغي پخپله خوښه كولو.

امام ترمذي وائي دارنگي دا حديث زهري دعمره نه عن عائشه په سند سره هم نقل كړي دي چي ام حبيبه بنت جحش رسول الله صلي الله عليه وسلم نه تپوس اوكړو

دبعضي اهل علمو قول دي چي مستحاضه به د هر مونځ وخت كي غسل كوي

****************

## ٩٧_ بَابُ مَا جَاءَ فِي الْحَائِضِ أَنَّهَا لَا تَقْضِي الصَّلَاةَ

### دحائضي دپاره دمونځ دقضاء نه راګرځولو بيان

(1) صحيح مسلم/الحيض ١٤ (٣٣٤)، سنن ابي داود/الطهارة ١٠٨ (٢٧٩)، و١١١ (٢٨٨)، والنسائي/الطهارة ١٣٤ (٢٠٧)، والحيض ٤ (٣٥٣)، سنن ابن ماجه/الطهارة ١١٦ (٦٢٦)، (تحفة الأشراف : ١٦٥٨٣)، مسند احمد (٦/٨٣، ١٤١، ١٨٧)، سنن الدارمي/الطهارة ٨٣ (٨٠٥)

١٣٠۔ حَدَّثَنَا قُتَيْبَةُ، حَدَّثَنَا حَمَّادُ بْنُ زَيْدٍ، عَنْ أَيُّوبَ، عَنْ أَبِي قِلَابَةَ، عَنْ مُعَاذَةَ، أَنَّ امْرَأَةً سَأَلَتْ عَائِشَةَ، قَالَتْ: أَتَقْضِي إِحْدَانَا صَلَاتَهَا أَيَّامَ مَحِيضِهَا ؟ فَقَالَتْ: " أَحَرُورِيَّةٌ أَنْتِ، قَدْ كَانَتْ إِحْدَانَا تَحِيضُ فَلَا تُؤْمَرُ بِقَضَاءٍ ". قَالَ أَبُو عِيسَى: هَذَا حَسَنٌ صَحِيحٌ، وَقَدْ رُوِيَ عَنْ عَائِشَةَ مِنْ غَيْرِ وَجْهٍ، أَنَّ الحَائِضَ لَا تَقْضِي الصَّلَاةَ، وَهُوَ قَوْلُ عَامَّةِ الفُقَهَاءِ، لَا اخْتِلَافَ بَيْنَهُمْ فِي أَنَّ الحَائِضَ تَقْضِي الصَّوْمَ وَلَا تَقْضِي الصَّلَاةَ. (1)

**ترجمه** : دمعاذة عدويه وائي چي يوي ښځي دعائشه رضي الله عنها نه تپوس اوکړو چي ايا مونږ به دحيض دورخو دمونځونو قضاء راوړو؟ ام المؤمنين ورته اوفرمائيل ايا ته حروريه يي؟ په مونږ کي چي به په چا باندي دا بيماري راتله نو هغي ته به دمونځ دقضاء حکم نه کيدو
امام ترمذي وائي دا حديث حسن صحيح دي او دعائشه رضي الله عنها نه په نورو سندونو هم مروي دي چي حائضه به دمونځ قضاء نه راوړو. همدا داکثرو فقهاؤ قول دي او په دي کي دهيچا اختلاف نشته چي حائضه به د روژي قضاء راوړي او دمونځ قضاء به نه راوړي

**دمعاذه عدويه رضي الله عنها حالات**

نوم معاذه دپلار نوم عبدالله کنيه ام الصهباء دخاوند نوم صله بن اشيم دبصري اوسيدونکي وه دمحدثينو په نزد ثقه ده عائشه رضي الله عنها ته به يي تلل راتلل کول همدا وجه ده چي دهغي احاديث يي نقل کړي دي او ډيره زياته عبادت گذاره وه
علامه ابن جوزي دحکيم بن سنان نه نقل کړی دی چي ماته ويوي خادمي خبر رارسيدلی دی کومي چي به معاذه معدويه ته تلل راتلل کول چي معاذه عدويه به ټوله شپه په عبادت کي تيروله او چي کله به ورباندي خوب غالب شو نو څنګيدله به او بيابه يي خپل نفس مخاطب کړو او ونيل به يي اى نفس خوب خو ستا په وړاندي دى او ستا به دي سره سابقه راشي بيا بداوده شي دخادمي بيان دى چي معاذه عدويه به دا ونيل او دسترګو نه به يي اوښکي رواني وي تردي چي سبا به شو
دمعاذه عدويه به صحاح سته والانقل دروايت کړی دی (صفوة الصفوه)

***************

## ۹۸۔ بَابُ مَا جَاءَ فِي الْجُنُبِ وَالْحَائِضِ أَنَّهُمَا لَا يَقْرَآنِ الْقُرْآنَ

---

(1) صحيح البخاري/الحيض ٢٠ (٣٢١) . صحيح مسلم/الحيض ١٥ (٣٣٥) . سنن ابي داود/ الطهارة ١٠٥ (٢٦٢) . سنن النسائي/الحيض ١٧ (٣٨٢) . والصوم ٣٦ (٢٣٢٠) . سنن ابن ماجه/الطهارة ١١٩ (٦٣١) . (تحفة الأشراف : ١٧٩٦٣) . مسند احمد(٦/٣٢، ٩٧، ١٢٠، ١٨٥، ٢٣١) . سنن الدارمي/الطهارة ١٠٢ (١٠٢٠)

## جنب او حائضه به قران نه لولي

١٣١_ حَدَّثَنَا عَلِيُّ بْنُ حُجْرٍ، وَالْحَسَنُ بْنُ عَرَفَةَ، قَالَا: حَدَّثَنَا إِسْمَاعِيلُ بْنُ عَيَّاشٍ، عَنْ مُوسَى بْنِ عُقْبَةَ، عَنْ نَافِعٍ، عَنِ ابْنِ عُمَرَ، عَنِ النَّبِيِّ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ، قَالَ: "لَا تَقْرَأُ الْحَائِضُ وَلَا الْجُنُبُ شَيْئًا مِنَ الْقُرْآنِ". قَالَ: وَفِي الْبَابِ عَنْ عَلِيٍّ. قَالَ أَبُو عِيسَى: حَدِيثُ ابْنِ عُمَرَ حَدِيثٌ لَا نَعْرِفُهُ إِلَّا مِنْ حَدِيثِ إِسْمَاعِيلَ بْنِ عَيَّاشٍ، عَنْ مُوسَى بْنِ عُقْبَةَ، عَنْ نَافِعٍ، عَنِ ابْنِ عُمَرَ، عَنِ النَّبِيِّ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ، قَالَ: "لَا تَقْرَأُ الْجُنُبُ وَلَا الْحَائِضُ". وَهُوَ قَوْلُ أَكْثَرِ أَهْلِ الْعِلْمِ مِنْ أَصْحَابِ النَّبِيِّ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ وَالتَّابِعِينَ وَمَنْ بَعْدَهُمْ، مِثْلِ: سُفْيَانَ الثَّوْرِيِّ، وَابْنِ الْمُبَارَكِ، وَالشَّافِعِيِّ، وَأَحْمَدَ، وَإِسْحَاقَ، قَالُوا: لَا تَقْرَأُ الْحَائِضُ وَلَا الْجُنُبُ مِنَ الْقُرْآنِ شَيْئًا، إِلَّا طَرَفَ الْآيَةِ وَالْحَرْفَ وَنَحْوَ ذَلِكَ، وَرَخَّصُوا لِلْجُنُبِ وَالْحَائِضِ فِي التَّسْبِيحِ وَالتَّهْلِيلِ. قَالَ: وَسَمِعْت مُحَمَّدَ بْنَ إِسْمَاعِيلَ يَقُولُ: إِنَّ إِسْمَاعِيلَ بْنَ عَيَّاشٍ يَرْوِي، عَنْ أَهْلِ الْحِجَازِ وَأَهْلِ الْعِرَاقِ أَحَادِيثَ مَنَاكِيرَ. كَأَنَّهُ ضَعَّفَ رِوَايَتَهُ عَنْهُمْ فِيمَا يَنْفَرِدُ بِهِ، وَقَالَ: إِنَّمَا حَدِيثُ إِسْمَاعِيلَ بْنِ عَيَّاشٍ، عَنْ أَهْلِ الشَّامِ. وَقَالَ أَحْمَدُ بْنُ حَنْبَلٍ: إِسْمَاعِيلُ بْنُ عَيَّاشٍ أَصْلَحُ مِنْ بَقِيَّةَ، وَلِبَقِيَّةَ أَحَادِيثُ مَنَاكِيرُ عَنِ الثِّقَاتِ. قَالَ أَبُو عِيسَى: حَدَّثَنِي أَحْمَدُ بْنُ الْحَسَنِ، قَالَ: سَمِعْتُ أَحْمَدَ بْنَ حَنْبَلٍ يَقُولُ ذَلِكَ. (1)

**ترجمه** : دعبدالله ابن عمر رضي الله عنهما نه روايت دي فرمائي چي رسول الله صلي الله عليه وسلم فرمائيلي دي حائضه او جنب به دقران نه هيڅ نه لولي

امام ترمذي وائي په دي باب کي دعلي رضي الله عنه نه هم روايت وارد دي. او دابن عمر رضي الله عنهما حديث مونږ ته صرف داسماعيل بن عياش په سند معلوم دي په کوم کي چي دابن عمر نه روايت دي چي نبي کريم صلي الله عليه وسلم فرمائيلي دي جنب او حائضه دي قران نه لولي، دصحابه کرامو او تابعينو کي داکثرو اهل علمو او ددوئ نه پس په فقهاؤ کي دسفيان ثوري، ابن مبارک، شافعي، احمد او اسحاق بن راهويه رحمهم الله،همدا قول دي چي حائضه او جنب به دکوم ايت تکړه يا ديو حرف نه علاوه دقران نه نور هيڅ نه لولي مګر دي اهل علمو حائضه او جنب ته دتسبيح او تهليل اجازت ورکړي دي

**تشريح** : په دي مسئله دتمامو علماؤ اتفاق دي چي حائضه تسبيح ، تحميد ، تکبير ، او تهليل کولي شي او اختلاف په دي کي دي چي قران لوستلي شي او کنه په دي کي داهل علمو دوه مذاهب دي.

---

1 سنن ابن ماجه/الطهارة ١٠٥ (٥٩٥) . (تحفة الأشراف : ٨٤٧٣)

نمبر (۱) دجمهورو په نزد حائضه او جنب قران نشي لوستلي په دي باره کي دحديث الباب نه استدلال کوي "لاتقراء الحائض ولاالجنب شيئا من القران"
سوال: دعبدالله بن عمر رضي الله عنهما مذکوره روايت امام بخاري ضعيف ګڼلي دي ځکه چي اسماعيل بن عياش دا روايت موسي بن عقبه نه نقل کوي او چي کوم روايت اسماعيل د غير شامي راوي نه نقل کړي هغه معتبر نه وي
جواب: ددي حديث متابعات په کثرت سره موجود دي او دکوم روايت متابعات چي ډير وي دهغي ضعف ختميږي.
دويم مذهب دامام مالك دي دده په نزد دحائضي او جنب دپاره تلاوت دقران جائز دي او په دي مسئله کي امام مالك په مسلم کي دعائشه رضي الله عنها دروايت نه استدلال کوي "کان النبي صلي الله عليه وسلم يذکرالله علي کل احيانه" يعني رسول الله به په هر حالت کي دالله په ذکر کي مشغول وو او داحيان په عموم کي دجنابت حالت هم داخل دي او دذکر په عموم کي دقران تلاوت هم داخل دي ددينه معلومه شوه چي په حالت دجنابت کي دقران تلاوت جائز دي او دحائضي هم دا حکم دي
جواب نمبر (۱): دلته ذکر قلبي مراد دي او کنه نو دعبدالله دروايت سره به يي تعارض راشي

***************

## ۹۹_ بَابُ مَا جَاءَ فِي مُبَاشَرَةِ الْحَائِضِ

### د حائضي د ښکلولو بيان

۱۳۲_ حَدَّثَنَا بُنْدَارٌ، حَدَّثَنَا عَبْدُ الرَّحْمَنِ بْنُ مَهْدِيٍّ، عَنْ سُفْيَانَ، عَنْ مَنْصُورٍ، عَنْ إِبْرَاهِيمَ، عَنِ الأَسْوَدِ، عَنْ عَائِشَةَ، قَالَتْ: "كَانَ رَسُولُ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ إِذَا حِضْتُ يَأْمُرُنِي أَنْ أَتَّزِرَ ثُمَّ يُبَاشِرُنِي". قَالَ: وَفِي الْبَابِ عَنْ أُمِّ سَلَمَةَ، وَمَيْمُونَةَ. قَالَ أَبُو عِيسَى: حَدِيثُ عَائِشَةَ حَسَنٌ صَحِيحٌ. وَهُوَ قَوْلُ غَيْرِ وَاحِدٍ مِنْ أَهْلِ الْعِلْمِ مِنْ أَصْحَابِ النَّبِيِّ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ وَالتَّابِعِينَ، وَبِهِ يَقُولُ الشَّافِعِيُّ، وَأَحْمَدُ، وَإِسْحَاقَ. [1]

**ترجمه** : د عائشه رضي الله عنها نه مروي دي چي کله به زما حيض راغلو نو رسول الله صلي الله عليه وسلم به ماته د جانګي اچولو حکم وکړو او بيا به په ماپوري راجوښت شو او زه به يي ښکلولم.

---

[1] صحيح البخاري/الحيض ٥ (٣٠٠)، صحيح مسلم/الحيض ١ (٢٩٣)، سنن ابي داود/ الطهارة ١٠٧ (٢٦٧)، سنن النسائي/الطهارة ١٨٠ (٢٨٦)، والحيض ١٢ (٣٧٣)، سنن ابن ماجه/الطهارة ١٢١ (٦٣٦)، (تحفة الأشراف: ١٥٩٨٢)

امام ترمذي وايي د عائشه رضي الله عنها حديث حسن صحيح دی. په صحابه کرامو او تابعينو کي ډير اهل علمو هم په دي باندي قول کړی دی. او د هغوی نه په وروستنو خلقو کي د امام شافعي ، احمد او اسحاق بن راهويه (رحمهم الله) هم دا قول دی اوپه دي باب کي د ام سلمه او ميمونه رضي الله عنها نه هم احاديث وارد دي

**حل لغات**: يباشرني باشر يباشر مباشرة دمفاعلي نه باب نه مضارع معلومه ده په معني د يو خاي کيدو سره.

**تشريح** : مباشرت په لغت کي مس الجلد بالجد ته ويلي شي ، او په اصطلاح کي دمباشرت دري صورتونه دي

١ـ استمتاع بالجماع، نو دا صورت بالاجماع حرام دی

٢ـ استمتاع بما فوق الازار: دا صورت بالاجماع جائز دی.

استمتاع بما تحت الازار: دا صورت د جواز او عدم جواز متعلق اختلافي دی، او په دي کي دوه مذاهب دي:

(١) د جمهورو په نزد دا صورت بالکل ناجائز دی. او په دي په ابوداود او ترمذي کي د عائشي، ام سلمه ، ام حبيبه ، انس معاذ بن جبل رضي الله عنهم د روايتونو نه استدلال کوي او ددي روايتونو مفهوم مشترک دی او هغه دادی چي رسول الله د جانګي اچولو نه پس مباشرت کړی دی

(٢) د امام احمد او امام محمد (رحمهما الله) په نزد دا صورت جائز دی، او پدي د انس د روايت نه استدلال کوي چي "اصنعوا کل شيء الا النکاح" او دلته دنکاح نه مراد جماع ده. او دلته منطوق کلام په حلت دجماع دلالت کوي

جواب دجمهورو د مستدل نه التزاما حرمت مستفاد دی او قاعده داده چي التزامي دلالت په حکم د منطوق کي وي، نو په دواړو مستدلاتو کي مساوات موجود شو او تساوي تعارض لره مستلزم ده اود تعارض په وخت کي حرمت لره په حلت ترجيح وي

****************

## ١٠٠ـ بَابُ مَا جَاءَ فِي مُؤَاكَلَةِ الْحَائِضِ وَسُؤْرِهَا

### د حائضي سره د خوراک کولو او ددي د جوټي بيان

١٣٣ـ حَدَّثَنَا عَبَّاسٌ الْعَنْبَرِيُّ، وَمُحَمَّدُ بْنُ عَبْدِ الأَعْلَى، قَالَا: حَدَّثَنَا عَبْدُ الرَّحْمَنِ بْنُ مَهْدِيٍّ، حَدَّثَنَا مُعَاوِيَةُ بْنُ صَالِحٍ، عَنِ الْعَلَاءِ بْنِ الْحَارِثِ، عَنْ حَرَامِ بْنِ مُعَاوِيَةَ، عَنْ عَمِّهِ عَبْدِ اللَّهِ بْنِ سَعْدٍ، قَالَ: سَأَلْتُ النَّبِيَّ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ عَنْ مُوَاكَلَةِ الْحَائِضِ، فَقَالَ: "وَاكِلْهَا". قَالَ: وَفِي الْبَابِ

عَنْ عَائِشَةَ، وَأَنَسٍ. قَالَ أَبُو عِيسَى: حَدِيثُ عَبْدِ اللهِ بْنِ سَعْدٍ حَسَنٌ غَرِيبٌ، وَهُوَ قَوْلُ عَامَّةِ أَهْلِ الْعِلْمِ لَمْ يَرَوْا بِمُوَاكَلَةِ الْحَائِضِ بَأْسًا. وَاخْتَلَفُوا فِي فَضْلِ وَضُوئِهَا، فَرَخَّصَ فِي ذَلِكَ بَعْضُهُمْ، وَكَرِهَ بَعْضُهُمْ فَضْلَ طَهُورِهَا. (1)

**ترجمه** : د عبد الله بن سعد رضي الله عنه نه روايت دي چي ما د رسول الله نه د حائضي سره د خوراك كولو باره كي سوال وكړو نو راته يي اوفرمائيل چي خوراك ورسره كوه
امام ترمذي وايي چي په دي باب كي د عبد الله بن سعد روايت حسن غريب دی. او په دي باب كي دعائشه او انس رضي الله عنهما نه هم احاديث وارد دي . اود اكثرو اهل علمو هم دا قول دی چي د حائضي سره په خوراك كولو كي څه حرج نشته. البته ددي نه د اودس په پاتي شوو كي اختلاف دی، بعضو ددي د استعمال اجازت وركړی دی، او بعضو مكروه ګڼلي دي.

****************

## ١٠١_ بَابُ مَا جَاءَ فِي الْحَائِضِ تَتَنَاوَلُ الشَّيْءَ مِنَ الْمَسْجِدِ

### حائضه د مسجد نه كوم څيز راخستلی شي

١٣٤_ حَدَّثَنَا قُتَيْبَةُ، حَدَّثَنَا عَبِيدَةُ بْنُ حُمَيْدٍ، عَنِ الأَعْمَشِ، عَنْ ثَابِتِ بْنِ عُبَيْدٍ، عَنِ الْقَاسِمِ بْنِ مُحَمَّدٍ، قَالَ: قَالَتْ لِي عَائِشَةُ: قَالَ لِي رَسُولُ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ: " نَاوِلِينِي الْخُمْرَةَ مِنَ الْمَسْجِدِ " قَالَتْ: قُلْتُ: إِنِّي حَائِضٌ، قَالَ: " إِنَّ حَيْضَتَكِ لَيْسَتْ فِي يَدِكِ ". قَالَ: وَفِي الْبَابِ عَنِ ابْنِ عُمَرَ، وَأَبِي هُرَيْرَةَ. قَالَ أَبُو عِيسَى: حَدِيثُ عَائِشَةَ حَسَنٌ صَحِيحٌ، وَهُوَ قَوْلُ عَامَّةِ أَهْلِ الْعِلْمِ. لَا نَعْلَمُ بَيْنَهُمْ اخْتِلَافًا فِي ذَلِكَ بِأَنْ لَا بَأْسَ أَنْ تَتَنَاوَلَ الْحَائِضُ شَيْئًا مِنَ الْمَسْجِدِ. (2)

**ترجمه** : د ام المؤمنين عائشه رضي الله عنها بيان دي فرمائي چي رسول الله صلي الله عليه وسلم راته اوفرمائيل د مسجد نه راله چټايي (دری) راوړه ما عرض وكړو چي زما خو حيض راغلي دی، نو راته يي اوفرمائيل چي حيض خودي څه په لاسونو كي نه دی
امام ترمذي وايي چي د عائشي دا حديث حسن صحيح دی، اوپه دي باب كي د ابن عمر او ابو هريره رضي الله عنهما نه هم احاديث وارد دي، اود اكثرو اهل علمو هم دا قول دی، چي

---

[1] سنن ابي داود/ الطهارة ٨٣ (٢١١) . سنن ابن ماجه/الطهارة ١٣٠ (٦٥١) . (تحفة الأشراف : ٥٣٢٦) . مسند احمد (٥/٢٩٣)

[2] صحيح مسلم/الحيض ٣ (٢٩٨) . سنن ابي داود/ الطهارة ١٠٣ (٢٦١) . سنن النسائي/الطهارة ١٧٣ (٢٧٢) . والحيض ١٨ (٣٨٣) . سنن ابن ماجه/الطهارة ١٢٠ (٦٣٢) . (تحفة الأشراف : ١٧٤٤٦) . مسند احمد (٦/٤٥، ١٠١، ١١٢، ١٤١، ١٧٣، ٢١٤، ٢٢٩، ٢٤٥) . سنن الدارمي/الطهارة ٨١ (٧٩٨)

حائضه د مسجد نه كوم څيز راخستلی شي، اوپه دي کي څه حرج نشته، او په دي کي د هيڅ اختلاف نشته والله اعلم

* * * * * * * * * * * * * * * *

## ۱۰۲_ بَابُ مَا جَاءَ فِي كَرَاهِيَةِ إِتْيَانِ الْحَائِضِ

### د حائضي سره د جماع د عدم جواز بيان

۱۳۵_ حَدَّثَنَا بُنْدَارٌ، حَدَّثَنَا يَحْيَى بْنُ سَعِيدٍ، وَعَبْدُ الرَّحْمَنِ بْنُ مَهْدِيٍّ، وَبَهْزُ بْنُ أَسَدٍ، قَالُوا: حَدَّثَنَا حَمَّادُ بْنُ سَلَمَةَ، عَنْ حَكِيمٍ الأَثْرَمِ، عَنْ أَبِي تَمِيمَةَ الهُجَيْمِيِّ، عَنْ أَبِي هُرَيْرَةَ، عَنِ النَّبِيِّ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ، قَالَ: " مَنْ أَتَى حَائِضًا أَوِ امْرَأَةً فِي دُبُرِهَا أَوْ كَاهِنًا، فَقَدْ كَفَرَ بِمَا أُنْزِلَ عَلَى مُحَمَّدٍ " صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ. قَالَ أَبُو عِيسَى: لَا نَعْرِفُ هَذَا الحَدِيثَ إِلَّا مِنْ حَدِيثِ حَكِيمٍ الأَثْرَمِ، عَنْ أَبِي تَمِيمَةَ الهُجَيْمِيِّ، عَنْ أَبِي هُرَيْرَةَ، وَإِنَّمَا مَعْنَى هَذَا عِنْدَ أَهْلِ العِلْمِ عَلَى التَّغْلِيظِ. وَقَدْ رُوِيَ عَنِ النَّبِيِّ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ، قَالَ: " مَنْ أَتَى حَائِضًا فَلْيَتَصَدَّقْ بِدِينَارٍ ". فَلَوْ كَانَ إِتْيَانُ الحَائِضِ كُفْرًا لَمْ يُؤْمَرْ فِيهِ بِالكَفَّارَةِ، وَضَعَّفَ مُحَمَّدٌ هَذَا الحَدِيثَ مِنْ قِبَلِ إِسْنَادِهِ، وَأَبُو تَمِيمَةَ الهُجَيْمِيُّ اسْمُهُ: طَرِيفُ بْنُ مُجَالِدٍ. (1)

**ترجمه**: د ابو هريره رضي الله عنه نه مروي دي چي نبي كريم صلي الله عليه وسلم فرمائيلي دي: څوك چي حائضي ته ورغلو يعني جماع يي ورسره وكړله او يا يي د كومي ښځي سره وطي في الدبر وكړله او يا كوم نجومي او كاهن ته (دغيبي خبرونو معلومولو) دپاره ورغلو، نو ده دهغه څيز نه انكار وكړو كوم چي په محمد (صلي الله عليه وسلم) نازل شوي دي

امام ترمذي وايي چي د اهل علمو په نزد د نبي كريم ددي فرمان مطلب تغليظ دی، د رسول الله نه دا هم مروي دي چي څوك د حائضي سره جماع وكړي هغه دي نيم دينار صدقه كړي، نو كه د حائضي سره د صحبت ارتكاب كفر وی نو په دي كي به د كفاري حكم نه وو جاري شوی. امام بخاري د سند په اعتبار ددي حديث تضعيف كړی دی

* * * * * * * * * * * * * * * *

## ۱۰۳_ بَابُ مَا جَاءَ فِي الْكَفَّارَةِ فِي ذَلِكَ

### د حائضي سره د جماع كولو د كفاري بيان

---

(1) سنن ابي داود/الطب ۲۱ (۳۹۰۴)، سنن ابن ماجه/الطهارة ۱۲۲ (۶۳۹)، (تحفة الأشراف: ۱۳۵۳۶)، مسند احمد (۲/۴۲۹)

Scanned with C

۱۳٦_ حَدَّثَنَا عَلِيُّ بْنُ حُجْرٍ، أَخْبَرَنَا شَرِيكٌ، عَنْ خُصَيْفٍ، عَنْ مِقْسَمٍ، عَنِ ابْنِ عَبَّاسٍ، عَنِ النَّبِيِّ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ فِي الرَّجُلِ يَقَعُ عَلَى امْرَأَتِهِ وَهِيَ حَائِضٌ، قَالَ: "يَتَصَدَّقُ بِنِصْفِ دِينَارٍ".[1]

**ترجمه** : د ابن عباس رضي الله عنهما نه روايت دی چي رسول الله دهغه کس باره کي فرمائيلي دي څوك په حيض کي دخپلي ښځي سره جماع وکړي چي نيم دينار به صدقه کوي.

****************

۱۳۷_ حَدَّثَنَا الْحُسَيْنُ بْنُ حُرَيْثٍ، أَخْبَرَنَا الْفَضْلُ بْنُ مُوسَى، عَنْ أَبِي حَمْزَةَ السُّكَّرِيِّ، عَنْ عَبْدِ الْكَرِيمِ، عَنْ مِقْسَمٍ، عَنِ ابْنِ عَبَّاسٍ، عَنِ النَّبِيِّ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ، قَالَ: "إِذَا كَانَ دَمًا أَحْمَرَ فَدِينَارٌ، وَإِذَا كَانَ دَمًا أَصْفَرَ فَنِصْفُ دِينَارٍ". قَالَ أَبُو عِيسَى: حَدِيثُ الْكَفَّارَةِ فِي إِتْيَانِ الْحَائِضِ قَدْ رُوِيَ عَنِ ابْنِ عَبَّاسٍ مَوْقُوفًا وَمَرْفُوعًا، وَهُوَ قَوْلُ بَعْضِ أَهْلِ الْعِلْمِ، وَبِهِ يَقُولُ أَحْمَدُ، وَإِسْحَاقُ، قَالَ ابْنُ الْمُبَارَكِ: يَسْتَغْفِرُ رَبَّهُ وَلَا كَفَّارَةَ عَلَيْهِ، وَقَدْ رُوِيَ نَحْوُ قَوْلِ ابْنِ الْمُبَارَكِ عَنْ بَعْضِ التَّابِعِينَ، مِنْهُمْ: سَعِيدُ بْنُ جُبَيْرٍ، وَإِبْرَاهِيمُ النَّخَعِيُّ، وَهُوَ قَوْلُ عَامَّةِ عُلَمَاءِ الْأَمْصَارِ.[2]

**ترجمه** : د ابن عباس رضي الله عنهما روايت دی فرمائي چي رسول الله صلي الله عليه وسلم فرمائيلي دي: کله چي وينه کي سوروالي وي نو پوره دينار به صدقه کوي اوکه په وينه کي زيړوالي وي نو نيم دينار به صدقه کوي.

امام ترمذي وايي د حائضي سره د جماع د کفاري حديث د ابن عباس نه موقوفا او مرفوعاً دواړو طريقو سره مروي دی، او دبعضي اهل علمو هم دا قول دی او د احمد اود اسحاق بن راهويه هم دا قول دی، مګر ابن مبارك وايي چي د خپل رب نه به استغفار غواړي اود اکثرو علماؤ د ښارونو هم دا قول دی.

****************

## ۱۰٤_ بَابُ مَا جَاءَ فِي غَسْلِ دَمِ الْحَيْضِ مِنَ الثَّوْبِ

### د جامو نه د حيض دويني د وينځلو بيان

[1] ابي داود/ الطهارة ۱۰٦ (۲٦۴) . سنن النسائي/الطهارة ۱۸۲ (۲۹۰) . والحيض ۹ (۳٤۰) . سنن ابن ماجه/الطهارة ۱۲۳ (٦٤٠) . و۱۲۹ (٦٥۰) . (تحفة الأشراف : ٦٤٨٦) . مسند احمد (۱/۲۳۷، ۲٤۲، ۲۸٦، ۳۱۲، ۳۲٥، ۳٦۳، ۳٦٧) . سنن الدارمي/الطهارة ۱۱۱ (۱۱۴٥)

[2] تفرد به المؤلف (تحفة الأشراف : ٦٤۹۱)

١٣٨_ حَدَّثَنَا ابْنُ أَبِي عُمَرَ، حَدَّثَنَا سُفْيَانُ بْنُ عُيَيْنَةَ، عَنْ هِشَامِ بْنِ عُرْوَةَ، عَنْ فَاطِمَةَ بِنْتِ الْمُنْذِرِ، عَنْ أَسْمَاءَ بِنْتِ أَبِي بَكْرٍ، أَنَّ امْرَأَةً سَأَلَتِ النَّبِيَّ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ عَنِ الثَّوْبِ يُصِيبُهُ الدَّمُ مِنَ الحَيْضَةِ، فَقَالَ رَسُولُ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ: " حُتِّيهِ ثُمَّ اقْرُصِيهِ بِالْمَاءِ ثُمَّ رُشِّيهِ وَصَلِّي فِيهِ ". قَالَ: وَفِي البَابِ عَنْ أَبِي هُرَيْرَةَ، وَأُمِّ قَيْسٍ بِنْتِ مِحْصَنٍ. قَالَ أَبُو عِيسَى: حَدِيثُ أَسْمَاءَ فِي غَسْلِ الدَّمِ حَسَنٌ صَحِيحٌ، وَقَدِ اخْتَلَفَ أَهْلُ العِلْمِ فِي الدَّمِ يَكُونُ عَلَى الثَّوْبِ فَيُصَلِّي فِيهِ قَبْلَ أَنْ يَغْسِلَهُ، قَالَ بَعْضُ أَهْلِ العِلْمِ مِنَ التَّابِعِينَ: إِذَا كَانَ الدَّمُ مِقْدَارَ الدِّرْهَمِ فَلَمْ يَغْسِلْهُ وَصَلَّى فِيهِ أَعَادَ الصَّلَاةَ، وقَالَ بَعْضُهُمْ: إِذَا كَانَ الدَّمُ أَكْثَرَ مِنْ قَدْرِ الدِّرْهَمِ أَعَادَ الصَّلَاةَ، وَهُوَ قَوْلُ سُفْيَانَ الثَّوْرِيِّ، وَابْنِ الْمُبَارَكِ، وَلَمْ يُوجِبْ بَعْضُ أَهْلِ العِلْمِ مِنَ التَّابِعِينَ وَغَيْرِهِمْ عَلَيْهِ الإِعَادَةَ، وَإِنْ كَانَ أَكْثَرَ مِنْ قَدْرِ الدِّرْهَمِ، وَبِهِ يَقُولُ أَحْمَدُ، وَإِسْحَاق، وقَالَ الشَّافِعِيُّ: يَجِبُ عَلَيْهِ الغَسْلُ، وَإِنْ كَانَ أَقَلَّ مِنْ قَدْرِ الدِّرْهَمِ وَشَدَّدَ فِي ذَلِكَ.[1]

**ترجمه** : د اسماء بنت ابي بکر رضي الله عنها بيان دي چي يوي زنانه درسول الله نه د هغه جامو بارد کي تپوس وکړو کومه چي د حيض په وينو ګنده شوي وي، نو رسول الله ورته دګرولو حکم وکړو او بيا يي ورته په اوبو د مږلو حکم وکړو، او بيايي ورته په دي د اوبو اړولو حکم وکړو، او بيا يي ورته اوفرمائيل چي اوس پري مونځ کوه.

امام ترمذي وايي چي د ويني دوينځلو په سلسله کي د اسماء حديث حسن صحيح دی، اوپه دي باب کي د ابو هريره او قيس بنت محصن رضي الله عنهما نه هم احاديث وارد دي،

د علماؤپه دي کي اختلاف دی د وينځلو نه مخکي ورباندي مونځ کولي شي او که نه؟

په تابعينو کي بعضي اهل علم وايي چي کله وينه د درهم په مقدار وي نو مونځ په داسي جامه نشي کيدی داد سفيان ثوري او ابن مبارك قول دي، اوکه په دي حال کي يي مونځ کړی وي نو دا به راګرخوي، مګر بعضي اهل علم په تابعينو کي وايي چي مونځ به نه راګرخوي اود احمد او اسحاق هم دا قول دی، مګر شافعي وايي چي وينځل يي واجب دي اګرکه د درهم دمقدار نه کم وي، هغه په دي باره کي سختي کړي ده

****************

[1] صحيح البخاری/الوضوء ٦٣ (٢٢٧) . والحيض ٩ (٣٠٧) . صحيح مسلم/الطهارة ٣٣ (٢٩١) . و١٣٢ (٢٩١) . سنن ابي داود/ الطهارة ١٣٢ (٣٦٠) . سنن النسائی/الطهارة ١٨٥ (٢٩٤) . والحيض ٢٦ (٣٩٤) . سنن ابن ماجه/الطهارة ١١٨ (٦٢٩) . (تحفة الأشراف : ١٥٧٤٣) . موطا امام مالک/الطهارة ٢٨ (١٠٣) . سنن الدارمی/الطهارة ٨٢ (٧٩٩)

## ١٠٥_ بَابُ مَا جَاءَ فِي كَمْ تَمْكُثُ النُّفَسَاءُ

### نفاس والا ښځې به څومره وخت پورې مونځ او روژه پرېږدي

١٣٩_ حَدَّثَنَا نَصْرُ بْنُ عَلِيٍّ الْجَهْضَمِيُّ، حَدَّثَنَا شُجَاعُ بْنُ الْوَلِيدِ أَبُو بَدْرٍ، عَنْ عَلِيِّ بْنِ عَبْدِ الأَعْلَى، عَنْ أَبِي سَهْلٍ، عَنْ مُسَّةَ الأَزْدِيَّةِ، عَنْ أُمِّ سَلَمَةَ قَالَتْ: "كَانَتِ النُّفَسَاءُ تَجْلِسُ عَلَى عَهْدِ رَسُولِ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ أَرْبَعِينَ يَوْمًا، فَكُنَّا نَطْلِي وُجُوهَنَا بِالْوَرْسِ مِنَ الْكَلَفِ". قَالَ أَبُو عِيسَى: هَذَا غَرِيبٌ لا نَعْرِفُهُ إِلَّا مِنْ حَدِيثِ أَبِي سَهْلٍ، عَنْ مُسَّةَ الأَزْدِيَّةِ، عَنْ أُمِّ سَلَمَةَ، وَاسْمُ أَبِي سَهْلٍ: كَثِيرُ بْنُ زِيَادٍ، قَالَ مُحَمَّدُ بْنُ إِسْمَاعِيل: عَلِيُّ بْنُ عَبْدِ الأَعْلَى ثِقَةٌ، وَأَبُو سَهْلٍ ثِقَةٌ، وَلَمْ يَعْرِفْ مُحَمَّدٌ هَذَا الْحَدِيثَ إِلَّا مِنْ حَدِيثِ أَبِي سَهْلٍ، وَقَدْ أَجْمَعَ أَهْلُ الْعِلْمِ مِنْ أَصْحَابِ النَّبِيِّ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ وَالتَّابِعِينَ وَمَنْ بَعْدَهُمْ عَلَى أَنَّ النُّفَسَاءَ تَدَعُ الصَّلَاةَ أَرْبَعِينَ يَوْمًا، إِلَّا أَنْ تَرَى الطُّهْرَ قَبْلَ ذَلِكَ فَإِنَّهَا تَغْتَسِلُ وَتُصَلِّي، فَإِذَا رَأَتِ الدَّمَ بَعْدَ الأَرْبَعِينَ، فَإِنَّ أَكْثَرَ أَهْلِ الْعِلْمِ، قَالُوا: لَا تَدَعُ الصَّلَاةَ بَعْدَ الأَرْبَعِينَ، وَهُوَ قَوْلُ أَكْثَرِ الْفُقَهَاءِ، وَبِهِ يَقُولُ سُفْيَانُ الثَّوْرِيُّ، وَابْنُ الْمُبَارَكِ، وَالشَّافِعِيُّ، وَأَحْمَدُ، وَإِسْحَاق، وَيُرْوَى عَنِ الْحَسَنِ الْبَصْرِيِّ، أَنَّهُ قَالَ: إِنَّهَا تَدَعُ الصَّلَاةَ خَمْسِينَ يَوْمًا إِذَا لَمْ تَرَ الطُّهْرَ وَيُرْوَى عَنْ عَطَاءِ بْنِ أَبِي رَبَاحٍ، وَالشَّعْبِيِّ سِتِّينَ يَوْمًا. ([1])

**ترجمه** : د ام المؤمنين ام سلمه رضي الله عنها بيان دي فرماني چې نفاس والا ښځې به د رسول الله صلي الله عليه وسلم په زمانه څلوېښت ورځو پورې ناستې وې اود تکليف په وجه به يې پخپلو مخونو ورس نومې بوټي مرلو.

امام ترمذي وايي چې دا حديث حسن غريب دي، مونږ يې صرف د ابو سهل په روايت پيژنو ، په صحابه کرامو او تابعينو او ددوئ نه په پس وروستنو خلقو کې د تمامو پدې خبره اجماع ده چې نفاس والا ښځې به څلوېښت ورځو پورې مونځ نه کوي، البته که کومه ښځې ددې مودې نه مخکې پاکه شي نو هغه دې مونځ نه پرېږدي، او همدا قول د اکثرو فقهاؤ دی، چې سفيان ثوري، ابن مبارک، شافعي او اسحاق بن راهويه (رحمهم الله)هم پکې شامل دي، مګر حسن بصري وايي چې پنځوس ورځې دې مونځ پرېږدي، چې پاکې يې پکې نه وي ليدلې، اود عطاء بن ابي رباح او شعبي نه شپېته ورځې مروي دي.

[1] سنن ابي داود/ الطهارة ١٢١ (٣١١) . سنن ابن ماجه/الطهارة ١٢٨ (٦٤٨) . (تحفة الأشراف : ١٨٢٨٠) . مسند احمد (٦/٣٠٠، ٣٠٣، ٣٠٤، ٣١٠) (حسن صحيح)

**تشريح** : د اکثرو فقهاؤ او مذاهب اربعه پدې خبره اتفاق دی چې د نفاس کمه موده نشته. او زیاته موده یې څلویښت ورځې ده د امام ابو حنیفه او امام احمد په نزد. زیاته موده څلویښت ورځې ده، اود امام شافعي دوه اقوال دي يو د ۴۰ ورځو او بل د ۲۰ ورځو دی، اود امام مالك په نزد دري اقوال دي اول ۴۰ ورځې، دويم ۵۰ ورځې، دريم ۲۰ ورځې. هر امام دخپل ظن مطابق حکم لګولی دی، او احنافو د قیاس نه علاوه د حدیث الباب ام سلمه د روایت نه استدلال کړی دی.

***************

## ١٠٦_ بَابُ مَا جَاءَ فِي الرَّجُلِ يَطُوفُ عَلَى نِسَائِهِ بِغُسْلٍ وَاحِدٍ

### د متعددو ببيانو سره دجماع کولو نه پس د یو غسل کولو بیان

١٤٠_ حَدَّثَنَا بُنْدَارٌ مُحَمَّدُ بْنُ بَشَّارٍ. حَدَّثَنَا أَبُو أَحْمَدَ. حَدَّثَنَا سُفْيَانُ. عَنْ مَعْمَرٍ. عَنْ قَتَادَةَ. عَنْ أَنَسٍ. أَنَّ النَّبِيَّ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ "كَانَ يَطُوفُ عَلَى نِسَائِهِ فِي غُسْلٍ وَاحِدٍ". قَالَ: وَفِي الْبَابِ عَنْ أَبِي رَافِعٍ. قَالَ أَبُو عِيسَى: حَدِيثُ أَنَسٍ حَسَنٌ صَحِيحٌ. أَنَّ النَّبِيَّ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ كَانَ يَطُوفُ عَلَى نِسَائِهِ بِغُسْلٍ وَاحِدٍ. وَهُوَ قَوْلُ غَيْرِ وَاحِدٍ مِنْ أَهْلِ الْعِلْمِ. مِنْهُمُ الْحَسَنُ الْبَصْرِيُّ. أَنْ لَا بَأْسَ أَنْ يَعُودَ قَبْلَ أَنْ يَتَوَضَّأَ. وَقَدْ رَوَى مُحَمَّدُ بْنُ يُوسُفَ هَذَا. عَنْ سُفْيَانَ. فَقَالَ: عَنْ أَبِي عُرْوَةَ. عَنْ أَبِي الْخَطَّابِ. عَنْ أَنَسٍ. وَأَبُو عُرْوَةَ هُوَ: مَعْمَرُ بْنُ رَاشِدٍ. وَأَبُو الْخَطَّابِ: قَتَادَةُ بْنُ دِعَامَةَ. قَالَ أَبُو عِيسَى: وَرَوَاهُ بَعْضُهُمْ. عَنْ مُحَمَّدِ بْنِ يُوسُفَ. عَنْ سُفْيَانَ. عَنِ ابْنِ أَبِي عُرْوَةَ. عَنْ أَبِي الْخَطَّابِ. وَهُوَ خَطَأٌ وَالصَّحِيحُ عَنْ أَبِي عُرْوَةَ. [1]

**ترجمه** : د انس رضي الله عنه بیان دی چې نبي کریم صلي الله علیه وسلم به په یو غسل کې په تمامو ببیانو چکر لګولو.

امام ترمذي وايي چې حدیث د انس رضي الله عنه حسن صحیح دی، او په دې باب کې د ابو رافع رضي الله عنه نه هم حدیث وارد دی، ډیر اهل علمو چې حسن بصري هم پکې شامل دی په دې باندې قول کړی دی، چې د اودس کولو نه مخکې په دوباره جماع کولو کې هیڅ حرج نشته

---

[1] صحيح مسلم/الحيض ٦ (٣٠٩) . سنن النسائي/الطهارة ١٧٠ (٢٦٢) . سنن ابن ماجه/الطهارة ١٠١ (٥٨٨) . (تحفة الأشراف : ١٣٣٦) . مسند احمد (٣/٢٢٥) . وراجع أيضا: صحيح البخاري/الغسل ١٢ (٢٦٨) . و٢٣ (٢٨٣) . والنكاح ٤ (٥٠٦٨) . و١٠٢ (٥٢١٥) . سنن ابي داود/ الطهارة ٨٥ (٢١٨)

**تشريح** : په دي مسئله د دتمامو فقهاؤ اتفاق دی چي ددوه جماع ګانو په مينځ کي غسل يا اودس کول واجب نه دي، او رسول الله پخپل عمل ددي جواز ثابت کړی دی باوجود ددي چي رسول الله صلي الله عليه وسلم به طهارت او نظافت د هر چا په نسبت زيات خوښولو، مګر داد رسول الله عادت مستمره نه وو بلکه دجماع نه پس به يي غسل کولو غرض دا چي دا روايت په جواز محمول دی اوددي معارض روايت په استحباب محمول دي فلا تعارض

***************

## ۱۰۷_ بَابُ مَا جَاءَ فِي الْجُنُبِ إِذَا أَرَادَ أَنْ يَعُودَ تَوَضَّأَ

### ددوباره جماع کولو نه مخکي د اودس کولو بيان

۱٤۱_ حَدَّثَنَا هَنَّادٌ، حَدَّثَنَا حَفْصُ بْنُ غِيَاثٍ، عَنْ عَاصِمٍ الأَحْوَلِ، عَنْ أَبِي الْمُتَوَكِّلِ، عَنْ أَبِي سَعِيدٍ الْخُدْرِيِّ، عَنِ النَّبِيِّ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ قَالَ: " إِذَا أَتَى أَحَدُكُمْ أَهْلَهُ ثُمَّ أَرَادَ أَنْ يَعُودَ فَلْيَتَوَضَّأْ بَيْنَهُمَا وُضُوءًا ". قَالَ: وَفِي البَابِ عَنْ عُمَرَ. قَالَ أَبُو عِيسَى: حَدِيثُ أَبِي سَعِيدٍ حَسَنٌ صَحِيحٌ، وَهُوَ قَوْلُ عُمَرَ بْنِ الخَطَّابِ، وقَالَ بِهِ غَيْرُ وَاحِدٍ مِنْ أَهْلِ العِلْمِ، قَالُوا: إِذَا جَامَعَ الرَّجُلُ امْرَأَتَهُ، ثُمَّ أَرَادَ أَنْ يَعُودَ فَلْيَتَوَضَّأْ قَبْلَ أَنْ يَعُودَ، وَأَبُو الْمُتَوَكِّلِ اسْمُهُ: عَلِيُّ بْنُ دَاوُدَ، وَأَبُو سَعِيدٍ الْخُدْرِيُّ اسْمُهُ: سَعْدُ بْنُ مَالِكِ بْنِ سِنَانٍ. (1)

**ترجمه** : د ابو سعيد خدري رضي الله عنه نه روايت دی چي رسول الله صلي الله عليه وسلم فرمانيلي دي پتاسو کي چي څوك د خپلي بي بي سره مجامعت وکړي او بيا دوباره ورسره جماع کول غواړي نو ددواړو جماع ګانو په مينځ کي دي اودس وکړي.
امام ترمذي وايي په دي باب کي د عمر رضي الله عنه نه هم حديث وارد دي. او دا حديث حسن صحيح دي، اود عمر فاروق نه علاوه متعدد و اهل علمو هم په دي باندي قول کړی دی، دوي وايي کله چي يو کس دخپلي ښځي سره جماع وکړي او بيا ورسره دوباره جماع کول غواړي نو اودس دي وکړي مخکي دجماع کولو نه ، اود ابو المتوکل نوم علي بن داود دی، اود ابو سعيد خدري نوم مالك بن سنان دي

**تشريح** : په مسئله د وضوء بين الجماعين کي د فقهاؤ اختلاف دی او په دي باره کي دوه مذاهب دي:

---

1 صحيح مسلم/الحيض ٦ (٣٠٨) . سنن ابي داود/ الطهارة ٨٦ (٢٢٠) . سنن النسائي/الطهارة ١٦٩ (٢٦٣) . سنن ابن ماجه/الطهارة ١٠٠ (٥٨٧) . (تحفة الأشراف : ٤٢٥٠) . مسند احمد (٣/٧،٢١،٢٨)

اول: دجمهورو په نزد وضوء بين الجماعين مستحب دى
دويم: د اهل ظواهر په نزد وضوء بين الجماعين واجب دى.
دجمهورو دليل په طحاوي كي د عائشه رضي الله عنها روايت دى چي "كان النبي صلي الله عليه وسلم يجامع ثم يعود ولا يتوضاء"
اود اهل ظواهرو دليل په دي باره حديث الباب دي چي دوى ورنه استدلال كوي
جواب: مگر داد رسول الله عادت مستمره نه وو بلكه دجماع نه پس به يي غسل كولو غرض دا چي دا روايت په جواز محمول دى اودي معارض روايت په استحباب محمول دي فلا تعارض.

***************

## ١٠٨_ بَابُ مَا جَاءَ إِذَا أُقِيمَتِ الصَّلَاةُ وَوَجَدَ أَحَدُكُمُ الْخَلَاءَ فَلْيَبْدَأْ بِالْخَلَاءِ

**كله چي جماعت قائم شي او دچا اودس ماتولو ته حاجت راشي نو اول دي اودس مات كړي**

**١٤٢_ حَدَّثَنَا هَنَّادُ بْنُ السَّرِيِّ، حَدَّثَنَا أَبُو مُعَاوِيَةَ، عَنْ هِشَامِ بْنِ عُرْوَةَ، عَنْ أَبِيهِ، عَنْ عَبْدِ اللَّهِ بْنِ الْأَرْقَمِ، قَالَ: أُقِيمَتِ الصَّلَاةُ فَأَخَذَ بِيَدِ رَجُلٍ فَقَدَّمَهُ وَكَانَ إِمَامَ قَوْمِهِ، وَقَالَ: سَمِعْتُ رَسُولَ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ، يَقُولُ: "إِذَا أُقِيمَتِ الصَّلَاةُ وَوَجَدَ أَحَدُكُمُ الْخَلَاءَ فَلْيَبْدَأْ بِالْخَلَاءِ". قَالَ: وَفِي الْبَابِ عَنْ عَائِشَةَ، وَأَبِي هُرَيْرَةَ، وَثَوْبَانَ، وَأَبِي أُمَامَةَ. قَالَ أَبُو عِيسَى: حَدِيثُ عَبْدِ اللَّهِ بْنِ الْأَرْقَمِ حَسَنٌ صَحِيحٌ. هَكَذَا رَوَى مَالِكُ بْنُ أَنَسٍ، وَيَحْيَى بْنُ سَعِيدٍ الْقَطَّانُ وَغَيْرُ وَاحِدٍ مِنَ الْحُفَّاظِ، عَنْ هِشَامِ بْنِ عُرْوَةَ، عَنْ أَبِيهِ، عَنْ عَبْدِ اللَّهِ بْنِ الْأَرْقَمِ. وَرَوَى وُهَيْبٌ وَغَيْرُهُ، عَنْ هِشَامِ بْنِ عُرْوَةَ، عَنْ أَبِيهِ، عَنْ رَجُلٍ، عَنْ عَبْدِ اللَّهِ بْنِ الْأَرْقَمِ، وَهُوَ قَوْلُ غَيْرِ وَاحِدٍ مِنْ أَصْحَابِ النَّبِيِّ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ وَالتَّابِعِينَ، وَبِهِ يَقُولُ أَحْمَدُ، وَإِسْحَاق، قَالَا: لَا يَقُومُ إِلَى الصَّلَاةِ وَهُوَ يَجِدُ شَيْئًا مِنَ الْغَائِطِ وَالْبَوْلِ، وَقَالَا: إِنْ دَخَلَ فِي الصَّلَاةِ فَوَجَدَ شَيْئًا مِنْ ذَلِكَ فَلَا يَنْصَرِفْ مَا لَمْ يَشْغَلْهُ. وقَالَ بَعْضُ أَهْلِ الْعِلْمِ: لَا بَأْسَ أَنْ يُصَلِّيَ وَبِهِ غَائِطٌ أَوْ بَوْلٌ مَا لَمْ يَشْغَلْهُ ذَلِكَ عَنِ الصَّلَاةِ.**[1]

**ترجمه :** دعروه رضي الله عنه نه روايت دي فرماني چي زيد بن ارقم رضي الله عنه دخپل قوم امام وو مونځ چي اودريدو نو هغوئ ديو كس لاس اونيوو او امامت ته يې راوړاندي كړو او ونيل يي چي ما درسول الله صلي الله عليه وسلم نه اوريدلي دي فرمائيل يي چي كله چي

---

[1] سنن ابي داود/ الطهارة ٤٣ (٨٨) . سنن النسائي/الإمامة ٥١ (٨٥٣) . سنن ابن ماجه/الطهارة ١١٤ (٦١٦) . (تحفة الأشراف : ٥١٣١) . موطا امام مالك/ صلاة السفر ١٧ (٤٩) . مسند احمد (٣/٣٥) . سنن الدارمي/الصلاة ١٣٧ (١٤٦٧)

دمونځ دپاره اقامت اوشي او په تاسو کي څوك داودس ماتولو ضرورت محسوس کړي نو هغه دي اول اودس ماتولو ته لاړ شي.

**تشريح** : په دي مسئله کي اختلاف دي چي ديو کس اودس ماتولو ته حاضر راشي او دغه وخت کي جماعت قائم شي او دي په داسي حالت کي مونځ اوکړي نو ايامونځ يي کيږي او کنه، دامام مالك په نزد دداسي کس مونځ نه کيږي او دجمهورو په نزد کيږي مګر دامام ابو حنيفه په نزد په دي مسئله کي تفصيل دي کچري اودس ماتول پريشان کونکي حالت ته نزدي وي نو دا دجماعت دپريخودلو دپاره عذر دي او په داسي حالت کي مونځ کول مکروه تحريمي دي او که خبره داسي حالت ته رسيدلي نه وي نو دا به بيا د دوه حالاتو نه خالي نه وي يا خو به په مونځ کي دتوجه دپاره خلل وي او يا به نه وي که توجه ته نقصان رسوي نو دا هم دجماعت دپريخودو دپاره عذر دي او په داسي حالت کي مونځ کول مکروه تنزيهي دي او که دتوجه دپاره مضر نه وي نو دا به دجماعت پريخودو دپاره عذر نه ګنړلي کيږي

***************

## ۱۰۹_ بَابُ مَا جَاءَ فِي الْوُضُوءِ مِنَ الْمَوْطَإِ

### په ګنده ځايونوکي تيريدوسره دخپووينځلوبيان

۱۴۳_ حَدَّثَنَا أَبُو رَجَاءٍ قُتَيْبَةُ. حَدَّثَنَا مَالِكُ بْنُ أَنَسٍ، عَنْ مُحَمَّدِ بْنِ عُمَارَةَ، عَنْ مُحَمَّدِ بْنِ إِبْرَاهِيمَ، عَنْ أُمِّ وَلَدٍ لِعَبْدِ الرَّحْمَنِ بْنِ عَوْفٍ، قَالَتْ: قُلْتُ لِأُمِّ سَلَمَةَ: إِنِّي امْرَأَةٌ أُطِيلُ ذَيْلِي وَأَمْشِي فِي الْمَكَانِ الْقَذِرِ. فَقَالَتْ قَالَ رَسُولُ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ: "يُطَهِّرُهُ مَا بَعْدَهُ". قَالَ: وَفِي الْبَابِ عَنْ عَبْدِ اللهِ بْنِ مَسْعُودٍ. قَالَ: كُنَّا مَعَ رَسُولِ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ لَا نَتَوَضَّأُ مِنَ الْمَوْطَإِ. قَالَ أَبُو عِيسَى: وَهُوَ قَوْلُ غَيْرِ وَاحِدٍ مِنْ أَهْلِ الْعِلْمِ. قَالُوا: إِذَا وَطِئَ الرَّجُلُ عَلَى الْمَكَانِ الْقَذِرِ. أَنَّهُ لَا يَجِبُ عَلَيْهِ غَسْلُ الْقَدَمِ. إِلَّا أَنْ يَكُونَ رَطْبًا فَيَغْسِلَ مَا أَصَابَهُ. قَالَ أَبُو عِيسَى: وَرَوَى عَبْدُ اللهِ بْنُ الْمُبَارَكِ هَذَا الْحَدِيثَ. عَنْ مَالِكِ بْنِ أَنَسٍ، عَنْ مُحَمَّدِ بْنِ عُمَارَةَ، عَنْ مُحَمَّدِ بْنِ إِبْرَاهِيمَ، عَنْ أُمِّ وَلَدٍ لِهُودِ بْنِ عَبْدِ الرَّحْمَنِ بْنِ عَوْفٍ، عَنْ أُمِّ سَلَمَةَ وَهُوَ وَهَمٌ. وَلَيْسَ لِعَبْدِ الرَّحْمَنِ بْنِ عَوْفٍ ابْنٌ يُقَالُ لَهُ: هُودٌ. وَإِنَّمَا هُوَ: عَنْ أُمِّ وَلَدٍ لِإِبْرَاهِيمَ بْنِ عَبْدِ الرَّحْمَنِ بْنِ عَوْفٍ، عَنْ أُمِّ سَلَمَةَ وَهَذَا الصَّحِيحُ. (۱)

[1] سنن ابي داود/ الطهارة ۴۰ (۳۸۳) . سنن ابن ماجه/الطهارة ۷۹ (۵۳۱) . (تحفة الأشراف : ۱۸۲۹۶) . موطا امام مالک/الطهارة ۴ (۱۶) . مسند احمد (۶/۲۹۰ . ۳۱۶) . سنن الدارمي/الطهارة ۶۳ (۷۶۹)

**ترجمه** : دعبدالرحمن بن عوف رضي الله عنه ديوي ام ولدي بيان دي چي ما دام المؤمنين ام سلمه رضي الله عنها نه تپوس اوکړو چي زه يوي اوږدي لمني والا ښځه يم او زما تيريدل اکثر په ګنده ځايونو او ډيرانونو کيږي نو زما دپاره څه حکم دي ام سلمه اوفرمائيل رسول الله صلي الله عليه وسلم فرمائيلي دي په ګنده زمکه پسي چي پس ته په پاکه زمکه تيريږدي دا پاکه زمکه دي لره پاکوي

امام ترمذي وائي په دي باب کي دعبدالله ابن مسعود رضي الله عنه نه هم يو روايت مروي دي چي مونږ درسول الله صلي الله عليه وسلم سره په ګنده ځايونو دتيريدو نه پس خپي اونه وينځلي په اهل علمو کي داکثرو دا قول دي چي کله يو سړي په ګنده لاره تير شي دهغه دپاره خپي وينځل ضروري نه دي علاوه ددينه چي ګندګي خوره شوي وي نو که په داسي حال کي څه نجاست وربوري شوي وي هغه دي اووينځي

***************

## ۱۱۰_ بَابُ مَا جَاءَ فِي التَّيَمُّمِ

### دتيمم بيان

۱٤٤_ حَدَّثَنَا أَبُو حَفْصٍ عَمْرُو بْنُ عَلِيٍّ الْفَلَّاسُ، حَدَّثَنَا يَزِيدُ بْنُ زُرَيْعٍ، حَدَّثَنَا سَعِيدٌ، عَنْ قَتَادَةَ، عَنْ عَزْرَةَ، عَنْ سَعِيدِ بْنِ عَبْدِ الرَّحْمَنِ بْنِ أَبْزَى، عَنْ أَبِيهِ، عَنْ عَمَّارِ بْنِ يَاسِرٍ، أَنَّ النَّبِيَّ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ "أَمَرَهُ بِالتَّيَمُّمِ لِلْوَجْهِ وَالْكَفَّيْنِ". قَالَ: وَفِي الْبَابِ عَنْ عَائِشَةَ، وَابْنِ عَبَّاسٍ. قَالَ أَبُو عِيسَى: حَدِيثُ عَمَّارٍ حَسَنٌ صَحِيحٌ، وَقَدْ رُوِيَ عَنْ عَمَّارٍ مِنْ غَيْرِ وَجْهٍ، وَهُوَ قَوْلُ غَيْرِ وَاحِدٍ مِنْ أَهْلِ الْعِلْمِ مِنْ أَصْحَابِ النَّبِيِّ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ، مِنْهُمْ عَلِيٌّ، وَعَمَّارٌ، وَابْنُ عَبَّاسٍ وَغَيْرِ وَاحِدٍ مِنَ التَّابِعِينَ، مِنْهُمْ الشَّعْبِيُّ، وَعَطَاءٌ، وَمَكْحُولٌ، قَالُوا: التَّيَمُّمُ ضَرْبَةٌ لِلْوَجْهِ وَالْكَفَّيْنِ، وَبِهِ يَقُولُ أَحْمَدُ، وَإِسْحَاق، وقَالَ بَعْضُ أَهْلِ الْعِلْمِ مِنْهُمْ: ابْنُ عُمَرَ، وَجَابِرٌ، وَإِبْرَاهِيمُ، وَالْحَسَنُ، قَالُوا: التَّيَمُّمُ ضَرْبَةٌ لِلْوَجْهِ وَضَرْبَةٌ لِلْيَدَيْنِ إِلَى الْمِرْفَقَيْنِ، وَبِهِ يَقُولُ سُفْيَانُ الثَّوْرِيُّ، وَمَالِكٌ، وَابْنُ الْمُبَارَكِ، وَالشَّافِعِيُّ، وَقَدْ رُوِيَ هَذَا الْحَدِيثُ، عَنْ عَمَّارٍ فِي التَّيَمُّمِ، أَنَّهُ قَالَ: لِلْوَجْهِ وَالْكَفَّيْنِ مِنْ غَيْرِ وَجْهٍ، وَقَدْ رُوِيَ عَنْ عَمَّارٍ، أَنَّهُ قَالَ: تَيَمَّمْنَا مَعَ النَّبِيِّ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ إِلَى الْمَنَاكِبِ وَالْآبَاطِ، فَضَعَّفَ بَعْضُ أَهْلِ الْعِلْمِ حَدِيثَ عَمَّارٍ، عَنِ النَّبِيِّ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ فِي التَّيَمُّمِ لِلْوَجْهِ وَالْكَفَّيْنِ، لَمَّا رُوِيَ عَنْهُ حَدِيثُ الْمَنَاكِبِ وَالْآبَاطِ، قَالَ إِسْحَاق بْنُ إِبْرَاهِيمَ بْنِ مَخْلَدٍ الْحَنْظَلِيُّ: حَدِيثُ عَمَّارٍ فِي التَّيَمُّمِ لِلْوَجْهِ وَالْكَفَّيْنِ هُوَ حَدِيثٌ حَسَنٌ صَحِيحٌ، وَحَدِيثُ عَمَّارٍ تَيَمَّمْنَا مَعَ النَّبِيِّ

Scanned with C

صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ إِلَى الْمَنَاكِبِ وَالْآبَاطِ لَيْسَ هُوَ بِمُخَالِفٍ لِحَدِيثِ الْوَجْهِ وَالْكَفَّيْنِ، لِأَنَّ عَمَّارًا لَمْ يَذْكُرْ أَنَّ النَّبِيَّ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ أَمَرَهُمْ بِذَلِكَ، وَإِنَّمَا قَالَ: فَعَلْنَا كَذَا وَكَذَا فَلَمَّا سَأَلَ النَّبِيَّ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ أَمَرَهُ بِالْوَجْهِ وَالْكَفَّيْنِ، فَانْتَهَى إِلَى مَا عَلَّمَهُ رَسُولُ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ الْوَجْهِ وَالْكَفَّيْنِ، وَالدَّلِيلُ عَلَى ذَلِكَ مَا أَفْتَى بِهِ عَمَّارٌ بَعْدَ النَّبِيِّ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ فِي التَّيَمُّمِ. أَنَّهُ قَالَ: الْوَجْهِ وَالْكَفَّيْنِ. فَفِي هَذَا دَلَالَةٌ أَنَّهُ انْتَهَى إِلَى مَا عَلَّمَهُ النَّبِيُّ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ. فَعَلَّمَهُ إِلَى الْوَجْهِ وَالْكَفَّيْنِ، قَالَ: وَسَمِعْتُ أَبَا زُرْعَةَ عُبَيْدَ اللهِ بْنَ عَبْدِ الْكَرِيمِ، يَقُولُ: لَمْ أَرَ بِالْبَصْرَةِ أَحْفَظَ مِنْ هَؤُلَاءِ الثَّلَاثَةِ عَلِيِّ بْنِ الْمَدِينِيِّ، وَابْنِ الشَّاذَكُونِيِّ، وَعَمْرِو بْنِ عَلِيٍّ الْفَلَّاسِ. قَالَ أَبُو زُرْعَةَ: وَرَوَى عَفَّانُ بْنُ مُسْلِمٍ، عَنْ عَمْرِو بْنِ عَلِيٍّ حَدِيثًا. ([1])

**ترجمه** : دعمار بن یاسر رضي الله عنه نه روایت دي چي هغه ته رسول الله صلي الله علیه وسلم په مخ او په دواړو ورغوو دتیمم کولو حکم کړي وو امام ترمذي وائي دعمار حدیث حسن صحیح دي، او په دي باب کي دعائشه او ابن عباس رضي الله عنهما نه هم احادیث وارد دي. او همدا داکثرو صحابه کرامو او اهل علمو قول دي په کومو کي چي علي، عمار، ابن عباس رضي الله عنهم هم شامل دي او په تابعینو کي داکثرو قول دي په کومو کي چي شعبي، عطاء، مکحول شامل دي، ددي ټولو قول دي چي تیمم دمخ او دواړو لاسونو دپاره صرف یو ځل دي او ددي قائل امام احمد او اسحاق بن راهویه هم دي، بعضي اهل علم لکه ابن عمر، جابر، ابراهیم نخعي او حسن بصري وائي چي تیمم دمخ دپاره یو ضرب دي او ددواړو لاسونو ترځنګلو پوري بل ضرب دي ددي قائل سفیان ثوري، امام مالك، ابن مبارك، شافعي دي، دتیمم په سلسله کي دا حدیث چي دمخ او ددواړو لاسونو دپاره یو ضرب دي په نورو سندونو هم مروي دي، دعمار رضي الله عنه نه دتیمم په حدیث کي منقول دي چي موږ دنبي کریم صلي الله علیه وسلم سره داوبو او ترخونو پوري تیمم اوکړو، بعضي اهل علمو دتیمم په سلسله کي دعمار دحدیث تضعیف کړي دي خکه چي دهغه نه داوبو او ترخونو والاحدیث مروي دي، اسحاق بن ابراهیم مخلد حنظلي وائي چي دمخ او ددواړو څنګلو دپاره دیو ضرب والاحدیث په تیمم په سلسله کي حسن صحیح دي او دعمار رضي الله عنه حدیث په کوم کي چي داوګو ترخونو پوري دتیمم ذکر راغلي دي دا دهغه حدیث مخالف نه دي په کوم کي چي دمخ او

[1] صحیح البخاری/التیمم ۴ (۳۳۸)، و۶ (۳۳۹، ۳۴۰، ۳۴۱، ۳۴۲)، صحیح مسلم/الحیض ۲۸ (۳۶۸/۱۱۲)، سنن ابی داود/ الطهارة ۱۲۳ (۳۲۲)، سنن النسائی/الطهارة ۱۹۶ (۳۱۳)، و۲۰۰ (۳۱۸)، و۲۰۲ (۳۲۰)، سنن ابن ماجه/الطهارة ۹۱ (۵۶۹)، (تحفة الأشراف: ۱۰۳۶۲)، مسند احمد (۴/۲۶۳، ۲۶۵، ۳۱۹، ۳۲۰)

ددواړو لاسونو ذکر راغلي دي ځکه چي عمار رضي الله عنه دا نه دي ذکر کړي نبي کريم صلي الله عليه وسلم مونږ ته ددي حکم کړي دي بلکه صرف دومره يې وئيلي دي چي مونږ داسي کړي دي بيا چي کله هغوئ په دي باره کي دنبي کريم صلي الله عليه وسلم نه تپوس اوکړو نو رسول الله ورته صرف دمخ او ددواړو لاسونو حکم اوکړو نو خبره په مخ او دواړو لاسونو باندي اودريده دکومي چي ديته رسول الله تعليم ورکړي دي او ددي دليل دتيمم په سلسله کي دعمار رضي الله عنه هغه فتوي ده کومه چي هغه دنبي کريم صلي الله عليه وسلم نه پس ورکړي وه چي تيمم صرف دمخ او ددواړو ورغوو دپاره نو په دي کي په دي خبره باندي دلالت دي چي هغه په داسي ځاي اودريدو دکوم چي نبي کريم صلي الله عليه وسلم هغوئ ته تعليم ورکړي وو او رسول الله چي دوئ ته کوم تعليم ورکړي وو هغه دمخ او دواړو لاسونو پوري محدود وو

**حل لغات** : دتيمم لغوى معنى مطلقاً اراده کول دى،اود حج لغوى معنى د څه معظم او لوئي خيز ارده کول،او د شريعت په اصطلاح کي د تيمم معنى ده.د طهارت حاصلولو دپاره د پاکي خاورى اراده کول.

**تشريح** : داودس د مقدم ذکر کولو اود تيمم د موخر ذکر کولو دوه وجوهات دي اوله وجه داده چي چونکه په اوبو باندي طهارت حاصلول اصل دي.او په خاوره باندي طهارت حاصلول ددى خليفه دي،اوخليفه د أصل نه پس وى،نو په دى وجه مصنف د ترمذي دتيمم باب داودس نه پس ذکر کړلو،دويم:ددى ترتيب دويمه وجه د قرآن کريم اتباع ده. په دى وجه چى د قرآن کريم په آيت ﴿إِذَا قُمْتُمْ إِلَى الصَّلَاةِ﴾ الخ کي اودس غسل او تيمم په دى ترتيب سره ذکر شوى دى.

دتيمم لغوى معنى مطلقاً اراده کول دى،اود حج لغوى معنى د څه معظم او لوئي خيز ارده کول،او د شريعت په اصطلاح کي د تيمم معنى ده،د طهارت حاصلولو دپاره د پاکي خاورى اراده کول. شيخ الادب په حاشيه دشرح نقايه کي د علامه ابن الهمام په حوالى سره ذکرکړى دى چى د تيمم شرعى تعريف د مخ او دواړو لاسونوپه پاکه خاوره باندي مسح کول دى، د تيمم ثبوت په قرآن او سنت دواړو کي موجود دي،اول:دالله ﷻ ارشاد دي ﴿فَلَمْ تَجِدُوا مَاءً فَتَيَمَّمُوا صَعِيدًا طَيِّبًا﴾او درسول پاك صلي الله عليه وسلم نه روايت منقول دي چى "أنه قال جعلت لى الأرض مسجدا وطهورا أينما أدركني الصلاة تيممت وصليت" يعنى رسول پاك صلي الله عليه وسلم فرمائيلى دى،زمکه زما دپاره مسجد او پاکونکى ګرځولي شوي ده،په کوم ځاي کي چى راباندي مونځ راشى،نو تيمم به کوم او مونځ به کوم،دويم: اوپه بل حديث کي دى چى "التراب طهور المسلم ولوإلى عشر حجج مالم يجد الماء" يعنى خاوره د مسلمان دپاره

Scanned with

پاکونکي ده،اګرچې ترلس کالو پورې وی چې تر څو نې اوبه نه وی موندلې.د عائشه رضی الله عنها قصه چې په هغې کې د تیمم آیت نازل شوې وو،ددی په خاې اووخت کې اختلاف دې، د وخت په باره کې دری اقوال دی،(۱) څلورمه هجری (۲) پنځمه هجری (۳) شپږمه هجری او د خاې په باره کې دوه اقوال دی،(۱) غزوه مریسیع چې هغې ته غزوه بنی مصطلق هم وائی،(۲) غزوه ذات الرقاع.

دلته دعالمانو یوځو اقوال دې، اول قول د جمهورو دی دوي وایي: تیمم دوه ضربه دې. په یو ضرب به د مخ مسح اوکړی،اوپه بل ضرب په د دواړو لاسونو ترڅنګلو پورې مسح اوکړی،دویم:امام زهری فرمائی چې دترخونو پورې به مسح کوی،اود امام مالك رحمه الله نه هم دا یو روایت دې،دریم:او حسن بن زیاد د امام ابوحنیفه رحمه الله نه روایت کړې دې چې دواړه لاسونه دی تر مړوندونو پورې مسح کوی.دغوره مذهب دلیل د رسول پاك صلي الله علیه وسلم دا قول دی چې "التیمم ضربتان ضربة للوجه وضربة للذراعین"

د ابن عمر رضي الله عنه اوجابر رضي الله عنه درسول پاك صلي الله علیه وسلم تیمم نقل منقول دې فرمائی،د دی طریقه داده چې دواړه لاسونه به زمکې ته راپریږدی،بیا به دا دومره اوسنډی چې خاوره تری لری شی.بیا دی په هغې باندې مخ مسح کړی،بیا دی په دویم ځل زمکه اووهی،او دا دی اوسنډی،اودخپل ګس لاس د څلورو ګوتو په باطن دی دخپل ښی لاس ظاهر په دی طریقه مسح کړی چې د ګوتو د سوکو نه به شروع اوکړی،او ترڅنګلو پورې به اورسی،او بیا دی د خپل ګس تلی په باطن باندې دخپل ښی لاس باطن د مړونده پورې مسح کړی ، اودخپل ګس لاس د ګوتې په باطن دی دخپل ښی لاس د ګوتې په ظاهر باندې راکاږی.اوبیا دی دغه شان د ګس لاس مسح اوکړی

په دي مسئله کي دوه روایتونه دي. اول دا چې په تیمم کي استیعاب شرط دې.که څه هم بغیر د مسح نه پاتې شو،نوتیمم نه کیږی.لکه چې په اودس کي دې،دا حکم دظاهرروایت مطابق دې،دویم:اوحسن بن زیاد دامام ابوحنیفه رحمه الله نه روایت کړې دې چې اکثر دکل قائم مقام دې،او دلیل دا دې چې په ممسوحاتو کي استیعاب شرط نه وی.لکه چې د موزی او سر په مسح کي استیعاب شرط نه دې.اود ظاهر روایت وجه داده چې تیمم د اودس قائم مقام دې،هم دا وجه ده چې فقهاء فرمائیلی دی چې په تیمم کي به خلال کوی.اوکه ګوتمه نې اچولی وی.هغه به اوباسی چې مسح پوره اوشی.اوپه اودس کي استیعاب شرط دې،نو چې کوم څیز ددی قائم مقام وی.هغی کي به هم استیعاب شرط وی.یعنی تیمم.که تیمم د اودس خلیفه نه وو ،نو مسح به تر اوږو پورې وه، په دی وجه چې الله تعالی د تیمم په آیت کي فرمائیلی دی.﴿فامسحوا بوجوهکم وأیدیکم منه﴾ دا نې بغیر دغایت نه ذکر کړ ی دې

***************

١٤٥_ حَدَّثَنَا يَحْيَى بْنُ مُوسَى، حَدَّثَنَا سَعِيدُ بْنُ سُلَيْمَانَ، حَدَّثَنَا هُشَيْمٌ، عَنْ مُحَمَّدِ بْنِ خَالِدٍ الْقُرَشِيِّ، عَنْ دَاوُدَ بْنِ حُصَيْنٍ، عَنْ عِكْرِمَةَ، عَنِ ابْنِ عَبَّاسٍ، أَنَّهُ سُئِلَ عَنِ التَّيَمُّمِ، فَقَالَ: إِنَّ اللَّهَ قَالَ فِي كِتَابِهِ حِينَ ذَكَرَ الْوُضُوءَ: فَاغْسِلُوا وُجُوهَكُمْ وَأَيْدِيَكُمْ إِلَى الْمَرَافِقِ سورة المائدة آية ٦، وَقَالَ فِي التَّيَمُّمِ: فَامْسَحُوا بِوُجُوهِكُمْ وَأَيْدِيكُمْ سورة المائدة آية ٦، وَقَالَ: وَالسَّارِقُ وَالسَّارِقَةُ فَاقْطَعُوا أَيْدِيَهُمَا (المائدة ٣٨)، فَكَانَتِ السُّنَّةُ فِي الْقَطْعِ الْكَفَّيْنِ، إِنَّمَا هُوَ الْوَجْهُ وَالْكَفَّانِ "يَعْنِي التَّيَمُّمَ". قَالَ أَبُو عِيسَى: هَذَا حَسَنٌ صَحِيحٌ. [1]

**ترجمه** : دعكرمه بيان دي چي دعبدالله ابن عباس رضي الله عنهما نه دتيمم په باره كي تپوس اوكړي شو نو ويي فرمائيل الله تعالي پخپل كتاب كي چي څه وخت داودس ذكر كړي دي نو فرمائيلي يي دي خپل مخونه او خپل لاسونه دځنګلو پوري اووينځئ او دتيمم باره كي يي فرمائيلي دي چي په مخونو او لاسونو مسح اوكړئ او بيا يي فرمائيلي دي دغل سړي او غلي ښځي سزا داده چي ددوئ لاسونه به كټ كولي شي او دكټ كولو په سلسله كي سنت دادي چي دمړوندونو پوري لاس به كټ كيدو لهذا تيمم صرف دمړوندونو پوري دي

امام ترمذي وائي دا حديث حسن غريب دي.

**تشريح** : دتيمم نه مخكي د اودس ذكر وو او اودس اصل وو او تيمم خليفه دي او خليفه داصل نه وروسته دي دتيمم حكم دغزوه بني مصطلق په موقع دعائشه رضي الله عنها هار ورك شوي وو معلوم شوي وو په دي كي اختلاف دي چي دتيمم دپاره څو ضربونه دي او د يدينو حق څه دي په دي كي څلور مذاهب دي (١) دامام ابو حنيفه او شافعي په نزد دتيمم دپاره دوه ضربونه دي يو دمخ دپاره دي او بل ديدين دپاره دي او ديدين حد مرفقين دي او ددي دليل په طحاوي كي داثلع رضي الله عنه روايت دي په دي روايت كي د ضربتين ضربة للوجه وضربة لليدين الي المرفقين ذكر راغلي دي ددي مسئلي بل دليل په دارقطني كي دعمر او جابر رضي الله عنه روايتونه دي "التيمم ضربتان ضربة للوجه وضربة لليدين الي المرفقين" (٢) دويم مذهب دامام احمد دي د هغه په نزد په تيمم كي يو ضرب دي او ديدين حد رسغين يعني مړوندونه او په دي مسئله كي دحديث الباب نه استدلال كوي چي رسول الله صلي الله عليه وسلم عمار ته ديو ضرب حكم كړي وو دوجه او كفين دپاره او دكفين نه مرادو يدين الي الرسغين دي.

---

[1] تفرد به المؤلف (تحفة الأشراف: ٦٠٤٤)

جواب د عمار بن یاسر روایت انتهائي مختصر دي په دي کي صرف تیمم ته اشاره شوي ده او هغه داسي چي عمر او عمار رضي الله عنهما دواړه دبیت المال په اوبنانو کي وو اتفاقا دواړو ته دغسل ضرورت پیښ شو او اوبه موجود نه وي نو سحر دتیمم باره کي په دوی کي اختلاف پیدا شو چي دغسل دپاره تیمم شته او کنه عمر رضي الله عنه اوونیل تیمم صرف د اودس دپاره دي او عمار اوونیل چي دغسل اودس دواړو دپاره دي لیکن هغوی ددي طریقه دا کنړله چي په بدن پوري به دخاورو مرل وي نو په زمکه باندي اورغړیدل او تیمم یي اوکړو هر کله چي په دربار رسالت کي تمامه واقعه پیش کړي شوه رسول الله صلي الله علیه وسلم دعمار تائید اوکړو چي تیمم دغسل دپاره هم دي لیکن دتیمم دطریقي نفي یي اوکړ چي ستاسو طریقه درسته نه ده بلکه طریقه یي هغه ده کوم چي د اودس دپاره د تیمم طریقه وي او د اودس دپاره دتیمم طریقه په صحابه کرامو کي معروف ده نو ځکه ورته رسول الله صرف اشاره اوکړه.

دریم مذهب دامام مالك دي چي دتیمم دپاره دوه ضربونه دي او دیدین حد رسغین دي وجوبا او مرفقین پوري استحبابا دي امام مالك په طریقه دجمع بین الاحادیث استدلال کوي اوقاعده داده چي په بعضي احادیثو کي دیدین حق رسغین دي او په بعضي کي مرفقین دي مونږ په دواړه قسمه احادیثو کي داستحباب حکم اوکړو.

څلورم مذهب دامام زهري دي دده په نزد دیدین حد اباط او منافق دي او ضربین دوه دي دده دلیل دعمار بن یاسر رضي الله عنه روایت دي "تیممنا مع النبي صلي الله علیه وسلم الي المناکب والاباط" دا دصحابه کرامو خپل عمل دي او تقریر درسول په دي باندي ثابت نه دي. دویمه دا چي عمار رضي الله عنه درسول الله نه پس چاته دا فتوي نه ده ورکړي چي دیدین حد اباد او مناکب پوري دي او په "السارق والسارقة" باندي دابن عباس دقیاس مطلب دادي چي دهغه نه تپوس اوکړي شو چي په تیمم کي دیدین حد څه دي نو هغوی دا په قطع دید باندي قیاس کړو چي په اودس کي دیدین حد مذکور دي الي المرافق او په تیمم کي نه دي مذکور نو لکه څرنګه چي په ایت د سرق کي دیدین حد رسغین دي په تیمم کي به هم رسغین وي ځکه چي دواړه په مطلق کیدو کي شریك دي.

***************

## ۱۱۰ـ بَابُ مَا جَاءَ فِي الرَّجُلِ يَقْرَأُ الْقُرْآنَ عَلَى كُلِّ حَالٍ مَا لَمْ يَكُنْ جُنُبًا

### انسان په هر حال کي قران لوستلي شي خو چي جنب نه وي

۱۴۶ـ حَدَّثَنَا أَبُو سَعِيدٍ عَبْدُ اللَّهِ بْنِ سَعِيدٍ الْأَشَجُّ. حَدَّثَنَا حَفْصُ بْنُ غِيَاثٍ، وَعُقْبَةُ بْنُ خَالِدٍ، قَالَا: حَدَّثَنَا الْأَعْمَشُ، وَابْنُ أَبِي لَيْلَى. عَنْ عَمْرِو بْنِ مُرَّةَ. عَنْ عَبْدِ اللَّهِ بْنِ سَلِمَةَ. عَنْ عَلِيٍّ. قَالَ: "

كَانَ رَسُولُ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ يُقْرِئُنَا القُرْآنَ عَلَى كُلِّ حَالٍ مَا لَمْ يَكُنْ جُنُبًا ". قال أبو عيسى: حَدِيثُ عَلِيٍّ هَذَا حَسَنٌ صَحِيحٌ. وَبِهِ قَالَ: غَيْرُ وَاحِدٍ مِنْ أَهْلِ العِلْمِ أَصْحَابِ النَّبِيِّ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ وَالتَّابِعِينَ. قَالُوا: يَقْرَأُ الرَّجُلُ القُرْآنَ عَلَى غَيْرِ وُضُوءٍ وَلَا يَقْرَأُ فِي المُصْحَفِ إِلَّا وَهُوَ طَاهِرٌ. وَبِهِ يَقُولُ سُفْيَانُ الثَّوْرِيُّ، وَالشَّافِعِيُّ، وَأَحْمَدُ، وَإِسْحَاقُ. [1]

**ترجمه** : دعلي رضي الله عنه نه روايت دي چي رسول الله صلي الله عليه وسلم به مونږ ته قران خودلو اګر که هر څنګه حالت به وو خو چي جنب به نه وو. امام ترمذي وائي دعلي رضي الله عنه دا حديث حسن صحيح دي او په صحابه کرامو او تابعينو کي هم داکثرو دا قول دي چي يو سړي بغير د اودس نه قران لوستلي شي ليکن دقران نه يي هغه وخت لوستلي شي چي اودس يي وي، سفيان ثوري، شافعي، احمد او اسحاق هم رحمهم الله په دي باندي قول کړي دي.

**تشريح** : په هندي نسخو کي دا باب بلاعنوان دي او په مصري نسخو کي داسي دي باب ماجاء في الرجل يقراء القران علي كل حال مالم يكن جنبا ، يعني يو انسان به هر حالت کي قران لوستلي شي مګر دجنابت په حالت کي قران لوستل يا ورنه لاس لګول جائز نه دي او چي کوم حکم دجنب دي هغه دحائضي او نفاسي هم دي او بغير اودسه خو قران لوستل جائز دي مګر لاس ورنه لګول جائز نه دي.

****************

## ١١٢ـ بَابُ مَا جَاءَ فِي الْبَوْلِ يُصِيبُ الأَرْضَ

### دهغه زمکي دحکم بيان چي متيازي وربا ندي شوي وي

١٤٧ـ حَدَّثَنَا ابْنُ أَبِي عُمَرَ، وَسَعِيدُ بْنُ عَبْدِ الرَّحْمَنِ المَخْزُومِيُّ، قَالَا: حَدَّثَنَا سُفْيَانُ بْنُ عُيَيْنَةَ، عَنْ الزُّهْرِيِّ، عَنْ سَعِيدِ بْنِ المُسَيَّبِ، عَنْ أَبِي هُرَيْرَةَ، قَالَ: دَخَلَ أَعْرَابِيٌّ المَسْجِدَ وَالنَّبِيُّ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ جَالِسٌ فَصَلَّى، فَلَمَّا فَرَغَ، قَالَ: اللَّهُمَّ ارْحَمْنِي وَمُحَمَّدًا وَلَا تَرْحَمْ مَعَنَا أَحَدًا، فَالتَفَتَ إِلَيْهِ النَّبِيُّ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ، فَقَالَ: " لَقَدْ تَحَجَّرْتَ وَاسِعًا ". فَلَمْ يَلْبَثْ أَنْ بَالَ فِي المَسْجِدِ

[1] قال الشيخ الألباني: ضعيف. ابن ماجة (٥٩٤).

Scanned with C

فَأَسْرَعَ إِلَيْهِ النَّاسُ، فَقَالَ النَّبِيُّ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ: "أَهْرِيقُوا عَلَيْهِ سَجْلًا مِنْ مَاءٍ أَوْ دَلْوًا مِنْ مَاءٍ" ثُمَّ قَالَ: "إِنَّمَا بُعِثْتُمْ مُيَسِّرِينَ وَلَمْ تُبْعَثُوا مُعَسِّرِينَ".[1]

**ترجمه** : دابوهريره رضي الله عنه نه روايت دي فرماني چي يو اعرابي مسجد ته داخل شو، او نبي كريم صلي الله عليه وسلم په مسجد كي ناست وو ده مونځ اوكړو او چي كله يې مونځ پوره كړو نو ويې وئيل اي الله ته په ما باندي او په محمد (صلي الله عليه وسلم) باندي رحم اوكړي او زمونږ سره په هيڅوا رحم مكوه، رسول الله صلي الله عليه وسلم اعرابي ته متوجه شو او ويې فرمائيل تا خو يو ډير فراخه څيز (رحمت الهي) راتنګ كړو او بيا يوه شيبه پس اعرابي په مسجد كي متيازي اوكړي خلقو په تيزۍ سره ورمنډه كړل نو نبي كريم صلي الله عليه وسلم اوفرمائيل يوه بهوكه اوبه ورباندي واړوئ او بيا يې اوفرمائيل تاسو خو اساني كونكي ليږلي شوي يئ نه چي سختي كونكي.

****************

١٤٨_ قَالَ سَعِيدٌ: قَالَ سُفْيَانُ: وَحَدَّثَنِي يَحْيَى بْنُ سَعِيدٍ، عَنْ أَنَسِ بْنِ مَالِكٍ نَحْوَ هَذَا. قَالَ: وَفِي الْبَابِ عَنْ عَبْدِ اللَّهِ بْنِ مَسْعُودٍ، وَابْنِ عَبَّاسٍ، وَوَاثِلَةَ بْنِ الْأَسْقَعِ. قَالَ أَبُو عِيسَى: وَهَذَا حَسَنٌ صَحِيحٌ، وَالْعَمَلُ عَلَى هَذَا عِنْدَ بَعْضِ أَهْلِ الْعِلْمِ، وَهُوَ قَوْلُ أَحْمَدَ، وَإِسْحَاقَ، وَقَدْ رَوَى يُونُسُ هَذَا الْحَدِيثَ، عَنِ الزُّهْرِيِّ، عَنْ عُبَيْدِ اللَّهِ بْنِ عَبْدِ اللَّهِ، عَنْ أَبِي هُرَيْرَةَ.[2]

**ترجمه** : په مذكوره سند باندي دانس بن مالك رضي الله عنه نه هم دمخكي حديث يو هم معني روايت مروي دي.

امام ترمذي وائي دا حديث حسن صحيح دي او په دي باب كي د عبدالله ابن مسعود، ابن عباس، او واثله بن اسقع رضي الله عنهم نه هم احاديث وارد دي. د بعضي اهل علمو په دي باندي عمل دي او همدا د احمد او اسحاق بن راهويه قول هم دي

---

[1] سنن ابي داود/ الطهارة ١٣٩ (٣٨٠)، سنن النسائي/السهو ٢٠ (١٢١٧)، (تحفة الأشراف ١٣١٣٩) ، مسند احمد (٢/٢٣٩) وراجع أيضا: صحيح البخاري/الوضوء ٥٨ (٢٢٠)، والأدب ٢٤ (٦٠١٠) و٨٠ (٦١٢٨) سنن النسائي/الطهارة ٤٢ (٥٦) والمياه ٢ (٣٣١)، سنن ابن ماجه/الطهارة ٧٨ (٥٢٩)، مسند احمد (٢/٢٨٢، ٥٠٣) (تحفة الأشراف ١٤١١١، ١٥٠٤٣)

[2] صحيح البخاري/الوضوء ٥٦ (٢١٩)، و٥٧ (٢٢١)، والأدب ٣٥ (٦٠٢٥) صحيح مسلم/الطهارة ٣٠ (٢٨٤)، سنن النسائي/الطهارة ٤٥ (٥٣، ٥٤، ٥٥)، والمياه ٢ (٣٣٠)، سنن ابن ماجه/الطهارة ٧٨ (٥٢٨)، (تحفة الأشراف: ١٦٥٤، ولم يذكر الترمذيّ)، مسند احمد (٣/١١٠، ١١٤، ١٦٧)، سنن الدارمي/الطهارة ٦٢ (٧٦٧)

**تشريح** : په زير بحث روايت کي مذکور دي چي يو خل رسول الله په مسجد کي موجود وو او يو اعرابي په مسجد کي متيازي اوکړي صحابه کرامو دهغه دمنع کولو کوشش شروع کړو ليکن رسول الله صلي الله عليه وسلم منع کړل او بيا يي اوبه راوغوښتلي او دمسجد گنده شوي خاي يي پاك کړو.

سوال: ددي اعرابي نوم څه دي.

جواب: ديو قول مطابق دده نوم اقرع بن حابس دي او د بل قول مطابق عيينه بن حصن. دريم قول مطابق ذوالخويصره تميمي، او دڅلورم قول مطابق ذوالخوصره يمامي وو

سوال: دي اعرابي دمسلمانان کيدو باوجود په مسجد کي متيازي ولي اوکړي

جواب: دا اعرابي نوي مسلمان شوي وو او دپوره احکامو داسلام نه خبر نه وو

سوال: صحابه کرامو چي کله منع کولو نو رسول الله صلي الله عليه وسلم هغوئ ولي منع کړل

جواب: ددي دوه وجي دي اوله وجه داده صحابه کرامو د متيازو په دوران کي منع کول غوښتل او په داسي حالت کي منع کول دجسماني نقصان نه خالي نه وي دويمه وجه داده که په مينځ کي منع کړي شوي وي نو په مسجد کي به نجاست زيات خور شوي وو دزير بحث باب دروايت نه دزمکي دپاکولو طريقه هم معلومه شوه او يوه طريقه ددي وچيدل دي "زکاة الارض يبسها" او دويمه طريقه يي وينځل دي.

****************

Scanned with C

# كتاب الصلاة

## د مونځ د احكامو بيان

### ١ـ بَاب مَا جَاءَ فِي مَوَاقِيتِ الصَّلاَةِ عَنِ النَّبِيِّ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ

### د نبي كريم صلي الله عليه وسلم نه د مونځ د منقول وختونو بيان

دصلوة نه مخكې دطهارت ذكر وو ځكه چې طهارت په منزله دشرط دي او صلوة په منزله دمشروط دي او قانون دادي چې شرط په مشروط مقدم وي په دې مسئله كې دتمامو علماؤ اتفاق دي چې د مونځ دفرضيت حكم په ليلة الاسراء كې شوي وو مګر اختلاف په دې كې دي چې دليلة الاسرار واقعه كله پېښه شوي ده دمحققينو په نزد دنبوت په پنځم كال دمعراج واقعه پېښه شوي وه.

١٤٩ـ حَدَّثَنَا هَنَّادُ بْنُ السَّرِيِّ، حَدَّثَنَا عَبْدُ الرَّحْمَنِ بْنُ أَبِي الزِّنَادِ، عَنْ عَبْدِ الرَّحْمَنِ بْنِ الْحَارِثِ بْنِ عَيَّاشِ بْنِ أَبِي رَبِيعَةَ، عَنْ حَكِيمِ بْنِ حَكِيمٍ وَهُوَ ابْنُ عَبَّادِ بْنِ حُنَيْفٍ، أَخْبَرَنِي نَافِعُ بْنُ جُبَيْرِ بْنِ مُطْعِمٍ، قَالَ: أَخْبَرَنِي ابْنُ عَبَّاسٍ، أَنَّ النَّبِيَّ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ، قَالَ: " أَمَّنِي جِبْرِيلُ عَلَيْهِ السَّلَام عِنْدَ الْبَيْتِ مَرَّتَيْنِ، فَصَلَّى الظُّهْرَ فِي الْأُولَى مِنْهُمَا حِينَ كَانَ الْفَيْءُ مِثْلَ الشِّرَاكِ، ثُمَّ صَلَّى الْعَصْرَ حِينَ كَانَ كُلُّ شَيْءٍ مِثْلَ ظِلِّهِ، ثُمَّ صَلَّى الْمَغْرِبَ حِينَ وَجَبَتِ الشَّمْسُ وَأَفْطَرَ الصَّائِمُ، ثُمَّ صَلَّى الْعِشَاءَ حِينَ غَابَ الشَّفَقُ، ثُمَّ صَلَّى الْفَجْرَ حِينَ بَرَقَ الْفَجْرُ، وَحَرُمَ الطَّعَامُ عَلَى الصَّائِمِ، وَصَلَّى الْمَرَّةَ الثَّانِيَةَ الظُّهْرَ حِينَ كَانَ ظِلُّ كُلِّ شَيْءٍ مِثْلَهُ لِوَقْتِ الْعَصْرِ بِالْأَمْسِ، ثُمَّ صَلَّى الْعَصْرَ حِينَ كَانَ ظِلُّ كُلِّ شَيْءٍ مِثْلَيْهِ، ثُمَّ صَلَّى الْمَغْرِبَ لِوَقْتِهِ الْأَوَّلِ، ثُمَّ صَلَّى الْعِشَاءَ الْآخِرَةَ حِينَ ذَهَبَ ثُلُثُ اللَّيْلِ، ثُمَّ صَلَّى الصُّبْحَ حِينَ أَسْفَرَتِ الْأَرْضُ، ثُمَّ الْتَفَتَ إِلَيَّ جِبْرِيلُ، فَقَالَ: يَا مُحَمَّدُ هَذَا وَقْتُ الْأَنْبِيَاءِ مِنْ قَبْلِكَ وَالْوَقْتُ فِيمَا بَيْنَ هَذَيْنِ الْوَقْتَيْنِ ". قَالَ أَبُو عِيسَى: وَفِي الْبَاب عَنْ أَبِي هُرَيْرَةَ، وَبُرَيْدَةَ، وَأَبِي مُوسَى، وَأَبِي مَسْعُودٍ الْأَنْصَارِيِّ، وَأَبِي سَعِيدٍ، وَجَابِرٍ، وَعَمْرِو بْنِ حَزْمٍ، وَالْبَرَاءِ، وَأَنَسٍ. [1]

**ترجمه** : دعبدالله ابن عباس رضي الله عنهما نه روايت دي چې رسول الله صلي الله عليه وسلم فرمائيلي دي جبرائيل عليه السلام دكعبې سره ماته دوه ځلې امامت راكړي دي په رومبي ځل يې دماسپښين مونځ هغه وخت كې كړي وو كله چې نمر دزوال نه اووتلو او سوري دپيزار دتسمې برابر ګرځيدلي وو. بيا يې دمازيګر مونځ په هغه وخت كې اوكړو كله چې دهر

---

[1] سنن ابي داود/ الصلاة ٢ (٣٩٣)، (تحفة الأشراف: ٦٥١٩)، مسند احمد (٣٣٣/١، ٣٥٤)

ځيز سوري ديو مثل سره برابر شو او بيا يي دمابښام مونځ هغه وخت اوکړو کله چي نمر پريوتو او په روژه دارو يي افطار اوکړو، بيا يي دماسخوتن مونځ هغه وخت اوکړو کله چي شفق غائب شو او بيا يي دسحر مونځ هغه وخت اوکړو کله چي رڼړا راخوره شوه او په روژه دارو يي خوړل څکل حرام کړل، په دويم ځل يي دسباني ماسپخين مونځ دمازيګر په وخت کي اوکړو چي دهر يو ځيز سوري دمثل سره برابرشوي وو او دمازيګر مونځ يي هغه وخت اوکړو کله چي دهر ځيز سوري دوه مثلونو ته رسيدلي وو او دمابښام مونځ يي په اول وخت کي اوکړو (څنګه چي يي په اول ځل کړي وو) او دماخوستن مونځ يي په داسي وخت کي اوکړو چي دشپي دريمه حصه تيره شوي وه او دسحر مونځ يي په رڼا کي اوکړو بيا جبرائيل عليه السلام ماته متوجه شو او ويي فرمائيل اي محمد (صلي الله عليه وسلم) همدا وختونه ستانه دمخکي تيروو شوو انبياؤ دمونځ وختونه وو او ستاسو دمونځ وختونه هم ددي دوه وختونو په مينځ کي دي

امام ترمذي وائي په دي باب کي د ابوهريره، بريده، ابوموسي، ابو مسعود انصاري، ابوسعيد، جابر، عمرو بن حزم، براء، او انس رضي الله عنهم نه هم احاديث وارد دي

***************

١٥٠ـ أَخْبَرَنِي أَحْمَدُ بْنُ مُحَمَّدِ بْنِ مُوسَى، أَخْبَرَنَا عَبْدُ اللَّهِ بْنُ الْمُبَارَكِ، أَخْبَرَنَا حُسَيْنُ بْنُ عَلِيِّ بْنِ حُسَيْنٍ، أَخْبَرَنِي وَهْبُ بْنُ كَيْسَانَ، عَنْ جَابِرِ بْنِ عَبْدِ اللَّهِ، عَنْ رَسُولِ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ، قَالَ: "أَمَّنِي جِبْرِيلُ" فَذَكَرَ نَحْوَ حَدِيثِ ابْنِ عَبَّاسٍ بِمَعْنَاهُ، وَلَمْ يَذْكُرْ فِيهِ لِوَقْتِ الْعَصْرِ بِالأَمْسِ. قَالَ أَبُو عِيسَى: هَذَا حَسَنٌ صَحِيحٌ غَرِيبٌ، وَحَدِيثُ ابْنِ عَبَّاسٍ حَسَنٌ صَحِيحٌ، وَقَالَ مُحَمَّدٌ: أَصَحُّ شَيْءٍ فِي الْمَوَاقِيتِ حَدِيثُ جَابِرٍ، عَنِ النَّبِيِّ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ. قَالَ: وَحَدِيثُ جَابِرٍ فِي الْمَوَاقِيتِ قَدْ رَوَاهُ عَطَاءُ بْنُ أَبِي رَبَاحٍ، وَعَمْرُو بْنُ دِينَارٍ، وَأَبُو الزُّبَيْرِ، عَنْ جَابِرِ بْنِ عَبْدِ اللَّهِ، عَنِ النَّبِيِّ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ نَحْوَ حَدِيثِ وَهْبِ بْنِ كَيْسَانَ، عَنْ جَابِرٍ، عَنِ النَّبِيِّ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ. [1]

**ترجمه** : دجابر بن عبدالله رضي الله عنهما نه روايت دي چي رسول الله صلي الله عليه وسلم فرمائيلي دي جبرائيل ماته امامت راکړو او بيا يي دابن عباس دحديث پشان مفهوم ذکر کړو البته هغوئ په دي کي د "لوقة العصر بالامس" جمله ذکر نکړه

امام ترمذي وائي دا حديث حسن غريب دي او دابن عباس حديث حسن صحيح دي دمحمد بن اسماعيل بخاري بيان دي چي دمونځ دوختونو په سلسله کي دټولو نه صحيح تر روايت دجابر دي کوم چي هغه درسول الله صلي الله عليه وسلم نه مرفوعاً نقل کړي دي.

[1] سنن النسائي/مواقيت الصلاة ١٧(٥٢٧)، (تحفة الأشراف: ٣١٢٨)، مسند احمد (٣/٣٣٠، ٣٣١)

**تشريح** : دهر مونځ دپاره خپل وخت مقرر دي ارشاد الهي دي "ان الصلاة كانت علي المؤمنين كتابا موقوتا".

سوال: مواقيت جمع كثرت ده او دمونځونو دوختونو عدد قلت ته شامل دي دجمع قلت صيغه استعمالول پكار وو نودلته يي جمع كثرت صيغه ولي ذكر كړي ده.

جواب: دهر مونځ دپاره دري وختونه دي اول مستحب وخت، دويم جائز وخت، دريم دقضاء وخت په دي اعتبار سره ټول وختونه پنځلس شو نو ځكه يي صيغه دجمع كثرت ذكر كړي ده

"امني جبرائيل" كله چي دمونځ دفرضيت حكم نازل شو نو دوختونو دتعليم وركولو دپاره جبرائيل عليه السلام دوه ورځي په مكه كي رسول الله صلي الله عليه وسلم ته امامت وركړي وو، په اوله ورځ يي هر مونځ په ابتدائي وخت كي اداء كړو او په دويمه ورځ يي هر مونځ په اخري وخت كي اداء كړو او ددي امامت ابتداء دماسپخين دمونځ نه اوشوه

سوال: درسول الله دپاره دا مونځ فرض وو او دجبرائيل عليه السلام په حق كي نفل وو بيا خو اقتداء المفترض خلف المتنفل لازم شوه او دا عندالاحناف جائز نه ده

جواب: د دوه ورځو دپاره په جبرائيل عليه السلام مونځ فرض كړي شوي دي لهذا اعتراض نه وارديږي.

"عندالبيت" ددي لفظ نه معلومه شوه چي دجبرائيل دامامت واقعه په مكه كي بيت الله سره نزدي شوي وه په دي لفظ په هغه خلقو تبديل اوشو څوك چي دا وائي چي دجبرائيل دامامت واقعه په مدينه كي پيښه شوي وه.

"اوقات الصلاة" په دي باب كي دمونځ دوختونو بيان دي اجمالا او تفصيل يي په نورو ابوابو كي راروان دي.

"وقت الظهر" دماسپخين دمونځ وخت بالاتفاق دنمر دزوال نه شروع كيږي مګر په انتهاء كي يي اختلاف دي او په دي كي دوه مذاهب دي دامام ابو حنيفه په نزد دظهر دوخت انتهاء دمثلين پوري ده او ددي دپاره يي په ترمذي كي دابو ذر رضي الله عنه درروايت نه استدلال كړي دي چي ديو سفر په دوران كي بلال رضي الله عنه دماسپخين دمونځ دپاره د اذان كولو تياري شروع كړو نو رسول الله صلي الله عليه وسلم اوفرمائيل "ابرد بالظهر" يعني په ګرمئ كي دماسپخين مونځ په يخاؤ وخت كي اوكړئ بيا يوه شيبه پس بلال رضي الله عنه دوباره تياري شروع كړو نو رسول الله منع كړو بيا په دريم ځل هم داسي اوشول او ددينه پس يي اذان اوكړو او مونږ مونځ اداء كړو "حتي راينا فئ التلول" يعني تردي پوري چي مونږه دغر دڅوكي سوري اوليدو دا حديث په دي دلالت كوي چي ماسپخين دمونځ وخت دمثلين پوري دي، دامام

صاحب دويم دليل په بخاري کي دعبدالله ابن عمر روايت دي چي رسول الله دخپل امت او يهودو او نصاراؤ مثال بيان کړو الخ....
نمبر (۲)، دجمهورو په نزد دماسپخين دمونځ وخت دمثل اول پوري وي او دوئ ددي دپاره دحديث الباب نه استدلال کړي دي
جواب: داحديث دسند په اعتبار دنورو احاديثو نه کمزوري دي، دويم جواب دادي چي دا واقعه دمکي ده او په مکه کي داستواء شمس په وخت کي سوري اصلي نه وي هر کله چي په مکه کي يو مثل وي نو په بلاد بعيده کي به لازما مثلين وي

"وقت العصر" دمازيګر دوخت په ابتداء کي هغه اختلاف دي کوم چي دمازيګر په انتهاء کي دي دامام صاحب په نزد دمازيګر وخت دمثلين نه شروع کيږي او دجمهورو په نزد دمثل اول نه شروع کيږي او دمازيګر دوخت په انتهاء کي هم اختلاف دي دبعضي اهل علمو په نزد دمازيګر وخت دمثلين پوري وي او دامام شافعي په نزد دمازيګر وخت دنمر دزيړوالي پوري دي، دجمهورو په نزد دنمر پريوتو پوري وي دوئ دبخاري د يو روايت نه استدلال کوي چي څوك دغروب شمس نه مخکي دمازيګر يو رکعات اوکړي نو هغه دمازيګر مونځ پوره کړو.

"وقت المغرب" دماښام دمونځ وخت بالاتفاق دغروب شمس نه شروع کيږي او په انتهاء کي اختلاف دي امام شافعي او امام مالك په قول دماښام ټول وخت په دري رکعاتو سره برابر وي او دبل قول مطابق دپنځه رکعاتونو سره مساوي وي او دجمهورو په نزد دشفق احمر دغائب کيدو پوري وي او دمام ابو حنيفه په نزد دشفق ابيض دغروب پوري وي
منشاء داختلاف دشفق لفظ مصداق دي په حديث کي مذکور دي چي دشفق دغروب نه دماخوستن وخت شروع کيږي نو دشفق په تعين کي اختلاف دي عندالجمهور ورنه مراد شفق احمر دي او دامام صاحب په نزد ورنه شفق ابيض مراد دي مګر راجح دامام صاحب قول دي ځکه چي دا مؤيد دي په روايت دابو داود چه.

"حين يسود الافق" يعني دماخوستن وخت دشفق دتوروالي نه شروع کيږي او توروالي دافق دشفق ابيض غروب نه پس وي.

"وقت العشاء" دماخوستن دوخت په ابتداء کي اختلاف دي او هغه اختلاف دي کوم چي دماښام په ابتداء کي بيان دي او دماخوستن دوخت په انتهاء کي هم اختلاف دي دبعضي علماؤ په نزد دماخوستن وخت دثلث الليل پوري وي او دامام شافعي په نزد دشپي دنيمي پوري وي او دوئ په دي باب کي ددويم روايت نه استدلال کوي چي دماخوستن وخت دشپي دنيمي پوري دي او دامام صاحب په نزد دماخوستن وخت په دري قسمه دي اول مستحب، دويم جائز، دريم مکروه، مستحب وخت دشپي د دريمي حصي تيريدو پوري دي، او جائز

وخت دنيمي شپې پورې دي، او مکروه وخت دشپې دنيمي نه پس دسحره پورې دي په دې طريقه په تمامو احاديثو کې تطبيق پيدا شو

"حين كان ظل كل شيئ" الخ. ددې عبارت مطلب دادې چې په دويمه ورځ يې دماسپخين مونځ په داسې وخت کې اوکړو کله چې يې دهر څيز سورې يو مثل ته رسيدلې وو او په اوله ورځ يې دمازيګر مونځ په داسې وخت کې اوکړو کله چې دهر څيز سورې يو مثل ته رسيدلې وو

"هذا وقت الانبيا" ددې جملې نه ظاهرا دا ثابتيږي چې په سابقه انبياء عليهم السلام هم پنځه مونځونه فرض وو او حال دادې چې په هغوئ خو پنځه مونځونه فرض نه وو

جواب: دلته تشبيه صرف په تحديد کې ده، په مقدار او په تعداد کې نه ده. مطلب دادې لکه څرنګه چې دسابقه انبياؤ دپاره دمونځ وخت مقرر وو داسې ستاسو دپاره هم مقرر دې او نفس صلاة خو په سابقه انبياؤ هم فرض وو، دسحر مونځ دټولو نه مخکې ادم عليه السلام کړې وو دا يې هغه وخت کړې وو کله چې يې توبه قبول شوه او دماسپخين مونځ دټولو نه مخکې ابراهيم عليه السلام په هغه وخت کې کړې وو کله چې د اسماعيل عليه السلام دقربانئ په بدله کې عظيمه فديه ورکړې شوه او دمازيګر مونځ دټولو نه مخکې عزير عليه السلام په هغه وخت کې کړې وو کله چې هغه دسلو کالو نه پس پورته کړې شوې وو او دماښام مونځ دټولو نه مخکې داود عليه السلام هغه وخت کړې وو کله چې دهغه استغفار قبول شو او دماخوستن مونځ دټولو نه مخکې رسول الله صلي الله عليه وسلم اداء کړې وو

***************

## ٢ـ باب مِنْهُ

### د مونځ د وختونو متعلق يو بل باب

١٥١ـ حَدَّثَنَا هَنَّادٌ، حَدَّثَنَا مُحَمَّدُ بْنُ فُضَيْلٍ، عَنِ الأَعْمَشِ، عَنْ أَبِي صَالِحٍ، عَنْ أَبِي هُرَيْرَةَ، قَالَ: قَالَ رَسُولُ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ: " إِنَّ لِلصَّلاَةِ أَوَّلاً وَآخِرًا، وَإِنَّ أَوَّلَ وَقْتِ صَلاَةِ الظُّهْرِ حِينَ تَزُولُ الشَّمْسُ، وَآخِرَ وَقْتِهَا حِينَ يَدْخُلُ وَقْتُ العَصْرِ، وَإِنَّ أَوَّلَ وَقْتِ صَلاَةِ العَصْرِ حِينَ يَدْخُلُ وَقْتُهَا، وَإِنَّ آخِرَ وَقْتِهَا حِينَ تَصْفَرُّ الشَّمْسُ، وَإِنَّ أَوَّلَ وَقْتِ المَغْرِبِ حِينَ تَغْرُبُ الشَّمْسُ، وَإِنَّ آخِرَ وَقْتِهَا حِينَ يَغِيبُ الأُفُقُ، وَإِنَّ أَوَّلَ وَقْتِ العِشَاءِ الآخِرَةِ حِينَ يَغِيبُ الأُفُقُ، وَإِنَّ آخِرَ وَقْتِهَا حِينَ يَنْتَصِفُ اللَّيْلُ، وَإِنَّ أَوَّلَ وَقْتِ الفَجْرِ حِينَ يَطْلُعُ الفَجْرُ، وَإِنَّ آخِرَ وَقْتِهَا حِينَ تَطْلُعُ الشَّمْسُ ". قَالَ: وَفِي البَاب عَنْ عَبْدِ اللَّهِ بْنِ عَمْرٍو. قَالَ أَبُو عِيسَى: وسَمِعْت مُحَمَّدًا يَقُولُ: حَدِيثُ الأَعْمَشِ، عَنْ مُجَاهِدٍ فِي المَوَاقِيتِ أَصَحُّ مِنْ حَدِيثِ مُحَمَّدِ بْنِ فُضَيْلٍ، عَنِ الأَعْمَشِ، وَحَدِيثُ مُحَمَّدِ بْنِ

فُضَيْلٍ خَطَأٌ. أَخْطَأَ فِيهِ مُحَمَّدُ بْنُ فُضَيْلٍ. حَدَّثَنَا هَنَّادٌ، حَدَّثَنَا أَبُو أُسَامَةَ، عَنْ أَبِي إِسْحَاقَ الفَزَارِيِّ، عَنِ الأَعْمَشِ، عَنْ مُجَاهِدٍ، قَالَ: كَانَ يُقَالُ: إِنَّ لِلصَّلَاةِ أَوَّلًا وَآخِرًا. فَذَكَرَ نَحْوَ حَدِيثِ مُحَمَّدِ بْنِ فُضَيْلٍ، عَنِ الأَعْمَشِ نَحْوَهُ بِمَعْنَاهُ. [1]

**ترجمه**: دابوهريره رضي الله عنه نه روايت دي چي رسول الله صلي الله عليه وسلم فرمائيلي دي زمونږ دپاره يو اول وخت وي او يو اخري وخت وي دماسپخين دمونځ اول وخت هغه دي کله چي نمر داسمان دمينځ نه واوړي يعني زوال ختم شي او ددي اخري وخت هغه دي کله چي دمازيګر وخت شروع شي او دمازيګر اول وخت هغه دي کله چي سوري ديو مثل نه زيات شي او اخري وخت يي هغه دي کله چي نمر زيړ شي او دماښام اول وخت هغه دي کله چي نمر غائب شي او اخري وخت يي هغه دي کله چي شفق غائب شي او دماخوستن اول وخت هغه دي کله چي شفق غائب شي او اخري وخت يي هغه دي کله چي دشپي اولنۍ نيمه حصه ختمه شي او دسحر اول وخت هغه دي کله چي فجر صادق شروع شي او اخري وخت يي دادي چي نمر راوخيژي.

امام ترمذي وائي په دي باب کي دعبدالله بن عمر رضي الله عنهما نه هم روايت وارد دي، دمحمد بن اسماعيل بخاري نه مي اوريدلي دي چي دوختونو په سلسله کي دمحمد بن فضيل په واسطه دمجاهد نه داعمش روايت زيات صحيح دي، دمحمد بن فضيل حديث غلط دي په دي کي دمحمد بن فضيل نه خطاء شوي ده، دا روايت ابواسحاق فزاري داعمش نه او اعمش دمجاهد نه نقل کړي دي مجاهد وائي ونيلي کيدل به چي دمونځ دپاره يو اول وخت وي او بل اخر وخت وي او بيا محمد بن فضيل دسابقه حديث هم معني روايت بيان کړو

***************

## ٣ـ باب مِنْهُ

### دمونځ دوختونو متعلق يو بل باب

١٥٢ـ حَدَّثَنَا أَحْمَدُ بْنُ مَنِيعٍ، وَالحَسَنُ بْنُ الصَّبَّاحِ البَزَّارُ، وَأَحْمَدُ بْنُ مُحَمَّدِ بْنِ مُوسَى، المَعْنَى وَاحِدٌ، قَالُوا: حَدَّثَنَا إِسْحَاقُ بْنُ يُوسُفَ الأَزْرَقُ، عَنْ سُفْيَانَ الثَّوْرِيِّ، عَنْ عَلْقَمَةَ بْنِ مَرْثَدٍ، عَنْ سُلَيْمَانَ بْنِ بُرَيْدَةَ، عَنْ أَبِيهِ، قَالَ: أَتَى النَّبِيَّ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ رَجُلٌ فَسَأَلَهُ عَنْ مَوَاقِيتِ الصَّلَاةِ، فَقَالَ: "أَقِمْ مَعَنَا إِنْ شَاءَ اللَّهُ". فَأَمَرَ بِلَالًا، فَأَقَامَ حِينَ طَلَعَ الفَجْرُ. ثُمَّ أَمَرَهُ فَأَقَامَ حِينَ

---

[1] تفرد به المؤلف (تحفة الأشراف: ١٣٣٦١) وانظر: مسند احمد (٢/٢٣٢)

زَالَتِ الشَّمْسُ، فَصَلَّى الظُّهْرَ. ثُمَّ أَمَرَهُ، فَأَقَامَ فَصَلَّى الْعَصْرَ وَالشَّمْسُ بَيْضَاءُ مُرْتَفِعَةٌ. ثُمَّ أَمَرَهُ بِالْمَغْرِبِ حِينَ وَقَعَ حَاجِبُ الشَّمْسِ. ثُمَّ أَمَرَهُ بِالْعِشَاءِ فَأَقَامَ حِينَ غَابَ الشَّفَقُ. ثُمَّ أَمَرَهُ مِنَ الْغَدِ فَنَوَّرَ بِالْفَجْرِ. ثُمَّ أَمَرَهُ بِالظُّهْرِ فَأَبْرَدَ وَأَنْعَمَ أَنْ يُبْرِدَ. ثُمَّ أَمَرَهُ بِالْعَصْرِ فَأَقَامَ وَالشَّمْسُ آخِرَ وَقْتِهَا فَوْقَ مَا كَانَتْ. ثُمَّ أَمَرَهُ فَأَخَّرَ الْمَغْرِبَ إِلَى قُبَيْلِ أَنْ يَغِيبَ الشَّفَقُ. ثُمَّ أَمَرَهُ بِالْعِشَاءِ فَأَقَامَ حِينَ ذَهَبَ ثُلُثُ اللَّيْلِ. ثُمَّ قَالَ: "أَيْنَ السَّائِلُ عَنْ مَوَاقِيتِ الصَّلَاةِ". فَقَالَ الرَّجُلُ: أَنَا. فَقَالَ: "مَوَاقِيتُ الصَّلَاةِ كَمَا بَيْنَ هَذَيْنِ". قَالَ أَبُو عِيسَى: هَذَا حَسَنٌ غَرِيبٌ صَحِيحٌ. قَالَ: وَقَدْ رَوَاهُ شُعْبَةُ، عَنْ عَلْقَمَةَ بْنِ مَرْثَدٍ أَيْضًا. [1]

**ترجمه**: دبریده رضي الله عنه نه روایت دي فرمائي چي په دربار رسالت کي یو کس حاضر شو او درسول الله نه یي دمونځ دوختونو باره کي تپوس اوکړو نو رسول الله ورته اوفرمائیل ته مونږ سره پاتي شه (دمونځ وختونه به درته معلوم شي) انشاء الله. او بیا رسول الله بلال ته حکم اوکړو نو هغه اقامت اوکړو کله چي نمر راوختلو نو رسول الله حکم اوکړو او هغه دنمر دزوال نه پس اقامت اوکړو نو رسول الله دماسپخین مونځ اوکړو بیا یي ورته حکم اوکړو نو هغه اقامت اوکړو او رسول الله دمازیګر مونځ ورکړو او په دغه وخت کي نمر روښانه او لوړ ولاړ وو بیا چي کله نمر پریوتو نو رسول الله ورته دماښام دپاره داقامت حکم اوکړو بیا چي کله شفق غائب شو نو دماخوستن دمونځ دپاره یي ورته حکم اوکړو او هغه اقامت اوکړو بیا یي ورته په دویمه ورځ حکم اوکړو نو هغه دسحر مونځ په رڼا کي ورکړو او چي دماسپخین دپاره یي ورته حکم اوکړو نو دنمر تاؤ کم شوي وو او یخاؤ شروع شوي وو چي رسول الله مونځ ورکړو بیا یي ورته دمازیګر دپاره حکم اوکړو نو هغه اقامت اوکړو او په دغه وخت کي نمر په اخري وخت کي وو او داولنۍ ورځي په نسبت زیات وو (یعني په دویمه ورځ یي په مازیګر کي تاخیر اوکړو بیا یي ورته دماښام دپاره حکم اوکړو نو هغوی دماښام مونځ دشفق غائب کیدو ته نزدي وخت پوري دماښام مونځ مؤخر کړو بیا یي ورته دماخوستن دپاره حکم اوکړو نو چي کله دشپي دریمه حصه ختمه شوه نو اقامت یي اوکړو او رسول الله مونځ ورکړو او بیا یي اوفرمائیل دمونځ دوختونو باره کي تپوس کونکي چرته دي هغه کس عرض اوکړو چي زه یم رسول الله اوفرمائیل مونځ ددي دواړو وختونو په مینځ کي دي امام ترمذي وائي دا حدیث حسن غریب دي.

---

[1] صحیح مسلم/المساجد ۳۱ (۶۱۳) . سنن النسائي/المواقیت ۱۲ (۵۲۰) . سنن ابن ماجه/الصلاة ۱ (۶۶۷) . (تحفة الأشراف ۱۹۳۱) . مسند احمد (۵/۳۴۹)

## دبريده رضي الله عنه حالات:

نوم بريده كنيه ابو عبدالله او دپلار نوم مصيب بن عبدالله

كله چي رسول الله صلي الله عليه وسلم مديني ته ورسيدو نو بريده يي په خدمت كي حاضر شو نو رسول الله ورته داسلام دعوت وركړو نو دى فورا مسلمان شو او دده سره دبني اسلم اتيا كسان په اسلام كي داخل شول (طبقات ابن سعد)

په صلح حديبيه او بيعة الرضوان كي يي هم شركت كړى دى (اسد الغابه)

او په فتح مكه كي يي هم ملگرتيا كړي وه (مسند احمد)

تقريبا په شپاړسو عزواتو كي شريك پاتي شوى دى (بخاري كتاب المغازي)

كله چي رسول الله صلي الله عليه وسلم داسامه په مشرئ كي اخر لښكر تيار كړو نو په دي كي هم شريك وو (طبقات ابن سعد)

غرض دا چي دده په رگ رگ كي دجهاد جذبي توپونه وهل او دژوند مزه به يي داسونو په زغلولو كي ليدله (طبقات ابن سعد)

ديزيد په زمانه كي دهجرت په ۶۳ كال وفات شو چي دمروياتو شمير يي ۱۶۴ دى يو متفق عليه دى او دوه په بخاري كي دي يولس په مسلم كي دي (تهذيب الكمال)

********************

## ٤ـ بَاب مَا جَاءَ فِي التَّغْلِيسِ بِالْفَجْرِ

## په تياره كي دسحر دمونځ اداء كولو بيان

١٥٣ـ حَدَّثَنَا قُتَيْبَةُ، عَنْ مَالِكِ بْنِ أَنَسٍ، قَالَ: وحَدَّثَنَا الأَنْصَارِيُّ، حَدَّثَنَا مَعْنٌ، حَدَّثَنَا مَالِكٌ، عَنْ يَحْيَى بْنِ سَعِيدٍ، عَنْ عَمْرَةَ، عَنْ عَائِشَةَ، قَالَتْ: "إِنْ كَانَ رَسُولُ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ لَيُصَلِّي الصُّبْحَ فَيَنْصَرِفُ النِّسَاءُ". قَالَ الأَنْصَارِيُّ: فَيَمُرُّ النِّسَاءُ مُتَلَفِّفَاتٍ بِمُرُوطِهِنَّ مَا يُعْرَفْنَ مِنَ الْغَلَسِ، وقَالَ قُتَيْبَةُ: مُتَلَفِّعَاتٍ. قَالَ: وَفِي الْبَاب عَنْ ابْنِ عُمَرَ، وَأَنَسٍ، وَقَيْلَةَ بِنْتِ مَخْرَمَةَ. قَالَ أَبُو عِيسَى: حَدِيثُ عَائِشَةَ حَسَنٌ صَحِيحٌ، وَقَدْ رَوَاهُ الزُّهْرِيُّ، عَنْ عُرْوَةَ، عَنْ عَائِشَةَ نَحْوَهُ، وَهُوَ الَّذِي اخْتَارَهُ غَيْرُ وَاحِدٍ مِنْ أَهْلِ الْعِلْمِ مِنْ أَصْحَابِ النَّبِيِّ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ، مِنْهُمْ أَبُو بَكْرٍ، وَعُمَرُ

**وَمَنْ بَعْدَهُمْ مِنَ التَّابِعِينَ، وَبِهِ يَقُولُ الشَّافِعِيُّ، وَأَحْمَدُ، وَإِسْحَاق: يَسْتَحِبُّونَ التَّغْلِيسَ بِصَلَاةِ الْفَجْرِ.**[1]

**ترجمه**: دعائشه رضي الله عنها نه مروي دي فرمائي چي کله به رسول الله صلي الله عليه وسلم دسحر مونځ ورکولو نو ښځو به په څادرونو کي ځانونه پټ کړي وو اوچي واپس کيدلي به نو دتياري په وجه به نه پيژندلي کيدي.

امام ترمذي وائي دعائشه رضي الله عنها حديث حسن صحيح دي او په دي باب کي دابن عمر، انس، او قيله بنت مخرمه رضي الله عنها نه هم احاديث وارد دي او په دي باندي اکثرو صحابه کرامو چي ابوبکر او عمر رضي الله عنهم هم پکي شامل دي قول کړي دي او ددوئ نه پس په تابعينو کي ډيرو اهل علمو دا قول خوښ کړي دي او په دي باندي امام شافعي، احمد، او اسحاق (رحمهم الله) هم قول کړي دي چي دسحر مونځ په تياره کي اداء کول مستحب دي.

**تشريح**: ددي باب نه مخکي دمونځ داصل وختونو بيان وو دلته دمستحب وختونو بيان شروع کوي په دي مسئله کي اختلاف دي چي دسحر مونځ په تياره کي کول مستحب دي او که په رڼا کي په دي باره کي دوه مذاهب دي.

(١) دامام ابو حنيفه په نزد دسحر مونځ په رڼا کي اداء کول مستحب دي، او داسفار مطلب دادي چي دسحر مونځ دومره مؤخر کړي شي چي مونځ کچري دسنت مطابق اولوستلي شي او په مينځ کي فساد واقع شي نو پکار ده چي دومره وخت نور هم باقي وي چي دوباره پکي ددي مونځ اعاده دسنت مطابق اوکړي شي.

دليل اول: دزير بحث باب دويم حديث دي درافع بن خديج رضي الله عنه چي "اسفروا بالفجر فأنه اعظم للاجر" يعني دسحر په مونځ کي اسفار کوئ ځکه چي دا اجر لره زياتونکي دي

دليل ثاني: عبدالرزاق په مصنف کي طبراني وغيره يو روايت نقل کړي دي چي نبي کريم صلي الله عليه وسلم بلال ته اوفرمائيل دسحر مونځ دومره تاخير سره کوه چي غشي ويشتونکي د غشي دغورځيدوځاي ليدلي شي او دا ليدل د اسفار په حالت کي کيدي شي

دليل ثالث: په صحيحينو کي دعبدالله بن مسعود رضي الله عنه نه روايت دي چي رسول الله صلي الله عليه وسلم دمزدلفي په ميدان کي دسحر مونځ دوخت نه مخکي اداء کړو او دلته

---

[1] صحيح البخاري/الصلاة ١٣ (٣٧٢)، والمواقيت ٢٧ (٥٧٨)، والأذان ١٦٣ (٨٦٧)، و١٦٥ (٨٧٢)، صحيح مسلم/المساجد ٤٠ (٦٤٥)، سنن ابي داود/ الصلاة ٨ (٤٢٣)، سنن النسائي/المواقيت ٢٥ (٥٤٦، ٥٤٧)، والسهو ١٠١ (١٣٦٣)، سنن ابن ماجه/الصلاة ٢ (٦٦٩)، (تحفة الأشراف: ٣٥٨٢)، موطا امام مالك/وقوت الصلاة ١ (٤)، مسند احمد (٦/٣٣، ٣٦، ٢٤٨، ٢٥٩)

دقبل الوقت نه مراد غير معتاد وخت دي او دا مونځ رسول الله صلي الله عليه وسلم په تياره کي کړي وو ددينه معلومه شوه چي دسحر دپاره معتاد وخت اسفار دي

دليل رابع دابراهيم نخعي نه روايت دي فرمائي "ما اجتمع اصحاب رسول الله صلي الله عليه وسلم علي شيء كما اجتمعوا علي التنوير" يعني په هيڅ يو څيز دصحابه کرامو دومره اتفاق نه دي راغلي څومره اتفاق چي يي په اسفار کي دسحر دمونځ په اداء کولو راغلي وو

(۲) دامام شافعي او احمد په نزد باندي دسحر مونځ په تياره کي اداء کول بهتر دي او هغوی په دي مسئله کي د حديث الباب نه استدلال کړي دي دام المؤمنين عائشه رضي الله عنها بيان دي چي درسول الله صلي الله عليه وسلم په زمانه کي به ښځو دسحر مونځ کړي وو او چي واپس به راتلي نو دتياري په وجه به يه لاره نه پيژندلي کيدي. ددينه معلومه شوه چي دسحر مونځ په تياره کي اداء کول مستحب دي

جواب نمبر (۱) ددي حديث نه داستدلال دارمدار په غلس لفظ دي او غلس لفظ په دي حديث کي مدرج من الراوي دي او په دي خبره دوه قريني موجود دي (۱) همدا روايت په ابن ماجه کي داسي دي "مايعرفنا تعني من الغلس" عائشه رضي الله عنها صرف دومره فرمائيلي دي چي دوئ به نه پيژندلي کيدي او غلس لفظ په طور دتفسير راوي ذکر کړي دي چي دام المؤمنين مراد دا کيدي شي.

(۲) دبعضي کتابونو په حديث کي دا روايت مذکور دي او دغلس لفظ پکي نشته

جواب نمبر (۲) که بالفرض دغلس لفظ تسليم کړي شي نو دا به په مسجد نبوي پوري خاص وي يعني په مسجد نبوي کي به دننه تياره وه ځکه چي ديوالونه يي واړه وو او چت يي ټيټ وو او کيړکۍ او روشندان پکي نه وو او دښځو به شخصي معرفت نه کيدو.

جواب نمبر (۳) دا روايت فعلي دي درافع بن خديج روايت قولي دي او قاعده داده کله چي په قول او فعل کي تعارض راشي نو قول لره ترجيح وي ځکه چي قول قانوني حيثيت لري

*****************

## ٥_ بَابُ مَا جَاءَ فِي الإِسْفَارِ بِالْفَجْرِ

### په رڼا کي دسحر مونځ ادا کولو بيان

١٥٤_ حَدَّثَنَا هَنَّادٌ، حَدَّثَنَا عَبْدَةُ هُوَ ابْنُ سُلَيْمَانَ، عَنْ مُحَمَّدِ بْنِ إِسْحَاقَ، عَنْ عَاصِمِ بْنِ عُمَرَ بْنِ قَتَادَةَ، عَنْ مَحْمُودِ بْنِ لَبِيدٍ، عَنْ رَافِعِ بْنِ خَدِيجٍ، قَالَ: سَمِعْتُ رَسُولَ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ يَقُولُ: "أَسْفِرُوا بِالْفَجْرِ، فَإِنَّهُ أَعْظَمُ لِلأَجْرِ". قَالَ: وَقَدْ رَوَى شُعْبَةُ، وَالثَّوْرِيُّ هَذَا الحَدِيثَ، عَنْ مُحَمَّدِ بْنِ إِسْحَاقَ، قَالَ: وَرَوَاهُ مُحَمَّدُ بْنُ عَجْلَانَ أَيْضًا، عَنْ عَاصِمِ بْنِ عُمَرَ بْنِ قَتَادَةَ، قَالَ: وَفِي

الْبَابِ عَنْ أَبِي بَرْزَةَ الْأَسْلَمِيِّ، وَجَابِرٍ، وَبِلَالٍ. قَالَ أَبُو عِيسَى: حَدِيثُ رَافِعِ بْنِ خَدِيجٍ حَسَنٌ صَحِيحٌ. وَقَدْ رَأَى غَيْرُ وَاحِدٍ مِنْ أَهْلِ الْعِلْمِ مِنْ أَصْحَابِ النَّبِيِّ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ وَالتَّابِعِينَ الْإِسْفَارَ بِصَلَاةِ الْفَجْرِ، وَبِهِ يَقُولُ سُفْيَانُ الثَّوْرِيُّ، وقَالَ الشَّافِعِيُّ، وَأَحْمَدُ، وَإِسْحَاق مَعْنَى الْإِسْفَارِ: أَنْ يَضِحَ الْفَجْرُ فَلَا يُشَكَّ فِيهِ، وَلَمْ يَرَوْا أَنَّ مَعْنَى الْإِسْفَارِ تَأْخِيرُ الصَّلَاةِ.[1]

**ترجمه**: رافع بن خديج رضي الله عنه نه روايت دي فرمائي چي درسول الله صلي الله عليه وسلم نه مي اوريدلي دي چي دسحر مونځ ښه په رڼرا کي کوئ خکه چي په دي کي ثواب زيات دي.

امام ترمذي وائي درافع بن خديج حديث حسن صحيح دي. او په دي باب کي د ابو برزه اسلمي، جابر، او بلال رضي الله عنهم نه هم احاديث وارد دي، په صحابه کرامو او تابعينو کي داکثر اهل علمو رائي داده چي دسحر مونځ د رڼرا زياتيدو نه پس کول پکار دي او همدا دسفيان ثوري قول دي، مګر امام شافعي، احمد، او اسحاق بن راهويه (رحمهم الله) وائي چي داسفار مطلب دادي چي سحر روښانه شي او د دي په طلوع کي شك پاتي نشي او د اسفار دا مطلب نه دي چي تاخير دي اوکړي شي.

**تشريح**: کوم علماء چي تغليس ته مطلقا مستحب وائي دا حديث دهغوی خلاف دي او هغوی په دي حديث کي تاويل کړي دي، امام شافعي او امام احمد وائي ددي حديث مطلب دادي "ان يضح الفجر فلا يشك فيه" يعني کله چي په يقيني طور صبح صادق وخت شروع شي او هيڅ قسم شك پکي پاتي نشي نو بيا دي دسحر مونځ اوکړي شي. ليکن دا ناشنا تاويل دي ددي حديث مطلب چي دادي نو بيا د "فانه اعظم للاجر" څه مطلب شو؟ په دي صورت کي دحديث دا مطلب کيدل پکار دي چي څوك دصبح صادق نه مخکي دسحر مونځ کوي دهغه مونځ به هم صحيح وي البته ثواب به يي کم وي او که دصبح صادق نه پس اوکړي شي نو ثواب به يي زيات وي او حال دادي چي دا خبره بالکل غلطه ده دوخت شروع کيدو نه مخکي يو مونځ هم نه کيږي نو په دي وجه دحديث واضح مطلب هغه دي کوم چي په ماقبل کي بيان کړي شوي دي چي په عامو حالاتو کي دمصليانو په وجه دسحر وخت چي ښه رڼرا شي په دي کي دي مونځ اوکړي شي او په دي کي ثواب زيات دي

***************

---

[1] سنن ابي داود/ الصلاة ٨ (٤٢٣). سنن النسائي/المواقيت ٢٧ (٥٤٩). سنن ابن ماجه/الصلاة ٢ (٦٧٢). (تحفة الأشراف: ٣٥٨٢). مسند احمد (٣/٤٦٠) و (٤/١٤٠). سنن الدارمي/الصلاة ٢١ (١٢٥٣)

## ٦ـ باب مَا جَاءَ فِي التَّعْجِيلِ بِالظُّهْرِ

## دماسپخين په مونځ کي دتعجيل کولو بيان

١٥٥ـ حَدَّثَنَا هَنَّادُ بْنُ السَّرِيِّ، حَدَّثَنَا وَكِيعٌ، عَنْ سُفْيَانَ، عَنْ حَكِيمِ بْنِ جُبَيْرٍ، عَنْ إِبْرَاهِيمَ، عَنْ الْأَسْوَدِ، عَنْ عَائِشَةَ، قَالَتْ: " مَا رَأَيْتُ أَحَدًا كَانَ أَشَدَّ تَعْجِيلًا لِلظُّهْرِ مِنْ رَسُولِ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ، وَلَا مِنْ أَبِي بَكْرٍ، وَلَا مِنْ عُمَرَ ". قَالَ: وَفِي الْبَاب عَنْ جَابِرِ بْنِ عَبْدِ اللَّهِ، وَخَبَّابٍ، وَأَبِي بَرْزَةَ، وَابْنِ مَسْعُودٍ، وَزَيْدِ بْنِ ثَابِتٍ، وَأَنَسٍ، وَجَابِرِ بْنِ سَمُرَةَ. قَالَ أَبُو عِيسَى: حَدِيثُ عَائِشَةَ حَسَنٌ. وَهُوَ الَّذِي اخْتَارَهُ أَهْلُ الْعِلْمِ مِنْ أَصْحَابِ النَّبِيِّ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ وَمَنْ بَعْدَهُمْ. قَالَ عَلِيٌّ بْنُ الْمَدِينِيِّ: قَالَ يَحْيَى بْنُ سَعِيدٍ: وَقَدْ تَكَلَّمَ شُعْبَةُ فِي حَكِيمِ بْنِ جُبَيْرٍ مِنْ أَجْلِ حَدِيثِهِ الَّذِي رَوَى، عَنْ ابْنِ مَسْعُودٍ، عَنِ النَّبِيِّ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ: " مَنْ سَأَلَ النَّاسَ وَلَهُ مَا يُغْنِيهِ ". قَالَ يَحْيَى: وَرَوَى لَهُ سُفْيَانُ، وَزَائِدَةُ، وَلَمْ يَرَ يَحْيَى بِحَدِيثِهِ بَأْسًا. قَالَ مُحَمَّدٌ: وَقَدْ رُوِيَ عَنْ حَكِيمِ بْنِ جُبَيْرٍ، عَنْ سَعِيدِ بْنِ جُبَيْرٍ، عَنْ عَائِشَةَ، عَنِ النَّبِيِّ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ فِي تَعْجِيلِ الظُّهْرِ. (١)

**ترجمه** : دعائشه رضي الله عنها بيان دي فرمائي چي دماسپخين په مونځ کي درسول الله صلي الله عليه وسلم نه زيات بل څوك تيزي کونکي مانه دي ليدلي او نه مي دابوبکر او عمر رضي الله عنهما نه زيات تيزي کونکي دماسپخين په مونځ کي ليدلي دي

امام ترمذي وائي په دي باب کي دجابر بن عبدالله، خباب، ابوبرزه، ابن مسعود، زيد بن ثابت، انس، او جابر بن سمره رضي الله عنهم نه هم احاديث وارد دي او حديث دعائشه حسن صحيح دي او همدا قول عامو صحابه کرامو او ددوی نه پس اهل علمو اختيار کړي دي

******************

١٥٦ـ حَدَّثَنَا الْحَسَنُ بْنُ عَلِيٍّ الْحُلْوَانِيُّ، أَخْبَرَنَا عَبْدُ الرَّزَّاقِ، أَخْبَرَنَا مَعْمَرٌ، عَنْ الزُّهْرِيِّ، قَالَ: أَخْبَرَنِي أَنَسُ بْنُ مَالِكٍ، أَنَّ رَسُولَ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ " صَلَّى الظُّهْرَ حِينَ زَالَتِ الشَّمْسُ ". قَالَ أَبُو عِيسَى: هَذَا صَحِيحٌ، وَهُوَ أَحْسَنُ حَدِيثٍ فِي هَذَا الْبَابِ، وَفِي الْبَاب عَنْ جَابِرٍ. (٢)

**ترجمه** : دانس بن مالك رضي الله عنه نه روايت دي فرمائي چي رسول الله صلي الله عليه وسلم دماسپخين مونځ په داسي وخت کي کړي وو څه وخت چي نمر ستون شوي وو.

---

[1] تفرد به المؤلف. وانظر: مسند احمد (٦/١٣٥، ٢١٦). (تحفة الأشراف: ١٥٩٢٣).

[2] تفرد به المؤلف. (تحفة الأشراف: ١٥٢٨) وانظر: مسند احمد (٣/١٢٩، ١٦٩)

امام ترمذي وائي دا حديث حسن صحيح دي او په دي باب كي په وارد شوو رواياتو كي دټولو نه زيات صحيح دي، او په دي باب كي دجابر رضي الله عنه نه هم روايت وارد دي

**تشريح** په دي مسئله كي اختلاف دي چي دماسپخين په مونځ كي جلتي كول پكار دي او كه تاخير په دي باره كي دوه مذاهب دي.

(١) دامام ابو حنيفه په نزد په ګرمئ كي تاخير او په يخنئ كي تعجيل افضل دي

اول دليل: په بخاري كي دانس رضي الله عنه روايت دي چي د انس رضي الله عنه نه سوال شوي وو چي رسول الله صلي الله عليه وسلم به دماسپخين په مونځ كي تعجيل كولو او كه تاخير؟ نو هغه په جواب كي اوونيل "اذا اشتد البرد بكر بالصلوة واذا اشتد الحر ابرد بالصلاة" يعني په ګرمئ كي به يي تاخير كولو او په يخنئ كي به يي تعجيل كولو

دليل ثاني: په راتلونكي باب كي د ابوهريره رضي الله عنه په روايت كي دي "اذا اشتد الحر فابردوا عن الصلاة فان شدة الحر من فيح جهنم" يعني په ګرمئ كي به دماسپخين په مونځ كي تاخير كوئ خكه چي دګرمئ شدت دجهنم دبړاس نه دي

مګر امام شافعي وائي دا حكم دهغه چا دپاره دي څوك چي دمسجد نه لري اوسيږي تردي چي هغوئ اسانئ سره مسجد ته راورسيږي امام ترمذي ددينه دا جواب كړي دي چي دا اعتراض خكه درست نه دي چي ابوذر رضي الله عنه روايت ددي خلاف دي او هغه داسي چي دابو ذر په روايت كي په ابراد بالظهر حكم دي او حال دادي چي هلته تمام خلق حاضر او موجود وي خكه چي دا دسفر واقعه ده او ټول مونځ كونكي موجود وو او دبهر نه قطعا دهيچا دراتلو توقع نه وه.

(٢) دامام شافعي په نزد دماسپخين په مونځ كي مطلقا تعجيل افضل دي.

او په دي مسئله كي دعائشه رضي الله عنها دروايت نه استدلال كوي چي رسول الله صلي الله عليه وسلم او شيخينو به دماسپخين مونځ په تعجيل سره كولو

جواب: دا روايت په يخ موسم محمول دي لكه چي دبخاري والا انس رضي الله عنه په روايت كي ددي وضاحت دي.

دليل ثاني: دامام شافعي استدلال دهغه رواياتو نه دي په كومو كي چي په اول وخت كي مونځ افضل ګرځولي شوي وي.

جواب: داول وخت نه مراد مستحب وخت دي

سوال: دابوهريره په حديث كي مذكور دي چي دګرمئ شدت دجهنم دبړاس نه دي او حال دادي چي ظاهرا دګرمئ او يخنئ سبب دنمر لري والي او نزدي والي دي كله چي نمر نزدي وي نو

گرمي گرمي زياته وي او چې نمر لري وي نو يخني زياته وي او په دي حديث كي خو فيح جهنم ددي سبب گرځولي شوي دي.
جواب: فيح دجهنم دسبب السبب په درجه كي دي او هغه داسي چې په ژمكه كي دگرمۍ سبب قرب دشمس دي او په شمس كي دگرمۍ سبب فيح دجهنم دي فرق صرف دومره دي چې شمس سبب قريب دي او فيح دجهنم سبب بعيد دي.
بل جواب دادي چې په "من فيح جهنم" كي من دتشبيه دپاره دي معني به دا وي چې دجهنم دحرارت سره مشابه دي.

*****************

## ٧_ بَابُ مَا جَاءَ فِي تَأْخِيرِ الظُّهْرِ فِي شِدَّةِ الْحَرِّ

## په سخته گرمۍ كي په تاخير سره دماسپخين مونځ كولو بيان

١٥٧_ حَدَّثَنَا قُتَيْبَةُ، حَدَّثَنَا اللَّيْثُ، عَنْ ابْنِ شِهَابٍ، عَنْ سَعِيدِ بْنِ الْمُسَيَّبِ، وَأَبِي سَلَمَةَ، عَنْ أَبِي هُرَيْرَةَ، قَالَ: قَالَ رَسُولُ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ: "إِذَا اشْتَدَّ الْحَرُّ فَأَبْرِدُوا عَنِ الصَّلَاةِ، فَإِنَّ شِدَّةَ الْحَرِّ مِنْ فَيْحِ جَهَنَّمَ". قَالَ: وَفِي الْبَابِ عَنْ أَبِي سَعِيدٍ، وَأَبِي ذَرٍّ، وَابْنِ عُمَرَ، وَالْمُغِيرَةِ، وَالْقَاسِمِ بْنِ صَفْوَانَ، عَنْ أَبِيهِ وَأَبِي مُوسَى، وَابْنِ عَبَّاسٍ، وَأَنَسٍ، قَالَ: وَرُوِيَ عَنْ عُمَرَ، عَنِ النَّبِيِّ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ فِي هَذَا وَلَا يَصِحُّ. قَالَ أَبُو عِيسَى: حَدِيثُ أَبِي هُرَيْرَةَ حَسَنٌ صَحِيحٌ. وَقَدِ اخْتَارَ قَوْمٌ مِنْ أَهْلِ الْعِلْمِ تَأْخِيرَ صَلَاةِ الظُّهْرِ فِي شِدَّةِ الْحَرِّ، وَهُوَ قَوْلُ ابْنِ الْمُبَارَكِ، وَأَحْمَدَ، وَإِسْحَاق. قَالَ الشَّافِعِيُّ: إِنَّمَا الْإِبْرَادُ بِصَلَاةِ الظُّهْرِ إِذَا كَانَ مَسْجِدًا يَنْتَابُ أَهْلُهُ مِنَ الْبُعْدِ، فَأَمَّا الْمُصَلِّي وَحْدَهُ وَالَّذِي يُصَلِّي فِي مَسْجِدِ قَوْمِهِ، فَالَّذِي أُحِبُّ لَهُ أَنْ لَا يُؤَخِّرَ الصَّلَاةَ فِي شِدَّةِ الْحَرِّ. قَالَ أَبُو عِيسَى: وَمَعْنَى مَنْ ذَهَبَ إِلَى تَأْخِيرِ الظُّهْرِ فِي شِدَّةِ الْحَرِّ هُوَ أَوْلَى وَأَشْبَهُ بِالِاتِّبَاعِ، وَأَمَّا مَا ذَهَبَ إِلَيْهِ الشَّافِعِيُّ، أَنَّ الرُّخْصَةَ لِمَنْ يَنْتَابُ مِنَ الْبُعْدِ وَالْمَشَقَّةِ عَلَى النَّاسِ، فَإِنَّ فِي حَدِيثِ أَبِي ذَرٍّ مَا يَدُلُّ عَلَى خِلَافِ مَا قَالَ الشَّافِعِيُّ. قَالَ أَبُو ذَرٍّ: كُنَّا مَعَ النَّبِيِّ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ فِي سَفَرٍ، فَأَذَّنَ بِلَالٌ بِصَلَاةِ الظُّهْرِ، فَقَالَ النَّبِيُّ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ: "يَا بِلَالُ أَبْرِدْ"، ثُمَّ أَبْرِدْ. فَلَوْ كَانَ الْأَمْرُ عَلَى مَا ذَهَبَ إِلَيْهِ الشَّافِعِيُّ لَمْ يَكُنْ لِلْإِبْرَادِ فِي ذَلِكَ الْوَقْتِ مَعْنًى لِاجْتِمَاعِهِمْ فِي السَّفَرِ، وَكَانُوا لَا يَحْتَاجُونَ أَنْ يَنْتَابُوا مِنَ الْبُعْدِ. (١)

---

[1] صحيح البخارى/المواقيت ٩ (٥٣٨)، صحيح مسلم/المساجد ٣٢ (٦١٥)، سنن ابى داود، الصلاة ٤ (٤٠٢)، سنن النسائى/المواقيت ٥ (٥٠١)، سنن ابن ماجه/الصلاة ٤ (٦٧٧)، (تحفة الأشراف: ١٣٢٢٦، ١٣٢٢٧)، موطا امام مالک/وقوت

**ترجمه** دابوهريره رضي الله عنه نه روايت دي چي رسول الله صلي الله عليـه وسلم فرمائيلي دي كله چي گرمي زياته وي نو دماسپخين مونځ په داسي وخت كي كوئ چي دنمر تاؤ كم شوي وي او يخ والي شروع شوي وي ځكه چي دگرمئ تيز والي دجهنم دبړاس نه دي

امام ترمذي وائـي حديث دابـوهريره رضـي الله عنـه حـسن صـحيح دي، او پـه دي بـاب كـي دابوسعيد، ابوذر ، ابن عمر، مغيره، او قاسم بن صفوان دپلار ابوموسي، ابـن عبـاس او انـس رضي الله عنهم نه هم احاديث وارد دي، په دي سلسله كي دعمر رضي الله عنه نه هم يو حديث موجود دي چي نبي كريم صلي الله عليـه وسلم نـه يي نقل كړي دي لـيكن دا صـحيح نـه دي پـه اهل علمو كي بعضي كسانو په سخته گرمئ كي پـه تـاخير سـره دماسـپخين مـونځ كـول خـوښ كړي دي او دابن مبارك او احمد او اسحاق بـن راهويـه (رحمهـم الله)هم دا قـول دي، مگـر امـام شافعي وائي چي دماسپخين مونځ يخاؤ تـه دمؤخر كولـو حكـم پـه هغـه وخـت كـي دي كلـه چـي مـسجد تـه خلق دلري نـه راځي پـاتي شـو يـواځي مـونځ كـونكي او هغـه كـس څـوك چـي دځپلـي محلي په مسجد كي مونځ كوي نو زه دهغه دپاره همدا خوښوم چي پـه سـخته گرمئ كـي بـه هـم دماسپخين مونځ كي تاخير نه كوي، او څوك چي په سخته گرمئ كي دماسـپخين پـه مـونځ كـي دتاخير كولو قائل دي دهغوئ مذهب زيات بهتر او داتباع زيات لائق دي پاتي شـوه هغـه خبـره كومه چي دامام شافعي په نزد راجح ده چي دا رخصت دهغه چا دپاره دي څوك چي دلري نـه راځي دا ددي دپاره دي چي خلقو دپاره پريشاني نه وي نو دابـوذر رضـي الله عنـه پـه حديث كـي بعضي خبري داسي دي كومي چي دامام شافعي دقول په خلاف دلالت كوي دابو ذر رضـي الله عنه بيان دي چي مونږ په يو سفر كي درسول الله صلي الله عليـه وسلم سـره موجود وو او بـلال دماسـپخين دمونځ دپـاره اذان اوكړو نو رسـول الله اوفرمائيـل اي بـلال يخ والـي شـروع كيـدو پوري صبر اوكړه، يخ والي شروع كيدو پوري صبر اوكړه (داحديث وړاندي راروان دي) نو اوس كچري خبره داسـي وي كومي ته چي امام شـافعي ذهـاب كړي دي نـو دغـه وخـت كـي بـه ديخـاو راتلو هيڅ مطلب نه وو ځكه چي په سفر كي ټول خلق پـه يوځاي موجود وي او دوئ تـه دلـري نـه دچا راتلو ته ضرورت نه وي.

****************

١٥٨_ حَدَّثَنَا مَحْمُودُ بْنُ غَيْلَانَ، حَدَّثَنَا أَبُو دَاوُدَ الطَّيَالِسِيُّ، قَالَ: أَنْبَأَنَا شُعْبَةُ، عَنْ مُهَاجِرٍ أَبِي الْحَسَنِ، عَنْ زَيْدِ بْنِ وَهْبٍ، عَنْ أَبِي ذَرٍّ، أَنَّ رَسُولَ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ كَانَ فِي سَفَرٍ وَمَعَهُ بِلَالٌ.

---

الصلاة ٧ (٩٨) ، مسند احمد (٢٢٩/٢، ٢٣٨، ٢٥٦، ٢٦٦، ٣٤٨، ٣٧٧، ٣٩٣، ٤٠٠، ٤١١، ٤٦٢) ، سنن الدارمي/الصلاة ١٤ (١٢٤٣) ، والرقاق ١١٩ (٢٨٨٧)

فَأَرَادَ بِلَالٌ أَنْ يُقِيمَ، فَقَالَ: "أَبْرِدْ". ثُمَّ أَرَادَ أَنْ يُقِيمَ، فَقَالَ رَسُولُ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ: "أَبْرِدْ فِي الظُّهْرِ". قَالَ: حَتَّى رَأَيْنَا فَيْءَ التُّلُولِ، ثُمَّ أَقَامَ فَصَلَّى، فَقَالَ رَسُولُ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ: "إِنَّ شِدَّةَ الحَرِّ مِنْ فَيْحِ جَهَنَّمَ، فَأَبْرِدُوا عَنِ الصَّلَاةِ". قَالَ أَبُو عِيسَى: هَذَا حَسَنٌ صَحِيحٌ.[1]

**ترجمه**: دابوذر رضي الله عنه نه روايت دي چي رسول الله صلي الله عليه وسلم په يو سفر كي وو چي بلال رضي الله عنه هم ورسره وو، بلال داقامت كولو اراده اوكړه نو رسول الله ورته اوفرمائيل يخ والي شروع كيدو پوري صبر اوكړه هغه بيا داقامت كولو اراده اوكړه نو رسول الله ورته اوفرمائيل يخ والي شروع كيدو پوري صبر اوكړه هغه چي په دريم خل بيا داقامت اراده اوكړه نو رسول الله ورته اوفرمائيل ديخوالي شروع كيدوته انتظار اوكړه راوي وائي تردي پوري چي مونږ دلوړو غونډو سوري اوليدلو نو هله يي اقامت اوكړو او بيا يي مونځ اداء كړو او بيا يي اوفرمائيل يقينا دګرمۍ زياتوالي دبړاس دجهنم نه دي لهذا دماسپخين مونځ په يخوالي كي كوئ.

امام ترمذي وائي دا حديث حسن صحيح دي.

****************

## ٨_ بَاب مَا جَاءَ فِي تَعْجِيلِ الْعَصْرِ

### دمازيګر په مونځ کي دتعجيل بيان

١٥٩_ حَدَّثَنَا قُتَيْبَةُ، حَدَّثَنَا اللَّيْثُ، عَنْ ابْنِ شِهَابٍ، عَنْ عُرْوَةَ، عَنْ عَائِشَةَ أَنَّهَا قَالَتْ: "صَلَّى رَسُولُ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ العَصْرَ وَالشَّمْسُ فِي حُجْرَتِهَا وَلَمْ يَظْهَرِ الفَيْءُ مِنْ حُجْرَتِهَا" قَالَ: وَفِي البَاب عَنْ أَنَسٍ، وَأَبِي أَرْوَى، وَجَابِرٍ، وَرَافِعِ بْنِ خَدِيجٍ. قَالَ: وَيُرْوَى عَنْ رَافِعٍ أَيْضًا عَنِ النَّبِيِّ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ فِي تَأْخِيرِ العَصْرِ وَلَا يَصِحُّ. قَالَ أَبُو عِيسَى: حَدِيثُ عَائِشَةَ حَسَنٌ صَحِيحٌ. وَهُوَ الَّذِي اخْتَارَهُ بَعْضُ أَهْلِ العِلْمِ مِنْ أَصْحَابِ النَّبِيِّ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ، مِنْهُمْ عُمَرُ، وَعَبْدُ اللَّهِ بْنُ

---

[1] صحيح البخاري/المواقيت ٩ (٥٣٥)، صحيح مسلم/المساجد ٣٢ (٦١٦)، سنن ابي داود/الصلاة ٤ (٤٠١)، (تحفة الأشراف: ١١٩١٤)، مسند احمد (٥/١٥٥، ١٦٢، ١٧٦)

مَسْعُودٍ، وَعَائِشَةُ، وَأَنَسٌ وَغَيْرُ وَاحِدٍ مِنَ التَّابِعِينَ: تَعْجِيلَ صَلَاةِ الْعَصْرِ وَكَرِهُوا تَأْخِيرَهَا. وَبِهِ يَقُولُ عَبْدُ اللَّهِ ابْنُ الْمُبَارَكِ، وَالشَّافِعِيُّ، وَأَحْمَدُ، وَإِسْحَاقَ. (1)

**ترجمه** دام المؤمنين عائشه رضي الله عنها نه روايت دي چي رسول الله صلي الله عليه وسلم دمازيگر مونځ په داسي حال کي اوکړو چي نمر زما په کمره کي وو او ددي په کمره کي به دننه دنمر سوري په مشرقي ديوال نه پريوتلو

امام ترمذي وائي په دي باب کي دعائشه رضي الله عنها حديث حسن صحيح دي او په دي باب کي د انس، ابو اروي، جابر، او رافع بن خديج رضي الله عنهم نه هم احاديث وارد دي او درافع نه دمازيگر مونځ په مؤخر کولو کي هم يو روايت منقول دي کوم چي هغه دنبي کريم صلي الله عليه وسلم نه نقل کړي دي مگر صحيح نه دي. په صحابه کرامو کي دبعضي اهل علمو په کومو کي چي عمر، عبدالله بن مسعود، عائشه، او انس رضي الله عنهم هم شامل دي په دي باندي قول کړي دي او په تابعينو کي ډيرو خلقو دا قول اختيار کړي دي دمازيگر په مونځ کي به تعجيل کولي شي او په دي کي تاخير کول يي مکروه گنړلي دي او ددي قول قائل عبدالله بن مبارك ، شافعي، احمد او اسحاق رحمهم الله وغيره دي

**تشريح** د مازيگراول وخت هله شروع کيږي چي دماسپخين وخت ختم شي.برابره ده.که د ماسپخين وخت په دوچنده باندي ختم شي.لکه چي دامام ابوحنيفه (رحمه الله)مذهب دي.اوکه په يوچند باندي ختم شي.لکه چي د صاحبينو مذهب دي.او د مازيگر وخت د نمر ډوبيدو نه وړاندي پوري دي.

دليل ددي دپاره د ابوهريره (رضي الله عنه) حديث دي(قال قال رسول الله صلي الله عليه وسلم من أدرك من الصبح ركعة قبل أن تطلع الشمس فقد أدرك الصبح ومن أدرك ركعة من العصر قبل أن تغرب الشمس فقد أدرك العصر) (متفق عليه) ابوهريره (رضي الله عنه) فرمائي چي نبي كريم صلي الله عليه وسلم فرمائيلي دی . چا چي د نمر راختلو نه وړاندي د سحر يو رکعت رالاندي کړو.نوهغه سحر رالاندي کړو.اوچاچي د نمر پريوتو نه وړاندي د مازيگر يو رکعت رالاندي کړو.نوده مازيگر رالاندي کړو. ددی حديث نه معلومه شوه چي د مازيگر وخت د نمر ډوبيدو نه وړاندي پوري باقي وي.

---

[1] صحيح البخاري/المواقيت ١ (٥٢٢)، و١٣ (٥٤٥)، والخمس ٤ (٣١٠٣)، صحيح مسلم/المساجد ٣١ (٦١١) سنن ابي داود/ الصلاة ٥ (٤٠٧)، سنن النسائي/المواقيت ٨ (٥٠٦)، سنن ابن ماجه/الصلاة ٥ (٦٨٣)، (تحفة الأشراف ١٦٥٩٤)، موطا امام مالک/وقوت الصلاة ١ (٢)

دحسن بن زياد قول دې چې دمازيګر وخت د نمر د زيړيدو پورې وی. ددی نه پس باقی نه وی.
اودليل يې د عبدالله بن عمر(رضي الله عنه) دا حديث دی: (أن النبي كريم صلي الله عليه وسلم قال وقت العصر مالم يصفر الشمس) اوددينه استدلال کوی.يعنی نبي کريم صلي الله عليه وسلم فرمائي.د مازيګر وخت تر هغه وخته پورې وی چې ترڅو نمر زيړ شوې نه وی.دجمهورو احنافو د طرفه جواب دا دې چې د عبدالله بن عمر(رضي الله عنه) په حديث کې د مستحب وخت بيان دې.د جواز د وخت بيان نه دی نو دا حديث د ابوهريره (رضي الله عنه) حديث سره معارض نه دې. دابوهريره (رضي الله عنه) دحديث نه ثابته شوه چې چا د مازيګر يو رکعت اوکړو.اود سلام ګرځولو نه وړاندې وخت خارج شو.نودده مونځ نه باطليږي.او په دی باندې د ټولو اجماع ده.اوکه د سحر په مونځ کې د يو رکعت نه پس نمر راوختلو نوپه داسي حالت کې د مونځ دفساد متعلق داهل علمو دوه اقوال دي:(١) د امام ابوحنيفه (رحمه الله)په نزد مونځ باطل شو.يعنی چې نمر راوخيژی.قضاء به راوړی(٢)او دامام مالك امام شافعي او امام احمد (رحمه الله)په نزد نه باطليږی.بلکه هم هغه دی پوره کړی ددی حضراتودليل هم دا د ابوهريره (رضي الله عنه) حديث دې.زمونږ د طرفه ددی حديث جواب شيخ الادب دا ليکلي دي چې د (فقد أدرك الصبح) معنی ده. (فقد أدرك وقت الصبح) يعنی که يو کس د مونځ اهل نه وی.اوبيا په داسی وخت کې د مونځ اهل شی چې د يو رکعت په اندازه وخت باقی وی.نو په ده به مونځ واجب وی.لکه کافر مسلمان شو.يا ماشوم بالغ شو.يا حائضه پاکه شوه.دا خبره ياد ساتل پکار دی چې د يو رکعت اندازه صرف د پوهولو دپاره ده.خکه که د يو رکعت وخت اومومی. يا ددی نه کم.په دواړو صورتونو کې په ده باندې مونځ لازميږی.
دمازيګر مونځ د ټولو نه وړاندې يونس کړې وو.کله چې هغه الله تعالی د څلور تيارو نه د مازيګر په وخت کې رابهر کړو(١)د لغزش تيارة(٢)د شپې تيارة(٣) د اوبو تيارة(۴) دکب تيارة.نو يونس اول دشکر دپاره څلور رکعته نفل ادا کړل.خو په امت مرحومه باندې فرض کړې شو.

****************

١٦٠_ حَدَّثَنَا عَلِيُّ بْنُ حُجْرٍ. حَدَّثَنَا إِسْمَاعِيل بْنُ جَعْفَرٍ. عَنِ الْعَلَاءِ بْنِ عَبْدِ الرَّحْمَنِ. أَنَّهُ دَخَلَ عَلَى أَنَسِ بْنِ مَالِكٍ فِي دَارِهِ بِالْبَصْرَةِ حِينَ انْصَرَفَ مِنَ الظُّهْرِ وَدَارُهُ بِجَنْبِ الْمَسْجِدِ. فَقَالَ: قُومُوا فَصَلُّوا الْعَصْرَ. قَالَ: فَقُمْنَا فَصَلَّيْنَا. فَلَمَّا انْصَرَفْنَا. قَالَ: سَمِعْتُ رَسُولَ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ

Scanned with C

يَقُولُ: "تِلْكَ صَلَاةُ الْمُنَافِقِ يَجْلِسُ يَرْقُبُ الشَّمْسَ حَتَّى إِذَا كَانَتْ بَيْنَ قَرْنَيِ الشَّيْطَانِ، قَامَ فَنَقَرَ أَرْبَعًا لَا يَذْكُرُ اللَّهَ فِيهَا إِلَّا قَلِيلًا". قَالَ أَبُو عِيسَى: هَذَا حَسَنٌ صَحِيحٌ. (1)

**ترجمه** د علي بن عبدالرحمن نه روايت دي فرمائي چي زه په بصره كي دانس بن مالك كور ته په داسي وخت كي ورغلم چي هغه دماسپخين دمونځ نه واپس راروان وو او د انس كور دجومات سره جوخت وو هغه اوونيل پاځئ او مونځ اوكړئ دمازيګر راوي وائي چي مونږ پاځيدو او مونځ مو اوكړو هر كله چي مونږ دمسجد نه واپس شو نو انس رضي الله عنه اوفرمائيل درسول الله صلي الله عليه وسلم نه مي اوريدلي دي چي فرمائيل يي دا دمنافق مونځ وي چي ناست وي دنمرپريوتو ته انتظار كوي تردي چي دشيطان دوه ښكرونو ته راورسيږي او بيا پاځي او يو څلور ټونګي اووهي او الله تعالى پكي ډير لږ ياد كړي امام ترمذي وائي دا حديث حسن صحيح دي

**تشريح** "اذا كانت بين قرنيْ الشيطان" يو قول مطابق دا جمله تشبيهيه ده او په كنايه محمول ده او ددينه مراد غلبه او تسلط دشيطان دي ، او ددويم قول مطابق دا جمله په حقيقت محمول دي چي دغروب په وخت كي شيطان نمر دخپلو دوه ښكرونو په مينځ كي كوي تردي چي څوك دنمر عبادت كوي نو چي دشيطان عبادت ورسره هم اوشي (تعليمات محمدي شرح ترمذي)

***************

## ٩_ باب مَا جَاءَ فِي تَأْخِيرِ صَلَاةِ الْعَصْرِ

### دمازيګر په مونځ كي دتاخير كولو بيان

١٦١_ حَدَّثَنَا عَلِيُّ بْنُ حُجْرٍ، حَدَّثَنَا إِسْمَاعِيلُ ابْنُ عُلَيَّةَ، عَنْ أَيُّوبَ، عَنِ ابْنِ أَبِي مُلَيْكَةَ، عَنْ أُمِّ سَلَمَةَ، أَنَّهَا قَالَتْ: "كَانَ رَسُولُ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ أَشَدَّ تَعْجِيلًا لِلظُّهْرِ مِنْكُمْ، وَأَنْتُمْ أَشَدُّ تَعْجِيلًا لِلْعَصْرِ مِنْهُ". (2)

**ترجمه** دام سلمه رضي الله عنها نه روايت دي چي رسول الله صلي الله عليه وسلم به دماسپخين په مونځ كي ستاسو نه زياته جلتي كوله او دمازيګر په مونځ كي تاسو درسول الله صل الله عليه وسلم نه جلتي كوئ

[1] صحيح مسلم/المساجد ٣٤ (٦٢٢) . سنن ابي داود/الصلاة ٥ (٤١٣) . سنن النسائي/المواقيت ٩ (٥١٢) (تحفة الأشراف: ١١٢٢) موطا امام مالک/القرآن ١٠ (٤٦) . مسند احمد ، ٣/١٠٢، ١٠٣، ١٤٩، ١٨٥، ٢٤٧)

[2] تفرد به المؤلف (تحفة الأشراف : ١٨١٨٤) . وانظر مسند احمد (٦/٢٨٩، ٣١٠)

****************

١٦٢_ قَالَ أَبُو عِيسَى: وَقَدْ رُوِيَ هَذَا الحَدِيثُ، عَنْ إِسْمَاعِيل ابْنِ عُلَيَّةَ، عَنْ ابْنِ جُرَيْجٍ، عَنْ ابْنِ أَبِي مُلَيْكَةَ، عَنْ أُمِّ سَلَمَةَ نَحْوَهُ. وَوَجَدْتُ فِي كِتَابِي، أَخْبَرَنِي عَلِيُّ بْنُ حُجْرٍ، عَنْ إِسْمَاعِيل بْنِ إِبْرَاهِيمَ، عَنْ ابْنِ جُرَيْجٍ. (١)

**ترجمه** امام ترمذي وائي دا حديث داسماعيل بن عليه نه په سند دابن جريج عن ابي مليكة عن ام سلمه مروي دي او ماته پخپل كتاب كي ددي سند داسي ملاو شوي دي ماته علي بن حجر خبر راكړي دي او هغه ته اسماعيل بن ابراهيم او اسماعيل دابن جريج نه دا روايت نقل كړي دي.

****************

١٦٣_ وحَدَّثَنَا بِشْرُ بْنُ مُعَاذٍ الْبَصْرِيُّ، قَالَ: حَدَّثَنَا إِسْمَاعِيل ابْنُ عُلَيَّةَ، عَنْ ابْنِ جُرَيْجٍ بِهَذَا الإِسْنَادِ نَحْوَهُ وَهَذَا أَصَحُّ.

**ترجمه**: دابن جريج نه داسماعيل بن عليه روايت زيات صحيح دي.

****************

## ١٠_ بَاب مَا جَاءَ فِي وَقْتِ الْمَغْرِبِ

### دماښام دمونځ دوخت بيان

١٦٤_ حَدَّثَنَا قُتَيْبَةُ، حَدَّثَنَا حَاتِمُ بْنُ إِسْمَاعِيل، عَنْ يَزِيدَ بْنِ أَبِي عُبَيْدٍ، عَنْ سَلَمَةَ بْنِ الأَكْوَعِ، قَالَ: "كَانَ رَسُولُ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ يُصَلِّي الْمَغْرِبَ إِذَا غَرَبَتِ الشَّمْسُ وَتَوَارَتْ بِالْحِجَابِ". قَالَ: وَفِي الْبَاب عَنْ جَابِرٍ، وَالصُّنَابِحِيِّ، وَزَيْدِ بْنِ خَالِدٍ، وَأَنَسٍ، وَرَافِعِ بْنِ خَدِيجٍ، وَأَبِي أَيُّوبَ، وَأُمِّ حَبِيبَةَ، وَعَبَّاسِ بْنِ عَبْدِ الْمُطَّلِبِ، وَابْنِ عَبَّاسٍ، وَحَدِيثُ الْعَبَّاسِ قَدْ رُوِيَ مَوْقُوفًا عَنْهُ، وَهُوَ أَصَحُّ، وَالصُّنَابِحِيُّ لَمْ يَسْمَعْ مِنَ النَّبِيِّ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ، وَهُوَ صَاحِبُ أَبِي بَكْرٍ رَضِيَ اللَّهُ عَنْهُ. قَالَ أَبُو عِيسَى: حَدِيثُ سَلَمَةَ بْنِ الأَكْوَعِ حَسَنٌ صَحِيحٌ، وَهُوَ قَوْلُ أَكْثَرِ أَهْلِ الْعِلْمِ مِنْ أَصْحَابِ النَّبِيِّ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ وَمَنْ بَعْدَهُمْ مِنَ التَّابِعِينَ، اخْتَارُوا تَعْجِيلَ صَلَاةِ الْمَغْرِبِ وَكَرِهُوا تَأْخِيرَهَا، حَتَّى

قَالَ بَعْضُ أَهْلِ الْعِلْمِ: لَيْسَ لِصَلَاةِ الْمَغْرِبِ إِلَّا وَقْتٌ وَاحِدٌ، وَذَهَبُوا إِلَى حَدِيثِ النَّبِيِّ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ حَيْثُ صَلَّى بِهِ جِبْرِيلُ، وَهُوَ قَوْلُ ابْنِ الْمُبَارَكِ، وَالشَّافِعِيِّ. ([1])

**ترجمه** دسلمه بن الاكوع رضي الله عنه نه روايت دي فرمائي چي رسول الله صلي الله عليه وسلم به دمابنام مونځ په داسي وخت کي کولو کله چي به نمر ډوب شو او په پردو کي به پټ شو

امام ترمذي وائي دسلمه بن اكوع حديث حسن صحيح دي، او په دي باب کي دجابر، صنابحي، زيد بن خالد، انس، رافع بن خديج، ابو ايوب، ام حبيبه، عباس بن عبدالمطلب او ابن عباس رضي الله عنهم نه هم احاديث وارد دي، دعباس رضي الله عنه نه روايت موقوفا مروي دي او همدا روايت زيات صحيح دي، او صنابحي دنبي كريم صلي الله عليه وسلم نه دي اوريدلي دا خو دابوبكر رضي الله عنه په دور کي وو او دا قول په صحابه كرامو او تابعينو کي داكثرو دي چي هغوئ به دمابنام په مونځ کي جلتي كوله او مؤخر كول به يې مكروه ګڼړل تردي چي دبعضو قول دي چي دمابنام صرف يو وخت وي او دوئ تولو دنبي كريم صلي الله عليه وسلم هغه حديث ته ذهاب كړي دي په كوم کي چي داسي دي چي جبرائيل عليه السلام ماته مونځ راكړو او همدا دابن مبارك او شافعي قول دي.

**تشريح** دمابنام دوخت متعلق دامام شافعي دري اقوال دي:

اول: دمابنام اول وخت د نمر ډوبيدو نه شروع كيږي.او د شفق ختميدو پوري باقي وی.

دویم: دامام شافعي (رحمه الله)مذهب دا دې چی دمابنام وخت صرف د دري ركعته مونځ كولو په اندازه باقي وی.

دريم: امام غزالی فرمائی.دامام شافعی (رحمه الله)نه د مابنام د وخت په باره کي دوه اقوال منقول دی (۱)يو دا چی د مابنام وخت د غروب شفق پورې اوږد دې.اوهم دا قول دامام احمد بن حنبل (رحمه الله) هم دې (۲)دويم قول دا دې.كه د غروب نه پس د اودس اذان. اقامت او پنځو ركعتو وخت تير شو.نوداسی اوګڼړه چی د مابنام وخت ختم شو. يعنی د مابنام وخت صرف دومره دې چی په کي اودس، اذان، اقامت او پنځه ركعته كيدي شی. او په حليه کي دی چی صرف دومره دې چی دری ركعته په کي كيدی شی .دامام شافعی (رحمه الله)دليل د امامت جبرئيل حديث دی په دی کي جبرئيل د مابنام مونځ په دواړو ورځو کي په يو وخت

[1] صحيح البخاري/المواقيت ۱۸ (۵٦۱)، صحيح مسلم/المساجد ۳۸ (٦۳٦) سنن ابي داود/ الصلاة ٦ (۴۱۷)، سنن ابن ماجه/الصلاة ۷ (٦۸۸)، (تحفة الأشراف: ۴۵۳۵)

کي کړې وو.که چرته دمابنام وخت اوږد وې.نو جبرئیل علیه السلام به دواړه ورځې په یو وخت کي نه وو کړې.

زمونږ دلیل د ابوهریره حدیث (أول وقت المغرب حين تغرب الشمس وآخره حين يغيب الشفق) دې.

دشافعی (رحمه الله) ددلیل نه جواب دادی چی حدیث د جبرئیل علیه السلام . په دواړو ورځو کي په یو وخت کي د مابنام مونځ.نوهغه د کراهت نه د خان بچ کولو دپاره وو.څکه چی مابنام آخری وخت ته روستو کول مکروه دی.

واضح دي وی چی د شفق په تعین کي د اهل علمو اختلاف دې(١) امام ابوحنیفه (رحمه الله) فرمائی.شفق هغه سپین والي دې چی د سوروالی نه پس په افق خور شی.اودا قول د صدیق اکبر،معاذ، انس،ابن زبیر رضي الله عنهم هم دې(٢)او صاحبین فرمائی چی دسرخئ نوم شفق دې.اودا د امام ابوحنیفه (رحمه الله)نه هم یو روایت دې.اودا د امام شافعی (رحمه الله)قول هم دې.

دصاحبینو دلیل د نبي کریم صلي الله علیه وسلم قول (الشفق الحمرة) دې. اودامام ابوحنیفه (رحمه الله)دلیل هغه دې.کوم چی ابوهریره (رضي الله عنه) روایت کړې(أن النبي صلي الله عليه وسلم قال وآخر وقت المغرب إذا اسود الأفق) نبي کریم صلي الله علیه وسلم فرمائیلی دی.د مابنام آخری وخت چی کله افق تور شی.او معلومه ده چی په افق باندې تور والي د سپینوالي نه پس خورېږی.نومعلومه شوه چی د سپین والی پورې وخت باقی وی.نوپه حدیث کي د شفق نه مراد سپین والي شو.

دصاحبینو ددلیل نه جواب دادی چی حدیث (الشفق الحمرة)په عبدالله بن عمر(رضي الله عنه) باندې موقوف دې.اوامام مالك (رحمه الله)په موطا کي موقوف ذکر کړې دې.اوحدیث موقوف حجت نه وی.نوځکه دا حدیث قابل استدلال پاتې نشو.اوکه دا اومنلي شی چی دا حدیث مرفوع دې.نومونږ جواب ورکوو چی ددی حدیث په مراد کي دصحابه کرامو اختلاف دې.د بعضو په نزد شفق نه مراد سپیوالي دې.او د بعضو په نزد سوروالي دې.اوپه حدیث مرفوع کي هم که د صحابه کرامو اختلاف وی.نوهغه قابل استدلال نه وی.دمابنام مونځ د تولو نه وړاندې عیسی علیه السلام کړې وو.کله چی الله تعالی هغه ته مخاطب شو.او دا یې ورته اوفرمائیل چی ﴿أَأَنتَ قُلتَ لِلنَّاسِ اتَّخِذُونِي وَأُمِّيَ إِلَـٰهَيْنِ مِن دُونِ اللَّهِ﴾ نو دوی دا مونځ د نمر ډوبیدو نه پس اوکړو.اولني رکعت دځپل ځان نه د الوهیت د نفی دپاره وو.او دویم رکعت د ځپلي مور نه دالوهیت د نفی دپاره وو.او دریم رکعت الله دپاره د الوهیت د اثبات دپاره وو.

زمونږ په علاقو کي او په نورو ملکونو کي چي ما څومره د احنافو مساجد ليدلي دي هغوئ د مابنام اذان پسي اقامت دومره متصل کوي چي اذان لا ختم نه وي او اقامت شروع شوی وي او څوك دي ته هم نه ګوري چي اقامت دمؤذن د اجازت او رضا نه بغير بل څوك نشي کولی، او نه د راتلونکو خلقو د رسيدو لحاظ کوي که څوك پيزار اوباسي يا اودس کي مشغول وي يا په لاره راروان وي نو اکثر ورنه جماعت تلي وي او سره ددي چي دا خلق د حنفيت دعوي هم کوي نو دا خو د حنفيت په يو کتاب کي نشته او په امام صاحب پوري بهتان دی . د اذان او اقامت په مينځ کي په وقفي کولو د ملت اسلاميه اتفاق دی. البته اختلاف په دي کي دي چي دي وخت کي دوه رکعاته نفل کول پکار دي او که يوه شيبه انتظار کول پکار دي، په دي مسئله کي د صاحب احسن الهدايه عبارت نقل کوو کوم چي د مقام دوضاحت دپاره ډير مناسب دي.

## په اذان او اقامت کي د وقفي باره کي د فقهاؤ مختلف اقوال

په دی خبره د ټولو فقهاو اتفاق دې چی په اذان او اقامت کي وصل مکروه دې نبی ﷺ بلال (رضي الله عنه) ته فرمائيلی وو (اجعل بين أذانك وإقامتك قدر ما يفرغ الآكل من أكله) يعنی ای بلال! دخپل اذان او اقامت په مينځ کي دومره وقفه کوه چی خوراك کونکی د خپل خوراك نه فارغه شی.

دويم دليل دادی چی د اذان مقصد خلقو ته د وخت خبر ورکول دی چی هغوی دمانځه دپاره تياري اوکړی.اود مونځ ادا کولو دپاره مسجد ته حاضر شی.اوپه وصل سره دا مقصود فوت کيږی.نوځکه په اذان او اقامت کي وصل مکروه او وقفه ضروری ده.نوکه مونځ داسی وی چی د هغی نه وړاندې نفل سنت يا مستحب څه مونځ وی. نود اذان او اقامت په مينځ کي دي په مونځ سره فصل اوکړی.مثلاً د سحر د مونځ نه وړاندې دوه رکعته، د ماسپخين نه وړاندې څلور رکعته سنت دی.او د مازيګر نه وړاندې اود ماسخوتن نه وړاندې څلور رکعته د استحباب په درجه کي دی.

دليل دا دې چی نبی ﷺ فرمائيلیٰ دی (بين كل أذانين صلاة) يعنی د هراذان او اقامت په مينځ کي مونځ شته.نبی ﷺ دا خبره دری ځله اوکړله (لمن شاء فإن لم يصل يفصل بينهما بجلسة خفيفة) يعنی په دريم ځل ئې اوفرمائيل چی دا حکم د هغه کس دپاره دې.که ده مونځ نه وی کړې.نو د دواړو په مينځ کي دي په جلسه خفيفه باندې فصل اوکړی.

دامام ابوحنيفه (رحمه الله)په نزد د مابنام نه علاوه په باقی ټولو مونځونو کي به د اذان او اقامت په مينځ کي لږه غوندې ناسه کوی.او د موذن دپاره په دغه وخت کي سنت يا نفل کول بهتر دی.

په مابنام کي د امام ابوحنیفه (رحمه الله)نه دوه روایتونه دی(۱)یو دا چی په مابنام کي د اذان او اقامت په مینځ کي په ولاړه ولاړه په دومره اندازه باندي فصل کول مستحب دي چی په هغی کي دری واړه یا یو ورکوټي آیت لوستلي شی(۲)دویم روایت دا دی چی دومره فصل دي کوی چی دری قدمه په کي اخستلي شی، صاحبین فرمائی چی په مابنام کي به هم فصل کوی.خو ډیر مختصر لکه چی د دوو خطبو په مینځ کي څومره وی.د صاحبینو دلیل دا دی چی دا خبره خو اتفاقی ده چی په اذان اواقامت کي وصل مکروه او فصل ضروری دی.لکه چی په اول کي بیان شو(۲)اودا خبره هم تقریباً اتفاقی ده چی په سکوت سره فصل نه واقع کیږی.ځکه چی سکوت خو د اذان د کلماتو په مینځ کي هم وی. نو ځکه پکار ده چی کینی او په ناسته سره فصل اوکړی.اګرچی لږه غوندي وی.لکه چی د جمعی په دوو خطبو کي چی په ناستي سره فصل کوی.

دامام ابوحنیفه (رحمه الله)دلیل دا دي چی په مابنام کي تاخیر کول مکروه دي.هم دا وجه ده چی وړاندي مونږ ذکر کړی وو چی د مابنام نه پس د فرضو نه وړاندي دي نفل نه کوی.بلکه په ادنی فصل یعنی سکته دي اکتفاء کوی چی په دی طریقه د تاخیر نه هم احتراز اوشی.اود اذان او اقامت په مینځ کي فصل هم راشی.

د صاحبینو ددلیل نه جواب دادی چی د مابنام د اذان او اقامت په مینځ کي فصل د دوو خطبوپه مینځ کي فصل باندي قیاس کول درست نه دی.ځکه چی په دی دواړو کي د زمکي او آسمان فرق دي، په اذانینو کي دکیفیات ثلاثه بیان اوهغه داسی چی (۱)د اذان او اقامت خائي مختلف وی(۲)اوپه دواړو کي آواز مختلف وی.هغه داسی چی په اذان کي ترسیل وی او په اقامت کي حدر(۳)بله په دواړو کي د موذن هیئت مختلف وی.ځکه چی د اذان په وخت کي هغه خپلي ګوتي په غوږونو کي داخلوی اود اقامت په مینځ کي لاسونه زوړند وی. ددی په خلاف (۱)په خطبه کي د دواړو خطبو ځائي یو وی(۲)په دواړو خطبو کي نغمه او آواز په یو کیفیت وی(۳)او په دوارو خطبو کي د خطیب هئیت اوحالت یوشان وی.نه ددی فرق باوجود ددی په خپل مینځ کي په یو بل باندي قیاس کول څنګه صحیح کیدي.

امام شافعی (رحمه الله)فرمائی.د مابنام په اذان او اقامت کي دي په دوه رکعته نفلو فصل کوی اوپه دلیل کي فرمائی چی مابنام به په باقی مونځونو قیاس کولی شی.

د صاحب هدایه بیان دی چی د مابنام اونورو مونځونو په مینځ کي فرق ذکر شوي دي.یعنی د امام شافعی (رحمه الله)په نورو مونځونو باندي د مابنام د مونځ قیاس ،قیاس مع الفارق دي.نوځکه په مابنام کي تاخیر مکروه دي.او په نورو مونځونو کي تاخیر مکروه نه دي.نو د مابنام په نورو مونځونو باندي قیاس څنګه صحیح کیدی شی ؟صاحب دهدایه (رحمه الله)غوندي فاضل ته تعجب دي چی په باب المواقیت کي ئې د مابنام په بیان کي د امام

شافعي (رحمه الله)مذهب نقل کړې دې.نوفرمائي چې د هغوی په نزد صرف دومره وخت دې چې د اودس ،اذان او اقامت نه پس صرف دری رکعته کولی شی.اودلته لیکې چې د اذان او اقامت په مینځ کې به په دوه رکعتونو سره فصل کوی.نودا دواړه مذاهب څنګه جمع کیدی شی ؟

جواب دا دې چې دا د امام شافعي (رحمه الله)د مابنام په وخت کې دوه اقوال دی.په باب المواقیت کې یې د امام شافعي (رحمه الله)یوقول ذکر کړې دې.او دلته ئې دویم ته ترجیح ورکړې ده.دویم قول دا دې چې د مابنام وخت دومره دې چې اودس. اذان اواقامت نه علاوه په کې پنځه رکعته مونځ کولی شی. یعنی دری رکعته فرض.اوپه اذان او اقامت کې په دوو رکعتونو سره فصل کوی. امام ابویوسف (رحمه الله) فرمائي چې ما ابوحنیفه (رحمه الله)لیدل چې د مابنام په وخت کې به ئې اذان کولو. او اقامت به ئې کولو.اود اذان او اقامت په مینځ کې به نهٔ کیناستلو.

دامام ابویوسف (رحمه الله) ددی قول نه دوه فائدي حاصلیږی.یوه خو هغه کومه چې مونږذکر کړې ده.یعنی د امام ابوحنیفه (رحمه الله)په نزد به په مابنام کې د اذان او اقامت په مینځ کې جلسه نه کوی.دویم دا چې مؤذن دې د شریعت د احکامو عالم وی.باقی پاتې شوه دا خبره چې دا دکوم دلیل نه معلومه شوه.

نوجواب دادی چې نبی ﷺ فرمائیلی دی. (یؤذن لکم خیارکم ولیؤمکم أقرئکم) یعنی تاسو ته دې هغه کس اذان کوی چې په تاسو کې غوره وی.اوتاسو ته دې هغه کس امامتی درکوی چې اقراء وی.یعنی چې د الله تعالی کتاب بنه قراءت کولی شی.

## د سلمه بن اکوع رضي الله عنه حالات

نوم سنان کنیه ابو مسلم یا ابو ایاس پوره نوم داسې دی: سنان بن عبدالله بن عبدالله بن قشیر بن خزمه (مستدرك حاکم).

د غزوه حدیبیه نه پس په تمامو غزواتو کې شریك شوی دی دصلح حدیبیه په سلسله کې په بیعت الرضوان کې هم موجود وو او په دغه موقعه کې یې درسول الله صلي الله علیه وسلم په لاس دري پیري بیعت کړی دی او هغه داسې چې رسول الله صلي الله علیه وسلم اوفرمائیل چې ای سلمه ایا بیعت نه کوی نو عرض یې اوکړو چې کړی مې دی نو ورته یې اوفرمائیل چې بیایې اوکړه هیڅ حرج نشته

تقریبا په څوارلسو غزواتو کې یې شرکت کړی دی په اوه غزواتو کې دنبي کریم صلي الله علیه وسلم سره او په اوه غزواتو کې دنورو صحابه کرامو سره په ده کې دکاملي درجي څلور صفات موجود وو.

اول: دالله په لاره کې به یې په فراخ لاس خرچ کولو.

دویم: صدقه به یې پخپل ځان باندې بالکل حرام ګڼړل.
دریم: په تمام اوامر او نواهي کې یې ډیر احتیاط کولو (طبقات ابن سعد).
څلورم: دده په باره کې په اصابه کې دي كان من الشجعان ويسبق الفرس عدوا (اصابه).
وفات: دعثمان رضي الله عنه دشهادت نه پس په ربذه کې اوسیدو او هلته یې واده اوکړو بیا یو ځل مدینې ته راغی او څلور ورځې پس په مدینه کې وفات شو (اصابه).
مرویات: دده د مروياتو شمیر ۷۷ ته نژدې دی چې شپاړس متفق علیه دي پنځه په بخاري کې او نهه په مسلم کې (تهذيب الکمال).

****************

## ١١ـ بَاب مَا جَاءَ فِي وَقْتِ صَلاَةِ الْعِشَاءِ الآخِرَةِ

### د ماخوستن د مونځ د وخت بيان

١٦٥ـ حَدَّثَنَا مُحَمَّدُ بْنُ عَبْدِ الْمَلِكِ بْنِ أَبِي الشَّوَارِبِ، حَدَّثَنَا أَبُو عَوَانَةَ، عَنْ أَبِي بِشْرٍ، عَنْ بَشِيرِ بْنِ ثَابِتٍ، عَنْ حَبِيبِ بْنِ سَالِمٍ، عَنْ النُّعْمَانِ بْنِ بَشِيرٍ، قَالَ: أَنَا أَعْلَمُ النَّاسِ بِوَقْتِ هَذِهِ الصَّلَاةِ، "كَانَ رَسُولُ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ يُصَلِّيهَا لِسُقُوطِ الْقَمَرِ لِثَالِثَةٍ".[1]

**ترجمه**: دنعمان بن بشیر رضي الله عنه نه روایت دي چې دماخوستن دمونځ وخت په ټولو خلقو کې ماته زیات معلوم دي، رسول الله صلي الله علیه وسلم به دې لره د دریم تاریخ دسپوږمۍ ډوبیدو په وخت کې اداء کولو.

١٦٦ـ حَدَّثَنَا أَبُو بَكْرٍ مُحَمَّدُ بْنُ أَبَانَ، حَدَّثَنَا عَبْدُ الرَّحْمَنِ بْنُ مَهْدِيٍّ، عَنْ أَبِي عَوَانَةَ بِهَذَا الإِسْنَادِ نَحْوَهُ. قَالَ أَبُو عِيسَى: رَوَى هَذَا الْحَدِيثَ هُشَيْمٌ عَنْ أَبِي بِشْرٍ، عَنْ حَبِيبِ بْنِ سَالِمٍ، عَنْ النُّعْمَانِ بْنِ بَشِيرٍ وَلَمْ يَذْكُرْ فِيهِ هُشَيْمٌ، عَنْ بَشِيرِ بْنِ ثَابِتٍ، وَحَدِيثُ أَبِي عَوَانَةَ أَصَحُّ عِنْدَنَا، لِأَنَّ يَزِيدَ بْنَ هَارُونَ رَوَى عَنْ شُعْبَةَ، عَنْ أَبِي بِشْرٍ نَحْوَ رِوَايَةِ أَبِي عَوَانَةَ.[2]

### د نعمان بن بشیر رضي الله عنه حالات

نوم نعمان کنیه ابو عبدالله او دپلار نوم یې بشیر وو نعمان بلند پایه صحابي وو دده مور دعبدالله بن رواحه خور وه دهجرت نه پس په انصارو کې دټولو نه مخکې دده پیدائش شوی وو او بیا شپږمیاشتې پس عبدالله بن زبیر پیدا شو چې لږ هوښیار شو نو دمنبر نبوي سره به

---

[1] سنن ابي داود/ الصلاة ٧ (٤١٩). سنن النسائي/ المواقيت ١٩ (٥٢٩). (تحفة الأشراف: ١١٦١٤). مسند احمد (٤/٢٧٠، ٢٧٤)

[2] سنن ابي داود/ الصلاة ٧ (٤١٩). سنن النسائي/ المواقيت ١٩ (٥٢٩). (تحفة الأشراف: ١١٦١٤). مسند احمد (٤/٢٧٠، ٢٧٤)

نزدي كيناستو او وعظ نصيحت به يي اوريدلو (مسند احمد).
دهجرت په ۵۹ كال كې امير معايه دكوفي حاكم مقرر كړو او بيا دحمص امير مقرر شو دده په باره كي صاحب دفحري ليكلي دي كان حليما ناسكا يحب العافية. يعني دى ډير صبرناك عابد او عافيت پسند انسان وو.
وفات: دهجرت په ۶۵ كال دحمص علاقه بيران نومي كلي كي وفات شو او پدغه وخت كي دابن زبير او مروان جنګ جاري وو په كوم كي چي ده دزبير ملګرتيا كړي وه نو په دي وجه دمروان كسانو دى قتل كړو او دده سر يي كټ كړو دده ښځي دده سر پخپله غيږ كي كيخودو او پدغه وخت كي دده عمر ۶۴ كلونه وو (استيعاب).
دده دمروياتو شمير ۱۲۴ دى چي پنځه متفق عليه دي يو په بخاري كي او څلور په مسلم كي (فضائل صحابه)

****************

## ۱۲_ باب مَا جَاءَ فِي تَأْخِيرِ صَلاَةِ الْعِشَاءِ الآخِرَةِ

### دماخوستن مونځ مؤخر اداء كولوبيان

۱۶۷_ حَدَّثَنَا هَنَّادٌ. حَدَّثَنَا عَبْدَةُ. عَنْ عُبَيْدِ اللهِ بْنِ عُمَرَ. عَنْ سَعِيدٍ الْمَقْبُرِيِّ. عَنْ أَبِي هُرَيْرَةَ. قَالَ: قَالَ النَّبِيُّ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ: "لَوْلاَ أَنْ أَشُقَّ عَلَى أُمَّتِي لأَمَرْتُهُمْ أَنْ يُؤَخِّرُوا الْعِشَاءَ إِلَى ثُلُثِ اللَّيْلِ أَوْ نِصْفِهِ". قَالَ: وَفِي الْبَابِ عَنْ جَابِرِ بْنِ سَمُرَةَ. وَجَابِرِ بْنِ عَبْدِ اللهِ. وَأَبِي بَرْزَةَ. وَابْنِ عَبَّاسٍ. وَأَبِي سَعِيدٍ الْخُدْرِيِّ. وَزَيْدِ بْنِ خَالِدٍ. وَابْنِ عُمَرَ. قَالَ أَبُو عِيسَى: حَدِيثُ أَبِي هُرَيْرَةَ حَسَنٌ صَحِيحٌ. وَهُوَ الَّذِي اخْتَارَهُ أَكْثَرُ أَهْلِ الْعِلْمِ مِنْ أَصْحَابِ النَّبِيِّ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ. وَالتَّابِعِينَ وَغَيْرِهِمْ رَأَوْا تَأْخِيرَ صَلاَةِ الْعِشَاءِ الآخِرَةِ. وَبِهِ يَقُولُ أَحْمَدُ. وَإِسْحَاقُ. ([1])

**ترجمه**: دابوهريره رضي الله عنه نه روايت دي چي رسول الله صلي الله عليه وسلم فرمانيلي دي كچري ماسره په امت دګرانيدو ويره نه وي نو ما به دوئ ته حكم كړي وو چي دشپي د دريمي حصي پوري يا دنيمي شپي تيريدو پوري دماخوستن مونځ مؤخر كوئ
امام ترمذي واني حديث دابوهريره حسن صحيح دي. او په دي باب كي دجابر بن سمره، جابر بن عبدالله، ابوبرزه، ابن عباس، ابوسعيد خدري، زيد بن خالد، او ابن عمر رضي الله عنهم نه هم احاديث وارد دي او دا قول په صحابه كرامو او تابعينو كي ډيرو اهل علمو اختيار كړي دي

---

[1] سنن ابن ماجه/الصلاة ۸ (۶۹۰)، (تحفة الأشراف: ۱۲۹۸۸)، مسند احمد (۲/۲۴۵)

ددوى رائي داده چي دماخوستن مونځ دي دتاخير سره اداء کړي شي او په دي باندي امام احمد او اسحاق بن راهويه (رحمهم الله)هم قول کړي دي

**تشريح** دماسخوتن وخت د شفق د ختميدو نه شروع کيږي. او د سحر راختونه وړاندي پورې وى ليکن امام شافعي (رحمه الله)فرمائي چي د دريمي حصي د شپې پورې دماسخوتن وخت باقي وى.

زمونږ دليل د ابوهريره (رضي الله عنه) حديث (أنه صلى الله عليه وسلم قال وآخر وقت العشاء حين يطلع الفجر) دې. دا حديث په دى خبره دلالت کوى. چي د ماسخوتن وخت تر سحر راختو پورې باقي وى.

دامام شافعي (رحمه الله)مستدل د امامت جبرئيل حديث دې.خکه چي دا حديث په دى دلالت کوى چي د ماسخوتن وخت د شپې د دريمي حصي پورې باقي وى.

دماسخوتن مونځ دټولو نه وړاندې موسى عليه السلام کړې وو(نو ددوى په ياد کي په مونږ باندې هم د ماسخوتن مونځ فرض شو)

***************

## ١٣_ باب مَا جَاءَ فِي كَرَاهِيَةِ النَّوْمِ قَبْلَ الْعِشَاءِ وَالسَّمَرِ بَعْدَهَا

**دماخوستن دمونځ نه مخکي داوده کيدو او دمونځ نه وروسته دخبرو اترو دکراهت بيان**

١٦٨_ حَدَّثَنَا أَحْمَدُ بْنُ مَنِيعٍ. حَدَّثَنَا هُشَيْمٌ. أَخْبَرَنَا عَوْفٌ. قَالَ أَحْمَدُ: وَحَدَّثَنَا عَبَّادُ بْنُ عَبَّادٍ هُوَ الْمُهَلَّبِيُّ، وَإِسْمَاعِيل ابْنُ علية جميعا، عَنْ عَوْفٍ، عَنْ سَيَّارِ بْنِ سَلَامَةَ هُوَ أَبُو الْمِنْهَالِ الرِّيَاحِيُّ، عَنْ أَبِي بَرْزَةَ، قَالَ: "كَانَ النَّبِيُّ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ يَكْرَهُ النَّوْمَ قَبْلَ الْعِشَاءِ وَالْحَدِيثَ بَعْدَهَا". قَالَ: وَفِي الْبَاب عَنْ عَائِشَةَ، وَعَبْدِ اللهِ بْنِ مَسْعُودٍ، وَأَنَسٍ. قَالَ أَبُو عِيسَى: حَدِيثُ أَبِي بَرْزَةَ حَسَنٌ صَحِيحٌ، وَقَدْ كَرِهَ أَكْثَرُ أَهْلِ الْعِلْمِ النَّوْمَ قَبْلَ صَلَاةِ الْعِشَاءِ وَالْحَدِيثَ بَعْدَهَا. وَرَخَّصَ فِي ذَلِكَ بَعْضُهُمْ. وقَالَ عَبْدُ اللهِ بْنُ الْمُبَارَكِ: أَكْثَرُ الْأَحَادِيثِ عَلَى الْكَرَاهِيَةِ. وَرَخَّصَ بَعْضُهُمْ فِي النَّوْمِ قَبْلَ صَلَاةِ الْعِشَاءِ فِي رَمَضَانَ. وَسَيَّارُ بْنُ سَلَامَةَ هُوَ أَبُو الْمِنْهَالِ الرِّيَاحِيُّ. ([1])

---

[1] أخرجه : البخاري كتاب مواقيت الصلاة باب ما يكره من النوم قبل صلاة العشاء ١٤٩/١ (٥٦٨). ومسلم ١١٩/٢ (٦٤٧) (٢٣٥) و(٢٣٦) و(٢٣٧) كتاب المساجد باب استحباب التكبير بالصبح. واحمد وابوداود والنسائي وابن ماجه وابن حبان وعبد الرزاق والبيهقي ٤٥٠.

**ترجمه** : دابوبرزه رضي الله عنه نه مروي دي چي رسول الله صلي الله عليه وسلم به دماخوستن دمونځ نه مخکي د اوده کيدلواود مونځ نه بعد دخبرو اترو کولو نه منع فرمائيله

امام ترمذي وائي حديث دابو برزه حسن صحيح دي. اوپه دي باب کي دعائشه. عبدالله ابن مسعود او انس رضي الله عنه نه هم احاديث وارد دي، او اکثر اهل علمو دماخوستن دمونځ نه مخکي داوده کيدلو او د ماخوستن دمونځ نه پس خبري کول مکروه ګنړلي دي او بعضي اهل علمو ددي اجازت ورکړي دي، دعبدالله بن مبارک قول دي چي اکثر احاديث په کراهت دلالت کوي او بعضو په رمضان کي دماخوستن نه مخکي د اوده کيدو اجازت ورکړي دي

**لغات** : النوم معني خوب کول، په معني دنائم دي نوام پکي مبالغه ده يعني ډير خوب کونکي سړي، نام ينام نوما ونياما ، اوده کيدل ، مړ کيدل، اسم النيمة نامت السوق د بازار خرابيدل الريح دهوا ودريدل نوّم تنويما نوم الرجل اوده کيدل ، اليه د اوده کيدونکي پشان ښکاريدل

**تشريح** : يعني رسول الله به دماخوستن دمونځ نه مخکي اوده کيدلو نه منع فرمائيله. ددي وجه داده چي ددي په وجه دماخوستن مونځ دفوت کيدو خطره ده، او ددينه پس يي دخبرو او قصو کولو نه هم منع فرمائيلي ده دجاهليت په زمانه کي دا رواج وو چي دشپي به خلقو افساني او قصي بيانولي په دي کي ډيري خرابياني دي او وخت ضايع کول هم دي په دي وجه نبي کريم صلي الله عليه وسلم ددي رسم دختمولو دپاره دماخوستن دمونځ نه مخکي اوده کيدل او دمونځ نه پس قصي کول منع اوګرځول

دعمر فاروق رضي الله عنه په باره کي مروي دي چي چا به دماخوستن دمونځ نه پس فضول قصي کولي نو هغه ته به يي تنبيه ورکوله او بعضي ته به يي سزا هم ورکوله او فرمائيل به يي زر زر اوده شئ کيدی شي چي په دي شپه کي درته دتهجد توفيق درکړی شي

**ابوبرزه فضله بن عبيد اسلمي رضي الله عنه حالات**

دده په نوم کي اختلاف دی څوک وائي عبدالله دی او څوک وائي نزله دی او دپلار په نوم کي يي اختلاف دی دبعضو په نزد عمرو دی او دبعضو په نزد نضله دی اوچا ابوبرزه هم ليکلی دی دی درسول الله صلي الله عليه وسلم سره په جهادونو کي شريک شوی وو خاصکر په غزوه فتح مکه کي دده ذکر راځي په بصره ياخراسان کي دشپيته کالو په عمر کي وفات شوی دی او ۲۴روايات ورنه مروي دي

***************

## ١٤_ بَاب مَا جَاءَ مِنَ الرُّخْصَةِ فِي السَّمَرِ بَعْدَ الْعِشَاءِ

**دماخوستن دمونځ نه پس دخبرو اترو کولو دجواز بيان**

١٦٩_ حَدَّثَنَا أَحْمَدُ بْنُ مَنِيعٍ، حَدَّثَنَا أَبُو مُعَاوِيَةَ، عَنِ الأَعْمَشِ، عَنْ إِبْرَاهِيمَ، عَنْ عَلْقَمَةَ، عَنْ عُمَرَ بْنِ الخَطَّابِ، قَالَ: "كَانَ رَسُولُ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ يَسْمُرُ مَعَ أَبِي بَكْرٍ فِي الأَمْرِ مِنْ أَمْرِ المُسْلِمِينَ وَأَنَا مَعَهُمَا". وَفِي البَابِ عَنْ عَبْدِ اللَّهِ بْنِ عَمْرٍو، وَأَوْسِ بْنِ حُذَيْفَةَ، وَعِمْرَانَ بْنِ حُصَيْنٍ. قَالَ أَبُو عِيسَى: حَدِيثُ عُمَرَ حَسَنٌ، وَقَدْ رَوَى هَذَا الحَدِيثَ الحَسَنُ بْنُ عُبَيْدِ اللَّهِ، عَنْ إِبْرَاهِيمَ، عَنْ عَلْقَمَةَ، عَنْ رَجُلٍ مِنْ جُعْفِيٍّ يُقَالُ لَهُ: قَيْسٌ أَوْ ابْنُ قَيْسٍ، عَنْ عُمَرَ، عَنِ النَّبِيِّ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ هَذَا الحَدِيثَ فِي قِصَّةٍ طَوِيلَةٍ، وَقَدِ اخْتَلَفَ أَهْلُ العِلْمِ مِنْ أَصْحَابِ النَّبِيِّ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ وَالتَّابِعِينَ وَمَنْ بَعْدَهُمْ فِي السَّمَرِ بَعْدَ صَلَاةِ العِشَاءِ الآخِرَةِ، فَكَرِهَ قَوْمٌ مِنْهُمُ السَّمَرَ بَعْدَ صَلَاةِ العِشَاءِ، وَرَخَّصَ بَعْضُهُمْ إِذَا كَانَ فِي مَعْنَى العِلْمِ، وَمَا لَا بُدَّ مِنْهُ مِنَ الحَوَائِجِ، وَأَكْثَرُ الحَدِيثِ عَلَى الرُّخْصَةِ قَدْ رُوِيَ عَنِ النَّبِيِّ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ، قَالَ: "لَا سَمَرَ إِلَّا لِمُصَلٍّ أَوْ مُسَافِرٍ".[1]

**ترجمه** دعمر بن خطاب رضي الله عنه نه روايت دي فرمائي چي رسول الله صلي الله عليه وسلم به دمسلمانانو په بعضي معاملاتو کي دابوبکر رضي الله عنه سره دشپي خبري اتري کولي او زه به ددوئ دواړو سره موجود وم

امام ترمذي وائي دعمر رضي الله عنه حديث حسن صحيح دي، او په دي باب کي دعبدالله بن عمرو، اوس بن حذيفه او عمران بن حصين رضي الله عنهم نه هم احاديث وارد دي په صحابه کرامو او تابعينو او ددوئ نه په پس خلقو کي دبعضي اهل علمو قول دي چي دماخوستن دمونځ نه پس دخبرو په سلسله کي اختلاف دي بعضو مکروه ګڼرلي دي او بعضو اجازت ورکړي دي خو شرط به دا وي چي دا به کومه علمي ګفتګو وي او يا به کوم داسي ضرورت وي دکوم نه بغير چي هيڅ چاره نه وي او اکثر احاديث دجواز په بيان کي دي همدا رنګي درسول الله صلي الله عليه وسلم نه مروي دي چي فرمائيل يي خبري صرف هغه څوک کولي شي څوک چي دماخوستن دمونځ منتظر وي او يا مسافر وي

*****************

## ١٥_ بَابُ مَا جَاءَ فِي الوَقْتِ الأَوَّلِ مِنَ الفَضْلِ

**په اول وخت کي دمونځ اداء کولو دفضيلت بيان**

[1] تفرد به المؤلف (تحفة الأشراف : ١٠٦١١)

Scanned with C

١٧٠_ حَدَّثَنَا أَبُو عَمَّارٍ الحُسَيْنُ بْنُ حُرَيْثٍ، حَدَّثَنَا الفَضْلُ بْنُ مُوسَى، عَنْ عَبْدِ اللهِ بْنِ عُمَرَ العُمَرِيِّ، عَنْ القَاسِمِ بْنِ غَنَّامٍ، عَنْ عَمَّتِهِ أُمِّ فَرْوَةَ، وَكَانَتْ مِمَّنْ بَايَعَتِ النَّبِيَّ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ، قَالَتْ: سُئِلَ النَّبِيُّ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ: أَيُّ الأَعْمَالِ أَفْضَلُ؟ قَالَ: "الصَّلَاةُ لِأَوَّلِ وَقْتِهَا".[1]

**ترجمه**: دقاسم بن غنام دترور ام فروه (چي درسول الله سره يي بيعت هم كړي وو) بيان دي چي د رسول الله صلي الله عليه وسلم نه مي تپوس اوكړو چي كوم يو عمل په ټولو اعمالو كي افضل دي راته يي اووئيل په اول وخت كي مونځ اداء كول

***************

١٧١_ حَدَّثَنَا قُتَيْبَةُ، قَالَ: حَدَّثَنَا عَبْدُ اللهِ بْنُ وَهْبٍ، عَنْ سَعِيدِ بْنِ عَبْدِ اللهِ الْجُهَنِيِّ، عَنْ مُحَمَّدِ بْنِ عُمَرَ بْنِ عَلِيِّ بْنِ أَبِي طَالِبٍ، عَنْ أَبِيهِ، عَنْ عَلِيِّ بْنِ أَبِي طَالِبٍ، أَنَّ النَّبِيَّ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ، قَالَ لَهُ: "يَا عَلِيُّ ثَلَاثٌ لَا تُؤَخِّرْهَا: الصَّلَاةُ إِذَا آنَتْ، وَالجَنَازَةُ إِذَا حَضَرَتْ، وَالأَيِّمُ إِذَا وَجَدْتَ لَهَا كُفْئًا".

قَالَ أَبُو عِيسَى: هَذَا حَدِيثٌ غَرِيبٌ حَسَنٌ.[2]

**ترجمه**: دعلي رضي الله عنه نه روايت دي چي رسول الله صلي الله عليه وسلم راته اوفرمائيل اي علي په دري څيزونو كي تاخير مه كوه يو په مونځ كي كله چي يي وخت لاړ شي، بل په جنازه كي كله چي مخامخ شي او بل دكونډي ښځي په نكاح كولو كي كله چي درته ددي څوك برابر او مساوي حيثيت والا په لاس درشي

امام ترمذي وائي دا حديث حسن غريب دي

***************

١٧٢_ حَدَّثَنَا أَحْمَدُ بْنُ مَنِيعٍ، حَدَّثَنَا يَعْقُوبُ بْنُ الوَلِيدِ المَدَنِيُّ، عَنْ عَبْدِ اللهِ بْنِ عُمَرَ، عَنْ نَافِعٍ، عَنْ ابْنِ عُمَرَ، قَالَ: قَالَ رَسُولُ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ: "الوَقْتُ الأَوَّلُ مِنَ الصَّلَاةِ رِضْوَانُ اللهِ، وَالوَقْتُ الآخِرُ عَفْوُ اللهِ". قَالَ أَبُو عِيسَى: هَذَا غَرِيبٌ، وَقَدْ رَوَى ابْنُ عَبَّاسٍ، عَنِ النَّبِيِّ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ نَحْوَهُ. قَالَ: وَفِي البَابِ عَنْ عَلِيٍّ، وَابْنِ عُمَرَ، وَعَائِشَةَ، وَابْنِ مَسْعُودٍ. قَالَ أَبُو عِيسَى: حَدِيثُ أُمِّ فَرْوَةَ لَا يُرْوَى إِلَّا مِنْ حَدِيثِ عَبْدِ اللهِ بْنِ عُمَرَ العُمَرِيِّ، وَلَيْسَ هُوَ بِالقَوِيِّ عِنْدَ أَهْلِ

---

[1] سنن ابي داود/ الصلاة ٩ (٤٢٦) . (تحفة الأشراف : ١٨٣٤١) قال الشيخ الألباني: صحيح. صحيح أبي داود (٤٥٢) . المشكاة (٦٠٧)

[2] سنن ابن ماجه/الجنائز ١٨ (١٤٨٦) . (تحفة الأشراف : ١٠٢٥١)قال الشيخ الألباني: ضعيف. المشكاة (٦٠٥) .

الْحَدِيثِ، وَاضْطَرَبُوا عَنْهُ فِي هَذَا الْحَدِيثِ وَهُوَ صَدُوقٌ. وَقَدْ تَكَلَّمَ فِيهِ يَحْيَى بْنُ سَعِيدٍ مِنْ قِبَلِ حِفْظِهِ.([1])

**ترجمه**: دعبدالله بن عمر رضي الله عنهما بيان دي چي رسول الله صلي الله عليه وسلم فرمائيلي دي مونځ په اول وخت کي کول دالله تعالي درضامندئ سبب دي او په اخري وخت کي دالله تعالي د معافئ کولو سبب دي.

امام ترمذي وائي دا حديث حسن غريب دي او دابن عباس رضي الله عنهما نه هم ددي يو هم معني مرفوع روايت مروي دي، او په دي باب کي د علي، ابن عمر، عائشه، او ابن مسعود رضي الله عنهم نه هم احاديث وارد دي، ام فروه هم ماقبل حديث دعبدالله بن عمر نه نقل کوي او دا دمحدثينو په نزد قوي نه دي، په دي حديث کي خلق ددينه په روايت کولو کي په اضطراب کي مبتلا دي او هغه رښتوني ده يحيي بن سعيد په هغي باندي دحفظ په لحاظ کلام کري دي.

****************

١٧٣ـ حَدَّثَنَا قُتَيْبَةُ، حَدَّثَنَا مَرْوَانُ بْنُ مُعَاوِيَةَ الْفَزَارِيُّ، عَنْ أَبِي يَعْفُورٍ، عَنْ الْوَلِيدِ بْنِ الْعَيْزَارِ، عَنْ أَبِي عَمْرٍو الشَّيْبَانِيِّ، أَنَّ رَجُلًا، قَالَ لِابْنِ مَسْعُودٍ: أَيُّ الْعَمَلِ أَفْضَلُ ؟ قَالَ: سَأَلْتُ عَنْهُ رَسُولَ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ، فَقَالَ: " الصَّلَاةُ عَلَى مَوَاقِيتِهَا ". قُلْتُ: وَمَاذَا يَا رَسُولَ اللَّهِ ؟ قَالَ: " وَبِرُّ الْوَالِدَيْنِ ". قُلْتُ: وَمَاذَا يَا رَسُولَ اللَّهِ ؟ قَالَ: " وَالْجِهَادُ فِي سَبِيلِ اللَّهِ ". قَالَ أَبُو عِيسَى: وَهَذَا حَسَنٌ صَحِيحٌ، وَقَدْ رَوَى الْمَسْعُودِيُّ، وَشُعْبَةُ، وَسُلَيْمَانُ هُوَ أَبُو إِسْحَاقَ الشَّيْبَانِيُّ وَغَيْرُ وَاحِدٍ، عَنْ الْوَلِيدِ بْنِ الْعَيْزَارِ هَذَا الْحَدِيثَ.([2])

**ترجمه**: دابوعمرو شيباني نه روايت دي چي يو کس دابن مسعود رضي الله عنه نه تپوس اوکړو چي په عملونو کي کوم يو عمل بهتر دي ابن مسعود اووئيل ما په دي باره کي درسول الله صلي الله عليه وسلم نه تپوس کړي وو راته يي فرمائيلي ووچي مونځ پخپل وخت کول ما بيا عرض اوکړو بل کوم يو عمل غوره دي رسول الله راته اوفرمائيل دمور او پلار سره ښه سلوک

---

[1] تفرد به المؤلف (تحفة الأشراف: ٧٧٣١)

[2] صحيح البخاري/المواقيت ٥ (٥٢٧) ، والجهاد ١ (٢٧٨٢) ، والأدب ١ (٥٩٧٠) ، والتوحيد ٤٨ (٧٥٣٤) . صحيح مسلم/الإيمان ٣٦ (٨٥) . سنن النسائي/المواقيت ٥١ (٦١١) . (تحفة الأشراف: ٩٢٣٢) . مسند احمد (٤٠٩/١، ٤١٠، ٤١٨، ٤٢١، ٤٤٤، ٤٤٨، ٤٥١) ويأتي عند المؤلف برقم: ١٨٩٨

کول، ما بیا عرض او کړو چي په دي پسي بل کوم یو عمل غوره دي رسول الله اوفرمائیل دالله په لاره کي جهاد کول
امام ترمذي وائي دا حدیث حسن صحیح دي
*****************

١٧٤ـ حَدَّثَنَا قُتَيْبَةُ، حَدَّثَنَا اللَّيْثُ، عَنْ خَالِدِ بْنِ يَزِيدَ، عَنْ سَعِيدِ بْنِ أَبِي هِلَالٍ، عَنْ إِسْحَاقَ بْنِ عُمَرَ، عَنْ عَائِشَةَ، قَالَتْ: " مَا صَلَّى رَسُولُ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ صَلَاةً لِوَقْتِهَا الْآخِرِ مَرَّتَيْنِ حَتَّى قَبَضَهُ اللَّهُ ". قَالَ أَبُو عِيسَى: هَذَا حَسَنٌ غَرِيبٌ، وَلَيْسَ إِسْنَادُهُ بِمُتَّصِلٍ. قَالَ الشَّافِعِيُّ: وَالْوَقْتُ الْأَوَّلُ مِنَ الصَّلَاةِ أَفْضَلُ. وَمِمَّا يَدُلُّ عَلَى فَضْلِ أَوَّلِ الْوَقْتِ عَلَى آخِرِهِ اخْتِيَارُ النَّبِيِّ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ وَأَبِي بَكْرٍ، وَعُمَرَ، فَلَمْ يَكُونُوا يَخْتَارُونَ إِلَّا مَا هُوَ أَفْضَلُ وَلَمْ يَكُونُوا يَدَعُونَ الْفَضْلَ. وَكَانُوا يُصَلُّونَ فِي أَوَّلِ الْوَقْتِ. قَالَ: حَدَّثَنَا بِذَلِكَ أَبُو الْوَلِيدِ الْمَكِّيُّ، عَنْ الشَّافِعِيِّ. ([1])

**ترجمه**: دام المؤمنین عائشه رضي الله عنهابیان دي فرمائي چي رسول الله صلي الله علیه وسلم هیڅ یو مونځ پخپل اخري وخت کي دوه یا دري پیري نه دي اداء کړي تردي پوري چي الله تعالي وفات کړو.
امام ترمذي وائي دا حدیث حسن غریب دي او سند یي متصل نه دي. امام شافعي وائي دمونځ اول وخت افضل دي او کوم څیزونه چي په اول وخت په فضیلت دلالت کوي من جمله دهغوئ نه درسول الله صلي الله علیه وسلم او ابوبکر او عمر رضي الله عنهما هغي لره خوښول دي هغوئ به هغه څیز لره معمول ګرځولو کوم چي به افضل وو او افضل څیز به یي نه پریخودلو او مونځ به یي په اول وخت کي اداء کولو.
**تشریح**: په دي باب کي امام ترمذي دامام شافعي دترجمانئ کولو په حال کي پنځه احادیث نقل کړي دي چي دلالت کوي په اول وخت کي دمونځ اداء کولو په فضیلت باندي مګر په ظاهري طور دا باب دحنفي مسلك خلاف دي
جواب: داول وخت نه مراد مستحب وخت دي او مونږ هم ددي قائل یو چي دمستحب وخت په اول کي مونځ کول افضل دي (تعلیمات محمدي)
****************

[1] تفرد به المؤلف (تحفة الأشراف : ١٥٩٢٢) (حسن)

## ١٦_ باب مَا جَاءَ فِي السَّهْوِ عَنْ وَقْتِ صَلاَةِ الْعَصْرِ

### دمازيګر دوخت دهيريدلو بيان

١٧٥_ حَدَّثَنَا قُتَيْبَةُ. حَدَّثَنَا اللَّيْثُ بْنُ سَعْدٍ، عَنْ نَافِعٍ، عَنْ ابْنِ عُمَرَ، عَنِ النَّبِيِّ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ، قَالَ: " الَّذِي تَفُوتُهُ صَلاَةُ الْعَصْرِ فَكَأَنَّمَا وُتِرَ أَهْلَهُ وَمَالَهُ ". وَفِي الْبَاب عَنْ بُرَيْدَةَ، وَنَوْفَلِ بْنِ مُعَاوِيَةَ. قَالَ أَبُو عِيسَى: حَدِيثُ ابْنِ عُمَرَ حَسَنٌ صَحِيحٌ، وَقَدْ رَوَاهُ الزُّهْرِيُّ أَيْضًا، عَنْ سَالِمٍ، عَنْ أَبِيهِ ابْنِ عُمَرَ، عَنِ النَّبِيِّ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ. [1]

**ترجمه**: دعبدالله بن عمر رضي الله عنهما نه روايت دي چي نبي كريم صلي الله عليه وسلم فرمائيلي دي دچانه چي مازيګر فوت شو ګويا كي دده كور او مال لوټ شو.

امام ترمذي وائي دابن عمر رضي الله عنهما حديث حسن صحيح دي او په دي باب كي دبريده او نوفل بن معاويه رضي الله عنهما نه هم احاديث وارد دي

****************

## ١٧_ باب مَا جَاءَ فِي تَعْجِيلِ الصَّلاَةِ إِذَا أَخَّرَهَا الإِمَامُ

### كله چي امام په مونځ كي تاخير كړي وي نوبيا مونځ په جلتئ سره كول ښكاردي

١٧٦_ حَدَّثَنَا مُحَمَّدُ بْنُ مُوسَى الْبَصْرِيُّ، حَدَّثَنَا جَعْفَرُ بْنُ سُلَيْمَانَ الضُّبَعِيُّ، عَنْ أَبِي عِمْرَانَ الْجَوْنِيِّ، عَنْ عَبْدِ اللَّهِ بْنِ الصَّامِتِ، عَنْ أَبِي ذَرٍّ، قَالَ: قَالَ النَّبِيُّ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ: " يَا أَبَا ذَرٍّ أُمَرَاءُ يَكُونُونَ بَعْدِي يُمِيتُونَ الصَّلاَةَ، فَصَلِّ الصَّلاَةَ لِوَقْتِهَا، فَإِنْ صُلِّيَتْ لِوَقْتِهَا كَانَتْ لَكَ نَافِلَةً وَإِلاَّ كُنْتَ قَدْ أَحْرَزْتَ صَلاَتَكَ ". وَفِي الْبَاب عَنْ عَبْدِ اللَّهِ بْنِ مَسْعُودٍ، وَعُبَادَةَ بْنِ الصَّامِتِ. قَالَ أَبُو عِيسَى: حَدِيثُ أَبِي ذَرٍّ حَسَنٌ، وَهُوَ قَوْلُ غَيْرِ وَاحِدٍ مِنْ أَهْلِ الْعِلْمِ يَسْتَحِبُّونَ أَنْ يُصَلِّيَ الرَّجُلُ الصَّلاَةَ

---

[1] صحيح البخاري/المواقيت ١٤ (٥٥٢)، والمناقب ٢٥ (٣٦٠٢)، صحيح مسلم/المساجد ٣٥ (٦٢٦)، سنن ابي داود/الصلاة ٥ (٤١٤)، سنن النسائي/الصلاة ١٧ (٤٧٩)، سنن ابن ماجه/الصلاة ٦ (٦٨٥)، (تحفة الأشراف: ٨٣٠١)، موطا امام مالك/وقوت الصلاة ٥ (٢١)، مسند احمد (٢/١٣، ٢٧، ٤٨، ٦٤، ٧٥، ٧٦، ١٠٢، ١٣٤، ١٣٥، ١٤٧)، سنن الدارمي/الصلاة ٢٧ (١٢٦٧)

لِمِيقَاتِهَا إِذَا أَخَّرَهَا الإِمَامُ، ثُمَّ يُصَلِّي مَعَ الإِمَامِ. وَالصَّلاَةُ الأُولَى هِيَ الْمَكْتُوبَةُ عِنْدَ أَكْثَرِ أَهْلِ الْعِلْمِ، وَأَبُو عِمْرَانَ الْجَوْنِيُّ اسْمُهُ: عَبْدُ الْمَلِكِ بْنُ حَبِيبٍ. (1)

**ترجمه**: دابوذر رضي الله عنه نه مروي دي چي رسول الله صلي الله عليه وسلم اوفرمائيل اي ابو ذر زما نه پس به داسي اميران راشي چي مونځ لره به وژني پس تاسو مونځ لره پخپل وخت اداء کوئ مونځ چي پخپل وخت باندي اوشي نو دامام والا مونځ به ستاسو دپاره نفل شي او کنه نو تاسو خپل مونځ محفوظ کړي دي.

امام ترمذي وائي په دي باب کي د عبدالله بن مسعود، او عباده بن صامت رضي الله عنهما نه هم احاديث وارد دي، او دابوذر حديث حسن صحيح دي او په همدي باندي اکثرو اهل علمو قول دي ددوئ په نزد دا مستحب دي چي مونځ پخپل وخت اوکړي شي چي کله دامام نه مؤخر شي نو بيا به دا دامام سره هم لولي او اولني مونځ به داکثرو اهل علمو په نزد فرض حسابيږي

****************

## ١٨_ بَاب مَا جَاءَ فِي النَّوْمِ عَنِ الصَّلاَةِ

### دمونځ وخت کي داوده پاتي کيدو بيان

١٧٧_ حَدَّثَنَا قُتَيْبَةُ، حَدَّثَنَا حَمَّادُ بْنُ زَيْدٍ، عَنْ ثَابِتٍ الْبُنَانِيِّ، عَنْ عَبْدِ اللهِ بْنِ رَبَاحٍ الأَنْصَارِيِّ، عَنْ أَبِي قَتَادَةَ، قَالَ: ذَكَرُوا لِلنَّبِيِّ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ نَوْمَهُمْ عَنِ الصَّلاَةِ، فَقَالَ: "إِنَّهُ لَيْسَ فِي النَّوْمِ تَفْرِيطٌ، إِنَّمَا التَّفْرِيطُ فِي الْيَقَظَةِ، فَإِذَا نَسِيَ أَحَدُكُمْ صَلاَةً أَوْ نَامَ عَنْهَا، فَلْيُصَلِّهَا إِذَا ذَكَرَهَا". وَفِي الْبَابِ عَنِ ابْنِ مَسْعُودٍ، وَأَبِي مَرْيَمَ، وَعِمْرَانَ بْنِ حُصَيْنٍ، وَجُبَيْرِ بْنِ مُطْعِمٍ، وَأَبِي جُحَيْفَةَ، وَأَبِي سَعِيدٍ، وَعَمْرِو بْنِ أُمَيَّةَ الضَّمْرِيِّ، وَذِي مِخْبَرٍ وَيُقَالُ: ذِي مِخْمَرٍ وَهُوَ ابْنُ أَخِي النَّجَاشِيِّ. قَالَ أَبُو عِيسَى: وَحَدِيثُ أَبِي قَتَادَةَ حَسَنٌ صَحِيحٌ، وَقَدِ اخْتَلَفَ أَهْلُ الْعِلْمِ فِي الرَّجُلِ يَنَامُ عَنِ الصَّلاَةِ أَوْ يَنْسَاهَا، فَيَسْتَيْقِظُ أَوْ يَذْكُرُ وَهُوَ فِي غَيْرِ وَقْتِ صَلاَةٍ عِنْدَ طُلُوعِ الشَّمْسِ أَوْ عِنْدَ غُرُوبِهَا، فَقَالَ:

---

1 صحيح مسلم/المساجد ٤١ (٦٤٨)، سنن ابي داود/ الصلاة ١٠ (٤٣١)، سنن النسائي/الإمامة ٢ (٧٧٩)، و٥٥ (٨٦٠)، سنن ابن ماجه/الإقامة ١٥٠ (١٢٥٦)، (تحفة الأشراف: ١١٩٥٠)، مسند احمد (١٦٨/٥، ١٦٩)، سنن الدارمي/الصلاة ٢٦ (١٢٦٣)

Scanned with

بَعْضُهُمْ يُصَلِّيهَا إِذَا اسْتَيْقَظَ أَوْ ذَكَرَ، وَإِنْ كَانَ عِنْدَ طُلُوعِ الشَّمْسِ أَوْ عِنْدَ غُرُوبِهَا، وَهُوَ قَوْلُ أَحْمَدَ، وَإِسْحَاق، وَالشَّافِعِيِّ، وَمَالِكٍ، وقَالَ بَعْضُهُمْ: لَا يُصَلِّي حَتَّى تَطْلُعَ الشَّمْسُ أَوْ تَغْرُبَ. [1]

**ترجمه**: د ابو قتاده رضي الله عنه نه روايت دي چي يو خل رسول الله صلي الله عليه وسلم ته دمونځ نه داوده پاتي كيدو ذكر اوكړو نو ويې فرمائيل د اوده كيدو په صورت كي څه كمي او تقصير نه وي كمي او قصور خو دبيدارئ په حالت كي وي (چي ويخ وي او نه يې كوي) لهذا په تاسو كي چي څوك كله دمونځ نه اوده پاتي شي او يا ورنه هير شي پس چي كله ورته راياد شي او يا بيدار شي نو دا دي اداء كړي.

امام ترمذي وائي دابو قتاده حديث حسن صحيح دي، او په دي باب كي د ابن مسعود، ابومريم، عمران بن حصين، جبير بن مطعم، ابوجحيفه، ابو سعيد، عمرو بن اميه ضمري او مخمر او ذو مخمر (دنجاشي وراره) نه هم په دي باب كي روايات وارد دي په اهل علمو كي په دي باره كي اختلاف دي چي څوك دمونځ نه اوده پاتي شي او يا ورنه هير شي او بيا دي بيدار شي او يا ورته راياد شي په داسي وخت كي چي دمونځ وخت نه وي مثلا دنمر ختلو وخت كي يا دنمر پريوتو وخت وي نو دبعضو قول دي چي دا به اداء كوي يعني دنمر ختلو او همدا د امام احمد او اسحاق بن راهويه شافعي او امام مالك رحمهم الله قول دي، او بعضي وايي چي څو پوري نمر نه وي ختلی او پريوتلي نه وي نه به يي كوي، اولني قول راجح دي، خكه چي دا مونځ سبب والا دي، اوپه سبب والا كي دوخت پابندي نه وي.

***************

## ١٩_ بَاب مَا جَاءَ فِي الرَّجُلِ يَنْسَى الصَّلَاةَ

## كه دچا نه مونځ هيرشي نو څه به كوي

١٧٨_ حَدَّثَنَا قُتَيْبَةُ، وَبِشْرُ بْنُ مُعَاذٍ، قَالَا: حَدَّثَنَا أَبُو عَوَانَةَ، عَنْ قَتَادَةَ، عَنْ أَنَسِ بْنِ مَالِكٍ، قَالَ: قَالَ رَسُولُ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ: " مَنْ نَسِيَ صَلَاةً فَلْيُصَلِّهَا إِذَا ذَكَرَهَا ". وَفِي الْبَاب عَنْ سَمُرَةَ، وَأَبِي قَتَادَةَ. قَالَ أَبُو عِيسَى: حَدِيثُ أَنَسٍ حَسَنٌ صَحِيحٌ، وَيُرْوَى عَنْ عَلِيِّ بْنِ أَبِي طَالِبٍ، أَنَّهُ قَالَ فِي الرَّجُلِ يَنْسَى الصَّلَاةَ، قَالَ: يُصَلِّيهَا مَتَى مَا ذَكَرَهَا فِي وَقْتٍ أَوْ فِي غَيْرِ وَقْتٍ، وَهُوَ قَوْلُ الشَّافِعِيِّ، وَأَحْمَدَ بْنِ حَنْبَلٍ، وَإِسْحَاق، وَيُرْوَى عَنْ أَبِي بَكْرَةَ أَنَّهُ نَامَ عَنْ صَلَاةِ الْعَصْرِ، فَاسْتَيْقَظَ عِنْدَ غُرُوبِ

---

[1] صحيح مسلم/المساجد ٥٥ (٦٨١) . (في سياق طويل) . سنن ابي داود/ الصلاة ١١ (٤٣٧) . سنن النسائي/المواقيت ٥٣ (٦١٦) . سنن ابن ماجه/الصلاة ١٠ (٦٩٨) . (تحفة الأشراف: ١٢٠٨٥) . مسند احمد (٥/٣٠٥)



الشَّمْسِ، فَلَمْ يُصَلِّ حَتَّى غَرَبَتِ الشَّمْسُ، وَقَدْ ذَهَبَ قَوْمٌ مِنْ أَهْلِ الكُوفَةِ إِلَى هَذَا، وَأَمَّا أَصْحَابُنَا فَذَهَبُوا إِلَى قَوْلِ عَلِيِّ بْنِ أَبِي طَالِبٍ رَضِيَ اللَّهُ عَنْهُ. ([1])

**ترجمه** دانس بن مالك رضي الله عنه نه روايت دي چي رسول الله صلي الله عليه وسلم فرمائيلي دي دهر چانه چي مونځ هيرشي هغه لره پكار دي چي كله ورته راياد شي نو دا دي اوكړي.

امام ترمذي وائي دانس حديث حسن صحيح دي، او په دي باب كي دسمره، او ابوقتاده رضي الله عنهما نه هم احاديث وارد دي، دعلي رضي الله عنه نه مروي دي او دهغه چاباره كي يي فرمائيلي دي چي مونځ ورنه هير شي هر كله چي ورته دا راياد شي نو دادي اداء كړي برابره خبره ده چي وخت وي او كنه وي، همدا دامام شافعي او احمد او اسحاق بن راهويه (رحمهم الله)قول هم دي، او دابوبكر رضي الله عنه نه مروي دي چي هغه دمازيگر وخت كي اوده شو او دنمر ډوبيدو وخت كي بيدار شو نو مونځ يي اونكړو هغه وخته پوري چي څو پوري نمر پريوتلي نه وو، بعضي اهل كوفه دي طرف ته مائل شوي دي، مگر زمونږ علماء يعني محدثين علي بن طالب رضي الله عنه قول ته مائل شوي دي.

***************

## ٢٠_ باب مَا جَاءَ فِي الرَّجُلِ تَفُوتُهُ الصَّلَوَاتُ بِأَيَّتِهِنَّ يَبْدَأُ

### كه ديو كس نه ډير مونځونه هيرشي نواول به كوم يواداء كوي

١٧٩_ حَدَّثَنَا هَنَّادٌ، حَدَّثَنَا هُشَيْمٌ، عَنْ أَبِي الزُّبَيْرِ، عَنْ نَافِعِ بْنِ جُبَيْرِ بْنِ مُطْعِمٍ، عَنْ أَبِي عُبَيْدَةَ بْنِ عَبْدِ اللَّهِ ابْنِ مَسْعُودٍ قَالَ: قَالَ عَبْدُ اللَّهِ بْنُ مَسْعُودٍ: "إِنَّ المُشْرِكِينَ شَغَلُوا رَسُولَ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ عَنْ أَرْبَعِ صَلَوَاتٍ يَوْمَ الخَنْدَقِ حَتَّى ذَهَبَ مِنَ اللَّيْلِ مَا شَاءَ اللَّهُ، فَأَمَرَ بِلَالًا فَأَذَّنَ، ثُمَّ أَقَامَ فَصَلَّى الظُّهْرَ، ثُمَّ أَقَامَ فَصَلَّى العَصْرَ، ثُمَّ أَقَامَ فَصَلَّى المَغْرِبَ، ثُمَّ أَقَامَ فَصَلَّى العِشَاءَ" قَالَ: وَفِي البَابِ عَنْ أَبِي سَعِيدٍ، وَجَابِرٍ. قَالَ أَبُو عِيسَى: حَدِيثُ عَبْدِ اللَّهِ لَيْسَ بِإِسْنَادِهِ بَأْسٌ، إِلَّا أَنَّ أَبَا عُبَيْدَةَ لَمْ يَسْمَعْ مِنْ عَبْدِ اللَّهِ وَهُوَ الَّذِي اخْتَارَهُ بَعْضُ أَهْلِ العِلْمِ فِي الفَوَائِتِ، أَنْ يُقِيمَ الرَّجُلُ لِكُلِّ صَلَاةٍ إِذَا قَضَاهَا، وَإِنْ لَمْ يُقِمْ أَجْزَأَهُ، وَهُوَ قَوْلُ الشَّافِعِيِّ. ([2])

[1] صحيح البخاري/المواقيت ٣٧ (٥٩٧)، صحيح مسلم/المساجد ٥٥ (٦٨٤)، سنن ابي داود/ الصلاة ١١ (٤٤٢)، سنن النسائي/المواقيت ٥٢ (٦١٣) سنن ابن ماجه/الصلاة ١٠ (٦٩٦)، (تحفة الأشراف: ١٤٣٠، وكذا: ١٣٩٩)

[2] سنن النسائي/المواقيت ٥٥ (٦٢٣)، والأذان ٢٢ (٦٦٣)، و ٢٢ (٦٦٤)، (تحفة الأشراف: ٩٦٣٣) (حسن)

**ترجمه** دابوعبيده بن عبدالله بن مسعود نه روايت دي چي عبدالله بن مسعود رضي الله عنه فرمانيلي دي مشركينو رسول الله صلي الله عليه وسلم لره دخندق په ورځ دڅلورو ورځو پوري دمونځونو نه منع کړي وو تردي پوري چي الله ته څومره منظوره وه دومره شپه تيره شوي وه چي بلال ته يي اذان کولو حکم اوکړو بلال اذان اوکړو او بيا يي اقامت اوکړو رسول الله دماسپخين مونځ اداء کړو، بيا بلال اقامت اوکړو نو دمازيګر مونځ يي اداء کړو، بيا چي بلال اقامت اوکړو نو دماښام مونځ يي اداء کړو چي بيا يي اقامت اوکړو نو رسول الله صلي الله عليه وسلم دماخوستن مونځ اوکړو.

امام ترمذي وائي په دي باب کي دابوسعيد او جابر رضي الله عنهما نه هم احاديث وارد دي ليکن دعبدالله بن مسعود رضي الله عنه دحديث په سند کي کومه بدي او خفاء نشته علاوه ددينه چي ابو عبيده دخپل پلار عبدالله بن مسعود نه اوريدل نه دي کړي، او دقضاء شوو مونځونو په سلسله کي ټولو اهل علمو همدا روايت خوښ کړي دي چي يو سړي کله دمونځونو قضاء راوړي نو دهر مونځ دپاره به جدا جدا اقامت کوي او که جدا جدا اقامت اونکړي نو يو به هم دده دپاره کافي وي او دا دامام شافعي قول دي.

## په اوقات مکروه کي اختلاف د اهل علمو

.حاصل د مسئلي دا دي(١)چي زمونږ په نزد دنمر راختو، نصف النهار او غروب په وخت کي نه فرض مونځ جائز دي.اونه نفل(٢)امام شافعي (رحمه الله)فرمائي.په دي وختونوکي په ټولو ښارونو او ټولو ځايونو کي فرض مونځ جائز دي.او په مکه مکرمه کي په دي وختونو کي د نفلو اجازت شته(عنايه) صاحب د فتح القدير فرمائي.په دي وختونو کي د امام شافعي (رحمه الله)په نزد په مکه مکرمه کي مطلقاً مونځ جائز دي.که فرض وي اوکه نفل.اودامام ابويوسف (رحمه الله)په نزد دجمعي په ورځ دزوال په وخت کي نفل جائز دي.اودليل يي هغه حديث دي.کوم چي د ابوهريره (رضي الله عنه) او ابوسعيد خدري (رضي الله عنهما) نه منقول دي چي (أن رسول الله صلي الله عليه وسلم نهي عن الصلاة نصف النهار حتي تزول الشمس الا يوم الجمعة) يعني نبي کريم صلي الله عليه وسلم په نصف النهار کي د مونځ کولو نه منع کړي ده.تردي چي نمر زائله شي.مګرد جمعي په ورځ.

په اوقات ثلاثه کي د مونځ دجواز دلائل (١)دامام شافعي (رحمه الله)دليل د نبي کريم صلي الله عليه وسلم دا قول دي چي (من نام عن صلاة أو نسيها فليصلها إذا ذكرها فإن ذالك وقتها) يعني کوم کس چي د مانځه نه اوده شو.يا تري هيرشو.نودا دي کوی.کله چي ورته وریاد شي.ځکه چي هم دغه ددی وخت دي. ددي دپاره دويم دليل :په يو حديث کي دی چي نبي کريم صلي الله عليه وسلم اوفرمائيل(يا بني عبدمناف لا تمنعوا أحدا طاف بهذا البيت وصلوا في

أية ساعة شاء من ليل او نهار) اى بني عبدمناف! تاسو څوك مه منع کوئ چی ددی بیت نه طواف کوی.یا مونځ کوی.په کوم وخت کي چی ئې خوښه وی.که د شپی وی اوکه د ورځې. ددی روایت نه هم معلومه شوه چی په مکه مکرمه کي په هر وخت کي مونځ کول جائز دي.زمونږ دلیل د عقبه بن عامر(رضي الله عنه) حدیث دې(قال نهانا رسول الله صلي الله عليه وسلم أن نصلي وأن نقبر فيها موتانا عند طلوع الشمس حتى ترتفع وعند زوالها حتى تزول وحين تضيف للغروب حتى تغرب) په حدیث د عقبه بن عامر(رضي الله عنه) کي "صلاة"لفظ عام دې.که فرض وی اوکه نفل وی.او د"أن نقبر" نه مراد د جنازي مونځ دې.ځکه چی په دی وختونو کي دمړی ښخول مکروه نه دی . نو اوس مطلب دا شو چی نبي کریم صلي الله عليه وسلم په دی وختونو کي دمطلق مونځ کولو نه منع کړې ده.که فرض وی اوکه نفل اوکه دجنازي مونځ وی.نودا حدیث د اطلاق د وجي د امام شافعی (رحمه الله)او امام ابویوسف (رحمه الله)خلاف حجت دې.

اودامام ابویوسف (رحمه الله)د حدیث نه جواب دا دي(۱)چی ( الا يوم الجمعة) کي استثناء منقطع ده(۲)، دویم جواب دا دي چی د ( الا يوم الجمعة) معنی ده(ولايوم الجمعة) نواوس معنی دا شوه چی نبي کریم صلي الله عليه وسلم په نصف النهار کي د مونځ کولو نه منع کړې ده.اود جمعي په ورځ ئې هم په دی وخت کي د مونځ نه منع کړې ده.

اوامام شافعی (رحمه الله)چی کوم حدیث ذکر کړې دې.د هغی نه جواب دا دې چی ددی حدیث نه په اوقات ثلاثه کي د مونځ کولو اباحت ثابتیږی.اود عقبه بن عامر(رضي الله عنه) دحدیث نه حرمت ثابتیږی.د اصول فقه په کتابونو کي ذکر دی چی د حرمت او اباحت په مینځ کي تعارض راشی . نو ترجیح به حرمت ته وی.نو ددی وجي دلته د عقبه (رضي الله عنه) حدیث راجح دې.

د ابوذر(رضي الله عنه) د حدیث نه جواب دا دي چی ( الا بمكة) ددی معنی دا ده چی (ولا بمكة) لکه چی دالله تعالی دا ارشاد چی دي ﴿الا خطأ﴾ معنی ﴿ولا خطأ﴾ ده.نو په دی صورت کي دا حدیث د امام شافعی (رحمه الله)مستدل نشی جوړیدې. والله اعلم بالصواب.

***************

۱۸۰ــ وَحَدَّثَنَا مُحَمَّدُ بْنُ بَشَّارٍ بُنْدَارٌ، حَدَّثَنَا مُعَاذُ بْنُ هِشَامٍ، حَدَّثَنِي أَبِي، عَنْ يَحْيَى بْنِ أَبِي كَثِيرٍ، حَدَّثَنَا أَبُو سَلَمَةَ بْنُ عَبْدِ الرَّحْمَنِ، عَنْ جَابِرِ بْنِ عَبْدِ اللَّهِ، أَنَّ عُمَرَ بْنَ الْخَطَّابِ، قَالَ يَوْمَ الْخَنْدَقِ، وَجَعَلَ يَسُبُّ كُفَّارَ قُرَيْشٍ، قَالَ: يَا رَسُولَ اللَّهِ مَا كِدْتُ أُصَلِّي الْعَصْرَ حَتَّى تَغْرُبَ الشَّمْسُ، فَقَالَ

رَسُولُ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ: "وَاللَّهِ إِنْ صَلَّيْتُهَا". قَالَ: فَنَزَلْنَا بُطْحَانَ. فَتَوَضَّأَ رَسُولُ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ وَتَوَضَّأْنَا. فَصَلَّى رَسُولُ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ الْعَصْرَ بَعْدَ مَا غَرَبَتِ الشَّمْسُ. ثُمَّ صَلَّى بَعْدَهَا الْمَغْرِبَ. قَالَ أَبُو عِيسَى: هَذَا حَسَنٌ صَحِيحٌ. (١)

**ترجمه**: دجابر بن عبدالله رضي الله عنهما نه روايت دي چي عمر فاروق رضي الله عنه دخندق په ورځ مشركانو ته دبد رد ونيلو په حال كي اوونيل اي دالله رسوله ما دمازيگر مونځ اونكړو تردي چي نمر ډوبيدو ته نزدي شو رسول الله صلي الله عليه وسلم اوفرمائيل په الله قسم ما خو اوس هم نه دي كړي دعمر فاروق بيان دي چي بيا مونږ بطحان ته لاړو او رسول الله اودس هم اوكړو او مونږ هم اودسونه اوكړل او بيا يي دنمر ډوبيدو نه پس دمازيگر مونځ اوكړو او بيا يي دمابنام مونځ اوكړو.

امام ترمذي وائي دا حديث حسن صحيح دي

**تشريح**: په دي مسئله كي اختلاف دي كه دچا نه يو څو مونځونه قضاء شي نو په دي كي ترتيب واجب دي او كنه دي؟

دامام شافعي په نزد ترتيب واجب نه دي او دائمه ثلاثه په نزد واجب دي ځكه چي په غزوه احزاب كي درسول الله صلي الله عليه وسلم نه يو څو مونځونه قضاء شوي وو او رسول الله په همدي ترتيب اداء كړو او په يو بل حديث كي مذكور دي "صلوا كما رائتموني اصلي" ددي دواړو روايتونو يوځاي كيدو نه خو وجوب ثابتيږي.

سوال: ترتيب په څه ساقطيږي؟

جواب: په دي كي اختلاف دي دامام ابوحنيفه په نزد ترتيب په دري څيزونو ساقطيږي (١) كله چي مونځونه دكثرت په حد كي داخل شي (٢) دوخت دتنگوالي په وجه (٣) دنسيان په وجه.

او دامام مالك په نزد ترتيب په دوه څيزونو ساقطيږي (١) دوخت تنگوالي (٢) نسيان

او دامام احمد په نزد ترتيب صرف دوخت دتنگوالي په صورت كي ساقطيږي.

****************

## ٢١_ بَاب مَا جَاءَ فِي صَلاَةِ الْوُسْطَى أَنَّهَا الْعَصْرُ وَقَدْ قِيلَ إِنَّهَا الظُّهْرُ

## صلاة وسطي صرف دمازيگر مونځ دي او ديو قول په بناء دماسپخين مونځ دي

[1] صحيح البخاري/المواقيت ٣٦ (٥٩٦)، و٣٨ (٥٩٨)، والأذان ٢٦ (٦٤١)، والخوف ٤ (٩٤٥)، والمغازي ٢٩ (٤١١٢)، صحيح مسلم/المساجد (٦٣٦)، سنن النسائي/السهو ١٠٥ (١٣٦٧)، (تحفة الأشراف: ٣١٥٠)

١٨١ـ حَدَّثَنَا مَحْمُودُ بْنُ غَيْلاَنَ، حَدَّثَنَا أَبُو دَاوُدَ الطَّيَالِسِيُّ، وَأَبُو النَّضْرِ، عَنْ مُحَمَّدِ بْنِ طَلْحَةَ بْنِ مُصَرِّفٍ، عَنْ زُبَيْدٍ، عَنْ مُرَّةَ الْهَمْدَانِيِّ، عَنْ عَبْدِ اللَّهِ بْنِ مَسْعُودٍ، قَالَ: قَالَ رَسُولُ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ: "صَلاَةُ الْوُسْطَى صَلاَةُ الْعَصْرِ". قَالَ أَبُو عِيسَى: هَذَا حَسَنٌ صَحِيحٌ. ([1])

**ترجمه** : دعبدالله بن مسعود رضي الله عنه بيان دي چي رسول الله صلي الله عليه وسلم فرمانيلي دي صلاة وسطي صرف دمازيگر مونځ دي

امام ترمذي وائي دا حديث حسن صحيح دي.

****************

١٨٢ـ حَدَّثَنَا هَنَّادٌ، حَدَّثَنَا عَبْدَةُ، عَنْ سَعِيدٍ، عَنْ قَتَادَةَ، عَنِ الْحَسَنِ، عَنْ سَمُرَةَ بْنِ جُنْدَبٍ، عَنِ النَّبِيِّ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ، أَنَّهُ قَالَ: "صَلاَةُ الْوُسْطَى صَلاَةُ الْعَصْرِ". قَالَ: وَفِي الْبَاب عَنْ عَلِيٍّ، وَعَبْدِ اللَّهِ بْنِ مَسْعُودٍ، وَزَيْدِ بْنِ ثَابِتٍ، وَعَائِشَةَ، وَحَفْصَةَ، وَأَبِي هُرَيْرَةَ، وَأَبِي هَاشِمِ بْنِ عُتْبَةَ. قَالَ أَبُو عِيسَى: قَالَ مُحَمَّدٌ: قَالَ عَلِيُّ بْنُ عَبْدِ اللَّهِ: حَدِيثُ الْحَسَنِ، عَنْ سَمُرَةَ بْنِ جُنْدَبٍ حَدِيثٌ صَحِيحٌ، وَقَدْ سَمِعَ مِنْهُ. قَالَ أَبُو عِيسَى: حَدِيثُ سَمُرَةَ فِي صَلاَةِ الْوُسْطَى حَسَنٌ وَصَحِيحٌ. وَهُوَ قَوْلُ أَكْثَرِ الْعُلَمَاءِ مِنْ أَصْحَابِ النَّبِيِّ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ وَغَيْرِهِمْ. وَقَالَ زَيْدُ بْنُ ثَابِتٍ، وَعَائِشَةُ: صَلاَةُ الْوُسْطَى صَلاَةُ الظُّهْرِ، وَقَالَ ابْنُ عَبَّاسٍ، وَابْنُ عُمَرَ: صَلاَةُ الْوُسْطَى صَلاَةُ الصُّبْحِ. حَدَّثَنَا أَبُو مُوسَى مُحَمَّدُ بْنُ الْمُثَنَّى، حَدَّثَنَا قُرَيْشُ بْنُ أَنَسٍ، عَنْ حَبِيبِ بْنِ الشَّهِيدِ، قَالَ: قَالَ لِي مُحَمَّدُ بْنُ سِيرِينَ: سَلِ الْحَسَنَ مِمَّنْ سَمِعَ حَدِيثَ الْعَقِيقَةِ، فَسَأَلْتُهُ فَقَالَ: سَمِعْتُهُ مِنْ سَمُرَةَ بْنِ جُنْدَبٍ. قَالَ أَبُو عِيسَى: وَأَخْبَرَنِي مُحَمَّدُ بْنُ إِسْمَاعِيل، حَدَّثَنَا عَلِيُّ بْنُ عَبْدِ اللَّهِ بْنِ الْمَدِينِيِّ، عَنْ قُرَيْشِ بْنِ أَنَسٍ بِهَذَا الْحَدِيثِ، قَالَ مُحَمَّدٌ: قَالَ عَلِيٌّ: وَسَمَاعُ الْحَسَنِ مِنْ سَمُرَةَ صَحِيحٌ، وَاحْتَجَّ بِهَذَا الْحَدِيثِ. ([2])

**ترجمه** دسمره بن جندب رضي الله عنه نه روايت دي چي نبي كريم صلي الله عليه وسلم فرمانيلي دي صلاة وسطي صرف دمازيگر مونځ دي

---

[1] صحيح مسلم/المساجد ٣٦ (٦٢٨) . سنن ابن ماجه/الصلاة ٦ (٦٨٦) . (تحفة الأشراف : ٩٥٢٨) . مسند احمد (١/٤٠٣، ٤٥٦) . (ويأتي عند المؤلف في تفسير البقرة (٢٩٨٥)

[2] تفرد به المؤلف. ويأتي عنده في تفسير البقرة (٢٩٨٣) . (تحفة الأشراف : ٤٦٠٢)

Scanned with C

امام ترمذي وائي دصلاة وسطي په سلسله کي دسمره حديث حسن دي، او په دي باب کي دعلي، عبدالله بن مسعود، زيد بن ثابت، عائشه، حفصه، ابوهريره، او ابوهاشم بن عقبه رضي الله عنهم نه هم احاديث وارد دي، محمد بن اسماعيل بخاري قول دي چي علي بن عبدالله المديني وائي دحسن بصري حديث کوم چي يي دسمره بن جندب نه نقل کړي دي صحيح حديث دي کوم چي هغه دسمره نه اوريدلي دي په صحابه کرامو او ددوی نه پس په نورو اهل علمو کي داکثرو همدا قول دي، دزيد بن ثابت او عائشه رضي الله عنهما همدا قول دي دصلاة وسطي دماسپخين مونځ دي، دابن عباس رضي الله عنهما قول دي چي صلاة وسطي دسحر مونځ دي، دحبيب بن شهيد بيان دي چي ماته ابن سيرين ونيلي دي چي دحسن بصري نه تپوس اوکړه چي دعقيقي حديث يي دچا نه اوريدلي دي؟ ماچي ورنه تپوس اوکړو نو ويي فرمائيل ما دا دسمره بن جندب نه اوريدلي دي امام بخاري وائي دعلي بن المديني قول دي دسمره رضي الله عنه نه دحسن سماع صحيح نه ده او هغوی په همدي حديث استدلال کړي دي.

*****************

## ٢٢_ باب مَا جَاءَ فِي كَرَاهِيَةِ الصَّلَاةِ بَعْدَ الْعَصْرِ وَبَعْدَ الْفَجْرِ

**دمازيګر او دسحر دمونځ نه پس دمونځ کولو دکراهت بيان**

١٨٣_ حَدَّثَنَا أَحْمَدُ بْنُ مَنِيعٍ، حَدَّثَنَا هُشَيْمٌ. أَخْبَرَنَا مَنْصُورٌ وَهُوَ ابْنُ زَاذَانَ، عَنْ قَتَادَةَ، قَالَ: أَخْبَرَنَا أَبُو الْعَالِيَةِ، عَنِ ابْنِ عَبَّاسٍ، قَالَ: سَمِعْتُ غَيْرَ وَاحِدٍ مِنْ أَصْحَابِ النَّبِيِّ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ. مِنْهُمْ عُمَرُ بْنُ الْخَطَّابِ، وَكَانَ مِنْ أَحَبِّهِمْ إِلَيَّ أَنَّ رَسُولَ اللَّهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ "نَهَى عَنِ الصَّلَاةِ بَعْدَ الْفَجْرِ حَتَّى تَطْلُعَ الشَّمْسُ، وَعَنِ الصَّلَاةِ بَعْدَ الْعَصْرِ حَتَّى تَغْرُبَ الشَّمْسُ". قَالَ: وَفِي الْبَابِ عَنْ عَلِيٍّ، وَابْنِ مَسْعُودٍ، وَعُقْبَةَ بْنِ عَامِرٍ، وَأَبِي هُرَيْرَةَ، وَابْنِ عُمَرَ، وَسَمُرَةَ بْنِ جُنْدَبٍ، وَعَبْدِ اللَّهِ بْنِ عَمْرٍو، وَمُعَاذِ ابْنِ عَفْرَاءَ، وَالصُّنَابِحِيِّ، وَلَمْ يَسْمَعْ مِنَ النَّبِيِّ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ وَسَلَمَةَ بْنِ الْأَكْوَعِ، وَزَيْدِ بْنِ ثَابِتٍ، وَعَائِشَةَ، وَكَعْبِ بْنِ مُرَّةَ، وَأَبِي أُمَامَةَ، وَعَمْرِو بْنِ عَبَسَةَ، وَيَعْلَى بْنِ أُمَيَّةَ، وَمُعَاوِيَةَ. قَالَ أَبُو عِيسَى: حَدِيثُ ابْنِ عَبَّاسٍ، عَنْ عُمَرَ حَسَنٌ صَحِيحٌ، وَهُوَ قَوْلُ أَكْثَرِ الْفُقَهَاءِ مِنْ أَصْحَابِ النَّبِيِّ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ وَمَنْ بَعْدَهُمْ، أَنَّهُمْ كَرِهُوا الصَّلَاةَ بَعْدَ صَلَاةِ الصُّبْحِ حَتَّى تَطْلُعَ الشَّمْسُ، وَبَعْدَ صَلَاةِ الْعَصْرِ حَتَّى تَغْرُبَ الشَّمْسُ، وَأَمَّا الصَّلَوَاتُ الْفَوَائِتُ فَلَا بَأْسَ أَنْ تُقْضَى بَعْدَ الْعَصْرِ وَبَعْدَ الصُّبْحِ. قَالَ عَلِيُّ ابْنُ الْمَدِينِيِّ: قَالَ يَحْيَى بْنُ سَعِيدٍ: قَالَ شُعْبَةُ: لَمْ يَسْمَعْ قَتَادَةُ مِنْ

أَبِي الْعَالِيَةِ إِلَّا ثَلَاثَةَ أَشْيَاءَ. حَدِيثُ عُمَرَ: أَنَّ النَّبِيَّ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ نَهَى عَنِ الصَّلَاةِ بَعْدَ الْعَصْرِ حَتَّى تَغْرُبَ الشَّمْسُ، وَبَعْدَ الصُّبْحِ حَتَّى تَطْلُعَ الشَّمْسُ، وَحَدِيثُ ابْنِ عَبَّاسٍ، عَنِ النَّبِيِّ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ، قَالَ: " لَا يَنْبَغِي لِأَحَدٍ أَنْ يَقُولَ أَنَا خَيْرٌ مِنْ يُونُسَ بْنِ مَتَّى "، وَحَدِيثُ عَلِيٍّ الْقُضَاةُ ثَلَاثَةٌ.[1]

**ترجمه**: دعبدالله ابن عباس رضي الله عنهما نه مروي دي چي ما په صحابه کرامو کي دډيرو نه اوريدلي دي په کومو کي چي عمر فاروق هم شامل دي او هغه ماته دهر چانه زيات محبوب دي چي رسول الله صلي الله عليه وسلم دسحر دمونځ نه پس دنمر ختلو پوري او دمازيگر دمونځ نه پس دنمر پريوتو پوري دمونځ کولو نه منع فرمائيلي ده.

امام ترمذي وائي دابن عباس رضي الله عنهما حديث کوم چي يي دعمر رضي الله عنه نه اوريدلي دي حسن صحيح دي، او په دي باب کي دعلي ، ابن مسعود، عقبه بن عامر، ابوهريره، ابن عمر سمره بن جندب، عبدالله بن عمرو، معاذ بن غفراء صنابحي، سلمه بن اکوع، زيد بن ثابت، عائشه ، کعب بن مره، ابو امامه، عمرو بن عبسه، اعلاء بن اميه، او د معاويه رضي الله عنهم نه هم احاديث وارد دي، صحابه کرامو او ددوئ نه په وروسته خلقو کي داکثرو فقهاؤ همدا قول دي چي هغوئ دسحر دمونځ نه پس دنمر ختلو پوري او دمازيگر دمونځ نه پس دنمر پريوتو پوري مونځ کول مکروه گڼرلي دي پاتي شول قضائي مونځونه نو دا دمازيگر نه پس يا دسحر نه پس په قضاء راوړلو کي کوم خرج نشته، شعبه وائي چي قتاده دابو العاليه نه صرف دري څيزونه اوريدلي دي يو دا چي دعمر حديث په کوم کي چي راغلي دي چي نبي کريم صلي الله عليه وسلم دمازيگر دمونځ نه پس دمونځ کولو نه منع فرمائيلي ده چي څو پوري نمر پريوتلي نه وي او دسحر دمونځ نه پس يي دمونځ کولو نه منع فرمائيلي ده چي څو پوري نمر ختلي نه وي، او دويم يي دابن عباس حديث اوريدلي دي کوم چي يي درسول الله نه نقل کړي دي چي رسول الله صلي الله عليه وسلم فرمائيلي دي په تاسو کي دهيچا دپاره دا مناسب نه دي چي داسي اووائي زه ديونس بن متي نه بهتر يم او دريم يي دعلي حديث اوريدلي دي چي قاضيان په دري قسمه وي

---

[1] صحيح البخاري/المواقيت ٣٠ (٥٨١) . صحيح مسلم/المسافرين ٥١ (٨٢٦) . سنن ابي داود/ الصلاة ٢٩٩ (١٢٧٦) . سنن النسائي/المواقيت ٣٢ (٥٦٣) . سنن ابن ماجه/الإقامة ١٤٨ (١٢٥٠) . (تحفة الأشراف : ١٠٤٩٢) . مسند احمد (١/٢١، ٣٩) . سنن الدارمي/الصلاة ١٤٢ (١٤٧٣)

**تشريح** په زير بحث حديث كي دمازيګر او دسحر دمونځ نه پس دمونځ كولو نه منع راغلي ده، البته دقضاء شوو مونځونو راګرځول په اجماع دامت ددينه مستثني دي او ددي مسئلي تفصيل داسي دي مكروه وخت په دوه قسمه دي (۱) اوقات ثلاثه ، طلوع ، استواء ، غروب دامام ابو حنيفه په نزد په دي دري واړو وختونو كي مطلقا مونځ كول مناسب نه دي اداء وي او كه قضاء وي، فرض وي او كه نفل وي، امام صاحب په دي باب كي داحاديث النهي عن الصلاة في الاوقات المكروهة نه استدلال كوي، او دائمه ثلاثه په نزد په دي وختونو كي دفرائض ادائيګي صحيح ده، دويم قسم مكروه دمازيګر او دسحر دمونځ نه پس وخت دي په دي وختونو كي دامام صاحب په نزد فرائض جائز دي ځكه چي په دي كي كراهت لعينه نه دي بلكه لغيره دي البته نوافل ناجائز دي او دامام شافعي په نزد فرائض او نوافل چي ذوات الاسباب وي ددي ادائيګي صحيح ده او په مكه كي نوافل غير ذواط الاسباب هم جائز دي.

## په درې وختونو كي د جنازې مونځ او د تلاوت د سجدې حكم

په درى وختونو كي به نه دجنازي مونځ كوى. اونه به سجده د تلاوت كوى.دليل حديث دې (أن نقبر فيها موتانا)

اود تلاوت د سجدي د عدم جواز دپاره دليل دا دې چى سجده د تلاوت هم د مونځ پشان ده.په دى طريقه چى كوم شرطونه چى په مانځه كي دى.لكه طهارت، پټول د عورت. استقبال د قبلې وغيره نودا په سجده د تلاوت كي هم شرطونه دى.نوهركله چى سجده دتلاوت د مونځ پشان شوه.نودا په درى وختونو كي د مونځ نه كولو په نهى كي شامل شوه.حديث مبارك دې چى (ثلاثة أوقات نهانا رسول الله صلي الله عليه وسلم أن نصلي فيها)خو لته يو اشكال دې چى هركله سجده د تلاوت دمانځه پشان شوه .نولكه څنګه چى په خندا قهقهه باندې مونځ ماتيږى.پكار ده چى دغه شان پرې سجده د تلاوت هم ماتيږى.خوپه سجده د تلاوت كي په خندا قهقهه باندې سجده نه ماتيږى.جواب دا دې چى په حديث كي كوم مونځ په خندا قهقهه باندې ماتيدونكى خودلي شوې دې.دهغه نه هغه مونځ مراد دې چى په هغى كي تكبير تحريمه ،ركوع او سجده وى.اوسجده دتلاوت داسى نه ده.نوځكه كه په دى كي خندائ قهقهه اوكړى.نوسجده پرې نه ماتيږى، اوپه دى درى وختونو كي د مونځ كولو نه ځكه منع شوې ده چى د نمرپرستو سره مشابهت رانشى.

امام ابوالحسن قدورى فرمائى چى په درى وختونوكي مطلقاً مونځ مكروه دې.خو د دغه ورځ د مازيګر مونځ ددى نه مستثنى دې.يعنى كه په دغه ورځ د مازيګر مونځ اونكړى. تردى چى د نمر پريوتو وخت شى.نوپه دغه وخت كي هم صرف د دغه ورځ د مازيګر مونځ

Scanned with C

كولي شي. نور مونځونه نشي كولې.دغه شان د بلي ورځ د مازيگر قضاء شوې مونځ هم نشي كولې.
په دليل كي يو څو خبري په ذهن كي كينوئ(١) دمونځ وختونه ددى د ادا كولو سبب وى(٢) سبب په مسبب باندې مقدم وى(٣) چي څنگه سبب وى.هغه شان به مسبب وى.يعني كه سبب كامل وى.نومسبب به هم كامل وى.اوكه سبب ناقص وى.نو مسبب به هم ناقص وى(۴) كه مونځ كامل واجب شوې وى.نو په كامله طريقه ادا كول ضرورى دى. او كه ناقص واجب شوې وى.نود نقصان د صفت سره هم ادا كيدى شي .د دليل خلاصه دا ده چي كوم كس چي د نمر ډوبيدو په وخت كي د مازيگر مونځ كوى.نو ددى په سبب كي درى احتمالات دى(١) يوداچي پوره وخت سبب اوگرځولې شي(٢) دويم دا چي كوم وخت تير شوې وى.هغه سبب اوگرځولى شي(٣) دريم دا چي د ادا كولو سره متصل جزء سبب اوگرځولې شي.
اولني احتمال باطل دى څكه كه ټول وخت سبب اوگرځولې شي. نوپكارده چي د وخت نه پس مونځ واجبيږي.څكه چي مسبب د سبب نه موخر وى حالانكه مونځ په وخت كي دننه واجب دې.د وخت نه پس نه.اودويم احتمال څكه باطل دې.كه تيرشوې وخت سبب اوگرځولې شي.نوكوم كس چي په آخر وخت كي مونځ كوى.پكارده چي هغه ته قضاء راوړونكى اووئيلى شي حالانكه هغه قضاء راوړونكى نه دې.پس معلومه شوه چي كوم جزء د ادا كولو سره متصل وى.هغه د وجوب صلاة سبب دې.او په مذكوره مسئله كښې "جزء متصله للاداء"ناقص وخت دې.او وړاندې تير شو.كه سبب (وخت) ناقص وى. نو مسبب (مونځ) به هم ناقص واجبيږى.نوپه دى كس چي په كوم صفت مونځ واجب شوې وو.هغه شان ئې ادا كړو.نوځكه مونږ وايو چي د نن ورځې د مازيگر مونځ د نمر ډوبيدو په وخت كي هم جائز دى ددى په خلاف هغه نور مونځونه چي ددى ورځې د مازيگر دمونځ نه علاوه دى.هغه په دى وخت كي كول څكه جائز نه دى چي هغه په كامل صفت سره واجب شوى دى.نوپه ناقص وخت كي به نشي ادا كولې.
د جنازي د مونځ او سجدي د تلاوت د جواز چي كومه نفى شوې ده. ددى نه كراهت مراد دې.يعني دا دواړه په دى وختونو كي مكروه دى.نوكه په مكروه وخت كي جنازه حاضره شوه.اوهم په دغه وخت كي اوكړې شي.يا په مكروه وخت كي ئې د سجدي آيت اولوستلو.اوهم په دغه وخت كي سجده اوكړى.نودا جائز دى ددي دليل دا دې چي دجنازي د وجوب سبب ددى حاضريدل دى.اود سجدي د تلاوت د وجوب سبب ددى تلاوت دې.اوچونكه دا دواړه په ناقص وخت كي راغلى دى.نوچي څنگه واجب شوى وو.هم هغه شان ادا شو.او ددى په خلاف نور فرائض په دى وختونو كي جائزنه دى.(الهدايه)

***************

## ٢٣_ باب مَا جَاءَ فِي الصَّلاَةِ بَعْدَ الْعَصْرِ

## د مازيګر د مونځ نه پس د مونځ کولو بيان

١٨٤_ حَدَّثَنَا قُتَيْبَةُ، حَدَّثَنَا جَرِيرٌ، عَنْ عَطَاءِ بْنِ السَّائِبِ، عَنْ سَعِيدِ بْنِ جُبَيْرٍ، عَنْ ابْنِ عَبَّاسٍ، قَالَ: " إِنَّمَا صَلَّى النَّبِيُّ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ الرَّكْعَتَيْنِ بَعْدَ الْعَصْرِ، لِأَنَّهُ أَتَاهُ مَالٌ فَشَغَلَهُ عَنِ الرَّكْعَتَيْنِ بَعْدَ الظُّهْرِ، فَصَلاَّهُمَا بَعْدَ الْعَصْرِ، ثُمَّ لَمْ يَعُدْ لَهُمَا ". وَفِي الْبَاب عَنْ عَائِشَةَ، وَأُمِّ سَلَمَةَ، وَمَيْمُونَةَ، وَأَبِي مُوسَى. قَالَ أَبُو عِيسَى: حَدِيثُ ابْنِ عَبَّاسٍ حَسَنٌ، وَقَدْ رَوَى غَيْرُ وَاحِدٍ عَنِ النَّبِيِّ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ، أَنَّهُ صَلَّى بَعْدَ الْعَصْرِ رَكْعَتَيْنِ، وَهَذَا خِلَافُ مَا رُوِيَ عَنْهُ أَنَّهُ نَهَى عَنِ الصَّلَاةِ بَعْدَ الْعَصْرِ حَتَّى تَغْرُبَ الشَّمْسُ، وَحَدِيثُ ابْنِ عَبَّاسٍ أَصَحُّ، حَيْثُ قَالَ: لَمْ يَعُدْ لَهُمَا، وَقَدْ رُوِيَ عَنْ زَيْدِ بْنِ ثَابِتٍ، نَحْوُ حَدِيثِ ابْنِ عَبَّاسٍ، وَقَدْ رُوِيَ عَنْ عَائِشَةَ فِي هَذَا الْبَابِ رِوَايَاتٌ، رُوِيَ عَنْهَا أَنَّ النَّبِيَّ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ مَا دَخَلَ عَلَيْهَا بَعْدَ الْعَصْرِ إِلَّا صَلَّى رَكْعَتَيْنِ، وَرُوِيَ عَنْهَا، عَنْ أُمِّ سَلَمَةَ، عَنِ النَّبِيِّ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ أَنَّهُ نَهَى عَنِ الصَّلَاةِ بَعْدَ الْعَصْرِ حَتَّى تَغْرُبَ الشَّمْسُ، وَبَعْدَ الصُّبْحِ حَتَّى تَطْلُعَ الشَّمْسُ، وَالَّذِي اجْتَمَعَ عَلَيْهِ أَكْثَرُ أَهْلِ الْعِلْمِ عَلَى كَرَاهِيَةِ الصَّلَاةِ بَعْدَ الْعَصْرِ حَتَّى تَغْرُبَ الشَّمْسُ، وَبَعْدَ الصُّبْحِ حَتَّى تَطْلُعَ الشَّمْسُ، إِلَّا مَا اسْتُثْنِيَ مِنْ ذَلِكَ، مِثْلُ الصَّلَاةِ بِمَكَّةَ بَعْدَ الْعَصْرِ حَتَّى تَغْرُبَ الشَّمْسُ، وَبَعْدَ الصُّبْحِ حَتَّى تَطْلُعَ الشَّمْسُ بَعْدَ الطَّوَافِ، فَقَدْ رُوِيَ عَنِ النَّبِيِّ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ رُخْصَةٌ فِي ذَلِكَ، وَقَدْ قَالَ بِهِ: قَوْمٌ مِنْ أَهْلِ الْعِلْمِ مِنْ أَصْحَابِ النَّبِيِّ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ وَمَنْ بَعْدَهُمْ، وَبِهِ يَقُولُ الشَّافِعِيُّ، وَأَحْمَدُ، وَإِسْحَاق، وَقَدْ كَرِهَ قَوْمٌ مِنْ أَهْلِ الْعِلْمِ مِنْ أَصْحَابِ النَّبِيِّ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ وَمَنْ بَعْدَهُمُ الصَّلَاةَ بِمَكَّةَ أَيْضًا بَعْدَ الْعَصْرِ وَبَعْدَ الصُّبْحِ، وَبِهِ يَقُولُ سُفْيَانُ الثَّوْرِيُّ، وَمَالِكُ بْنُ أَنَسٍ، وَبَعْضُ أَهْلِ الْكُوفَةِ. (1)

**ترجمه** دعبدالله ابن عباس رضي الله عنهما بيان دي نبي کريم صلي الله عليه وسلم دمازيګر دمونځ نه پس دوه رکعاته مونځ اوکړو ځکه چې دوئ ته څه مال راغلي وو دکوم په وجه چې رسول الله ته دماسپخين دمونځ نه پس د دوه رکعاتونو کولو موقع نه وه ملاؤ شوي نو رسول الله هغه دمازيګر دمونځ نه پس اوکړو او بيا يې دا دوه رکعاتونه چرته دوباره اونکړل.
امام ترمذي وائي دابن عباس حديث حسن صحيح دي ، او په دي باب کې دعائشه، ام سلمه، ميمونه، ابو موسي رضي الله عنهم نه هم احاديث وارد دي، ددوئ نه علاوه نورو خلقو هم

---

1 تفرد به المؤلف (تحفة الأشراف : ٥٥٤٣)

دنبي كريم صلي الله عليه وسلم نه روايت كړي دي چي رسول الله دمازيګر دمونځ نه پس دوه ركعاته نفل اوكړل دا دهغه روايتونو نه خلاف دي كوم چي درسول الله نه مروي دي چي څو پوري نمر پريوتلي نه وي هغي پوري يي دمونځ كولو نه منع فرمانيلي ده، دابن عباس حديث په كوم كي چي دا الفاظ راغلي دي چي دا يي بيا چرته دوباره اونكړل په باب كي دټولو مروي احاديثو نه زيات صحيح دي، د زيد بن ثابت نه هم دابن عباس دحديث هم معني روايت مروي دي، او په دي باب كي دعانشه رضي الله عنها نه متعدد احاديث مروي دي دا رنګي دعانشه نه دا هم مروي دي چي نبي كريم صلي الله عليه وسلم به هر كله دعانشي كره دمازيګر نه پس راتلو نو دوه ركعاتونه به يي كول او همدارنګي هغوئ دام سلمه په واسطه دنبي كريم صلي الله عليه وسلم نه روايت كړي دي چي رسول الله ورنه دمازيګر نه پس څو پوري چي به نمر پريوتلي نه وو او په سحر كي څو پوري چي به نمر ختلي نه وو دمونځ كولو نه منع فرمانيله، داكثرو اهل علمو په دي اتفاق دي چي دمازيګر نه پس څو پوري نمر پريوتلي نه وي او دسحر نه پس چي څو پوري نمر ختلي نه وي مونځ كول مكروه دي، مګر علاوه دهغه مونځونو نه كوم چي ددينه مستثني دي مثلا په مكه كي دمازيګر نه پس دطواف دوه ركعاتونه كول ثابت دي تردي چي نمرپريوځي او دسحر نه پس تردي چي نمر راوخيژي په دي سلسله كي درسول الله صلي الله عليه وسلم نه رخصت مروي دي، په صحابه كرامو او ددوئ نه پس په وروستنو خلقو كي ډيرو اهل علمو په دي باندي قول كړي دي او همدا دامام شافعي او احمد او اسحاق بن راهويه (رحمهم الله)قول دي، صحابه كرامو او ددوئ نه پس په نورو خلقو كي بعضي اهل علمو دمازيګر او دسحر نه پس په مكه كي هم مونځ كول مكروه ګڼړلي دي، سفيان ثوري، مالك بن انس، او بعضي اهل كوفه ددي قول قائلين دي.

****************

## ٢٤ـ بَابُ مَا جَاءَ فِي الصَّلاَةِ قَبْلَ الْمَغْرِبِ

### دماښام دمونځ نه مخكي د نفل كولو بيان

١٨٥ـ حَدَّثَنَا هَنَّادٌ، حَدَّثَنَا وَكِيعٌ، عَنْ كَهْمَسِ بْنِ الْحَسَنِ، عَنْ عَبْدِ اللَّهِ بْنِ بُرَيْدَةَ، عَنْ عَبْدِ اللَّهِ بْنِ مُغَفَّلٍ، عَنِ النَّبِيِّ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ، قَالَ: "بَيْنَ كُلِّ أَذَانَيْنِ صَلاَةٌ لِمَنْ شَاءَ". وَفِي الْبَابِ عَنْ عَبْدِ اللَّهِ بْنِ الزُّبَيْرِ. قَالَ أَبُو عِيسَى: حَدِيثُ عَبْدِ اللَّهِ بْنِ مُغَفَّلٍ حَسَنٌ صَحِيحٌ، وَقَدِ اخْتَلَفَ أَصْحَابُ النَّبِيِّ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ فِي الصَّلاَةِ قَبْلَ الْمَغْرِبِ، فَلَمْ يَرَ بَعْضُهُمُ الصَّلاَةَ قَبْلَ الْمَغْرِبِ، وَقَدْ رُوِيَ عَنْ غَيْرِ وَاحِدٍ مِنْ أَصْحَابِ النَّبِيِّ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ، أَنَّهُمْ كَانُوا يُصَلُّونَ قَبْلَ صَلاَةِ

**الْمَغْرِبِ رَكْعَتَيْنِ بَيْنَ الْأَذَانِ وَالْإِقَامَةِ، وَقَالَ أَحْمَدُ، وَإِسْحَاقُ: إِنْ صَلَّاهُمَا فَحَسَنٌ، وَهَذَا عِنْدَهُمَا عَلَى الِاسْتِحْبَابِ.** ([1])

**ترجمه**: دعبدالله بن مغفل رضي الله عنه نه روايت دي فرمائي چي نبي كريم صلي الله عليه وسلم فرمائيلي دي څوك چي نفلي مونځ كول غواړي دهغه دپاره دهر دوه اذانونو په مينځ كي مونځ كول دي.

امام ترمذي وائي دعبدالله بن مغفل حديث حسن صحيح دي، او په دي باب كي دعبدالله بن جبير رضي الله عنه نه هم روايت مروي دي، دصحابه كرامو په مينځ كي دماښام دمونځ نه مخكي په نفلي مونځ كولو كي اختلاف موندلي كيږي، په دوئ كي دبعضو په نزد دماښام دمونځ نه مخكي نفل كول نشته، مګر ددي په خلاف دبعضي صحابه كرامو نه مروي دي چي هغوئ به دماښام دمونځ نه مخكي داذان او داقامت په مينځ كي دوه ركعاته نفل كول، امام احمد او اسحاق بن راهويه وائي چي څوك يي اوكړي نو بهتر ده او دا كار ددوئ په نزد مستحب دي.

**تشريح**: په دي مسئله كي اختلاف دي چي دماښام داذان نه پس او دمونځ نه مخكي دنفل كولو څه حكم دي دامام ابو حنيفه په نزد مكروه دي او دباقي اهل علمو په نزد مستحب دي جمهور ددي دپاره دحديث الباب نه استدلال كوي چي "بين كل اذانين صلاة" دا قضيه موجبه ده او ددي په عموم كي ماښام هم شامل دي.

په بعضي روايتونو كي دماښام استثني مذكور ده ليكن درسته خبره داده چي دماښام نه مخكي دوه ركعاتونه كول درورايتونو په رڼا كي جائز دي مګر اختلاف په دي كي كيدي شي چي دا دوه ركعاتونه كول افضل دي او كه پريخودل يي افضل دي، دامام صاحب په نزد ترك اولي دي او ددي دوه وجي دي اول داچي دماښام مونځ په جلتئ سره دكولو حكم دي ځكه چي وخت يي محدود دي، همدا وجه ده چي دجبرائيل دامامت په واقعه كي دواړه ورځي دماښام مونځ په يو وخت كي شوي دي او د دوه ركعاتونو كولو په وجه په دي كي دتاخير راتلو امكان دي دويمه وجه داده چي په صحابه كرامو كي كثير تعداد دي وخت كي نفل نه دي كړي.

**دعبدالله بن مغفل رضي الله عنه حالات**

نوم عبدالله كنيه ابوسعيد دهجرت په شپږم كال مسلمان شوى ووا و چي په كومه غزوه كي يي

---

[1] صحيح البخاري/الأذان ١٤ (٦٢٣)، و١٦ (٦٢٧). صحيح مسلم/المسافرين ٥٦ (٨٣٨). سنن ابي داود/الصلاة ٣٠٠ (١٢٨٣). سنن النسائي/الأذان ٣٩ (٦٨٢). سنن ابن ماجه/الإقامة ١١٠ (١١٦٢). (تحفة الأشراف: ٩٦٥٨). مسند احمد (٤/٨٦) و (٥/٥٤، ٥٦). سنن الدارمي/الصلاة ١٤٥ (١٤٨٠)

شركت كړى وو هغه غزوه حديبيه وه (بخاري كتاب التفسير).
په بيعة الرضوان كي هم شريك وو (مسند احمد)
خيبر، فتح مكه، غزوه تبوك، وغيره غزواتو كي خپله بهادري خودلي وه
درسول الله صلي الله عليه وسلم په ژوندګئ كي خو په مدينه كي اوسيدو ليكن كله چي بصره ازاده شوه نو ده لره عمر رضي الله عنه ددوئ دتعليم او تربيت دپاره بصري ته اوليږلو او د عمر داخري لمحاتو پوري هلته اوسيدو (طبقات ابن سعد)
دبدعاتو نه به يي سخت نفرت كولو دده بچي يوه ورځ دا اوونيل ما داسي كس نه دى ليدلى چي زما دپلار په نسبت دبدعاتو نه زيات نفرت كونكى وي (مسند احمد)
وفات: په ۵۹يا ۶۰ هجري كي په بصره كي په مرض موت مبتلا شو او په اخري كي يي يو څو وصيتونه اوكړل.
اول ، دغسل په اوبو كي به كافور واچوئ
دويم، په كفن كي به د دوه څادرونو او يو قميص نه زيادت نه كوئ
دريم، په غسل وركولو كي به صرف صحابه كرام رضي الله عنهم وي.
څلورم، په جنازي پسي به ورروسته اور او رڼا نه اوړئ.
پنځم، ابن زياد چي دبصري والي وو دى به زما جنازي ته نه راځي .
شپږم، دا وصيت يي هم كړى وو چي په ما باندي به ابوبرزه اسلمي جنازه كوي لهذا دده دوفات نه پس په دي ټولو وصيتونو عمل اوكړى شو او په بصره كي خاورو ته اوسپارلى شو
دده دمروياتو شمير ۱۴۳احاديث دي چي څلور متفق عليه دي يو په بخاري كي دى او يو په مسلم كي.

***************

## ٢٥ــ بَابُ مَا جَاءَ فِيمَنْ أَدْرَكَ رَكْعَةً مِنَ الْعَصْرِ قَبْلَ أَنْ تَغْرُبَ الشَّمْسُ

### څوك چي د نمر پريوتو نه مخكي دمازيګر يو ركعت اوروسي

١٨٦ــ حَدَّثَنَا إِسْحَاقُ بْنُ مُوسَى الأَنْصَارِيُّ، حَدَّثَنَا مَعْنٌ، حَدَّثَنَا مَالِكُ بْنُ أَنَسٍ، عَنْ زَيْدِ بْنِ أَسْلَمَ، عَنْ عَطَاءِ بْنِ يَسَارٍ، وعَنْ بُسْرِ بْنِ سَعِيدٍ، وَعَنِ الأَعْرَجِ يُحَدِّثُونَهُ، عَنْ أَبِي هُرَيْرَةَ، أَنَّ النَّبِيَّ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ قَالَ: " مَنْ أَدْرَكَ مِنَ الصُّبْحِ رَكْعَةً قَبْلَ أَنْ تَطْلُعَ الشَّمْسُ فَقَدْ أَدْرَكَ الصُّبْحَ، وَمَنْ أَدْرَكَ مِنَ الْعَصْرِ رَكْعَةً قَبْلَ أَنْ تَغْرُبَ الشَّمْسُ فَقَدْ أَدْرَكَ الْعَصْرَ ". وَفِي الْبَابِ عَنْ عَائِشَةَ. قَالَ أَبُو عِيسَى: حَدِيثُ أَبِي هُرَيْرَةَ حَسَنٌ صَحِيحٌ، وَبِهِ يَقُولُ أَصْحَابُنَا وَالشَّافِعِيُّ، وَأَحْمَدُ،

وَإِسْحَاق. وَمَعْنَى هَذَا الحَدِيثِ عِنْدَهُمْ لِصَاحِبِ العُذْرِ. مِثْلُ الرَّجُلِ الَّذِي يَنَامُ عَنِ الصَّلاَةِ أَوْ يَنْسَاهَا فَيَسْتَيْقِظُ وَيَذْكُرُ عِنْدَ طُلُوعِ الشَّمْسِ وَعِنْدَ غُرُوبِهَا. (1)

**ترجمه:** دابوهريره رضي الله عنه نه مروي دي چي رسول الله صلي الله عليه وسلم فرمائيلي دي چاچي سحر دنمر ختلو نه مخکي دسحر يو رکعت اورسولو نو هغه دسحر مونځ اورسولو او چاچي دنمر پريوتو نه مخکي دمازيګر مونځ يو رکعت اورسولو نو دا داسي ده لکه چي پوره مازيګر يي اورسولو.

امام ترمذي وائي دابوهريره رضي الله عنه حديث حسن صحيح دي، په دي باب کي دعائشه رضي الله عنها نه هم احاديث وارد دي، زمونږ دعلماؤ شافعي، احمد، اسحاق بن راهويه (رحمهم الله)هم دا قول دي دا حديث دهغوئ په نزد دعذر والادپاره دي مثلا دداسي کس دپاره خوک چي دمونځ وخت کي اوده پاتي شوي وي او دنمر ختلو يا پريوتلو وخت کي بيدار شي او يا ورنه هير شوي وي بيا ورته په دي وختونو کي راياد شي.

****************

## ٢٦_ باب مَا جَاءَ فِي الْجَمْعِ بَيْنَ الصَّلاتَيْنِ فِي الْحَضَرِ

### په حضر کي د دوه مونځونو جمع کولو بيان

١٨٧_ حَدَّثَنَا هَنَّادٌ، حَدَّثَنَا أَبُو مُعَاوِيَةَ، عَنْ الأَعْمَشِ، عَنْ حَبِيبِ بْنِ أَبِي ثَابِتٍ، عَنْ سَعِيدِ بْنِ جُبَيْرٍ، عَنْ ابْنِ عَبَّاسٍ، قَالَ: " جَمَعَ رَسُولُ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ بَيْنَ الظُّهْرِ وَالعَصْرِ، وَبَيْنَ المَغْرِبِ وَالعِشَاءِ بِالْمَدِينَةِ مِنْ غَيْرِ خَوْفٍ وَلَا مَطَرٍ ". قَالَ: فَقِيلَ لِابْنِ عَبَّاسٍ: مَا أَرَادَ بِذَلِكَ؟ قَالَ: أَرَادَ أَنْ لَا يُحْرِجَ أُمَّتَهُ. وَفِي البَاب عَنْ أَبِي هُرَيْرَةَ. قَالَ أَبُو عِيسَى: حَدِيثُ ابْنِ عَبَّاسٍ قَدْ رُوِيَ عَنْهُ

---

[1] صحيح البخاري/المواقيت ٢٨ (٥٤٩)، و٢٩ (٥٨٠)، صحيح مسلم/المساجد ٣٠ (٦٠٧)، سنن ابي داود/ الصلاة ٥ (٤١٢)، سنن النسائي/المواقيت ١١ (٥١٦، ٥١٨)، و٢٨ (٥٥١)، سنن ابن ماجه/الصلاة ١١ (١١٢٢)، (تحفة الأشراف: ١٢٢٠٦، و١٣٦٣٦، و١٤٢١٦)، موطا امام مالک/وقوت الصلاة ١ (٥)، مسند احمد (٢/٢٣٦، ٢٤٨، ٢٥٤، ٢٦٠، ٢٨٢، ٣٩٩، ٤٦٢، ٤٧٤، ٤٨٩، ٤٩٠، ٥٢١)، سنن الدارمي/الصلاة ٢٢ (١٢٥٨)

مِنْ غَيْرِ وَجْهٍ، رَوَاهُ جَابِرُ بْنُ زَيْدٍ، وَسَعِيدُ بْنُ جُبَيْرٍ، وَعَبْدُ اللهِ بْنُ شَقِيقٍ الْعُقَيْلِيُّ. وقد روي عَنْ ابْنِ عَبَّاسٍ، عَنِ النَّبِيِّ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ غَيْرُ هَذَا. [1]

**ترجمه** : دعبدالله بن عباس رضي الله عنهما بيان دي رسول الله صلي الله عليه وسلم بغير دخوف او باران نه په مدينه كي دماسپخين اؤ مازيگر مونخونه يوځاي اداء كړل او دمابنام اوماخوستن مونځونه يي يوځاي اداء كړل، دابن عباس نه تپوس اوكړي شو چي درسول الله صلي الله عليه وسلم ددينه مطلب څه وو هغه ورته په جواب كي اوونيل چي رسول الله خپل امت لره په كومي پريشاني كي وانچوي.

امام ترمذي وائي په دي باب كي دابوهريره رضي الله عنه نه هم حديث وارد دي. دابن عباس حديث په ډيرو سندونو مروي دي، او دابن عباس نه ددي په خلاف هم يو مرفوع روايت مروي دي.

*****************

١٨٨ـ حَدَّثَنَا أَبُو سَلَمَةَ يَحْيَى بْنُ خَلَفٍ الْبَصْرِيُّ، حَدَّثَنَا الْمُعْتَمِرُ بْنُ سُلَيْمَانَ، عَنْ أَبِيهِ، عَنْ حَنَشٍ، عَنْ عِكْرِمَةَ، عَنْ ابْنِ عَبَّاسٍ، عَنِ النَّبِيِّ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ، قَالَ: " مَنْ جَمَعَ بَيْنَ الصَّلَاتَيْنِ مِنْ غَيْرِ عُذْرٍ فَقَدْ أَتَى بَابًا مِنْ أَبْوَابِ الْكَبَائِرِ ". قَالَ أَبُو عِيسَى: وَحَنَشٌ هَذَا هُوَ أَبُو عَلِيٍّ الرَّحَبِيُّ، وَهُوَ حُسَيْنُ بْنُ قَيْسٍ، وَهُوَ ضَعِيفٌ عِنْدَ أَهْلِ الْحَدِيثِ، ضَعَّفَهُ أَحْمَدُ وَغَيْرُهُ، وَالْعَمَلُ عَلَى هَذَا عِنْدَ أَهْلِ الْعِلْمِ أَنْ لَا يَجْمَعَ بَيْنَ الصَّلَاتَيْنِ إِلَّا فِي السَّفَرِ أَوْ بِعَرَفَةَ، وَرَخَّصَ بَعْضُ أَهْلِ الْعِلْمِ مِنَ التَّابِعِينَ فِي الْجَمْعِ بَيْنَ الصَّلَاتَيْنِ لِلْمَرِيضِ، وَبِهِ يَقُولُ أَحْمَدُ، وَإِسْحَاقُ، وقَالَ بَعْضُ أَهْلِ الْعِلْمِ: يَجْمَعُ بَيْنَ الصَّلَاتَيْنِ فِي الْمَطَرِ، وَبِهِ يَقُولُ الشَّافِعِيُّ، وَأَحْمَدُ، وَإِسْحَاقُ، وَلَمْ يَرَ الشَّافِعِيُّ لِلْمَرِيضِ أَنْ يَجْمَعَ بَيْنَ الصَّلَاتَيْنِ. [2]

**ترجمه** : دعبدالله بن عباس رضي الله عنهما نه روايت دي فرمائي چي رسول الله صلي الله عليه وسلم فرمائيلي دي چاچي بغير دعذر نه دوه مونځونه په يوځاي اوكړل نو دي دكبيره ګناهونو په دروازو كي په يو دروازه باندي داخل شو.

---

[1] صحيح البخاري/المواقيت ١٢ (٥٤٣)، (بدون قوله " في غير خوف ولا مطر ")، صحيح مسلم/المسافرين ٦ (٧٠٥، ٧٠٦)، (وعنده في رواية " ولا سفر ")، سنن ابي داود/ الصلاة ٢٧٤ (١٢١٠، ١٢١١)، سنن النسائي/المواقيت ٤٤ (٥٩٠)، (تحفة الأشراف: ٥٤٧٤)، موطا امام مالك/قصر الصلاة١ (٢)، مسند احمد (١/٢٢١، ٢٢٣، ٢٨٣)

[2] تفرد به المؤلف (تحفة الأشراف: ٦٠٢٥)

Scanned with C

امام ترمذي وائي د"حنش" نوم ابو علي رحبي او همدا سړي حسين بن قيس هم دي، او دا دمحدثينو په نزد ضعيف دي امام احمد وغيره دده تضعيف کړي دي، او په همدي داهل علمو عمل دي چي دسفر يادعرفي نه علاوه دوه مونځونه په يوځاي نه کيږي، په تابعينو کي بعضي اهل علمو مريض ته ددوه مونځونو يوځاي کولو اجازت ورکړي دي او همدا دامام احمد او اسحاق بن راهويه قول هم دي ، دبعضي اهل علمو قول دي چي دباران په وجه هم دوه مونځونه جمع کيدي شي او دا د امام شافعي ، احمد ، او اسحاق بن راهويه رحمهم الله قول هم دي البته امام شافعي دمريض دپاره دوه مونځونه جمع کول درست نه ګنړي.

**تشريح** : دا حديث دهغه دوه احاديثو نه دي دکومو په باره کي چي امام ترمذي په کتاب العلل کي وائي چي ددي کتاب تمام احاديث معمول بها دي علاوه د دوه احاديثو نه يو دا چي رسول الله صلي الله عليه وسلم په مدينه کي جمع بين الصلاتين بغير دخوف او باران نه کړي ده، دويم دا حديث دي چي شرابي که په څلورم ځل شراب اوڅکي نو قتل يي کړئ، داحنافو په نزد دا روايات معمول بها دي ځکه چي داحنافو په نزد ددينه جمع صوري مراد ده کومه چي بغير دخوف او سفر نه کيدي شي، په جمع بين الصلاتين کي ابن رشد داهل علمو د اختلاف دري وجوهات بيان کړي دي.

(۱) اختلاف درواياتو يي بعضي په جمع حقيقي حمل کړي دي او بعضي په جمع صوري .

(۲) کوم روايات چي په جمع حقيقي دلالت کوي په دي کي بعضي قابل داحتجاج ګرځولي دي او بنياد يي ګرځولي دي بعضي يي قابل داستدلال نه دي ګرځولي.

(۳) بعضي فقهاؤ په جمع بين الصلاتين کي قياس دخيل ګرځولي دي چي په مزدلفه کي نبي کريم صلي الله عليه وسلم جمع کړي‌وه او مسافر وو دمسافر دپاره جمع بين الصلاتين جائز ده بلکه په هر عذر کي مثلا په مرض او باران کي هم هغوئ جمع کول د دوه مونځونوجائز کړي دي مګر ددوئ په مقابل کي دبعضي فقهاؤ قول دي چي په عباداتو کي قياس نه چليږي او که قياس بالفرض په عباداتو کي دخيل اوګڼړو بيا به دائره مزيد وسيع شي او دعذر په وجه به جمع بين الصلواة الخمسه في وقت واحد جائز شي (دا کار دقراني نص نه خلاف دي).

## مذاهب دفقهاؤ

داحنافو په نزد جمع صوري جائز ده او جمع حقيقي جائز نه ده جمع صوري ديته وائي چي اولني مونځ دوخت په اخر کي اوکړو او وريسي مونځ دوخت په ابتداء کي اوکړو بيا داحنافو په نزد دجمع صوري دوه صورتونه دي يو دا چي بغير دعذر نه داجائزدي دويم دا ده چي عذر وي يا سفر يا مرض وي يا خوف وغيره وي نو جمع صوري جائز ده دګناه نه بغير او دا داحنافو مشهور مذهب دي.

دلائل داحنافو: (۱) قوله تعالي "ان الصلاة كانت علي المؤمنين كتاباً موقوتاً" (النساء: ۱۰۳).
وقوله تعالي "حافظوا علي الصلواة والصلاة الوسطي" (البقره ۲۳۸)
په دي ايتونو کي دا خبره واضح شوي ده چي دمونځ دپاره وختونه مقرر دي او دوختونو محافظت واجب دي او دمونځونو دوختونو خلاف ورزي باعث دعذاب دي ظاهره ده چي دا ايت قطعي ثبوت او قطعي دلالت دي او اخبار احاد ددوئ مقابله نشي کولي او بالخصوص کله چي په اخبار احاد کي دصحيح توجيه گنجائش هم موجود وي.
دليل نمبر (۲): په بخاري کي دعبدالله بن مسعود رضي الله عنه روايت دي
"قال مارائيت النبي صلي الله عليه وسلم صلي صلاةً لغير ميقاتها الا صلاتين جمع بين المغرب والعشاء وصلي الفجر قبل ميقاتها.
دعبدالله بن مسعود رضي الله عنه بيان دي چي ما نبي کريم صلي الله عليه وسلم لره په داسي حالت کي هيڅ کله نه دي ليدلي چي مونځ يي دخپل وختونه بغير په بل وخت کي کړي وي مگر صرف دوه مونځونه چي دماښام او ماخوستن مونځونه يي جمع کړي وو او دسحر مونځ يي دخپل وخت نه مخکي په جلتئ کړي وو.
دليل نمبر (۳): اصحاب السنن دابوقتاده نه روايت نقل کړي دي چي رسول الله صلي الله عليه وسلم فرمائيلي دي
"ليس في النوم تفريط انما التفريط في اليقظة لان يؤخر صلاة الي وقت اخري".
دليل نمبر (۴): دمونځ دوختونو تحديد په تواتر سره ثابت دي او اخبار احاد په دي کي تغير نشي پيدا کولي ددي دلائلو په رڼا کي دائمه ثلاثه دتمامو مستدلاتو جواب دادي چي دجمع بين الصلاتين هغه تمام واقعات کوم چي درسول الله نه منقول دي په هغي کي جمع حقيقي مراد نه ده بلکه دجمع صوري په مراد کولو لاتديني شواهد او قرائن موجود دي
(۱) په بخاري کي دعبدالله ابن عمر رضي الله عنهما روايت دي
"قال رئيت النبي صلي الله عليه وسلم اذا عجله السير في السفر لاخر الصلاة المغرب حتي يجمع بينه وبين العشاء. قال سالم وكان عبدالله ابن عمر يفعله اذا عجله السير يقيم المغرب فيصليه ثلاثا ثم يسلم ثم قلما يلبث حتي يقيم العشاء....
دابن عمر نه روايت دي فرمائي چي ما رسول الله صلي الله عليه وسلم ليدلي وو چي کله کله به يي په سفر کي دجلتئ په وجه دماښام په مونځ کي تاخير کولو تردي چي دماښام او ماخوستن مونځونه به يي جمع کړل.

په دي کي صراحت دي دعبدالله ابن عمر رضي الله عنهما چي به کله دمابنام دمونځ نه فارغ شو نو لږ شان انتظار به يي اوکړو او بيا به يي دماخوستن مونځ اداء کړو او ددي انتظار کوم بل محمل نشي کيدي علاوه ددينه چي هغه دماخوستن دوخت د داخليدو يقين کيدل غوښتل، پخپله ابن حجر هم اعتراف کړي دي چي په دي کي په جمع صوري باندي دليل دي (فتح الباري).

(۲) ددينه زيات صريح روايت په ابوداود کي دنافع عن عبدالله بن واقف په سند مروي دي.

"ان مؤذن ابن عمر رضي الله عنهما قال الصلاة قال سِر سر حتي اذا كان قبل غيوب الشفق نزل فصلي المغرب ثم انتظر حتي غاب الشفق فصلي عن عشاء ثم قال ان رسول الله صلي الله عليه وسلم كان اذا عجل به امر صنع مثل الذي صنعت.

نه صرف دا چي امام ابو داود په دي باندي سكوت کړي دي بلکه دي سره يي ددي يو مطلع هم ذکر کړي دي چي الفاظ يي دادي :

"عبدالله بن العلاء النافع قال اذا كان عند الذهاب الشفق نزل فجمع بينهما.

دارنګي امام دارقطني هم پخپل سنن کي دا روايت په ډيرو سندونو نقل کړي دي او سکوت يي اختيار کړي دي.

(۳) په مسلم کي دابن عباس رضي الله عنهما نه روايت دي.

"قال صليت مع النبي صلي الله عليه وسلم ثمانيا جميعا وسبعا جميعا قلت يا ابا الشعثاء اظنه الظهر وعجل العصر واخر المغرب وعجل العشاء قال وانا اظن ذلك".

دابن عباس رضي الله عنهما نه مروي دي چي ما دنبي کريم صلي الله عليه وسلم سره اته يوځاي او که اوه يوځاي کړي دي ما اووئيل اي ابو الشعثاء زما خيال دي چي د ماسپخين مونځ به يي روستو کړي وي او دمازيګر به يي رامخکي کړي وي او دمابنام به يي روسته کړي وي او دماخوستن به يي رامخکي کړي وي او بيا به يي اداء کړي وي، ابو الشعثاء اووئيل زما هم دا خيال وو، په دي حديث کي د دوه راويانو ګمان داحنافو عين مطابق دي دا تمام روايات په جمع صوري کي بالکل صريح دي.

(۴) د ترمذي راتلونکي روايت کوم چي دابن عباس رضي الله عنهما نه مرفوعاً مروي دي

"قال من جمع بين الصلاتين من غير عذرا وقد اتي بابا من ابواب الكبائر".

دابن عباس رضي الله عنهما بيان دي چي چا بغير دعذر نه دوه مونځونه په يو وخت کي جمع کړل نو دګناهونو په دروازو کي يوي لوي دروازي ته ورسيدل، دا روايت اګر چي سنداً ضعيف دي خکه چي ددي مدار په حنش بن قيس باندي وو او دده په باره کي امام ترمذي واني وهو

ضعيف عند اهل الحديث ضعفه احمد وغيره، ليكن دامام محمد دمؤطا يو روايت ددي تائيد كوي:

"قال محمد بلغنا عن عمر بن الخطاب انه كتب في الافاق ينهاهم ان يجمع بين الصلاتين ويخبرهم ان الجمع بين الصلاتين في وقت واحد كبيرة من الكبائر".

(۵) په بعضي صورتونو كي قائلين دجمع حقيقي هم په جمع صوري دبعضي روايتونو محمول كولو مجبور وي مثلا حديث دعبدالله بن عباس كوم چي حديث الباب دي "قال جمع رسول الله صلي الله عليه وسلم بين الظهر والعصر وبين المغرب والعشاء بالمدينة من غير خوف ولامطر، يعني رسول الله صلي الله عليه وسلم ماسپخين او مازيگر مابنام او دماخوستن مونځونه په مدينه كي بغير دخوف او باران نه په يو وخت كي جمع كړي وو

په دي كي نور ائمه هم دجمع فعلي په مراد كولو مجبور دي صرف امام احمد دا په حالت دمرض محمول كړي وو ليكن دا خبره هم ډيره بعيده ده چي دټولي ابادئ خلق دي په دغه وخت كي ناجوړه شوي وي، دويمه داده كله چي دابن عباس نه تپوس اوكړي شو چي ددي جمع كولو نه مقصد نبوي څه دي هغه صرف دومره اوفرمائيل "ان لايحرج امته" نو كه ددي سبب مرض وي ابن عباس به ضرور بيان كړي وو، همداوجه ده چي ابن حجر په فتح الباري كي اعتراف كړي دي چي په دي روايت كي جمع صوري مراد كول بهتردي او حقيقت هم دادي چي دحديث الباب توجيه دپاره ددينه علاوه بله كومه لار نشته او كله چي په دي روايت كي جمع صوري مراد كړي شي نو نور روايتونه به هم ضرور په جمع صوري محمول كولي شي

(۶) كه جمع صوري مراد كړي شي نو په ټولو رواياتو كي به تطبيق راشي او كه جمع حقيقي مراد كړي شي نو بيا حديث الباب او په صحيحينو كي دعبدالله بن مسعود روايت "ماصلي رسول الله صلي الله عليه وسلم صلاة لغير ميقاتها" پريخودل بالكل لازميږي او ظاهره ده چي هغه توجيه راجح وي په كومو كي چي په رواياتو كي تطبيق راځي

(۷) علامه عثماني په فتح الملهم كي دجمع صوري په مراد كولو يوه ډيره لطيفه وجه بيان كړي ده او هغه داده په احاديثو كي چي چرته دجمع بين الصلاتين ذكر راغلي دي هلته جمع بين الظهر والعصر شوي ده يا بين المغرب والعشاء ددينه علاوه دهيڅ قسم دوه مونځونو كي نه جمع ثابت ده او نه څوك ددي دجواز قائل دي چنانچي ائمه ثلاثه هم ددغه دوه مونځونو په مينځ كي قائل دي اود سحر او دماسپخين يا دمازيگر او دمابنام يا دماخوستن او دسحر په مينځ كي جمع كول دهيچا په نزد جائز نه دي او نه دكوم روايت نه ثابت دي اوس كه چري جمع حقيقي مراد كړي شي نو ددي تفريق دپاره هيڅ كومه معقول وجه نه پاتي كيږي چي

دماسپخين او مازيگر جمع كول دي جائز شي ليكن دمازيگر او دماښام جمع كول دي ناجائز شي.
البته كه جمع صوري مراد كړي شي نو ددي يوه معقول وجه په ذهن كي راځي او هغه داده چي په سحر او مازيگر كي جمع صوري ځكه ممكن نه ده چي ددي په مينځ كي يو اوږد مهمل وخت حائل دي او دمازيگر او دماښام او دماخوستن او دسحر مونځونو كي جمع صوري ځكه ممكن نه ده چي مازيگر او ماخوستن اخري مكروه وختونه دي ددينه معلومه شوه رسول الله چي په كومه جمع بين الصلاتين عمل كړي دي هغه جمع صوري وه اوحقيقي نه وه او نه دا په ټولو مونځونو كي كيدله.
دائمه ثلاثه مذهب: دائمه ثلاثه په نزد جمع بين الصلاتين جائز ده او ددي دوه صورتونه دي (۱)جمع تقديم (۲) جمع تاخير ، جمع تقديم ديته واني چي اولني چي اولني مونځ پخپل وخت كي اوكړي او راتلونكي مونځ مقدم كړي كه ماسپخين په وخت كي اوكړي او دمازيگر مونځ مقدم پخپل وخت كي اوكړي شي دارنګي دماښام مونځ پخپل وخت كي اوكړي دماخوستن مونځ مقدم پخپل وخت كي اوكړي او ماښام دماښام په وخت كي اداء كړي.
ليكن امام نووي دجمع تقديم دپاره څه شرائط ذكر كړي دي (۱) د اولني مونځ دسلام نه مخكي ددويم مونځ نيت كول (۲) چي ددواړو مونځونو په مينځ كي وقفه او نوافل وغيره نه وي (۳) چي په دواړو مونځونو كي ترتيب وي يعني مخكني مقدم اوكړي او روستني مؤخر اوكړي
جمع تاخير ديته وائي چي اولني مونځ مؤخر كړي او دويم پخپل وخت كي اوكړي يعني ماسپخين او ماښام مؤخر كړي او مازيگر او ماخوستن پخپل وخت كي اوكړي په دي كي شرط دادي چي داولني مونځ وخت دومره باقي پاتي كيدل پكار دي په كوم كي چي مونځ اداء كيدي شي او په دغه وخت كي به دده دا نيت وي چي اولني مونځ ځكه مؤخر كوم چي روستني مونځ ورسره اداء كړم ليكن كه بغير دنيت نه وخت تير شو نو مونځ به قضاء شميرلي كيږي، امام مالك او امام شافعي په نزد صرف به سفر باندي رخصت ملاويږي دامام مالك په نزد جمع بين الصلاتين دوران سير حالت كي جمع كولي شي دمالكيانو په يو روايت كي دا هم ضروري ده چي په سفر كي به جلتي وي او مطلق سفر كافي نه دي تردي چي دمالكيانو په نزد جمع بين الصلاتين مكروه ده "صرح به ابن العربي في العارضة".
دائمه ثلاثه دطرفه دجمع صوري په مراد كولو يو څو اعتراضات شوي دي
اولني اعتراض: وئيلي شوي دي چي په مسلم كي دانس رضي الله عنه بعضي داسي روايتونه دي چي په هغوئ كي جمع صوري مراد كول ممكن نه دي او هغه روايات دادي.

"عن انس رضي الله عنه عن النبي صلي الله عليه وسلم اذا عجل عليه السفر يؤخر الظهر الي اول وقت العصر ويجمع بينهما ويؤخر المغرب حتي جمع بينهما وبين العشاء حين يغيب الشفق.
ددي جواب دادي چي دمذكوره دلائلو په رنړا كي څو پوري د "يؤخر الظهر الي اول وقت العصر" الفاظو تعلق دي په دي كي غايه په مغيا كي داخل نه ده د "حين يغيب الشفق" الفاظو مطلب دادي چي ماښام يي په داسي وخت كي اداء كړو كله چي شفق غائب كيدوته قريب وو ددي تائيد په هغه روايت باندي كيږي كوم چي ابوداود دابن عمر رضي الله عنهما نه په يوه واقعه كي نقل كړي دي چي يو ځل هغه دخپلي ښځي صفيه دبيمارئ په وجه باندي دتيزرفتارئ سره سفر كولو نو دماښام مونځ يي مؤخر اداء كړو ددي تاخير په بيان كي دابو داود الفاظ دادي "فسار حتي غاب الشفق فنزل فجمع بينهما" اوپه يو روايت كي داسي دي حتي كان بعد غروب الشفق او يو روايت داسي دي حتي اذا كان بعدما غاب الشفق او دمسلم په روايت كي بعد ان يغيب الشفق الفاظ راغلي دي دلته د تطبيق نه علاوه بله كومه لار نشته چي حتي اذا كاد يغيب الشفق او نور روايتونه هم په دي باندي محمول كړي شي او دا اووئيلي شي چي راويانو روايت بالمعني كړي دي چونكه وختونه قريب قريب وو نو په دي وجه بعضو غاب شفق او بعضو كاد ان يغيب الشفق او بعضو قبل غيبوبه الشفق الفاظ ددي واقعي دپاره بيان كړي دي دا توجيه او تطبيق ځكه راجح دي چي د ابن عمر رضي الله عنهما په باره كي ورروسته دصريح رواياتو كي:
"قلما يلبث حتي يقيم العشاء" الفاظ راغلي دي او په ابو داود كي "حتي اذا كان قبل غيبوبة الشفق نزل فصلي المغرب ثم انتظر حتي غاب الشفق فصلي العشاء"
الفاظ راغلي دي همدارنګي حتي اذا كاد يغيب الشفق والا روايتونه هم راغلي دي دا ټول ددي تائيد كوي او همدا توجيه دانس په روايت كي هم كيدي شي چي دحين يغيب الشفق نه مراد دادي چي شفق غروب ته نژدي شي ددي وجه داده چي ددي الفاظو دحقيقي معني مراد كول په هيڅ صورت كي نشي كيدي ځكه چي غيبوبت دشمس يواني ځيز دي او په يو ان كي ددوه مونځونو كول ممكن نه دي
دويم اعتراض دا ونيلي كيږي چي په جمع صوري باندي دجمع بين الصلاتين اطلاق درست نه دي ځكه چي په دي كي هر مونځ پخپل خپل وخت كي اداء كيږي لهذا دجمع بين الصلاتين روايتونه په دي باندي حمل كول تاويل بعيده دي
جواب په جمع صوري دجمع بين الصلاتين اطلاق پخپله درسول الله صلي الله عليه وسلم دقول نه ثابت دي چي رسول الله حمنه بنت جحش ته اوفرمائيل

"فأن قويت علي ان تؤخري الظهر وتعجلي الغصر ثم تغتسلين حين تطهرين وتصلين الظهر والعصر جميعا ثم تؤخرين المغرب وتعجلين العشاء ثم تغتسلين وتجمعين بين الصلاتين.
دريم اعتراض: وئيلي کيږي چي دجمع بين الصلاتين منشاء اساني پيدا كول دي او په جمع صوري كي هيڅ اساني نشته بلكه مشكله ده ځكه چي دوختونو دتعين احتمام دهر چا نه نشي كيدي
جواب په جمع صوري كي هم اساني ده خكه چي مسافر ته اصل مشكل بار بار قيام كول دي او واپس ختل دي او په اودس كولو كي هم ورته تكليف وي او په جمع صوري كي دا مشكلات ختميږي
څلورم اعتراض دا وئيلي كيږي چي جمع تاخير په جمع صوري محمول كيدي شي ليكن دجمع تقديم روايتونه په جمع صوري محمول كول ممكن نه دي.
جواب درسول الله صلي الله عليه وسلم دجمع تقديم كولو ذكر صرف دمعاذ بن جبل رضي الله عنه په يو روايت كي راغلي دي چي ابو داود نقل كړي دي
عَنْ مُعَاذِ بْنِ جَبَلٍ أَنَّ النَّبِيَّ صلى الله عليه وسلم كَانَ فِي غَزْوَةِ تَبُوكَ إِذَا ارْتَحَلَ قَبْلَ أَنْ تَزِيغَ الشَّمْسُ أَخَّرَ الظُّهْرَ حَتَّى يَجْمَعَهَا إِلَى الْعَصْرِ فَيُصَلِّيهِمَا جَمِيعًا وَإِذَا ارْتَحَلَ بَعْدَ زَيْغِ الشَّمْسِ صَلَّى الظُّهْرَ وَالْعَصْرَ جَمِيعًا ثُمَّ سَارَ وَكَانَ إِذَا ارْتَحَلَ قَبْلَ الْمَغْرِبِ أَخَّرَ الْمَغْرِبَ حَتَّى يُصَلِّيَهَا مَعَ الْعِشَاءِ وَإِذَا ارْتَحَلَ بَعْدَ الْمَغْرِبِ عَجَّلَ الْعِشَاءَ فَصَلاَّهَا مَعَ الْمَغْرِبِ. قَالَ أَبُو دَاوُدَ وَلَمْ يَرْوِ هَذَا الْحَدِيثَ إِلاَّ قُتَيْبَةُ وَحْدَهُ.(ابوداود رقم:١٢٢٢)
جواب: دا حديث دضعف انتهاء ته رسيدلي دي پخپله امام ابو داود ددي د ذكر كولو نه پس وائي "قال ابو داود لم يرو هذا الحديث الا قتيبة وحده وهي اشارة الي ضعف هذا الحديث" امام ترمذي دابواب السفر لاندي دوباره باب ماجاء في الجمع بين الصلاتين قائم كړي دي ددي باب لاندي امام ترمذي هم دمعاذ دا روايت نقل كړي دي او په اخر كي وائي وحديث معاذ حسن غريب تفرد به قتيبه لانعرف احدا رواه عن الليث غيره. او امام حاكم چي په تساهل كي مشهور دي هغه هم ددي حديث تضعيف كړي دي او هغه په علوم الحديث كي دامام بخاري دا قول نقل كړي دي "ان بعض الضعفاء ادخله علي قتيبة" چنانچي دا روايت نورو څومره حافظانو دحديث نقل كړي وو په هغوئ كي هيچا دجمع تقديم ذكر نه دي كړي او دهيچا په روايت كي هم دمازيګر ذكر نشته چنانچي دانس روايت په ابوداود كي ددي الفاظو مروي دي "قال كان رسول الله صلي الله عليه وسلم اذا ارتحل قبل ان تزيغ الشمس اخر الظهر الي العصر ثم نزل

Scanned with C

فجمع بينهما فان زاغت الشمس قبل ان يرتحل صلي الظهر ثم ركب صلي الله عليه وسلم" يعني دابوداود په روايت كي دي چي كله به رسول الله دنمر دزوال نه مخكي سفر كولو نو دماسپخين مونځ به يي دمازيگر وخت نزدي كيدو پوري مؤخر كولو او بيا به يي اداء كړو او دواړه به يي جمع كړل او كه دسفر دشروع كيدو نه مخكي به زوال راغي نو دماسپخين مونځ به يي اوكړو او په سورلئ به دسفر دپاره سور شويه دي كي دزوال شمس نه پس دماسپخين مونځ كولو ذكر دي او دمازيگر ذكر نشته په همدي وجه دامام ابو داود دا قول مشهور دي "ليس في تقديم الوقت حديث قائم كذا في المرقات لعلي القاري".

مگر ابن حجر په فتح الباري كي باب اذا ارتحل بعدما زاغ في الشمس صلي ظهر ثم ركب"لاندي دمعجم اسماعيلي او دحاكم داربعين په حواله دجمع تقديم په تائيد كي يو روايت ذكر كړي دي او ليكلي يي دي "لكن رواي اسحاق بن راهويه هذا الحديث عن شبابة فقال كان اذا كان في سفر فزالت الشمس صلي ظهر والعصر جمع ثم ارتحل" اخرجه الاسماعيلي په دي روايت باندي پخپله اسماعيلي اعتراض كړي دي چي اسحاق بن راهويه دشبابه نه په نقل كولو كي متفرد دي او جعفر الفريابي داسحاق بن راهويه نه ددي روايت په نقل كي متفرد دي لهذا په دي روايت كي دوه راويان متفرد دي ليكن ابن حجر ددي دا جواب كړي دي "وليس ذلك بقادر فانهما امامان حافظان وقد وقع نظيره في الاربعين للحاكم" ليكن دا جواب خكه درست نه دي چي پخپله اسماعيلي دا روايت معلول گرخولي دي او معلول هغه روايت ته وئيلي شي كوم چي په ظاهر نظر سره دثقاتو دروايت مخالف وي ليكن په دي كي علت سابقه موجود وي چي ماهرينو دحديث ته ښكاري بعضي وختونو كي ددي علت تشريح په الفاظو كي ممكن نه وي لهذا كه كوم حديث معلول گرخولي شوي وي نو ددي په جواب كي محض دراويانو توثيق كفايت نه كوي دارنگي امام حاكم چي په تساهل كي حد ته رسيدلي دي هغوئ هم دا روايت په مستدرك كي نه دي ذكر كړي بلكه په اربعين كي يي ذكر كړي دي په دي وجه به دا قول درست وي چي دجمع تقديم باره كي كوم صحيح روايت ثابت نه دي په دي باره كي عيني په عمدة القاري كي بهترين كلام كړي دي

"من جمع بين الصلاتين من غير عذر" داحديث امام ترمذي دحنش بن قيس په وجه ضعيف كړي دي ليكن علامه عثماني په اعلاء السنن كي ددي دثابتولو كوشش كړي دي چي دحنش روايت دحسن درجي نه كم نه دي چنانچي هغه دحنش بن قيس دتوثيق دپاره دامام حاكم او بعضي نورو محدثينو اقوال هم نقل كړي دي ليكن دحنش بن قيس حالات داسماء رجال په

كتابونو كي دكتلو دپاره راجح دا ښكاري چي دده روايات ضعيف دي ددي حديث مضمون په بعضي نورو كتابونو كي په صحيح سند سره دعمر رضي الله عنه نه موقوفا ثابت دي.
فائده: ددي حديث په وجه بعضي شيعه واني مونخونه پنخه دي مگر وختونه يي دري دي د زوال نه دغروب پوري دماسپخين او دمازيگر وخت دي او دغروب نه صبح صادقه پوري دماښام او ماخوستن واخله او دصبح صادق نه پس دسحر وخت دي مگر ددي دا خبره دقران او حديث خلاف ده او ددي حديث نه ددوئ استدلال باطل دي ځكه چي په دي حديث كي دجمع حقيقي بيان نه دي بلكه دجمع صوري بيان دي او ددي دليل راتلونكي حديث دي.

***************

## ٢٧_بَاب مَا جَاءَ فِي بَدْءِ الأَذَانِ

### داذان ابتداء

## د اذان اهميت او فضيلت

اذان د الله تعالى په ذكرونو كي يو ډيراوچت ذكر دې.په دی كي د توحيد او رسالت دگواهئ اعلان كولی شی.اوپه دی باندې د اسلام شان او شوكت ښكاره كيږي.په ډيرو حديثونو كي د اذان فضيلت راغلی دې.

(١) د اذان آواز چی ترڅومره پورې رسی.اوكوم كسان دا اوری.كه جنات وی اوكه انسانان د قيامت په ورځ به د موذن دپاره دايمان گواهی وركوی(بخاری،نسائی، ابن ماجه)

(٢) دالله تعالى د رښتينی پيغمبرﷺ وينا ده چی د پيغمبرانو عليهم السلام او شهيدانو نه به پس موذنان جنت ته داخليږی .او په بعضي احاديثو كي دا هم دی چی د موذن مرتبه د شهيد برابر ده.

(٣) عبدالله ونيلی دی.كوم كس چی اووه كالو پورې اذان اوكړو.اوپه دی باندې دده غرض صرف ثواب وو.نودهغه دپاره د د وزخ نه آزادی اوليكلی شی(ابوداود ،ترمذی)

(٤ نبي كريم صلي الله عليه وسلم فرمائيلی دی.كه خلقو ته معلومه شی. چی په اذان كي څومره زيات ثواب دې.اوبيا ورته دا منصب د قرعه اندازئ نه بغير نه ملاويږی. نو بيشكه ددی دپاره به قرعه اندازی واچوی.خلاصه دا چی ددی منصب دپاره به ډير كوشش كوی (بخاری ،مسلم ،ترمذی، نسائی) د صحابه كرامو په زمانه كي داسی شوې وو چی د اذان په كولو كي په خلقو كي اختلاف پيدا شو. هركس غوښتل چی دا مبارك منصب ماته نصيب شی.تردی چی قرعه اندازئ ته خبره اورسيدله(تاريخ بخاری)

(٥) رسول الله صلي الله عليه وسلم فرمائيلی دی.د قيامت په ورځ به دری قسمه خلق د مشكو په ډيرو ولاړ وی.نه به پري حساب وی.اونه به حيران او پريشان وی(١ )يوهغه كس چی

د الله تعالى د رضا دپاره ئې قران لوستلي وى(٢) دويم هغه كس چې د غلامئ په عذاب كي اخته وى.خو بيا هم دآخرت نه غافله نه وى(٣) دريم موذن (المرشد الامين)
(٦) دقيامت په ورځ به مؤذنينو ته هم د شفاعت كولو اجازت اوشى.اوهغوى به د خپلو خپلوانو اودوستانو يا د چا دپاره چې ئې خوښه وى. الله تعالى ته شفارس كوى.
(٧) داذان په وخت په شيطان ډيره ويره اوهيبت وى. او د ډيرى وارخطائې نه تختى.تركومې پورې چې د موذن آواز رسى.هلته نه ايساريږى . (بخارى ،مسلم)
(٨) د قيامت په ورځ به د اذان كونكو څټونه غرئ اوږدې وى.يعنى دوى به په ډيرو عزتمندو او اوچتو خلقو كي وى.اودقيامت د ويري او مصيبت نه به محفوظ وى.
(٩ په كوم ځائې باندې چې اذان كولى شي.هلته د الله تعالى رحمت نازليږى.د عذاب اومصيبتونونه هغه ځائې محفوظ وى.
(١٠) نبي كريم صلي الله عليه وسلم د اذان كونكو دپاره د مغفرت دعاګانى كړى دى.
من حديث عبدالله بن زيدبن عبدربه (رضي الله عنه) أخرجه أبوداود في الصلاة باب ٢٨ رقم (٤٩٩)
ربط ددي باب دماقبل سره :چونكه اذان د مونځونو دوختونو اعلان دې.نوځكه ئې اول د وختونو بيان اوكړو.او بيا وريسې د اذان.اذان په لغت.كي اعلان او اعلام ته وائى.اوبيا د مونځونو دپاره چې كوم خاص الفاظ وئيلى شى.د هغى دپاره استعمال شو.نوكله چې هم د اذان لفظ ذكرشي.مراد به تري دغه د مانځه دپاره اعلان وى.دا لغوى معنى د الله تعالى په دى قول ﴿ وَأَذَانٌ مِّنَ اللهِ وَرَسُولِهِ إِلَى النَّاسِ يَوْمَ الْحَجِّ الأَكْبَرِ ﴾او﴿ أَذِّن فِي النَّاسِ بِالْحَجِّ يَأْتُوكَ رِجَالًا ﴾مستعمل ده.
اوپه شريعت كي داذان تعريف دا دې.په مخصوصو الفاظو كي په مخصوص طريقه د مانځه د وخت داخليدو خبر وركول.د نفس اذان ثبوت خود آيتونواو احاديثو دواړو نه شوې دې.خو ددى تعين صرف د احاديثو نه دې.آيت خو دالله تعالى ارشاد دې.﴿ وَإِذَا نَادَيْتُمْ إِلَى الصَّلَاةِ اتَّخَذُوهَا هُزُوًا وَلَعِبًا ذَلِكَ بِأَنَّهُمْ قَوْمٌ لاَ يَعْقِلُونَ﴾ المائدة:٥٨) يعنى كله چې تاسو د مانځه دپاره اذان كوئ.نودا خلق خاندى اولوبي كوى.دا ددى وجى چې دا خلق داسې دى چې عقل نه لرى.په دى آيت كي د"ندا الى الصلاة"نه مراد اذان دې.
ځكه چې ددى آيت په شان نزول كي تهانوى (رحمه الله)ليكلى دى چې په مدينه كي يو نصرانى وو چې كله به ئې په اذان كښې "اشهد ان لا اله الا الله" واوريدل.نو وئيل به ئې"قد حرق الكاذب"يعنى دروغژن دي اوسوزى.يوځل داسې اتفاقى خبره وه چې هغه او دهغه د كور تول

خلق اوده شو.يو خادم اور راوړلو.دهغی نه يوه سكروټه پريوتله.اوهغه او دهغه كور او د كور
تول خلق اوسوزيدل.ددی آيت په شان نزول كي يوه واقعه دا هم ده چی كله به اذان شروع
شو.اومسلمانانو به مونځ كولو.نويهوديانو به ونيل.

"قاموا ولا قاموا صلوا ولا صلوا"يعنی مسلمانان اودريږی.الله دي اوكړی چی د اودريدو توفيق
ورته نصيب نشی.اومسلمانان مونځ كوی.الله دي اوكړی چی د مونځ توفيق ورته نصيب
نشی. ددی دواړو واقعاتو نه معلومه شوه چی په آيت كي د"ندا الی الصلاة"نه مراد اذان دی.

دويم آيت ﴿وَمَنْ أَحْسَنُ قَوْلًا مِّمَّن دَعَا إِلَى اللَّهِ وَعَمِلَ صَالِحًا وَقَالَ إِنَّنِي مِنَ الْمُسْلِمِينَ﴾حم
السجدة ۳۳،دی.علامه بغوی (رحمه الله)فرمائی چی عائشه رضی الله عنها فرمائی.زما
خيال دی چی دا آيت د مؤذنينو په باره كي نازل شوی دی. عكرمه (رحمه الله)فرمائی د﴿مِّمَّن
دَعَا إِلَى اللَّهِ﴾ نه مراد مؤذن دی.او ابوامامه باهلی (رضي الله عنه) فرمائيلی دی چی په دی آيت
كي ﴿وَعَمِلَ صَالِحًا﴾ نه مراد دی چی د اذان او اقامت په مينځ كي دوه ركعته اوكړی.

دريم آيت ﴿يَا أَيُّهَا الَّذِينَ آمَنُوا إِذَا نُودِيَ لِلصَّلَاةِ مِن يَوْمِ الْجُمُعَةِ فَاسْعَوْا إِلَى ذِكْرِ اللَّهِ وَذَرُوا الْبَيْعَ﴾
الجمعة:۹)دی: يعنی اي دايمان خاوندانو! كله چی د جمعی په ورځ (د جمعي ) دمانځه دپاره
اعلان اوشی. نو تاسو دالله تعالی ياد (يعنی مونځ اوخطبی ) طرف ته تلوار كوئ.او خرڅول
او اخستل (اودغه شان نور هغه كارونه چی په تګ كي ركاوټ وی.) پريږدئ.اود كومو
احاديثونه چی د اذان او اقامت تعين كيږی.هغه د مختلفو صحابه كرامو نه نقل دی چی په
زاروانو كرښو كي به ئي تفصيل راشی.پاتي شوه دا خبره چی اذان كله مشروع شوی دی.
ددی په باره كي ملا علی قاری (رحمه الله)په شرح نقايه كي دوه اقوال ذكر كړی دی.يودا چی
اذان په اول كال د هجرت كي مشروع شوی وو.دويم دا چی په دويم كال دهجرت مشروع
شوی وو. د دويم قول دليل دا دی چی ابن اسعد د نافع بن جبير ،عروه بن زبير. او سعيد بن
مسيب نه روايت نقل كړی دی چی (أنهم قالوا كان الناس في عهد رسول الله صلي الله عليه
وسلم قبل أن يؤمر بالأذان ينادى منادي رسول الله صلي الله عليه وسلم"الصلاة جامعة"
فتجتمع الناس فلما صرفت القبلة أمر بالأذان) يعنی دا دری واړه حضرات صحابه كرام
فرمائی چی خلقوبه دنبي كريم صلي الله عليه وسلم په زمانه كي د اذان د حكم راتلو نه
وړاندي د"الصلاة جامعة" آواز كولو. خلقوچی به دا آواز واوريدل.نو راجمع به شو.خوچی كله
قبله بدله شوه.نو د اذان حكم اوشو.او دا خبره معلومه ده چی تحويل د قبله په دويم كال د
هجرت كي شوی وو.نوثابته شوه چی د اذان مشروعيت په دويم كال د هجرت شوی دی.

دهندوستان علامه عبدالحی (رحمه الله)په السعایه کي دحافظ ابن حجر العسقلانی (رحمه الله)په حواله سره ليکلئ دی چی د بعضي احاديثو نه معلوميږی چی اذان په مکه مکرمه کي د هجرت نه وړاندې مشروع شوې وو، ددويم قول دليل په طبرانی کي حديث دی چی: (أنه لما أسري بالنبي كريم صلي الله عليه وسلم أوحى الله إليه الأذان فنزل به فعلمه بلالاً) يعنی په شپه د معراج الله تعالی نبي صلي الله عليه وسلم ته د اذان وحی کړې وه.نو نبي کريم صلي الله عليه وسلم د اذان سره واپس تشريف راوړلو.او بلال (رضي الله عنه) ته ئې تعليم ورکړو.په دارقطنی کي د انس (رضي الله عنه) حديث دي . چی

(أن جبريل أمر النبي صلي الله عليه وسلم بالأذان حين فرضت الصلاة)

يعنی په کوم وخت کي چی مونځونه فرض شو.نوجبرئيل (١) نبي کريم صلي الله عليه وسلم ته د اذان حکم کړې وو.د دي دواړو رواياتونو نه معلوميږی چی اذان د هجرت نه وړاندې په مکه کي مشروع شوې دې.خو حافظ بن حجر (رحمه الله) ددی احاديثو د عدم صحت دعوی کړې ده.

داذان دمشروعيت دتاريخ په سلسله کي راجح قول علامه عبدالشکور صاحب لکهنوی په "علم الفقه" کي ليکلی دی چی د اذان شروع په مدينه منوره کي د هجرت په اول کال شوې وه. ددی نه وړاندې به مونځونه بغير د اذان نه کيدل.چونکه په هغه وخت کي د مسلمانانو شمار څه زيات نه وو.نوځکه د مانځه دپاره د دوی راجمع کيدل هم څه ګران نه وو.بيا چی کله ورځ په ورځ اسلام ترقی کوله .او د مختلفو طبقو خلق ډلی ډلی په اسلام کي داخليدل.نو ددی خبري ضرورت پيښ شو چی دمانځه د وخت په راتلو او د جماعت د اودريدو خبر دوی ته ورکولي شی چی په دی سره دوی د نزدی او لري ځايونو نه جماعت ته راتلي شی.نو د اذان دا طريقه ددی مقصد دپاره مقرر کړې شوه.او اذان ددی امت خصوصيت دې.په پخوانو امتونو کي نه وو.

داذان دمشروعيت لنډه واقعه دا ده چی کله صحابه کرامو ته د مونځ او د جماعت د وختونو خبر ورکولو ضرورت محسوس شو.نو هغوی په خپلو کي مشوره اوکړله .بعضو مشوره ورکړه چی د يهوديانو‌يشان دي بنکر غږولي شی.بعضي صحابه کرامو اووئيل چی اور دي بلولي شی. خو نبي کريم صلي الله عليه وسلم دا رائيګاني خوښي نکړې. او عمر(رضي الله عنه) دا رائي ورکړه چی د مانځه په وخت کي دي "الصلاة جامعة" ونيلی شی.عبدالله بن زيد وعمررضی الله عنهما ددی نه پس خوبونه اوليدل چی يوی فرشتی د اذان دا طريقه چی وړاندې بيانولي شی.اوخودله چی په دی طريقه د مونځ د وختونو او د جماعت خبر مسلمانانو ته ورکوئ.په بعضي رواياتو کي راځی چی عبدالله بن زيد (رضي الله عنه)

اوفرمائيل.که په ما باندې د بدګمانۍ ويره نه وه.نوما به دا ونيلی وو چی زه بالکل اوده نه وم(بلکه ويښ وم) ددی وجی بعضي اهل علمو دا واقعه په حال او کشف باندې حمل کړې ده چی ارباب باطن ته په حالت دبيدارئ کي نصيب کيږی.مختصر دا چی سحر ته عبدالله بن زيد (رضي الله عنه) د نبي کريم صلي الله عليه وسلم په خدمت کي واقعه بيان کړه.نو نبي کريم صلي الله عليه وسلم اوفرمائيل.بيشکه دا خوب حق دې.او بلال (رضي الله عنه) ته ئې حکم اوکړو چی هم په دی طريقه اذان اوکړی.بيا عمرفاروق (رضي الله عنه) راغلو.او خپل خوب ئې بيان کړو.

په بعضي رواياتو کي دی چی ددی نه وړاندې نبي کريم صلي الله عليه وسلم باندې وحی نازل شوې وه. لکه څنګه چی عبدالرزاق په خپل مصنف او ابوداود په خپل مراسيل کي دا روايت نقل کړې دې، په بعضي احاديثو کي دا هم راغلی دی چی په شپه د معراج جبرئيل عليه السلام نبی ته د اذان تعليم ورکړې وو .خو دا احاديث صحيح نه دی.اوکه بالفرض دا صحيح اوګڼرلې شی. نو ددی نه هغه د معراج واقعه مراد نه ده چی په مکه کي واقعه شوې وه.ځکه چی نبي کريم صلي الله عليه وسلم ته به روحانی معراج بيا بيا کيدلو.نو ددی نه به مراد هغه شپه وی.په کومه کي چی به نبي کريم صلي الله عليه وسلم دا خوب ليدلی وی.والله اعلم

*********

١٨٩ـ حَدَّثَنَا سَعِيدُ بْنُ يَحْيَى بْنِ سَعِيدٍ الأُمَوِيُّ، حَدَّثَنَا أَبِي، حَدَّثَنَا مُحَمَّدُ بْنُ إِسْحَاقَ، عَنْ مُحَمَّدِ بْنِ إِبْرَاهِيمَ بْنِ الحَارِثِ التَّيْمِيِّ، عَنْ مُحَمَّدِ بْنِ عَبْدِ اللَّهِ بْنِ زَيْدٍ، عَنْ أَبِيهِ، قَالَ: لَمَّا أَصْبَحْنَا أَتَيْنَا رَسُولَ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ فَأَخْبَرْتُهُ بِالرُّؤْيَا، فَقَالَ: " إِنَّ هَذِهِ لَرُؤْيَا حَقٌّ، فَقُمْ مَعَ بِلَالٍ فَإِنَّهُ أَنْدَى وَأَمَدُّ صَوْتًا مِنْكَ فَأَلْقِ عَلَيْهِ مَا قِيلَ لَكَ وَلْيُنَادِ بِذَلِكَ "، قَالَ: فَلَمَّا سَمِعَ عُمَرُ بْنُ الخَطَّابِ نِدَاءَ بِلَالٍ بِالصَّلَاةِ خَرَجَ إِلَى رَسُولِ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ وَهُوَ يَجُرُّ إِزَارَهُ، وَهُوَ يَقُولُ: يَا رَسُولَ اللَّهِ وَالَّذِي بَعَثَكَ بِالحَقِّ لَقَدْ رَأَيْتُ مِثْلَ الَّذِي قَالَ: فَقَالَ رَسُولُ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ: " فَلِلَّهِ الحَمْدُ فَذَلِكَ أَثْبَتُ ". قَالَ: وَفِي البَاب عَنْ ابْنِ عُمَرَ. قَالَ أَبُو عِيسَى: حَدِيثُ عَبْدِ اللَّهِ بْنِ زَيْدٍ حَسَنٌ صَحِيحٌ، وَقَدْ رَوَى هَذَا الحَدِيثَ إِبْرَاهِيمُ بْنُ سَعْدٍ، عَنْ مُحَمَّدِ بْنِ إِسْحَاقَ أَتَمَّ مِنْ هَذَا الحَدِيثِ وَأَطْوَلَ، وَذَكَرَ فِيهِ قِصَّةَ الأَذَانِ مَثْنَى مَثْنَى وَالإِقَامَةِ مَرَّةً مَرَّةً، وَعَبْدُ اللَّهِ بْنُ زَيْدٍ هُوَ ابْنُ عَبْدِ رَبِّهِ، وَيُقَالُ: ابْنُ عَبْدِ رَبٍّ، وَلَا نَعْرِفُ لَهُ عَنِ النَّبِيِّ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ شَيْئًا يَصِحُّ إِلَّا هَذَا الحَدِيثَ

Scanned with C

الْوَاحِدَ فِي الْأَذَانِ. وَعَبْدُ اللَّهِ بْنُ زَيْدِ بْنِ عَاصِمِ الْمَازِنِيُّ لَهُ أَحَادِيثُ عَنِ النَّبِيِّ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ. وَهُوَ عَمُّ عَبَّادِ بْنِ تَمِيمٍ. ([1])

**ترجمه** محمد بن عباد دخپل پلار دا قول نقل کوي چي کله سحر شو مونږ درسول الله صلي الله عليه وسلم په خدمت کي حاضر شو او دهغه خوب خبر مو ورته ورکړو نو ويي فرمائيل دا رښتوني خوب دي او ماته يي اوفرمائيل دبلال سره اودريږه څکه چي دهغه اواز ستا نه تيز دي او هغه څه ورته اوښايه کوم چي تاته خودلي شوي دي او هغه دي دا په اوچت اواز وائي. راوي وائي کله چي عمر بن الخطاب دبلال اذان واوريدو نو خپل څادر يي راښکلو او درسول الله صلي الله عليه وسلم په خدمت کي حاضرشو او عرض يي اوکړو اي دالله رسوله په هغه ذات مي دي قسم وي چاچي ته دربنتوني دين دخودلو دپاره راليږلي يي ما هم داسي خوب ليدلي دي څرنگه چي بلال اووئيل رسول الله اوفرمائيل تمام تعريفونه خاص دالله تعالي دپاره دي دا خبره خو نوره هم مضبوطه شوه امام ترمذي وائي په دي باب کي دابن عمر رضي الله عنه نه هم روايت وارد دي مگر د عبدالله بن زيد حديث حسن صحيح دي او دا حديث ابراهيم بن سعد هم نقل کړي دي ابراهيم بن سعد دمحمد بن اسحاق نه يو طويل او مکمل حديث نقل کوي په دغه حديث کي داذان کلمات دوه دوه پيري ذکرکوي او داقامت کلمات يو يو خل دده اصل نوم عبدالله بن زيد ابن عبدربه دي. ده ته ابن عبد رب هم وئيلي شي مونږ ته درسول الله صلي الله عليه وسلم په احاديثو کي ددي روايات نه علاوه (کوم چي داذان متعلق دي) دکوم بل روايت دصحيح کيدو علم نشته او عبدالله بن زيد بن عاصم مازني هم درسول الله نه احاديث نقل کړي دي او عبدالله بن عاصم مازني دعباد بن تميم تره دي.

**تشريح** "فانه اندي وامد صوتا" داندي لفظ دري معاني دي (۱) قاموس والا احسن معني ذکر کړي ده (۲) بعضي اهل لغت ارفع معني ذکر کوي (۳) او بعضي د امد اطول معني ذکر کوي گويا کي په دي ليند د کي دمؤذن دپاره اداب دي چي دا به احسن الصوت او ارفع الصوت وي.

"فلما سمع عمر بن الخطاب نداء بلال بالصلاة" اشکال. ددي جملي نه معلوميږي چي عمر رضي الله عنه ته داذان دالفاظو دمشروعيت علم په هغه وخت کي راغي کله چي بلال اذان ورکړو لېکن دابوداود درروايت نه معلوميږي چي کله عبدالله بن زيد خپل خوب بيانولو نو دغه وخت کي عمر فاروق بذات خود دلته موجود وو "وكان عمر بن الخطاب قد راه قبل ذلك فكتمه عشرين

[1] سنن ابي داود/ الصلاة ۲۸ (۴۹۹) . سنن ابن ماجه/الأذان ۱(۷۰۶) . (تحفة الأشراف : ۵۳۰۹) . مسند احمد (۴/۴۲) . سنن الدارمي/الصلاة ۳(۱۲۲۳)

يوما قال ثم اخبر النبي صلى الله عليه وسلم فقال ما منعك ان تقدرني فقال سبقني عبدالله بن زيد فاستحييت". بعضي علماؤ ددي دواړو روايتونو تعارض داسي حل كړي دي چي عمر رضي الله عنه دا خوب دعبدالله بن زيد بن عبدربه نه شل ورځي مخكي ليدلي دي ليكن دهغه نه خوب هير شوي دي ليكن بيا چي كله عبدالله بن زيد خپل خوب بيان كړو نو هغه ته هم راياد شو ليكن دحياء په وجه خاموش پاتي شو څكه چي عبدالله بن زيد ورنه مخكي شوي وو څو چي بيا بلال كله اذان اوكړو نو دغه وخت يي خپل خوب رسول الله ته تفصيلا ذكر كړو او په دي كي تفصيلي كلمات هم موجود وو

****************

١٩٠ـ حَدَّثَنَا أَبُو بَكْرِ بْنُ النَّضْرِ بْنِ أَبِي النَّضْرِ. حَدَّثَنَا حَجَّاجُ بْنُ مُحَمَّدٍ. قَالَ: قَالَ ابْنُ جُرَيْجٍ: أَخْبَرَنَا نَافِعٌ، عَنِ ابْنِ عُمَرَ. قَالَ: كَانَ الْمُسْلِمُونَ حِينَ قَدِمُوا الْمَدِينَةَ يَجْتَمِعُونَ فَيَتَحَيَّنُونَ الصَّلَوَاتِ وَلَيْسَ يُنَادِي بِهَا أَحَدٌ. فَتَكَلَّمُوا يَوْمًا فِي ذَلِكَ. فَقَالَ بَعْضُهُمْ: اتَّخِذُوا نَاقُوسًا مِثْلَ نَاقُوسِ النَّصَارَى، وَقَالَ بَعْضُهُمْ: اتَّخِذُوا قَرْنًا مِثْلَ قَرْنِ الْيَهُودِ. قَالَ: فَقَالَ عُمَرُ بْنُ الْخَطَّابِ: أَوَلَا تَبْعَثُونَ رَجُلًا يُنَادِي بِالصَّلَاةِ؟ قَالَ: فَقَالَ رَسُولُ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ: "يَا بِلَالُ قُمْ فَنَادِ بِالصَّلَاةِ". قَالَ أَبُو عِيسَى: هَذَا حَسَنٌ صَحِيحٌ غَرِيبٌ. مِنْ حَدِيثِ ابْنِ عُمَرَ. [1]

**ترجمه** دعبدالله بن عمر رضي الله عنهما نه روايت دي فرمائي مسلمانان چي كله مديني ته راغلل نو دوئ به جمع كيدل او دمونځ دوختونو اندازه به يي لګوله او په دوئ كي به هيڅ اواز نه كولو يوه ورځ دوئ پخپل مينځ كي مشوره اوكړه بعضو اووئيل دنصاري دناقوس پشان ناقوس دي اوغړولي شي. بعضو ووئيل يو ښكر جوړ كړئ ديهوديانو دقرن پشان عمر رضي الله عنه اووئيل ولي نه دا به ګني ښه نه ي چي يو كس اوليږئ چي هغه دمونځ دپاره اواز اوكړي دي وخت كي رسول الله صلي الله عليه وسلم اوفرمائيل اي بلال اودريږه او دمونځ دپاره اواز اوكړه. امام ترمذي فرمائي دا حديث دابن عمر دحديث نه حسن صحيح غريب دي په دي حديث كي داذان دمشروعيت واقعي ته اشاره ده چي ذكر يي ماقبل كي تير شو

**تشريح: داذان شرعی حيثيت**

## داذان دحكم متعلق دفقهاؤ دوه اقوال دي:

---

[1] صحيح البخاري/الأذان ١ (٦٠٤) . صحيح مسلم/الصلاة ١ (٣٧٧) . سنن النسائي/الأذان ١ (٦٢٤) . (تحفة الأشراف: ٧٧٧٥) . مسند احمد (٢/١٤٨)

(۱) اذان د پنځو مونځونو او جمعي دپاره سنت مؤکده دي(۲) او بعضي مشائخو فرمائيلي دي چي واجب دي ځکه چي د امام محمد (رحمه الله)نه نقل دي.که د يو کلي ټول خلق په اتفاق سره اذان پريږدي.نوهغوی سره به جنګ کولي شي.اودا خبره معلومه ده چي قتال د واجب په پريخودو کولی شي د سنتو په پريخود نشي.نومعلومه شود چي اذان واجب دي.ددی جواب دا دي چي اذان کول خو سنت دي. خو د دي پريخودل د دين سپکاوي اوتوهين دي.اوپه توهين د دين باندي قتال کولي شي.نوامام محمد (رحمه الله)ځکه هغوی سره د قتال کولو حکم کړي دی.د اذان په مسنونيت باندي نقل متواتر دليل دي.يعنی دا خبره په تواتر سره ثابته ده چي نبي کريم صلي الله عليه وسلم د پنځو مونځونو او جمعی دپاره د اذان حکم کړي دي .او ددی نه علاوه د وترو، عيدينو، کسوف، خسوف، استسقاء، دجنازي مونځ او د نفلونو دپاره ئي د اذان حکم نه دي کړي.

په مسلم کي د جابربن سمره (رضي الله عنه) نه روايت دی چی (صليت مع رسول الله صلي الله عليه وسلم العيد غير مرة ولا مرتين بغير أذان ولا إقامة) يعنی ما د رسول الله صلي الله عليه وسلم سره د اخترونو مونځ يو خل دوه خله نه دي کړي. (بلکه ډير خله مي کړي دي) بغير د اذان او اقامت نه.

د عائشه رضي الله عنها روايت دي چی (خسفت الشمس على عهد رسول الله صلي الله عليه وسلم فبعث منادياً ينادي الصلاة جامعة) يعنی د رسول الله صلي الله عليه وسلم په زمانه کي به نمر تندر نيول.نو نبي کريم صلي الله عليه وسلم به يو آواز کونکی اوليږلو.هغه به د"الصلاة جامعة" الفاظ ونيل. ددی دواړو احاديثو نه ثابته شوه چی د عيدينو او کسوف او خسوف دپاره اذان نشته.

او وتر اګرچي واجب دی.خو د ماسخوتن اذان کافی دي.ځکه چي د وترو وخت هغه دي.کوم چي د ماسخوتن دي.اوباقی پاتي شوسنت او نوافل نودا د فرضو تابع دی. ددی دپاره د جدا اذان څه ضرورت نشته.او جمعی د اذان دپاره د سائب بن يزيد رضي الله عنه حديث دليل دي چي په صحيحينو کي دي. د صاحب هدايه بيان دی چی د اذان کيفيت معلوم دي.اودا په هغه طريقه دي.څنګه چی د آسمان نه نازل شوي فرشتي کړي وو. ددی تفصيل د عبدالله بن زيد(رضي الله عنه) په حديث کي تفصيل سره تيرشوي دي.دحديث الفاظ دا دی:

(عن معاذبن جبل قال قام رجل من الأنصار عبدالله بن زيد يعنی إلى النبي صلي الله عليه وسلم فقال يا رسول الله صلي الله عليه وسلم إني رأيت في النوم كأن رجلاً نزل من السماء عليه بردان أخضران أنزل

على جزم حائط من المدينة فأذن مثنى مثنى ثم جلس قال أبو بكر بن عياش على نحو من أذاننا اليوم قال علمها بلالا فقال عمر (رضي الله عنه) ورأيت مثل الذي رأى ولكنه سبقني)
پاتې شوه دا خبره چې دا کومه فرښته وه.نو علامه بدرالدين عينى (رحمه الله)فرمائيلى دي چې دا جبرئيل امين وو.او د بعضې علماورائې ده چې دا بله يوه فرښته وه.

****************

## ۲۸_ باب مَا جَاءَ فِي التَّرْجِيعِ فِي الأَذَانِ

### په اذان کې ترجيع کول

۱۹۱_ حَدَّثَنَا بِشْرُ بْنُ مُعَاذٍ الْبَصْرِيُّ، حَدَّثَنَا إِبْرَاهِيمُ بْنُ عَبْدِ الْعَزِيزِ بْنِ عَبْدِ الْمَلِكِ بْنِ أَبِي مَحْذُورَةَ، قَالَ: أَخْبَرَنِي أَبِي، وَجَدِّي جَمِيعًا، عَنْ أَبِي مَحْذُورَةَ، أَنَّ رَسُولَ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ " أَقْعَدَهُ وَأَلْقَى عَلَيْهِ الأَذَانَ حَرْفًا ". قَالَ إِبْرَاهِيمُ: مِثْلَ أَذَانِنَا. قَالَ بِشْرٌ: فَقُلْتُ لَهُ: أَعِدْ عَلَيَّ فَوَصَفَ الأَذَانَ بِالتَّرْجِيعِ. قَالَ أَبُو عِيسَى: حَدِيثُ أَبِي مَحْذُورَةَ فِي الأَذَانِ صَحِيحٌ، وَقَدْ رُوِيَ عَنْهُ مِنْ غَيْرِ وَجْهٍ وَعَلَيْهِ الْعَمَلُ بِمَكَّةَ، وَهُوَ قَوْلُ الشَّافِعِيِّ. [1]

**ترجمه** . وابو محذوره رضي الله عنه نه روايت دي چې رسول الله صلي الله عليه وسلم زه کينولم او د اذان يو يو حرف يې راوخودلو ابراهيم وائي چې زمونږ د اذان پشان او بشر وائي ما ورته اوونيل چې دوباره اووايه نو هغوئ اذان د ترجيع سره بيان کړو امام ترمذي وائي د اذان په باره کې دابو محذوره حديث صحيح دي او دا دهغه نه په ډيرو سندونو مروي دي او په مکه کې په همدې باندې عمل کولې شي او دامام شافعي هم دا قول دي.

**تشريح** دترجيع في الاذان مطلب دادي چې دوه دوه پيرې دشهادتينو وئيلو نه پس په تيز اواز سره وئيل. او دترديع مطلب دادي چې تکبير څلور پيرې وئيل

مسئله دترجيع او تربيع في الاذان. په دې مسئله کې داهل علمو اختلاف دي.

(۱) دامام ابو حنيفه او احمد بن حنبل په نزد په اذان کې ترجيع نشته تربيع کول دي

(۲) امام مالك او امام شافعي په نزد په اذان کې ترجيع او تربيع دواړه دي. البته دامام مالك په نزد تربيع نشته ددې اختلاف په بناء د اذان دکلماتو په تعداد کې اختلاف دي دامام ابو حنيفه په نزد کلمات د اذان پنځلس دي او کلمات د اقامت اولس دي او دامام شافعي په نزد کلمات د اذان نولس دي او دامام مالك په نزد اولس دي.

[1] سنن النسائي/الأذان ۳ (۶۳۰)، (تحفة الأشراف: ۱۲۱۶۹)

امام شافعي او امام مالك دحديث الباب نه استدلال كوي دابو محذوره اصل نوم امام ترمذي سمره بن معير خودلي دي او امام طحاوي دخپل طرف نه او علامه زيلعي په نصب الرايه كي او ابن الجوزي په كتاب التحقيق كي ليكلي دي په اتم هجري كي چي كله مكه فتح شوه او د اذان اواز پورته كړي شو نو دمشركينو ماشومانو ددي نقل شروع كړو لكه څنګه چي دماشومانو عادت وي يو خل د همداسي ماشومانو په خوا كي درسول الله تيريدل اوشول چي د اذان نقل يي كولو په دوئ كي ابو محذوره هم موجود وو ابو محذوره دنورو ماشومانو نه لوي وو او اواز يي هم ښكلي وو نو رسول الله دي اونيولو او ورته يي اوفرمائيل اوس وايه څه دي وئيل؟ ابو محذوره اووئيل الله اكبر الله اكبر په تيزه يي كلمات اووئيل څكه چي ددي جملي په سبب دده عقيدي ته نقصان نه رسيدو ليكن كله چي دشهادتينو جملو ته راغي نو دا يي رو رو اووئيل څكه چي په دي يي عقيده خرابيده اوبه نه زړه يي اووئيل بيا چي دشهادتينو نه تير شو نو اواز يي تيز كړو چنانچي دنسائي په روايت كي دي "ارجع فامدد عن صوتك" او دابن ماجه په روايت كي دي "ارفع من صوتك" او دابو داود په روايت كي دي "ترفع صوتك بالشهادة" نو رسول الله دده دوحشت قطع كولو دپاره اوفرمائيل په تيز اواز وايه بيا ددينه پس ابو محذوره مسلمان شو او عرض يي اوكړو اي دالله رسوله ما دمكي مؤذن مقرر كړه رسول الله صلي الله عليه وسلم اوفرمائيل ته مؤذن شوي ابو محذوره به دترجيع سره اذان كولو څكه چي هغه په دي پوهه شوي وو چي يو خل ما درسول الله په وړاندي په مزه اذان كړي وو او هغه راته د تيز اواز وئيلي وو او حال دادي چي دلته د اذان تعليم نه وو بلكه دده په زړه كي په ابتداء كي دشهادتينو نه نفرت وو ددي كمول مقصود وو.

جواب اول: صاحب دهدايه دا جواب كړي دي چي ترجيع دتعليم دپاره وه ليكن ابو محذوره شرعي حكم اوګڼرلو چي ماته هميشه دتيټ اواز نه پس د اواز تيزولو حكم شوي دي امام طحاوي هم دا تاويل كړي دي.

اعتراض: دابن همام دطرفه په دي روايت اعتراض شوي دي په ابو داود كي چي دابو محذوره د اذان كوم روايت دي دهغه روايت الفاظ دادي "علمني سنة الاذان" اوبيا ددينه پس دترجيع ذكر دي او بيا ددينه پس دشهادتينو متعلق ارشاد دي "تخفض بها صوتك ثم ترفع بها" ددينه معلومه شوه چي رسول الله ورته پخپله فرمائيلي دي چي اول په تيټ اواز وايه اوبيا اواز تيزوه ددينه معلوميږي چي اذان مع الترجيع سنت دي ددي جواب په وجه صاحب دهدايه دقول ترديد كيږي او اذان مع الترجيع ثابتيږي.

جواب اول: دلته استفهام انكاري محذوف دي.

جواب ثاني: دا هم ممكن ده چي دلته روايت بالمعني شوي وي.

Scanned with

جواب ثالث دا حديث سنداً هم قوي نه دي
جواب رابع دابو محذوره دحديث نه دترجيع جواز معلوميږي او دجواز نه خو مونږ هم منکر نه يو علامه ابن نجيم په البحر الرائق کي ليکلي دي "والظاهر من عبارتهم ان الترجيع عندنا فيه اي الاذان مباح ليس بسنة ولا مکروه".
دامام شافعي د دليل دويم جواب دامام شافعي د دليل دويم جواب امام طحاوي کړي دي چي ترجيع په اذان کي سنت نه ده بلکه دا د رفع الصوت دپاره مطلوب وه ځومره تيز والي د اواز چي رسول الله په اذان کي غوښتلو په دومره مقدار ابومحذوره اواز تيز کړو ځکه چي د تکبير کلمه دهر چا په نزد مسلم وه اصل کلمه دتوحيد او کلمه د رسالت وه چي دا دوئ نه خوښوله کله چي هغه په ټيټ اواز اوونيله نو رسول الله ورته اوفرمائيل ارفع صوتك ابو محذوره وائي چي درسول الله په مذکوره ارشاد زما دزړه صورت او حال بدل شو، او ماته يي يوه خلته راکړه په کومه کي چي سره او سپين زر وو (رواه الطحاوي).
جواب ثالث ابن جوزي وائي دابو محذوره په اذان کي ترجيع دسنت کيدو په وجه نه ده بلکه دتوحيد او رسالت لره دکفارو په زړونو کي راسخ کولو دپاره وه ځکه چي اهل مکه نوي نوي مسلمانان شوي وو او په دوئ کي دشرك جراثيم ډير مضبوط شوي وودشرك دجراثيمو دختمولو دپاره دا طريقه اختيار کړي شوه اود ابو محذوره په زړه کي دتوحيد دراسخ کولو دپاره دا عمل اوکړي شو (النصب الرايه).
جواب رابع شاه ولي الله محدث دهلوي وائي "ان الاختلاف في کلمات الاذان کالاختلاف في احرف القران کلها شاف" ګويا کي دهغه په نزد کلمات داذان منزل من الله دي چنانچي دسعدالقرظ په اذان کي هم ترجيع ثابته ده (دارقطني).
جواب خامس دترجيع والااذان دابو محذوره خصوصيت دي هغه به درسول الله په محبت زده کړي اذان همداسي کولو ځنګه چي ورته رسول الله خودلي دي تردي چي هغه ياد تازه وي په دي باندي دليل دا شو چي رسول الله ابو محذوره ته د اذان دتليقن په دوران کي په سر باندي لاس ايخودلي وو نو ابو محذوره په ټول ژوند کي دا ويخته کټ نکړل او دا به يي ونيل چي په دي باندي زمونږ رسول لاس ايخودلي وو.
جواب سابع ترجيع دبيان دجواب محمول ده
دامام مالك استدلال په راتلونکي باب کي روايت دي "امر بلال ان يشفع الاذان ويوتر الاقامة" دشفع اطلاق په دوو دوو کيږي لهذا ترجيع نشته.
جواب دتکبير کلمات خو ځلور دي ليکن دوه په يوه ساه کي ونيلي کيږي لهذا د دوئ نه يو جوړ کړي شو لهذا داسي شوه لکه چي دتکبير هم دوه الفاظ وي که دا توجيه اونشي نو بيا د

اربع روايت كثيره ترك لازميږي او د دومره ډيرو رواياتو پريخودل ديو روايت په وجه درست نه دي.

دامام ابو حنيفه دلائل (۱): په ماقبل باب "باب ماجاء في بدء الاذان" كي دعبدالله بن زيد روايت تير شوي دي په كوم كي چي دا الفاظ دي "ملك نازل من السماء" د اذان تعليم ورکړو او بيا درسول الله په حكم عبدالله ددي كلماتو تعليم بلال ته ورکړو او په دي اذان كي ترجيح نه وه

دليل ثاني: حديث دابن عمر دي : "كان الاذان علي عهد رسول الله صلي الله عليه وسلم مرتين مرتين" ابتداء دتكبير دكلمي نه علاوه الله اكبر دوه پيري په يوه ساه كي ونيلي كيږي او ددينه په يوه تعبير كيږي مگر په ترجيع كي خو څلور څلور پيري ونيلي كيږي مرتين مرتين نه وي.

دليل ثالث: اذان دبلال كوم چي په مسجد نبوي كي كيدو او رسول الله به هم موجود وو او دا چي بلال رضي الله عنه درسول الله صلي الله عليه وسلم سره په سفر او حضر كي لس كاله مؤذن پاتي شوو كچري په اذان كي ترجيع مسنون وي نو بيا درسول الله په موجودګئ كي بلال دترجيع په پريخودلو تارك دسنت ګرځيدلو لهذا لس كاله بغير دترجيع نه دبلال اذان كول ددي خبري واضح دليل دي چي ترجيع مسنون نه ده.

دليل رابع: اذان دعبدالله بن ام مكتوم دي ابن مكتوم هم په مسجد نبوي كي مؤذن وو او دده اذان هم دترجيع نه بغير وو.

دليل خامس: اهل مكه دابو محذوره په حديث دعمل كولو په حال كي دترجيع قائل نه وو او اهل مدينه په ترك ترجيع والا رواياتو باندي عمل كولو، په اهل مكه او اهل مدينه كي داهل مدينه عمل اولي دي ځكه چي دا مسكن النبي صلي الله عليه وسلم دي او مسكن دخلفاء راشدينو دي او مركز داسلام دي.

دليل سادس: بعضي علماؤ دا دليل هم بيان كړي دي چي ترجيع منسوخ ده او ناسخ د بلال د اذان دي "بعد رجوع النبي صلي الله عليه وسلم من الفتح كما تقدم.

دليل سابع دقياس تقاضا هم داده لكه څرنگه چي د اذان په نورو كلماتو كي ترجيع نشته دارنګي دتكبير په كلماتو كي هم ترجيع پكار نه ده (معارف السنن).

***************

۱۹۲ـ حَدَّثَنَا أَبُو مُوسَى مُحَمَّدُ بْنُ الْمُثَنَّى، حَدَّثَنَا عَفَّانُ، حَدَّثَنَا هَمَّامٌ، عَنْ عَامِرِ بْنِ عَبْدِ الْوَاحِدِ الْأَحْوَلِ، عَنْ مَكْحُولٍ، عَنْ عَبْدِ اللهِ بْنِ مُحَيْرِيزٍ، عَنْ أَبِي مَحْذُورَةَ، أَنَّ النَّبِيَّ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ "عَلَّمَهُ الْأَذَانَ تِسْعَ عَشْرَةَ كَلِمَةً وَالْإِقَامَةَ سَبْعَ عَشْرَةَ كَلِمَةً". قَالَ أَبُو عِيسَى: هَذَا حَسَنٌ صَحِيحٌ.

وَأَبُو مَحْذُورَةَ اسْمُهُ: سَمُرَةُ بْنُ مِعْيَرٍ، وَقَدْ ذَهَبَ بَعْضُ أَهْلِ الْعِلْمِ إِلَى هَذَا فِي الأَذَانِ، وَقَدْ رُوِيَ عَنْ أَبِي مَحْذُورَةَ أَنَّهُ كَانَ يُفْرِدُ الإِقَامَةَ. (1)

**ترجمه** د ابو محذوره رضي الله عنه بيان دی فرماني چي ماته رسول الله صلي الله عليه وسلم په اذان کي نولس کلمات ښودلي دي او په اقامت کي يي راته اولس کلمات ښودلي دي.
امام ترمذي وايي دا حديث حسن صحيح دی، اود ابو محذوره نوم سمرة بن معير دی، او بعضي اهل علمو دا قول اختيار کړی دی، اود ابو محذوره نه دا هم مروي دي چي هغه به د اقامت کلمات يو يو خل وئيل.

**حل لغات** افرد يفرد افرادا د باب افعال نه يو کار يو يو خل کول

****************

## ٢٩_ بَاب مَا جَاءَ فِي إِفْرَادِ الإِقَامَةِ

### اقامت يو يو خل کول

١٩٣_ حَدَّثَنَا قُتَيْبَةُ، حَدَّثَنَا عَبْدُ الْوَهَّابِ الثَّقَفِيُّ، وَيَزِيدُ بْنُ زُرَيْعٍ، عَنْ خَالِدٍ الْحَذَّاءِ، عَنْ أَبِي قِلَابَةَ، عَنْ أَنَسِ بْنِ مَالِكٍ، قَالَ: " أُمِرَ بِلَالٌ أَنْ يَشْفَعَ الأَذَانَ وَيُوتِرَ الإِقَامَةَ ". وَفِي الْبَاب عَنْ ابْنِ عُمَرَ. قَالَ أَبُو عِيسَى: وَحَدِيثُ أَنَسٍ حَسَنٌ صَحِيحٌ، وَهُوَ قَوْلُ بَعْضِ أَهْلِ الْعِلْمِ مِنْ أَصْحَابِ النَّبِيِّ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ وَالتَّابِعِينَ، وَبِهِ يَقُولُ مَالِكٌ، وَالشَّافِعِيُّ، وَأَحْمَدُ، وَإِسْحَاقُ. (2)

**ترجمه**: دانس بن مالك رضي الله عنه نه روايت دي فرماني چي بلال ته حکم اوکړي شو اذان دوه دوه پيري کوه او اقامت يو يو خل کوه.
امام ترمذي واني په دي باب کي دابن عمر رضي الله عنه نه هم يو حديث مروي دي او حديث دانس حسن صحيح دي او په صحابه کرامو او تابعينو کي بعضي اهل علمو په دي باندي قول کړي دي، او دامام مالك او شافعي او احمد او اسحاق هم دا قول دي.

---

[1] صحيح مسلم/الصلاة ٣ (٣٧٩) . سنن ابي داود/ الصلاة ٢٨ (٥٠٢) . سنن النسائي/الأذان ٣ (٦٣١) . سنن ابن ماجه/الأذان ٢ (٧٠٩) . (تحفة الأشراف : ١٢١٦٩)

[2] صحيح البخاري/الأذان ١ (٦٠٣) ، و٢ (٦٠٥) ، و٣ (٦٠٦) . صحيح مسلم/الصلاة ٢ (٣٧٨) . سنن النسائي/الصلاة ٢٩ (٥٠٨) . سنن النسائي/الأذان ٢ (٦٢٨) . سنن ابن ماجه/الأذان ٦ (٧٣٠) . (تحفة الأشراف : ٩٤٣) . مسند احمد (٣/١٠٣، ١٨٩) . سنن الدارمي/الصلاة ٦ (١٢٣٠، ١٢٣١)

**تشریح** مسئله اقامت کي ایتار شته اوکنه؟

(۱) دامام شافعي، او امام مالك په نزد اقامت کي ایتار مسنون دي خو بیا ددوئ په مینځ کي لږ شان اختلاف دي شوافع وائي قدقامت الصلاة به دوه خله وائي او باقي اقامت به یو یو خل وائي مگر دمالکیانو په نزد داقامت الفاظ هم یو یو خل دي.

(۲) داحنافو په نزد داذان پشان داقامت الفاظ هم دوه دوه خل دي مگر په دي کي ایتار مسنون نه دي گویا کي ددوئ په نزد داذان الفاظ پنځلس شول او داقامت اولس.

دامام شافعي او امام مالك دلائل ددوئ اول دلیل حدیث دانس رضي الله عنه دي کوم چي حدیث الباب دي مگر دامام شافعي مستدل دلږي اضافي سره دي چي "الاالاقامة" داستثناء په جانب کي قد قامة الصلاة دي اودمستثني منه په جانب کي داقامت نه پوره تکبیر مراد دي او امام مالك ددي دا معني کوي چي دباقي کلماتو پشان په اقامت کي هم ایتار دي.

دامام مالك دویم دلیل: حدیث دابن عمر دي کوم چي ابو داود نقل کري دي.

"انما کان الاذان علي عهد رسول الله صلي الله علیه وسلم مرتین مرتین والاقامة مرتان مرتان غیر انه کان یقول قد قامت الصلاة قد قامت الصلاة"

دا صریح نص دي په دي خبره چي ایتار به د قد قامت الصلاة نه په علاوه کي وي.

داولني دلیل جواب دادي احادیث دایتار په بیان دتعلیم او جواز محمول دي.

دثاني جواب دادي احادیث دایتار داقامت مؤل دي په دي تاویل چي په احادیثو دایتار کي کلمات دایتار مراد نه دي بلکه بحسب النفس والصوت مراد دي یعني دیوي کلمي پشان دوه کلمي په یوه ساه کي ونیل پکار دي.

دریم جواب: دکلماتو داقامت کي به ایتار کیدو مگر بیا منسوخ شو اودلیل دنسخ اقامت د بلال "شفعا شفعا" کیدل دي کوم چي په تواتر ثابت دي.

جواب رابع: اول بلال رضي الله عنه ته دایتار حکم شوي وو لیکن بیا منسوخ شو او دشفع حکم اوشو لهذا داقامت دایتار حکم منسوخ دي.

پنځم جواب: دتثنیه والاروایتونه مثبت بالزیادة دي او دتعارض په وخت کي مثبت ته ترجیح وي لهذا دا به راجح وي

دلائل داحنافو اول دلیل حدیث دعبدالله بن زید بن عبدربه دي په کوم کي چي داسمان نه راتلونکي فرښتي داقامت ذکر دي چي په راتلونکي باب کي په تفصیل سره راروان دي.

"قال کان اذان رسول الله صلي الله علیه وسلم شفعا شفعا والاقامة"

مگر په دي باندي امام ترمذي اعتراضات کري دي چي په راتلونکي باب کي به راشي.

دليل ثاني: په دارقطني كي عن الاسود عن بلال روايت دي "انه كان يثني الاذان ويثني الاقامة وكان يبداء بالتكبير ويختم به. «الجوهر النقي».

دريم دليل. په ابوداود او ترمذي كي دابو محذوره روايت دي "ان رسول الله صلي الله عليه وسلم علمه الاذان تسع عشرة كلمة والاقامة سبع عشرة كلمة" ددي حديث نه دري قسمه استدلال كيږي (١) تعليم وركول مقصود وو (٢) دا حديث مرفوع دي (٣) په دي حديث كي د اذان او اقامت دكلماتو دتعداد نه معلوميږي چي اقامت هم د اذان پشان دوه دوه پيري دي.

دليل رابع: په طحاوي كي دابو محذوره روايت دي:

"علمني رسول الله صلي الله عليه وسلم الاقامة سبع عشر كلمة".

دليل خامس: په دارقطني كي دابو جحيفه روايت دي "ان بلالا كان يؤذن للنبي صلي الله عليه وسلم مثني مثني ويقيم مثني مثني".

****************

## ٣٠_ باب مَا جَاءَ أَنَّ الإِقَامَةَ مَثْنَى مَثْنَى

### كلمات داقامت دوه دوه پيري ونيل

١٩٤_ حَدَّثَنَا أَبُو سَعِيدٍ الأَشَجُّ، حَدَّثَنَا عُقْبَةُ بْنُ خَالِدٍ، عَنِ ابْنِ أَبِي لَيْلَى، عَنْ عَمْرِو بْنِ مُرَّةَ، عَنْ عَبْدِ الرَّحْمَنِ بْنِ أَبِي لَيْلَى، عَنْ عَبْدِ اللَّهِ بْنِ زَيْدٍ، قَالَ: "كَانَ أَذَانُ رَسُولِ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ شَفْعًا شَفْعًا فِي الأَذَانِ وَالإِقَامَةِ". قَالَ أَبُو عِيسَى: حَدِيثُ عَبْدِ اللَّهِ بْنِ زَيْدٍ رَوَاهُ وَكِيعٌ، عَنِ الأَعْمَشِ، عَنْ عَمْرِو بْنِ مُرَّةَ، عَنْ عَبْدِ الرَّحْمَنِ بْنِ أَبِي لَيْلَى، قَالَ: حَدَّثَنَا أَصْحَابُ مُحَمَّدٍ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ، أَنَّ عَبْدَ اللَّهِ بْنَ زَيْدٍ رَأَى الأَذَانَ فِي الْمَنَامِ. وَقَالَ شُعْبَةُ: عَنْ عَمْرِو بْنِ مُرَّةَ، عَنْ عَبْدِ الرَّحْمَنِ بْنِ أَبِي لَيْلَى، أَنَّ عَبْدَ اللَّهِ بْنَ زَيْدٍ رَأَى الأَذَانَ فِي الْمَنَامِ. وَهَذَا أَصَحُّ مِنْ حَدِيثِ ابْنِ أَبِي لَيْلَى، وَعَبْدُ الرَّحْمَنِ بْنُ أَبِي لَيْلَى لَمْ يَسْمَعْ مِنْ عَبْدِ اللَّهِ بْنِ زَيْدٍ. وَقَالَ بَعْضُ أَهْلِ الْعِلْمِ: الأَذَانُ مَثْنَى مَثْنَى، وَالإِقَامَةُ مَثْنَى مَثْنَى. وَبِهِ يَقُولُ سُفْيَانُ الثَّوْرِيُّ، وَابْنُ الْمُبَارَكِ، وَأَهْلُ الْكُوفَةِ. قَالَ أَبُو عِيسَى: ابْنُ أَبِي لَيْلَى هُوَ مُحَمَّدُ بْنُ عَبْدِ الرَّحْمَنِ بْنِ أَبِي لَيْلَى، كَانَ قَاضِيَ الْكُوفَةِ وَلَمْ يَسْمَعْ مِنْ أَبِيهِ شَيْئًا، إِلاَّ أَنَّهُ يَرْوِي عَنْ رَجُلٍ، عَنْ أَبِيهِ. [1]

**ترجمه**: دعبدالله بن زيد رضي الله عنه نه روايت دي چي درسول الله صلي الله عليه وسلم اذان او اقامت دوه دوه خله ونيلي كيدو امام ترمذي وائي چي حديث دعبدالله بن زيد وكيع

[1] تفرد به المؤلف (تحفة الأشراف: ٥٣١١) (ضعيف الإسناد)

Scanned with C

داعمش نه او هغه دعمرو بن مره نه او هغه دعبدالرحمن بن ابي ليلي نه نقل کړي دي فرمائي چي درسول الله صلي الله عليه وسلم صحابه کرامو دعبدالله بن زيد په باره کي ښه معلومات لرلو شعبه دعمرو بن مره نه او هغه دعبدالرحمن بن ليلي نه روايت کوي چي عبدالله بن زيد اذان په خوب کي ليدلي وو دا روايت اصح دي دابن ابي ليلي دروايت نه او عبدالرحمن بن ابي ليلي سماع دعبدالله بن زيد نه ثابت نه ده دبعضي اهل علمو قول دي چي اذان او اقامت دواړه دوه دوه پيري دي سفيان ثوري او ابن مبارك او اهل کوفه هم په دي باندي قول کړي دي.

**تشريح**: دا حديث دامام ابو حنيفه مستدل دي چي د اذان پشان داقامت کلمات هم دوه دوه خل ونيل پکار دي ددي زيات تفصيل په ماقبل باب کي تير شول.

***************

## ٣١_ باب مَا جَاءَ فِي التَّرَسُّلِ فِي الأَذَانِ

### په اذان کي د ترسيل کولو بيان

١٩٥_ حَدَّثَنَا أَحْمَدُ بْنُ الحَسَنِ، حَدَّثَنَا المُعَلَّى بْنُ أَسَدٍ، حَدَّثَنَا عَبْدُ المُنْعِمِ صَاحِبُ السِّقَاءِ، قَالَ: حَدَّثَنَا يَحْيَى بْنُ مُسْلِمٍ، عَنِ الحَسَنِ، وَعَطَاءٍ، عَنْ جَابِرِ بْنِ عَبْدِ اللَّهِ، أَنَّ رَسُولَ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ، قَالَ لِبِلَالٍ: "يَا بِلَالُ إِذَا أَذَّنْتَ فَتَرَسَّلْ فِي أَذَانِكَ، وَإِذَا أَقَمْتَ فَاحْدُرْ، وَاجْعَلْ بَيْنَ أَذَانِكَ وَإِقَامَتِكَ قَدْرَ مَا يَفْرُغُ الآكِلُ مِنْ أَكْلِهِ وَالشَّارِبُ مِنْ شُرْبِهِ وَالمُعْتَصِرُ إِذَا دَخَلَ لِقَضَاءِ حَاجَتِهِ وَلَا تَقُومُوا حَتَّى تَرَوْنِي".([1])

**ترجمه**: دجابر بن عبدالله رضي الله عنه نه روايت دي فرمائي چي رسول الله صلي الله عليه وسلم بلال رضي الله عنه ته اوفرمائيل اي بلال کله چي اذان کوي نو په وقفي وقفي سره داذان کلمات وايه او کله چي اقامت کوي نو په جلتئ جلتئ سره يي وايه او د اذان او تکبير په مينځ کي دومره وقفه کوه چي خوراك کونکي دخوراك نه او اوبو څکلو والا داوبو څکلو نه او اودس ماتي والا د قضاء حاجت نه فارغ شي او تاسو لااودريږئ مه ترڅو چي دي زه دکمري نه راوتلي ليدلي نه يم ترهغه پوري مه اودريږئ مونږ ته عبد بن حميد روايت بيان کړي دي او هغه ته يونس بن محمد او هغه ته عبدالمنعم ددي روايت پشان، امام ترمذي وائي مونږ ته دجابر دا حديث دعبدالمنعم دسند نه علاوه په بل سند نه دي معلوم او عبدالمنعم مجهول دي.

[1] تفرد به المؤلف (تحفة الأشراف: ٢٢٢٢ و ٢٢٩٣).

**تشريح : په اذان كي ترسيل او اقامت كي حدر كول**

ترسيل دا دې چې د دوو كلماتو په مينځ كي په سكته سره فصل (جداوالى ) اوكړى.
او"حدر"دا دې چې فصل نه كوى . فرمائى چې اذان كي ترسيل مستحب دې.اوپه اقامت كي حدر.مطلب د دليل دا دې چې نبي كريم صلي الله عليه وسلم بلال (رضي الله عنه) ته هم ددى حكم كړې وو. نوكه په اقامت كي ئې ترسيل اوكړو(١)نو د بعضي اهل علمو په نزد د دي وجى مكروه دې چې خلاف سنت دې(٢)خو د هدايه د عبارت نه عدم كراهت معلوميږى.څكه چې صاحب د هدايه فرمائى."وهذا بيان الاستحباب"اوبنكاره خبره ده چې د مستحبو په پريخودو سره كراهت نه راځى.(احسن الهدايه.فتح القدير شرح هدايه)

**فائده:** زمونږ په علاقو كي او په نورو ملكونو كي چې ما څومره د احنافو مساجد ليدلي دي هغوئ د مابنام اذان پسي اقامت دومره متصل كوي چې اذان لا ختم نه وي او اقامت شروع شوى وي او څوك دي ته هم نه ګوري چې اقامت دمؤذن د اجازت او رضا نه بغير بل څوك نشي كولى. او نه د راتلونكو خلقو د رسيدو لحاظ كوي كه څوك پيزار اوباسي يا اودس كي مشغول وي يا په لاره راروان وي نو اكثر ورنه جماعت تللي وي او سره ددي چې دا خلق د حنفيت دعوي هم كوي نو دا خو د حنفيت په يو كتاب كي نشته او په امام صاحب پوري بهتان دى . د اذان او اقامت په مينځ كي په وقفي كولو د ملت اسلاميه اتفاق دى. البته اختلاف په دي كي دي چې دي وخت كي دوه ركعاته نفل كول پكار دي او كه يوه شيبه انتظار كول پكار دي. په دي مسئله كي د صاحب احسن الهدايه عبارت نقل كوو كوم چې د مقام دوضاحت دپاره ډير مناسب دي:

قوله "وَاجْعَلْ بَيْنَ أَذَانِكَ وَإِقَامَتِكَ قَدْرَ مَا يَفْرُغُ الْآكِلُ مِنْ أَكْلِهِ وَالشَّارِبُ مِنْ شُرْبِهِ وَالْمُعْتَصِرُ إِذَا دَخَلَ لِقَضَاءِ حَاجَتِهِ"

**په اذان او اقامت كي د وقفي باره كي د فقهاؤ مختلف اقوال**

په دى خبره د ټولو فقهاو اتفاق دې چې په اذان او اقامت كي وصل مكروه دې نبى ﷺ بلال (رضي الله عنه) ته فرمائيلى وو (اجعل بين أذانك وإقامتك قدر ما يفرغ الآكل من أكله) يعنى اى بلال! دخپل اذان او اقامت په مينځ كي دومره وقفه كوه چې خوراك كونكى د خپل خوراك نه فارغه شى او څكونكي دڅكلو نه او اودس ماتونكي د قضاء حاجت نه.

دويم دليل دادى چې د اذان مقصد خلقو ته د وخت خبر وركول دى چې هغوى دمانځه دپاره تياري اوكړى.اود مونځ ادا كولو دپاره مسجد ته حاضر شى.اوپه وصل سره دا مقصود فوت كيږى.نوځكه په اذان او اقامت كي وصل مكروه او وقفه ضرورى ده.نوكه مونځ داسى وى چې د هغى نه وړاندې نفل سنت يا مستحب څه مونځ وى. نود اذان او اقامت په مينځ كي

دي په مونځ سره فصل اوکړی.مثلاً د سحر د مونځ نه وړاندې دوه رکعته. د ماسپخین نه وړاندې څلور رکعته سنت دی.او د مازیګر نه وړاندې اود ماسخوتن نه وړاندې څلور رکعته د استحباب په درجه کې دی.

دلیل دا دې چې نبی ﷺ فرمائیلی دی (بین کل أذانین صلاة) یعنی د هراذان او اقامت په مینځ کې مونځ شته.نبی ﷺ دا خبره دری ځله اوکړله (لمن شاء فإن لم یصل یفصل بینهما بجلسة خفیفة) یعنی په دریم ځل ئې اوفرمائیل چې دا حکم د هغه کس دپاره دې.که ده مونځ نه وی کړې.نو د دواړو په مینځ کې دې په جلسه خفیفه باندې فصل اوکړی.

دامام ابوحنیفه (رحمه الله)په نزد د ماښام نه علاوه په باقی ټولو مونځونو کې به د اذان او اقامت په مینځ کې لږه غونډې ناسته کوی.او د مؤذن دپاره په دغه وخت کې سنت یا نفل کول بهتر دی.

په ماښام کې د امام ابوحنیفه (رحمه الله)نه دوه روایتونه دی(۱)یو دا چې په ماښام کې د اذان او اقامت په مینځ کې په ولاړه ولاړه په دومره اندازه باندې فصل کول مستحب دې چې په هغې کې دری واړه یا یو ورکوټې آیت لوستلې شی(۲)دویم روایت دا دې چې دومره فصل دې کوی چې دری قدمه په کې اخستلې شی. صاحبین فرمائی چې په ماښام کې به هم فصل کوی.خو ډیر مختصر لکه چې د دوو خطبو په مینځ کې څومره وی.د صاحبینو دلیل دا دې چې دا خبره خو اتفاقی ده چې په اذان اواقامت کې وصل مکروه او فصل ضروری دې.لکه چې په اول کې بیان شو(۲)اودا خبره هم تقریباً اتفاقی ده چې په سکوت سره فصل نه واقع کیږی.ځکه چې سکوت خو د اذان د کلماتو په مینځ کې هم وی. نو ځکه پکار ده چې کینی او په ناسته سره فصل اوکړی.اګرچې لږه غونډې وی.لکه چې د جمعې په دوو خطبو کې چې په ناستې سره فصل کوی.

دامام ابوحنیفه (رحمه الله)دلیل دا دې چې په ماښام کې تاخیر کول مکروه دې.هم دا وجه ده چې وړاندې مونږ ذکر کړی وو چې د ماښام نه پس د فرضو نه وړاندې دې نفل نه کوی.بلکه په ادنی فصل یعنی سکته دې اکتفاء کوی چې په دی طریقه د تاخیر نه هم احتراز اوشی.اود اذان او اقامت په مینځ کې فصل هم راشی.

د صاحبینو ددلیل نه جواب دادی چې د ماښام د اذان او اقامت په مینځ کې فصل د دوو خطبوپه مینځ کې فصل باندې قیاس کول درست نه دی.ځکه چې په دی دواړو کې د زمکې او آسمان فرق دې، په اذانینو کې دکیفیات ثلاثه بیان اوهغه داسې چې (۱)د اذان او اقامت ځائې مختلف وی(۲)اوپه دواړو کې آواز مختلف وی.هغه داسې چې په اذان کې ترسیل وی .

او په اقامت کي حدر(۳)بله په دوارو کي د موذن هیئت مختلف وی.څکه چی د اذان په وخت کي هغه خپلي ګوتي په غوږونو کي داخلوی اود اقامت په مینځ کي لاسونه زوړند وی.
ددی په خلاف (۱)په خطبه کي د دوارو خطبو ځانې یو وی(۲)په دوارو خطبو کي نغمه او آواز په یو کیفیت وی(۳)او په دوارو خطبو کي د خطیب هئیت اوحالت یوشان وی.نو ددی فرق باوجود ددی په خپل مینځ کي په یو بل باندې قیاس کول څنګه صحیح کیدې.
امام شافعی (رحمه الله)فرمائی.د مابنام په اذان او اقامت کي دي په دوه رکعته نفلو فصل کوی اوپه دلیل کي فرمائی چی مابنام به په باقی مونځونو قیاس کولی شی.
د صاحب هدایه بیان دی چی د مابنام اونورو مونځونو په مینځ کي فرق ذکر شوې دې.یعنی د امام شافعی (رحمه الله)په نورو مونځونو باندې د مابنام د مونځ قیاس ،قیاس مع الفارق دې.نوځکه په مابنام کي تاخیر مکروه دې.او په نورو مونځونو کي تاخیر مکروه نه دې.نو د مابنام په نورو مونځونو باندې قیاس څنګه صحیح کیدی شی ؟صاحب دهدایه (رحمه الله)غوندې فاضل ته تعجب دې چی په باب المواقیت کي ئې د مابنام په بیان کي د امام شافعی (رحمه الله)مذهب نقل کړې دې.نوفرمائی چی د هغوی په نزد صرف دومره وخت دي چی د اودس ،اذان او اقامت نه پس صرف دری رکعته کولی شی.اودلته لیکی چی د اذان او اقامت په مینځ کي به په دوه رکعتونو سره فصل کوی.نودا دواړه مذاهب څنګه جمع کیدی شی ؟
جواب دا دې چی دا د امام شافعی (رحمه الله)د مابنام په وخت کي دوه اقوال دی.په باب المواقیت کي د امام شافعی (رحمه الله)یوقول ذکر کړې دې.او دلته ئې دویم ته ترجیح ورکړې ده.دویم قول دا دې چی د مابنام وخت دومره دې چی اودس، اذان اواقامت نه علاوه په کي پنځه رکعته مونځ کولی شی. یعنی دری رکعته فرض.اوپه اذان او اقامت کي په دوو رکعتونو سره فصل کوی. امام ابویوسف (رحمه الله) فرمائی چی ما ابوحنیفه (رحمه الله)لیدل چی د مابنام په وخت کي به ئې اذان کولو. او اقامت به ئې کولو.اود اذان او اقامت په مینځ کي به نه کیناستلو.
دامام ابویوسف (رحمه الله) ددی قول نه دوه فائدي حاصلیږی.یوه خو هغه کومه چی مونږذکر کړې ده.یعنی د امام ابوحنیفه (رحمه الله)په نزد به په مابنام کي د اذان او اقامت په مینځ کي جلسه نه کوی.دویم دا چی موذن دي د شریعت د احکامو عالم وی.باقی پاتې شوه دا خبره چی دا دکوم دلیل نه معلومه شوه.
نوجواب دادی چی نبی ﷺ فرمائیلی دی. (یوذن لکم خیارکم ولیؤمکم أقرئکم) یعنی تاسو ته دي هغه کس اذان کوی چی په تاسو کي غوره وی.اوتاسو ته دي هغه کس امامتی درکوی چی اقرا وی.یعنی چی د الله تعالی کتاب ښه قراءت کولی شی.

Scanned with C

***************

١٩٦_ حَدَّثَنَا عَبْدُ بْنُ حُمَيْدٍ، حَدَّثَنَا يُونُسُ بْنُ مُحَمَّدٍ، عَنْ عَبْدِ الْمُنْعِمِ نَحْوَهُ. قَالَ أَبُو عِيسَى: حَدِيثُ جَابِرٍ هَذَا حَدِيثٌ لَا نَعْرِفُهُ إِلَّا مِنْ هَذَا الْوَجْهِ مِنْ حَدِيثِ عَبْدِ الْمُنْعِمِ. وَهُوَ إِسْنَادٌ مَجْهُولٌ، وَعَبْدُ الْمُنْعِمِ شَيْخٌ بَصْرِيٌّ. ([1])

**ترجمه**: يونس بن محمد هم دعبدالمنعم نه دسابقه روايت يو هم معني روايت بيان كړي دي امام ترمذي وائي دجابر دا حديث مونږ ته د دې سند نه علاوه په بل سند نه دي معلوم او دا يو مجهول سند دي او عبدالمنعم يو بصري شيخ دي.

***************

## ٣٢_ باب مَا جَاءَ فِي إِدْخَالِ الإِصْبَعِ فِي الأُذُنِ عِنْدَ الأَذَانِ

### داذان وخت كي په غوږونو كي دګوتو وركولو بيان

١٩٧_ حَدَّثَنَا مَحْمُودُ بْنُ غَيْلَانَ، حَدَّثَنَا عَبْدُ الرَّزَّاقِ، أَخْبَرَنَا سُفْيَانُ الثَّوْرِيُّ، عَنْ عَوْنِ بْنِ أَبِي جُحَيْفَةَ، عَنْ أَبِيهِ، قَالَ: رَأَيْتُ بِلَالًا يُؤَذِّنُ وَيَدُورُ وَيُتْبِعُ فَاهُ هَا هُنَا وَهَهُنَا وَإِصْبَعَاهُ فِي أُذُنَيْهِ، وَرَسُولُ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ فِي قُبَّةٍ لَهُ حَمْرَاءَ أُرَاهُ قَالَ: "مِنْ أَدَمٍ". فَخَرَجَ بِلَالٌ بَيْنَ يَدَيْهِ بِالْعَنَزَةِ فَرَكَزَهَا بِالْبَطْحَاءِ، فَصَلَّى إِلَيْهَا رَسُولُ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ، يَمُرُّ بَيْنَ يَدَيْهِ الْكَلْبُ وَالْحِمَارُ وَعَلَيْهِ حُلَّةٌ حَمْرَاءُ كَأَنِّي أَنْظُرُ إِلَى بَرِيقِ سَاقَيْهِ. قَالَ سُفْيَانُ: نُرَاهُ حِبَرَةً. قَالَ أَبُو عِيسَى: حَدِيثُ أَبِي جُحَيْفَةَ حَسَنٌ صَحِيحٌ، وَعَلَيْهِ الْعَمَلُ عِنْدَ أَهْلِ الْعِلْمِ يَسْتَحِبُّونَ أَنْ يُدْخِلَ الْمُؤَذِّنُ إِصْبَعَيْهِ فِي أُذُنَيْهِ فِي الأَذَانِ، وَقَالَ بَعْضُ أَهْلِ الْعِلْمِ: وَفِي الإِقَامَةِ أَيْضًا يُدْخِلُ إِصْبَعَيْهِ فِي أُذُنَيْهِ، وَهُوَ قَوْلُ الأَوْزَاعِيِّ، وَأَبُو جُحَيْفَةَ اسْمُهُ: وَهْبُ بْنُ عَبْدِ اللَّهِ السُّوَائِيُّ. ([2])

**ترجمه**: عون بن ابي جحيفه دخپل پلار نه روايت كوي چي فرمائيل يې ما اوليدل چي بلال رضي الله عنه داذان ونيلو په وخت كي خپل مخ يو طرف او بل طرف ته ګرځولو او ګوتي يې په غوږونو كي وركړي وي رسول الله صلي الله عليه وسلم خپله سره خيمه كي موجود وو راوي

---

[1] تفرد به المؤلف رحمه الله تعالي في سننه.

[2] صحيح مسلم/الصلاة ٤٧ (٥٠٣). سنن ابي داود/الصلاة ٣٤ (٥٢٠). سنن النسائي/الأذان ١٣ (٦٤٣). والزينة ٢٣ (٥٣٨٠). سنن ابن ماجه/الأذان ٣ (٧١١). (تحفة الأشراف: ١١٨٢). مسند احمد (٣٠٨/٤). سنن الدارمي/الصلاة ٨ (١٢٣٤).

(وراجع أيضا ماعند صحيح البخاري/الأذان ١٥ (٦٣٤)

«سفيان ثوري» وائي چي زما خيال دي دغه سره خيمه دچمړي نه جوړه وه او بيا بلال همـا راوړله په داسي حال کي چي درسول الله صلي الله عليه وسلم نه مخکي روان وو او دا همـا يي په بطحاء ميدان کي اودروله بيا ورله رسول الله سلي الله عليه وسلم ستره جوړه کړه او ددي طرف ته يي مونځ اوکړو او درسول الله صلي الله عليه وسلم ګيرچاپير سپي او خره تيريدل او دغه وخت کي يي په جسم مبارك سور رنګ والالباس پروت وو لکه چي ماته دهغه دپنډو سپين والي ښکاري سفيان وائي زما خيال دي چي دا لباس يمني څادر وو، امام ابو عيسي ترمذي وائي دابو جحيفه حديث حسن صحيح دي او په دي باندي داهل علمو عمل دي چي هغوئ دمؤذن دپاره د اذان په دوران کي په غوږونو کي ګوتي ورکول مستحب ګڼړي او دبعضو اهل علمو قول دي چي په اقامت کي هم په غوږونو کي دګوتو داخلول مسنون دي او دا دامام اوضاعي قول دي او د ابو جحيفه نوم وهب السوائي دي.

## تشريح: داذان په وخت په غوږونو کي د ګوتو ورکولو حکم

د اذان کولو په وخت کي د مؤذن دپاره غوره ده. چي خپلي دواړه ګوتي په دواړو غوږونو کي داخلي کړی، نقلی دليل دا دې چی نبی ﷺ بلال (رضي الله عنه) ته ددی حکم کړې وو. امام حاکم په خپل مستدرك کي د سعد القرظي (چی په قبا کي د نبی ﷺ مؤذن وو)نه روايت کړې دي چي (أن رسول الله أمر بلالا أن يجعل أصبعيه في أذنيه وقال أنه أرفع لصوتك) يعنی رسول الله ﷺ بلال (رضي الله عنه) ته حکم کړې وو چی په خپلو غوږونو کي ګوتي داخلي کړه .ځکه چی دا طريقه ستا د آواز اوچتونکی ده. امام طبرانی (رحمه الله)دا حديث په دی الفاظو سره نقل کړې دی . (إذا أذنت فاجعل أصبعيك في أذنيك فإنه أرفع لصوتك) يعنی کله چی ته اذان کوې.نوخپلي ګوتي په غوږونو کي داخلي کړه.ځکه چی دا طريقه ستا د آواز اوچتونکی ده.
عقلی دليل دا دې چی اعلام او اعلان کوم چی د اذان اصلی مقصود دې.هغه په دی طريقه ښه حاصليږی.اوکه مؤذن داسی اونکړو.نو بيا هم اذان حسن دې.ځکه چی دا عمل د سنن هدی (سنت مؤکده) نه نه دې. بلکه سنت زوائد دې.صاحب د عنايه ليکلی دی چی په دی طريقه اذان حسن دې.او ددی پريخودل حسن نه دی.ځکه چی په وخت د اذان د مؤذن په غوږونو کي ګوتي ورکول اګرچی سنت اصلی نه دې.ځکه عبدالله بن زيد (رضي الله عنه) د هغوی حديث په اذان کي اصل ګڼړلې شی.په هغی کي دا نشته.خو ددی باوجود ددی دا سی حکم دې چی د دي حکم نبی ﷺ بلال (رضي الله عنه) ته کړې وو.نوځکه ددی فعل پريخودلو ته حسن وئيل مناسب نه دی. نوحاصل دا شو چی اذان په دی طريقه احسن دې.اوبغير ددی نه حسن دې.

رسول الله ﷺ د سعد اقرظ (رضي الله عنه) نه علاوه د نبي ﷺ دري موذنين وو. بلال ، عبدالله بن ام مکتوم، ابومحذوره قرظ د سلم پانړو ته وئيلی شي.په کومو چی دباغت ورکولی شي چونکه سعد (رضي الله عنه) ددی کاروبار کولو.نو خکه ورته سعد القرظي وئيلی شي.په عين الهدايه کي ئي ليکلي دی.پکار ده چی موذن نارينه، عاقل، بالغ، صحت مند، متقی، د سنتو نه خبر، د مونخونو د وختونو نه خبر،د اوچت آواز خاوند. او هميشه دپاره پنخه وخته اذان کونکی وی.

***************

## ٣٣_ باب مَا جَاءَ فِي التَّثْوِيبِ فِي الْفَجْرِ

### په سحر کي دتثويب کولو بيان

١٩٨_ حَدَّثَنَا أَحْمَدُ بْنُ مَنِيعٍ، حَدَّثَنَا أَبُو أَحْمَدَ الزُّبَيْرِيُّ، حَدَّثَنَا أَبُو إِسْرَائِيلَ، عَنِ الْحَكَمِ، عَنْ عَبْدِ الرَّحْمَنِ بْنِ أَبِي لَيْلَى، عَنْ بِلَالٍ، قَالَ: قَالَ لِي رَسُولُ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ: "لَا تُثَوِّبَنَّ فِي شَيْءٍ مِنَ الصَّلَوَاتِ إِلَّا فِي صَلَاةِ الْفَجْرِ". قَالَ: وَفِي الْبَابِ عَنْ أَبِي مَحْذُورَةَ. قَالَ أَبُو عِيسَى: حَدِيثُ بِلَالٍ لَا نَعْرِفُهُ إِلَّا مِنْ حَدِيثِ أَبِي إِسْرَائِيلَ الْمُلَائِيِّ، وَأَبُو إِسْرَائِيلَ لَمْ يَسْمَعْ هَذَا الْحَدِيثَ مِنَ الْحَكَمِ بْنِ عُتَيْبَةَ. قَالَ: إِنَّمَا رَوَاهُ عَنِ الْحَسَنِ بْنِ عُمَارَةَ، عَنِ الْحَكَمِ بْنِ عُتَيْبَةَ. وَأَبُو إِسْرَائِيلَ اسْمُهُ: إِسْمَاعِيلُ بْنُ أَبِي إِسْحَاقَ، وَلَيْسَ هُوَ بِذَاكَ الْقَوِيِّ عِنْدَ أَهْلِ الْحَدِيثِ. وَقَدِ اخْتَلَفَ أَهْلُ الْعِلْمِ فِي تَفْسِيرِ التَّثْوِيبِ، فَقَالَ بَعْضُهُمْ: يَقُولَ فِي أَذَانِ الْفَجْرِ الصَّلَاةُ خَيْرٌ مِنَ النَّوْمِ. وَهُوَ قَوْلُ ابْنِ الْمُبَارَكِ، وَأَحْمَدَ. وقَالَ إِسْحَاقُ فِي التَّثْوِيبِ غَيْرَ هَذَا، قَالَ: التَّثْوِيبُ الْمَكْرُوهُ هُوَ شَيْءٌ أَحْدَثَهُ النَّاسُ بَعْدَ النَّبِيِّ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ إِذَا أَذَّنَ الْمُؤَذِّنُ فَاسْتَبْطَأَ الْقَوْمَ. قَالَ: بَيْنَ الْأَذَانِ وَالْإِقَامَةِ قَدْ قَامَتِ الصَّلَاةُ حَيَّ عَلَى الصَّلَاةِ حَيَّ عَلَى الْفَلَاحِ. قَالَ: وَهَذَا الَّذِي قَالَ إِسْحَاقُ: هُوَ التَّثْوِيبُ الَّذِي قَدْ كَرِهَهُ أَهْلُ الْعِلْمِ، وَالَّذِي أَحْدَثُوهُ بَعْدَ النَّبِيِّ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ. وَالَّذِي فَسَّرَ ابْنُ الْمُبَارَكِ، وَأَحْمَدُ أَنَّ التَّثْوِيبَ أَنْ يَقُولَ الْمُؤَذِّنُ فِي أَذَانِ الْفَجْرِ: الصَّلَاةُ خَيْرٌ مِنَ النَّوْمِ. وَهُوَ قَوْلٌ صَحِيحٌ، وَيُقَالُ لَهُ: التَّثْوِيبُ أَيْضًا. وَهُوَ الَّذِي اخْتَارَهُ أَهْلُ الْعِلْمِ. وَرَأَوْهُ وَرُوِيَ عَنْ عَبْدِ اللَّهِ بْنِ عُمَرَ أَنَّهُ كَانَ يَقُولُ فِي صَلَاةِ الْفَجْرِ: الصَّلَاةُ خَيْرٌ مِنَ النَّوْمِ. وَرُوِيَ عَنْ مُجَاهِدٍ، قَالَ: دَخَلْتُ مَعَ عَبْدِ اللَّهِ بْنِ عُمَرَ مَسْجِدًا، وَقَدْ أُذِّنَ فِيهِ وَنَحْنُ نُرِيدُ أَنْ نُصَلِّيَ فِيهِ فَثَوَّبَ الْمُؤَذِّنُ، فَخَرَجَ عَبْدُ اللَّهِ بْنُ عُمَرَ مِنَ

Scanned with

الْمَسْجِدِ. وَقَالَ: اخْرُجْ بِنَا مِنْ عِنْدِ هَذَا الْمُبْتَدِعِ وَلَمْ يُصَلِّ فِيهِ. قَالَ: وَإِنَّمَا كَرِهَ عَبْدُ اللهِ التَّثْوِيبَ الَّذِي أَحْدَثَهُ النَّاسُ بَعْدُ. (1)

**ترجمه**: دبلال رضي الله عنه نه روايت دي فرمائي چي نبي کريم صلي الله عليه وسلم راته اوفرمائيل دسحر نه علاوه په هيڅ يو مونځ کي تثويب مه کوه.

امام ترمذي وائي په دي باب کي دابو محذوره رضي الله عنه نه هم يو روايت مروي دي او دبلال رضي الله عنه حديث مونږ صرف دابو اسرائيل په سند پيژنو او ابو اسرائيل دا حديث دحکم بن عطبه نه نه دي اوريدلي بلکه هغه دحسن بن عماره نه او حسن دحکم بن عطبه نه نقل کړي دي، دابو اسرائيل نوم اسماعيل بن ابي اسحاق دي او دي دمحدثينو په نزد زيات قوي نه دي، اهل علمو دتثويب دتفسير په سلسله کي اختلاف کړي دي دبعضي علماؤ قول دي تثويب دسحر په مونځ کي د "الصلاة خير من النوم" نوم دي دابن مبارك او امام احمد هم دا قول دي، او اسحاق بن راهويه وائي تثويب ددينه علاوه بل شي دي، تثويب مکروه دي او دا يو داسي شي دي کوم چي خلقو درسول الله نه روستو ايجاد کړي دي، کله چي به مؤذن اذان اوکړو او خلقو به تاخير کولو نو هغه به د اذان او اقامت په مينځ کي "قد قامت الصلاة حي علي الصلاة، حي علي الفلاح" وئيل، کوم تفسير چي اسحاق دتثويب بيان کړي دي دا هغه تثويب دي کوم چي داهل علمو خوښ نه دي او همدا تثويب خلقو درسول الله نه پس ايجاد کړي دي، او ابن مبارك او احمد چي کوم تفسير کړي دي چي مؤذن دسحر په اذان کي الصلاة خير من النوم وائي ديته تثويب وئيلي شي نو ددي وئيل صحيح دي او ديته هم تثويب وئيلي شي او يا دا هغه تثويب دي کوم چي اهل علمو خوښ کړي دي او درست يي ګڼړلي دي، دابن عمر رضي الله عنهما نه مروي دي چي هغه به په سحر کي الصلاة خيرمن النوم وئيل، او دمجاهد نه مروي دي چي دعبدالله بن عمر سره يو مسجد ته داخل شو چي اذان پکي شوي وو او مونږ په دي کي مونځ کول غوښتل نو دي دوران کي مؤذن تثويب اوکړو عبدالله بن عمر دمسجد نه بهر راووتلو او ويي وئيل ددي بدعتي نه زماسره روان شه او په دغه مسجد کي يي مونځ اونکړو عبدالله بن عمر هغه تثويب لره کوم چي خلقوايجاد کړي وو خوښ نکړو.

**حل لغات**: "تثويب"تکرارول، مصدر دباب تفعيل دي

**تشريح**: دتثويب لغوی معنی رجوع او واپس کيدل دی.او ثواب هم ددی قبيلي نه دی. ځکه چی سړی ته د خپلوعملونه فائده واپس کيږی. اوهم ددی قبيلي نه"مثابة"دی.ځکه چی خلق به هم هغه طرف ته واپس کيږی. او د شريعت په اصطلاح کي تثويب"الأعلام بعدالإعلام"ته

---

(1) سنن ابن ماجه/الأذان ٣ (٧١٥)، (تحفة الأشراف: ٢٠٢٢)، مسند احمد (٦/١٤، ١٥)

وائی.ملا علی قاری (رحمه الله)فرمائی چی د اذان او اقامت په مینځ کي د اعلان نوم تثویب دي.

## د تثویب حکم

د تثویب دوه قسمونه دی.یو تثویب قدیم"الصلاة خير من النوم"د فخرالاسلام بزدوی (رحمه الله)په نزد صحیح دا ده چی دا د اذان نه پس وو.او په کتاب الآثار کي د امام محمد (رحمه الله)قول هم صراحةً په دی دلالت کوی.خوخلقو دا تثویب په اذان کي د"حی علی الفلاح"نه پس داخل کړو.خوصحیح خبره دا ده. چی دا د"حی علی الفلاح"نه پس په اذان کي داخل وو.لکه څنګه چی په متن کي مذکور دي.او معمول دي.او حدیث چی (يا بلال إجعله في أذانك) اي بلاله! دا په اذان کي شامل کړه. په دی باندي ښکاره دلیل دي.

دویم قسم تثویب محدث دي.تثویب محدث دا دي. چی په اذان او اقامت کي دوه خله"علی الفلاح حی علی الفلاح"یا ددی پشان د خپل عرف مطابق الفاظ اووائی.په دی تثویب کي نه څه مخصوص الفاظ شته.او نه عربی ژبه.نوکه"الصلاة ،الصلاة"اووائی.نودا هم تثویب دي. دغه شان که یو کس دا اووائی چی "مونځ تیار دي"یا"مونځ اودریدلو"یا بل څه لفظ اووائي.نودا هم درست دي.اوکه صرف په ټوخی باندي خلق پوهه شی.نودا هم تثویب دي.حاصل دا چی څنګه په کوم ځائي کي رواج وی.د هغی مطابق دي هلته تثویب کولی شی.

دی تثویب ته محدث ددی وجی وائی چی دا نۀ د نبی ﷺ په زمانه کي وو.اونۀ د صحابه کرامو په زمانه کي.بلکه د تابعینو (رحمه الله)په زمانه کي چی کله د خلقو حالات بدل شو.او خلقو په دینی کارونو کي سستی شروع کړه.نود کوفي اهل علمو دا ایجاد کړو.ګویا چی دا بدعت حسنه دي.بدعت حسنه ددی وجه دي چی متقدمینو او متاخرینو فقهاو دي ته مستحسن وئیلی دی.اومسلمانان چی کوم څیز ته ښه اووائی.هغه د الله په نزد حسن وی.اود الله تعالی رښتیني رسول ﷺ چی څه ته ښه اووائی.نوهغه د الله په نزد ښه وی.اوچی کوم څیز قبیح اوګرځوی.هغه به دالله په نزد هم قبیح وی.لکه رسول الله ﷺچی فرمائیلی دی(ما راه المسلمون حسناً فهو عندالله حسن وما راه المومنون قبيحاً فهو عندالله قبيح)

پاتي شوه دا خبره چی تثویب محدث صرف د سحر په اذان کي جائز دي. اوکه په ټولو مونځونوکي ؟نو په دی کي د متقدمینو فقهاو مسلك دا دي چی صرف په سحر کي جائز دي.په نورو اذانونوکي نه دي.ځکه چی د سحر وخت د خوب او د غفلت وی.

او ددی تائید د ترمذی اوابن ماجه د روایت نه هم کیږی(عن بلال قال أمرني رسول الله ﷺ أن لا أثوب في شئ من الصلاة الا في الفجر) بلال (رضي الله عنه) فرمائی. رسول الله ﷺ ماته حکم کړې وو چې د سحر نه علاوه په بل هیڅ مونځ کي تثویب مه کوه.

## تثویب د متأخرینو اهل علمو (رحمهم الله) په نزد

متاخرینو فقهاؤ فرمائیلی دی چې تثویب محدث په ټولو مونځونو کي جائزدې. په عین الهدایه کي د شرح نقایه په حواله سره لیکلی دی چې د متاخرینو په نزد د مابنام نه علاوه په ټولو کي تثویب مستحب دې، دلیل دا دې چې خلقو په خپلو دینی امورو کي سستی شروع کړې ده.نوچې د سحر په مونځ کي تصویب د خوب د غفلت دوجی جائز شو. نود سستی او په دنیاوی کارونو کي د غفلت د وجی خوبه خامخا جائز وی.امام ابویوسف (رحمه الله)فرمائی.زما په نزد د قاضیانو اوحاکمانو دپاره د سحر نه علاوه په نورو مونځونو کي هم تثویب جائز دې.نوموذن دي د مسلمانانو حاکم ته په دی الفاظو سره تثویب کوی:(السلام علیك أیها الأمیر ورحمة الله وبركاته حي على الصلاة حي على الفلاح الصلاة یرحمك الله)امام محمد (رحمه الله)دا مستبعد ګڼرلی دی.د استبعاد وجه دا ده چې د شریعت په نظر کي ټول برابر دی.که امیروی اوکه د قوم خلق وی. ددی وجی په کي د حاکم څه خصوصیت نشته. قاضی ابویوسف (رحمه الله)دمسلمانانو حاکمانودپاره ددی تثویب تخصیص ځکه کړې دې چې دا خلق د مسلمانانو په کارونوکي زیات مشغول وی.نودوی ته دي اعلان کولی شی چې د دوی نه جماعت فوت نشی. هم دا حکم د هغه ټولو علماودپاره دې چې د مسلمانانو په کارونو کي مشغول وی.لکه مفتی او قاضی.

## د سحر په اذان کي د ''الصلاه خیرمن النوم زیادت

د سحر په اذان کي دي د"حي على الفلاح"نه پس د"الصلاة خير من النوم" زیادت کوی.اودا زیادت مستحب دي دلیل دا دې چې یوه ورځ بلال د سحر اذان اوکړو.او بیا د عائشه رضی الله عنها د حجري دروازي ته راغلو.اوعرض ئې اوکړو ."الصلاة یارسول الله"عائشه رضی الله عنها ورته اوفرمائیل:"الرسول نائم" رسول الله صلي الله علیه وسلم اوده دي.نوبلال اوونیل:"الصلاة خیر من النوم" نو نبي کریم صلي الله علیه وسلم بیدارشو. عائشه رضی الله عنها ورته خبر ورکړو.نبي کریم صلي الله علیه وسلم دا کلمه خوښه کړه. اووي فرمائیل: اي بلال! دا په خپل اذان کي شامله کړه. پاتې شوه دا خبره چې دا زیادت د سحر د مانخه سره ولي خاص شو.نو جواب دا دې چې دا وخت د خوب او د غفلت وی. نوځکه دا زیادت د سحر اذان سره خاص شو.

Scanned with C

## دابو عبدالرحمن بلال بن الحارث المزني رضي الله عنه حالات

نوم بلال كنيه ابو عبدالرحمان دپلار نوم حارث دمزني قبيلي سره تعلق لري دمزنيه قبيلي دوفد سره دهجرت په پنځم كال په دربار نبوت كي حاضر شوى وو او په فتح مكه كي درسول الله صلي الله عليه وسلم سره شريك وو او دمزنيه قبيلي جهنډه يي په لاس كي وه او په اخر كي يي په بصره كي سكونت اختيار كړو دهجرت په شپيتم كال ددي فاني دنيا نه رخصت شو او پدغه وخت كي دده عمر اتيا كاله وو دمروياتو شمير يي اته دى

****************

## ٣٤_ بَاب مَا جَاءَ أَنَّ مَنْ أَذَّنَ فَهُوَ يُقِيمُ

### اذان چي څوك اوكړي اقامت هم دهغه حق دي

١٩٩_ حَدَّثَنَا هَنَّادٌ، حَدَّثَنَا عَبْدَةُ، وَيَعْلَى بْنُ عُبَيْدٍ، عَنْ عَبْدِ الرَّحْمَنِ بْنِ زِيَادِ بْنِ أَنْعُمٍ الأَفْرِيقِيِّ، عَنْ زِيَادِ بْنِ نُعَيْمٍ الحَضْرَمِيِّ، عَنْ زِيَادِ بْنِ الحَارِثِ الصُّدَائِيِّ، قَالَ: أَمَرَنِي رَسُولُ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ أَنْ أُؤَذِّنَ فِي صَلَاةِ الفَجْرِ، فَأَذَّنْتُ فَأَرَادَ بِلَالٌ أَنْ يُقِيمَ، فَقَالَ رَسُولُ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ: " إِنَّ أَخَا صُدَاءٍ قَدْ أَذَّنَ وَمَنْ أَذَّنَ فَهُوَ يُقِيمُ ". قَالَ: وَفِي البَاب عَنْ ابْنِ عُمَرَ. قَالَ أَبُو عِيسَى: وَحَدِيثُ زِيَادٍ إِنَّمَا نَعْرِفُهُ مِنْ حَدِيثِ الأَفْرِيقِيِّ، وَالأَفْرِيقِيُّ هُوَ ضَعِيفٌ عِنْدَ أَهْلِ الحَدِيثِ، ضَعَّفَهُ يَحْيَى بْنُ سَعِيدٍ القَطَّانُ وَغَيْرُهُ، قَالَ أَحْمَدُ: لَا أَكْتُبُ حَدِيثَ الأَفْرِيقِيِّ، قَالَ: وَرَأَيْتُ مُحَمَّدَ بْنَ إِسْمَاعِيل يُقَوِّي أَمْرَهُ وَيَقُولُ: هُوَ مُقَارِبُ الحَدِيثِ، وَالعَمَلُ عَلَى هَذَا عِنْدَ أَكْثَرِ أَهْلِ العِلْمِ أَنَّ مَنْ أَذَّنَ فَهُوَ يُقِيمُ. (١)

**ترجمه** : دزياد بن حارث صدائي بيان دي چي رسول الله صلي الله عليه وسلم ماته دسحر اذان كولو حكم اوكړو او بيا بلال اقامت كول اوغوښتل نو رسول الله صلي الله عليه وسلم اوفرمائيل اذان خو دصداء قبيلي يو كس كړي دي او اذان چي چا كړي وي اقامت به هم هغه كوي.

امام ترمذي وائي په دي باب كي دابن عمر رضي الله عنهما نه هم روايت مروي دي او دزيات روايت مونږ صرف د افريقي په سند پيژنو او افريقي دمحدثينو په نزد ضعيف دي يحيي بن سعيد القطان وغيره دهغه تضعيف كړي دي، امام احمد وائي زه دافريقي حديث نه ليكم ليكن ما محمد بن اسماعيل ليدلي وو چي هغه يي قوي ګرځولي وو او وئيل به يي چي دا

---

[1] سنن ابي داود/ الصلاة ٣٠ (٥١٤) سنن ابن ماجه/الأذان ٣ (٧١٧) (تحفة الأشراف : ٣٦٥٣) مسند احمد (٤/١٦٩).

مقارب الحديث دي، داكثرو اهل علمو هم په دي باندي عمل دي چي اذان څوك اوكړي اقامت به هم هغه كوي

**تشريح** په دي مسئله كي اختلاف دي چي دمؤذن نه علاوه بل څوك اقامت كولي شي او كنه په دي باره كي دوه مذاهب دي

نمبر (۱) دامام ابو حنيفه په نزد اقامت دمؤذن حق دي مگر كه مؤذن صراحتا يا كنايتا اجازت اوكړي نو بيا بل څوك اقامت كولي شي دويم مذهب دامام شافعي دي دهغه په نزد اقامت دمؤذن دپاره واجب دي او دبل چا دپاره اقامت كول مطلقا ناجائز دي.

احنافو په دي باره كي دعبدالله بن ام مكتوم دروايت نه استدلال كړي دي او امام شافعي دحديث الباب نه استدلال كړي دي... والله اعلم.

***************

## ۳۵_ بَاب مَا جَاءَ فِي كَرَاهِيَةِ الأَذَانِ بِغَيْرِ وُضُوءٍ

### داودس نه بغير داذان كولو دكراهت بيان

۲۰۰_ حَدَّثَنَا عَلِيُّ بْنُ حُجْرٍ، حَدَّثَنَا الْوَلِيدُ بْنُ مُسْلِمٍ، عَنْ مُعَاوِيَةَ بْنِ يَحْيَى الصَّدَفِيِّ، عَنْ الزُّهْرِيِّ، عَنْ أَبِي هُرَيْرَةَ، عَنِ النَّبِيِّ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ قَالَ: "لَا يُؤَذِّنُ إِلَّا مُتَوَضِّئٌ".[1]

**ترجمه**: دابوهريره رضي الله عنه نه مروي دي چي نبي كريم صلي الله عليه وسلم اوفرمائيل اذان دي هغه څوك كوي چي اودس يي وي.

**تشريح:** **بغيرد اودس نه د اقامت كراهت**

مسئله بي اودسه اقامت كول مكروه دی.ځكه چی په دی صورت كي په اقامت او مونځ كي فصل لازميږی .حالانكه اقامت د مونځ سره متصل مشروع دې.، امام كرخی (رحمه الله)روايت كړی دی چی اقامت هم بي اودسه مكروه نه دي.ځكه چی اقامت په دوو اذانونو كي يو اذان دي.اواذان بي اودسه مكروه نه دي.نواقامت به هم بي اودسه مكروه نه وی.

رواية كراهة الأذان بغير طهارة امام كرخي (رحمه الله) دا روايت هم كړی دې چی بي اودسه اذان هم مكروه دې.ځكه چی مؤذن د اذان په ذريعه خلقو ته د مانځه د تيارئ حكم وركوی.اوپه خپله ورته دي تيار نه دې.نودي به د الله تعالى ددی قول ﴿ أَتَأْمُرُونَ النَّاسَ بِالْبِرِّ وَتَنْسَوْنَ أَنْفُسَكُمْ ﴾ لاندې راځی.ځكه ونيلی شوی دی چی اذان هم بي اودسه مكروه دې.

---

[1] تفرد المؤلف (تحفة الأشراف : ۱۳۶۰۳)

## د اذان او اقامت دپاره دطهارت حکم

مستحب ده چی اذان او اقامت په اودس کي اوکړې شی.خو که بغیر د اودسه ئې اذان اوکړو.نو د ظاهر روایت مطابق بغیرد کراهت نه جائز دې. دلیل دا دې چی اذان دالله تعالٰی ذکر دې.مونځ نه دې.اود ذکردپاره اودس مستحب دې.واجب نه دې.نوځکه د اذان کولو دپاره اودس مستحب شو. لکه د قرآن لوستلو دپاره چی اودس کول مستحب دي.

امام اوزاعي (رحمه الله)فرمائي.د اذان دپاره اودس کول شرط دې. ځکه چی امام ترمذی (رحمه الله)د ابوهریره (رضي الله عنه) نه نقل کړی دی چی (قال قال رسول الله ﷺ لا يؤذن الا متوضئ) یعنی ابوهریره (رضي الله عنه) فرمائي چی رسول الله ﷺ فرمائیلی دی.اذان دی هغه کس کوی چی په اودس کي وی.خو مونږ وایو چی ددی نه هم استحباب مراد دې.

## په حالت د جنابت کي د اذان حکم

په حالت د جنابت کي اذان کول مکروه دې.اوپه دی کي صرف یو روایت دې.یعنی د کراهت روایت دې.اود عدم کراهت روایت نشته.او وړاندې تیر شو چی د بي اودسه په اذان کي د کراهت او عدم کراهت دواړه روایتونه شته.نود جنب د اذان په کراهت اود محدث د اذان په عدم کراهت کي فرق دا دې چی اذان د مونځ مشابه دې.هغه داسی چی دواړه د تکبیر تحریمي نه شروع کیږی(۲)دواړه مخ په قبله ادا کولی شی(۳)اود اذان کلمات داسی مرتب دی.لکه څنګه چی د مونځ ارکان مرتب دی.دواړه د وخت سره خاص دی (۴) او په ..'.و کي خبري کول ممنوع دی.نو په دی اعتبار سره اذان د مونځ مشابه شو.خو اذان په حقیقت کي مونځ نه دې. حاصل دا شو چی اذان من وجه د مونځ مشابه دی .اومن وجه مشابه نه دې.نو که د مشابهت اعتبار اوکړې شی.نوبکار ده چی اذان بي اودسه ناجائز شی.اود جنابت سره هم ناجائزشی.اوکه دعدم مشابهت اعتبار اوکړې شی.نوپه دواړو صورتونو کي اذان بغیر د کراهته پکار دي چی جائز شی.

نومونږ په دواړو مشابهتینو باندې عمل اوکړو نود جنابت په صورت کي مو د مونځ سره د مشابهت اعتبار اوکړو. اوحکم مو اوکړو چی د اذان دپاره طهارت شرط دې.نو په حالت د جنابت کي اذان کول مکروه دې.اود بي اودسۍ په صورت کي مو د عدم مشابهت اعتبار اوکړو.او حکم مو اوکړو چی د اذان دپاره طهارت شرط نه دې.نو په حالت د بي اودسۍ کي اذان کول مکروه نه دې.امام محمد (رحمه الله)په جامع الصغیر کي فرمائیلی دی.که بغیر اودسه ئې اذان اوکړو.او اقامت ئې اوکړو.نو اذان اواقامت دی نه راګرځوی.اوکه جنب اذان اوکړو.یا ئې اقامت اوکړو.نو زما په نزد اعاده مستحب ده. په شرح طحاوی کي ذکر دی چی د څلورو کسانو د اذان اعاده مستحب ده(۱)د جنب (۲) د ښځی (۳) د نشی په حالت کي (۴) د لیونی.

خوكه جنب د اذان اواقامت اعاده اونكړله.نو بيا هم كافي دي.بهر حال د بي اودسه اذان او اقامت نه راګرخول ددی وجی دی چی بي اودسی سپك نجاست دي.او باقي پاتې شو دويم يعني د جنب اذان او اقامت يعني د جنب اذان او اقامت نو په دی كي دوه روايتونه دی.يو دا چی واپس دي راوګرځوی.اودويم دا چی نه دي راګرځوی.فقاهت سره زيات مشابه دا ده چی د جنب د اذان اعاده دي اوكړې شی.او د اقامت دي نشی راګرځولې.ځكه په اذان كي في الجمله تكرار جائز دي.لكه په جمعه كي چی اذان دوه خله كولی شی.خو په اقامت كي تكرار مشروع نه دي.د صاحب هدايه بيان دی چی د امام محمد دقول (إن لم يعد أجزأه) مراد دا دي چی مونځ كافی دي.ځكه چی مونځ خو بغير د اذان او اقامت نه هم جائز دي.نوبغير د اعاده نه به په درجه اولی سره جائز وی.

****************

۲۰۱ـ حَدَّثَنَا يَحْيَى بْنُ مُوسَى، حَدَّثَنَا عَبْدُ اللَّهِ بْنُ وَهْبٍ، عَنْ يُونُسَ، عَنِ ابْنِ شِهَابٍ، قَالَ: قَالَ أَبُو هُرَيْرَةَ: "لَا يُنَادِي بِالصَّلَاةِ إِلَّا مُتَوَضِّئٌ". قَالَ أَبُو عِيسَى: وَهَذَا أَصَحُّ مِنَ الحَدِيثِ الأَوَّلِ. قَالَ أَبُو عِيسَى: وَحَدِيثُ أَبِي هُرَيْرَةَ لَمْ يَرْفَعْهُ ابْنُ وَهْبٍ، وَهُوَ أَصَحُّ مِنْ حَدِيثِ الوَلِيدِ بْنِ مُسْلِمٍ، وَالزُّهْرِيُّ لَمْ يَسْمَعْ مِنْ أَبِي هُرَيْرَةَ، وَاخْتَلَفَ أَهْلُ العِلْمِ فِي الأَذَانِ عَلَى غَيْرِ وُضُوءٍ، فَكَرِهَهُ بَعْضُ أَهْلِ العِلْمِ، وَبِهِ يَقُولُ الشَّافِعِيُّ، وَإِسْحَاقُ، وَرَخَّصَ فِي ذَلِكَ بَعْضُ أَهْلِ العِلْمِ، وَبِهِ يَقُولُ سُفْيَانُ الثَّوْرِيُّ، وَابْنُ المُبَارَكِ، وَأَحْمَدُ.[1]

**ترجمه** : ابن شهاب زهري وائي ابوهريره رضي الله عنه فرمائيلي دي دمونځ دپاره دي هغه څوك اذان كوي څوك چي په اودس كي وي.

امام ترمذي وائي دا حديث دسابقه حديث نه زيات صحيح دي ، او دابوهريره رضي الله عنه حديث ابن وهب مرفوع نه دي بيان كړي او دا د وليد بن مسلم دحديث نه زيات صحيح دي، زهري دابوهريره رضي الله عنه نه اوريدلي نه دي، بغير اودسه په اذان كولو كي داهل علمو اختلاف دي بعضو مكروه ګنړلي دي او دا دامام شافعي او اسحاق قول هم دي او بعضي اهل علمو په دي سلسله كي رخصت وركړي دي اوددي قول قائل سفيان ثوري او ابن مبارك او امام احمد دي.

**تخريج** :

****************

[1] تفرد المؤلف (تحفة الأشراف : ۱۴۶۰۳)

## ٣٦_ باب مَا جَاءَ أَنَّ الإِمَامَ أَحَقُّ بِالإِقَامَةِ

### تكبير دامام داجازت نه پس شروع کول پکار دي

٢٠٢_ حَدَّثَنَا يَحْيَى بْنُ مُوسَى، حَدَّثَنَا عَبْدُ الرَّزَّاقِ، أَخْبَرَنَا إِسْرَائِيلُ، أَخْبَرَنِي سِمَاكُ بْنُ حَرْبٍ، سَمِعَ جَابِرَ بْنَ سَمُرَةَ، يَقُولُ: "كَانَ مُؤَذِّنُ رَسُولِ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ يُمْهِلُ، فَلَا يُقِيمُ حَتَّى إِذَا رَأَى رَسُولَ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ قَدْ خَرَجَ أَقَامَ الصَّلَاةَ حِينَ يَرَاهُ". قَالَ أَبُو عِيسَى: حَدِيثُ جَابِرِ بْنِ سَمُرَةَ هُوَ حَسَنٌ صَحِيحٌ، وَحَدِيثُ إِسْرَائِيلَ، عَنْ سِمَاكٍ لَا نَعْرِفُهُ إِلَّا مِنْ هَذَا الْوَجْهِ، وَهَكَذَا قَالَ بَعْضُ أَهْلِ الْعِلْمِ: إِنَّ الْمُؤَذِّنَ أَمْلَكُ بِالأَذَانِ وَالإِمَامُ أَمْلَكُ بِالإِقَامَةِ.[1]

**ترجمه:** دجابر بن سمره رضي الله عنه نه مروي دي چي درسول الله صلي الله عليه وسلم مؤذن به تاخير کولو او هغه وخته پوري به يي اقامت نه ونيلو ترڅو چي به يي رسول الله صلي الله عليه وسلم ليدلي نه وو کله چي به رسول الله راووتلو نو ده به اقامت شروع کړو.
امام ترمذي وائي دجابر بن سمره رضي الله عنه حديث حسن صحيح دي، او دا مونږ ته صرف داسرائيل په سند رارسيدلي دي او هغه دسماك نه نقل کړي دي، دا رنګي دبعضي اهل علمو قول دي چي دمؤذن سره داذان زيات اختيار وي او دامام سره داقامت زيات اختيار وي

***************

## ٣٧_ باب مَا جَاءَ فِي الأَذَانِ بِاللَّيْلِ

### دشپې داذان کولو بيان

٢٠٣_ حَدَّثَنَا قُتَيْبَةُ، حَدَّثَنَا اللَّيْثُ، عَنِ ابْنِ شِهَابٍ، عَنْ سَالِمٍ، عَنْ أَبِيهِ، أَنَّ النَّبِيَّ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ قَالَ: "إِنَّ بِلَالًا يُؤَذِّنُ بِلَيْلٍ فَكُلُوا وَاشْرَبُوا حَتَّى تَسْمَعُوا تَأْذِينَ ابْنِ أُمِّ مَكْتُومٍ". قَالَ أَبُو عِيسَى: وَفِي الْبَابِ عَنِ ابْنِ مَسْعُودٍ، وَعَائِشَةَ، وَأُنَيْسَةَ، وَأَنَسٍ، وَأَبِي ذَرٍّ، وَسَمُرَةَ. قَالَ أَبُو عِيسَى: حَدِيثُ ابْنِ عُمَرَ حَسَنٌ صَحِيحٌ، وَقَدِ اخْتَلَفَ أَهْلُ الْعِلْمِ فِي الأَذَانِ بِاللَّيْلِ، فَقَالَ بَعْضُ أَهْلِ الْعِلْمِ: إِذَا أَذَّنَ الْمُؤَذِّنُ بِاللَّيْلِ أَجْزَأَهُ وَلَا يُعِيدُ، وَهُوَ قَوْلُ مَالِكٍ، وَابْنِ الْمُبَارَكِ، وَالشَّافِعِيِّ، وَأَحْمَدَ، وَإِسْحَاقَ، وقَالَ بَعْضُ أَهْلِ الْعِلْمِ: إِذَا أَذَّنَ بِلَيْلٍ أَعَادَ، وَبِهِ يَقُولُ سُفْيَانُ الثَّوْرِيُّ، وَرَوَى حَمَّادُ بْنُ سَلَمَةَ، عَنْ أَيُّوبَ، عَنْ نَافِعٍ، عَنِ ابْنِ عُمَرَ، أَنَّ بِلَالًا أَذَّنَ بِلَيْلٍ، فَأَمَرَهُ النَّبِيُّ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ أَنْ

---

[1] صحيح مسلم /المساجد ٢٩ (٦٠٦) . سنن ابي داود/ الصلاة ٤٤ (٥٣٤) . (تحفة الأشراف : ٢١٣٤) . مسند احمد (٥/٨٦، ٩١، ٩٥، ١٠٣، ١٠٥)

يُنَادِيَ إِنَّ الْعَبْدَ نَامَ. قَالَ أَبُو عِيسَى: هَذَا حَدِيثٌ غَيْرُ مَحْفُوظٍ وَالصَّحِيحُ، مَا رَوَى عُبَيْدُ اللَّهِ بْنُ عُمَرَ وَغَيْرُهُ، عَنْ نَافِعٍ، عَنِ ابْنِ عُمَرَ، أَنَّ النَّبِيَّ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ قَالَ: " إِنَّ بِلَالًا يُؤَذِّنُ بِلَيْلٍ فَكُلُوا وَاشْرَبُوا حَتَّى يُؤَذِّنَ ابْنُ أُمِّ مَكْتُومٍ ". وَرَوَى عَبْدُ الْعَزِيزِ بْنُ أَبِي رَوَّادٍ، عَنْ نَافِعٍ، أَنَّ مُؤَذِّنًا لِعُمَرَ أَذَّنَ بِلَيْلٍ، فَأَمَرَهُ عُمَرُ أَنْ يُعِيدَ الْأَذَانَ، وَهَذَا لَا يَصِحُّ أَيْضًا، لِأَنَّهُ عَنْ نَافِعٍ، عَنْ عُمَرَ مُنْقَطِعٌ، وَلَعَلَّ حَمَّادَ بْنَ سَلَمَةَ أَرَادَ هَذَا الْحَدِيثَ، وَالصَّحِيحُ رِوَايَةُ عُبَيْدِ اللَّهِ وَغَيْرِ وَاحِدٍ، عَنْ نَافِعٍ، عَنِ ابْنِ عُمَرَ، وَالزُّهْرِيِّ، عَنْ سَالِمٍ، عَنِ ابْنِ عُمَرَ، أَنَّ النَّبِيَّ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ قَالَ: " إِنَّ بِلَالًا يُؤَذِّنُ بِلَيْلٍ ". قَالَ أَبُو عِيسَى: وَلَوْ كَانَ حَدِيثُ حَمَّادٍ صَحِيحًا لَمْ يَكُنْ لِهَذَا الْحَدِيثِ مَعْنًى، إِذْ قَالَ رَسُولُ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ: " إِنَّ بِلَالًا يُؤَذِّنُ بِلَيْلٍ ". فَإِنَّمَا أَمَرَهُمْ فِيمَا يُسْتَقْبَلُ، وَقَالَ: إِنَّ بِلَالًا يُؤَذِّنُ بِلَيْلٍ، وَلَوْ أَنَّهُ أَمَرَهُ بِإِعَادَةِ الْأَذَانِ حِينَ أَذَّنَ قَبْلَ طُلُوعِ الْفَجْرِ لَمْ يَقُلْ إِنَّ بِلَالًا يُؤَذِّنُ بِلَيْلٍ، قَالَ عَلِيُّ بْنُ الْمَدِينِيِّ: حَدِيثُ حَمَّادِ بْنِ سَلَمَةَ، عَنْ أَيُّوبَ، عَنْ نَافِعٍ، عَنِ ابْنِ عُمَرَ، عَنِ النَّبِيِّ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ هُوَ غَيْرُ مَحْفُوظٍ، وَأَخْطَأَ فِيهِ حَمَّادُ بْنُ سَلَمَةَ. (1)

**ترجمه** دعبدالله بن عمر رضي الله عنهما نه مروي دي چي نبي كريم صلي الله عليه وسلم فرمائيلي دي بلال دشپي اذان كوي لهذا تاسو خوړل څكل جاري ساتئ چي څو پوري مو دابن ام مكتوم اذان اوريدلي نه وي.

امام ترمذي وائي په دي باب كي دابن مسعود، عائشه، انيسه، انس، ابوذر، او سمره رضي الله عنهم نه هم احاديث وارد دي، دابن ع ـ رضي الله عنه حديث حسن صحيح دي، دشپي په اذان كولو كي داهل علمو اختلاف دي دبعضو قول دي كچري شپه باقي وي او مؤذن اذان اوكړي نو دا كافي دي او راګرځولو ته يي ضرورت نشته دامام مالك، ابن مبارك شافعي، حمد . او اسحاق هم دا قول دي مګر بعضي اهل علم وائي چي كله څوك دشپي اذان اوكړي دسحر دپاره نو دا به راګرځولي شي او دا دسفيان ثوري قول دي، حماد بن سلمه په سند دايوب عن نافع، عن ابن عمر روايت نقل كړي دي چي بلال رضي الله عنه خاص په شپه كي اذان اوكړو نو نبي كريم صلي الله عليه وسلم ورته حكم اوكړو چي په چغه اعلان اوكړي چي زه اوده شوي وم. دا حديث غير محفوظ دي صحيح روايت هغه دي كوم چي عبدالله بن عمر وغيره نه

---

1 صحيح البخارى/الأذان ١٣ (٦٢٠) . والصوم ١٧ (١٩١٨) . والشهادات ١١ (٢٦٥٦) . وأخبار الآحاد ١ (٧٢٤٨) . صحيح مسلم/الصوم ٨ (١٠٩٢) . سنن النسائى/الأذان ٩ (٨٣٨) . (تحفة الأشراف : ٢٠٩٠٩) . موطا امام مالک/الصلاة ٣ (١٤) . مسند احمد (٩/٢، ٥٧، ١٢٣) . سنن الدارمى/الصلاة ٤ (١٢٢٦)

په سند دنافع مروي دي چې رسول الله صلي الله عليه وسلم فرمائيلي دي دبلال اذان خاص دشپې وي لهذا تاسو خوراك څښاك مه پريږدئ چې څو پورې مو دابن ام مكتوم اذان اوريدلي نه وي، او عبدالعزيز بن ابي رواد دنافع نه روايت كړي دي چې دعمر رضي الله عنه مؤذن خاص دشپې اذان اوكړو نو اميرالمؤمنين ورته حكم اوكړو چې اذان راوګرځوي داروايت هم صحيح نه دي ځكه چې دنافع او عمر په مينځ كې انقطاع ده او شايد دحماد بن سلمه مراد همدا حديث وي، صحيح روايت دعبيدالله بن عمر دي دنورو راويانو په روايت سره كوم چې هغوئ دنافع نه نقل كړي دي او نافع دابن عمر نه او زهري دسالم نه او سالم دابن عمر نه چې نبي كريم صلي الله عليه وسلم فرمائيلي دي بلال اكثر دشپې اذان كوي، كه دحماد څه حديث صحيح وي نو بيا به ددې حديث څه معني نه وه په كوم كې چې داسې راغلي دي چې رسول الله صلي الله عليه وسلم فرمائيلي دي بلال دسحر دپاره اكثر دشپې اذان كوي، رسول الله خلقو ته دراتلونكي زماني باره كې حكم اوكړو او ويې فرمائيل چې بلال خاص دشپې اذان كوي او كه رسول الله دطلوع فجر نه مخكې داذان كولو په وجه هغه ته داذان راګرځولو حكم كړي وي نو دا به يې نه فرمائيل چې بلال دشپې اذان كوي، دعلي بن مديني قول دي چې دحماد بن سلمه حديث كوم چې دابو ايوب نه او ابو ايوب دنافع نه او نافع دابن عمر نه او ابن عمر دنبي كريم صلي الله عليه وسلم نه نقل كړي دي دا روايت غير محفوظ دي دحماد بن سلمه نه په دې كې هيريدل شوي دي.

**تشريح:** په دې مسئله كې اختلاف دي كچرې اذان دوخت نه مخكې اوشي نو ايا دا به كافي وي او كنه په دې باره كې دوه مذاهب دي دامام ابو حنيفه په نزد دا اذان كفايت نه كوي او اعاده به يې واجب وي او په دې مسئله كې امام صاحب په ابوداود كې دبلال رضي الله عنه دحديث نه استدلال كوي "لاتؤذن حتي تستبين لك الفجر هكذا ومديديه عرضاً" اودويم دليل يې ددې باب دعبدالله بن عمر روايت دي.

دويم مذهب په دې باره كې دائمه ثلاثه دي هغوئ وائي كه اذان قبل الوقت اوشي نو جائز دي او اعاده يې ضروري نه ده او ددې دپاره دحديث الباب نه استدلال كوي.

## دسالم بن عبدالله بن عمر حالات

دا دعبدالله بن عمر خوي دى په دې دټولو اتفاق دى چې دى دعمر رضي الله عنه په ټول اولاد كې دهغه سره زيات مشابه وو او دعبدالله په اولاد كې هم دهغه سره زيات مشابه دي (ابن سعد).

علامه ذهبي وائي سالم فقيه او حجت وو او دمخصوص علماؤ دجملې نه وو دهغه ذات علم او عمل دواړو لره جمع كونكى وو امام نووي ليكلي دي دسالم په امامت او زهد او تقوي باندې

په تمام امت اتفاق دی.

په حديث کي ډير مشهور وو دعلم حديث علم يې دابوهريره ، ابو ايوب انصاري او عائشه رضي الله عنها نه حاصل کړی وو او په همدي وجه ابن سعد ليکلي دي چې سالم دکثير الحديث او عالي مرتبي خلقو دجملي نه وو سالم دمديني په فقهاء سبع کي وو اعلام الموقعين

امام مالك دده په باره کي ليکلي دي چې په سلف صالحينو کي په زهد او تقوي کي دده سره مشابه هيڅوك نه وو (تذكرة الحفاظ).

يو څو صفات په ده کي زيات سرګند وو اول ډير احتياط کول. دويم دبادشاهانو چاپلوسي نه کول، او دمسلمانان دوينو عزت کول

وفات: دهجرت په ۱۰۷ کال په مدينه کي وفات شو هشام بن عبدالملك ورباندي جنازه اوکړه (تهذيب التهذيب).

****************

## ٣٨_ بَاب مَا جَاءَ فِي كَرَاهِيَةِ الْخُرُوجِ مِنَ الْمَسْجِدِ بَعْدَ الأَذَانِ

### داذان نه پس د مسجد نه د وتلو د کراهت بيان

٢٠٤_ حَدَّثَنَا هَنَّادٌ، حَدَّثَنَا وَكِيعٌ، عَنْ سُفْيَانَ، عَنْ إِبْرَاهِيمَ بْنِ الْمُهَاجِرِ، عَنْ أَبِي الشَّعْثَاءِ، قَالَ: خَرَجَ رَجُلٌ مِنَ الْمَسْجِدِ بَعْدَ مَا أُذِّنَ فِيهِ بِالْعَصْرِ، فَقَالَ أَبُو هُرَيْرَةَ: أَمَّا هَذَا فَقَدْ عَصَى أَبَا الْقَاسِمِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ. قَالَ أَبُو عِيسَى: وَفِي الْبَاب عَنْ عُثْمَانَ. قَالَ أَبُو عِيسَى: حَدِيثُ أَبِي هُرَيْرَةَ حَسَنٌ صَحِيحٌ. وَعَلَى هَذَا الْعَمَلُ عِنْدَ أَهْلِ الْعِلْمِ مِنْ أَصْحَابِ النَّبِيِّ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ، وَمَنْ بَعْدَهُمْ أَنْ لَا يَخْرُجَ أَحَدٌ مِنَ الْمَسْجِدِ بَعْدَ الأَذَانِ إِلَّا مِنْ عُذْرٍ أَنْ يَكُونَ عَلَى غَيْرِ وُضُوءٍ أَوْ أَمْرٍ لَا بُدَّ مِنْهُ. وَيُرْوَى عَنْ إِبْرَاهِيمَ النَّخَعِيِّ، أَنَّهُ قَالَ: يَخْرُجُ مَا لَمْ يَأْخُذِ الْمُؤَذِّنُ فِي الإِقَامَةِ. قَالَ أَبُو عِيسَى: وَهَذَا عِنْدَنَا لِمَنْ لَهُ عُذْرٌ فِي الْخُرُوجِ مِنْهُ. وَأَبُو الشَّعْثَاءِ اسْمُهُ: سُلَيْمُ بْنُ أَسْوَدَ وَهُوَ وَالِدُ أَشْعَثَ بْنِ أَبِي الشَّعْثَاءِ، وَقَدْ رَوَى أَشْعَثُ بْنُ أَبِي الشَّعْثَاءِ هَذَا الْحَدِيثَ عَنْ أَبِيهِ. [1]

---

[1] صحيح مسلم /المساجد ٣٥ (٦٥٥) . سنن ابي داود/ الصلاة ٤٣ (٥٣٦) . سنن النسائي/الأذان ٤٠ (٦٨٥) . سنن ابن ماجه/الأذان ٤ (٧٣٣) . (تحفة الأشراف : ١٣٤٤٧) مسند احمد (٢/٤١٠، ٤١٦، ٤١٧، ٥٠٦، ٥٣٧) سنن الدارمي/الصلاة ١٢ (١٢٤١) (حسن صحيح)

**ترجمه**: دابو الشعثاء بن اسود نه مروي دي چي يو کس په مسجد کي دمازيگر داذان کيدو نه پس دمسجد نه اووتلو نو ابوهريره رضي الله عنه اوفرمائيل دي کس خو دابو القاسم صلي الله عليه وسلم نافرماني اوکره.

امام ترمذي وائي دابوهريره حديث حسن صحيح دي، او په دي باب کي دعثمان رضي الله عنه نه هم روايت مروي دي، دصحابه کرامو اوددوئ نه په پس خلقو کي داهل علمو په دي باندي عمل دي چي داذان کيدو نه پس بغير دکوم عذر نه مثلا اودس کول يا کوم سخت ضرورت راشي دکوم نه بغير چي څه چاره نه وي دمسجد نه وتل ممنوع دي، دابراهيم نخعي نه مروي دي چي څو پوري مؤذن اقامت شروع کري نه وي ترهغي پوري بهر وتلي شي، زمونږ په نزد داحکم دهغه چا دپاره دي دچا سره چي دوتلو دپاره کوم عذر موجود وي.

**حل لغات**: المؤذن: اذَّن يؤذِّن تاذيناً د باب تفعيل نه اسم فاعل دي معني يي اذان کونکي.

**تشريح**: دعربو حالت زمونږ دحالاتو نه مختلف دي هلته داذان او اقامت مينځ کي مختصر وقفه کيږي، نيمه گينټه فاصله نه وي پس څوك چي د اذان نه پس دمسجد نه اوځي دهغه باره کي خلق بدگماني کوي چي دي ولي دمسجد نه روان شو شايد مونځ به نه کوي او يا په دي امام پسي مونځ نه کوي نو په دي وجه دهغه په باره کي خلق د تارك الصلاة گمان کوي او نبي کريم صلي الله عليه وسلم فرمائيلي دي "اتقوا مواضع التهم" نو په دي وجه د اذان نه پس دمسجد نه وتل ممنوع دي البته دضرورت وخت کي وتل جائز دي خکه چي په ضرورت خلق پوهيږي او په دي وجه ورباندي بدگماني نه کوي دارنگي د اودس دپاره يا داستنجاء دپاره هم تلي شي خکه چي دي صورت کي هم بدگماني نشي کيدي او چي کله ضرورت ختم شو واپس دي راشي بدگماني به ختمه شي مگر زمونږ په ديارو کي د اذان نه پس دمسجد نه دوتلو دپاره گنجائش وي چي څو پوري دخلقو دمونځ دپاره راتلل شروع شوي نه دي خکه چي دغه وخته پوري څوك بدگماني کونکي په مسجد کي موجود نه وي.

### دابوالشعثاء حالات

نوم سليم دپلار نوم اسود کنيه ابو الشعثاء، جليل القدر تابعي دي، دثقاتو راويانو دجملي نه دي، اکثر علم يي دابو هريره رضي الله عنه نه نقل کري دي.

***************

## ٣٩_بَاب مَا جَاءَ فِي الأَذَانِ فِي السَّفَرِ

### په سفر کي د اذان کولو بيان

٢٠٥ـ حَدَّثَنَا مَحْمُودُ بْنُ غَيْلَانَ، حَدَّثَنَا وَكِيعٌ، عَنْ سُفْيَانَ، عَنْ خَالِدٍ الْحَذَّاءِ، عَنْ أَبِي قِلَابَةَ، عَنْ مَالِكِ بْنِ الْحُوَيْرِثِ، قَالَ: قَدِمْتُ عَلَى رَسُولِ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ أَنَا وَابْنُ عَمٍّ لِي، فَقَالَ لَنَا: " إِذَا سَافَرْتُمَا فَأَذِّنَا وَأَقِيمَا وَلْيَؤُمَّكُمَا أَكْبَرُكُمَا ". قَالَ أَبُو عِيسَى: هَذَا حَسَنٌ صَحِيحٌ، وَالْعَمَلُ عَلَيْهِ عِنْدَ أَكْثَرِ أَهْلِ الْعِلْمِ اخْتَارُوا الْأَذَانَ فِي السَّفَرِ، وقَالَ بَعْضُهُمْ: تُجْزِئُ الْإِقَامَةُ إِنَّمَا الْأَذَانُ عَلَى مَنْ يُرِيدُ أَنْ يَجْمَعَ النَّاسَ، وَالْقَوْلُ الْأَوَّلُ أَصَحُّ، وَبِهِ يَقُولُ أَحْمَدُ، وَإِسْحَاقُ. (١)

**ترجمه**: دمالك بن حويرث رضي الله عنه نه مروي دي چي زه اوزما دتره خوي رسول الله صلي الله عليه وسلم په خدمت کي حاضر شونو مونږ ته يي اوفرمانيل خو پوري چي تاسو دواړه په سفر کي يئ اذان او اقامت به کوئ او امامت به هغه څوك ورکوي څوك چي په تاسو کي مشر وي.

امام ترمذي واني دا حديث حسن صحيح دي او داکثرو اهل علمو په دي باندي عمل دي دوئ په سفر کي اذان کول خوښ کړي دي، او بعضي اهل علم واني صرف اقامت کافي دي او اذان خو ددي دپاره وي چاچي دخلقو راجمع کولو اراده کړي وي ليکن اولني قول زيات صحيح دي او دا دامام احمد او اسحاق بن راهويه قول هم دي

**تشريح** **دمسافر دپاره د اذان اواقامت حکم**

که مسافردپاره اذان اواقامت دواړه کول پکار دی دليل دا دې.نبی ﷺ د ابومليکه دوو خامنو ته فرمانيلی وو (إذا سافرتما فأذنا وأقيما) صاحب دنهايه ليکلی دی چی په مبسوط کي دا حديث د ابومليکه د دوو خامنو نه علاوه په خطاب سره هم موجود دي (وقال روی عن النبي صلي الله عليه وسلم أنه قال لمالك ابن الحويرث وإبن عم له رضی الله عنهما إذا سافرتما فأذنا وأقيما وليؤمكما أكثركم قرانا .وروی فخرالاسلام وليؤمكما أكبركما سناً) د نبی ﷺ نه روايت دې چی دوی مالك بن حويرث او دهغه د تره خوی ته فرمانيلی وو. کله چی تاسو په سفر ئي.نواذان او اقامت کوئ.او په تاسو دواړو کي دي امامت هغه څوك کوی چی قرآن ئي زيات وئيلی وی.او فخرالاسلام روايت کړي دې. چی امامت دي هغه څوك کوی چی په تاسو کي مشر وی.په

---

(١) صحيح البخاری/الأذان ١٧ (٦٢٨) ، و٣٥ (٦٥٨) ، و٤٩ (٦٨٥) ، و١٤٠ (٨١٩) . والجهاد ٤٢ (٢٨٤٨) . والأدب ٢٧ (٢٠٠٨) . وأخبار الآحاد ١ (٧٢٤٦) . صحيح مسلم/المساجد ٥٣ (٦٧٤) . سنن ابي داود/ الصلاة ٦١ (٥٨٩) . سنن النسائي/الأذان ٧ (٦٣٥) . و٨ (٦٣٦) . و٢٩ (٦٧٠) . والإمامة ٤ (٧٨٣) . سنن ابن ماجه/الإقامة ٤٦ (تحفة الأشراف : ١١١٨٢) . مسند احمد (٣/٤٣٦) . و (٥/٥٣) . سنن الدارمی/الصلاة ٤٢ (١٢٨٨)

ابوداود اونسائی کي دی (يعجب ربك من راعي غنم في رأس شظية يؤذن بالصلاة ويصلي فيقول الله عزوجل أنظروا إلى عبدی هذا يؤذن ويقيم لصلاة ويخاف مني قد غفرت لعبدی وأدخلته الجنة) يعني ستا رب خوښوی چی د ګډو څرونکی د غرپه سوکه اذان کوی. او اقامت کوی.او مونځ کوی.نوالله تعالی فرمائی.زما دي بنده ته اوګورئ چی اذان کوی. اقامت کوی.اومونځ کوی.زما نه ویریږی.ما خپل بنده اوبښلو.اوجنت ته مي داخل کړو.

د سلمان فارسی (رضي الله عنه) نه روایت دې. (قال قال رسول الله ﷺ إذا كان الرجل بأرض فلاة فحانت الصلاة فليتوضأ فإن لم يجد ماءً فليتيمم فإن أقام صلى معه ملكان وإن أذن وأقام صلى خلفه جنود الله مالا يرى طرفاه) رواه عبدالرزاق) يعني د سلمان فارسی (رضي الله عنه) نه مرفوعاً روايت دې چی يوسړې په بيابان کي يواځي وی.د مونځ وخت پري راشی.نواودس اوکړی.اوکه اوبه نه مومی.نوتيمم اوکړی.بيا که اقامت ئې اوکړو.نو دوه فرښتی د هغه سره مونځ کوی.اوکه ده اذان اوکړو. او اقامت ئې اوکړو.نودده شاه ته دالله تعالی په لښکرو کي دومره تعداد کي مونځ کوی چی د هغی طرفونه به ده ته په نظر نه راځی.

ددی احاديثو نه معلومه شوه چی د اذان مقصد صرف دا نه دې چی مؤذن خلقو ته د حاضرئ اعلان اوکړی.بلکه دا هم دې چی دالله تعالی نوم او دهغه دين په زمکه کي اوچت شی.اوپه غرونو او بيابانونوکې د هغه په بندګانو کي جناتو اوانسانانو وغيره ته دالله تعالی يادګيرنه اوکړی چی مؤذن ئې په خپل نظر نه وينی.فرمائی چی مسافر که اذان او اقامت دواړه پريخودل.نودا مکروه دې.ځکه چی د مالك بن حويرث (رضي الله عنه) د حديث مخالفت دې.اوکه اقامت ئې اوکړو.او اذان ئې پريخودلو.نودا جائزده، بياکه په ښار کي په کور کي دننه مونځ کوی.نو هم دی د اذان اواقامت سره کوی.که ځان ته مونځ کوی.اوکه جماعت سره کوی. ددی دپاره چی مونځ په ښه شان سره اوکړی.اوکه دواړه ئې پريخودل . نو بيا هم جائز ده.

يو ځل عبدالله بن مسعود (رضي الله عنه) علقمه او اسود ته بغير د اذان او اقامت نه مونځ اوکړو.چا عبدالله بن مسعود (رضي الله عنه) ته اووئيل: تاسو خو نه اذان اوکړو.اونه اقامت؟

نو هغوی ورته اوفرمائيل: (أذان الحي يكفينا) د محلي اذان زمونږ دپاره کافی دې.

ددی وجه دا ده چی مؤذن په اذان او اقامت کي د محلي د خلقو دطرفه نائب وی.ځکه چی دمحلي خلقو دي ددی کار دپاره مقرر کړې وی.نوکوم کس چی حقيقةً په محله کي بغير داذان او اقامت نه مونځ کوی.نوهغه حکماً د اذان او اقامت سره مونځ کونکی دې. نوځکه په دی کي څه کراهت نشته.د دي په خلاف چی کله مسافر بغير د اذان او اقامت نه ځان ته مونځ اوکړی.هغه په حقيقت کي دا دواړه (اذان او اقامت) پريخودل. نودي په حقيقت کي هم

د جماعت پريخودنکی شو.اوتشبهاً هم.اوځنګه چې د جماعت مونځ پريخودل مکروه دی.نو دغه شان تشابه بالجماعت پريخودل هم مکروه ده.

**دابوسليمان مالك بن حويرث رضي الله عنه حالات:**

نوم مالك كنيه ابوسليمان دپلار نوم حويرث قبيله ليس، مالك درسول الله صلي الله عليه وسلم په خدمت كي حاضر شو او شل ورځي قيام يي اوكړو او بيا په بصره كي مقيم شو په ۹۴هجري كي په بصره كي وفات شو او ۱۵ روايات ورنه مروي دي چي دوه په كي متفق عليه دي او يو صرف په بخاري كي دي.

***************

## ٤٠ـ باب مَا جَاءَ فِي فَضْلِ الأَذَانِ

**داذان دفضيلت بيان**

**٢٠٦ـ حَدَّثَنَا مُحَمَّدُ بْنُ حُمَيْدٍ الرَّازِيُّ، حَدَّثَنَا أَبُو تُمَيْلَةَ، حَدَّثَنَا أَبُو حَمْزَةَ، عَنْ جَابِرٍ، عَنْ مُجَاهِدٍ، عَنْ ابْنِ عَبَّاسٍ، أَنَّ النَّبِيَّ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ قَالَ: "مَنْ أَذَّنَ سَبْعَ سِنِينَ مُحْتَسِبًا كُتِبَتْ لَهُ بَرَاءَةٌ مِنَ النَّارِ". قَالَ أَبُو عِيسَى: وَفِي البَابِ عَنْ عَبْدِ اللهِ بْنِ مَسْعُودٍ، وَثَوْبَانَ، وَمُعَاوِيَةَ، وَأَنَسٍ، وَأَبِي هُرَيْرَةَ، وَأَبِي سَعِيدٍ. قَالَ أَبُو عِيسَى: حَدِيثُ ابْنِ عَبَّاسٍ غَرِيبٌ، وَأَبُو تُمَيْلَةَ اسْمُهُ: يَحْيَى بْنُ وَاضِحٍ، وَأَبُو حَمْزَةَ السُّكَّرِيُّ اسْمُهُ: مُحَمَّدُ بْنُ مَيْمُونٍ، وَجَابِرُ بْنُ يَزِيدَ الْجُعْفِيُّ، ضَعَّفُوهُ تَرَكَهُ يَحْيَى بْنُ سَعِيدٍ، وَعَبْدُ الرَّحْمَنِ بْنُ مَهْدِيٍّ. قَالَ أَبُو عِيسَى: سَمِعْتُ الجَارُودَ، يَقُولُ: سَمِعْتُ وَكِيعًا يَقُولُ: لَوْلَا جَابِرٌ الْجُعْفِيُّ لَكَانَ أَهْلُ الْكُوفَةِ بِغَيْرِ حَدِيثٍ، وَلَوْلَا حَمَّادٌ لَكَانَ أَهْلُ الْكُوفَةِ بِغَيْرِ فِقْهٍ.**[1]

**ترجمه** دابن عباس رضي الله عنهما نه مروي دي چي نبي كريم صلي الله عليه وسلم فرمائيلي دي څوك چي اوه كالو پوري دثواب په نيت اذان اوكړي نو دده دپاره به دجهنم داور نه نجات اوليكلي شي، امام ترمذي وائي د ابن عباس حديث غريب دي، او په دي باب كي دعبدالله ابن مسعود، ثوبان، معاويه، انس، ابوهريره، او ابوسعيد خدري رضي الله عنهم نه هم احاديث مروي دي او اهل علمو د جابر بن يزيد جعفي تضعيف كړي دي او يحيي بن سعيد او عبدالرحمن مهدي متروك ګرځولي دي،امام ترمذي وايي ما اوريدلي دي د جارود نه چي ونيل يي ما اوريدلي دي دوكيع نه چي ونيل يي كه جابر جعفي نه وي نو اهل كوفه به دحديث نه بغير وي او كه حماد نه وي نو اهل كوفه به دفقهي نه بغير وي.

---

[1] سنن ابن ماجه/الأذان ٥ (٧٢٧)، (تحفة الأشراف: ٦٣٨١).

Scanned with C

**تشريح : د اذان اهميت او فضيلت**

اذان د الله تعالى په ذكرونو كي يو ډيراوچت ذكر دي.په دى كي د توحيد او رسالت دګواهۍ اعلان كولى شى.اوپه دى باندې د اسلام شان او شوكت ښكاره كيږى.په ډيرو حديثونو كي د اذان فضيلت راغلى دي.

(١) د اذان آواز چى ترڅومره پورې رسى.اوكوم كسان دا اورى.كه جنات وى اوكه انسانان د قيامت په ورځ به د موذن دپاره دايمان ګواهى وركوى (بخارى،نسائى، ابن ماجه)

(٢) دالله تعالى د ريښتينى پيغمبرﷺ وينا ده چى د پيغمبرانو عليهم السلام او شهيدانو نه به پس موذنان جنت ته داخليږى .او په بعضي احاديثو كي دا هم دى چى د موذن مرتبه د شهيد برابر ده.

(٣) عبدالله وئيلى دى.كوم كس چى اووه كالو پورې اذان اوكړو.اوپه دى باندې دده غرض صرف ثواب وو.نودهغه دپاره د د وزخ نه آزادى اوليكلى شى(ابوداود ،ترمذى)

(٤ نبي كريم صلي الله عليه وسلم فرمائيلى دى.كه خلقو ته معلومه شى. چى په اذان كي څومره زيات ثواب دي.اوبيا ورتهٔ دا منصب د قرعه اندازئ نه بغير نه ملاويږى. نو بيشكه ددى دپاره به قرعه اندازى واچوى.خلاصه دا چى ددى منصب دپاره به ډير كوشش كوى (بخارى ،مسلم ،ترمذى، نسائى) د صحابه كرامو په زمانه كي داسى شوې وو چى د اذان په كولو كي په خلقو كي اختلاف پيدا شو. هركس غوښتل چى دا مبارك منصب ماته نصيب شى.تردى چى قرعه اندازئ ته خبره اورسيدله (تاريخ بخارى)

(٥) رسول الله صلي الله عليه وسلم فرمائيلى دى.د قيامت په ورځ به درى قسمه خلق د مشكو په ډيرو ولاړ وى.نه به پري حساب وى.اونه به حيران او پريشان وى(١)يوهغه كس چى د الله تعالى د رضا دپاره ئې قران لوستلي وى(٢) دويم هغه كس چى د غلامئ په عذاب كي اخته وى.خو بيا هم دآخرت نه غافله نه وى(٣) دريم موذن (المرشد الامين)

(٦) دقيامت په ورځ به موذنينو ته هم د شفاعت كولو اجازت اوشى.اوهغوى به د خپلو خپلوانو اودوستانو يا د چا دپاره چى ئې خوښه وى. الله تعالى ته شفارس كوى.

(٧) داذان په وخت په شيطان ډيره ويره اوهيبت وى. او د ډيرى وارخطائې نه تختى.تركومى پورې چى د موذان آواز رسى.هلته نه ايساريږى . (بخارى ،مسلم)

(٨) د قيامت په ورځ به د اذان كونكو څټونه غړئ اوږدى وى.يعنى دوى به په ډيرو عزتمندو او اوچتو خلقو كي وى.اودقيامت د ويري او مصيبت نه به محفوظ وى.

(٩ په كوم ځائې باندې چى اذان كولى شى.هلته د الله تعالى رحمت نازليږى.د عذاب اومصيبتونونه هغه ځائې محفوظ وى.

***************

## ٤١_ باب مَا جَاءَ أَنَّ الإِمَامَ ضَامِنٌ وَالمُؤَذِّنَ مُؤْتَمَنٌ

### امام ضامن دي او مؤذن امين دي

٢٠٧_ حَدَّثَنَا هَنَّادٌ، حَدَّثَنَا أَبُو الأَحْوَصِ، وَأَبُو مُعَاوِيَةَ، عَنِ الأَعْمَشِ، عَنْ أَبِي صَالِحٍ، عَنْ أَبِي هُرَيْرَةَ، قَالَ: قَالَ رَسُولُ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ: "الإِمَامُ ضَامِنٌ وَالمُؤَذِّنُ مُؤْتَمَنٌ، اللَّهُمَّ أَرْشِدِ الأَئِمَّةَ وَاغْفِرْ لِلْمُؤَذِّنِينَ". قَالَ أَبُو عِيسَى: وَفِي البَابِ عَنْ عَائِشَةَ، وَسَهْلِ بْنِ سَعْدٍ، وَعُقْبَةَ بْنِ عَامِرٍ. قَالَ أَبُو عِيسَى: حَدِيثُ أَبِي هُرَيْرَةَ، رَوَاهُ سُفْيَانُ الثَّوْرِيُّ، وَحَفْصُ بْنُ غِيَاثٍ، وَغَيْرُ وَاحِدٍ، عَنِ الأَعْمَشِ، عَنْ أَبِي صَالِحٍ، عَنْ أَبِي هُرَيْرَةَ، عَنِ النَّبِيِّ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ. وَرَوَى أَسْبَاطُ بْنُ مُحَمَّدٍ، عَنِ الأَعْمَشِ، قَالَ: حُدِّثْتُ عَنْ أَبِي صَالِحٍ، عَنْ أَبِي هُرَيْرَةَ، عَنِ النَّبِيِّ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ. وَرَوَى نَافِعُ بْنُ سُلَيْمَانَ، عَنْ مُحَمَّدِ بْنِ أَبِي صَالِحٍ، عَنْ أَبِيهِ، عَنْ عَائِشَةَ، عَنِ النَّبِيِّ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ هَذَا الحَدِيثَ. قَالَ أَبُو عِيسَى: وسَمِعْت أَبَا زُرْعَةَ، يَقُولُ: حَدِيثُ أَبِي صَالِحٍ، عَنْ أَبِي هُرَيْرَةَ أَصَحُّ مِنْ حَدِيثِ أَبِي صَالِحٍ، عَنْ عَائِشَةَ. قَالَ أَبُو عِيسَى: وسَمِعْت مُحَمَّدًا، يَقُولُ: حَدِيثُ أَبِي صَالِحٍ، عَنْ عَائِشَةَ أَصَحُّ، وَذَكَرَ عَنْ عَلِيِّ بْنِ المَدِينِيِّ أَنَّهُ لَمْ يُثْبِتْ حَدِيثَ أَبِي صَالِحٍ، عَنْ أَبِي هُرَيْرَةَ، وَلَا حَدِيثَ أَبِي صَالِحٍ، عَنْ عَائِشَةَ فِي هَذَا. [1]

**ترجمه**: دابوهريره رضي الله عنه نه روايت دي چي رسول الله صلي الله عليه وسلم فرمائيلي دي امام ضامن دي او مؤذن امين دي او اي الله امامان په نيغه لاره قائم اوساتي او مؤذنينو ته مغفرت اوکړي.

امام ترمذي وائي په دي باب کي د عائشه، سهل به سعد، عقبه بن عامر رضي الله عنهم نه هم احاديث وارد دي، مؤلف دحديث دسندونو او داولني سند دمتابعت ذکرکولو او دابوصالح دعائشه نه دحديث دنقل کولو نه پس فرمائيلي دي:

ما دابوذرعه نه اوريدلي دي چي د ابوصالح روايتونه دابوهريره نه دهغه روايتونو نه زيات صحيح دي کوم چي ابو صالح دعائشه نه نقل کړي دي، دا رنګي ما دمحمد بن اسماعيل بخاري نه اوريدلي دي چي دابو صالح احاديث دعائشه نه زيات صحيح دي او د علي مديني قول دي چي دابوصالح حديث دابوهريره نه ثابت نه دي او نه دابوصالح حديث دعائشه نه.

---

[1] سنن أبي داود/ الصلاة ٣٢ (٥١٧) . (تحفة الأشراف : ١٢٣٨٣) . مسند احمد (٢/٢٣٢، ٢٨٤، ٣٧٨، ٣٨٤، ٤١٩، ٤٢٤، ٤٦١، ٤٧٢، ٥١٤)

**تشريح** "الامام ضامن " دا كلمات دجوامع الكلم دجملي نه دي ددينه د پنځه خبرو استنباط شوي دي.

(۱) امام په قرائت كي د مقتدي دقرائت ضامن دي ددي ضمانت تقاضا داده چي قرائت خلف الامام ناجائز دي.

(۲) امام به دمقتدي دپاره دتمامو اركانو او ادابو او وقتونو باره كي ضامن وي.

(۳) اقتداء المفترض خلف المتنفل ناجائز ده ځكه چي مفترض دحالت په اعتبار قوي وي او متنفل ضعيف وي او ضعيف دقوي ضامن نشي كيدي.

(۴) اقتداء المفترض بمفترض اخر ناجائز ده ځكه چي دضامن كيدو دپاره ديوي فريضي په تحريمه كي شركت ضروري دي.

(۵) ددي ضمانت تقاضا داده چي دامام دمونځ په فاسد كيدو دمقتدي مونځ هم فاسد كيږي.

"والمؤذن مؤتمن" دحديث ددي جملي مطلب دادي مؤذن داسي كس كيدل پكار دي چاته چي دمونځ وختونه په ښه طريقه معلوم وي.

"لم يثبت حديث ابو صالح" علي بن مديني وائي دابوصالح حديث ثابت نه دي ځكه چي دده په نزد داعمش سماع دابوصالح نه ثابت نه ده ليكن دامام بخاري په نزد دا حديث معتبر دي ځكه چي دا په ډيرو سندونو ثابت دي.

***************

## ٤٢_ بَابُ مَا جَاءَ مَا يَقُولُ الرَّجُلُ إِذَا أَذَّنَ الْمُؤَذِّنُ

### دمؤذن داذان كولو په جواب كي څه ونيل پكار دي

٢٠٨_ حَدَّثَنَا إِسْحَاقُ بْنُ مُوسَى الأَنْصَارِيُّ، حَدَّثَنَا مَعْنٌ، حَدَّثَنَا مَالِكٌ. ح قَالَ: وحَدَّثَنَا قُتَيْبَةُ، عَنْ مَالِكٍ، عَنِ الزُّهْرِيِّ، عَنْ عَطَاءِ بْنِ يَزِيدَ اللَّيْثِيِّ، عَنْ أَبِي سَعِيدٍ، قَالَ: قَالَ رَسُولُ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ: "إِذَا سَمِعْتُمُ النِّدَاءَ فَقُولُوا مِثْلَ مَا يَقُولُ الْمُؤَذِّنُ". قَالَ أَبُو عِيسَى: وَفِي الْبَابِ عَنْ أَبِي رَافِعٍ، وَأَبِي هُرَيْرَةَ، وَأُمِّ حَبِيبَةَ، وَعَبْدِ اللَّهِ بْنِ عَمْرٍو، وَعَبْدِ اللَّهِ بْنِ رَبِيعَةَ، وَعَائِشَةَ، وَمُعَاذِ بْنِ أَنَسٍ، وَمُعَاوِيَةَ. قَالَ أَبُو عِيسَى: حَدِيثُ أَبِي سَعِيدٍ حَسَنٌ صَحِيحٌ، وَهَكَذَا رَوَى مَعْمَرٌ وَغَيْرُ وَاحِدٍ،

عَنْ الزُّهْرِيِّ مِثْلَ حَدِيثِ مَالِكٍ، وَرَوَى عَبْدُ الرَّحْمَنِ بْنُ إِسْحَاقَ، عَنْ الزُّهْرِيِّ هَذَا الْحَدِيثَ، عَنْ سَعِيدِ بْنِ الْمُسَيَّبِ، عَنْ أَبِي هُرَيْرَةَ، عَنِ النَّبِيِّ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ، وَرِوَايَةُ مَالِكٍ أَصَحُّ.[1]

**ترجمه** دابوسعيد خدري رضي الله عنه بيان دي چي رسول الله صلي الله عليه وسلم فرمائيلي دي كله چي تاسو اذان واورئ نو هغه كلمات تاسو هم وايئ كوم چي مؤذن وائي

امام ترمذي وائي دابوسعيد خدري رضي الله عنه حديث حسن صحيح دي، په دي باب كي دابو رافع، ابوهريره، ام حبيبه، عبدالله بن عمرو، عبدالله بن ربيعه، عائشه، معاذ بن انس، او معاويه رضي الله عنهم نه هم احاديث وارد دي، معمرو او بعضي نورو راويانو دزهري نه دمالك دحديث هم معني روايت نقل كړي دي عبدالرحمن بن اسحاق دا حديث په سند دزهري عن سعيد بن المسيب عن ابي هريره عن النبي صلي الله عليه وسلم سره نقل كړي دي او دمالك حديث دټولو نه زيات صحيح دي.

**تشريح** په دي مسئله كي اختلاف دي چي داذان جواب څنګه كول پكار دي او په دي كي داهل علمو دوه مذاهب دي.

(۱) امام ابوحنيفه په نزد د حيعلتين جواب په حوقله سره وركول مذكور دي.

(۲) دامام شافعي او امام مالك په نزد دحيعلتين جواب په حيعلتين سره وركول پكار دي او ددوئ استدلال دحديث الباب دعموم نه دي چي تاسو كله اذان واورئ نو دمؤذن پشان كلمات تاسو هم وايئ په دي حديث كي دمثل تقاضا داده چي دحيعلتين جواب په حيعلتين وركړي شي.

جواب. مذكوره روايت عام مخصوص عنه البعض دي او ددي دپاره مخصص دعمر رضي الله عنه روايت دي خكه چي دهغه په روايت كي صراحتا مذكور دي چي دحيعلتين جواب به په حوقله سره وركول پكار دي.

د حوقله مطلب يعني لاحول ولاقوة الابالله سره جواب وركول مراد دي.

*****************

## ٤٣ـ بَاب مَا جَاءَ فِي كَرَاهِيَةِ أَنْ يَأْخُذَ الْمُؤَذِّنُ عَلَى الأَذَانِ أَجْرًا

**په اذان باندي دمؤذن دپاره د مزدورئ يا عوض يا تنخوا اخستلو د كراهت بيان**

---

[1] صحيح البخارى/الأذان ٧ (٦١١) . صحيح مسلم/الصلاة ٧ (٣٨٣) . سنن ابي داود/ الصلاة ٣٦ (٥٢٢) . سنن النسائي/الأذان ٣٣ (٦٧٣) . سنن ابن ماجه/الأذان ٤ (٧٢٠) . (تحفة الأشراف : ٤١٥٠) . موطا امام مالک/الصلاة ١ (٢) . مسند احمد (٦/٣ ، ٥٣ ، ٧٨) . سنن الدارمي/الصلاة ١٠ (١٢٢٤)

۲۰۹_ حَدَّثَنَا هَنَّادٌ. حَدَّثَنَا أَبُو زُبَيْدٍ وَهُوَ عَبْثَرُ بْنُ الْقَاسِمِ. عَنْ أَشْعَثَ. عَنِ الْحَسَنِ. عَنْ عُثْمَانَ بْنِ أَبِي الْعَاصِ. قَالَ: " إِنَّ مِنْ آخِرِ مَا عَهِدَ إِلَيَّ رَسُولُ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ أَنِ اتَّخِذْ مُؤَذِّنًا لَا يَأْخُذُ عَلَى أَذَانِهِ أَجْرًا ". قَالَ أَبُو عِيسَى: حَدِيثُ عُثْمَانَ حَسَنٌ صَحِيحٌ. وَالْعَمَلُ عَلَى هَذَا عِنْدَ أَهْلِ الْعِلْمِ كَرِهُوا أَنْ يَأْخُذَ الْمُؤَذِّنُ عَلَى الْأَذَانِ أَجْرًا وَاسْتَحَبُّوا لِلْمُؤَذِّنِ أَنْ يَحْتَسِبَ فِي أَذَانِهِ. [1]

**ترجمه**: دعثمان رضي الله عنه نه روايت دي فرمائي چي رسول الله صلي الله عليه وسلم په ټولو وصيتونو کي اخري وصيت ماته دا کړي وو چي مؤذن به داسي څوك مقرروي چي په اذان اجرت نه اخلي.

امام ترمذي وائي دعثمان رضي الله عنه حديث حسن صحيح دي، او داهل علمو په دي باندي عمل دي هغوئ مکروه ګڼړلي دي چي مؤذن په اذان اجرت واخلي او مستحب يي ګڼړلي دي چي مؤذن اذان داجر او ثواب په نيت اوکړي.

**تشريح**: په مسئله د استيجار علي الطاعات کي شارحينو د هدايه مثلا عيني او فتح القدير او عنايه او احسن الهدايه او اشرف الهدايه وغيره د هدايه عبارت دلته رانقل کړی دی اود مقام دتقاضا مطابق يي اعلي ترين تحقيق کړی دی چي ستاسو د علمي تندي ماتولو دپاره يي لفظ په لفظ رانقل کوو:

قَالَ: (وَلَا الِاسْتِئْجَارُ عَلَى الْأَذَانِ وَالْحَجِّ، وَكَذَا الْإِمَامَةُ وَتَعْلِيمُ الْقُرْآنِ وَالْفِقْهِ) وَالْأَصْلُ أَنَّ كُلَّ طَاعَةٍ يَخْتَصُّ بِهَا الْمُسْلِمُ لَا يَجُوزُ الِاسْتِئْجَارُ عَلَيْهِ عِنْدَنَا، وَعِنْدَ الشَّافِعِيِّ رَحِمَهُ اللَّهُ يَصِحُّ فِي كُلِّ مَا لَا يَتَعَيَّنُ عَلَى الْأَجِيرِ لِأَنَّهُ اسْتِئْجَارٌ عَلَى عَمَلٍ مَعْلُومٍ غَيْرِ مُتَعَيِّنٍ عَلَيْهِ فَيَجُوزُ وَلَنَا قَوْلُهُ عَلَيْهِ الصَّلَاةُ وَالسَّلَامُ {اقْرَءُوا الْقُرْآنَ وَلَا تَأْكُلُوا بِهِ} وَفِي آخِرِ مَا عَهِدَ رَسُولُ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ إلَى عُثْمَانَ بْنِ أَبِي الْعَاصِ {وَإِنْ اُتُّخِذْتَ مُؤَذِّنًا فَلَا تَأْخُذْ عَلَى الْأَذَانِ أَجْرًا} وَلِأَنَّ الْقُرْبَةَ مَتَى حَصَلَتْ وَقَعَتْ عَنْ الْعَامِلِ وَلِهَذَا تُعْتَبَرُ أَهْلِيَّتُهُ فَلَا يَجُوزُ لَهُ أَخْذُ الْأَجْرِ مِنْ غَيْرِهِ كَمَا فِي الصَّوْمِ وَالصَّلَاةِ، وَلِأَنَّ التَّعْلِيمَ مِمَّا لَا يَقْدِرُ الْمُعَلِّمُ عَلَيْهِ إلَّا بِمَعْنًى مِنْ قِبَلِ الْمُتَعَلِّمِ فَيَكُونُ مُلْتَزِمًا مَا لَا يَقْدِرُ عَلَى تَسْلِيمِهِ فَلَا يَصِحُّ.

او نه اجورت اخستل په آذان او حج باندې او هم دغه شان امامت او د قرآن او فقهٔ تعليم دې او اصل دادې چې هر هغه طاعت چې هغې سره مسلمان مختص وی.هغې باندې زمونږ په نزد مزدوري اخستل جائز نه ده. اود امام شافعی رحمه الله په نزد صحيح ده،په هر يو داسې

[1] صحيح مسلم/الصلاة ۷ (۳۶۸) . سنن ابي داود/ الصلاة ۴۰ (۵۳۱) . سنن النسائي/الأذان ۳۲ (۶۷۳) . سنن ابن ماجه/الأذان ۳ (۷۱۴) . (تحفة الأشراف: ۹۷۶۳، وکذا ۹۷۷۰) . مسند احمد (۴/۲۱۷)

عمل کي کوم چي اجير باندې متعين نه وی ځکه چي داسې معلوم عمل باندې اجورت ده چي دا په اجير باندې متعين نه ده نو جائز به وی، زمونږ دليل د نبی کريمﷺ ارشاد دې چي قرآن ښايه او ددې عوض مه خوره او کوم عهد چي نبی کريمﷺ د عثمان بن ابی ابی العاص نه واخستلو،د هغې په آخر کي دی چي ته مؤذن جوړ کړئ شې نو په آذان باندې اجرت مه اخله، او ځکه چي کله قربت حاصل شو نو دا د عامل د طرفه واقع شو،په دې وجه د عامل د اهليت اعتبار دې نو دده دپاره د بل نه اجرت اخستل جائز پاتې نشو لکه څنګه چي روژه او مانځه کي دی او ځکه چي تعليم داسې څيز دې چي په دې باندې معلم قادر نه دې،خود متعلم د طرفه،يو معنی سره نو معلم د داسې خبرې التزام کونکې شو چي د هغې په پوره کولو باندې هغه قادر نه دې نو مزدوري به صحيح نه وی.

من حديث عبدالرحمن بن شبلﷺ أخرجه أحمد فی المسند(٣\٤٢٨)

أخرجه أبوداود فی الصلاة باب ٣٩ رقم ٥٣١ والنسائی فی الأذان باب ٣٢ رقم ٦٤٨)

**لغات:** [طاعة] (دنيکئ کار)، [لاتاکلوا به] (خوراك ورباندې مه کوئ)، [القربة] (عبادت)، [ملتزم] (په خان لازمونکی)، [التواني] (سستي کول، [الامتناء](کارنه کول)، [يضيع] (ضايع کوي).

## په ديني کارونو اجرت اخستل

(( قوله: و لا الإستيجار)) په آذان او حج باندې مزدوري اخستل جائز نه دي،د عدم جواز قائلين عطاء، طاوٴس، ضحاك، زهری، حسن ابن سيرين، ابراهيم نخعی، شعبی او د احنافو ټولو هم دا قول دې اود امام احمد رحمه الله نه هم دا قول دليل سره ثابت دې لکه چي حاوی حنابله کي دی، ((و لا يصح الإستيجار علی الأذان و الإقامة و الإمامة و تعليم القرآن و الفقه و النيابة فی الحج)).

(( قوله: و کذا الإقامة)) دغه شان د مونځ اقامت اود قرآن او فقة تعليم باندې هم اجورت جائز نه دي،دشيخ انزاری په قول امام شافعی ددې خلاف دې،په خلاصه انقادی کي د اصل نه نقل دی چي د نيکئ په کار باندې اجورت جائز نه ده لکه تعليم د قرآن ، تعليم د فقة، اذان، تذکير( نصيحت)، تدريس او حج،د مدينې د خلقو په نزد جائز دې،امام شافعی، عصام الدين. ابونصر. او فقيه ابوالليث هم دا اختيار کړې دې.

(( قوله: و الأصل أن کل)) په دې باب کي قاعده کليه داده چي هرهغه نيکی کومه چي مسلمانانو سره خاص وی،زمونږ په نزد هغې باندې اجورت اخستل جائز نه ده،البته که هغه د ملت اسلام سره خاص نه وی نو( اجورت اخستل) جائز ده لکه يو مسلمان سړې د يو ذمی سره د تورات په تعليم باندې عقد اجورت اوکړی نو جائز ده ځکه چي د تورات تعليم د ملت اسلام

سره خاص نه دي.
« قوله وعند الشافعي رحمه الله » د امام شافعي په نزد هرهغه نيکئ باندي اجرت اخستل صحيح دي،کوم چي اجير باندي متعين يعني عين واجب نه وی،د ا مام ابوالخطاب روايت کي امام احمد ، ابوثور ، او ابوقلابه هم ددي قائل دی خکه چي دا اجورت په داسي معلوم عمل باندي ده، چي ددي کول اجير باندي متعين نه دی نو جائز ده، د . ما لايتعين، قيد ددي دپاره دي،که دا کار اجير باندي متعين وی مثلاً په يو مقام باندي څوك سړي د مونځ امامت دپاره متعين وی چي دده نه علاوه بل چا د امامت قابل نه وی نو اجورت جائز نه ده،دغه شان که څوك فتوی ورکونکي او د فقه او د قرآن تعليم دپاره متعين وی،بيا هم بالاتفاق ناجائز ده.
د امام شافعي د حديثو دلائل لاندې دی:(١) د صحيحينو د ابوسعيد خدری﷛ حديث:
(قال إنطلق نفر من أصحاب النبیﷺ فی سفرة سافروها حتی نزلوا علی حيی من احياء العرب فاستضافوهم فأبوا أن يضيفوهم فلدغ سيد ذالك الحی فسعوا له بکل شیء لا ينفعه شیء فقال بعضهم لو أتيتم هؤلاء الرهط الذين نزلوا لعلة أن يكون معهم شیء فأتوهم فقالوا إن سيدنا لدغ و سعينا له بکل شیء لا ينفعه فهل عند أحد منکم من شیء فقال بعضهم ! نعم و الله انی لأرمی و لکن و الله لقد استضفناکم فلم تضيفونا فما أنا براق لکم حتی يجعلوا لنا جعلاً فصالحوهم علی قطيع من الغنم فانطلق ينفل عليه و يقرأ الحمد لله رب العالمين. فکأنما نشط من عقال فانطلق يمشی و ما به قلبة قال: فأوفوهم جعلهم الذی صالحتموهم عليه فقال بعضهم اقتسموا فقال الذی رقی: لا تفعلوا حتی نأتی النبیﷺ فنذکر له الذی کان فنظر ما يأمرنا فقدموا علی رسول اللهﷺ فذکروا له ذالك فقال: و ما يدريك انها رقية؟ ثم قال: قد أصبتم اقتسموا و اضربوا لی معکم سهماً))
. ابوسعيد خدری﷛ فرمائي چي د رسول اللهﷺ د اصحابو﷡ يو جماعت په سفر کي لاړلو اود عربو يوې قبيلې سره ايسار شو نود هغوی نه ئې ملمستيا اوغوښتله،خو هغوی د ملمستيا کولو نه انکار اوکړو،( هم په دې دوران) ددې قبيلې سردار لړم اوچيچلو،خلقو په هرڅه بنه کوشش اوکړو،خو هيڅ فائده اونشوه،بيا بعضو مشوره ورکړله،که ته هغوی له ورشې،کوم چي دلته کي راغلی دی نو کيدې شی چي هغوی سره څه وی نو هغوی راغلل او ويې وئيل چي زمونږ سردار لړم چيچلې دې اومونږ ډير تدبيرونه اوکړل،خو هيڅ فائده ئې اونکړله نو آيا په تاسو کي چا سره څه تدبير شته؟ يو کس اووئيل او زه ئې دم کوم،خو مونږه ستاسو ملمانه جوړيدل اوغوښتل،تاسو انکاراوکړو نو زه ئې نه دموم،ترکومه پورې چي تاسو معاوضه رانکړئ نو هغوی د چيلو د يوې رمې ورکولو معاهده اوکړله نو يو صحابی

لاړلو سورة فاتحه ئې اوونيله او دم ئې کړله،هغه فوراً ټيك شو لکه چي يو څاروې کلاؤ کړې شي او هغه داسې روان شو لکه چي ده ته هيڅ تکليف نه وو،هغه اوونيل،دوی ته معاوضه ورکړئ.دکوم چي دوی سره فيصله شوې ده،بعضو صحابو اوونيل،دا تقسيم کړئ،خو چا چي دم اچولي وو،هغه اوونيل،داسې مه کوئ،تر هغه وخته پورې چي مونږ نبی کريمﷺ ته اورسيږو او واقعه بيان کړو او اوګورو چي هغویﷺ څه ارشاد فرمائي نو کله چي هغوی خدمت کي حاضر شو او قصه ئې واوروله،هغویﷺ اوفرمائيل،تاسو ته څه پته اولګيدله چي سورة فاتحه يو دم هم دې،ويې فرمائيل،تاسو خه اوکړل،تقسيم کړئ او زما حصه هم پکي اوکړئ

(۲) د ابن عباس رضی الله عنهما حديث چي ددې تخريج امام بخاری په کتاب الطب کي کړې دې:

(( أن نفراً من أصحاب النبيﷺ مروا بماء فيهم لديغ او سليم فعوض لهم رجل من اهل الماء فقال أهل فيكم من رواق فإن فى الماء رجلاً لديغاً او سليماً فانطلقوا رجل منهم فقرأ بفاتحة الكتاب على شاء فبرأ فجاء بالشاء إلى أصحابه فكرهوا ذالك و قالوا أخذت على كتاب الله أجراً حتى قدموا المدينة فقالوا يا رسول اللهﷺ أخذ على كتاب الله أجراً فقال رسول اللهﷺ ان أحق ما أخذتم عليه أجراً كتاب الله ))

د نبی کريمﷺ بعض صحابه کرام چيني والو سره خواکي تيرشو چي په هغوی کي يوکس مار يا لړم چيچلې پروت وو نو هغوی کي يوکس راغئ او ويې وئيل،آيا په تاسو کي څوك دم ګرې شته خکه چي چيني والو کي يوکس مار يا لړم چيچلې دې نو يو صحابی لاړلو اود يو څو چيلو په بدله کي ئې سورة فاتحه دم کړله،هغه صحت ياب شو او ده چيلئ واخستلې او خپلو ملګرو خوا له راغئ،هغوی دا ناخوښه اوګڼله او ويې وئيل چي په کتاب الله دې اجرت اخستې دې،تردې چي هغوی مدينې ته اورسيدل او عرض ئې اوکړو چي ائ د الله رسولهﷺ ! دوی په کتاب الله باندې اجرت اخستې دې،هغویﷺ اوفرمائيل،د ټولو نه زيات تاسو چي په څه باندې د اجرت اخستلو حقدار يئ، هغه کتاب الله دې.

(۳) د صحيحينو حديث د سهل بن سعد الساعدی، چي ددې په آخر کي دی:

(( هل معك من القرآن شيء؟ قال معي سورة كذا و سورة كذا قال: إذهب فقد انكحتها بما معك من القرآن ))

آيا تا سره د قرآن څه حصه شته؟ عرض ئې کړل،فلانې فلانې سورة شته دې،ويې فرمائيل،لاړ شه،د قرآن په وجه ما ستا سره په دې نکاح اوکړله.

**د احنافو وغيره روايت شوی دليلونه لاندې دی:**

(۱) ((إقرؤا القرآن و لا تأكلوا به)) (احمد، اسحاق بن راهویه، ابن ابی شیبه، عبدالرزاق، عبد بن حمید. ابو یعلی موصلی، طبرانی عن عبدالرحمن بن شبل ﷺ، بزار عن عبدالرحمن بن عوف ﷺ. ابن عدی عن ابی هریره ﷺ) ترجمه: نبی کریم ﷺ ارشاد اوفرمائیلو. قرآن بـایه او ددې عوض مه خوره

(۲) ((إن من آخر ما عهد إلىّ رسول الله ﷺ أن اتخذ مؤذناً لا يأخذ على الآذان أجراً)) (اصحاب سنن اربعه. احمد. حاکم عن عثمان بن ابي العاص ﷺ)

(۳) حدیث د مغیره بن شعبه ﷺ

((قلت یارسول الله ﷺ اجعلني امام قومي. قال قد فعلت ثم قال صل بصلاة أضعف القوم و لا تتخذ مؤذناً يأخذ على الأذان اجراً)) (بخاري في تاريخه)

(٤) حدیث د عباده بن صامت ﷺ:

((قال علمت ناساً من اهل الصفة القرآن فاهدى إلي رجل منهم قوساً فقلت ليست بمال و أرمي بها في سبيل الله فسألت النبي ﷺ عن ذالك فقال: إن أردت أن يطوقك الله طوقاً من نار فأقبلها)) (ابوداؤد. ابن ماجه. حاکم)

عباده ﷺ فرمائی چې ما اهل صفه کې بعضو خلقو ته قرآن اوخودلو، هغوی کې یو سړی ماته په هدیه کې یوه لینده راکړله، ما خیال اوکړو چې دا مال نه دې، ددې نه به جهاد کې کار اخلم. بیا مې ددې باره کې د نبی کریم ﷺ نه تپوس اوکړو، نبی کریم ﷺ اوفرمائیل، که ته غواړې چې الله تعالی ستا په سټ کې د اور یو طوق واچوی نو قبول ئې کړه

(٥) ((قال رسول الله ﷺ من قرأ القرآن يتأكل به الناس جاء يوم القيامة و وجهه عظم ليس عليه لحم)) (بيهقي في شعب الايمان)

((قوله: و لأن القربة)) دا زمونږ عقلی دلیل دې چې کله څه فعلی قربت واقع شی نو دا د عامل د طرفه د ثواب کار شو. قال الله تعالی: وان لیس للانسان الا ما سعي، په دې وجه کارونو کې د عامل د اهلیت او لیاقت اعتبار دې یعنی دا چې هغه مثلاً د اذان یا امامت لائق وی او خکه چې په دې کارونو کې د عامل نیت شرط دې، کار شرط نه دې نو دده دپاره به په دې کارونو باندې اجرت اخستل جائز نه وی لکه په مونځ او روژه باندې اجرت اخستل بالاتفاق ناجائز دی.

((قوله: و لأن التعليم)) دا دویم عقلی دلیل دې چې تعلیم یو داسې څیز دې چې دا د معلم په قدرت او اختیار کې نشته. خودا هغه وخت وی. کله چې شاګرد هم ذهین او پوهه وی او د تعلیم قابل وی نو استاد په اجورت سره د داسې خبرې التزام اوکړو چې ددې پوره کول دده

Scanned with

په اختيار کي نه دی نو اجورت به صحيح نه وی.
تنبيه. د صاحب دهدايه پيش کړې دويم عقلي دليل باندې صاحب د نتائج الافکار دا بحث کړې دې.که د معلم د عدم قدرت نه مراد دا وی چي د تعليم په کار کي دده هيڅ دخل هم نشته،بيا خودا نه منو ځکه چي خودل او لوستل صرف د معلم کار دې چي په دې کي د طالب علم هيڅ دخل نشته،دده کار خو صرف پوهيدل او يادول دی او که ددې نه مراد دا وی چي د تعليم اثر او ددې فائده ښکاره کيدلو کي د طالب علم دخل هم دې،په دې معنی چي کوم وخته پورې هغه د معلم لوستلې شويي قبول نکړی او معلم چي د کومې خبرې هغه ته تلقين کړې دې،په هغې پوهه نشی،تر هغه وخته پورې د هغه د تعليم هيڅ اثر او فائده نه ښکاره کيږی، نودا منو،خو معلم چي د کومې خبرې التزام کړې دې،هغه پخپله د خپل فعل التزام دې چي په دې باندې هغه قادر دې،د طالب علم د کار التزام ئې نه دې کړې او پخپل فعل باندې اجرت اخستلو سره هيڅ څيز مانع نه دې.
سوال : ممکن ده چي څوك اووائی چي پخپله وئيل او بل ته خودل دا يو ذات سره تعلق ساتی او مختلف بالاعتبار دی لکه څنګه چي بعضو کتابونو کي ذکرکړې شوی دی نو خبره هم هغه شوه چي تعليم باندې اجرت اخستل، په هغه تعلم ( او لوستلو) باندې اجرت اخستل دی چي هغه د غير فعل دې؟ جواب :دادې اول خودا چي پخپله وئيل او بل ته خودل د يو ذات نه نه منلې کيږی او که اومنلې شی نو تغاير اعتباری کافی دې ځکه چي تعليم او تعلم په ډيرو احکامو کي مختلف دی، ((فليکن فی أخذ الاجرة عليه کذالك)).
د امام شافعی د(١) رومبی مستدل جواب د ابن الجوزی په قول دادې چي د کومو خلقو نه ابوسعيد خدری﵁ اجرت اخستې وو،هغه کافر خلق وو او کافرانو نه مال اخستل جائز دی او بل دا چي د ميلمه حق واجب دې او دغه خلقو ددوی ميلمستيا نه وه کړې لکه چي په حديث کي ددې صراحت هم موجود دې،(( و الله لقد استضفنا کم فلم تضيفونا)) ددې نه علاوه رقيه (دمول) قربت محضه نه دې نو په دې باندې اجرت اخستل جائز دی،شيخ قرطبی دمسلم په شرح کي فرمائی، ((لا نسلم أن جواز الأجرة فی الرقی يدل علی جواز التعليم بالأجرة و الحديث إنما هو فی الرقية))، د دويم مستدل جواب دادې چي صحابه کرام﵃ ددې خبرې نه بنه خبر وو چي کتاب الله باندې اجرت اخستل حرام دی او هغوی دا جائز ګڼړلو،غلط فهمی صرف د دمولو په تعميم کي وه.نبی کريم ﷺ دا غلط فهمی لرې کړله او ويې خودل چي دمول ددې قبيلې څنې نه دې بلکه کتاب الله سره دمول، او په دې اجرت اخستل ددې نه غوره دی چي د کتاب الله نه په علاوه سره دمول او منتر وغيره اوکړې شی او اجرت واخستلې شی،ددې نه علاوه دمول يو قسم دوائی اود علاج يوه طريقه ده او په دوائی او علاج باندې اجرت اخستل مباح دی.(٣) پاتې شو د امام شافعی دريم مستدل، يعنی د نبی کريم ﷺ په تعليم د قرآن

باندې نکاح کول نو ددې جواب دادې چې په دې کې ددې صراحت نشته چې تعليم د قرآن مهر جوړ کړې شوې وو، ممکن ده چې ددې د اکرام او د قرآن د تعظيم په وجه ئې د مهر نه بغير نکاح کړې وی لکه چې نبی کريمﷺ د ابوطلحهؓ واده ام سليم سره ددوی په اسلام باندې کړې وو. يا دمهر بيانولو نه سکوت ددې دپاره وی چې مهر خو خامخا لازمی څيز دې ځکه چې د فرجونو استباحت د مال نه بغير نه کيږی. لقوله تعالى: ان تبتغوا بأموالكم. ((و لعل المرأة وهبت مهرها له)).

**د ابو عبدالله عثمان بن ابي العاص رضي الله عنه حالات:**

نوم عثمان کنيه ابو عبدالله نسب نامه يي داسې ده عثمان بن ابي العاص بن بشر بن دهبان بن عبدالله بن ابان، الخ.

دطائف دوفد سره دغزوه طائف نه پس راغی سيرة ابن هشام عثمان اگر چې تازه مسلمان شوی وو ليکن په ده کې رسول الله دتعليم استعداد اوليدو نو دبني ثقيف امير يي مقرر کړو.

او ورته يي اوفرمائيل چې دخلقو خالت ته به گوري هغه شان مونځ به ورکوي په مونځ کې به دکمزورو او بوډاګانو او ماشومانو او کاروباري خلقو خيال ساتي.

په بصره کې داوسيدو نه پس خلقو اوغوښتل چې عثمان بن ابي العاص دبصري امير مقرر کړي ليکن عمر رضي الله عنه اوونيل چې زه يي دطائف نه څنگه راوغواړم حال دادی چې هلته رسول الله صلي الله عليه وسلم پخپله مقرر کړی دی خلقو اوونيل چې که داسې کيدی شي چې هلته څوک خپل قائم مقام پريږدي يا خپل ورور هلته پريږدي بهر حال هلته يي مستقل اوسيدل اختيار کړل ابوبکررضي الله عنه دده په باره کې فرمائيلي دي ثقة في الاسلام او علم بالقران دحسن بصري قول دی چې ماهيچرته دعثمان بن ابوالعاص رضي الله عنه نه افضل او بهتر څوک ليدلی نه دی غرض دا چې دامير معاويه په زمانه کې ۵۵هجري کال کې وفات شو او دمروياتو شمير يي ۲۹ دی.

***************

## ٤٤_ بَاب مَا جَاءَ مَا يَقُولُ الرَّجُلُ إِذَا أَذَّنَ الْمُؤَذِّنُ مِنَ الدُّعَاءِ

**د اذان اوريدو نه پس کومه دعا ونيل پکار دي**

۲۱۰_ حَدَّثَنَا قُتَيْبَةُ، حَدَّثَنَا اللَّيْثُ، عَنِ الْحُكَيْمِ بْنِ عَبْدِ اللَّهِ بْنِ قَيْسٍ، عَنْ عَامِرِ بْنِ سَعْدٍ، عَنْ سَعْدِ بْنِ أَبِي وَقَّاصٍ، عَنْ رَسُولِ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ، قَالَ: "مَنْ قَالَ حِينَ يَسْمَعُ الْمُؤَذِّنَ: وَأَنَا أَشْهَدُ أَنْ لَا إِلَهَ إِلَّا اللَّهُ وَحْدَهُ لَا شَرِيكَ لَهُ وَأَنَّ مُحَمَّدًا عَبْدُهُ وَرَسُولُهُ، رَضِيتُ بِاللَّهِ رَبًّا وَبِمُحَمَّدٍ

Scanned with

رَسُولًا وَبِالْإِسْلَامِ دِينًا، غُفِرَ لَهُ ذَنْبُهُ". قَالَ أَبُو عِيسَى: وَهَذَا حَسَنٌ صَحِيحٌ غَرِيبٌ، لَا نَعْرِفُهُ إِلَّا مِنْ حَدِيثِ اللَّيْثِ بْنِ سَعْدٍ، عَنْ حُكَيْمِ بْنِ عَبْدِ اللَّهِ بْنِ قَيْسٍ. [1]

**ترجمه** دسعد بن ابي وقاص رضي الله عنه نه روايت دي چي رسول الله صلي الله عليه وسلم فرمائيلي دي چاچي اذان واوريدو او بيا يي وَأَنَا أَشْهَدُ أَنْ لَا إِلَهَ إِلَّا اللَّهُ وَحْدَهُ لَا شَرِيكَ لَهُ وَأَنَّ مُحَمَّدًا عَبْدُهُ وَرَسُولُهُ، رَضِيتُ بِاللَّهِ رَبًّا وَبِمُحَمَّدٍ رَسُولًا وَبِالْإِسْلَامِ دِينًا.
اوونيل نو دده گناهونه به اوبخلي شي، امام ترمذي وائي دا حديث حسن صحيح غريب دي او دا مونږ ته صرف دليث بن سعد په سند رارسيدلي دي کوم چي هغه دحکيم بن عبدالله بن قيس نه نقل کړي دي.

****************

## ٤٥_ باب مِنْهُ آخَرُ

### دسابقه باب متعلق يوبل باب

٢١١_ حَدَّثَنَا مُحَمَّدُ بْنُ سَهْلِ بْنِ عَسْكَرٍ الْبَغْدَادِيُّ، وَإِبْرَاهِيمُ بْنُ يَعْقُوبَ، قَالَا: حَدَّثَنَا عَلِيُّ بْنُ عَيَّاشٍ الْحِمْصِيُّ، حَدَّثَنَا شُعَيْبُ بْنُ أَبِي حَمْزَةَ، حَدَّثَنَا مُحَمَّدُ بْنُ الْمُنْكَدِرِ، عَنْ جَابِرِ بْنِ عَبْدِ اللَّهِ، قَالَ: قَالَ رَسُولُ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ: "مَنْ قَالَ حِينَ يَسْمَعُ النِّدَاءَ: اللَّهُمَّ رَبَّ هَذِهِ الدَّعْوَةِ التَّامَّةِ وَالصَّلَاةِ الْقَائِمَةِ آتِ مُحَمَّدًا الْوَسِيلَةَ وَالْفَضِيلَةَ وَابْعَثْهُ مَقَامًا مَحْمُودًا الَّذِي وَعَدْتَهُ إِلَّا حَلَّتْ لَهُ الشَّفَاعَةُ يَوْمَ الْقِيَامَةِ". قَالَ أَبُو عِيسَى: حَدِيثُ جَابِرٍ حَسَنٌ غَرِيبٌ، مِنْ حَدِيثِ مُحَمَّدِ بْنِ الْمُنْكَدِرِ لَا نَعْلَمُ أَحَدًا رَوَاهُ غَيْرَ شُعَيْبِ بْنِ أَبِي حَمْزَةَ، عَنْ مُحَمَّدِ بْنِ الْمُنْكَدِرِ، وَأَبُو حَمْزَةَ اسْمُهُ: دِينَارٌ. [2]

**ترجمه** دجابر بن عبدالله رضي الله عنه نه مروي دي چي رسول الله صلي الله عليه وسلم فرمائيلي دي چاچي اذان واوريدو او دا دعا: اللَّهُمَّ رَبَّ هَذِهِ الدَّعْوَةِ التَّامَّةِ وَالصَّلَاةِ الْقَائِمَةِ آتِ

---

[1] صحيح مسلم/الصلاة ـ (٣٨٦) . سنن ابي داود/ الصلاة ٣٦ (٥٢٥) سنن النسائي/الأذان ٣٨ (٦٨٠) . سنن ابن ماجه/الأذان ٣ (٧٢١) (تحفة الأشراف : ٣٨٧٧) . مسند احمد (١/١٨١)

[2] صحيح البخاري/الأذان ٨ (٦١٣) . وتفسير الإسراء ١ (٤٧١٩) . سنن ابي داود/ الصلاة ٣٨ (٥٢٩) . سنن النسائي/الأذان ٣٨ (٦٨١) . سنن ابن ماجه/الأذان ٣ (٧٢٢) . (تحفة الأشراف : ٣٠٤٦) . مسند احمد (٣/٣٥٤)

Scanned with

مُحَمَّدًا الْوَسِيلَةَ وَالْفَضِيلَةَ وَابْعَثْهُ مَقَامًا مَحْمُودًا الَّذِي وَعَدْتَهُ يي اوونيله نو زما شفاعت به دهغه دپاره حلال شي.
امام ترمذي وائي دجابر رضي الله عنه حديث دمحمد بن منكدر په سند حسن غريب دي مونږ ته نه ده معلومه چي دشعيب بن ابي همزه نه علاوه بل چا هم دا روايت دمحمد بن منكدر نه نقل كړي وي

****************

## ٤٦_ باب مَا جَاءَ فِي أَنَّ الدُّعَاءَ لَا يُرَدُّ بَيْنَ الأَذَانِ وَالإِقَامَةِ

### داذان او اقامت مينځ كي غوښتلي شوي دعا نه رد كيږي

٢١٢_ حَدَّثَنَا مَحْمُودُ بْنُ غَيْلَانَ، حَدَّثَنَا وَكِيعٌ، وَعَبْدُ الرَّزَّاقِ، وَأَبُو أَحْمَدَ، وَأَبُو نُعَيْمٍ، قَالُوا: حَدَّثَنَا سُفْيَانُ، عَنْ زَيْدٍ الْعَمِّيِّ، عَنْ أَبِي إِيَاسٍ مُعَاوِيَةَ بْنِ قُرَّةَ، عَنْ أَنَسِ بْنِ مَالِكٍ، قَالَ: قَالَ رَسُولُ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ: "الدُّعَاءُ لَا يُرَدُّ بَيْنَ الأَذَانِ وَالإِقَامَةِ". قَالَ أَبُو عِيسَى: حَدِيثُ أَنَسٍ حَسَنٌ صَحِيحٌ، وَقَدْ رَوَاهُ أَبُو إِسْحَاقَ الْهَمْدَانِيُّ، عَنْ بُرَيْدِ بْنِ أَبِي مَرْيَمَ، عَنْ أَنَسٍ، عَنِ النَّبِيِّ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ مِثْلَ هَذَا. [1]

**ترجمه** دانس بن مالك رضي الله عنه نه روايت دي فرماني چي رسول الله صلي الله عليه وسلم فرمانيلي دي داذان او اقامت مينځ كي غوښتلي شوي دعا نه رد كيږي امام ترمذي وائي دانس حديث حسن صحيح دي.

**حل لغات** لايردُ: دنصر رداً په معني داپس كولو او رد كولو لكه ردّ فلانا يعني فلاني لره خطا كار كرځول.

**تشريح** "لايرد بين الاذان والاقامة" يعني داذان او اقامت مينځ كي كه څوك دعا اوغواړي نو نه به رد كيږي په يو بل روايت كي داسي راغلي دي "الدعوة لاترد بين الاذان والاقامة" يعني داذان او اقامت مينځ كي دعا نه رد كيږي په يو بل روايت كي راغلي دي الدعاء بين الاذان والاقامة يستجاب فدعوا ، يعني د اذان او اقامت مينځ كي دعا قبليږي نو په دي وخت كي دعا اوغواړئ.
په دي سلسله كي علامه قاضي ابوبكر محمد بن عبدالله المعروف بابن عربي ويلي دي چي د اذان نه پس درحمت دروازي كولاويږي نو ځكه په جلتئ سره دعا قبليږي

[1] سنن ابي داود/ الصلاة ٣٥ (٥٢١). (تحفة الأشراف: ١٥٩٣). مسند احمد (٣/١١٩)

## ددعا داجابت بعضي نوروختونه او مواقع

عن أَبِي هريرة ﷺ: أَنَّ رسولَ اللهِ ﷺ قَالَ: ((أَقْرَبُ مَا يكونُ العَبْدُ مِن رَبِّهِ وَهُوَ سَاجِدٌ، فَأَكْثِرُوا الدُّعَاءَ))

رواه مسلم في كتاب الصلاة باب مايقول في الركوع والسجود والبخاري ايضاً.

ابوهريره رضي الله عنه نه روايت دی چي رسول الله صلي الله عليه وسلم فرمائيلي دي دسجدی په حالت کي بنده خپل رب ته ډيرنژدی وي نو په سجده کي دعا ډيره غواړئ.

دمسلم شريف په يو روايت کي راخي چي په سجده کي په ښه شان سره دعا غواړئ ځکه چي په دي کي ستاسو دعا قبليږي او په سجده کي بنده الله تعالي ته ډير نژدي وي.

په بعضي روايتونو کي راځي چي بنده سجده درحمان په قدمونو کوي او دسجدي هومره نژديکت انسان ته په هيڅ وخت کي نشي ملاويدی ځکه چي په سجده کي انسان خپل عزتمند اندام يعني تندی په زمکه ايخودلی وي او دالله تعالي په وړاندي يي ذليل کړی وي ددينه دزيات ذلت او عاجزئ ظاهرولو دپاره دانسان سره بل صورت ممکن نه دی.

خلاصه دا شوه چي څوك په سجده پريوځي او خپل ذلت او عاجزي اختياروي او دالله تعالي لويي او برترئ اقرار کوي نو الله تعالي په داسي وخت کي ډير خوشحاليږي نو په دي وخت کي چي هره دعا اوغواړي هغه به قبوله شي ليکن احنافو په دي کي دوه شرطونه لګولي دي اول دا چي په نفلي مونځونو کي وي په فرائضو کي به نه وي دويم شرط دادی چي صرف په عربي ژبه کي به وي دعربي نه به علاوه په بله ژبه کي نه وي

## دمايوسئ په وجه دعا پريښودل ندي پکار

عن أَبِي هريرة ﷺ: أَنَّ رسُولَ اللهِ ﷺ قَالَ: ((يُسْتَجَابُ لأَحَدِكُمْ مَا لَمْ يَعْجَلْ: يقُولُ: قَدْ دَعَوتُ رَبِّي. فَلَمْ يسْتَجب لِي)) متفق عَلَيْهِ. وفي روايةٍ لسلمٍ: ((لا يَزالُ يُسْتَجَابُ لِلعَبْدِ مَا لَمْ يَدْعُ بإثْمٍ. أَوْ قَطيعَةِ رحِمٍ. مَا لَمْ يَسْتَعْجِلْ)) قيل: يَا رسولَ اللهِ مَا الاستعجال؟ قَالَ: ((يقول: قَدْ دَعَوْتُ. وَقَدْ دَعَوْتُ. فَلَمْ أَرَ يسْتَجِبُ لي. فَيَسْتحْسِرُ عِنْدَ ذَلِكَ وَيَدَعُ الدُّعَاءَ)).

أخرجه: البخاري في الدعوات باب يستجاب للعبد ما لم يعجل ومسلم في الذكر والدعاء باب بيان انه يستجاب للداعي مالم يعجل. ومالك في الموطاء والترمذي وابوداود وابن ماجه نحوه مختصرا ومطولا.

ابوهريره رضي الله عنه نه روايت دی چي رسول الله صلي الله عليه وسلم فرمائيلي دي دهر مسلمان دعاقبليږي ترڅو چي تادي اونه کړي چي دا اونه وائي مادخپل رب نه سوال کړی وو خو قبول يي نه کړو. دامام مسلم يو روايت په دي الفاظو دی هميشه دمسلمان بنده سوال قبليږي که دناروا کار سوال نه وي اودخپلوئ ترك کولو سوال نه وي ترڅو چي بيړه اونه کړي

اصحابو عرض اوکړو یا رسول الله دبیړې څه مطلب رسول الله صلي الله علیه وسلم اوفرمائیل چي داسې اووائي ما خو بیا بیا دعا اوغوښتله خو قبلیږي نه دی نه پس دی نا امیده شي اودعا پریږدي

مطلب دادی چي انسان دجلدبازۍ او مایوسۍ په وجه دعا کول پریږدي داسي کول نه دي پکار انسان دي په دي خبره یقین اوساتي چي زما دعا به ضرور قبلیږي مګر دا ممکن ده چي کله کله انسان په ډیر اخلاص او اضطرار سره دعا غواړي او دده دا اخلاص دالله تعالي ډیر خوښ شي نو په دي وجه دده د دعا په قبولیت کي تاخیر اوشي او دبعضو خلقو ددعاګانو تسلسل ددوۍ دطرقۍ سبب دی نو ځکه الله تعالي ددوۍ دعا زر نه قبلوي ددي دپاره چي دوۍ ددي عظیم نعمت نه محروم نشي.

په جلدبازۍ کي خو یو نقصان دادی چي بیا انسان دعا کول پریږدي او دویم نقصان دادی چي نا امیده شي دریم نقصان دادی انسان دا ګمان اوکړي ګني اوس زما ددعا دقبولیت وخت لاته دی راغلی علامه توریشتي وائي په دعا کي دجلد بازۍ نه کار اخستل نه دي پکار ځکه چي دا خو الله تعالي ته معلومه ده چي کله به دده دعا قبلوي او کله یي نه قبلوي.

عن أَبِي أمامةَ ﷺ قَالَ : قيل لِرسولِ اللهِ ﷺ : أَيُّ الدُّعاءِ أَسْمَعُ ؟ قَالَ : (( جَوْفَ اللَّيْلِ الآخِرِ . وَدُبُرَ الصَّلَوَاتِ المَكْتُوباتِ )) . رواه الترمذي .وقال : (( حديث حسن )) .

أخرجه : الترمذي في ابواب الدعوات باب العزم في المسئلة والحاكم واسناده صحيح.

ابوامامه رضي الله عنه نه روایت دی چي تپوس اوکړی شو ای رسول الله کومه دعا زیاته قبلیږي ، رسول الله صلي الله علیه وسلم اوفرمائیل دشپي په اخره کي دعا او فرض مونځونو پسي دعا . امام ترمذي روایت کړی دی اوحدیث حسن یي ورته ونیلی دی

ددي حدیث نه معلومه شوه چي دشپي په اخري حصه کي او دفرض مونځونو نه پس دعا په خصوصي طور سره قبلیږي دفرض مونځونو نه پس ددعا دقبلیدو مضمون په ډیرو روایتونو کي منقول دی دبعضي صحابه کرامو په باره کي راځي چي هغوۍ به ددعا دپاره دفرض مونځ انتظار کولو چي ددینه پس به دعا غواړو.

جوف اللیل الاخر دشپي په اخري حصه کي، کله چي خلق په خوب کي مشغول وي پدغه وخت کي چي کله بنده پاځي او دخپل رب سره دراز او نیاز ګفتګو کوي نو دالله تعالي دا حالت ډیرزیات خوښیږي په یو بل روایت کي راځي پدغه وخت کي الله تعالي دنیا ته نزدي اسمان ته نزول کوي او اعلان کوي چي څوك شته داسي چي زمانه دعا اوغواړي او زه یي قبول کړم؟ څوك شته داسي چي زمانه دعا اوغواړي او زه یي قبول کړم؟ څوك شته داسي چي زمانه دعا اوغواړي او زه یي قبول کړم

په يو بل روايت كي راخي ارشاد نبوي دى چي په شپه كي يو داسي تايم راخي چي مسلمان بنده په هغي كي دالله نه ددنيا او اخرت كاميابئ سوال اوكړي او كوم حاجت اوغواړي نو الله تعالي يي ورته وركوي.

## ددعا دقبوليت مطلب

عن عُبَادَةَ بنِ الصامت ﷺ: أَنَّ رسولَ اللهِ ﷺ قَالَ: (( مَا عَلَى الأَرْضِ مُسْلِمٌ يَدْعُو اللهَ تَعَالَى بِدَعْوَةٍ إِلاَّ آتَاهُ اللهُ إِيَّاهَا، أَوْ صَرَفَ عَنْهُ مِنَ السُّوءِ مِثْلَهَا، مَا لَمْ يَدْعُ بِإِثْمٍ، أَوْ قَطِيعَةِ رَحِمٍ ))، فَقَالَ رَجُلٌ مِنَ القَوْمِ: إِذاً نُكْثِرُ قَالَ: (( اللهُ أَكْثَرُ )). رواه الترمذي، وقال: (( حديث حسن صحيح )).

ورواه الحاكم من روايةِ أَبِي سعيدٍ وزاد فِيهِ: (( أَوْ يَدَّخِرَ لَهُ مِنَ الأَجْرِ مِثْلَهَا )).

أخرجه: الترمذي في ابواب الدعوات باب استجابة الدعاء في غير قطيعة رحم. وقال: (( حديث حسن صحيح غريب )). ورواية الحاكم في " المستدرك " واحمد والبخاري في الادب المفرد والطحاوي في مشكل الاثار والهيثمي في مجمع الزوائد.

د عباده بن الصامت رضي الله عنه نه روايت دى چي رسول الله صلي الله عليه وسلم فرمائيلي دي دزمكى په مخ هر يو مسلمان چي الله تعالي نه څه اوغواړي الله تعالي هغه شى وركړي ياتري نه څه تكليف لرى كړي كه څه ناروا سوال يى نه وي كړى يادخپلوئ دتعلق خلاف سوال نه وي يو سړي عرض اوكړو بيا خو به مونږ دالله تعالي نه هر څه ډير ډير غواړو رسول الله صلي الله عليه وسلم اوفرمائيل الله تعالي ډير وركونكى دى.

ددي حديث حاصل دادى چي دانسانانو دعاګاني قبليږي ليكن دقبوليت انواع مختلف دي او شرط پكي دادى چي دا دعا به دګناه او صله رحمئ قطع كولو سبب نه وي صله رحمي قطع كول هم په ګناهونو كي يوه لويه ګناه ده ځكه يي په خصوصيت سره ددي ذكر كړى دى چي قباحت يي په وضاحت سره ظاهر شي، ددعا دقبوليت مختلف قسمونه دي:

اول قسم هغه دى چي څه اوغواړي هغه ورته وركړى شي يعني ددين او دنيا دپاره چي ده څه غوښتلي وي هغه په خپلو ستركو اوويني، دويم قسم دادى چي په ده باندي كوم مصيبت راتلونكى وي ددي دعا په بركت سره هغه ورنه لري شي مثلا يو سړي دالله نه دزرو روپو سوال اوكړو ظاهرا خو ورته دا ملاؤ نشوي مګر په ده باندي يومصيبت يا بيماري وغيره راتلونكي وه او په هغي باندي زر روپئ خرچ كيدي نو الله تعالي دى دهغي نه بچ كړو، ددعا دقبوليت دريم قسم دادى چي الله تعالي ورته دهغي په بدل كي په قيامت كي ثواب وركړي.

فقيه ابو الليث سمر قندي وايي: ان العبد يري في صحائفه يوم القيامة حسنات لا يعرفها فيقال انها بدل لسوالك في الدنيا لم يقدر قضاؤه فيها.

يعني بنده به دقيامت په ورځ په خپله عملنامه كي هغه نيكيانيويني چي دى به يي ونه پيژني نو ده ته به وويلي شي داد هغه سوال په بدله كي دي كوم چي تا غوښتلي وو ليكن په دنيا كي ستا دپاره نه وو ليكلي شوي

په يو روايت كي دي چي مومن به ددي حالت په ليدو سره اووايي كاش چي په دنيا كي زما نوري دعاګاني هم نوى قبولي شوي نو اوس به مي پدي سخت حالت كي پكار شوي وى.

"الله اكثر" علامه طيبي وائي ددي مطلب دادى چي تاسو كه دالله تعالي نه هر څومره دعاګاني اوغواړئ خو الله تعالي ددينه دزياتو دعاګانو قبلونكى دى.

يا ددي مطلب دادى چي هر څومره دعاګاني تاسو اوغواړئ خو دالله تعالي دفضل وسعت به تاسو ددينه زيات بيامومئ يا دادى چي څومره غوښتل تاسو دالله تعالي نه اوكړئ الله تعالي به تاسو ته دهغي نه زيات اجر او ثواب دركړي.

## دتكليف اوپريشانئ په وخت كي دعا

عن ابنِ عباس رضي الله عنهما: أَنَّ رسولَ الله ﷺ كَانَ يقولُ عِنْدَ الكَرْبِ: ((لاإِلهَ إِلاَّ اللهُ العَظِيمُ الحَلِيمُ. لا إِلهَ إِلاَّ اللهُ رَبُّ العَرْشِ العَظِيمِ. لاَ إِلهَ إِلاَّ اللهُ رَبُّ السَّمَاوَاتِ، وَرَبُّ الأَرْضِ، وَرَبُّ العَرْشِ الكَرِيمِ)) متفق عَلَيْهِ.

أخرجه: البخاري) في كتاب الدعوات في باب الدعاء عند الكرب. ومسلم في كتاب الذكر باب دعاء الكرب. وايضا احمد في مسنده والبخاري في الادب المفرد وابن ماجه في الدعاء وابو عوانه في صحيحه وابن حبان وغيرهم من ائمة الحديث.

ابن عباس رضي الله عنه نه روايت دى چي رسول الله صلي الله عليه وسلم به دتكليف په وخت كي فرمانيل الله نه غير بل معبود نشته هغه ډير عظيم اوحليم دى الله نه غير بل معبود نشته هغه دعرش عظيم رب دى الله نه غير بل معبود نشته هغه داسمانونو اوزمكى او عرش عظيم رب دى

كرب ډير زيات لوي غم ته وئيلى شي مطلب دادى هر څومره لوي غم كه راځي خو چي پورتنۍ دعا اولوستلى شي نو الله تعالي به ورته ددينه نجات وركړي.

"لااله الاالله العظيم" يعني نشته هيڅ يو معبود علاوه دعظمت والاالله تعالي نه، علماء وائي دالله تعالي عظمت دومره لوي دى چي دهيڅچا په عقل كي يي تصور نشي راتلى

"الحليم" يعني الله تعالي صبرناك دى چي دقدرت باوجود سزا لره مؤخر كوي او دالله تعالي غصه فوري انتقام اخستلو سبب نه دى علامه نووي هم په رياض الصالحين كي فرمائي چي اسلافو به دمصيبتونو په وخت كي دا دعا لوستله

***************

## ٤٧_ باب مَا جَاءَ كَمْ فَرَضَ اللّٰهُ عَلَى عِبَادِهِ مِنَ الصَّلَوَاتِ

### الله تعالي پخپلو بندګانو څومره مونځونه فرض کړي دي؟

٢١٣_ حَدَّثَنَا مُحَمَّدُ بْنُ يَحْيَى النَّيْسَابُورِيُّ، حَدَّثَنَا عَبْدُ الرَّزَّاقِ، أَخْبَرَنَا مَعْمَرٌ، عَنِ الزُّهْرِيِّ، عَنْ أَنَسِ بْنِ مَالِكٍ قَالَ: فُرِضَتْ عَلَى النَّبِيِّ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ لَيْلَةَ أُسْرِيَ بِهِ الصَّلَوَاتُ خَمْسِينَ، ثُمَّ نُقِصَتْ حَتَّى جُعِلَتْ خَمْسًا. ثُمَّ نُودِيَ: "يَا مُحَمَّدُ إِنَّهُ لَا يُبَدَّلُ الْقَوْلُ لَدَيَّ وَإِنَّ لَكَ بِهَذِهِ الْخَمْسِ خَمْسِينَ". قَالَ: وَفِي الْبَابِ عَنْ عُبَادَةَ بْنِ الصَّامِتِ، وَطَلْحَةَ بْنِ عُبَيْدِ اللّٰهِ، وَأَبِي ذَرٍّ، وَأَبِي قَتَادَةَ، وَمَالِكِ بْنِ صَعْصَعَةَ، وَأَبِي سَعِيدٍ الْخُدْرِيِّ. قَالَ أَبُو عِيسَى: حَدِيثُ أَنَسٍ حَسَنٌ صَحِيحٌ غَرِيبٌ.[1]

**ترجمه**: دانس بن مالك رضي الله عنه نه مروي دي چي په نبي كريم صلي الله عليه وسلم باندي دمعراج په شپه پنځوس مونځونه فرض كړي شول او بيا كم كړي شول تردي چي په كمولو كمولو پنځوو ته راورسيدل او بيا اواز اوكړي شو اي محمد زما فيصله مضبوطه ده چي تاسو لره په دي پنځه مونځونو دپنځوس مونځونو برابر ثواب دركولي شي ، امام ترمذي وائي دانس رضي الله عنه حديث حسن صحيح غريب دي، او په دي باب كي دعباده بن الصامت، طلحه بن عبيدالله ، ابو ذر، ابو قتاده، مالك بن صعصعه ، او ابو سعيد خدري رضي الله عنهم نه هم احاديث وارد دي.

**تشريح**: قاضي ثناء الله پاني پتي په تفسير مظهري سورة الاسراء كي د معراج دواقعي او حالاتو شاندار مدلل تفصيل كړى دى په لاندينو كرښو كي يي ملاحظه كړئ:

بغوي ليكلي دي چي ام المؤمنين عائشه رضي الله عنها به فرمائيل دمعراج په شپه درسول الله صلي الله عليه وسلم جسم مبارك غائب شوي نه وو بلكه روح يي بوتللي شوي وو ، يعني منامي معراج شوي وو ، ددي بيان تائيد دانس بن مالك رضي الله عنه دهغه روايت نه كيږي كوم چي بخاري نقل كړي دي په كومه شپه چي رسول الله صلي الله عليه وسلم (د كعبي دمسجد نه) معراج ته بوتلي شو (ددي صورت داسي وو) چي رسول الله په مسجد حرام كي اوده وو ، اوددي واقعي تعلق دوحي دسلسلي دشروع كيدو دزماني نه دمخكي زماني سره وو دري كسان راغلل اولني كس اووئيل دا څوك دي، مينځني اووئيل په ټولو كي بهتر كس دي، نودريم كس ووئيل كله چي په ټولو كي بهتر دي نو بوييي څئ، ذا شپه همداسي تيره شوه (هيڅ واقعه پيښه نشوه) كله چي دويمه شپه راغله نودرسول الله ستركي پټي شوي او زړه يي بيدار

---

[1] تفرد به المؤلف (تحفة الأشراف : ١٣٩٨٠) . وانظر مسند احمد (٣/١٦١)



وو او دانبیاؤ همدا حالت وي چي سترګي يي پټيږي او زړه يي بيدار وي غرض دا چي همدا دري واړه کسان راغلل او څه خبري يي اونکړي او رسول الله يي د پورته کولو نه پس دخان سره يوړو او د زمزم سره يي کوز کړو جبرائيل يي د مرئ نه د نومه پوري سينه څيري کړه اودسيني دننه حصه يي ورله په زمزم اوينځله اودعلم او دايمان نه يي ډکه کړه اوبيا يي واپس وګنډله.

انس رضي الله عنه دمعراج پوره حديث بيان کړو په کوم کي چي يي دا هم ذکر کړل کله چي ددنيا اسمان ته ورسيدو نودهلته نه يي دوه دريابونه دوتو په حالت کي اوليدل جبرائيل اوونيل دا دواړه دريابونه نيل او فرات دي او ددواړو سرچشمه ددي خاي نه وتلي ده او بيا هغه لره جبرائيل اسمان ته بوتلو او هلته يي يوبل درياب اوليدو په کوم چي دغمو اوزبرجدو يو محل جوړ شوي دي ، چي په درياب کي يي لاس اووهل نويوخاص قسم مشك ورنه جوړ شو، رسول الله تپوس اوکړو اي جبرائيل داڅه دي جبرائيل عليه السلام اوونيل دا کوثر دي کوم چي الله تعالي ستادپاره ساتلي دي

دانس رضي الله عنه بيان دي چي بيا رسول الله اوم اسمان ته بوتلي شو ، موسي عليه السلام اوونيل اي زما ربه زماخودا ګمان هم نه وو چي بل چاته به په مابانديي فوقيت حاصل وي، اوبيا ددي خاي نه نور هم پورته بوتلي شو دکوم علم چي دالله تعالي نه علاوه بل چاته نشته ، تردي چي سدرة المنتهي ته ورسيدو اودالله تعالي قرب ورته حاصل شو ، رب العزت لږ خکته راغلو تردي چي ددوه ليندو دفاصلي په مقدار ياددينه هم زيات نزدي شو خو په هره شپه کي يي پنځوس مونځونه فرض کړل اوددي کيفيت يي بيان کړو نوموسي عليه السلام اوونيل ستا امت ددي د ادا کولو طاقت نه لري غرض داچي موسي عليه السلام بار بار واپس کړو او رسول الله به يي رب العزت ته ورليږلو تردي پوري چي صرف پنځه مونځونه پاتي شول ليکن موسي عليه السلام بياهم ده لره حصارولو او ونيل يي چي اي محمد (صلي الله عليه وسلم) ماپخپل قوم بني اسرائيلو ددينه په کمو مونځونو تجربه کړي ده ليکن هغوئ ددينه هم عاجز شول او ادا کول يي پريخودل اوستا امت خو دبني اسرائيلو په مقابله کي دزړه او غوږونو اوسترګو په اعتبارسره ډير کمزوري دي ته خپل رب ته واپس ورشه (اودتخفيف درخواست اوکړه) تردي چي تخفيف اوکړي .

موسي عليه السلام چي هر څومره پيري رسول الله ته دتخفيف په باره کي د درخواست تلقين اوکړو ليکن هرد پيره به يي جبرائيل ته دمشوري اخستلو په نظر کتل او جبرائيل به ورباندي دمناسب سوال ګمان نه کولو اخرداچي کله رسول الله دتخفيف دعا اوغوښتله او عرض يي اوکړو اي زما ربه زما دامت بدنونه هم کمزوري دي او زړه او غوږونه اونظرونه يي هم کمزوري دي ته زمونږ دپاره پدي حکم کي اساني راولي . نو الله تعالي اوفرمائيل زما په نزد حکم نشي بدليدلي لکه څنګه چي ما په لوح محفوظ کي فرض کړي دي هم هغه قائم پاتي شول اودهري



Scanned with

نيکۍ دپاره لس چنده ثواب مقرر دي پس په لوح محفوظ کي دا پنځوس مونځونه دي مګر ستاسو دپاره پنځه دي موسي عليه السلام بيا رسول الله ته اووئيل چي ته يوځل بيا خپل رب ته واپس ورشه اودتخفيف درخواست اوکړه رسول الله اوفرمائيل ماډيري پيري بار بار تګ راتګ اوکړو ترڏي چي اوس رب ته دتخفيف په باره کي سوال کول ماته شرم ښکاري

دراوي بيان دي چي ددينه پس کله رسول الله بيدار شو نو خاص په مسجد خرام کي موجود وو دمسلم په روايت کي چي کوم فاستيقظ وهو في المسجد الحرام، الفاظ راغلي دي ددينه معلوميږي چي دمعراج دا تمامه واقعه منامي وه . ليکن په صحيح او متواترو احاديثو سره ثابته ده او پدي باندي اجماع هم ده چي په ايت کريمه "سُبْحٰنَ الَّذِيْٓ اَسْرٰى بِعَبْدِهٖ لَيْلًا" کي دمعراج شپه مراد ده، او معراج دبيدارۍ په حالت کي شوي وو په جسماني شکل سره شوي وو يعني رسول الله سره دجسمه وړلي شوي وو کچري په خوب کي وي نوقريشو به ورنه ولي انکار کولو په خوب کي اسماني سير کيدل يامسجد اقصي ته تلل دتعجب څيز نه دي زمونږ دشيخ او دامام بيان دي چي دبعضي محدثينو قول دي چي په صحيح البخاري اوپه صحيح المسلم کي دذکر شوي حديث نه علاوه بل کوم داسي حديث نشته په کوم سره چي معراج منامي ثابتيږي صرف همدا يو حديث دي په کوم کي چي دخوب په حالت کي دمعراج ثبوت دي ليکن ددي روايت مدار په شريك بن عبدالله دي او شريك منكر الحديث دي

ددينه علاوه داخبره هم دعور قابله ده چي دکوم معراج پدي حديث کي ذکر شوي دي هغه دوحي راتلو نه مخکي واقع شوي وو ، اودکوم معراج چي په ايت کي ذکر دي اوپه جسماني طور دبيدارۍ په حالت کي شوي وو هغه دوحي دسلسلي دشروع کيدو نه دولس کاله پس وو يعني دهجرت نه يوکال مخکي شوي وو ، په حقيقت کي دوحي دسلسلي دشروع کيدو نه مخکي رسول الله په خوب کي دمعراج واقعه ليدلي وه خوبيادډي د محقق کولودپاره دهجرت نه يوکال مخکي الله تعالي ده لره دبيدارۍ په حالت کي معراج ته بوتلو لکه څرنګه چي د خديبيه په کال يعني دهجرت په شپږم کال ورته دمکي فتح کيدل خودلي شوي وو خوبيا دهجرت په اتم کال مکه په ظاهري طور فتح شوه .

بغوي ليکلي دي کله چي دمعراج نه په واپسۍ کي رسول الله ذي طوي مقام ته ورسيدو نو ويي فرمائيل اي جبرائيل زما قوم والا به ددي تصديق نه کوي جبرائيل عليه السلام اووئيل ابوبکر به دي تصديق کوي او هغه ډير رښتوني دي.

بغوي دابن عباس او عائشه رضي الله عنهما نه روايت بيان کړي دي چي رسول الله صلي الله عليه وسلم فرمائيلي دي په کومه شپه چي زه معراج ته بوتلي شوي وم دهغي شپي په سحر زه په مکه کي ناست وم او دخپل خان په باره کي مي سوچ کولو او دا ګمان مي اوکړو چي زما قوم والا به ما دروغژن ګڼري په يو ګوټ کي غمژن ناست وو چي پدي وخت کي زماپه خواکي

ابوجهل تیرشو او دمسخرو په لهجه کي يي اوونيل (څنګه ناست يي) اياکوم نوي څيز دي حاصل کړي دي؟ رسول الله اوفرمائيل هو، زه نن شپه بوتللي شوي وم ابوجهل اوونيل چرته رسول الله اوفرمائيل بيت المقدس ته ابوجهل اوونيل په سحر کي خو ته زمونږ سره موجود يي رسول الله اوفرمائيل هو ، ابوجهل انکار اونکړي شو او ويي ونيل کومه خبره چي دي ماته اوکړه ايا دخپل قوم په وړاندي يي هم بيانولي شي رسول الله اوفرمائيل هو نوابوجهل يوه تيزه چغه اوکړه چي اي دکعب بن لوئ ډلي راشئ نوددي اواز سره خلق يکدم په رامنډو راغلل او رسول الله او ابوجهل ته راورسيدل ابوجهل اوونيل اوس چي دي څه ماته بيان کړي وو هغه دي خپل قوم ته هم بيان کړه رسول الله اوفرمائيل درسته ده زه نن شپه وړلي شوي وم خلقو تپوس اوکړو چرته نو ويي فرمائيل بيت المقدس ته نو خلقو اوونيل اوس خو په سحر کي ته زمونږ په وړاندي موجو يي نو ويي فرمائيل هو ، ددي بيان په اوريدو سره خلقو دمسخرو په طور لاسونه اوپرقول او بعضي خلقو دتعجب په وجه خپل سرونه پټ کړل اوکومو کسانو چي ايمان راوړي وو اودرسول الله دنبوت تصديق يي کړي وو هغوي داسلام نه واپس شول او يومشرك په منډه منډه ابوبكر ته ورسيدو او ويي ونيل اوس دي دخپل ملګري متعلق څه خيال دي هغه خو وائي چي زه نن شپه بيت المقدس ته وړلي شوي وم ابوبكر رضي الله عنه وفرمائيل هغه داسي ونيلي دي ؟ خلقو اوونيل هو نو ابوبكر بيا اوونيل كه داسي يي ونيلي وي نوربښتيا يي ونيلي دي خلقو ورته اوونيل اياته ددي خبري تصديق کوي چي هغه نن شپه بيت المقدس ته تلي هم وو او دسحر نه مخکي راواپس شوي هم دي ابوبكر رضي الله عنه اوونيل ماخوددينه هم دزياتو سختو خبرو تصديق کړي دي او کوم يي ده ته چي سحر او مابنام داسماني خبرونو وحي راځي زه خودهغي هم تصديق کوم .

ابوبكر رضي الله عنه ته په همدي وجه صديق ونيل شروع شول (چي بي سوچي يي دمعراج تصديق اوكړو او دنبوت تصديق يي هم بي سوچي كړي وو.

دراوي بيان دي پدي خلقوكي بعضي كسان داسي وو چي بيت المقدس يي ليدلي وو هغوئ اوونيل ايا ته مونږ ته دبيت المقدس اوصافو حالات بيانولي شي رسول الله اوفرمائيل هو درسول الله فرمان دي چي بيا مي دبيت المقدس كيفيات بيانول شروع كړل په بيانولو كي برابر روان وم تردي چي بعضي حالات يي په مابان‌دي مشتبه شول نوفورا (زمادنظر په وړاندي دبيت المقدسه پوري پردي پورته كړي شوي) اوبيت المقدس ماته مخامخ شو او دعقيل دكور نه راته هم نزدي رابنكاره كړي شو او مسجد مي پخپلو ستركو مخامخ ليدو اوحالات مي بيانول ، هغوئ اوونيل يقينا تاچي دبيت المقدس كوم حالات بيان كړل صحيح دي بيان كړل ، او بيايي اوونيل اي محمد (صلي الله عليه وسلم) زمونږ دقافلي څه حالات راته هم بيان كړه څكه چي هغه زمونږ دپاره ډير اهميت لري اوتا دا بيت المقدس مخكي چرته ليدلي دي

Scanned with C

نورسول الله اوفرمائيل درته به يي بيان كړم دفلانئ قافلي صورت په روحاء مقام كي ماته ښكاره شو اويو اوښ ورنه ورك شوي وو او خلق دهغه په تلاش پسي وتلي وو دهغي په قيام ګاه كي په يولوښي كي اوبه پرتي وي او زه تګي شوي وم ما دغه لوښي راپورته كړو او واپس مي پخپل خاي كيخودو، پس تاسو ددي قافلي والا نه تپوس اوكړئ چي كله هغوئ خپل قيام ګاه ته واپس راغلل نو ايا په لوښي كي يي اوبه وي اوكه نه خلقو اووئيل دا يوه نخه ده كومه چي قاطع فيصله كوي.
رسول الله دا هم وفرمائيل چي دفلانئ قبيلي دقافلي سره تير شوي دي اوفلاني فلاني سړي په يو اوښ سواره دي . دا واقعه دذي مره مقام ده زما په ليدوسره اوښ دغه دواړه كسان اوغورځول ددغه دواړو كسانونه تپوس اوكړئ پس خلقو اووئيل دا هم ستا دصداقت يوه ازمائشي نښه ده ، خلقو تپوس اوكړو اوس زمونږ داوښانو تفصيل اوحالات راته بيان كړه نو ويي فرمائيل په تنعيم مقام كي داوښانو په خوا كي تير شوم نوبيايي تپوس اوكړو چي شمير يي څومره دي اوچي كوم سامان وربانديي بار دي هغه څه دي او شكلونه يي څنګه دي ؟ نوويي فرمائيل پدغه وخت كي دي خبرو ته زما توجه نه وه خوبيا په حروره مقام كي دخپل مكمل شكل او بارشوي سامان او هينت او سورو سره زماپه وړاندي وړيدل چي ددوئ هينت داسي دانهي وو او فلاني فلاني كسان ورسره وو او يو خړ دايرو رنګ والااوښ ورنه مخكي وو په كوم چي دوه ګنډلي شوي بورئ اچولي شوي وي اودنمر دختو په وخت كي به دا قافله دلته رارسيږي خلقو اووئيل دا هم ستادصداقت يوه ازمائشي ننبه ده .
پس ددي ګفتګو نه پس خلق په منډه كنډو ته وروختل او ويي وئيل په الله قسم محمد (صلي الله عليه وسلم) خو واقعه په واضح طور بيان كړه او ددينه پس كدا مقام (كوم چي دمكي نه بهر يو كانړيز مقام ياغر وو) ته ورسيدل اوهلته يي دنمر ختو ته انتظار كول شروع كړل چي كه دنمر ختو پوري قافله راونه رسيږي نورسول الله به دروغژن اوګنړي دوئ په دي انتظار كي وو چي چا يوه ناڅاپي چغه اوكړه او ويي وئيل نمر راوختو او دويم كس اووئيل اوښان هم دادي راورسيدل چي مخكي ورنه يوخړ اوښ روان وو اوفلاني فلاني كسان په قافله كي موجود دي خوددي هر څه دنښاناتو دليدو نه پس هم دوئ ايمان رانوړو او ويي وئيل يقينا دا جادو دي ښكاره.
مسلم دابوهريره رضي الله عنه نه روايت نقل كړي دي چي رسول الله صلي الله عليه وسلم اوفرمائيل هغه قافله داسي ده ګويا كي چي زما په نظر كي زما دستركو وړاندي ده چي زه په حجر اسود كي موجود وم او قريشو رانه زما دشپي دتلو په باره كي تپوسونه كول هغوئ دبيت المقدس په باره كي هم تپوس كړي وو كوم چي ماته ياد نه وو او دكوم په وجه چي زه داسي بي ارامه شوي وم چي ددينه مخكي دومره نه وم بي ارامه شوي ليكن پدغه وخت كي الله تعالي

بيت المقدس راپورته کړو او زما په وړاندې يې کيخودو نو اوس چې به يې کوم سوال زما نه کولو نومابه بيت المقدس ته وکتل اودوی ته به مې جواب ورکړو اوما خپل خان دانبياؤ دجماعت سره هم وليدلو مادا هم وليدل چې موسی عليه السلام په مونځ ولاړ دې داسې ښکاريده لکه چې دشنوئه قبيلې څوك سړی وي او مشابهت يې دعروه بن مسعود ثقفي سره زيات وو، ما ابراهيم عليه السلام هم په مونځ ولاړ وليدو ، دابراهيم عليه السلام سره دهر چانه زيات مشابهت لرونکي ستاسودا ملگري دې (يعني زه ) بيا دمونځ وخت راغي نو ما انبياؤته امامت ورکړو دمونځ نه چې فارغ شوم نو يو ويونکي اوونيل اې محمد (صلي الله عليه وسلم) دا مالك دې کوم چې ددوزخ څوکيدار دې اوسلام ورته وکړه ما چې مالك ته مخ ورستون کړو نو هغه زما نه په سلام کولو کې مخکې شو .

بخاري په خپل صحيح کې ليکلي دي چې رسول الله صلي الله عليه وسلم فرمائيلي دي په کومه شپه چې زه معراج ته بوتلي شوم اوپه دغه شپه مې دموسی عليه السلام سره ملاقات هم اوشو اوهغه گډ وډ بدن او گونجي ويښتو والا ښکاريدو داسې معلوميدو لکه چې دشنوئه قبيلې والا څوك سړی وي ، بيا مې دعيسى عليه السلام سره هم ملاقات اوشو او هغه درميانه قد والا يو سوررنگي سړی وو داسې معلوميدو لکه اوس چې دحمام نه راوتلي وي، ما ابراهيم عليه السلام هم وليدو اودهغه په نسل کې دهغه سره دټولو نه زيات مشابهت لرونکي زه يم ماته دوه لوښي راوړلي شول په يو کې شوده وو اوپه بل کې شراب وو اوماته اووئيلي شول پدې دواړو کې چې دې کوم يو خوښ وي هغه واخله نوما شوده اوڅکل ماته هغه کس اووئيل چاچې ماته دانتخاب اختيار راکړی وو چې ته دفطرت په لاره اوغورځولي شوی اوکه داسې يې ووئيل چې فطرت دې حاصل کړو او کچرې شراب دې اخستلي وي نو امت به دې گمراه شوي وو.

*****************

## ٤٨_ بَاب مَا جَاءَ فِي فَضْلِ الصَّلَوَاتِ الْخَمْسِ

### دپنځو مونځونو دفضيلت بيان

٢١٤_ حَدَّثَنَا عَلِيُّ بْنُ حُجْرٍ. أَخْبَرَنَا إِسْمَاعِيل بْنُ جَعْفَرٍ. عَنْ الْعَلَاءِ بْنِ عَبْدِ الرَّحْمَنِ. عَنْ أَبِيهِ. عَنْ أَبِي هُرَيْرَةَ أَنَّ رَسُولَ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ. قَالَ: " الصَّلَوَاتُ الْخَمْسُ وَالْجُمُعَةُ إِلَى الْجُمُعَةِ كَفَّارَاتٌ لِمَا بَيْنَهُنَّ مَا لَمْ تُغْشَ الْكَبَائِرُ ". قَالَ: وَفِي الْبَاب عَنْ جَابِرٍ. وَأَنَسٍ. وَحَنْظَلَةَ الْأُسَيِّدِيِّ.
قَالَ أَبُو عِيسَى: حَدِيثُ أَبِي هُرَيْرَةَ حَسَنٌ صَحِيحٌ. (١)

---

[1] صحيح مسلم/الطهارة ٥ (٢٣٣) . (تحفة الأشراف : ١٣٩٨٠) . مسند احمد (٢/٣١٣ ، ٢/٤٨٤)

**ترجمه**: ابوهريره رضي الله عنه بيان کوي چي رسول الله صلي الله عليه وسلم اوفرمائيل چي پنځه وخته مونځونه او دجمعې مونځ تربلې جمعې پورې دخپلې مينځنۍ مودې دګناهونو دپاره کفاره ده په دې شرط چي په دې دوران کي کبيره ګناهونه نه وي شوي. امام ترمذي وايي په دي باب کي د جابر او انس او حنظله اسيدي رضي الله عنهم نه هم احاديث وارد دي، اود ابو هريره حديث حسن صحيح دی.

**حل لغات**: تغش: غشي معني کول، مالم تغشي الکبائر يعني مالم تؤت الکبائر. يعني ترڅو چي يې دکبيره ارتکاب نوي کړي.

**تشريح**. خلاصه داده څوك چي دپنځه مونځونو او دجمعي دمونځ احتمام کوي نو صغيره ګناهونه يي معاف کيږي ليکن دکبيره ګناه دپاره توبه او استغفار ضروري دی.

سوال کله چي سړي پنځه وخته مونځ کوي نو په دي دده ګناهونه ختميږي او بيا څه ګناهونه په جمعو سره معاف شي ددي څه مطلب دی.

جواب: ملاعلي قاري وائي په مونځ سره ګناهونه معاف کيږي او که څه باقي پاتي شي نو هغه په جمعو سره معاف کيږي او که نه وي پاتي شوي نو ددي په بدله کي دده دپاره نيکياني ليکلی کيږي.

دويم جواب: عبدالحق دهلوي وايي چي په روزانه مونځونو او دجمعي په مونځ کي دا صلاحيت شته چي دګناهونو کفاره اوګرځي او که په مونځ کي تقصير او نقصان وي نو بيا په دي ګناهونه نه معاف کيږي بيا دجمعي دمونځ په برکت سره معاف شي.

*****************

## ٤٩_ بَابُ مَا جَاءَ فِي فَضْلِ الْجَمَاعَةِ

### دجماعت دفضيلت بيان

٢١٥_ حَدَّثَنَا هَنَّادٌ حَدَّثَنَا عَبْدَةُ، عَنْ عُبَيْدِ اللهِ بْنِ عُمَرَ، عَنْ نَافِعٍ، عَنِ ابْنِ عُمَرَ، قَالَ: قَالَ رَسُولُ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ: "صَلَاةُ الْجَمَاعَةِ تَفْضُلُ عَلَى صَلَاةِ الرَّجُلِ وَحْدَهُ بِسَبْعٍ وَعِشْرِينَ دَرَجَةً"، قَالَ: وَفِي الْبَابِ عَنْ عَبْدِ اللهِ بْنِ مَسْعُودٍ، وَأُبَيِّ بْنِ كَعْبٍ، وَمُعَاذِ بْنِ جَبَلٍ، وَأَبِي سَعِيدٍ، وَأَبِي هُرَيْرَةَ، وَأَنَسِ بْنِ مَالِكٍ. قَالَ أَبُو عِيسَى: حَدِيثُ ابْنِ عُمَرَ حَسَنٌ صَحِيحٌ، وَهَكَذَا رَوَى نَافِعٌ، عَنِ ابْنِ عُمَرَ، عَنِ النَّبِيِّ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ، أَنَّهُ قَالَ: "تَفْضُلُ صَلَاةُ الْجَمِيعِ عَلَى صَلَاةِ الرَّجُلِ وَحْدَهُ بِسَبْعٍ

وَعِشْرِينَ دَرَجَةً ". قَالَ أَبُو عِيسَى: وَعَامَّةُ مَنْ رَوَى عَنِ النَّبِيِّ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ إِنَّمَا قَالُوا: خَمْسٍ وَعِشْرِينَ. إِلَّا ابْنَ عُمَرَ، فَإِنَّهُ قَالَ: بِسَبْعٍ وَعِشْرِينَ. ([1])

**ترجمه** : دابن عمر رضي الله عنه نه روايت دی چي رسول الله صلي الله عليه وسلم فرمائيلي دي دامامتئ مونځ ديواځی انفرادي مانځه نه اوه ويشت چنده زيات ثواب لري.

امام ترمذي وايي چي په دي باب کي د عبد الله بن مسعود، ابي بن کعب، معاذ بن جبل، او ابو سعيد خدري، ابو هريره، انس بن مالك رضي الله عنهم نه هم احاديث وارد دي، امام ترمذي وايي د ابن عمر حديث حسن صحيح دی، دارنګي نافع هم د ابن عمر نه دا حديث مرفوعاً نقل کړی دی چي رسول الله فرمائيلي دي: دامامتئ مونځ د انفرادي مانځه نه اوه ويشت چنده زيات ثواب لري.

امام ترمذي وايي چي عامو راويانو چي دا حديث د رسول الله نه نقل کړی دی دهغوئ په روايتونو د ۲۵ درجو ذکر دی، مګر صرف د ابن عمر په روايت کي د اوه ويشت درجو ذکر راغلي دی.

**تشريح** : په دي روايت کي اوويشت درجي داجر زياتوالی راغلی دی او په بل روايت کي پنځه ويشت درجي راغلي دي ظاهرا په دواړو روايتونو کي تعارض ښکاري محدثينو ددينه يو څو جوابونه کړي دي اول مثلا دا اختلاف دمونځ کونکو داخلاص دحالاتو په تفاوت بنا دی چي څنو ته اوود ويشت درجي ملاويږي او څنو ته پنځه ويشت درجي بعضي علماء وائي په جهري مونځونو کي اووه ويشت درجي او په سري مونځونو کي پنځويشت درجي اجر دی بعضي علماء وائي پنځه ويشت درجي په وحي سره خودلی شوي دي بيا الله تعالي مزيد دخپل فضل او کرم معامله دامت محمديه سره اوکړه او دوه درجي ثواب يي نور زيات کړو.

جماعت سنت مؤکده دي.څکه چی رسول پاك صلي الله عليه وسلم فرمائيلی دی.جماعت د سنن هدی نه دي. ددی نه به صرف منافق پاتې کيږی.

سنت په دد قسمه دي.سنن هدی او دويم سنن زوائد ،(۱)سنن هدی هغه دی.په کوم باندې چی نبی کريم صلي الله عليه وسلم په طريقه د عبادت مواظبت کړی وی.خو کله ئې پريخودلی وی. ددی پريخودل ضلالت دي.اودا په شعائرو داسلام کي دي(۲)اوسنت زائده هغه دي.کوم چی رسول پاك صلي الله عليه وسلم په طريقه دعادت کړې وی. ددی په

---

[1] صحيح البخاري/الأذان ۳۰ (٦٤٥)، و۳۱ (٦٤٩)، صحيح مسلم/المساجد ۴۲ (٦٥٠)، سنن النسائي/الإمامة ۴۲ (۸۳۸)، سنن ابن ماجه/المساجد ۱٦ (۷۸۹)، (تحفة الأشراف: ۸۰۵۵)، موطا امام مالک/صلاة الجماعة ۱ (۱)، مسند احمد (۲/۱۷، ٦۵، ۱۰۲، ۱۱۲)، سنن الدارمی/الصلاة (٥٦)

پريخودلو کي څه حرج نشته.لکه د تهجدو مونځ، بهرحال جماعت سنت مؤکده دي.بغير د عذر نه ددی پريخودل جائز نه دی.ترديې که د يو ښار خلق جماعت پريږدی.نوهغوی ته به د جماعت د مونځ کولو حکم کولی شی.که هغوی په دی باندې عمل اوکړو.نو ډيره ښه ده.ګنې هغوی سره قتال کول جائز دي.

د جماعت د سنت مؤکده کيدو تائيد ددی احاديثو نه هم کيږی.کوم چې د جماعت په فضيلت کي راغلی دی (١) د رسول پاك صلي الله عليه وسلم ارشاد دې (صلاة الجماعة أفضل من صلاة أحدكم وحده بخمسة وعشرين درجة) يعنی د جماعت مونځ د خانله مونځ په نسبت يو په پنځويشت درجي افضل دی.او په يو روايت کي دی چې په اوويشت درجي افضل دې (٢)امام ابوداؤد ،ترمذی،او ابن ماجه د ابی بن کعب(رضي الله عنه) په حديث کي روايت کړی دی(صلاة الرجل مع الرجل أزكى من صلاته وحده.وصلاة الرجل مع الرجلين أزكى من صلاته مع رجل وما زاد فهو أحب إلى الله تعالى) يعنی د دوو کسانو جماعت د ځان له کس دمونځ نه غوره دې.اوددوو کسانود جماعت مونځ د دری کسانو د جدا جدا مونځ نه غوره دې.او څومره چې زيات وی.دالله تعالی خوښ وی.

د امام محمد نه د اصول د روايت نه بغير نقل شوی دی چې جماعت واجب دې.په احنافو کي عام مشائخ ددی قائلين دی، دليل دوجوب د رسول پاك صلي الله عليه وسلم دا قول دي (لقد هممت أن آمر المؤذن فيؤذن ثم آمر رجلاً فيصلي باالناس ثم أنطلق برجال مع حزم الخطب إلى قوم يتخلفو عن الصلاة فأحرق عليهم بيوتهم بالنار) يعنی رسول پاك صلي الله عليه وسلم فرمائی چې ما اراده کړې وه چې موذن ته حکم اوکړم چې هغه اذان اوکړی.او بيا زه يوکس ته حکم اوکړم چې هغه خلقو ته مونځ ورکړی.او بيا څه خلق چې هغوی سره لرګی وی.واخلم.اوداسی خلقو طرف ته ورشم.څوك چې د مونځ نه روستو پاتې کيږی.او بيا په هغوی باندې د هغوی کورونه اوسوزوم.په دی حديث کي بيخی د مونځ پريخودل مراد نه دی.بلکه د جماعت مونځ پريخودل مراد دې.

امام احمد بن حنبل او داود ظاهری فرمائی چې جماعت فرض عين دې.دا په (لا صلاة لجار المسجد الا في المسجد) باندې استدلال کوی.يعنی چې د مسجد په ګاونډ کي اوسيږی.د مسجد نه علاوه د هغه مونځ نه کيږی.

زمونږ د طرفه ددی جواب دا دې چې په حديث کي د صلاة کامله نفی ده.لکه څنګه چې (لا صلاة للعبد الآبق ولا للمرأة الناشزة) کي د کامل مونځ نفی شوې ده.

دامام كرخي اودشافعي د اكثرو ملگرو په نزد جماعت فرض كفايه دې.د دوى دليل دا دې چې مقصودي فرض د شعائر اسلام ښكاره كول دي.اودا مقصود په بعضو كسانو باندې حاصليږى خودا استلال ډير كمزوري دې.ځكه چې د رسول پاك صلي الله عليه وسلم په زمانه كي په مسجد كي جماعت كيدلو. ددى باوجود رسول پاك صلي الله عليه وسلم د جماعت د پريخودونكو دپاره سخت وعيد بيان كړې دې.والله اعلم بالصواب.

## د مونځ د اوږدولو حكم

مسئله :امام به خلقو ته اوږد مونځ نه وركوى ځكه چې رسول پاك صلي الله عليه وسلم فرمائيلى دى.خوك چې قوم ته امامتى كوى.نو په هغوى كي دې د هغوى د كمزورى سړى مونځ كوى.ځكه چې په مقتديانو كي بيماران هم وى او بوډاگان هم.او ضرورت مند هم.اود معاذ بن جبل (رضي الله عنه) حديث هم مستدل دې.ځكه چې معاذ(رضي الله عنه) خپل قوم ته اوږده مونځونه كول.نو د قوم خلقو رسول پاك صلي الله عليه وسلم ته گيله اوكړه. رسول پاك صلي الله عليه وسلم اوفرمائيل (أفتان أنت يا معاذ) دا حديث وړاندې تير شوې دې.اودا خبره د صحت په طريقه باندې ثابته ده چې يو وارى رسول پاك صلي الله عليه وسلم د صبا مونځ كي معوذتين اولوستل .كله چې رسول پاك صلي الله عليه وسلم د مانځه نه فارغ شو.نو صحابه كرامو عرض اوكړو.اى دالله پيغمبره تاسو ډير اختصار اوكړو . رسول پاك صلي الله عليه وسلم اوفرمائيل د ماشوم د ژړا د آواز د وجى چې دده مور په فتنه كي واقع نشى. ددى واقعى نه معلومه شوه چې د امام دپاره د خپل قوم د حالت خيال ساتل مناسب دى.

## د ښځو د امامت كراهت

دښځو خانله جماعت سره مونځ كول مكروه تحريمى دى، ځكه چې د ښځو جماعت كول د حرام فعل (مكروه) نه خالى نه وى. ځكه چې.د دوى امامه به يا د مقتديانو ښځو نه وړاندې ولاړه وى.يا به ددوى په مينځ كي وى(١)په اولنى صورت كي د عورت ښكاره كيدل زيات وى. حالانكه دا مكروه دى(٢)او په دويم صورت كي دامام خپل مقام پريخودل لازميږى. حالانكه دا هم مكروه دى.او جماعت سنت دې.او قاعده دا ده چې د مكروه د ارتكابو په نسبت د سنت پريخودل غوره دى.نوځكه د ښځو په حق كي دجماعت سنت پريخودلى شو.اود ښځو حالت د بربنډو د حال پشان دې.يعنى لكه څنگه چې د بربنډو جماعت مكروه دې.دغه شان د ښځو جماعت مكروه دې.

كه د كراهت تحريمى باوجود ښځو د جماعت مونځ كولو.نوامام به د دوى په مينځ كي اودريږى.ځكه چې عائشې رضى الله عنها هم داسې كړې وو.

ليکن دلته يو اشکال دې چې هر کله عائشه رضی الله عنها د جماعت مونځ کړې وو.نودا مکروه تحريمی ولي دی ؟ جواب دا دې چې د ام المومنين رضی الله عنها دا عمل په ابتداء د اسلام باندې حمل کولی شی، خو په دی جواب باندې اعتراض دې چې د نبوت نه پس رسول پاك صلي الله عليه وسلم ديارلس کاله په مکه مکرمه کي تير کړل.اوبيائې په مدينه منوره کي د شپږو کالو په عمر کي د عائشی رضی الله عنها سره نکاح اوکړله.بيا چی کله د نهو کالو شوه.نووادهٔ ئې ورسره اوکړو.يعنی د عائشی رضی الله عنها رخصتی اوشوه.او د دوی په ژوندی کي نهه کاله پاتې شوه.نو د عائشی رضی الله عنها د امامت واقعه د بلوغت نه پس شوې ده.او په دی صورت کي دا فعل په ابتداء د اسلام باندې څنګه حمل کولی شی؟ ددی جواب دا دې چی په ابتداء د اسلام باندې د حمل کولو نه مراد دا دې چی د ښځو د جماعت حکم منسوخ دې.

## د يو مقتدی په امام پسې اقتداء

مسئله دا ده.که يو سړې يو مقتدی سړی ته امامتی ورکوی.نو دا مقتدی دی خپل ښی طرف ته اودروی ددي دليل دابن عباس رضی الله عنهما حديث دې.پوره حديث دا دې :

(بت عند خالتي ميمونة رضی الله عنها لإراقب صلاة النبي صلي الله عليه وسلم بالليل فانتبه قال نامت العيون وغايت النجوم وبقي الحي القيوم ثم قرأ آخر سورة آل عمران ﴿إن في خلق السماوات والأرض واختلاف الليل والنهار إلى آخرها ثم قام إلى شن معلق فتوضأ وافتتح فقمت وتوضأت وقفت على يساره وأخذ بأذني وأدارني خلفه حتى أقامني عن يمينه) (متفق عليه)

يعنی ابن عباس رضی الله عنهما فرمائی چی ماد خپلي ترور ميمونی رضی الله عنها کره شپه تيره کړه چی د رسول پاك صلي الله عليه وسلم د شپی مونځ اوګورم.نو رسول پاك صلي الله عليه وسلم پاخيدلو.او ويی فرمائيل.سترګی اودی شوی دی.او ستوری ډوب شوی دی.او حی او قيوم ذات باقی دې.بيا دوی سورة آل عمران آخری آيتونه: ان في خلق السماوات والارض واختلاف الليل والنهار نه تر آخره سورت پوري اولوستل.بيا رسول پاك صلي الله عليه وسلم په يو ميخ پورې د زوړند مشك نه اوبه واخستلی او اودس ئې اوکړو.او مونځ ئې شرع کړو.نو زه هم پاخيدم.اودس می اوکړو.او د رسول پاك صلي الله عليه وسلم ګس طرف ته اودريدم.نو رسول پاك صلي الله عليه وسلم زه د غوږ نه اونيولم.او زه ئې خپلي شاه طرف ته رانښکلم.تردی چی خپل ښی طرف ته ئې اودرولم. ددی حديث نه معلومه شوه. هرکله چي د امام سره يو مقتدی وی.نو هغه د امام ښی طرف ته اودريدل مختار قول دې.په ظاهر الرواية کي دی چی يومقتدی به په امام پسې شاه ته نه اودريږی.

اود امام محمد نه نقل دی چی مقتدی به خپلي ګوتی د امام د پوندی سره برابر کوی.او اول قول ظاهر دي.او که یو مقتدی د امام شاه ته یا ګس طرف ته مونځ اوکړو.نو هم جائز دي.یعنی مونځ ئي نه فاسدیږی.خوګناهګار دي.ځکه چی ده د سنتو خلاف عمل اوکړو.

## د سړو دپاره په ښځو او ماشومانو پسې د اقتداء حکم

دسړو دپاره د ښځو او ماشومانو پسې اقتداء کول جائز نه دی د ښځی پسې اقتداء کول خو ددی وجی ناجائزده چی رسول پاك صلي الله علیه وسلم فرمائیلی دی (أخروهن من حیث أخرهن الله) دلته داستدلال دوه وجوهات دي (١) وجه د استدلال دا ده چی لفظ د "حیث" نه مراد ځائي دي.او چی په کوم ځائي کي د ښځو تاخير واجب وی.هغه د مانځه د ځائي نه علاوه بل ځائي نه دي.نو ثابته شوه چی الله تعالی ښځی د مانځه په ځائي کي روستو کړي دی. یعنی دا حق ئي نه دی ورکړي چی دوی سړو ته امامتی ورکړی(٢)اوبعضي عالمانوفرمائیلی دی چی "حیث" د تعلیل دپاره دي.نو اوس ترجمه دا شوه چی ښځې روستو کوئ.ځکه چی الله تعالی دوی روستو کړی دی.الله تعالی دوی.په شهادت، وراثت،سلطنت او ټولو ولایاتو کي روستو کړی دی.نو هرکله چی الله تعالی ښځه روستو کړي ده.نو ددی وړاندې کول یعنی دا امام جوړول به هم جائز نه وی.

پاتې شو د ماشوم دامامتي خبره ،نو دده امامت ددی وجی جائز نه دي چی دی نفل کونکی دي.نو د مفترض په ده پسې اقتداء کول جائز نه دی.یعنی د بالغ فرض مونځ په ده پسې جائز نه دي.

په تراویحو او سنن مطلقه کي اختلاف دي (١)د بلخ د مشانخود قول مطابق په تراویحو او سنن مطلقه کي په نابالغه پسې اقتداء کول جائز دی(٢)او زمونږ مشانخو یعنی مشائخ د ماوراالنهر دا ناجائز ګرځولي ده.

دسنن مطلقه نه مراد سنن رواتب دی.کوم چی د سنتو نه وړاندې او د فرضو نه پس مشروع شوی دی.د یو روایت مطابق د اختر مونځ هم سنت دي.او وتر ،کسوف ،خسوف او استسقاء مونځونه هم د صاحبینو په نزد سنت دی، لیکن په ماشوم پسې داقتداء کولو متعلق دوه اقوال دي: (١) حاصل دا چی په سنت مونځونو کي که نابالغ ماشوم امامت ئی اوکړله.نو د بلخ د مشانخو په نزد د بالغو سړو دپاره په ده پسې اقتداء کول جائز دي (٢)او د ماوراء النهر یعنی بخارا او سمرقند د عالمان او مشائخ بي ناجائز ګرځوی.

دلیل دجواز داقتداء :د بلخ مشانخو په مظنونه مونځ باندې قیاس کړې دي.مظنونه مونځ دا دي چی یو کس دا خیال اوکړو چی دده په ذمه واجب دي.نو ده په دی ګمان کي مونځ ادا کول شروع کړو.په مینځ کي ورته مفسد پیښ شو.او مونځ مات شو.بیا معلومه شوه چی دده په ذمه واجب نه وو. اوس د شروع د وجی ددی قضاء راوړل واجب دی.یا نه دی.په دی باره

کي د درې واړه امامانو په نزد حکم دا دې چې قضاء واجب نه ده.البته د امام زفر په نزد قضاء واجب ده.نو که نفل ادا کونکی بالغ سړی په بل سړی پسې په مظنونه مونځ کي اقتداء کړې وه.نوجائز ده.اوس د بلخ دمشائخو د قیاس حاصل دا شو چې نفل مونځ په شروع کولو باندې واجبیږی.او مظنونه مونځ نه واجبیږی.نوهرکله چې نفلی مونځ ګذار په مظنونه مونځ کونکی پسې اقتداء کولی شی.نودغه شان نفلی مونځ ګذار په ماشوم پسې اقتداء کولی شی.

زمونږ په مشائخو کي بعضو د نفل مطلق په صورت کي د امام ابویوسف اوامام محمد په مینځ کي اختلاف بیان کړې دې(۱)امام ابویوسف فرمائی چې په نفل مطلق کي هم د بالغ سړی په ماشوم پسې اقتداء جائز نه ده(۲)او امام محمد دا جائز ګرځولې ده.امام ابو یوسف صاحب د د بالغ سړی په ماشوم پسې اقتداء په هیڅ مانځه کي جائز نه ده.که نفل مطلق وی اوکه موقت وی.هم دا د ماوراء النهر د مذهب دې.

د مختار مذهب دلیل دا دې چې د ماشوم مونځ ګذار نفل د بالغ مونځ ګذار د نفلو نه په درجه کي کم دی.ځکه چې په اتفاق سره که ماشوم په نفلو کي شروع اوکړی.اوبیا فاسد ئې کړی.نو په ده باندې قضاء واجب نه ده.اوکه بالغ سړی نفلی مونځ فاسد کړو.نو د هغه په ذمه قضاء واجب ده.اوقاعده دا ده چې د قوی بناء په ضعیف باندی نه کیږی.نوځکه به د بالغ د نفلو بناء د ماشوم په نفلو باندې نشی کولې.

په " بخلاف المظنون" سره د بلخ د مشائخو د قیاس نه جواب کوی ،د جواب حاصل دا دې چې بالغ په ماشوم پسې اقتداء کول په "ظان" پسې اقتداء کولو باندې قیاس کول فاسد دی.ځکه چې د مظنون مونځ مختلف فیه دې.د امام زفر په نزد د فساد په صورت کې په ظان باندې قضاء واجب ده.اود ماشوم مونځ که فاسد شی.نوپه هغه باندې په اجماع سره قضاء واجب نه ده.دغه شان طفولیت (ماشومتوب) داسې څیز دې.کوم چې د بلوغ پورې بر حال باقي وی.نو د بالغ مونځ دده د مونځ سره مونځ کیدی نشی.ځکه چې د فساد په صورت کي په بالغ باندې قضاء واجب ده.او په نابالغ باندې قضاء نه واجبیږی.

ددی په خلاف د مظنون ظن، دا یو عارضی څیز دې.نودا به معدوم معتبر کولی شی.نو که نفلی مونځ ګذار په مظنون امام پسې اقتداء اوکړله.نو د دواړو مونځ متحد کیدی شی .بیا خاص کر د امام زفرپه نزد ځکه چې د فساد په صورت کي په دواړو باندې قضاء واجبیږی.

حاصل دا چې د بالغ او نابالغ مونځونه غیر متحد دی.اود بالغ او ظان مونځونه متحد دی.بیا خاص کر د امام زفر په نزد نوچې دا فرق موجود وی.نو (اقتداء البالغ بالصبی په إقتداء البالغ بالظان) باندې قیاس مع الفارق شو. ددی په خلاف د نابالغ په نابالغ پسی اقتداء کول جائز ده.ځکه چې د دواړو مونځونه متحد دی.ځکه چې په دواړو کي په چا

باندې قضاء واجب نه ده.نودا بناء د ضعيف په ضعيف باندې شوه.او دا جائز ده.(شرح رياض الصالحين)

*****************

٢١٦_ حَدَّثَنَا إِسْحَاقُ بْنُ مُوسَى الأَنْصَارِيُّ، حَدَّثَنَا مَعْنٌ، حَدَّثَنَا مَالِكٌ، عَنْ ابْنِ شِهَابٍ، عَنْ سَعِيدِ بْنِ الْمُسَيَّبِ، عَنْ أَبِي هُرَيْرَةَ، أَنَّ رَسُولَ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ، قَالَ: " إِنَّ صَلَاةَ الرَّجُلِ فِي الْجَمَاعَةِ تَزِيدُ عَلَى صَلَاتِهِ وَحْدَهُ بِخَمْسَةٍ وَعِشْرِينَ جُزْءًا ". قَالَ أَبُو عِيسَى: هَذَا حَسَنٌ صَحِيحٌ. (1)

**ترجمه** دابو هريره رضي الله عنه نه روايت دي فرمائي چي رسول الله صلي الله عليه وسلم فرمائيلي دي ديو سړي په جمعي سره مونځ كول ديواخي مونځ نه پنځه ويشت چنده زيات اجر لري

امام ترمذي وائي دا حديث حسن صحيح دي.

*****************

## ٥٠_ باب مَا جَاءَ فِيمَنْ يَسْمَعُ النِّدَاءَ فَلاَ يُجِيبُ

### بيان دهغه چا چي اذان واوري او مسجد ته حاضر نه شي

٢١٧_ حَدَّثَنَا هَنَّادٌ، حَدَّثَنَا وَكِيعٌ، عَنْ جَعْفَرِ بْنِ بُرْقَانَ، عَنْ يَزِيدَ بْنِ الأَصَمِّ، عَنْ أَبِي هُرَيْرَةَ، عَنِ النَّبِيِّ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ، قَالَ: " لَقَدْ هَمَمْتُ أَنْ آمُرَ فِتْيَتِي أَنْ يَجْمَعُوا حُزَمَ الْحَطَبِ، ثُمَّ آمُرَ بِالصَّلَاةِ فَتُقَامَ، ثُمَّ أُحَرِّقَ عَلَى أَقْوَامٍ لَا يَشْهَدُونَ الصَّلَاةَ ". قَالَ أَبُو عِيسَى: وَفِي الْبَاب عَنْ عَبْدِ اللَّهِ بْنِ مَسْعُودٍ، وَأَبِي الدَّرْدَاءِ، وَابْنِ عَبَّاسٍ، وَمُعَاذِ بْنِ أَنَسٍ، وَجَابِرٍ. قَالَ أَبُو عِيسَى: حَدِيثُ أَبِي هُرَيْرَةَ حَسَنٌ صَحِيحٌ. وَقَدْ رُوِيَ عَنْ غَيْرِ وَاحِدٍ مِنْ أَصْحَابِ النَّبِيِّ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ. أَنَّهُمْ قَالُوا: مَنْ سَمِعَ النِّدَاءَ فَلَمْ يُجِبْ فَلَا صَلَاةَ لَهُ. وقَالَ بَعْضُ أَهْلِ الْعِلْمِ: هَذَا عَلَى التَّغْلِيظِ وَالتَّشْدِيدِ وَلَا رُخْصَةَ لِأَحَدٍ فِي تَرْكِ الْجَمَاعَةِ إِلَّا مِنْ عُذْرٍ. (2)

---

1 صحيح البخاري/الأذان ٣٠ (٦٤٧) ، و٣١ (٦٤٨) ، صحيح مسلم/المساجد ٤٢ (٦٤٩) ، سنن النسائي/الصلاة ٢١، والإمامة ٤٢ (١٣٩) ، سنن ابن ماجه/المساجد ١٦ (٧٨٦) موطا امام مالک/ صلاة الجماعة ١ (٢) ، (تحفة الأشراف : ١٣٢٣٩) . مسند احمد (٢/٢٥٢، ٢٢٤، ٢٦٤، ٢٦٦، ٣٢٨، ٤٥١، ٤٧٣، ٤٨٥، ٤٨٦، ٥٢٠، ٥٢٥، ٥٢٩)

2 صحيح البخاري/ الأذان ٢٩ (٦٤٤) ، و٣٤ (٦٥٧) ، والخصومات ٥ (٢٤٢٠) ، والأحكام ٥٢ (٧٢٢٤) ، صحيح مسلم/المساجد ٤٢ (٦٥١) ، سنن ابي داود/ الصلاة ٤٧ (٥٤٨، ٥٤٩) ، سنن النسائي/الإمامة ٤٩ (٨٤٩) ، سنن ابن

**ترجمه**: دابو هريره رضي الله عنه نه روايت دي فرمائي چي نبي كريم صلي الله عليه وسلم اوفرمائيل يقينا ما قصد اوكړو چي يو ځو ځوانانو ته حكم اوكړم چي دلرګو ګيډي راجمع كړي او بيا دمونځ كولو حكم اوكړم او مونځ اوكړي شي او بيا هغه خلق اوسوزوم ځوك چي مونځ ته نه حاضريږي.

امام ترمذي وائي په دي باب كي دعبدالله ابن مسعود، ابوالدرداء، ابن عباس، معاذ بن انس، او جابر رضي الله عنهم نه هم احاديث وارد دي، امام ترمذي وائي دابوهريره حديث حسن صحيح دي، په صحابه كرامو كي دمتعددو نه مروي دي چي ځوك اذان واوري او مونځ ته نه راځي نو دهغه مونځ نه كيږي بعضي اهل علمو ليكلي دي چي دا حكم په طريقه دتغليظ دي ليكن چاته بغير دعذر نه دجماعت پريخودو اجازت نشته.

****************

٢١٨ـ قَالَ مُجَاهِدٌ: وَسُئِلَ ابْنُ عَبَّاسٍ عَنْ رَجُلٍ يَصُومُ النَّهَارَ وَيَقُومُ اللَّيْلَ لَا يَشْهَدُ جُمُعَةً وَلَا جَمَاعَةً ؟ قَالَ: " هُوَ فِي النَّارِ ". قَالَ: حَدَّثَنَا بِذَلِكَ هَنَّادٌ. حَدَّثَنَا الْمُحَارِبِيُّ، عَنْ لَيْثٍ، عَنْ مُجَاهِدٍ، قَالَ: وَمَعْنَى الْحَدِيثِ أَنْ لَا يَشْهَدَ الْجَمَاعَةَ وَالْجُمُعَةَ رَغْبَةً عَنْهَا وَاسْتِخْفَافًا بِحَقِّهَا وَتَهَاوُنًا بِهَا. (1)

**ترجمه**: مجاهد وائي دابن عباس رضي الله عنهما نه دهغه چا په باره كي تپوس اوكړي شو ځوك چي دورځي روژه نيسي او دشپي دتهجدو دپاره قيام كوي مګر په جمعه او جماعت كي نه حاضريږي ابن عباس اووئيل دي به په جهنم كي وي، مجاهد وائي دحديث مفهوم دادي چي هغوئ په جمعه او جماعت كي بي رغبتي كوي او حقير يي ګڼړي او په دي كي دستي كولو په وجه نه حاضريږي (دا حكم هم په تغليظ بنا دي).

****************

## ٥١ـ بَاب مَا جَاءَ فِي الرَّجُلِ يُصَلِّي وَحْدَهُ ثُمَّ يُدْرِكُ الْجَمَاعَةَ

## حكم دهغه چا چي يواځي مونځ اوكړي او بيا جماعت بيامومي

---

ماجه/المساجد ١٧ (٧٩١)، (تحفة الأشراف: ١٣٨١٩)، موطا امام مالک/ صلاة الجماعة ١ (٣)، مسند احمد (٢/٢٤٤، ٣٧٦، ٤٨٩، ٥٣١)، سنن الدارمی/الصلاة ٥٤ (١٣١٠)

[1] تفرد به المؤلف (تحفة الأشراف: ٦٤٢١)

٢١٩_ حَدَّثَنَا أَحْمَدُ بْنُ مَنِيعٍ. حَدَّثَنَا هُشَيْمٌ. أَخْبَرَنَا يَعْلَى بْنُ عَطَاءٍ. حَدَّثَنَا جَابِرُ بْنُ يَزِيدَ بْنِ الأَسْوَدِ الْعَامِرِيُّ، عَنْ أَبِيهِ، قَالَ: شَهِدْتُ مَعَ النَّبِيِّ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ حَجَّتَهُ. فَصَلَّيْتُ مَعَهُ صَلاَةَ الصُّبْحِ فِي مَسْجِدِ الْخَيْفِ. قَالَ: فَلَمَّا قَضَى صَلاَتَهُ وَانْحَرَفَ. إِذَا هُوَ بِرَجُلَيْنِ فِي أُخْرَى الْقَوْمِ لَمْ يُصَلِّيَا مَعَهُ. فَقَالَ: " عَلَيَّ بِهِمَا " فَجِيءَ بِهِمَا تُرْعَدُ فَرَائِصُهُمَا. فَقَالَ: " مَا مَنَعَكُمَا أَنْ تُصَلِّيَا مَعَنَا ؟ " فَقَالاَ: يَا رَسُولَ اللهِ إِنَّا كُنَّا قَدْ صَلَّيْنَا فِي رِحَالِنَا. قَالَ: " فَلاَ تَفْعَلاَ إِذَا صَلَّيْتُمَا فِي رِحَالِكُمَا. ثُمَّ أَتَيْتُمَا مَسْجِدَ جَمَاعَةٍ فَصَلِّيَا مَعَهُمْ. فَإِنَّهَا لَكُمَا نَافِلَةٌ ". قَالَ: وَفِي الْبَابِ عَنْ مِحْجَنٍ الدِّيلِيِّ، وَيَزِيدَ بْنِ عَامِرٍ. قَالَ أَبُو عِيسَى: حَدِيثُ يَزِيدَ بْنِ الأَسْوَدِ حَدِيثٌ حَسَنٌ صَحِيحٌ. وَهُوَ قَوْلُ غَيْرِ وَاحِدٍ مِنْ أَهْلِ الْعِلْمِ. وَبِهِ يَقُولُ سُفْيَانُ الثَّوْرِيُّ، الشَّافِعِيُّ، وَأَحْمَدُ، وَإِسْحَاق. قَالُوا: إِذَا صَلَّى الرَّجُلُ وَحْدَهُ ثُمَّ أَدْرَكَ الْجَمَاعَةَ، فَإِنَّهُ يُعِيدُ الصَّلَوَاتِ كُلَّهَا فِي الْجَمَاعَةِ. وَإِذَا صَلَّى الرَّجُلُ الْمَغْرِبَ وَحْدَهُ ثُمَّ أَدْرَكَ الْجَمَاعَةَ، قَالُوا: فَإِنَّهُ يُصَلِّيهَا مَعَهُمْ وَيَشْفَعُ بِرَكْعَةٍ. وَالَّتِي صَلَّى وَحْدَهُ هِيَ الْمَكْتُوبَةُ عِنْدَهُمْ. (١)

**ترجمه**: دیزید بن اسود عامري رضي الله عنه بیان دي فرمائي چي په حجة الوداع کي دنبي کریم صلي الله علیه وسلم سره شریك وم او ما ورسره په مسجد خیف کي دسحر مونځ اوکړو کله چي رسول الله مونځ پوره کړو او زمونږ طرف ته راتاؤ شو نو څه ګوري چي دخلقو په اخر کي دوه کسان دي چي درسول الله سره یې مونځ اونکړو رسول الله اوفرمائیل دا (دتولو نه شاته) کسان ماته راولئ دوئ چي راوستلي شول نو پنډئ یې دویري نه رپیدلي تپوس یې ورنه اوکړو چي داسي مو ولي اوکړل هغوئ عرض اوکړو اي دالله رسوله مونږ پخپلو کورونو کي مونځ کړي وو رسول الله ورته اوفرمائیل داسي بیا مه کوئ کله چي تاسو په کورونو کي مونځ اوکړئ او بیا مسجد ته راشئ او هلته جماعت قائمیږي نو ددوئ سره هم اودریږئ دا به ستاسو دپاره نفل شي

امام ترمذي وائي چي د یزید بن اسود رضي الله عنه حدیث حسن صحیح دي، او په دي باب کي د محجن دیلي او یزید بن عامر نه هم احادیث وارد دي او په اهل علمو کي دډیرو علماو دا قول دي او همدا دسفیان ثوري، شافعي، احمد، اسحاق رحمهم الله قول هم دي چي کله چا یواخي مونځ کړي وي او بیا جماعت بیاموموي نو دي دي جماعت سره دوباره اودریږي او دوباره دي مونځ اوکړي او کله چي چا دماښام مونځ کړي وي او بیا جماعت بیاموموي نو دي

[1] سنن ابي داود/ الصلاة ٥٧ (٥٧٥). سنن النسائي/الإمامة ٥٤ (تحفة الأشراف : ١١٨٢٢). مسند احمد (١٦٠/٤، ١٦١). سنن الدارمي/الصلاة ٩٧ (١٤٠٧)

دي ددوئ سره مونځ اوکړي او يو بل رکعات دي اوکړي او دا دي جف اوګرځوي دهغه مونځ سره کوم چي ده يواځي کړي دي او دا به ددوئ په نزد فرض شي.

**تشريح** په دي کي داهل علمو اختلاف دي چي چا فرض مونځ کړي وي او بيا ددينه پس جماعت اودريږي نو دا کس به څه کوي په دي کي دوه مذاهب دي.

(١) دامام ابو حنيفه په نزد کچري دا دماسپخين او ماخوستن مونځ وي نو دنفلو په نيت دي په جماعت کي شريك شي او په باقي مونځونو کي شريك کيدي نشي، امام صاحب په دي مسئله کي د دارقطني دروايت نه استدلال کوي په کوم کي چي دمابنام او سحر استثناء مذکور وه

(٢) دويم مذهب دائمه ثلاثه دي ددوئ مذهب دادي که چا مخکي مونځ کړي وي نو په مونځونو کي به دنفلو په نيت شريکيږي او دمابنام په مونځ کي به ورسره يو رکعات بل يوځاي کوي، دامام مالك په نزدد يو روايت مطابق په ټولو مونځونو کي به دنفلو په نيت شريکيږي علاوه دمابنام نه جمهورو په دي مسئله کي دحديث الباب نه استدلال کړي دي خکه چي په دي روايت کي مطلقا ذکر راغلي دي او هيڅ تخصيص نشته، ددي جواب دادي په دي روايت کي اضطراب دي خکه چي په دي روايت کي مذکور دي چي دا دفجر واقعه ده او په بل يو روايت کي مذکوردي چي دا دظهر واقعه ده

****************

## ٥٢_ باب مَا جَاءَ فِي الْجَمَاعَةِ فِي مَسْجِدٍ قَدْ صُلِّيَ فِيهِ مَرَّةً

**په کوم مسجد کي چي يو ځل مونځ شوي وي په هغي کي دوباره دجمعي کولو بيان**

٢٢٠_ حَدَّثَنَا هَنَّادٌ، حَدَّثَنَا عَبْدَةُ، عَنْ سَعِيدِ بْنِ أَبِي عَرُوبَةَ، عَنْ سُلَيْمَانَ النَّاجِيِّ الْبَصْرِيِّ، عَنْ أَبِي الْمُتَوَكِّلِ، عَنْ أَبِي سَعِيدٍ، قَالَ: جَاءَ رَجُلٌ وَقَدْ صَلَّى رَسُولُ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ، فَقَالَ: " أَيُّكُمْ يَتَّجِرُ عَلَى هَذَا "، فَقَامَ رَجُلٌ فَصَلَّى مَعَهُ. قَالَ: وَفِي البَابِ عَنْ أَبِي أُمَامَةَ، وَأَبِي مُوسَى، وَالحَكَمِ بْنِ عُمَيْرٍ، قَالَ أَبُو عِيسَى: وَحَدِيثُ أَبِي سَعِيدٍ حَدِيثٌ حَسَنٌ، وَهُوَ قَوْلُ غَيْرِ وَاحِدٍ مِنْ أَهْلِ العِلْمِ مِنْ أَصْحَابِ النَّبِيِّ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ وَغَيْرِهِمْ مِنَ التَّابِعِينَ، قَالُوا: لَا بَأْسَ أَنْ يُصَلِّيَ القَوْمُ جَمَاعَةً فِي مَسْجِدٍ قَدْ صَلَّى فِيهِ جَمَاعَةٌ، وَبِهِ يَقُولُ: أَحْمَدُ، وَإِسْحَاق وقَالَ آخَرُونَ مِنْ أَهْلِ العِلْمِ: يُصَلُّونَ فُرَادَى، وَبِهِ يَقُولُ: سُفْيَانُ، وَابْنُ المُبَارَكِ، وَمَالِكٌ، وَالشَّافِعِيُّ: يَخْتَارُونَ الصَّلَاةَ فُرَادَى، وَسُلَيْمَانُ النَّاجِيُّ بَصْرِيٌّ وَيُقَالُ: سُلَيْمَانُ بْنُ الأَسْوَدِ، وَأَبُو المُتَوَكِّلِ اسْمُهُ: عَلِيُّ بْنُ دَاوُدَ. (١)

---

1

**ترجمه** : دابوسعيد خدري رضي الله عنه نه روايت دي فرمائي چي يو كس مسجد ته راغي او رسول الله صلي الله عليه وسلم دغه وخت كي مونځ كړي وو رسول الله خلقو طرف ته متوجه شو او ويې فرمائيل په تاسو كي به څوك دده سره تجارت اوكړي؟ يو كس اودريدو او هغه ورسره مونځ اوكړو.

امام ترمذي وائي دابوسعيد خدري حديث حسن صحيح دي ، او په دي باب كي د ابو امامه. ابو موسي، او حكم بن عمير رضي الله عنهم نه هم احاديث وارد دي. په صحابو تابعينو كي دمتعددو هم داقول دي چي په كوم مسجد كي يو خل جماعت قائم شوي وي په هغي كي په دويم خل جماعت قائمولو كي څه خرج نشته دا دامام احمد او اسحاق بن راهويه قول دي، او بعضي نور اهل علم وائي چي جدا جدا به مونځ كوي او دا دسفيان ثوري، ابن مبارك، مالك، شافعي رحمهم الله قول دي دوی جدا جدا مونځ كول خوښوي.

***************

## ٥٣_ باب مَا جَاءَ فِي فَضْلِ الْعِشَاءِ وَالْفَجْرِ فِي الْجَمَاعَةِ

**دماخوستن او سحر مونځ په جماعت سره د اداء كولو فضيلت**

**٢٢١_ حَدَّثَنَا مَحْمُودُ بْنُ غَيْلَانَ، حَدَّثَنَا بِشْرُ بْنُ السَّرِيِّ، حَدَّثَنَا سُفْيَانُ، عَنْ عُثْمَانَ بْنِ حَكِيمٍ، عَنْ عَبْدِ الرَّحْمَنِ بْنِ أَبِي عَمْرَةَ، عَنْ عُثْمَانَ بْنِ عَفَّانَ، قَالَ: قَالَ رَسُولُ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ: " مَنْ شَهِدَ الْعِشَاءَ فِي جَمَاعَةٍ كَانَ لَهُ قِيَامُ نِصْفِ لَيْلَةٍ، وَمَنْ صَلَّى الْعِشَاءَ وَالْفَجْرَ فِي جَمَاعَةٍ كَانَ لَهُ كَقِيَامِ لَيْلَةٍ ". قَالَ: وَفِي الْبَاب عَنْ ابْنِ عُمَرَ، وَأَبِي هُرَيْرَةَ، وَأَنَسٍ، وَعُمَارَةَ بْنِ رُوَيْبَةَ، وَجُنْدَبِ بْنِ عَبْدِ اللَّهِ بْنِ سُفْيَانَ الْبَجَلِيِّ، وَأُبَيِّ بْنِ كَعْبٍ، وَأَبِي مُوسَى وَبُرَيْدَةَ. قَالَ أَبُو عِيسَى: حَدِيثُ عُثْمَانَ حَدِيثٌ حَسَنٌ صَحِيحٌ، وَقَدْ رُوِيَ هَذَا الْحَدِيثُ عَنْ عَبْدِ الرَّحْمَنِ بْنِ أَبِي عَمْرَةَ، عَنْ عُثْمَانَ مَوْقُوفًا. وَرُوِيَ مِنْ غَيْرِ وَجْهٍ عَنْ عُثْمَانَ مَرْفُوعًا. (١)**

**ترجمه** : دعثمان رضي الله عنه نه مروي دي چي رسول الله صلي الله عليه وسلم فرمائيلي دي څوك چي دماخوستن مونځ ته حاضر شي هغه ته دنيمي شپي پوري دقيام اجر ملاويږي او څوك چي دماخوستن او سحر دواړو مونځونو كي حاضر شي هغه ته به دتمامي شپي دقيام الليل برابر اجر وركولي شي.

امام ترمذي وائي د عثمان حديث حسن صحيح دي، او په دي باب كي د ابن عمر ، ابوهريره، انس بن عماره بن رويبه، جندب بن عبدالله بن سفيان بجلي، ابيّ بن كعب، ابوموسي، او بريده رضي الله عنهم نه هم احاديث وارد دي، دا حديث دعبدالرحمن بن ابي عمره په سند دعثمان رضي الله عنه نه موقوفا منقول دي او په يو څو نورو سندونو دعثمان رضي الله عنه نه مرفوعاً هم مروي دي او سليمان الناجي بصري دي او ده ته سليمان بن اسود او ابو المتوكل هم وئيلي شي او دده نوم علي بن داود دي.

**تخريج**: صحيح مسلم/المساجد ٤٦ (٦٥٦) . سنن ابي داود/ الصلاة ٤٨ (٥٥٥) . (تحفة الأشراف: ٩٨٢٣) . موطا امام مالک/ صلاة الجماعة ٢ (٧) . مسند احمد (٥٨/١، ٦٨)

****************

٢٢٢_ حَدَّثَنَا مُحَمَّدُ بْنُ بَشَّارٍ، حَدَّثَنَا يَزِيدُ بْنُ هَارُونَ، أَخْبَرَنَا دَاوُدُ بْنُ أَبِي هِنْدٍ، عَنِ الْحَسَنِ، عَنْ جُنْدَبِ بْنِ سُفْيَانَ، عَنِ النَّبِيِّ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ، قَالَ: "مَنْ صَلَّى الصُّبْحَ فَهُوَ فِي ذِمَّةِ اللَّهِ، فَلَا تُخْفِرُوا اللَّهَ فِي ذِمَّتِهِ". قَالَ أَبُو عِيسَى: حَدِيثٌ حَسَنٌ صَحِيحٌ. [1]

**ترجمه**: دجندب بن سفيان رضي الله عنه نه روايت دي چي نبي كريم صلي الله عليه وسلم فرمائيلي دي چاچي دسحر مونځ اوكړو دي به دالله په پناه كي وي نو تاسو دالله پناه لره دلاس نه وتلو ته مه پريږدئ.

امام ترمذي وائي دجندب بن سفيان حديث حسن صحيح دي.

****************

٢٢٣_ حَدَّثَنَا عَبَّاسٌ الْعَنْبَرِيُّ، حَدَّثَنَا يَحْيَى بْنُ كَثِيرٍ أَبُو غَسَّانَ الْعَنْبَرِيُّ، عَنْ إِسْمَاعِيلَ الْكَحَّالِ، عَنْ عَبْدِ اللَّهِ بْنِ أَوْسٍ الْخُزَاعِيِّ، عَنْ بُرَيْدَةَ الْأَسْلَمِيِّ، عَنِ النَّبِيِّ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ قَالَ: "بَشِّرِ الْمَشَّائِينَ فِي الظُّلَمِ إِلَى الْمَسَاجِدِ بِالنُّورِ التَّامِّ يَوْمَ الْقِيَامَةِ" قَالَ أَبُو عِيسَى: هَذَا حَدِيثٌ غَرِيبٌ مِنْ هَذَا الْوَجْهِ، مَرْفُوعٌ هُوَ صَحِيحٌ مُسْنَدٌ، وَمَوْقُوفٌ إِلَى أَصْحَابِ النَّبِيِّ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ، وَلَمْ يُسْنَدْ إِلَى النَّبِيِّ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ. [2]

---

[1] صحيح مسلم/المساجد ٤٦ (٦٥٧) . (تحفة الأشراف: ٣٢٥٥) . مسند احمد (٣١٢/٤، ٣١٣)

[2] سنن ابي داود/ الصلاة ٥٠ (٥٦١) . (تحفة الأشراف: ١٩٤٦) .

**ترجمه** دبريده اسلمي رضي الله عنه نه مروي دي چي نبي كريم صلي الله عليه وسلم فرمائيلي دي په تياره كي مسجد ته راتلونكي به دقيامت په ورځ په كامل نور كي وي او هغه ته دكامل نور بشارت وركړئ.

امام ترمذي وائي دا حديث په دي سند غريب دي او دا حديث عبدالرحمن بن ابي عمره دعثمان رضي الله عنه نه موقوفا نقل كړي دي او په ډيرو سندونو دعثمان رضي الله عنه نه مرفوعاً هم مروي دي.

## دبريده رضي الله عنه حالات

نوم بريده كنيه ابو عبدالله او دپلار نوم مصيب بن عبدالله. كله چي رسول الله صلي الله عليه وسلم مديني ته ورسيدو نو بريده يي په خدمت كي حاضر شو نو رسول الله ورته داسلام دعوت وركړو نو دى فورا مسلمان شو او دده سره دبني اسلم اتيا كسان په اسلام كي داخل شول (طبقات ابن سعد).

په صلح حديبيه او بيعة الرضوان كي يي هم شركت كړى دى (اسد الغابه).

او په فتح مكه كي يي هم ملګرتيا كړي وه (مسند احمد).

تقريبا په شپاړسو غزواتو كي شريك پاتي شوى دى (بخاري كتاب المغازي).

كله چي رسول الله صلي الله عليه وسلم داسامه په مشرئ كي اخر لښكر تيار كړو نو په دي كي هم شريك وو (طبقات ابن سعد).

غرض دا چي دده په رګ رګ كي دجهاد جذبي توپونه وهل او دژوند مزه به يي داسونو په زغلولو كي ليدله (طبقات ابن سعد).

دېزيد په زمانه كي دهجرت په ٦٣ كال وفات شو چي دمروياتو شمير يي ١٦٤دى يو متفق عليه دى او دوه په بخاري كي دي يولس په مسلم كي دي (تهذيب الكمال).

***************

## ٥٤_ بَاب مَا جَاءَ فِي فَضْلِ الصَّفِّ الأَوَّلِ

### داولني صف دفضيلت بيان

٢٢٤_ حَدَّثَنَا قُتَيْبَةُ، حَدَّثَنَا عَبْدُ الْعَزِيزِ بْنُ مُحَمَّدٍ، عَنْ سُهَيْلِ بْنِ أَبِي صَالِحٍ، عَنْ أَبِيهِ، عَنْ أَبِي هُرَيْرَةَ، قَالَ: قَالَ رَسُولُ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ: "خَيْرُ صُفُوفِ الرِّجَالِ أَوَّلُهَا وَشَرُّهَا آخِرُهَا، وَخَيْرُ صُفُوفِ النِّسَاءِ آخِرُهَا وَشَرُّهَا أَوَّلُهَا" قَالَ: وَفِي الْبَابِ عَنْ جَابِرٍ، وابْنِ عَبَّاسٍ، وأَبِي سَعِيدٍ، وأُبَيٍّ، وعَائِشَةَ، والعِرْبَاضِ بْنِ سَارِيَةَ، وأَنَسٍ، قَالَ أَبُو عِيسَى: حَدِيثُ أَبِي هُرَيْرَةَ حَدِيثٌ حَسَنٌ

صَحِيحٌ. وَقَدْ رُوِيَ عَنِ النَّبِيِّ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ أَنَّهُ كَانَ " يَسْتَغْفِرُ لِلصَّفِّ الْأَوَّلِ ثَلَاثًا وَلِلثَّانِي مَرَّةً".[1]

**ترجمه** دابوهريره رضي الله عنه نه روايت دى چي رسول الله صلي الله عليه وسلم فرمائيلي دي دسړو په صفونو كي بهترين رومبني صفونه دي اوخراب وروستني صفونه دي او دښځو په صفونو كي بهترين روستني صفونه دي او خراب وړومبي دي امام ترمذي وائي په دي باب كي دجابر. ابن عباس. ابوسعيد، ابئ بن كعب، عائشه، عرباض بن ساريه، او انس بن مالك رضي الله عنهم نه هم احاديث وارد دي امام ترمذي وائي حديث دابوهريره حديث حسن صحيح دي او مروي دي چي نبي كريم صلي الله عليه وسلم به د اول صف والادپاره دري خله مغفرت غوښتلو او ددويم صف والادپاره به يي يو خل غوښتلو.

**حل لغات**: خير داسم تفضيل صيغه ده داخير نه مخفف دي او مونث يي خيرة راځي او جمع يي خيور دي په معني دنيكئ سره.

**تشريح** دسړو په بهترين صفونو كي بهتر صف اولنى دى سړو لره پكار دي چي امام ته نزدي وي نو بهتره ده او دښځو په بهترينو صفونوكي غوره صف اخري دى ددي وجه داده چي ښځي دسړو نه څومره لري وي نو دومره يي اجر او ثواب زيات دى ددينه معلومه شوه چي شريعت سړي او ښځي ديوځاي كيدو نه منع كړي دي سړو ته يي حكم كړى دى چي دمخكي كيدو كوشش اوكړي او ښځو ته يي په صفونو كي دروستو كيدو دكوشش كولو حكم كړى دى ددي دپاره چي ديو بل نه بالكل جدا شئ او په مينځ كي يي داختلاط څه شائبه پاتي نشي.

*****************

۲۲۵ـ وقَالَ النَّبِيُّ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ: " لَوْ أَنَّ النَّاسَ يَعْلَمُونَ مَا فِي النِّدَاءِ وَالصَّفِّ الْأَوَّلِ ثُمَّ لَمْ يَجِدُوا إِلَّا أَنْ يَسْتَهِمُوا عَلَيْهِ لَاسْتَهَمُوا عَلَيْهِ " قَالَ: حَدَّثَنَا بِذَلِكَ إِسْحَاق بْنُ مُوسَى الْأَنْصَارِيُّ،

---

[1] صحيح مسلم/الصلاة ۲۸ (۴۴۰) . سنن ابي داود/ الصلاة ۹۸ (٦٧٨) . سنن النسائي/الإمامة ۳۲ (۸۲۱) . سنن ابن ماجه/الإقامة ۵۲ (۱۰۰۰) . (تحفة الأشراف : ۱۲۷۰۱) . مسند احمد (۲/۳۴۷، ۳۳٦، ۳۴۰، ۳٦٦، ۴۸۵) . سنن الدارمي/الصلاة ۵۲ (۱۳۰۴)

حَدَّثَنَا مَعْنٌ، حَدَّثَنَا مَالِكٌ، عَنْ سُمَيٍّ، عَنْ ابِي صَالِحٍ، عَنْ أَبِي هُرَيْرَةَ، عَنِ النَّبِيِّ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ مِثْلَهُ. ([1])

**ترجمه**: دابوهريره رضي الله عنه نه روايت دي چي نبي كريم صلي الله عليه وسلم فرمانيلي دي كچري خلقو ته معلومه وي چي په اذان كولو او اول صف كي په اودريدلو كي څومره اجر دي او بيا ورته دا نه ملاويدلي مګر په قرع اندازئ سره نو قرع اندازي به يي ددي دپاره ضروري كړي وه . امام ترمذي وائي په دي مضمون باندي مونږ ته اسحاق بن موسي انصاري حديث بيان كړي دي او هغه ته معن حديث بيان كړي دي او معن ته مالك حديث دسمي نه بيان كړي دي او هغه دابوصالح نه او هغه د ابوهريره نه او ابوهريره دنبي كريم صلي الله عليه وسلم نه ددي هم معني روايت نقل كړي دي.

**تشريح**: ابوداود د براء بن عازب په روايت كي نقل كړي دي: ان الله وملائكته يصلون علي الصفوف الاول: يعني الله تعالي او دهغه فرشتي په اولنو صفونو رحمت نازلوي.

علماء وائي دصلاة اضافت چي كله الله تعالي ته اوشي نو ددي معني رحمت وي او كه فرشتو ته دصلواة اضافت اوشي نو مراد ورنه دمغفرت او رحمت دعا وي مطلب دادی چي فرشتي داول صف والا دمغفرت او رحمت دعا كوي او الله تعالي ورباندي رحمت نازلوي.

****************

٢٢٦_ وحَدَّثَنَا قُتَيْبَةُ، عَنْ مَالِكٍ نَحْوَهُ.

**ترجمه**: دا رنګي قتيبه هم دمالك نه دمذكوره حديث يو هم معني روايت نقل كړي دي.

****************

## ٥٥_ باب مَا جَاءَ فِي إِقَامَةِ الصُّفُوفِ

### د صفونو نيغولو تاكيد او اهتمام كول

٢٢٧_ حَدَّثَنَا قُتَيْبَةُ، حَدَّثَنَا أَبُو عَوَانَةَ، عَنْ سِمَاكِ بْنِ حَرْبٍ، عَنْ النُّعْمَانِ بْنِ بَشِيرٍ، قَالَ: كَانَ رَسُولُ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ يُسَوِّي صُفُوفَنَا، فَخَرَجَ يَوْمًا فَرَأَى رَجُلًا خَارِجًا صَدْرُهُ عَنِ الْقَوْمِ،

---

[1] صحيح البخاری/الأذان ٩ (٦١٥) ، و٣٢ (٦٥٣) ، و٧٢ (٧٢١) ، والشهادات ٣٠ (٢٦٨٩) . صحيح مسلم/الصلاة ٢٨ (٤٣٧) ، سنن النسائي/المراقبة ٢٢ (٥٤١) ، و٣١ (٦٧٢) . سنن ابن ماجه/الإقامة ٥١ (٩٩٨) . (تحفة الأشراف : ١٢٥٧٠) . موطا امام مالك/الصلاة ١ (٣) ، وصلاة الجماعة ٢ (٦) . مسند احمد (٢/٢٣٦، ٢٧٨، ٣٠٣، ٣٧٥، ٣٧٦، ٤٢٤، ٤٦٦، ٤٧٢، ٤٧٩، ٥٣١، ٥٣٣)

فَقَالَ: " لَتُسَوُّنَّ صُفُوفَكُمْ أَوْ لَيُخَالِفَنَّ اللهُ بَيْنَ وُجُوهِكُمْ " قَالَ: وَفِي الْبَابِ عَنْ جَابِرِ بْنِ سَمُرَةَ، وَالْبَرَاءِ، وَجَابِرِ بْنِ عَبْدِ اللهِ، وَأَنَسٍ، وَأَبِي هُرَيْرَةَ، وعَائِشَةَ. قَالَ أَبُو عِيسَى: حَدِيثُ النُّعْمَانِ بْنِ بَشِيرٍ حَدِيثٌ حَسَنٌ صَحِيحٌ، وَقَدْ رُوِيَ عَنِ النَّبِيِّ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ. أَنَّهُ قَالَ: " مِنْ تَمَامِ الصَّلَاةِ إِقَامَةُ الصَّفِّ وَرُوِيَ " عَنْ عُمَرَ أَنَّهُ كَانَ يُوَكِّلُ رِجَالًا بِإِقَامَةِ الصُّفُوفِ فَلَا يُكَبِّرُ حَتَّى يُخْبَرَ أَنَّ الصُّفُوفَ قَدِ اسْتَوَتْ. وَرُوِيَ عَنْ عَلِيٍّ، وَعُثْمَانَ أَنَّهُمَا كَانَا يَتَعَاهَدَانِ ذَلِكَ وَيَقُولَانِ: اسْتَوُوا، وَكَانَ عَلِيٌّ يَقُولُ: تَقَدَّمْ يَا فُلَانُ تَأَخَّرْ يَا فُلَانُ. [1]

**ترجمه** دنعمان بن بشير رضي الله عنه نه روايت دى فرمائي چي رسول الله به زمونږ صفونه نيغول نو يوه ورځ يي يو كس په صف كي په داسي حال وليدلو چي سينه يي ذ صف نه بهر راوتلي وه، پس رسول الله صلي الله عليه وسلم اوفرمائيل خپل صفونه نيغ ساتئ (اوكه داسي نه كوئ) نو الله تعالي به ستاسي مخونه (يعني زړونه) ديو بل خلاف كړي.

امام ترمذي وايي چي په دي باب كي د جابر بن سمره ، او براء بن عازب، جابر بن عبدالله، انس بن مالك، ابو هريره، او عائشه رضي الله عنهم نه هم احاديث وارد دي، امام ترمذي وايي چي د نعمان بن بشير حديث حسن صحيح دى، اود رسول الله صلي الله عليه وسلم نه دا هم مروي دي چي فرمائيل يي: دمونځ كامليدل د صف په قائمولو پوري موقوف دي، اود عمر فاروق رضي الله عنه متعلق مروي دي چي هغه د صفونو د نيغولو او خيال ساتلو دپاره كسان مقرر كړي وو. اود هغه وخته پوري به يي تكبير تحريمه نه ونيلو څو پوري چي به ورته د صف نيغولو خبر نه وو وركړى شوى، اود علي او عثمان رضي الله عنهما باره كي هم مروي دي چي هغوئ به د صفونو نيغولو ډير خيال ساتلو او ددي اهتمام به يي كولو او خلقو ته به يي فرمائيل چي صفونه نيغ كړئ، او علي رضي الله عنه به اكثر داسي وئيل چي اي فلانيه ته مخكي شه او اي فلانيه ته وروسته شه.

**حل لغات** :وجوهكم: وجه: معني مخ، جمع يي وجوه راځي وجاهة معني ښائسته شكل والا.

**تشريح** ليخالفن الله بين وجوهكم: الله تعالي به ستاسو په مخونو كي اختلاف پيدا كړي يعني الله تعالي به په تاسو كي بي اتفاقي بغض او عناد پيدا كړي چي ددي په وجه به په تاسو كي انتشار پيدا شي.

---

[1] صحيح البخاري/الأذان ٧١ (٧١٧). صحيح مسلم/الصلاة ٢٨ (٤٣٦). سنن ابي داود/ الصلاة ٩٤ (٦٦٣، ٦٦٥). سنن النسائي/الإقامة ٢٥ (٨١١). سنن ابن ماجه/الإقامة ٥٠ (٩٩٤). (تحفة الأشراف: ١١٦٢٠). مسند احمد (٤/٢٧٠، ٢٧١، ٢٧٢، ٢٧٦، ٢٧٧).

ددي دويم مطلب دا هم كيدى شي چي ستاسو مخونه به دخرو پشان اوګرځي.
"كانما يسوي بها القداح" ګويا كي رسول الله د دي په ذريعه غشي سيده كول مطلب دادى چي دصفونو سيده كولو به دومره اهتمام كيدو لكه دغشي پشان يي نيغ كړل دهر شي دنيغولو تشبيه دغشي سره وركولى شي دلته هم دا تشبيه په طور دمبالغي وركړى شوي ده اودمسلم په يو روايت كي دي چي رسول الله صلي الله عليه وسلم به زمونږ صفونه داسې نيغول، لكه چي غشي ورباندى نيغوي تردى چي رسول الله صلي الله عليه وسلم دا خيال اوكړو چي اوس مونږ صفونه نيغول زده كړل بيا يوه ورځ راووتو او مانځه ته اودريدو نزدى وه چي الله اكبر يي ونيلي وى يوسړى يي اوليدو چي سينه يي دصف نه راوتى وه . نو ويي فرمائيل اى دالله بندګانو صفونه نيغ ساتئ او كه داسي نه كوئ نو الله تعالي به ستاسو مخونه (يعني زړونه) ديو بل نه خلاف كړي.

## د نعمان بن بشير رضي الله عنه حالات:

نوم نعمان كنيه ابو عبدالله او دپلار نوم يي بشير وو نعمان بلند پايه صحابي وو دده مور دعبدالله بن رواحه خور وه دهجرت نه پس په انصارو كي دټولو نه مخكي دده پيدائش شوى وو او بيا شپږمياشتي پس عبدالله بن زبير پيدا شو چي لږ هوښيار شو نو دمنبر نبوي سره به نزدي كيناستو او وعظ نصيحت به يي اوريدلو(مسند احمد).
دهجرت په ۵۹ كال كي امير معايه دكوفي حاكم مقرر كړو او بيا دحمص امير مقرر شو دده په بارد كي صاحب دفحري ليكلي دي كان حليما ناسكا يحب العافية، يعني دى ډير صبرناك عابد او عافيت پسند انسان وو
وفات: دهجرت په ۶۵ كال دحمص علاقه بيران نومي كلي كي وفات شو او پدغه وخت كي دابن زبير او مروان جنګ جاري وو په كوم كي چي ده دزبير ملګرتياكړي وه نو په دي وجه دمروان كسانو دى قتل كړو او دده سر يي كټ كړو دده ښځي دده سر پخپله غيږ كي كيخودو او پدغه وخت كي دده عمر ۶۴ كلونه وو (استيعاب).
دده دمروياتو شمير ۱۲۴ دى چي پنځه متفق عليه دي يو په بخاري كي او څلور په مسلم كي.

***************

## ۵۶_ باب مَا جَاءَ لِيَلِيَنِي مِنْكُمْ أُولُو الأَحْلاَمِ وَالنُّهَى

**ارشاد نبوي دي ماته دي نزدي هغه كسان وي څوک چي خاوندان دفهم اوذكاوت وي**

۲۲۸_ حَدَّثَنَا نَصْرُ بْنُ عَلِيٍّ الجَهْضَمِيُّ، حَدَّثَنَا يَزِيدُ بْنُ زُرَيْعٍ، حَدَّثَنَا خَالِدٌ الحَذَّاءُ، عَنْ أَبِي مَعْشَرٍ، عَنْ إِبْرَاهِيمَ، عَنْ عَلْقَمَةَ، عَنْ عَبْدِ اللَّهِ، عَنِ النَّبِيِّ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ قَالَ: "لِيَلِيَنِي مِنْكُمْ أُولُو

الأَحْلَامِ وَالنُّهَى ثُمَّ الَّذِينَ يَلُونَهُمْ ثُمَّ الَّذِينَ يَلُونَهُمْ، وَلَا تَخْتَلِفُوا فَتَخْتَلِفَ قُلُوبُكُمْ، وَإِيَّاكُمْ وَهَيْشَاتِ الأَسْوَاقِ ". قَالَ: وَفِي البَاب عَنْ أُبَيِّ بْنِ كَعْبٍ، وأَبِي مَسْعُودٍ، وَأَبِي سَعِيدٍ، والبَرَاءِ، وأَنَسٍ. قَالَ أَبُو عِيسَى: حَدِيثُ ابْنِ مَسْعُودٍ حَدِيثٌ حَسَنٌ صَحِيحٌ غَرِيبٌ، وَقَدْ رُوِيَ عَنِ النَّبِيِّ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ أَنَّهُ كَانَ " يُعْجِبُهُ أَنْ يَلِيَهُ المُهَاجِرُونَ وَالأَنْصَارُ لِيَحْفَظُوا عَنْهُ ". قَالَ: وَخَالِدٌ الحَذَّاءُ هُوَ خَالِدُ بْنُ مِهْرَانَ يُكْنَى أَبَا المُنَازِلِ، قَالَ: وسَمِعْت مُحَمَّدَ بْنَ إِسْمَاعِيل، يَقُولُ: يُقَالُ إِنَّ خَالِدًا الحَذَّاءَ مَا حَذَا نَعْلًا قَطُّ إِنَّمَا كَانَ يَجْلِسُ إِلَى حَذَّاءٍ فَنُسِبَ إِلَيْهِ، قَالَ: وَأَبُو مَعْشَرٍ اسْمُهُ: زِيَادُ بْنُ كُلَيْبٍ. ([1])

**ترجمه** دعبدالله بن مسعود رضي الله عنه نه روايت دي چي رسول الله صلي الله عليه وسلم فرمانيلي دي په تاسو کي چي څوك خاوند دفهم او زکي وي هغه دپاره ماسره نزدي اودريدل پکار دي او بيا هغه څوك څوك چي دوئ ته په عقل او دانش کي قريب وي او بيا هغه څوك چي په دوئ پسي وي په تاسو پسي په صفونو کي تيروبير او کاږه مه اودريږئ کنه نو ستاسو په زړونو کي به درز پيدا شي او خپل خانونه دبازارونو دشور او غوغا نه بچ ساتئ.

امام ترمذي واني دابن مسعود رضي الله عنه حديث حسن صحيح دي، او په دي باب کي د اوبي بن کعب، ابومسعود، ابوسعيد، براء، او انس رضي الله عنهم نه هم احاديث وارد دي، رسول الله صلي الله عليه وسلم نه منقول دي چي هغه به په دي خبره خوشحاليدو چي انصارو او مهاجرين خپلو کي يو بل ته نزدي نزدي وي تردي چي هغوئ درسول الله نه زده کړي مسائل محفوظ کړي شي.

****************

## ٥٧_ باب مَا جَاءَ فِي كَرَاهِيَةِ الصَّفِّ بَيْنَ السَّوَارِي

## دستنو په مينځ کي دصف جوړولو دکراهت بيان

٢٢٩_ حَدَّثَنَا هَنَّادٌ، حَدَّثَنَا وَكِيعٌ، عَنْ سُفْيَانَ، عَنْ يَحْيَى بْنِ هَانِئِ بْنِ عُرْوَةَ المُرَادِيِّ، عَنْ عَبْدِ الحَمِيدِ بْنِ مَحْمُودٍ، قَالَ: صَلَّيْنَا خَلْفَ أَمِيرٍ مِنَ الأُمَرَاءِ فَاضْطَرَّنَا النَّاسُ فَصَلَّيْنَا بَيْنَ السَّارِيَتَيْنِ، فَلَمَّا صَلَّيْنَا، قَالَ أَنَسُ بْنُ مَالِكٍ: " كُنَّا نَتَّقِي هَذَا عَلَى عَهْدِ رَسُولِ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ ". وَفِي

---

[1] صحيح مسلم/الصلاة ٢٨ (٤٣٢)، سنن ابي داود/ الصلاة ٩٦ (٦٧٥)، (تحفة الأشراف: ٩٤١٥)، مسند احمد (١/٤٥٧)، سنن الدارمي/الصلاة ٥١ (١٣٠٣)

الْبَاب عَنْ قُرَّةَ بْنِ إِيَاسٍ الْمُزَنِيِّ. قَالَ أَبُو عِيسَى: حَدِيثُ أَنَسٍ حَدِيثٌ حَسَنٌ صَحِيحٌ. وَقَدْ كَرِهَ قَوْمٌ مِنْ أَهْلِ الْعِلْمِ أَنْ يُصَفَّ بَيْنَ السَّوَارِي، وَبِهِ يَقُولُ: أحمد، وإسحاق. وَقَدْ رَخَّصَ قَوْمٌ مِنْ أَهْلِ الْعِلْمِ فِي ذَلِكَ. (1)

**ترجمه**: دعبدالحميد بن محمود بيان دي چي مونږ په اميرانو كي په يو امير پسي مونځ اوكړو او خلقو مونږه د دوه ستنو په مينځ كي په مونځ كولو مجبور كړو كله چي مونږ مونځ اوكړو نو انس بن مالك رضي الله عنه اوفرمائيل مونږ به درسول الله صلي الله عليه وسلم په زمانه كي دستنو په مينځ كي دمونځ كولو نه خان بچ كولو.

امام ترمذي وائي دانس رضي الله عنه حديث حسن صحيح دي . په دي باب كي دقره بن اياس مزني نه هم حديث وارد دي بعضي علماؤ دستنو په مينځ كي صف جوړول مكروه ګڼړلي دي، دامام احمد او اسحاق هم دا قول دي او بعضي علماؤ ددي اجازت وركړي دي.

**تشريح**: په دي مسئله كي داهل علمو اختلاف دي چي د دوه ستنو مينځ كي صف جوړول جائز دي او كه نه دي عند الجمهور جائز دي او دامام احمد په نزد باندي جائز نه دي امام احمد په دي مسئله كي دحديث الباب نه استدلال كړي دي.

ددي جواب دادي چي دا حكم په هغه زمانه كي په مسجد نبوي پوري خاص وو خكه چي دمسجد نبوي ستني متوازي او برابري نه وي بلكه كږي اودريدلي وي او كه دداسي ستنو په مينځ كي به صف جوړ كړي شو نو سيده به نه پاتي كيدو نو په دي اعتبار دستنو مينځ كي صف جوړول مكروه دي او كه ستني يو دبل سره مقابل او برابري ولاړي وي بيا دستنو مينځ كي دصف جوړول جائز دي.

***************

## ٥٨_ باب مَا جَاءَ فِي الصَّلاَةِ خَلْفَ الصَّفِّ وَحْدَهُ

### دصف نه شاته يواځي په مونځ اودريدل

٢٣٠_ حَدَّثَنَا هَنَّادٌ، حَدَّثَنَا أَبُو الأَحْوَصِ، عَنْ حُصَيْنٍ، عَنْ هِلاَلِ بْنِ يَسَافٍ، قَالَ: أَخَذَ زِيَادُ بْنُ أَبِي الْجَعْدِ بِيَدِي وَنَحْنُ بِالرَّقَّةِ، فَقَامَ بِي عَلَى شَيْخٍ يُقَالُ لَهُ: وَابِصَةُ بْنُ مَعْبَدٍ مِنْ بَنِي أَسَدٍ، فَقَالَ زِيَادٌ، حَدَّثَنِي هَذَا الشَّيْخُ، أَنَّ رَجُلاً صَلَّى خَلْفَ الصَّفِّ وَحْدَهُ وَالشَّيْخُ يَسْمَعُ، " فَأَمَرَهُ رَسُولُ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ أَنْ يُعِيدَ الصَّلاَةَ ". قَالَ أَبُو عِيسَى: وَفِي الْبَاب عَنْ عَلِيِّ بْنِ شَيْبَانَ وَابْنِ عَبَّاسٍ. قَالَ أَبُو

---

1 سنن ابي داود/ الصلاة ٩٥ (٦٧٣) . سنن النسائي/الإمامة ٣٣ (٨٢٢) . (تحفة الأشراف : ٩٨٠) . مسند احمد (٣/١٣١)

Scanned with C

عِيسَى: وَحَدِيثُ وَابِصَةَ حَدِيثٌ حَسَنٌ. وَقَدْ كَرِهَ قَوْمٌ مِنْ أَهْلِ الْعِلْمِ أَنْ يُصَلِّيَ الرَّجُلُ خَلْفَ الصَّفِّ وَحْدَهُ، وَقَالُوا: يُعِيدُ إِذَا صَلَّى خَلْفَ الصَّفِّ وَحْدَهُ. وَبِهِ يَقُولُ: أَحْمَدُ، وَإِسْحَاقُ. وَقَدْ قَالَ قَوْمٌ مِنْ أَهْلِ الْعِلْمِ: يُجْزِئُهُ إِذَا صَلَّى خَلْفَ الصَّفِّ وَحْدَهُ. وَهُوَ قَوْلُ: سُفْيَانَ الثَّوْرِيِّ، وَابْنِ الْمُبَارَكِ، وَالشَّافِعِيِّ، وَقَدْ ذَهَبَ قَوْمٌ مِنْ أَهْلِ الْكُوفَةِ إِلَى حَدِيثِ وَابِصَةَ بْنِ مَعْبَدٍ أَيْضًا، قَالُوا: مَنْ صَلَّى خَلْفَ الصَّفِّ وَحْدَهُ يُعِيدُ، مِنْهُمْ حَمَّادُ بْنُ أَبِي سُلَيْمَانَ، وَابْنُ أَبِي لَيْلَى وَوَكِيعٌ، وَرَوَى حَدِيثَ حُصَيْنٍ، عَنْ هِلَالِ بْنِ يَسَافٍ غَيْرُ وَاحِدٍ، مِثْلَ رِوَايَةِ أَبِي الأَحْوَصِ، عَنْ زِيَادِ بْنِ أَبِي الْجَعْدِ، عَنْ وَابِصَةَ بْنِ مَعْبَدٍ، وَفِي حَدِيثِ حُصَيْنٍ مَا يَدُلُّ عَلَى أَنَّ هِلَالًا قَدْ أَدْرَكَ وَابِصَةَ. وَاخْتَلَفَ أَهْلُ الْحَدِيثِ فِي هَذَا. فَقَالَ بَعْضُهُمْ: حَدِيثُ عَمْرِو بْنِ مُرَّةَ، عَنْ هِلَالِ بْنِ يَسَافٍ، عَنْ عَمْرِو بْنِ رَاشِدٍ، عَنْ وَابِصَةَ بْنِ مَعْبَدٍ أَصَحُّ، وَقَالَ بَعْضُهُمْ: حَدِيثُ حُصَيْنٍ، عَنْ هِلَالِ بْنِ يَسَافٍ، عَنْ زِيَادِ بْنِ أَبِي الْجَعْدِ، عَنْ وَابِصَةَ بْنِ مَعْبَدٍ أَصَحُّ. قَالَ أَبُو عِيسَى: وَهَذَا عِنْدِي أَصَحُّ مِنْ حَدِيثِ عَمْرِو ابْنِ مُرَّةَ. لِأَنَّهُ قَدْ رُوِيَ مِنْ غَيْرِ حَدِيثِ هِلَالِ بْنِ يَسَافٍ، عَنْ زِيَادِ بْنِ أَبِي الْجَعْدِ، عَنْ وَابِصَةَ.[1]

**ترجمه**: دهلال بن يساف بيان دي چي زياد بن ابي الجعد زما لاس اونيولو او زه يي د بني سعد وابصه بن معبد ته وروستم او بيا يي اوونيل ماته دي شيخ حديث بيان كړي دي او شيخ دده خبري اوريدلي چي يو كس دصف نه شاته يواځي په مونځ ولاړ وو نو رسول الله صلي الله عليه وسلم ورته دمونځ راګرځولو حكم اوكړو

امام ترمذي وائي دوابصه بن معبد حديث حسن صحيح دي، په دي باب كي دعلي بن شيبان او ابن عباس نه هم احاديث وارد دي، بعضي اهل علمو مكروه ګنړلي دي چي يو كس دصف نه شاته يواځي په مونځ اودريږي او دا قول يي كړي دي كه چا دصف نه شاته يواځي مونځ اوكړو نو دادي راوګرځوي او دا قول دامام احمد او اسحاق هم دي، دبعضي اهل علمو قول دي چي راګرځول يي ضروري نه دي سفيان ثوري او دابن مبارك او شافعي رحمهم الله هم دا قول دي. بعضي اهل كوفه دوابصه بن معبد په حديث عمل اختيار كړي دي ددي قول دي كه څوك دصف نه شاته يواځي مونځ اوكړي نو دا دي راوګرځوي چي يو ددوئ دجملي نه حماد بن ابي سليمان دي او ابن ابي ليلي او وكيع هم دا قول اختيار كړي دي، مصنف ددي حديث دسندونو دذكر كولو نه پس فرمائي چي دعمرو بن مره هغه حديث كوم چي هغه دهلال بن يساف عن

[1] سنن ابي داود/ الصلاة ١٠٠ (٦٨٢) . سنن ابن ماجه/الإقامة ٥٤ (١٠٠٣) . (تحفة الأشراف : ١١٧٣٨) . مسند احمد (٤/٢٢٨) . سنن الدارمي/الصلاة ٦١

عمرو بن راشد عن وابصه په سند نقل کړي دي هغه زيات صحيح دي، او دبعضو قول دي چې دحصين حديث کوم چې هغه دهلال بن يساف په سند عن زياد بن ابي الجعد عن وابصه نقل کړي دي دا زيات صحيح دي ، او زما په نزد دعمرو بن مره حديث زيات صحيح دي ځکه چې دا دهلال بن يساف دسند نه علاوه په بل سند هم د زياد بن ابي الجعد په واسطه د وابصه نه مروي دي.

***************

٢٣١_ حَدَّثَنَا مُحَمَّدُ بْنُ بَشَّارٍ، حَدَّثَنَا مُحَمَّدُ بْنُ جَعْفَرٍ، حَدَّثَنَا شُعْبَةُ، عَنْ عَمْرِو بْنِ مُرَّةَ، عَنْ هِلَالِ بْنِ يَسَافٍ، عَنْ عَمْرِو بْنِ رَاشِدٍ، عَنْ وَابِصَةَ بْنِ مَعْبَدٍ، أَنَّ رَجُلًا صَلَّى خَلْفَ الصَّفِّ وَحْدَهُ، "فَأَمَرَهُ النَّبِيُّ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ أَنْ يُعِيدَ الصَّلَاةَ". قَالَ أَبُو عِيسَى: وسَمِعْت الْجَارُودَ، يَقُولُ: سَمِعْتُ وَكِيعًا، يَقُولُ: إِذَا صَلَّى الرَّجُلُ خَلْفَ الصَّفِّ وَحْدَهُ فَإِنَّهُ يُعِيدُ. (1)

**ترجمه**: په مذکوره سند باندي هم دوابصه بن معبد نه يو روايت مروي دي چې يو کس دصف نه شاته يواځي مونځ اوکړو نو نبي کريم صلي الله عليه وسلم ورته دمونځ راګرځولو حکم اوکړو.

امام ترمذي وائي دوکيع قول دي چې کله څوك دصف نه شاته يواځي په مونځ اودريږي نو دا مونځ دي راوګرځوي (ځکه چې مونځ يي نه کيږي).

**حل لغات**: يعيد: اعاد يعيد د باب افعال مضارع ده معني يي راګرځول دي.

**تشريح**: دا مسئله اختلافي دي او په دي کي دوه مذاهب دي، اول دجمهورو په نزد دصف نه شاته يواځي مونځ کيږي او داحنافو په قول په دي کي تفصيل دي او هغه دادي که ديو سړي دا اميد وي چې نور خلق هم راروان دي هغوئ چې راسره اودريږي نو صف جوړيږي نو بيا داسې کس دصف نه شاته يواځي په مونځ اودريدي شي او که دا اميد نه وي نو بيا دي دمخکني صف نه يو کس شاته راوراندي کړي او دځان سره دي يي يوځاي اودروي خو په دي شرط چې دفساد خطره نه وي او که دفساد خطر وي نو بيا دي يواځي اودريږي ددي دليل دابو داود روايت دي چې يو ځل نبي کريم صلي الله عليه وسلم مونځ ورکولو او يو کس راغي او دصف نه شاته اودريدو رسول الله صلي الله عليه وسلم ورته دفارغيدو نه پس اوفرمائيل الله تعالي دي ستا حرص زيات کړي بيا داسي مه کوه ددينه معلومه شوه چې کراهت شته مګر مونځ کيږي.

---

1 سنن ابي داود/ الصلاة ١٠٠ (٦٨٢) . سنن ابن ماجه/الإقامة ٥٤ (١٠٠٤) . (تحفة الأشراف : ١١٧٣٨) . مسند احمد (٤/٢٢٨) .

سنن الدارمي/الصلاة ٦١

دویم مذهب دامام احمد دي دده په نزد که څوك دصف نه شانه په مونځ اودريږي اومونځ يې وکړو نو مونځ يې نه کيږي او دده دا مونځ واجب الاعاده دي او په دي مسئله کي دحديث الباب نه استدلال کوي مګر ددي جواب دادي چي دا حکم په استحباب محمول دي بل جواب دادي چي دا روايت مضطرب هم دي خکه چي امام ترمذي ورته پخپله اشاره کړي ده "فاختلف اهل الحديث".

## دوابصه بن معبد رضي الله عنه حالات:

نوم وابصه دپلار نوم معبد بن مالك بن عبد الاسدي دی دده کنيه ابو شداد اوسي دی اول په شام کي اوسيدو او بيا جزيري ته منتقل شو چي دلسو کسانو په ډله کي د رسول الله صلي الله عليه وسلم په خدمت کي حاضر شو او اسلام يې قبول کړو دی په تولو صحابه کرامو کي زياته ژړا کونکی وو.

په "رقه" مقام کي وفات شو او ددي مقام دجامع مسجد دمينار خواته دفن کړی شو چي يولس احاديث ورنه منقول دي اکثر دده نه فرهاد بن ابي الجعد نقل دروايت کوي.

****************

## ٥٩_ باب مَا جَاءَ فِي الرَّجُلِ يُصَلِّي وَمَعَهُ رَجُلٌ

**که څوک مونځ وركوي او صرف يو كس ورسره وي نو مقتدي به چرته اودريږي**

٢٣٢_ حَدَّثَنَا قُتَيْبَةُ، حَدَّثَنَا دَاوُدُ بْنُ عَبْدِ الرَّحْمَنِ الْعَطَّارُ، عَنْ عَمْرِو بْنِ دِينَارٍ، عَنْ كُرَيْبٍ مَوْلَى ابْنِ عَبَّاسٍ، عَنِ ابْنِ عَبَّاسٍ، قَالَ: صَلَّيْتُ مَعَ النَّبِيِّ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ ذَاتَ لَيْلَةٍ. فَقُمْتُ عَنْ يَسَارِهِ: " فَأَخَذَ رَسُولُ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ بِرَأْسِي مِنْ وَرَائِي فَجَعَلَنِي عَنْ يَمِينِهِ ". قَالَ أَبُو عِيسَى: وَفِي الْبَابِ عَنْ أَنَسٍ. قَالَ أَبُو عِيسَى: وَحَدِيثُ ابْنِ عَبَّاسٍ حَدِيثٌ حَسَنٌ صَحِيحٌ. وَالْعَمَلُ عَلَى هَذَا عِنْدَ أَهْلِ الْعِلْمِ مِنْ أَصْحَابِ النَّبِيِّ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ وَمَنْ بَعْدَهُمْ. قَالُوا: إِذَا كَانَ الرَّجُلُ مَعَ الْإِمَامِ يَقُومُ عَنْ يَمِينِ الْإِمَامِ.[1]

[1] صحيح البخارى/العلم ٤١ (١١٧) . والوضوء ٥ (١٣٨) . والأذان ٥٧ (٦٩٧) . و (٦٩٨) . ٥٩ (٦٩٩) . و٧٧ (٧٢٦) . و٧٩ (٧٢٨) . و١٦١ (٨٥٩) . والوتر ١ (٩٩٢) . والعمل فى الصلاة ١ (١١٩٨) . وتفسير آل عمران ١٩ (٤٥٧١) . و٢٠ (٤٥٧٢) . واللباس ٧١ (٥٩١٩) . والدعوات ١٠ (٦٣١٩) . صحيح مسلم/المسافرين ٢٦ (٧٦٣) . سنن ابى داود/ الصلاة ٧٠ (٦١٠) . و٣١٦ (١٣٦٤) . سنن النسائى/الغسل ٢٩ (٤٤٣) . الإمامة ٢٢ (٨٠٧) . وقيام الليل ٩ (١٦٢١) . (تحفة الأشراف : ٦٣٥٦) . مسند احمد (١/٢١٥. ٢٥٢. ٢٨٥. ٢٨٧. ٣٤١. ٣٤٧. ٣٥٤. ٣٥٧. ٣٦٠. ٣٦٥) . سنن الدارمى/الصلاة ٤٣ (١٢٩٠)

**ترجمه** دابن عباس رضي الله عنهما نه مروي دي چي يوه شپه ما په نبي كريم صلي الله عليه وسلم پسې مونځ كولو زه چي راغلم نوګس طرف ته يي اودريدم نو رسول الله په ما پسې شاته لاس راوړاندي كړو او زه يي اونيولم او خپل ښي طرف ته يي اودرولم.
امام ترمذي وائي دابن عباس حديث حسن صحيح دي، په دي باب كي دانس رضي الله عنه نه هم حديث وارد دي دصحابه كرامو او ددوئ نه وروسته اهل علمو په دي باندي عمل دي چي كله صرف يو كس دامام سره وي نو دامام ښي طرف ته به اودريږي

***************

## ٦٠_ بَاب مَا جَاءَ فِي الرَّجُلِ يُصَلِّي مَعَ الرَّجُلَيْنِ

### څوك چي دوه كسانو ته امامت وركوي

٢٣٣_ حَدَّثَنَا بُنْدَارٌ مُحَمَّدُ بْنُ بَشَّارٍ، حَدَّثَنَا مُحَمَّدُ بْنُ أَبِي عَدِيٍّ، قَالَ: أَنْبَأَنَا إِسْمَاعِيل بْنُ مُسْلِمٍ، عَنْ الْحَسَنِ، عَنْ سَمُرَةَ بْنِ جُنْدَبٍ، قَالَ: أَمَرَنَا رَسُولُ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ إِذَا "كُنَّا ثَلَاثَةً أَنْ يَتَقَدَّمَنَا أَحَدُنَا". قَالَ أَبُو عِيسَى: وَفِي الْبَاب عَنْ ابْنِ مَسْعُودٍ، وَجَابِرٍ، وَأَنَسِ بْنِ مَالِكٍ. قَالَ أَبُو عِيسَى: وَحَدِيثُ سَمُرَةَ حَدِيثٌ حَسَنٌ غَرِيبٌ، وَالْعَمَلُ عَلَى هَذَا عِنْدَ أَهْلِ الْعِلْمِ. قَالُوا: إِذَا كَانُوا ثَلَاثَةً قَامَ رَجُلَانِ خَلْفَ الْإِمَامِ. وَرُوِيَ عَنْ ابْنِ مَسْعُودٍ أَنَّهُ صَلَّى بِعَلْقَمَةَ وَالْأَسْوَدِ، فَأَقَامَ أَحَدَهُمَا عَنْ يَمِينِهِ وَالْآخَرَ عَنْ يَسَارِهِ، وَرَوَاهُ عَنِ النَّبِيِّ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ. وَقَدْ تَكَلَّمَ بَعْضُ النَّاسِ فِي إِسْمَاعِيل بْنِ مُسْلِمٍ الْمَكِّيِّ مِنْ قِبَلِ حِفْظِهِ. ([1])

**ترجمه** دسمره بن جندب رضي الله عنه نه روايت دي چي رسول الله صلي الله عليه وسلم مونږ ته حكم اوكړو چي كله مونږ دري يو نو په مونږ كي يو مونځ ته مخكي شي
امام ترمذي وائي دسمره رضي الله عنه حديث حسن غريب دي، او په دي باب كي دابن مسعود، جابر، او انس بن مالك رضي الله عنهم نه هم احاديث وارد دي او داهل علمو په دي باندي عمل دي چي كله مقتديان دري وي نو دوه دي په امام پسي شاته اودريږي. ابن مسعود رضي الله عنه علقمه او اسود ته مونځ وركولو نو په دوئ دواړو كي يو كس خپل ښي طرف ته اودرولو او بل ګس طرف ته او ابن مسعود دا طريقه دنبي كريم صلي الله عليه وسلم نه نقل كړه، بعضي محدثينو په اسماعيل بن مسلم مكي باندي دحفظ په اعتبار كلام كړي دي.

***************

---

[1] تفرد به المؤلف (تحفة الأشراف: ٤٥٨٥)

## ٦١_ باب مَا جَاءَ فِي الرَّجُلِ يُصَلِّي وَمَعَهُ الرِّجَالُ وَالنِّسَاءُ

## کله چې څوک مونځ ورکوي او دده په مقتديا نو کې نارينه او زنانه دواړه وي

٢٣٤_ حَدَّثَنَا إِسْحَاق الأَنْصَارِيُّ، حَدَّثَنَا مَعْنٌ، حَدَّثَنَا مَالِكُ بْنُ أَنَسٍ، عَنْ إِسْحَاق بْنِ عَبْدِ اللَّهِ بْنِ أَبِي طَلْحَةَ، عَنْ أَنَسِ بْنِ مَالِكٍ، أَنَّ جَدَّتَهُ مُلَيْكَةَ دَعَتْ رَسُولَ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ لِطَعَامٍ صَنَعَتْهُ، فَأَكَلَ مِنْهُ، ثُمَّ قَالَ: " قُومُوا فَلْنُصَلِّ بِكُمْ " قَالَ أَنَسٌ: فَقُمْتُ إِلَى حَصِيرٍ لَنَا قَدِ اسْوَدَّ مِنْ طُولِ مَا لُبِسَ فَنَضَحْتُهُ بِالْمَاءِ، فَقَامَ عَلَيْهِ رَسُولُ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ وَصَفَفْتُ عَلَيْهِ أَنَا وَالْيَتِيمُ وَرَاءَهُ وَالْعَجُوزُ مِنْ وَرَائِنَا، فَصَلَّى بِنَا رَكْعَتَيْنِ ثُمَّ انْصَرَفَ. قَالَ أَبُو عِيسَى: حَدِيثُ أَنَسٍ حَدِيثٌ حَسَنٌ صَحِيحٌ، وَالْعَمَلُ عَلَيْهِ عِنْدَ أَكْثَرِ أَهْلِ الْعِلْمِ، قَالُوا: إِذَا كَانَ مَعَ الإِمَامِ رَجُلٌ وَامْرَأَةٌ قَامَ الرَّجُلُ عَنْ يَمِينِ الإِمَامِ وَالْمَرْأَةُ خَلْفَهُمَا، وَقَدِ احْتَجَّ بَعْضُ النَّاسِ بِهَذَا الْحَدِيثِ فِي إِجَازَةِ الصَّلاَةِ إِذَا كَانَ الرَّجُلُ خَلْفَ الصَّفِّ وَحْدَهُ، وَقَالُوا: إِنَّ الصَّبِيَّ لَمْ تَكُنْ لَهُ صَلاَةٌ وَكَأَنَّ أَنَسًا كَانَ خَلْفَ النَّبِيِّ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ وَحْدَهُ فِي الصَّفِّ، وَلَيْسَ الأَمْرُ عَلَى مَا ذَهَبُوا إِلَيْهِ لأَنَّ النَّبِيَّ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ أَقَامَهُ مَعَ الْيَتِيمِ خَلْفَهُ، فَلَوْلاَ أَنَّ النَّبِيَّ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ جَعَلَ لِلْيَتِيمِ صَلاَةً لَمَا أَقَامَ الْيَتِيمَ مَعَهُ وَلأَقَامَهُ عَنْ يَمِينِهِ، وَقَدْ رُوِيَ عَنْ مُوسَى بْنِ أَنَسٍ، عَنْ أَنَسٍ أَنَّهُ صَلَّى مَعَ النَّبِيِّ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ فَأَقَامَهُ عَنْ يَمِينِهِ، وَفِي هَذَا الْحَدِيثِ دَلاَلَةٌ أَنَّهُ إِنَّمَا صَلَّى تَطَوُّعًا أَرَادَ إِدْخَالَ الْبَرَكَةِ عَلَيْهِمْ. (١)

**ترجمه** : دانس رضي الله عنه نه مروي دي فرمائي چې دده نيا مليکه رضي الله عنها خوراك تيار کړو او رسول الله صلي الله عليه وسلم ته يې دعوت ورکړو رسول الله صلي الله عليه وسلم دد ينه خوراك اوکړو او بيا يې اوفرمائيل راشئ چې مونځ درته درکړم انس رضي الله عنه وائي چې زه پاڅيدم او خپل جانماز طرف ته راغلم کوم چې دزيات استعمال په وجه تور شوي وو ما په اوبو اووينځلو او بيا رسول الله صلي الله عليه وسلم په دې باندې اودريدو ما او يو يتيم وروستو شاته صف جوړ کړو او زمونږ نيا په مونږ پسې شاته اودريده نو رسول الله صلي الله عليه وسلم مونږ ته دوه رکعاته مونځ راکړو او بيا مونځ ختم شو.

امام ترمذي وائي دانس رضي الله عنه حديث حسن صحيح دي او داکثرو اهل علمو په دې باندې عمل دي دوئ وائي چې کله دامام سره مقتدي يو نارينه او يوه زنانه وي نو سړي به

دامام ښي طرف ته اودريږي او ښخه به په دوئ پسې شاته اودريږي، بعضي اهل علمو ددي حديث نه استدلال کړئ دي چي کله يو کس د صف نه شاته يواځي وي نو دده مونځ جائز دي دوئ وائي چي په ماشوم خو مونځ نشته ګويا کي عملا انس رضي الله عنه په رسول الله پسې يواځي ولاړ وو ليکن ددوئ دا دليل صحيح نه دي ځکه چي رسول الله صلي الله عليه وسلم انس له خپل شاته ديتيم سره اودرولي وو کچري رسول الله ديتيم مونځ مونځ نه تسليمولي نو بيا به يي دده سره نه اودرولي بلکه انس به يي خپل ښي طرف ته اودرولي وو دانس بيان دي چي ما درسول الله صلي الله عليه وسلم سره مونځ اوکړو او هغه زه خپل ښي طرف ته اودرولم په دي حديث کي په دي خبره دليل دي چي رسول الله نفلي مونځ ورکړي وو او اراده يي دوئ ته دبرکت رسولو وه.

***************

## ٦٢_ بَابُ مَا جَاءَ مَنْ أَحَقُّ بِالإِمَامَةِ

### دامام جوړيدو مستحق څوک دی

٢٣٥_ حَدَّثَنَا هَنَّادٌ، حَدَّثَنَا أَبُو مُعَاوِيَةَ، عَنِ الأَعْمَشِ، قَالَ: وحَدَّثَنَا مَحْمُودُ بْنُ غَيْلاَنَ، حَدَّثَنَا أَبُو مُعَاوِيَةَ، وَعَبْدُ اللَّهِ بْنُ نُمَيْرٍ، عَنِ الأَعْمَشِ، عَنْ إِسْمَاعِيلَ بْنِ رَجَاءٍ الزُّبَيْدِيِّ، عَنْ أَوْسِ بْنِ ضَمْعَجٍ، قَالَ: سَمِعْتُ أَبَا مَسْعُودٍ الأَنْصَارِيَّ، يَقُولُ: قَالَ رَسُولُ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ: " يَؤُمُّ الْقَوْمَ أَقْرَؤُهُمْ لِكِتَابِ اللَّهِ، فَإِنْ كَانُوا فِي الْقِرَاءَةِ سَوَاءً فَأَعْلَمُهُمْ بِالسُّنَّةِ، فَإِنْ كَانُوا فِي السُّنَّةِ سَوَاءً فَأَقْدَمُهُمْ هِجْرَةً، فَإِنْ كَانُوا فِي الْهِجْرَةِ سَوَاءً فَأَكْبَرُهُمْ سِنًّا، وَلاَ يَؤُمُّ الرَّجُلُ فِي سُلْطَانِهِ وَلاَ يُجْلَسُ عَلَى تَكْرِمَتِهِ فِي بَيْتِهِ إِلاَّ بِإِذْنِهِ " قَالَ مَحْمُودُ بْنُ غَيْلاَنَ: قَالَ ابْنُ نُمَيْرٍ فِي حَدِيثِهِ: أَقْدَمُهُمْ سِنًّا. قَالَ أَبُو عِيسَى: وَفِي البَابِ عَنْ أَبِي سَعِيدٍ، وَأَنَسِ بْنِ مَالِكٍ، وَمَالِكِ بْنِ الْحُوَيْرِثِ، وَعَمْرِو بْنِ سَلَمَةَ. قَالَ أَبُو عِيسَى: وَحَدِيثُ أَبِي مَسْعُودٍ حَدِيثٌ حَسَنٌ صَحِيحٌ. وَالعَمَلُ عَلَى هَذَا عِنْدَ أَهْلِ العِلْمِ قَالُوا: أَحَقُّ النَّاسِ بِالإِمَامَةِ أَقْرَؤُهُمْ لِكِتَابِ اللَّهِ وَأَعْلَمُهُمْ بِالسُّنَّةِ، وَقَالُوا: صَاحِبُ الْمَنْزِلِ أَحَقُّ بِالإِمَامَةِ، وقَالَ بَعْضُهُمْ: إِذَا أَذِنَ صَاحِبُ الْمَنْزِلِ لِغَيْرِهِ فَلاَ بَأْسَ أَنْ يُصَلِّيَ بِهِ، وَكَرِهَهُ بَعْضُهُمْ وَقَالُوا: السُّنَّةُ أَنْ يُصَلِّيَ صَاحِبُ البَيْتِ. قَالَ أَحْمَدُ بْنُ حَنْبَلٍ: وَقَوْلُ النَّبِيِّ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ. وَلاَ يَؤُمُّ الرَّجُلُ فِي

سُلْطَانِهِ وَلَا يُجْلَسُ عَلَى تَكْرِمَتِهِ فِي بَيْتِهِ إِلَّا بِإِذْنِهِ. فَإِذَا أَذِنَ فَأَرْجُو أَنَّ الإِذْنَ فِي الْكُلِّ. وَلَمْ يَرَ بِهِ بَأْسًا إِذَا أَذِنَ لَهُ أَنْ يُصَلِّيَ بِهِ. (1)

**ترجمه**: دابومسعود انصاري رضي الله عنه بيان دي چي رسول الله صلي الله عليه وسلم فرمانيلي دي دخلقو امامت به هغه څوك كوي څوك چي دالله په كتاب دټولو نه زيات علم لري او كچري خلق دقران په علم كي برابر وي نو بيا هغه څوك زيات مستحق دي څوك چي په سنت زيات پوهيدونكي وي او كه دسنت په علم كي هم برابر وي نو بيا هغه څوك زيات مستحق دي چي هجرت يي مخكي كړي وي كچري په هجرت كي هم برابر وي نو بياچي څوك په عمر كي زيات وي هغه زيات حقدار دامامت دي، او يو كس داقتدار په دائره كي دي امامت اونكړي شي يعني پكار نه دي او نه دچا په كور كي ديو كس په مخصوص ځاي كي دهغه داجازت نه بغير كيناستل پكار دي.

امام ترمذي وائي دابو مسعود رضي الله عنه حديث حسن صحيح دي، او په دي باب كي دابوسعيد، انس بن مالك، مالك بن خويلس او عمرو بن سلمه رضي الله عنهم نه هم احاديث وارد دي او داهل علمو په دي باندي عمل دي دوئ وائي چي په خلقو كي دامامت زيات حقدار هغه څوك دي څوك چي دالله دكتاب او سنت دنورو په نسبت زيات علم لري دارنگي دوئ وائي دكور مالك پخپله دامامت زيات مستحق دي او دبعضو قول دي كله چي دكور مالك بل چاته دامامت اجازت وركړي نو دهغه په امامت وركولو كي څه خرج نشته ليكن بعضي علماؤ دا هم مكروه گڼرلي دي دوئ وائي چي سنت همدا ده چي دكور مالك پخپله امامت وركړي، امام احمد بن حنبل دنبي كريم سلي الله عليه وسلم دفرمان "دچا داقتدار په دائره كي امامت كول نه دي پكار او نه دچا په كور كي دكور دمالك داجازت نه بغير كيناستل پكار دي" په باره كي وائي چي كله دكور مالك اجازت وركړي نو اميد لرم چي دا اجازت به امامت او كيناستل جائز كړي او هغوئ په دي كي څه خرج نه دي گڼرلي خو هله چي اجازت وركړي.

**تشريح**:

### دامامت زيات حقدار څوك دي

څوك دامامت زيات حقدار دی ددي متعلق دوه مذهبونه دي (۱)، د طرفينو په نزد د امامت د ټولو نه زيات مستحق هغه كس دې څوك چې سنتو باندې زيات واقف وي.يعنی دهغه

---

[1] صحيح البخاري/الصلاة ٢٠ (٣٨٠)، والأذان ٨٨ (٦٢٧)، و١٦١ (٨٦٠)، و١٦٣ (٨٦١)، و١٦٧ (٨٦٣)، صحيح مسلم/المساجد (٦٥٨)، سنن ابي داود/ الصلاة ٧١ (٦١٢)، سنن النسائي/المساجد ٤٣ (٧٣٨)، والإمامة ١٩ (٨٠٣)، و٩٣ (٨٧٠)، (تحفة الأشراف : ١٩٧)، موطا امام مالک/قصر الصلاة ٩ (٣١)، مسند احمد (٣/١٣١، ١٣٥، ١٤٩، ١٦٤)، سنن الدارمي/الصلاة ٦١ (١٣٢٣)

Scanned with C

احکامو زیات پیژندونکی وی.کوم چی د مانځه سره متعلق وی.مثلاً د مانځه شرطونه د مانځه ارکان د مانځه سنتونه او ددی آداب،خو په دی شرط چی (ما یجوز به الصلاة) قراءت باندې قدرت لری(۲)دامام ابویوسف نه یور وایت دا دې چی د امامت زیات حقدار هغه دې.څوك چی د قرآن په قراءت کې د ټولو نه زیات ښه وی.خو په دی شرط چی په قدر د ضرورت علم لري.دامام ابویوسف دلیل دا دې چی قراءت د مانځه یو داسی رکن دې چی دی نه خلاصی نشته.او دعلم ضرورت په هغه وخت کښ پیښیږی.کله چی څه پاځیدونکی ته عارض پیښ شی چی د علم په ذریعه مونځ د فساد نه بچ کړی.اوعارض په مانځه کې کله پیښیږی.او که نهٔ.نو معلومه شوه چی د قراءت علم زیات ضروری دې.په نسبت سره د سنتو علم ته.نو ځکه"اقرا"په"عالم بالسنة"باندې مقدم کولی شی.

لیکن مونږ د طرفینو د طرفه جواب ورکوو چی قراءت ته احتیاج د یو رکن دپاره وی.او علم ته احتیاج دټولو ارکانو دپاره وی.ځکه چی په کومو ځیزونو چی مونځ ماتیږی.د هغی پیژندنه هم دعلم په ذریعه کیږی.او په کوموځیزونو چی مونځ صحیح کیږی.دهغی پیژندل هم د علم په ذریعه کیږی.نو ثابته شوه چی د علم ضرورت د قراءت په نسبت سره زیات دې.نو ځکه به"اعلم بالسنة"ته په"اقرا"باندې ترجیح ورکولی شی.د طرفینو دقو ل تائید د حاکم په روایت سره هم کیږی. رسول پاك صلي الله علیه وسلم فرمانیلی دی(یؤم القوم أقدمهم هجرة فإن کانوا في الهجرة سواء فأفقههم في الدین فإن کانوا في الفقه سواء فأقرءهم للقرآن) (شرح نقایه) یعنی قوم ته به امامت هغه کس ورکوی چی په هجرت کې مقدم وی.اوکه په هجرت کې ټول برابر وی.نوپه دی کې زیات پوهه به امامت ورکوی.اوکه په فقاهت کې هم ټول برابر وی.نود چی د قرآن ښه قاری وی.هغه به امات ورکوی.په دی حدیث کې افقه في الدین په اقرء باندې مقدم کړې شوې دې.لیکن دطرفینو دپاره دلیل امامت دابو بکر رضي الله عنه دی ، د انس (رضي الله عنه) حدیث دې (إن الذین جمعوا القرآن علی عهد رسول الله صلي الله علیه وسلم أربعة کلهم من الأنصار أبي کعب ومعاذ بن جبل و زید بن ثابت وابوزید فهولاء أکثر قراءة من أبي بکر (رضي الله عنه) حتی قال أقرئکم أبي(رضي الله عنه) ) یعنی د رسول پاك صلي الله علیه وسلم په زمانه کې څلور کسان جامع د قران وو.و ددی څلورو وارو تعلق دانصارو سره وو.ابی بن کعب، معاذ بن جبل، زید بن ثابت او ابوزید نو دا څلور واړه ابوبکر(رضي الله عنه) ته به نسبت سره په قرآن ښه پوهیدونکی وو.خو ددی باوجود رسول الله صلي الله علیه وسام د امامت ورکولو دپاره ابوبکر(رضي الله عنه) وړاندې کړو.نو معلومه شوه.که په اقرا او اعلم کې مقابله راشی.نو"اعلم"به مقدم کولی شی ګنی ،اقرا ( به وړاندې کولی شی)

## په علميت کي د برابرئ نه پس د امامت حقدار څوک کيدي شي

که"اعلم بالسنة"کي دټول جماعت خلق برابر وي.نو اوس به په دوئ کي چې څوك قاري وي.هغه به حقداروي. ددي دليل د رسول پاك صلي الله عليه وسلم قول دي(يؤم القوم أقرأهم لكتاب الله فإن كانوا سواء فأعلمهم بالسنة) په دی حديث باندې وجه د استدلال ښکاره ده.خو په دوو طريقو باندې اعتراض کيږي.اولنی اعتراض دا دي چې (يؤم القو م) د امر په معنی کي دې.او امر د وجوب دپاره وي.نو کوم ترتيب چې په حديث کي ذکر دې. دهغی خيال ساتل واجب دی.يعنی"اقرا"به په"اعلم"باندې مقدم وی.حالانکه داسي نه ده.څکه چې ذکرشوې ترتيب د افضليت د بيان دپاره دې.د جواز د بيان دپاره نه دې.

دويم اعتراض دا دې چې په دی حديث باندې استدلال د مدعی خلاف دی .حالانکه مدعی د"اعلم بالسنة"تقديم دې.او حديث دلالت کوی.په"اقرا لکتاب الله"په تقديم باندې .نودا حديث په استدلال کي پيش کولو دپاره څنگه صحيح کيدی شی ؟

د اولنی اعتراض جواب دا دې چې په (يؤم القو م) کي امرنه دې. بلکه صيغه د اخبار ده.د بيان مشروعيت دپاره،او دا حقيقت او قاعده ده چې تر څو پورې په حقيقت باندې عمل کول ممکن وي.نو مجاز ته به تگ نشی کولې.نوځکه به دلته مجاز ته تگ نشی کولې چې دا صيغه د امر په معنی کي نه ده.ددويم اعتراض جواب دا دې چې صحابه کرام ټول قاريان وو.او عالمان هم وو.ځکه چې په هغه زمانه کښې به خلقو قرآن د هغه د احکامو سره يادولو.د عمر(رضي الله عنه) نه نقل دی چې دوی په دولس کاله کي سورة بقره ياد کړې وه.ښکاره ده چې عمر(رضي الله عنه) په دومره اوږده مودة کي سورة بقره د احکامو سره ياده کړې وه.نود صحابه کرامو په زمانه کي چې به څوك"اقرا"وو.هغه به"اعلم"هم وو.نوځکه په حديث کښې"اقرا"ته په اعلم"باندې تقديم ورکړې شوې دې.او زمونږ په زمانه کي چونکه داسی نه دی.نوځکه مونږ"اعلم"ته په"اقرا"باندې تقديم ورکوو.په ورع او تقوی کي فرق دا دې.ورع وانی.د شبهاتو نه پرهيزکولو ته او تقوی وانی دمحرماتو نه ځان ساتلو ته، مسئله دا ده.که د جماعت ټول خلق په علم او قراءت کي برابر وو.نو په دوی کي اورع حقدار دې ددي دپاره دليل د رسول پاك صلي الله عليه وسلم قول دې (من صلى خلف عالم تقي فكأنما صلى خلف نبيﷺ)

ددی حديث په باره کي ملاعلی قاری فرمائيلی دی چې دا حديث موضوعی دې.

بله مسئله دا ده.که په ذکر شوو څيزونو کي د جماعت ټول خلق برابر وي.نو په دوی کښې چې څوك زيات مشر وي.هغه دامامت دپاره زيات مناسب دې، دليل د رسول پاك صلي الله عليه وسلم قول دې.د ابومليکه(رضي الله عنه) دوو ځامنو ته (وليؤمكما أكبر كما سناً)

دویم دلیل دادی چی دمشر سری په وړاندې کولو کي د جماعت زیادت وی.او وړاندې تیرشوی دی چی د جماعت زیادت الله تعالی ته زیات خوښ دې.او په حدیث کي فرمائی(من لم یؤقر کبیرنا فلیس منا) اوکله چی ئې دی خپل امام جوړ کړو.نودا دده په عزت کي بی ادبی نه پاتې کیږی.

## د مکروه الامامت کسانو بیان

غلام د امامت دپاره وړاندې کول مکروه دی.اګرچی هغه آزاد شوې وی.یعنی که آزاد شوې غلام او اصلی آزاد جمع شی.نو اصلی آزاد د امامت زیاد مستحق دې دلیل دا دې چی غلام ته د مونځ د احکامو فرصت نه ملاویږی.ځکه په هغه پسې مونځ کول مکروه دې.

امام شافعی فرمائی.که آزاد او غلام دواړه په قرات،علم او تقوی کي برابر وو.نو آزاد ته به په غلام ترجیح نشی ورکولې، ددې قول دپاره دلائل دادې (۱)ځکه چی د رسول پاك صلي الله علیه وسلم ارشاد دې(إسمعوا وأطیعوا ولو أمر علیکم عبد حبشي أجدع)

اوریځ او تابعداری کویځ.اګرکه په تاسو باندې حبشی غلام امیرجوړ کړې شی (۲) دویم دلیل دا دې چی د ابوسیعد مولی اسید نه روایت دې (أنه قال دعوت رهطا من أصحاب النبي صلي الله علیه وسلم فیهم أبوذر الصلاة فقدموني وأنا یومئذ عبد) یعنی ابوسعید فرمائی چی ما د رسول الله صلي الله علیه وسلم په صحابه کرامو کي یوی ډلی ته دعوت ورکړو چی په هغوی کي ابوذر(رضي الله عنه) هم وو چی د مانځه وخت راغلو .نود امامت دپاره ئې زه وړاندې کړم.او زه په دغه وخت کي غلام ووم.دا واقعه دلالت کوی چی د غلام وړاندې کول مکروه نه دی.

زمونږ د طرفه د اولنی حدیث جوب دا دې چی د غلام وړاندې کول د جماعت د کمیدو سبب جوړیږی.ځکه چی خلق دده په تابعداریځ کي شرم کوی.اوچی کوم څیز د تقلیل جماعت سبب وی.هغه مکروه وی. زمونږ د طرفه د دویم حدیث جواب دا دې چي په حدیث کي امارت مراد دې.امامت مراد نه دې.اود ابوسیعد دحدیث جواب دا دې چی صحابو ابوسیعد ددی وجی وړاندې کړې وو چی دې د کور مالك وو.ځکه چی د کور خاوند د امامت زیات حقدار وی.

او د باندچی وړاندې کول هم مکروه دی دلائل ددې قول دپاره دادې (۱)ځکه چی په دوی کښې د جهالت غلبه وی(۲)دغه شان د رسول پاك صلي الله علیه وسلم قول دې (الا لایؤمن إمرأة رجلاً ولا أعرابي) خبردار ښځه دی سړی ته امامت نه ورکوی اونه باندچی،

اود فاسق وړاندې کول هم مکروه دی.ځکه چی دې د دین په معامله کښې اهتمام نه کوی. امام مالك فرمائی چی په ده پسې مونځ کول جائز نه دې.ځکه چی کله دده نه په دینی أمورو کي خیانت ښکاره شی.نو هغه به د مونځ پشان اهمو کارونو کي هم امین نه وی. زمونږ د

طرفه جواب دا دي چې عبدالله بن عمر ،انس بن مالك اوددوی نه علاوه نورو صحابو او تابعینورحمهم الله په حجاج بن یوسف رئیس الفساق پسې مونځ کولو.
د امامت دپاره ړوند وړاندې کول هم مکروه دی.ځکه چې هغه د ړوندوالی د وجی د پلیتۍ نه ځان نشی بچ کیدې. اوولدالزنا وړاندې کول هم مکروه دی.ځکه چې د هغه پلار نه وی چې په هغه باندی شفقت اوکړی.هغه ته ادب اوښائی.او هغه ته تعلیم ورکړی. صاحب دهدایه د مشترکه دلیل په طور اوفرمائیل چې ددی کسانو وړاندې کول د جماعت د خلقو د نفرت سبب دې.نوځکه د دوی وړاندې کول مکروه دی.البته که دا خلق په خپله وړاندې شول.نو مونځ جائزدې.ځکه چې رسول پاك صلي الله علیه وسلم فرمائیلی دی (صلوا خلف کل بر وفاجر) وجه د استدلال دا ده چې په ذکر شوو خلقو کې هر یو به یا نیك وی یا بد.نو په هغوی پسې په هر حالت کې مونځ جائز دې.

**د ابومسعود عقبه بن عامر رضي الله عنه حالات:**

نوم عقبه کنیه ابومسعود دپلار نوم عامر رسول الله صلي الله علیه وسلم چې کله مدیني ته راغی نو عقبه په اسلام مشرف شو علامه ذهبي لیکلي دي چې عقبه فقیه او دکتاب الله قاري وو او دفرائضو ماهر او فصیح اللسان شاعر وو (تذکرة الحفاظ).
دقران کریم سره یې خصوصي مینه وه یوه نسخته دقران کریم یې پخپل لاس هم لیکلي وه (تهذیب التهذیب).
دنبي کریم صلي الله علیه وسلم ښه خدمت یې کړی دی په سفر کې به درسول الله سورلۍ راښکل دده متعلق وو لکه چې په روایتونو کې راغي کان صاحب بغلة رسول الله صلي الله علیه وسلم الشهباء.
دده دوفات دتاریخ باره کې مختلف اقوال مروي دي صحیح قول دادی چې په ۵۸هجري کې وفات شوی دی، او دده دمرویاتو شمیر ۵۵ دی چې یو په دې کې متفق علیه دی او یو په بخاري کې دی او اوه په مسلم کې دي (تهذیب الکمال).
داکابرو صحابه کرامو نه نقل دروایت کوي تردې چې صرف دیو حدیث اوریدو دپاره مصر ته دابوایوب انصاري سره دملاویدو دپاره تلی وو خو چې هغه یې واوریدو نو فورا واپس لاړو.

*****************

## ٦٣_ بَاب مَا جَاءَ إِذَا أَمَّ أَحَدُكُمُ النَّاسَ فَلْيُخَفِّفْ

**کله چې په تاسو کې څوك امامت ورکوي نو مختصر مونځ دې ورکړي**

٢٣٦ـ حَدَّثَنَا قُتَيْبَةُ. حَدَّثَنَا الْمُغِيرَةُ بْنُ عَبْدِ الرَّحْمَنِ، عَنْ أَبِي الزِّنَادِ، عَنْ الأَعْرَجِ، عَنْ أَبِي هُرَيْرَةَ، أَنَّ النَّبِيَّ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ، قَالَ: "إِذَا أَمَّ أَحَدُكُمُ النَّاسَ فَلْيُخَفِّفْ فَإِنَّ فِيهِمُ الصَّغِيرَ وَالْكَبِيرَ وَالضَّعِيفَ وَالْمَرِيضَ، فَإِذَا صَلَّى وَحْدَهُ فَلْيُصَلِّ كَيْفَ شَاءَ" قَالَ أَبُو عِيسَى: وَفِي الْبَابِ عَنْ عَدِيِّ بْنِ حَاتِمٍ، وَأَنَسٍ، وَجَابِرِ بْنِ سَمُرَةَ، وَمَالِكِ بْنِ عَبْدِ اللَّهِ، وَأَبِي وَاقِدٍ، وَعُثْمَانَ بْنِ أَبِي الْعَاصِ، وَأَبِي مَسْعُودٍ، وَجَابِرِ بْنِ عَبْدِ اللَّهِ، وَابْنِ عَبَّاسٍ، قَالَ أَبُو عِيسَى: وَحَدِيثُ أَبِي هُرَيْرَةَ حَدِيثٌ حَسَنٌ صَحِيحٌ، وَهُوَ قَوْلُ أَكْثَرِ أَهْلِ الْعِلْمِ اخْتَارُوا أَنْ لَا يُطِيلَ الإِمَامُ الصَّلَاةَ مَخَافَةَ الْمَشَقَّةِ عَلَى الضَّعِيفِ وَالْكَبِيرِ وَالْمَرِيضِ. قَالَ أَبُو عِيسَى: وَأَبُو الزِّنَادِ اسْمُهُ عَبْدُ اللَّهِ بْنُ ذَكْوَانَ، وَالأَعْرَجُ هُوَ عَبْدُ الرَّحْمَنِ بْنُ هُرْمُزَ الْمَدِينِيُّ وَيُكْنَى أَبَا دَاوُدَ. (١)

**ترجمه** : دابوهريره رضي الله عنه نه مروي دي چي نبي كريم صلي الله عليه وسلم فرمائيلي دي كله چي په تاسو كي څوك امامت وركوي نو پكار ده چي مونځ دي مختصر اوكړي ځكه چي په خلقو كي ماشومان، بوډاګان، كمزوري او بيماران ټول موجود وي او چي كله څوك يواځي مونځ كوي نو چي څنګه يي خوښه وي هغه شان دي اوكړي.

امام ترمذي وائي دابوهريره رضي الله عنه حديث حسن صحيح دي، او په دي باب كي دعدي بن حاتم، انس، جابر بن سمره، مالك بن عبدالله، ابو واقد ، عثمان، ابو مسعود، جابر بن عبدالله او ابن عباس رضي الله عنهم نه هم احاديث وارد دي او همدا داكثرو اهل علمو قول دي دوئ همدا مسلك اختيار كړي دي چي امام به اوږد مونځ نه وركوي تردي چي كمزوري او بوډاګان او حاجتمند او مريضان پريشانه نشي.

**تشريح** : اذا صلي احدكم كله چي په تاسو كي څوك مونځ وركوي ، په يو بل روايت كي راغلي دي اذا ام احدكم فليخفف كله چي په تاسو كي څوك مونځ وركوي نو دمقتديانو خيال دي اوساتي اومونځ دي مختصر وركړي ، دتخفيف مطلب دادى چي قرائت به نه اوږدوي او په ركوع او سجده كي به تسبيحات د دريو نه نه زياتوي مګر په فرائضو او سننو او واجباتو كي دي تخفيف نه كوي .اود اركانو دتعديل خيال دي هم ساتي

السقيم والكبير. يعني دبيمارانو او بوډاګانو خيال به ساتي، په يو بل روايت كي "الحامل والمرضع" اوپه يو روايت كي دعابر السبيل او بل روايت كي د ذاالحاجه لفظ هم راغلى دى.

---

١ صحيح البخاري/الأذان ٦٢ (٧٠٣) . صحيح مسلم/الصلاة ٣٧ (٤٦٧) . سنن ابي داود/ الصلاة ١٢٧ (٧٩٤) . سنن النسائي/الإمامة ٣٥ (٨٢٣) . (تحفة الأشراف : ١٣٨٨٣) . مسند احمد (٢/٢٥٦، ٢٧١، ٣١٧، ٣٩٣، ٤٨٦، ٥٠٢، ٥٣٧)

اود معاذ بن جبل (رضي الله عنه) حديث هم مستدل دي.ځكه چې معاذ(رضي الله عنه) خپل قوم ته اوږده مونځونه كول.نو د قوم خلقو رسول پاك صلي الله عليه وسلم ته گيله اوكړه. رسول پاك صلي الله عليه وسلم اوفرمائيل (أفتان أنت يا معاذ) دا حديث وړاندې تير شوې دې.اودا خبره د صحت په طريقه باندې ثابته ده چې يو وارې رسول پاك صلي الله عليه وسلم د سحر مونځ كې معوذتين اولوستل .كله چې رسول پاك صلي الله عليه وسلم د مانځه نه فارغ شو.نو صحابه كرامو عرض اوكړو.اې دالله پيغمبره تاسو ډير اختصار اوكړو . رسول پاك صلي الله عليه وسلم اوفرمائيل د ماشوم د ژړا د آواز د وجې چې دده مور په فتنه كې واقع نشي. ددې واقعې نه معلومه شوه چې د امام دپاره د خپل قوم د حالت خيال ساتل مناسب دې.

****************

٢٣٧_ حَدَّثَنَا قُتَيْبَةُ. حَدَّثَنَا أَبُو عَوَانَةَ. عَنْ قَتَادَةَ. عَنْ أَنَسِ بْنِ مَالِكٍ. قَالَ: "كَانَ رَسُولُ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ مِنْ أَخَفِّ النَّاسِ صَلَاةً فِي تَمَامٍ". قَالَ أَبُو عِيسَى: وَهَذَا حَدِيثٌ حَسَنٌ صَحِيحٌ. وَاسْمُ أَبِي عَوَانَةَ وَضَّاحٌ. . قَالَ أَبُو عِيسَى: سَأَلْتُ قُتَيْبَةَ قُلْتُ: أَبُو عَوَانَةَ مَا اسْمُهُ؟ قَالَ وَضَّاحٌ: قُلْتُ ابْنُ مَنْ؟ قَالَ: لَا أَدْرِي كَانَ عَبْدًا لِامْرَأَةٍ بِالْبَصْرَةِ. [1]

**ترجمه** دانس بن مالك رضي الله عنه بيان دي چې رسول الله صلي الله عليه وسلم په خلقو كې دهر چانه زيات مختصر او دهر چا نه زيات مكمل مونځ وركونكي دي.

امام ترمذي وائي دا حديث حسن صحيح دي.

****************

## ٦٤_ باب مَا جَاءَ فِي تَحْرِيمِ الصَّلَاةِ وَتَحْلِيلِهَا

### مونځ دتكبير تحريمه په ذريعه شروع كيږي اوپه سلام كړځولو ختميږي

٢٣٨_ حَدَّثَنَا سُفْيَانُ بْنُ وَكِيعٍ. حَدَّثَنَا مُحَمَّدُ بْنُ الْفُضَيْلِ. عَنْ أَبِي سُفْيَانَ طَرِيفٍ السَّعْدِيِّ. عَنْ أَبِي نَضْرَةَ. عَنْ أَبِي سَعِيدٍ. قَالَ: قَالَ رَسُولُ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ: "مِفْتَاحُ الصَّلَاةِ الطُّهُورُ. وَتَحْرِيمُهَا التَّكْبِيرُ. وَتَحْلِيلُهَا التَّسْلِيمُ. وَلَا صَلَاةَ لِمَنْ لَمْ يَقْرَأْ بِ: الْحَمْدُ وَسُورَةٍ فِي فَرِيضَةٍ أَوْ غَيْرِهَا". قَالَ أَبُو عِيسَى: هَذَا حَدِيثٌ حَسَنٌ. وَفِي الْبَابِ عَنْ عَلِيٍّ. وَعَائِشَةَ. قَالَ: وَحَدِيثُ عَلِيِّ بْنِ أَبِي

---

[1] صحيح مسلم/الصلاة ٣٧ (٤٦٩) . سنن النسائي/الإمامة ٣٥ (٨٢٥) . (تحفة الأشراف : ١٢٣٢) . مسند احمد (٣/١٧٠. ١٧٣. ١٧٩. ٢٣١. ٢٣٣. ٢٧٦) . سنن الدارمي/الصلاة ٤٦ (١٢٩٥)

طَالِبٍ فِي هَذَا أَجْوَدُ إِسْنَادًا وَأَصَحُّ مِنْ حَدِيثِ أَبِي سَعِيدٍ، وَقَدْ كَتَبْنَاهُ فِي أَوَّلِ كِتَابِ الْوُضُوءِ. وَالْعَمَلُ عَلَيْهِ عِنْدَ أَهْلِ الْعِلْمِ مِنْ أَصْحَابِ النَّبِيِّ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ وَمَنْ بَعْدَهُمْ. وَبِهِ يَقُولُ: سُفْيَانُ الثَّوْرِيُّ، وَابْنُ الْمُبَارَكِ، وَالشَّافِعِيُّ، وَأَحْمَدُ وَإِسْحَاقَ: إِنَّ تَحْرِيمَ الصَّلَاةِ التَّكْبِيرُ وَلَا يَكُونُ الرَّجُلُ دَاخِلًا فِي الصَّلَاةِ إِلَّا بِالتَّكْبِيرِ. قَالَ أَبُو عِيسَى: وَسَمِعْتُ أَبَا بَكْرٍ مُحَمَّدَ بْنَ أَبَانَ مُسْتَمْلِيَ وَكِيعٍ يَقُولُ: سَمِعْتُ عَبْدَ الرَّحْمَنِ بْنَ مَهْدِيٍّ، يَقُولُ: لَوِ افْتَتَحَ الرَّجُلُ الصَّلَاةَ بِسَبْعِينَ اسْمًا مِنْ أَسْمَاءِ اللَّهِ وَلَمْ يُكَبِّرْ لَمْ يُجْزِهِ، وَإِنْ أَحْدَثَ قَبْلَ أَنْ يُسَلِّمَ أَمَرْتُهُ أَنْ يَتَوَضَّأَ ثُمَّ يَرْجِعَ إِلَى مَكَانِهِ فَيُسَلِّمَ. إِنَّمَا الْأَمْرُ عَلَى وَجْهِهِ. قَالَ: وَأَبُو نَضْرَةَ اسْمُهُ: الْمُنْذِرُ بْنُ مَالِكِ بْنِ قُطَعَةَ. (1)

**ترجمه** . ابو سعيد خدري رضي الله عنه دنبي كريم صلي الله عليه وسلم دا فرمان نقل كوي چي اودس دمونځ كنجي ده او مونځ دتكبير تحريمه په ذريعه شروع كيږي او دسلام په ګرځولو ختميږي اود سورت فاتحي او يو بل سورت لوستلو نه بغير د هيڅا مونځ نه كيږي فرائض وي او كه غير فرائض وي.

امام ترمذي وايي دا حديث حسن دي په دي باب كي د علي، او عائشه رضي الله عنهما نه هم احاديث وارد دي، دعلي رضي الله عنه حديث د سند په اعتبار دباب دټولو رواياتو نه بهتر دي او دابوسعيد خدري حديث زيات صحيح دي چي مونږ په كتاب الوضوء كي ذكر كړي دي دصحابه كرامو او ددوئ نه روستو داهل علمو په دوئ باندي عمل دي او همدا دسفيان ثوري، ابن مبارك، شافعي، احمد، اسحاق رحمهم الله، قول هم دي چي د مونځ تحريم تكبير دي او هيڅوك د تكبير نه بغير په مونځ كي داخليدي نشي، عبدالرحمن بن مهدي وائي كه څوك دالله په نومونو كي اويا نومونه واخلي او مونځ شروع كړي او الله اكبر اونه وائي نو دا به هم دده دپاره كافي نه وي او كه دسلام ګرځولو نه يي مخكي اودس مات شي نو زه ورته حكم كوم چي اودس دي اوكړي او بيا دي خپل خاي ته راشي او بيا دي كيني او سلام دي اوګرځوي او حكم به پخپل حال باقي وي.

**تشريح** : "تحريمها التكبير" په دي روايت كي تحريم مضاف دي او حا ضمير مضاف اليه دي چي راجع دي مونځ ته او دتحريم نه مراد تكبير دي او قاعده داده چي مضاف غير وي دمضاف اليه نه ددينه معلومه شوه چي تكبير تحريمه شرط دمونځ دي.

(۲) مذهب دائمه ثلاثه دي او ددوئ په نزد تكبير تحريمه شطر دمونځ دي ددوئ دليل دادي دمونځ دپاره چي كوم نور شرائط دي مثلا طهارت دجسم، طهارت دلباس، طهارت دمكان،

---

1 سنن ابن ماجه/الطهارة ۳ (۲۷٦)، (تحفة الأشراف: ۴۳۵۷)، مسند احمد (۳/۳۴۰)

Scanned with C

استقبال دقبلي شرائط دمونځ هم دادي دتکبير تحريمه دپاره ددينه معلومه شوه چي تکبير تحريمه دمونځ رکن او شرط دي

جواب دتکبير تحريمه دپاره ددي شرائطو ثبوت په دي وجه نه دي چي تکبير تحريمه شرط دمونځ دي بلکه ددي دپاره دي چي دا شرائط دتکبير تحريمه دپاره داتصال په وجه دي لکه چي داقامت دپاره طهارت شرط دي دکمال اتصال په وجه او حال دادي چي بالاتفاق اقامت رکن دمونځ نه دي.

دويمه مسئله په دي مسئله کي هم اختلاف دي چي تکبير تحريمه په کوم لفظ اداء کيږي په دي کي څلور مذاهب دي (۱) مذهب دطرفينو دي ددوئ په نزد په هر هغه لفظ تکبير تحريمه جائز دي کوم چي دالله تعالي په عظمت دلالت کوي ددوئ اولني دليل د قران کريم دا ايت کريمه دي "وذکر اسم ربه فصلي" (سورة الاعلي) دلته دذکر نه مراد تکبير تحريمه دي او ذکر هر هغه کلمي ته وئيلي شي کومه چي دالله تعالي په عظمت دلالت کوي معلومه شوه چي تکبير تحريمه په هر هغه لفظ اداء کيږي کومه چي دالله تعالي په عظمت دلالت کوي

ددوئ دويم دليل روايت دمصنف ابن ابي شيبه دي چي دابو العاليه نه سوال اوکړي شو چي انبياء عليهم السلام به څيل مونځونه دکوم لفظ نه شروع کول؟ نو هغوئ ورته په جواب کي اووئيل تسبيح، تحميد، تهليل، تکبيرسره ددينه هم معلومه شوه چي په هر هغه لفظ تکبير تحريمه جائز دي کوم چي دالله په عظمت دلالت کوي.

دويم مذهب دامام ابو يوسف دي دهغه په نزد تکبير تحريمه په څلورو الفاظو جائزدي (۱) الله اکبر (۲) الله الاکبر (۳) الله کبير (۴) الله الکبير خکه چي د الله اکبر او الله کبير معني يوه ده او په الف لام هيڅ فرق نه پريوځي.

دريم مذهب دامام شافعي دي دهغه په نزد تکبير تحريمه صرف په دوه الفاظو اداء کيږي (۱) الله اکبر (۲) الله الاکبر.

څلورم مذهب دامام مالك او امام احمد دي ددوئ په نزد تکبير تحريمه صرف په الله اکبر جائزدي.

دليل ددوئ دري واړو مذاهبو استدلال زير بحث حديث دي چي "تحريمها التکبير" خکه چي په دي کي خبر معرف باللام دي او قاعده داده خبر چي کله معرف باللام وي نو دحصر فائده ورکوي لکه مفتاح الصلوة الطهور کي دحصر تقاضا داده چي دتکبير دپاره ك، ب، ر، ماده ضروري ده.

جواب: حديث الباب ظاهرا دقراني ايت "وذکر اسم ربه فصلي" سره معارض دي او دا حديث دخبر واحد کيدو په وجه قطعي الثبوت نه دي لهذا ددوئ په مينځ کي به تطبيق کولي شي او

هغه دادي چي فرضيت دتكبير تحريمه به په كتاب الله سره ثابت شي او وجوب به يي ثابت شي په حديث رسول سره

دي حديث سره دريمه اختلافي مسئله دا متعلق ده چي سلام لفظ دمونځ په اخر كي وئيل فرض دي او كنه په دي مسئله كي دوه مذاهب دي ،١، مذهب دامام ابو حنيفه دي دده په نزد په لفظ دسلام مونځ ختمول فرض نه دي بلكه خروج بفعل المصلي فرض دي او دليل يي حديث داعرابي مسيء الصلاة دي چي نبي كريم صلي الله عليه وسلم خلاد بن رافع رضي الله عنه ته به دمونځ تعليم وركولو مگر دسلام تعليم يي ورنكړو ددينه معلومه شوه چي سلام لفظ فرض نه دي او كچري فرض وي نو رسول الله به ضرور په دي موقع خلاد ته دسلام تعليم وركړي وو

دامام صاحب دويم دليل په ابو داود كي دعبدالله بن مسعود رضي الله عنه روايت دي چي هغه ته رسول الله صلي الله عليه وسلم تشهد خودلي دي او بيا يي ورته ددينه پس اوفرمائيل "اذا قلت هذا او فعلت هذا فقد تمت صلاتك" ددينه معلومه شوه چي كه سلام لفظ فرض وي نو په تشهد به مونځ نه مكمل كيدو.

مگر دائمه ثلاثه په نزد سلام لفظ فرض دي او دليل يي حديث الباب دي چي "تحليلها التسليم" دي په دي كي خبر معرف باللام دي كوم چي مفيد للحصر دي معني به دا وي چي دمونځ نه خارجيدل په لفظ دسلام پوري خاص دي.

جواب ددي روايت نه استدلال كول درست نه دي خكه چي ددي په سند كي عبدالله بن محمد بن عقيل راوي دي اوهغه متكلم فيه دي.

دويم جواب دادي چي په دي روايت كي حصر حقيقي مراد نه دي بلكه حصر ادعاني مراد دي لكه "لافتي الا علي" كي چي حصر ادعاني دي.

****************

## ٦٥_ باب مَا جَاءَ فِي نَشْرِ الأَصَابِعِ عِنْدَ التَّكْبِيرِ

### دتكبير وئيلو په وخت كي دگوتو خورو ساتلو بيان

٢٣٩_ حَدَّثَنَا قُتَيْبَةُ، وَأَبُو سَعِيدٍ الأَشَجُّ، قَالَا: حَدَّثَنَا يَحْيَى بْنُ الْيَمَانِ، عَنِ ابْنِ أَبِي ذِئْبٍ، عَنْ سَعِيدِ بْنِ سِمْعَانَ، عَنْ أَبِي هُرَيْرَةَ، قَالَ: "كَانَ رَسُولُ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ إِذَا كَبَّرَ لِلصَّلَاةِ نَشَرَ أَصَابِعَهُ". قَالَ أَبُو عِيسَى: حَدِيثُ أَبِي هُرَيْرَةَ: حَسَنٌ، وَقَدْ رَوَى غَيْرُ وَاحِدٍ هَذَا الْحَدِيثَ، عَنِ ابْنِ أَبِي ذِئْبٍ، عَنْ سَعِيدِ بْنِ سِمْعَانَ، عَنْ أَبِي هُرَيْرَةَ، أَنَّ النَّبِيَّ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ كَانَ "إِذَا دَخَلَ

فِي الصَّلَاةِ رَفَعَ يَدَيْهِ مَدًّا " وَهَذَا أَصَحُّ مِنْ رِوَايَةِ يَحْيَى بْنِ الْيَمَانِ، وَأَخْطَأَ يَحْيَى بْنُ الْيَمَانِ فِي هَذَا الْحَدِيثِ. (١)

**ترجمه** دابوهريره رضي الله عنه نه مروي دي چي رسول الله صلي الله عليه وسلم به كله دمونځ دپاره الله اكبر ونيلو نو خپلي ګوتي به يي خوري ساتلي

امام ترمذي وائي دابوهريره رضي الله عنه حديث حسن دي او ډيرو علماؤ دا حديث په سند د ابن ابي ذئب عن سعيد بن سمعان عن ابي هريره سره نقل کړي دي او ددوئ الفاظ دادي چي نبي کريم صلي الله عليه وسلم به کله په مونځ کي داخليدو نو دواړه لاسونه به يي ښه پورته کړل، دا روايت ديحي بن يمان دروايت نه زيات صحيح دي، ديحي بن يمان روايت غلط دي دهغه نه په احاديثو کي غلطي شوي ده (او وضاحت يي وړاندي راروان دي).

**حل لغات**: كَبَّرَ يُكَبِّرُ تكبيرا د باب تفعيل نه په معني د الله اكبر وئيلو دی.

****************

٢٤٠ـ وحَدَّثَنَا عَبْدُ اللَّهِ بْنُ عَبْدِ الرَّحْمَنِ، أَخْبَرَنَا عُبَيْدُ اللَّهِ بْنُ عَبْدِ الْمَجِيدِ الْحَنَفِيُّ، حَدَّثَنَا ابْنُ أَبِي ذِئْبٍ، عَنْ سَعِيدِ بْنِ سِمْعَانَ، قَالَ: سَمِعْتُ أَبَا هُرَيْرَةَ، يَقُولُ: كَانَ رَسُولُ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ "إِذَا قَامَ إِلَى الصَّلَاةِ رَفَعَ يَدَيْهِ مَدًّا". قَالَ أَبُو عِيسَى: قَالَ عَبْدُ اللَّهِ بْنُ عَبْدِ الرَّحْمَنِ: وَهَذَا أَصَحُّ مِنْ حَدِيثِ يَحْيَى بْنِ الْيَمَانِ، وَحَدِيثُ يَحْيَى بْنِ الْيَمَانِ خَطَأٌ. (٢)

**ترجمه** سعيد بن سمعان وائي چي دابوهريره رضي الله عنه نه مي اوريدلي دي فرمائيل يي چي كله به رسول الله صلي الله عليه وسلم په مونځ اودريدو نو دواړه لاسونه به يي په ښه شان سره پورته کول امام ترمذي وائي دعبدالله بن عبدالرحمن دارمي قول دي چي دا حديث ديحي بن يمان دحديث نه زيات صحيح دي اود يحي بن يمان حديث غلط دي.

*****************

## ٦٦ـ بَاب مَا جَاءَ فِي فَضْلِ التَّكْبِيرَةِ الأُولَى

### دتکبير اولي دفضائلو بيان

---

[1] تفرد به المؤلف (تحفة الأشراف: ١٣٠٨٢)

[2] سنن ابي داود/ الصلاة ١١٩ (٧٥٣). سنن النسائي/الافتتاح ٦ (٨٨٣). (تحفة الأشراف: ١٣٠٨١). مسند احمد (٢/١٢٥، ٤٣٤، ٥٠٠). سنن الدارمي/الصلاة ٣٢ (١٢٧٣)

Scanned with C

٢٤١ـ حَدَّثَنَا عُقْبَةُ بْنُ مُكْرَمٍ وَنَصْرُ بْنُ عَلِيٍّ الجَهْضَمِيُّ، قَالَا: حَدَّثَنَا أَبُو قُتَيْبَةَ سَلْمُ بْنُ قُتَيْبَةَ، عَنْ طُعْمَةَ بْنِ عَمْرٍو، عَنْ حَبِيبِ بْنِ أَبِي ثَابِتٍ، عَنْ أَنَسِ بْنِ مَالِكٍ، قَالَ: قَالَ رَسُولُ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ: "مَنْ صَلَّى لِلَّهِ أَرْبَعِينَ يَوْمًا فِي جَمَاعَةٍ يُدْرِكُ التَّكْبِيرَةَ الأُولَى، كُتِبَتْ لَهُ بَرَاءَتَانِ، بَرَاءَةٌ مِنَ النَّارِ، وَبَرَاءَةٌ مِنَ النِّفَاقِ". قَالَ أَبُو عِيسَى: وَقَدْ رُوِيَ هَذَا الحَدِيثُ، عَنْ أَنَسٍ مَوْقُوفًا وَلَا أَعْلَمُ أَحَدًا رَفَعَهُ إِلَّا مَا رَوَى سَلْمُ بْنُ قُتَيْبَةَ، عَنْ طُعْمَةَ بْنِ عَمْرٍو، عَنْ حَبِيبِ بْنِ أَبِي ثَابِتٍ، عَنْ أَنَسٍ، وَإِنَّمَا يُرْوَى هَذَا الحَدِيثُ عَنْ حَبِيبِ بْنِ أَبِي حَبِيبٍ البَجَلِيِّ، عَنْ أَنَسِ بْنِ مَالِكٍ قَوْلَهُ، حَدَّثَنَا بِذَلِكَ هَنَّادٌ، حَدَّثَنَا وَكِيعٌ، عَنْ خَالِدِ بْنِ طَهْمَانَ، عَنْ حَبِيبِ بْنِ أَبِي حَبِيبٍ البَجَلِيِّ، عَنْ أَنَسٍ نَحْوَهُ وَلَمْ يَرْفَعْهُ، وَرَوَى إِسْمَاعِيل بْنُ عَيَّاشٍ هَذَا الحَدِيثَ، عَنْ عُمَارَةَ بْنِ غَزِيَّةَ، عَنْ أَنَسِ بْنِ مَالِكٍ، عَنْ عُمَرَ بْنِ الخَطَّابِ، عَنِ النَّبِيِّ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ نَحْوَ هَذَا، وَهَذَا حَدِيثٌ غَيْرُ مَحْفُوظٍ، وَهُوَ حَدِيثٌ مُرْسَلٌ، وَعُمَارَةُ بْنُ غَزِيَّةَ لَمْ يُدْرِكْ أَنَسَ بْنَ مَالِكٍ، قَالَ مُحَمَّدُ بْنُ إِسْمَاعِيل حَبِيبُ بْنُ أَبِي حَبِيبٍ يُكْنَى أَبَا الكَشُوثَى وَيُقَالُ: أَبُو عُمَيْرَةَ.[1]

**ترجمه**: دانس بن مالک رضي الله عنه نه مروي دي چي رسول الله صلي الله عليه وسلم فرمائيلي دي چاچي څلويښت ورځو پوري دالله تعالي درضا دپاره دتکبير اولي سره په جماعت مونځ اوکړو نو دده دپاره به دوه قسمه برائت اوليکلي شي يو داور نه او دويم دمنافقت نه.

امام ترمذي وائي دانس نه دا حديث موقوفا هم نقل کړي شوي دي، مونږ ته نه ده معلومه چي د ابو قتيبه سلمه بن قتيبه نه علاوه بل چا دا مرفوع بيان کړي وي داحديث دحبيب بن ابي حبيب بجلي نه هم مروي دي او هغې دانس بن مالک نه نقل کړي دي او هغوی دانس قول ګرځولي دي او مرفوع يې نه دي بيان کړي، دا رنګې دا حديث اسماعيل بن عياش په سند دعماره بن غزيته عن انس بن مالك عن عمر بن الخطاب عن النبي صلي الله عليه وسلم سره نقل کړي دي او دا حديث غير محفوظ او مرسل دي ځکه چي عماره بن غزيه دانس بن مالک زمانه نه ده موندلې.

***************

## ٦٧ـ باب مَا يَقُولُ عِنْدَ افْتِتَاحِ الصَّلَاةِ

**دمونځ شروع کولو وخت کي کومه دعا وئيل پکار دي**

---

[1] تفرد به المؤلف (تحفة الأشراف: ٥٢١)

٢٤٢_ حَدَّثَنَا مُحَمَّدُ بْنُ مُوسَى الْبَصْرِيُّ. حَدَّثَنَا جَعْفَرُ بْنُ سُلَيْمَانَ الضُّبَعِيُّ. عَنْ عَلِيِّ بْنِ عَلِيٍّ الرِّفَاعِيِّ. عَنْ أَبِي الْمُتَوَكِّلِ. عَنْ أَبِي سَعِيدٍ الْخُدْرِيِّ. قَالَ: كَانَ رَسُولُ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ إِذَا قَامَ إِلَى الصَّلَاةِ بِاللَّيْلِ كَبَّرَ. ثُمَّ يَقُولُ: " سُبْحَانَكَ اللَّهُمَّ وَبِحَمْدِكَ. وَتَبَارَكَ اسْمُكَ. وَتَعَالَى جَدُّكَ وَلَا إِلَهَ غَيْرُكَ " ثُمَّ يَقُولُ: " اللهُ أَكْبَرُ كَبِيرًا " ثُمَّ يَقُولُ: " أَعُوذُ بِاللهِ السَّمِيعِ الْعَلِيمِ مِنَ الشَّيْطَانِ الرَّجِيمِ مِنْ هَمْزِهِ وَنَفْخِهِ وَنَفْثِهِ ". قَالَ أَبُو عِيسَى: وَفِي الْبَاب عَنْ عَلِيٍّ. وَعَائِشَةَ. وَعَبْدِ اللهِ بْنِ مَسْعُودٍ. وَجَابِرٍ. وَجُبَيْرِ بْنِ مُطْعِمٍ وَابْنِ عُمَرَ. قَالَ أَبُو عِيسَى: وَحَدِيثُ أَبِي سَعِيدٍ أَشْهَرُ حَدِيثٍ فِي هَذَا الْبَابِ. وَقَدْ أَخَذَ قَوْمٌ مِنْ أَهْلِ الْعِلْمِ بِهَذَا الْحَدِيثِ. وَأَمَّا أَكْثَرُ أَهْلِ الْعِلْمِ. فَقَالُوا: بِمَا رُوِيَ عَنِ النَّبِيِّ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ. أَنَّهُ كَانَ يَقُولُ: " سُبْحَانَكَ اللَّهُمَّ وَبِحَمْدِكَ وَتَبَارَكَ اسْمُكَ وَتَعَالَى جَدُّكَ وَلَا إِلَهَ غَيْرُكَ " وَهَكَذَا رُوِيَ عَنْ عُمَرَ بْنِ الْخَطَّابِ وَعَبْدِ اللهِ بْنِ مَسْعُودٍ. وَالْعَمَلُ عَلَى هَذَا عِنْدَ أَكْثَرِ أَهْلِ الْعِلْمِ مِنَ التَّابِعِينَ وَغَيْرِهِمْ. وَقَدْ تُكُلِّمَ فِي إِسْنَادِ حَدِيثِ أَبِي سَعِيدٍ. كَانَ يَحْيَى بْنُ سَعِيدٍ يَتَكَلَّمُ فِي عَلِيِّ بْنِ عَلِيٍّ الرِّفَاعِيِّ. وقَالَ أَحْمَدُ: لَا يَصِحُّ هَذَا الْحَدِيثُ. (1)

**ترجمه** : دابوسعيد خدري رضي الله عنه نه مروي دي چي رسول الله صلي الله عليه وسلم به كله په مونځ اودريدو نو الله اكبر به يي ونيلو او بيا به يي "سبحانك اللهم وبحمدك وتبارك اسمك وتعالي جدك ولااله غيرك" ونيل يعني اي الله ته پاك يي او دهرعيب او نقصان نه پاك يي تول تعريفونه خاص ستادپاره دي او بركت والادي نوم ستا او لوړدي شان ستا او ستا نه علاوه بل معبود برحق نشته بيا به يي ددينه پس الله اكبر كبيرا اووئيل او بيا به يي "اعوذ بالله السميع العليم من الشيطان الرجيم من همزه ونفخه ونفثه زه په الله باندي چي سميع او عليم دي د شيطان مردود نه پناه غواړم دهغه دوسوسو نه او دهغه دتكبر او نحوست نه او دهغه داشعار او دجادو ونيلو نه.

امام ترمذي وائي په دي باب كي د علي، عائشه، ابن مسعود، جابر، زبير بن مطعم، اوابن عمر رضي الله عنهم نه هم احاديث وارد دي او په دي باب كي دابوسعيد خدري حديث دټولو نه زيات مشهور دي بعضي اهل علمو همداحديث اختيار كړي دي او اكثرو اهل علمو به هغه دعا ونيله كومه چي درسول الله نه مروي ده "سبحانك اللهم وبحمدك وتبارك اسمك وتعالي جدك ولااله غيرك" او دا رنګي دعمر، فاروق، او عبدالله بن مسعود نه هم مروي دي په

---

1 سنن ابي داود/ الصلاة ١٢٢ (٧٧٥). سنن النسائي/الافتتاح ١٨ (٩٠٠). سنن ابن ماجه/الإقامة ١ (٨٠٤). (تحفة الأشراف: ٤٢٥٢). سنن الدارمي/الصلاة ٣٣ (١٢٧٥)

Scanned with C

تابعينو كي داكثرو اهل علمو په دي باندي عمل دي، دابوسعيد خدري دحديث په سند باندي كلام شوي دي يحي بن سعيد دعلي بن علي رفاعي په باره كي كلام كولو او امام احمد به ونيل دا صحيح نه دي.

***************

٢٤٣_ حَدَّثَنَا الْحَسَنُ بْنُ عَرَفَةَ، وَيَحْيَى بْنُ مُوسَى، قَالَا: حَدَّثَنَا أَبُو مُعَاوِيَةَ، عَنْ حَارِثَةَ بْنِ أَبِي الرِّجَالِ، عَنْ عَمْرَةَ، عَنْ عَائِشَةَ، قَالَتْ: كَانَ النَّبِيُّ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ إِذَا افْتَتَحَ الصَّلَاةَ قَالَ: " سُبْحَانَكَ اللَّهُمَّ وَبِحَمْدِكَ، وَتَبَارَكَ اسْمُكَ، وَتَعَالَى جَدُّكَ، وَلَا إِلَهَ غَيْرُكَ " قَالَ أَبُو عِيسَى: هَذَا حَدِيثٌ لَا نَعْرِفُهُ مِنْ حَدِيثِ عَائِشَةَ إِلَّا مِنْ هَذَا الْوَجْهِ، وَحَارِثَةُ قَدْ تُكُلِّمَ فِيهِ مِنْ قِبَلِ حِفْظِهِ، وَأَبُو الرِّجَالِ اسْمُهُ: مُحَمَّدُ بْنُ عَبْدِ الرَّحْمَنِ الْمَدِينِيُّ. ([1])

**ترجمه**: دعائشه رضي الله عنهابيان دي چي رسول الله به كله مونځ شروع كولو "سبحانك اللهم وبحمدك وتبارك اسمك وتعالي جدك ولااله غيرك" به يي ونيل.

امام ترمذي وائي دعائشه رضي الله عنها حديث مونږ ته صرف په دي سند رارسيدلي دي او په حارثه راوي دحفظ په اعتبار كلام شوي دي.

**تشريح**: د مانځه په فرائضو کي اول تکبير تحريمه ده.او په لغت کي تحريمه وائی (جعل الشئ محرماً) يعنی يو څيز حرام ګرځول.دلته تحريمه د تکبير اولی نوم دې.ځکه چی تکبير اولیٰ هغه ټول څيزونه حراموی.کوم چی ددی نه وړاندې مباح وی. ددی په خلاف د نورو تکبيرونو دا حيثيت نه دې.

علامه ابن الهمام فرمائيلی دی چی تکبير ته تحريمه ونيل مجازی دی.ځکه چی تحريم بذات خود تکبير نه دې.بلکه په دی سره تحريم ثابتيږی.او دي ته په دی حديث کي اشاره ده (مفتاح الصلاة الطهور وتحريمها التكبير وتحليلها التسليم) (ابوداود ،ترمذی) د مانځه کنجی خو طهور دې.او تحريم ئې تکبير دې.او ددی تحليل تسليم دې.

د تکبير تحريمه په فرضيت باندې څلور دلائل دی:

(١) اول په تکبير تحريمه باندې د رسول پاك صلي الله عليه وسلم مداومت کول.او بغير د ترك نه په يو څيز باندې د رسول پاك صلي الله عليه وسلم مداومت کول د وجوب علامت دې

(٢)دويمه اجماع ده.ځکه چی د رسول پاك صلي الله عليه وسلم د زماني نه واخله ترننه ورځې پورې د تکبير اولی په وجوب کي د چا اختلاف منقول نه دې

---

[1] سنن ابي داود/ الصلاة ١٢٢ (٧٧٦) . سنن ابن ماجه/الإقامة ١(٨٠٦) . (تحفة الأشراف : ١٧٨٨٥)

(۳)دریم دلیل دالله تعالی قول دی.﴿وربك فكبر﴾ په آیت کي "الله اکبر" ونیل مراد دی. ځکه چی روایت دي
(أنه لما نزل قال رسول الله صلي الله عليه وسلم الله اكبر فكبرت خديجة وفرحت وأيقنت أنه الوحي) يعنی کله چی دا آیت نازل شو.نو رسول الله"الله اکبر" اوونیل. خدیجه رضی الله عنها هم تکبیر اوونیل.اوخوشحاله شوه.او یقین ئې اوکړو چی دا وحی ده.وجوه د استدلال متعدد دي یوه وجه دا ده چی د ټولو مفسرینو په دی اجماع ده چی ددی نه مراد تکبیر تحریمه ده
(۲)دغه شان"کبر"د امر صیغه ده.او د امر موجب وجوب وی.او دا خبره په اجماع سره ثابته ده چی د مانځه نه بهرهیڅ تکبیر واجب نه دی.نو متعینه شوه چی ددی نه د مانځه تکبیر مراد دی.
صاحب د هدایه فرمائی چی تکبیر تحریمه زمونږ په نزد شرط ده.او د امام شافعی په نزد رکن دی.ثمره د اختلاف به داسی ښکاره کیږی چی زمونږ په نزد چونکه تحریمه شرط دي. نود فرضو په تحریمه به نفل ادا کول جائز وی.او د امام شافعی په نزد چونکه رکن دی.نوځکه د فرضو په تحریمه باندې نفل ادا کول جائز نه دی.وجه دا ده چی په یو شرط باندې ګڼړ مونځونه ادا کول جائز دی.خو په یو رکن جائز نه دی.
بهرحال د تکبیر تحریمه په رکنیت باندې د امام شافعی دلیل دا دی چی د تکبیر تحریمه دپاره هر هغه څیز شرط دی.کوم چی د نورو ارکانو دپاره شرط وی.لکه طهارت،سترعورت،استقبال د قبلې ،نیت او وخت،یعنی دا څیزونه لکه څنګه چی د قیام،قراءت ،رکوع، او سجدي وغیره ارکانو دپاره شرطونه دی.نو دغه شان د تکبیر تحریمي دپاره هم شرط نه دی.او د کوم څیز دپاره چی هغه ټولي خبري شرط وی.کوم چی د ټولو ارکانو دپاره شرط وی.نو دا ددی څیز د رکنیت نښه ده.یعنی په نورو ارکانو به قیاس کولی شی.اودا به هم رکن ګرځولې شی.

زمونږدلیل دا دې چی د الله تعالی قول: { وَذَكَرَ اسْمَ رَبِّهِ فَصَلَّى } کي د مونځ عطف په {وَذَكَرَ اسْمَ رَبِّهِ فَصَلَّى} دي یعنی تکبیر تحریمه باندې.او عطف تقاضا کوی د مغایرت ،یعنی په معطوف علیه او معطوف کي مغایرت ضروری دې.اوس که تکبیر رکن اومنلی شی.نو د ،کل"عطف په جزء باندې لازمیږی.او چونکه کل هغه جزء ته هم شامل دې.نوځکه عطف د شئ علی نفسه لازمیږی.اودا ناجائز ده. ددی وجی مونږ وایو چی تکبیر تحریمه رکن نه دی. بلکه شرط دی.اوچونکه شرط د څیز د هغه څیز نه خارج وی.نو ځکه به په تکبیر تحریمه او مونځ کي تغایر وی.او عطف به صحیح وی.نو ثابته شوه چی تکبیر تحریمه د مانځه دپاره

Scanned with C

شرط دی رکن نه دي.دويم دليل دادې چې لکه څنګه نور ارکان په مانځه کي مکرر وي.تکبير تحريمه مکرر نه وي.نو دا ددی خبري نښه ده چې تکبير تحريمه رکن نه دی.ګنی د نورو ارکانو پشان به تکبير تحريمه هم مکرر وه صاحب هدايه په (مراعاة الشرائط) سره د امام شافعی ددليل جواب کوي د جواب حاصل دا دی چې د ذکرشوی شرائطو (طهارت.پټول دعورت.وغيره)خيال ساتل د نفس تحريمي دپاره نه دی.بلکه قيام کوم چې د تحريمه سره مشابه دی.د هغی دپاره دی.او هغه رکن دی.او ددی نه د تحريمي رکنيت نه ثابتيږی.

## دتکبير الفاظ

په دی عبارت کي د افتتاح دالفاظو بيان دی(١)د طرفينو په نزد په هر هغه لفظ باندې مونځ کي شروع جائز ده.کوم چې د الله تعالى په تعظيم باندې دلالت کوی.که (أالله أکبر) وی یا (الله الأکبر) یا (الله کبیر) یا (الله الکبیر) یا (الله أجل) یا (أالله أعظم) یا (الرحمن أکبر) یا (لا إله الا الله) یا (الحمد لله) یا (سبحان الله) یا د الله په اسماؤ کي په بل يونوم باندې شروع اوکړی.نو ټول جائز دی(٢)امام ابويوسف فرمائی.که په ښه شان په تکبير ونيلو باندې قادر نه وی.نو صرف دری الفاظ (الله أکبر. یا :الله الأکبر"یا الله الکبیر) کي په يو لفظ باندې په مانځه کي شروع کول جائز دی. ددی نه علاوه په بل هيڅ قسم سره جائز نه ده(٣)امام شافعی فرمائی چې صرف په (الله أکبر او الله الأکبر) باندې شروع جائز ده. (۴) اوامام مالك فرمائی چې صرف په (الله أکبر) باندې جائز ده.هم دا د امام احمد بن حنبل قول دی.د امام مالك دليل دادې چې د رسول پاك صلي الله عليه وسلم نه صرف"الله اکبر"منقول دی.او اصل په دی کي توقيف دی.يعنی شارع (١) واقف ګرځول، او د شارع (١) نه صرف الله اکبر منقول دي،نو ددی نه علاوه په نورو الفاظو شروع کول دروست نه دی.

دامام شافعی دليل دا دی چې بيشکه د رسول پاك صلي الله عليه وسلم نه (الله اکبر) منقول دی.خو (الله الأکبر) د الف لام سره مفيد دحصر دی. ددی وجی دالله تعالى په ثناء کي ابلغ دی. نو ځکه دا د الله اکبر قائم مقام دی.دامام ابويوسف دليل دا دی چې دالله تعالى په صفاتو کي د"افعل"په وزن اسم تفضيل او"فعيل په معنی د فاعل ټول برابر دی.ځکه چې دالله تعالى په صفاتو کي زيادت مراد نه دي ځکه چې په اصل لونې کي دالله تعالى سره څوك برابر نه دی.ترڅو چې د"افعل"صيغه د زيادت دپاره ګرځولي شی.لکه څنګه چې د بندګانو په اوصافو کي وی.نو"افعل او"فعيل"دواړه دالله تعالى په صفاتو کي برابر دی. ددی په خلاف که دغه کس په ښه شان تکبير نشی ونيلې.نو څنګه چې دده نه کيدی شی .د

تعظیم معنی دی ادا کړی.ځکه چی دا کس صرف په معنی باندې قادر دې.په الفاظود تکبیر باندې قادر نه دې.د طرفینو دلیل دا دې چی په لغت کې تکبیر د تعظیم په معنی کې دې.دالله تعالی قول دې:وربك فكبر . یعنی فعظم او فلما رئینه اکبرنه اودا تعظیم د دی ټولو الفاظو نه حاصلیږی.کوم چی مونږ ذکر کړل.

****************

## ٦٨_ بَاب مَا جَاءَ فِي تَرْكِ الْجَهْرِ بِـ(بِسْمِ اللَّهِ الرَّحْمَنِ الرَّحِيمِ)

### دبسم الله الرحمن الرحیم خفیه ونیلو بیان

٢٤٤_ حَدَّثَنَا أَحْمَدُ بْنُ مَنِيعٍ . حَدَّثَنَا إِسْمَاعِيلُ بْنُ إِبْرَاهِيمَ . حَدَّثَنَا سَعِيدُ بْنُ إِيَاسٍ الْجُرَيْرِيُّ، عَنْ قَيْسِ بْنِ عَبَايَةَ . عَنْ ابْنِ عَبْدِ اللَّهِ بْنِ مُغَفَّلٍ، قَالَ: سَمِعَنِي أَبِي وَأَنَا فِي الصَّلَاةِ أَقُولُ: بِسْمِ اللَّهِ الرَّحْمَنِ الرَّحِيمِ سورة الفاتحة آية ١، فقال لِي: أَيْ بُنَيَّ مُحْدَثٌ، إِيَّاكَ وَالْحَدَثَ. قَالَ: " وَلَمْ أَرَ أَحَدًا مِنْ أَصْحَابِ رَسُولِ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ كَانَ أَبْغَضَ إِلَيْهِ الْحَدَثُ فِي الْإِسْلَامِ يَعْنِي مِنْهُ. قَالَ: وَقَدْ صَلَّيْتُ مَعَ النَّبِيِّ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ وَمَعَ أَبِي بَكْرٍ وَمَعَ عُمَرَ وَمَعَ عُثْمَانَ. فَلَمْ أَسْمَعْ أَحَدًا مِنْهُمْ يَقُولُهَا فَلَا تَقُلْهَا، إِذَا أَنْتَ صَلَّيْتَ " فَقُلْ: الْحَمْدُ لِلَّهِ رَبِّ الْعَالَمِينَ سورة الفاتحة آية ٢. قَالَ أَبُو عِيسَى: حَدِيثُ عَبْدِ اللَّهِ بْنِ مُغَفَّلٍ حَدِيثٌ حَسَنٌ، وَالْعَمَلُ عَلَيْهِ عِنْدَ أَكْثَرِ أَهْلِ الْعِلْمِ مِنْ أَصْحَابِ النَّبِيِّ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ. مِنْهُمْ أَبُو بَكْرٍ. وَعُمَرُ. وَعُثْمَانُ. وَعَلِيٌّ وَغَيْرُهُمْ وَمَنْ بَعْدَهُمْ مِنَ التَّابِعِينَ. وَبِهِ يَقُولُ: سُفْيَانُ الثَّوْرِيُّ، وَابْنُ الْمُبَارَكِ، وَأَحْمَدُ. وَإِسْحَاق. لَا يَرَوْنَ أَنْ يَجْهَرَ بِـ: بِسْمِ اللَّهِ الرَّحْمَنِ الرَّحِيمِ (الفاتحة ١)، قَالُوا: وَيَقُولُهَا فِي نَفْسِهِ.[1]

**ترجمه** : دعبدالله بن معفل دخوي نه روایت دي فرمائي چي زما پلار مانه په مونځ کي بسم الله الرحمن الرحیم واوریدله نو ماته یي اوونیل اي بچیه دا بدعت دي او دبدعت نه ځان ساته مادرسول الله صلي الله علیه وسلم په صحابه کرامو کي هیڅوك نه دي لیدلي چي دهغه نه زیات په اسلام کي دبدعت مخالف وي مادنبي کریم صلي الله علیه وسلم سره او دابوبکر او عمر او عثمان رضي الله عنهم سره هم مونځونه کړي دي لیکن ماپه هغوئ کي دهیچا نه په جهري اواز بسم الله نه ده اوریدلي نو ته هم داسي مه کوه او چي کله مونځ شروع کوي نو قرائت د "الحمد لله رب العالمین" نه شروع کوه.

---

[1] سنن النسائي/الإفتتاح ٢٢ (٩٠٩) . سنن ابن ماجه/الإقامة ٣ (٨١٥) . (تحفة الأشراف : ٩٦٦٧) . مسند احمد (٣/٥٨) . و (٥٥ ،٥/٥٣)

امام ترمذي وائي دعبدالله بن مغفل حديث حسن صحيح دي او دصحابه کرامو چي ابوبکر او عمر او عثمان رضي الله عنهم هم پکي شامل دي او د اکثرو تابعينو اواهل علمو هم په دي باندي عمل دي، سفيان ثوري ابن مبارك، احمد، او اسحاق رحمهم الله هم په دي باندي قول کړي دي چي بسم الله الرحمان الرحيم جهرا وئيل درست نه دي بلکه دوی وائي چي په زړه کي ددي وئيل پکار دي.

****************

## ٦٩ـ باب مَنْ رَأَى الْجَهْرَ بِـ (بِسْمِ اللَّهِ الرَّحْمَنِ الرَّحِيمِ)

### ذکر دهغه چا څوك چي جهرا دبسم الله وئيلو قائل دي

٢٤٥ـ حَدَّثَنَا أَحْمَدُ بْنُ عَبْدَةَ الضَّبِّيُّ، حَدَّثَنَا الْمُعْتَمِرُ بْنُ سُلَيْمَانَ، قَالَ: حَدَّثَنِي إِسْمَاعِيلُ بْنُ حَمَّادٍ، عَنْ أَبِي خَالِدٍ، عَنِ ابْنِ عَبَّاسٍ، قَالَ: كَانَ النَّبِيُّ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ "يَفْتَتِحُ صَلَاتَهُ بِـ بِسْمِ اللَّهِ الرَّحْمَنِ الرَّحِيمِ سورة الفاتحة آية ١". قَالَ أَبُو عِيسَى: هَذَا حَدِيثٌ لَيْسَ إِسْنَادُهُ بِذَاكَ، وَقَدْ قَالَ: بِهَذَا عِدَّةٌ مِنْ أَهْلِ الْعِلْمِ مِنْ أَصْحَابِ النَّبِيِّ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ، مِنْهُمْ أَبُو هُرَيْرَةَ وَابْنُ عُمَرَ، وَابْنُ عَبَّاسٍ، وَابْنُ الزُّبَيْرِ، وَمَنْ بَعْدَهُمْ مِنَ التَّابِعِينَ رَأَوْا الْجَهْرَ بِـ: بِسْمِ اللَّهِ الرَّحْمَنِ الرَّحِيمِ سورة الفاتحة آية ١، وَبِهِ يَقُولُ الشَّافِعِيُّ، وَإِسْمَاعِيلُ بْنُ حَمَّادٍ هُوَ ابْنُ أَبِي سُلَيْمَانَ، وَأَبُو خَالِدٍ يُقَالُ: هُوَ أَبُو خَالِدٍ الْوَالِبِيُّ وَاسْمُهُ: هُرْمُزُ وَهُوَ كُوفِيٌّ.[1]

**ترجمه**: دعبدالله بن عباس رضي الله عنهما نه مروي دي چي نبي کريم صلي الله عليه وسلم به خپل مونځ د بسم الله الرحمن الرحيم نه شروع کولو.

امام ترمذي وائي ددي حديث سند قوي نه دي او په صحابه کرامو کي ابوهريره، ابن عمر، ابن عباس، او ابن زبير رضي الله عنهم او ددينه پس په تابعينو کي بعضي اهل علمو په جهري بسم الله باندي قول کړي دي او دا دامام شافعي مسلك هم دي.

**تشريح**: بسم الله بالجهر مسئله د احنافو او شوافعو په مينځ کي اختلافي ده، احناف وايي چی په تسيمه او تعوذ کي به اخفا کوی. يعنی په مانځه کي به دا په پټه وائی(٢)امام شافعی فرمائی چی په جهری مونځ کي به په جهر سره وائی.

---

[1] تفرد به المؤلف (تحفة الأشراف: ٦٥٢٤).

## په تعوذ تسميه او امين كي د جهر او اخفاء حكم

امام شافعی د بسم الله جهرا وئيلو قائل دی او دليل يي دا دې. ابوهريره(رضي الله عنه) روايت كوی چی رسول پاك صلي الله عليه وسلم به په خپل مونخ كي په بسم الله باندې جهر كولو.په صحيح ابن خزيمه ،ابن حبان او نسائی كي د نعيم بن المجمر نه روايت دې چی :صليت وراء أبي هريرة (رضي الله عنه) فقرأ بسم الله الرحمن الرحيم. ثم قرأ بأم القرآن حتى بلغ ولا الضالين.فقال آمين .ثم يقول إذا سلم والذی نفسی بيده إنی لأشبهكم صلاة برسول الله, فتح القدير) يعنی نعيم المجمر نه روايت دې چی ما په ابوهريره(رضي الله عنه) پسې روستو مونځ كولو.نو ابوهريره(رضي الله عنه) بسم الله الرحمن الرحيم اووئيل.بيا ئې ام القرآن يعنی سورة فاتحه اووئيله.تردی چی: ولا الضالين ته اورسيدلو.نو آمين ئې اووئيل.بيا ئې د سلام نه پس اووئيل.په هغه ذات مي دی قسم وی چی زما روح د هغوی په قبضه كي دې چی زه د رسول الله صلي الله عليه وسلم سره په مانځه كي دتبولو نه زيات مشابه يم.

دا حديث په دی خبره دلالت كوی چی ابوهريره(رضي الله عنه) په بسم الله ،سورة فاتحه او آمين دری واړو باندې جهر كولو.ځكه كه ابوهريره(رضي الله عنه) جهر نه كولو.نو نعيم المجمر(رضي الله عنه) ته به څنګه پته لګيدله.اوچونكه ابوهريره(رضي الله عنه) اووئيل. چی زما مونځ د رسول الله د مانځه سره زيات مشابه دې.نو ددی نه معلومه شوه چی رسول الله به هم دا څيزونه په جهر سره لوستل.

اودارقطنی د سعيد بن جبير نه روايت كړې دې (عن ابن عباس رضی الله عنهما قال كان النبي صلي الله عليه وسلم يجهر في الصلاة ببسم الله الرحمن الرحيم) ابن عباس رضی الله عنهما فرمائی چی رسول پاك صلي الله عليه وسلم به په مانځه كي په بسم الله باندې جهر كولو.

زمونږ دليل دابن مسعود (رضي الله عنه) قول دې چی څلور څيزونه داسی دی.كوم چی امام پټ وائی.هغه څلور څيزونه دا دی.تعوذ،تسميه ،تحميد (ربنالك الحمد)او آمين، صاحب د شرح نقايه د تحميد په ځائې ثناء ذكر كړې ده.ځكه چی امام محمد په آثار كي روايت كړې دې (عن أبي حنيفة (رضي الله عنه) عن حماد عن ابراهيم النخعی أنه قال أربع تخفيهن الإمام التعوذ وبسم الله الرحمن الرحيم. وسبحانك اللهم وبحمدك وأمين) (شرح نقايه) (٢)په بسم الله بالسر وئيلو باندې د انس(رضي الله عنه) قول هم مستدل دې.ارشاد دې (صليت خلف رسول الله وخلف أبي بكر وعمر وعثمان فلم أسمع أحدا منهم يقرأ بسم الله الرحمن الرحيم) او د

مسلم په يو روايت كي دى(فلم أسمع أحدا منهم يجهرون ببسم الله الرحمن الرحيم) انس(رضي الله عنه) فرمائى چى ما په رسول الله،ابوبكر،عمرو او عثمان رضي الله عنهم پسې مونځ كولو،ما په دوى كښې د يو نه هم په بسم الله باندې جهر نه دى اوريدلې.

دامام شافعي بالجهر پيش كړې روايتونونه دوه جوابونه دي اول جواب دا دې چې رسول پاك صلي الله عليه وسلم كله كله د خلقو دتعليم دپاره په بسم الله باندې جهر كړې دې.ګنى د رسول پاك صلي الله عليه وسلم عام عادت په بسم الله باندې جهر نه وو. انس(رضي الله عنه) خبر وركړې دې چې رسول پاك صلي الله عليه وسلم په بسم الله باندې په مانځه كي دننه جهر نه دى كړې(٢) دويم جواب دا دې چې په ابتداء د اسلام كي به رسول پاك صلي الله عليه وسلم په بسم الله باندې جهر كولو ليكن دايت ولا تجهر بصلاتك ولا تخافت بها . په ذريعه جهر منسوخ شو.

صاحب د شرح نقايه او ملا على قارى دنسخ تفصيل داسى بيان كړې دې (عن سعيد بن جبير أنه قال كان المشركون يحضرون المسجد وإذا قرأ رسول الله صلي الله عليه وسلم قالوا هذا محمد يذكر رحمن اليمامة يعنون مسليمة الكذاب فأمر أن يخافت ببسم الله الرحمن الرحيم ونزلت ولا تجهر بصلاتك ولا تخافت بها،د سعيد بن جبير(رضي الله عنه) نه روايت دې.فرمائى چې د مكي مشركان به مسجد حرام ته حاضريدل.او چې كله به رسول پاك صلي الله عليه وسلم قراءت كولو.نو فرمائيل به ئې چې دا محمد دې.د يمامه د رحمن يعنى مسيلمه كذاب ذكر كوى.نو رسول پاك صلي الله عليه وسلم ته حكم اوشو چې په بسم الله الرحمن الرحيم باندې اخفاء كود.او دبسم الله الرحمن الرحيم آيت نازل شو. ددى واقعه نه معلومه شوه چې رسول پاك صلي الله عليه وسلم به په بسم الله او قرآت د قرآن كي جهر كولو.خو ددى واقعه نه پس د جهر حكم منسوخ شو.او د ابوداود په يو روايت كي دى (يخفض النبي صلي الله عليه وسلم ببسم الله الرحمن الرحيم) يعنى ددى واقعه نه پس د الله تعالى پاك پيغمبر به بسم الله په پټ آواز سره وئيله.دا هم د جهرپه منسوخ كيدو باندې دلالت كوى.

علامه ابن الهمام د نعيم المجمر (رضي الله عنه) د روايت جواب وركوى اوفرمائى چې ممكن ده چې د ابوهريره(رضي الله عنه) د اخفاء باوجود نعيم المجمر(رضي الله عنه) اوريدلې وى.ځكه كه مقتدى د امام سره نزدى وى.او امام په اخفاء كي مبالغه نه وى كړې.نو هم اوريدل متحقق كيدى شى .

باتې شوه دا خبره چې بسم الله به په هر ركعت كي د سورة فاتحه نه وړاندې وائى.او كه صرف په اولنى ركعت كي نو په دى باره كي د امام اعظم نه دوه روايتونه دى. دحسن بن

زیاد روایت دا دې چې بسم الله به په هر رکعت کې نه وائی.بلکه د مونځ په شروع کې صرف یو ځل وئیل کافی دی.لکه څنګه چې تعوذ صرف په اولنی رکعت کې کافی دی.
ددی دلیل دا دې چې بسم الله د سوره فاتحه جزء نه دې. بلکه د افتتاح صلاة دپاره وئیلی شی.او صلاة واحد د فعل واحد پشان دې.او د فعل واحد دپاره یوځل بسم الله وئیل کافی دی .نو د صلاة واحده دپاره هم یو ځل بسم الله وئیل کافی دی.
دامام ابو حنیفه رحمه الله نه دویم روایت د ابویوسف دې چې په هر رکعت کې به بسم الله وائی.احتیاط هم په دی کې دې. ځکه چې په دی کې د اهل علمو اختلاف دې چې بسم الله د فاتحه جزء دی او که نه؟ او د فاتحه په هر رکعت کې وئیل ضروری دی.نو د بسم الله وئیل هم په هر رکعت کې ضروری شو چې د اختلاف نه بچاو راشی.
صاحب دهدایه فرمائی چې په هر رکعت کې بسم الله وئیل د صاحبینو قول دې.بیا فرمائی چې د سورة فاتحه او سورة په مینځ کې دی بسم الله نه وائی.البته امام محمد فرمائی چې په سری مونځ کې بسم الله ،د سورة فاتحه اوسورة په مینځ کې وئیلی شې.خو په جهری کې نشی وئیلې.

***************

## ٧٠_ بَاب مَا جَاءَ فِي افْتِتَاحِ الْقِرَاءَةِ بِـ (الْحَمْدُ لِلَّهِ رَبِّ الْعَالَمِينَ)

### په الحمدلله دقرائت شروع کولو بیان

٢٤٦_ حَدَّثَنَا قُتَيْبَةُ، حَدَّثَنَا أَبُو عَوَانَةَ، عَنْ قَتَادَةَ، عَنْ أَنَسٍ، قَالَ: كَانَ رَسُولُ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ وَأَبُو بَكْرٍ، وَعُمَرُ، وَعُثْمَانُ "يَفْتَتِحُونَ الْقِرَاءَةَ بِ: الْحَمْدُ لِلَّهِ رَبِّ الْعَالَمِينَ سورة الفاتحة آية ٢". قَالَ أَبُو عِيسَى: هَذَا حَدِيثٌ حَسَنٌ صَحِيحٌ، وَالْعَمَلُ عَلَى هَذَا عِنْدَ أَهْلِ الْعِلْمِ مِنْ أَصْحَابِ النَّبِيِّ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ وَالتَّابِعِينَ وَمَنْ بَعْدَهُمْ كَانُوا يَسْتَفْتِحُونَ الْقِرَاءَةَ بِ: الْحَمْدُ لِلَّهِ رَبِّ الْعَالَمِينَ . قَالَ الشَّافِعِيُّ: إِنَّمَا مَعْنَى هَذَا الْحَدِيثِ أَنَّ النَّبِيَّ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ وَأَبَا بَكْرٍ، وَعُمَرَ، وَعُثْمَانَ كَانُوا يَفْتَتِحُونَ الْقِرَاءَةَ بِ: الْحَمْدُ لِلَّهِ رَبِّ الْعَالَمِينَ . مَعْنَاهُ أَنَّهُمْ كَانُوا يَبْدَءُونَ بِقِرَاءَةِ فَاتِحَةِ

الْكِتَابَ قَبْلَ السُّورَةِ. وَلَيْسَ مَعْنَاهُ أَنَّهُمْ كَانُوا لَا يَقْرَءُونَ بِسْمِ اللَّهِ الرَّحْمَنِ الرَّحِيمِ . وَكَانَ الشَّافِعِيُّ يَرَى أَنْ يُبْدَأَ بِسْمِ اللَّهِ الرَّحْمَنِ الرَّحِيمِ . وَأَنْ يُجْهَرَ بِهَا إِذَا جُهِرَ بِالْقِرَاءَةِ. (1)

**ترجمه**. دانس رضي الله عنه نه مروي دي فرمائي چي رسول الله صلي الله عليه وسلم او ابوبكر او عمر اوعثمان رضي الله عنهم به په الحمد لله رب العالمين قرائت شروع كولو.
امام ترمذي وائي دا حديث حسن صحيح دي ، په صحابه كرامو او تابعينو كي داكثرو او ددوئ نه وروستنو خلقو په دي باندي عمل دي هغوئ به دالحمد لله رب العالمين نه قرائت شروع كولو ، امام شافعي وائي چي رسول الله صلي الله عليه وسلم ابوبكر او عمر او عثمان رضي الله عنهم دالحمد لله رب العالمين نه قرائت شروع كولو ددي مطلب دادي چي دوئ به دسورة نه مخكي سورة فاتحه لوستله او ددي دا مطلب نه دي چي بسم الله الرحمان الرحيم به يي نه لوستلو ، دامام شافعي مسلك دادي چي شروع دي په بسم الله الرحمن الرحيم باندي اوكړي شي او په جهري اواز دي اولوستلي شي خو چي قرائت جهري وي.

**تشريح: په مونځ كي د مسنون قراءت مقدار**

قراءة په مونځ په څومره مقدار كي ضروري دى؟ په دي سلسله كي قاضي ثناء الله پاني پتي د سورة المزمل په تفسير كي شاندار تحقيق كړى دى چي د مقام داقتضاء په طور يي دلته نقل كړو.

**مسئله**: په څومره مقدار كي قرائت واجب دي دكوم نه بغير چي مونځ درست نه دي دا مسئله اختلافي ده په يو روايت كي دامام اعظم قول دا راغلي دي څومره قرائت چي دمونځ ركن وي دكوم نه بغير چي مونځ نه كيږي هغه كم از كم دومره حصه ده چي دقران اطلاق وړباندي كيدي شي يعني چي دكوم انسان دكلام سره مشابه نه وي ددي روايت تقاضا داده چي ديو ايت نه كم قرائت هم دمونځ دجواز دپاره كافي دي او صاحب دقدوري هم پدي بيان اعتماد كړي دي.
دامام صاحب دويم قول په بل روايت كي دا راغلي دي او دا دامام احمد مسلك هم دي چي ديو ايت نه په كم قرائت مونځ نه كيږي دا روايت صاحب دهدايه اختيار كړي دي دامام صاحب دريم قول دادي چي لاندې دري ايتونه لكه دسورة كوثر او يو اوږد ايت چي د دري ايتونو په مقدار وي لوستل يي لازم دي او ددومره قرائت نه بغير مونځ نه كيږي دامام محمد او امام ابو يوسف هم دا قول دي ليكن ددي سره سره دامام صاحب او ابو يوسف او امام محمد دا قول هم

---

1 صحيح البخاري/الأذان ٨٩ (٧٤٣) . صحيح مسلم/الصلاة ١٣ (٣٩٩) . سنن ابى داود/ الصلاة ١٢٤ (٧٨٢) . سنن النسائي/الإفتتاح ٢٠ (٩٠٢) . سنن ابن ماجه/الإقامة ٤ (٨١٣) . (تحفة الأشراف : ١٤٣٥) . موطأ امام مالك/الصلاة ٦ (٣٠) . مسند احمد (١٠١/٣، ١١١، ١١٤، ١٨٣) . سنن الدارمي/الصلاة ٣٤ (١٢٧٦)

دي چي سورة فاتحه او ددي سره يو بل سورة (دري ايتونه لاندې او يا يو اوږد ايت) په مقدار قرائت واجب دي كچري سهواً پاتي شي نو سجده سهوه به لازمه وي او كچري قصدا يې پريخودو او سجده سهوه يې اونكړه نو ګنهګار به وي او دمونځ راګرځول وربانديَ واجب دي مګر فرض نه دي.

*****************

## ٧١ـ باب مَا جَاءَ أَنَّهُ لاَ صَلاَةَ إِلاَّ بِفَاتِحَةِ الْكِتَابِ

### دسورة فاتحي لوستلو نه بغير مونځ نه كيږي

٢٤٧ـ حَدَّثَنَا مُحَمَّدُ بْنُ يَحْيَى بْنُ أَبِي عُمَرَ الْمَكِّيُّ أَبُو عَبْدِ اللَّهِ الْعَدَنِيُّ، وَعَلِيُّ بْنُ حُجْرٍ. قَالاَ: حَدَّثَنَا سُفْيَانُ بْنُ عُيَيْنَةَ، عَنْ الزُّهْرِيِّ، عَنْ مَحْمُودِ بْنِ الرَّبِيعِ، عَنْ عُبَادَةَ بْنِ الصَّامِتِ، عَنِ النَّبِيِّ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ، قَالَ: "لاَ صَلاَةَ لِمَنْ لَمْ يَقْرَأْ بِفَاتِحَةِ الْكِتَابِ". قَالَ: وَفِي الْبَابِ عَنْ أَبِي هُرَيْرَةَ، وَعَائِشَةَ، وَأَنَسٍ، وَأَبِي قَتَادَةَ، وَعَبْدِ اللَّهِ بْنِ عَمْرٍو. وَقَالَ أَبُو عِيسَى: حَدِيثُ عُبَادَةَ حَدِيثٌ حَسَنٌ صَحِيحٌ. وَالْعَمَلُ عَلَيْهِ عِنْدَ أَكْثَرِ أَهْلِ الْعِلْمِ مِنْ أَصْحَابِ النَّبِيِّ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ. مِنْهُمْ عُمَرُ بْنُ الْخَطَّابِ، وَعَلِيُّ بْنُ أَبِي طَالِبٍ، وَجَابِرُ بْنُ عَبْدِ اللَّهِ، وَعِمْرَانُ بْنُ حُصَيْنٍ، وَغَيْرُهُمْ قَالُوا: لاَ تُجْزِئُ صَلاَةٌ إِلَّا بِقِرَاءَةِ فَاتِحَةِ الْكِتَابِ، وقَالَ عَلِيُّ بْنُ أَبِي طَالِبٍ: كُلُّ صَلاَةٍ لَمْ يُقْرَأْ فِيهَا بِفَاتِحَةِ الْكِتَابِ فَهِيَ خِدَاجٌ غَيْرُ تَمَامٍ. وَبِهِ يَقُولُ: ابْنُ الْمُبَارَكِ، وَالشَّافِعِيُّ، وَأَحْمَدُ، وَإِسْحَاق. سَمِعْت ابْنَ أَبِي عُمَرَ يَقُولُ: اخْتَلَفْتُ إِلَى ابْنِ عُيَيْنَةَ ثَمَانِيَةَ عَشَرَ سَنَةً، وَكَانَ الْحُمَيْدِيُّ أَكْبَرَ مِنِّي بِسَنَةٍ. وسَمِعْت ابْنَ أَبِي عُمَرَ، يَقُولُ: حَجَجْتُ سَبْعِينَ حَجَّةً مَاشِيًا عَلَى قَدَمَيَّ. [1]

**ترجمه**: دعباده بن الصامت رضي الله عنه نه روايت دي فرمائي چي رسول الله صلي الله عليه وسلم فرمائيلي دي څوك چي په مونځ كي سورة فاتحه اونه لولي دهغه مونځ نه كيږي.

امام ترمذي وائي دعباده بن الصامت حديث حسن صحيح دي، او په دي باب كي د ابوهريره، عائشه، انس، ابوقتاده، او عبدالله بن عمر رضي الله عنهم نه هم احاديث وارد دي، په صحابه كرامو كي داكثروا اهل علمو چي عمر فاروق او علي جابر بن عبدالله او عمران بن حصين رضي الله عنهم هم شامل دي په دي باندي عمل اختيار كړي دي ددوئ قول دي چي دسورة

---

[1] صحيح البخاري/الأذان ٩٥ (٧٥٦)، صحيح مسلم/الصلاة ١١ (٣٩٤)، سنن ابي داود/ الصلاة ١٣٦ (٨٢٢)، (بزيادة " فصاعدا ")، سنن النسائي/الإفتتاح ٢٤ (٩١١)، سنن ابن ماجه/الإقامة ١١ (٨٣٧)، (تحفة الأشراف : ٥١١٠)، مسند احمد (٥/٣١٤، ٣٢٢)، سنن الدارمي/الصلاة ٣٦ (١٢٧٨)

فاتحي لوستلو نه بغير تش سورة ونيل كفايت نه كوي دعلي رضـي الله عنه قول دي څوك چي
په مونځ كي سورة فاتحه اونه لولي نود هغه مونځ ناقص او ناتمام دي او همدا دابن مبارك،
شافعي. او احمد او اسحاق بن راهويه (رحمهم الله) قول هم دي

**تشريح**: دامام مالك شافعي او احمد په نزد بغير دسورة فاتحي نه مونځ درست نه دي او
دسورة فاتحي سره ديو بل سورة يوځاي كول مسنون دي واجب نه دي دي علماؤ دخپلي دعوي
په ثبوت كي دا حديث پيش كړي دي

"لا صلوة لمن لم يقرأ بفاتحة الكتاب" (متفق عليه من حديث عبادة بن الصامت)

ورواه الدار قطني بلفظ لا يجوز صلوة من لم يقرأ بفاتحة الكتاب وقال اسناده صحيح"

" رواه ابن خزيمة وابن حبان بهذه اللفظ من حديث ابي هريرة رض وفيه قال الراوي "قلت ان
كنت خلف الامام قال فاخذ بيدي وقال اقرأ بها في نفسك"

" وروى مسلم واحمد عن ابي هريرة رض بلفظ "من صلى صلوة لم يقرأ فيها بأم القران فهي
خداج هي خداج غير تمام. فقلت يا أبا هريرة أحيانا أكون وراء الامام فقال اقرأ بها في نفسك يا
فارسي"

" وروى الحاكم من طريق اشهب عن ابي عتبة عن ابي هريرة عن محمد بن الربيع عن عبادة
مرفوعاً أما القرآن عوض عن غيرها وليس غيرها عوضا عنها"

مونږ چي دفاتحة الكتاب كوم حديث لره په مختلفو الفاظو دمختلفو راويانو نه نقل كړي دي
ددينه معلومه شوه چي دلاصلاة الابفاتحة الكتاب چي كومه معني خلق بيانوي چي دفاتحي نه
بغير مونځ كامل نه وي (يعني كيږي او فرض ساقطيږي) لكه چي په يو بل حديث كي راغلي
دي رسول الله صلي الله عليه وسلم فرمائيلي دي "لا صلوة لجار المسجد الا في المسجد" يعني
دجومات دګاونډي مونځ بغير دجومات نه نه كيږي ددي مطلب دادي چي كامل نه وي دحديث
دا وضاحت غلط دي ځكه چي په نورو الفاظو سره چي دا حديث مروي دي هلته دا تاويل نه
چليږي . ددينه علاوه په لاصلاة الا بفاتحة الكتاب كي بفاتحة الكتاب جار مجرور دفعل
محذوفه سره متعلق دي او جارمجرور چي كوم كلام خبر واقع شي دهغي تعلق دكوم عام فعل
سره ضروري وي (خوپدي شرط چي دكوم خاص فعل قرينه موجوده نه وي) ګوياكي اوس
دلاصلاة الابفاتحة الكتاب اصل داسي دي يعني مونځ بغير دفاتحة الكتاب نه نه كيږي او دنه
كيدو شرعي معني داده چي ددي شرعي وجود نشته او صحيح نه دي لهذا دحديث معني به
داسي وي چي بغير دفاتحي لوستلو نه مونځ نه كيږي ، البته په حديث

"لا صلوة لجار المسجد الا في المسجد" كي نفي دكمال ده يعني دمسجد دګاونډي بغير دمسجد نه مونځ كامل نه دي . ددي وجه داده چې دلته جار مجرور خبر نه دي بلكه خبر محذوف دي نو په دي وجه دلته په نفي دكمال اجماع منعقده ده ، يو بل حديث قدسي دي په كوم كي چي دسورت فاتحي تقسيم دي فرمائيلي يي دي چه "قسمت الصلاة بيني وبين عبدي نصفين" الحديث. داحديث هم په دي دلالت كوي چي بغير دفاتحي نه مونځ نه كيږي ، په دي وجه په بعضي روايتونو كي راغلي دي چي د امام ابوحنيفه په نزد په مونځ كي دسورت فاتحي قراءت او ورسره ديوبل سورت لوستل واجب دي

ابن ماجه دابوسعيد خدري رضي الله عنه نه روايت نقل كړي دي چي څوك په هر ركعات كي الحمدلله او كوم سورت اونه لولي برابره خبره ده چي فرض وي او كه نه وي خو مونځ يي نه كيږي (ددي حديث سند ضعيف دي).

ابو داود دهمام په سند سره دقتاده نه او هغه دابوبصره نه دابوسعيد خدري بيان نقل كړي دي فرمائيلي دي چي مونږ ته رسول الله صلي الله عليه وسلم دفاتحة الكتاب او كوم سورت چي مونږ ته اسان وي دلوستلو حكم كړي دي ددي حديث سند صحيح دي.

امام ابو حنيفه سورة فاتحه دمونځ ركن نه ګڼړي چي بغير دسورة فاتحي نه دي مونځ جائز ونه ګرځي، پدي معامله كي په ايت فاقرؤا ماتيسر من القران عمل كوي، صاحب دهدايه ليكلي دي چي قران په خبر واحد سره زيادت كول جائز نه دي مګر موجب دعمل وي نو پدي وجه مونږ سورة فاتحه او ضم دسورة واجب ګڼړو

زما په نزد صحيح مسلك دادي چي قرائت دفاتحي او ضم دسورة دواړه دمونځ اركان دي او د دواړو نه بغير مونځ جائز نه دي ، او په ايت فاقرؤا سره دفاتحي دركنيت په نفي استدلال كول درست نه دي څكه چي ددي ايت تفسير په ظاهري طور سره هم دادي چي دقرائت نه مراد دشپي مونځونه دي او د "فتاب عليكم فاقرؤا ماتيسر" مطلب دادي چي الله تعالي دقيام الليل په فرضيت كي تخفيف كړي دي اوس چي څومره مونځونه په سهولت سره كولي شئ هغه هومره كوئ او پدي ايت كي دقرائت دمقدار بيان نشته. دا ايت دپنځه وختي مونځونو سره متعلق ګرځول يو ضعيف احتمال دي او ضعيف احتمال دوجوب دپاره دليل نشي جوړيدي، داسي كمزوري تشريح ته د قطعي حكم مرتبه وركول په كوم چي په خبر واحد سره زيادت واجب نه دي څنګه درست كيدي شي ، دا حديث خو تمام امت قبول كړي دي او دجمهور اهل اسلام پدي باندي عملي اجماع ده. او مسلسل متواتر المعني منقول دي او هغه داسي چي نه رسول الله او نه سلفو بغير دفاتحي نه كوم مونځ كړي دي ، پداسي متواتر المعني خبر او پداسي اجماعي نقل سره په كتاب بالاجماع زيادت صحيح دي ددينه علاوه دا خبره ده چي مونځ

دخپل هيئت او حقيقت په اعتبار سره، مجمل دي او احاد احاديث دمجمل بيان كولي شي او داركانو دصلاة تفصيل هم كولي شي اوگورئ احناف اخري قعده فرض گنړي او په دليل كي د ابن مسعود رضي الله عنه حديث پيش كوي ، احناف وائي چي پدي حديث كي دمونځ تكميل په دوه خبروكي ديوي سره تړلي شوي دي نو پدي وجه احد الامرين فرض دي دا حديث داخبار احادو نه دي او ددي باوجود احناف ددينه دقعده اخري په فرضيت استدلال كوي

احناف دفاتحي دركنيت په نفي دابوهريره رضي الله عنه والاحديث نه هم استدلال كړي دي په كوم كي چي رسول الله صلي الله عليه وسلم فرمائيلي دي كله چي په مونځ ودريږئ نو تكبير ووايئ بيا چي درته څومره قران ياد وي هغه ولولئ الخ ، ددي جواب دادي چي ددي حديث نه دمطلق قراءت وجوب معلوميږي او" لا صلوة لمن لم يقرأ بفاتحة الكتاب"په تعين دفاتحي دلالت كوي لهذا مطلق به په مقيد حمل كولي شي اوفاتحه به دمونځ ركن گرځولي شي

ددينه علاوه دابوهريره حديث ذي چي درفاعه بن رافع په سند سره په دي الفاظو مروي دي رسول الله صلي الله عليه وسلم فرمائيلي دي كله چي په مونځ ودريږئ نو تكبير ووايئ او بيا ام القران ولولئ، اوبيا چي موخه خوښ وي ولولئ ، دا روايت امام احمد بيان كړي دي ، اوددارقطني دروايت الفاظ دادي بيا تكبير ووايئ اوبيا ثناء اووايئ بيا ام القران ولولئ اود كوم څيز دلوستواجازت چي وركړي شوي دي اوكوم چي په اسانئ سره لوستلي شئ هغه ولولئ

****************

## ۷۲_ بَاب مَا جَاءَ فِي التَّأْمِينِ

### دامين ونيلو بيان

۲۴۸_ حَدَّثَنَا بُنْدَارٌ مُحَمَّدُ بْنُ بَشَّارٍ. حَدَّثَنَا يَحْيَى بْنُ سَعِيدٍ، وَعَبْدُ الرَّحْمَنِ بْنُ مَهْدِيٍّ، قَالَا: حَدَّثَنَا سُفْيَانُ، عَنْ سَلَمَةَ بْنِ كُهَيْلٍ، عَنْ حُجْرِ بْنِ عَنْبَسٍ، عَنْ وَائِلِ بْنِ حُجْرٍ. قَالَ: سَمِعْتُ النَّبِيَّ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ "قَرَأَ: غَيْرِ الْمَغْضُوبِ عَلَيْهِمْ وَلَا الضَّالِّينَ فَقَالَ: آمِينَ وَمَدَّ بِهَا صَوْتَهُ". قَالَ: وَفِي الْبَاب عَنْ عَلِيٍّ، وَأَبِي هُرَيْرَةَ. قَالَ أَبُو عِيسَى: حَدِيثُ وَائِلِ بْنِ حُجْرٍ حَدِيثٌ حَسَنٌ. وَبِهِ يَقُولُ: غَيْرُ وَاحِدٍ مِنْ أَهْلِ الْعِلْمِ مِنْ أَصْحَابِ النَّبِيِّ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ وَالتَّابِعِينَ، وَمَنْ بَعْدَهُمْ يَرَوْنَ أَنَّ الرَّجُلَ يَرْفَعُ صَوْتَهُ بِالتَّأْمِينِ وَلَا يُخْفِيهَا، وَبِهِ يَقُولُ: الشَّافِعِيُّ، وَأَحْمَدُ، وَإِسْحَاقَ وَرَوَى شُعْبَةُ هَذَا الْحَدِيثَ، عَنْ سَلَمَةَ بْنِ كُهَيْلٍ، عَنْ حُجْرٍ أَبِي الْعَنْبَسِ، عَنْ عَلْقَمَةَ بْنِ وَائِلٍ، عَنْ أَبِيهِ، أَنَّ النَّبِيَّ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ قَرَأَ: غَيْرِ الْمَغْضُوبِ عَلَيْهِمْ وَلَا الضَّالِّينَ فَقَالَ: "آمِينَ"

وَخَفَضَ بِهَا صَوْتَهُ. قَالَ أَبُو عِيسَى: وسَمِعْت مُحَمَّدًا، يَقُولُ: حَدِيثُ سُفْيَانَ أَصَحُّ مِنْ حَدِيثِ شُعْبَةَ فِي هَذَا وَأَخْطَأَ شُعْبَةُ فِي مَوَاضِعَ مِنْ هَذَا الحَدِيثِ، فَقَالَ: عَنْ حُجْرٍ أَبِي العَنْبَسِ وَإِنَّمَا هُوَ حُجْرُ بْنُ عَنْبَسٍ وَيُكْنَى أَبَا السَّكَنِ وَزَادَ فِيهِ، عَنْ عَلْقَمَةَ بْنِ وَائِلٍ وَلَيْسَ فِيهِ عَنْ عَلْقَمَةَ، وَإِنَّمَا هُوَ عَنْ حُجْرِ بْنِ عَنْبَسٍ، عَنْ وَائِلِ بْنِ حُجْرٍ، وَقَالَ: وَخَفَضَ بِهَا صَوْتَهُ، وَإِنَّمَا هُوَ وَمَدَّ بِهَا صَوْتَهُ. قَالَ أَبُو عِيسَى: وَسَأَلْتُ أَبَا زُرْعَةَ عَنْ هَذَا الحَدِيثِ، فَقَالَ: حَدِيثُ سُفْيَانَ فِي هَذَا أَصَحُّ مِنْ حَدِيثِ شُعْبَةَ، قَالَ: وَرَوَى العَلَاءُ بْنُ صَالِحٍ الأَسَدِيُّ، عَنْ سَلَمَةَ بْنِ كُهَيْلٍ نَحْوَ رِوَايَةِ سُفْيَانَ.[1]

**ترجمه** دوائل بن حجر رضي الله عنه نه روايت دي فرماني چي مانبي كريم صلي الله عليه وسلم نه اوريدلي وو چي د "غيرالمغضوب عليهم ولاالضالين" ونيلو نه پس يي امين اووئيل او دي سره يي خپل اواز رابنكلو

امام ترمذي واني دوائل بن حجر حديث حسن دي، او په دي باب كي دعلي او ابو هريره رضي الله عنهما نه هم احاديث وارد دي په صحابه كرامو او تابعينو كي هم دبعضي اهل علمو دا قول دي چي سړي به په امين وئيلو كي خپل اواز راوباسي او ټيټ به يي نه پريږدي، امام شافعي، احمد، اسحاق رحمهم الله هم داسي واني، شعبه دا حديث په سند د سلمه بن كهيل عن حجر ابي العنبس عن علقمة بن وائل عن ابيه نقل كړي دي چي رسول الله صلي الله عليه وسلم غيرالمغضوب عليهم والاالضالين اووئيل نو امين يي اووئيلو او اواز يي ټيټ اوساتلو. دمحمد بن اسماعيل بخاري نه مي اوريدلي دي چي دسفيان حديث دشعبه دحديث نه زيات صحيح دي او شعبه په دي حديث كي په يو څو مقاماتو كي غلط شوي دي، اول دا چي هغه حجر ابي عنبس وئيلي دي مګر هغه حجر بن عنبس دي او دهغه كنيه ابو السكن ده او په دي سند كي هغه عن علقمه بن وائل واسطه زياته كړي ده او حال دادي په دي كي دعلقمه واسطه نشته حجر بن عنبس براه راست د وائل بن حجر نه روايت كړي دي او "وخفض بها صوته" يي اووئيل او حال دادي چي دلته "ومد بها صوته" اصل لفظ دي، ما دابوذرعه نه ددي حديث باره كي تپوس اوكړو هغه اووئيل دسفيان حديث دشعبه دحديث نه زيات صحيح دي او علاء بن صالح اسدي هم دسلمه بن كهيل نه دسفيان دحديث هم معني روايت نقل كړي دي.

**تشريح: د فاتحي نه پس دامين وئيلو حكم**

دامين متعلق داهل علمو دوه اقوال دي:

---

[1] سنن ابي داود/ الصلاة ۱۷۲ (۹۳۲) . سنن النسائي/الافتتاح ۴ (۸۸۰) . سنن ابن ماجه/الإقامة ۱۴ (۸۵۵) . (تحفة الأشراف : ۱۱۷۵۸) . مسند احمد (۴/۳۱۵) . سنن الدارمي/الصلاة ۳۹ (۱۲۸۳)

(۱) د سورة فاتحي په ختميدو باندې چې کله امام ولا الضالين اووائی.نو امام او مقتدی دواړو لره آمين وئيل پکار دی.
(۲)امام مالك فرمائی چې صرف مقتدی به امين وائی.امام به امين نه وائی.
د امام مالك دليل دا حديث دې: اذا قال الامام ولا الضالين فقولوا امين مسلم پوره حديث داسې روايت کړې دې
(انما جعل الإمام ليؤتم به فلا تختلفوا عليه فإذا كبر فكبروا وإذا قرأ فانصتوا وإذا قال الامام ولا الضالين فقولوا امين
يعنې امام خو ددې دپاره جوړ شوې دې چې دده اقتدا ، اوشي.نو تاسو د هغه نه اختلاف مه کوئ.کله چې هغه تکبير وائی.نو تاسو تکبير وائې.او کله چې هغه قراءت وائی.نو تاسو چپ اوسئ.او کله چې هغه:ولا الضالين ، اووائی.نو تاسو آمين وائې.
امام مالك ددې حديث نه داسې استدلال کوی چې رسول پاك صلي الله عليه وسلم تقسيم کړې دې.نو د امام په حصه کې د قراءت اتمام دې.او د مقتدی په حصه کې آمين وئيل دی.او چونکه تقسيم د شرکت منافي دې.نو خکه په آمين وئيلو کې امام او مقتدی دواړه شريك نه وی.بلکه صرف مقتدی به آمين وائی.زمونږ دليل دا حديث دې
(إذا أمن الإمام فأمنوا فإنه من وافق تأمينه تأمين الملائكة غفر له ما تقدم من ذنبه)
کله چې امام آمين اووائی.نوتاسو هم آمين وائې.خکه چې د چا آمين وئيل برابر شی د فرشتو د آمين وئيلو سره نو د هغه تير شوی ټول گناهونه معاف کولی شی.
د امام مالك د پيش کړی حديث جواب دا دې چې ددی حديث په آخر کې دی (فإن الإمام يقولها) يعنی امام هم امين وائی.نو معلومه شوه چې په دی حديث کې تقسيم او ويش مراد نه دې.
زمونږ د مذهب تائيد په دی حديث سره هم کيږی.کوم چې مسيب د ابوهريره(رضي الله عنه) نه روايت کړې دې
(قال قال رسول الله صلي الله عليه وسلم إذا قال الامام ولا الضالين فقولوا امين .فإن الملائكة تقول آمين وإن الإمام يقول آمين فمن وافق تامينه تامين الملائكة غفر له ما تقدم من ذنبه)
(رواه عبدالرزاق في مصنفه)
دامام ابو حنيفه رحمه الله نه يو روايت دا دې چې امام به آمين نه وائی.بلکه صرف مقتدی دی آمين وائی.او دليل دا روايت دې چې امام داعی وی.او مقتدی اوريدونکی وی.او آمين

اوريدونكى وائى.داعى ئې نه وائى.لكه د مونځ نه علاوه په نورو دعاګانو كي چې عادت دې
اود رسول پاك صلي الله عليه وسلم په قول (إذا أمن الإمام فأمنوا) كي امام ته آمين ويونكى خكه ونيلى شوې دې چې ده سورة فاتحه اوونيله.نو د آمين ونيلو سبب ئې پيدا كړو.او مسبب له د مباشر په نوم باندې ذكر كول جائزدى.لكه (بنى الأمير المدينة) كي چې د جوړولو نسبت امير طرف ته د مسبب په حيثيت شوې ده.
د آمين د لفظ همزه بعضي خلقو ممدود ونيلى ده.او بعضو مقصور ونيلى ده.نو ممدود ونيلو په صورت كي خو به هم آمين پاتې وى.او د مقصور ونيلو په صورت كي به امين وى.خودادى واضح وى چې په دواړو صورتونو كي به د "فعيل" په وزن وى.نو د ممدود په صورت كي به "الف" د اشباع وى.او د ممدود په صورت كي په استشهاد كي د مجنون دا شعر پيش كولى شى(ويرحم الله عبداً قال أميناً) په دى كي آمين ممدود استعمال شوې دې. په آخر كښې "الف" هم په دى كي داشباع دپاره دې.
دا شعر د خپل تاسيس دپاره يوه واقعه لرى.واقعه دا ده چې كله د مجنون په زړه كښې د ليلى محبت پريوتلو.او هغه ددى په محبت كي ډوب شو.او حيران اوپريشان به ګرځيدلو.نو دده پلار ملوح سره ډير فكر شو.خلقو هغه ته مشوره وركړه چې دي د كعبة الله د زيارت دپاره بوخه.نو دده پلار مجنون د حج په اراده بوتلو.او مناسك حج ئې ورته اوخودل.او مجنون ته ئې اوونيل چې دكعبي معظمي پر دى اونيسه.او دا اووايه.
(اللهم ارحني من ليلى وحبها) اى زما پروديګاره! زما نه د ليلى محبت لري كړي.او ماته سكون راكړه.نو مجنون د دى په ځائې دا شعر د شوق په اندازه كي اوونيلو.
(اللهم من على ليلى وقربها) اى الله ماته د ليلى قرب او وصل راكړې.او په ما باندې احسان اوكړه. پلار چې دا واوريدلو.نو دهغه په وهلو ئې شروع وكړه چې ما خو درته د لري كولو د دعا غوښتلو دپاره ونيلى و.او ته د حاصليدو دعا كوې.نو بيا مجنون دا شعر شروع كړو.
(يا رب لا تسلبنى حبها أبداً ويرحم الله عبدا قال آميناً) يعنى اى ربه ما نه د هغى محبت كله هم زائله نكړې.او زما په دى دعا چې څوك آمين وائى.نوپه هغه باندې رحم اوكړې.....(اشرف الهدايه)

## په امين كي دجهر او اخفاء حكم

په جهر او اخفاد امين كي داهل علمو دوه اقوال دي:
(۱)د احنافو په نزد د امام او مقتدى ټولو دپاره آمين په پټه ونيل مسنون دى.

(۲)او امام شافعي او اهل ظواهر د آمين بالجهر قائل دي
د امام شافعي دليل د ابوداؤد دا روايت دي
(عن وائل بن حجر قال كان رسول الله صلي الله عليه وسلم إذا قرأ ولا الضالين قال آمين ورفع بها صوته) او په ترمذي كي دی (ومد بها صوته)
يعنى وائل بن حجر(رضي الله عنه) فرمائى چى رسول ا لله به كله: ولا الضالين اووئيل.نو آمين به ئې وئيلو.او دخپل آمين سره به ئې خپل آواز اوچتولو.
زمونږ دليل د ابن مسعود(رضي الله عنه) حديث دې.كوم چى وړاندې تير شو.يعنى:
(قال أربع يخفيهن الإمام التعوذ وبسم الله الرحمن الرحيم واللهم ربنا لك الحمد وآمين)
او په يو روايت كي دی (خمس يخفيهن الإمام) او دذكر شوی څلورو څيزونو نه علاوه ئې (سبحانك اللهم وبحمدك) هم ذكر كړې دې. ددی روايت نه آمين په پټه وئيل ثابت شو.زمونږ دويم دليل دا دې چى آمين د استجب په معنی كي دعا ده.او په دعا كي اخفاء غوره ده.ځكه چى الله تعالى فرمائي:
ادعوا ربكم تضرعا وخفية.
د امام شافعي د طرف نه پيش شوې حديث د وائل بن حجر(رضي الله عنه) نه جواب دا دې چى علقمه بن وائل د خپل پلار وائل نه روايت كړې دې.په هغې كي (خفض به صوته) دی.نو د تعارض د وجې به د وائل (رضي الله عنه) دواړه رواياتونه ناقابل استدلال وی.او د ابن مسعود(رضي الله عنه) روايت به كوم چى زمونږ مستدل دې.قابل استدلال وی.

****************

۲۴۹_ قَالَ أَبُو عِيسَى: حَدَّثَنَا أَبُو بَكْرٍ مُحَمَّدُ بْنُ أَبَانَ. حَدَّثَنَا عَبْدُ اللهِ بْنُ نُمَيْرٍ. حَدَّثَنَا الْعَلَاءُ بْنُ صَالِحٍ الْأَسَدِيُّ. عَنْ سَلَمَةَ بْنِ كُهَيْلٍ. عَنْ حُجْرِ بْنِ عنبس. عَنْ وَائِلِ بْنِ حُجْرٍ. عَنِ النَّبِيِّ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ. نَحْوَ حَدِيثِ سُفْيَانَ. عَنْ سَلَمَةَ بْنِ كُهَيْلٍ. [1]

**ترجمه** په دي سند سره هم وائل بن حجر رضي الله عنه نه دسفيان سابقه سند هم معني روايت نقل شوي دي.

**د ابوهنيد وائل بن حجر رضي الله عنه حالات**

---

[1] سنن ابي داود/ الصلاة ۱۷۲ (۹۳۲) . سنن النسائي/الافتتاح ۴ (۸۸۰) . سنن ابن ماجه/الإقامة ۱۳ (۸۵۵) . (تحفة الأشراف : ۱۱۷۵۸) . مسند احمد (۴/۳۱۵) . سنن الدارمي/الصلاة ۳۹ (۱۲۸۳)

نوم وائل كنيه ابو هنيد دپلار نوم حجر چي تعلق يي د حضرموت دشاهي خاندان سره وو او پخپله هم سردار وو دفتح مكي نه پس مديني ته داسلام قبلولو په نيت راغى او رسول الله صلي الله عليه وسلم يي پخپله استقبال اوكړو او څادر يي ورته خور كړو او په هغې يي كينولو او دده داولاد دپاره يي دبركت دعا هم اوغوښتله (استيعاب)

كله چي داسلام قبلولو نه پس واپس روان شو نو رسول الله صلي الله عليه وسلم ورته دحضرموت په زمكو كي يوه ټوټه زمكه وركړه او درخصتئ په وخت كي ورسره دډيره لري پوري روان وو دكوفي داباديدونه پس په كوفه كي اوسيدو اوپه جنګ صفين كي دعلي رضي الله عنه سره وو چي دحضرموت قبيلي جهنډه يي په لاس كي وه او د اميرمعاويه رضي الله عنه په زمانه كي وفات شو (اصابه)

دده دمروياتو شمير ۱۷۱ دى بخاري ورنه نقل درو ايت نه دى كړى او مسلم ورنه شپږ روايات نقل كړي دي.

***************

## ۷۳_ بَاب مَا جَاءَ فِي فَضْلِ التَّأْمِينِ

### دامين وئيلو فضائل

۲۵۰_ حَدَّثَنَا أَبُو كُرَيْبٍ مُحَمَّدُ بْنُ الْعَلَاءِ، حَدَّثَنَا زَيْدُ بْنُ حُبَابٍ، حَدَّثَنِي مَالِكُ بْنُ أَنَسٍ، حَدَّثَنَا الزُّهْرِيُّ، عَنْ سَعِيدِ بْنِ الْمُسَيَّبِ وَأَبِي سَلَمَةَ، عَنْ أَبِي هُرَيْرَةَ، عَنِ النَّبِيِّ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ، قَالَ: "إِذَا أَمَّنَ الْإِمَامُ فَأَمِّنُوا، فَإِنَّهُ مَنْ وَافَقَ تَأْمِينُهُ تَأْمِينَ الْمَلَائِكَةِ، غُفِرَ لَهُ مَا تَقَدَّمَ مِنْ ذَنْبِهِ". قَالَ أَبُو عِيسَى: حَدِيثُ أَبِي هُرَيْرَةَ حَدِيثٌ حَسَنٌ صَحِيحٌ.[1]

**ترجمه**: دابوهريره رضي الله عنه نه روايت دي چي رسول الله صلي الله عليه وسلم فرمائيلي دي كله چي امام امين اووائي نو تاسو هم امين اووايئ او دا څكه دچا امين چي دفرشتو دامين سره موافق شي نو هغه ته دهغه مخكني ګناهونه معاف كيږي.

امام ترمذي وائي دابوهريره حديث حسن صحيح دي.

**تشريح**: **په امين كي دفرشتوسره دموافقت فضيلت**

[1] صحيح البخاري/الأذان ۱۱۱ (۷۸۰)، و۱۱۳ (۷۸۲)، وتفسير (۴۴۷۵)، صحيح مسلم/الصلاة ۱۸ (۴۱۰)، سنن ابي داود/ الصلاة ۱۷۲ (۹۳۶)، سنن النسائي/الافتتاح ۳۳ (۹۲۶)، سنن ابن ماجه/الإقامة ۱۴ (۸۵۱)، (تحفة الأشراف: ۱۳۲۳۰، ۱۵۲۴۰)، موطا امام مالك/الصلاة ۱۱ (۴۶)، مسند احمد (۲/۲۳۸، ۴۵۹)، سنن الدارمي/الصلاة ۳۸ (۱۲۸۱)

Scanned with C

عَنْ أَبِي هُرَيْرَةَ رَضِيَ اللَّهُ عَنْهُ: أَنَّ رَسُولَ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ قَالَ إِذَا قَالَ أَحَدُكُمْ آمِينَ وَقَالَتْ الْمَلَائِكَةُ فِي السَّمَاءِ آمِينَ فَوَافَقَتْ إِحْدَاهُمَا الْأُخْرَى غُفِرَ لَهُ مَا تَقَدَّمَ مِنْ ذَنْبِهِ.

صحيح البخاري كتاب الاذان باب فضل التامين ومسلم كتاب الصلاة باب التسبيح و التحميد و التامين.

دابوهريرة رضي الله عنه نه روايت دي چي نبي كريم ﷺ فرمائيلي دي كله چي يوكس ستاسونه امين ووائي نو فرشتي په اسمان كي امين وائي نوچي دده امين دفرشتودامين سره موافق شي نودده تير ګناهونه معاف كړي شي

اودمسلم په يوروايت كي دي چي كله چي يوكس ستاسونه په مونځ كي امين ووائي نو فرشتي په اسمان كي امين وائي نوچي پدوي كي ديو امين دبل دامين سره موافق شي نودده تير ګناهونه معاف كړي شي.

عَنْ أَبِي هُرَيْرَةَ: أَنَّ رَسُولَ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ قَالَ إِذَا قَالَ الْإِمَامُ { غَيْرِ الْمَغْضُوبِ عَلَيْهِمْ وَلَا الضَّالِّينَ } فَقُولُوا آمِينَ فَإِنَّهُ مَنْ وَافَقَ قَوْلُهُ قَوْلَ الْمَلَائِكَةِ غُفِرَ لَهُ مَا تَقَدَّمَ مِنْ ذَنْبِهِ. صحيح البخاري كتاب الاذان باب جهر الامام بالتامين.

دابوهريرة رضي الله عنه نه روايت دي چي نبي كريم ﷺ فرمائيلي دي كله چي امام (غَيْرِ الْمَغْضُوبِ عَلَيْهِمْ وَلَا الضَّالِّينَ) ووائي نوتاسوامين ووايئ نوچي دچا امين دفرشتودامين سره موافق شي نودده تير ګناهونه معاف كړي شي.

عَنْ أَبِي هُرَيْرَةَ: أَنَّ النَّبِيَّ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ قَالَ إِذَا أَمَّنَ الْإِمَامُ فَأَمِّنُوا فَإِنَّهُ مَنْ وَافَقَ تَأْمِينُهُ تَأْمِينَ الْمَلَائِكَةِ غُفِرَ لَهُ مَا تَقَدَّمَ مِنْ ذَنْبِهِ وَقَالَ ابْنُ شِهَابٍ وَكَانَ رَسُولُ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ يَقُولُ آمِينَ. صحيح البخاري كتاب الاذان باب جهر الامام بالتامين.

دابوهريرة رضي الله عنه نه روايت دي چي نبي كريم ﷺ فرمائيلي دي كله چي امام امين وائي نوتاسوهم امين ووايئ خكه نوچي دچا امين دفرشتودامين سره موافق شي نودده تير ګناهونه معاف كړي شي. ابن شهاب وئيلي دي چي رسول الله ﷺ به هم امين وئيلو.

عَنْ أَبِي هُرَيْرَةَ: عَنْ النَّبِيِّ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ قَالَ إِذَا أَمَّنَ الْقَارِئُ فَأَمِّنُوا فَإِنَّ الْمَلَائِكَةَ تُؤَمِّنُ فَمَنْ وَافَقَ تَأْمِينُهُ تَأْمِينَ الْمَلَائِكَةِ غُفِرَ لَهُ مَا تَقَدَّمَ مِنْ ذَنْبِهِ. صحيح البخاري كتاب الدعوات باب التامين.

دابوهريرة رضي الله عنه نه روايت دي چي نبي كريم ﷺ فرمائيلي دي كله چي قاري امين وائي نوتاسوهم امين ووائي خكه چي فرشتي هم امين وائي نوچي دچا امين دفرشتودامين سره موافق شي نودده تير ګناهونه معاف كړي شي.

## دمقتديانودپاره دامام سره دامين ونيلوفضيلت

عَنْ أَبِي هُرَيْرَةَ قَالَ: قَالَ رَسُولُ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ إِذَا قَالَ الإِمَامُ { غَيْرِ الْمَغْضُوبِ عَلَيْهِمْ وَلَا الضَّالِّينَ } فَقُولُوا آمِينَ فَإِنَّ الْمَلَائِكَةَ تَقُولُ آمِينَ وَإِنَّ الإِمَامَ يَقُولُ آمِينَ فَمَنْ وَافَقَ تَأْمِينُهُ تَأْمِينَ الْمَلَائِكَةِ غُفِرَ لَهُ مَا تَقَدَّمَ مِنْ ذَنْبِهِ. سنن النسائي كتاب الافتتاح باب جهر الامام بامين.

دابوهريرة ﷺ نه روايت دي چي نبي كريم ﷺ فرمانيلي دي: كله چي امام (غَيْرِ الْمَغْضُوبِ عَلَيْهِمْ وَلَا الضَّالِّينَ) ووائي نوتاسوامين ووايئ خكه چي فرشتي هم امين وائي اوامام هم امين وائي نوچي دچا امين دفرشتودامين سره موافق شي نودده تير گناهونه معاف كړي شي.

## دامين اودسلام فضيلت

عَنْ عَائِشَةَ: عَنِ النَّبِيِّ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ قَالَ مَا حَسَدَكُمُ الْيَهُودُ عَلَى شَيْءٍ مَا حَسَدُوكُمْ عَلَى السَّلَامِ وَالتَّأْمِينِ.

وفي رواية ابن ماجة عَنْ عَائِشَةَ: عَنِ النَّبِيِّ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ قَالَ مَا حَسَدَتْكُمُ الْيَهُودُ عَلَى شَيْءٍ مَا حَسَدَتْكُمْ عَلَى السَّلَامِ وَالتَّأْمِينِ.

الادب المفرد. وسنن ابن ماجة. ابواب اقامة الصلاة باب الجهر بامين.

دام المؤمنين عائشي ﷺ نه روايت دي چي نبي كريم ﷺ فرمانيلي دي: چي يهوديان دامين اوسلام ونيلوپه وجه ډيرسخت حسد كوي.

اوداين ماجه په يوروايت كي دي چي يهوديان پتاسوباندي په بل كوم څيزكي دومره سخت حسدنه كوي څومره چي دسلام اودامين په وجه كوي.

**فائده** په بره ذكرشوواحاديثوكي دامام اومقتدي دامين ونيلوفضيلت اوددي تاكيد اواهميت ذكرشوي دي اوداد درسول الله اودهغه نه پس دصحابه كرامونه په تواترسره ثابت دي. دامام ابوحنيفه استادعطابن ابي رباح فرمائي چي ماپه بيت الله شريف كي دوه سوه صحابه كرام ليدلي دي چي كله به امام ولا الضالين ته ورسيدونوپه اوچت اوازبه ئي امين ونيلو. «بيهقي ،تحفة الاحوذي».

تولومسلمانانولره پدي باندي عمل كول پكاردي ددي په خاي ديهوديانوسره موافقت كول ندي پكار لكه چي په تيرشوي حديث كي په امين اوسلام باندي حسد ديهودوعلامه گرځولي شوي ده ،الله تعالي دى درسول الله پدي سنتوباندي دنوروسنتوپشان دعمل كولوتوفيق راكړي.امين. «فضائل اعمال ابو عبد الله مغربي»

***************

## ٧٤_ باب مَا جَاءَ فِي السَّكْتَتَيْنِ فِي الصَّلاَةِ

### په مونځ کي د دوه سکتو بيان

٢٥١_ حَدَّثَنَا أَبُو مُوسَى مُحَمَّدُ بْنُ الْمُثَنَّى، حَدَّثَنَا عَبْدُ الأَعْلَى، عَنْ سَعِيدٍ، عَنْ قَتَادَةَ، عَنِ الْحَسَنِ، عَنْ سَمُرَةَ، قَالَ: " سَكْتَتَانِ حَفِظْتُهُمَا عَنْ رَسُولِ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ ". فَأَنْكَرَ ذَلِكَ عِمْرَانُ بْنُ حُصَيْنٍ، وَقَالَ: حَفِظْنَا سَكْتَةً. فَكَتَبْنَا إِلَى أُبَيِّ بْنِ كَعْبٍ بِالْمَدِينَةِ. فَكَتَبَ أُبَيٌّ أَنْ حَفِظَ سَمُرَةُ. قَالَ سَعِيدٌ: فَقُلْنَا لِقَتَادَةَ: مَا هَاتَانِ السَّكْتَتَانِ ؟ قَالَ: إِذَا دَخَلَ فِي صَلاَتِهِ، وَإِذَا فَرَغَ مِنَ الْقِرَاءَةِ. ثُمَّ قَالَ بَعْدَ ذَلِكَ: وَإِذَا قَرَأَ وَلاَ الضَّالِّينَ قَالَ: وَكَانَ يُعْجِبُهُ إِذَا فَرَغَ مِنَ الْقِرَاءَةِ أَنْ يَسْكُتَ حَتَّى يَتَرَادَّ إِلَيْهِ نَفَسُهُ. قَالَ: وَفِي الْبَابِ عَنْ أَبِي هُرَيْرَةَ. قَالَ أَبُو عِيسَى: حَدِيثُ سَمُرَةَ حَدِيثٌ حَسَنٌ. وَهُوَ قَوْلُ غَيْرِ وَاحِدٍ مِنْ أَهْلِ الْعِلْمِ. يَسْتَحِبُّونَ لِلإِمَامِ أَنْ يَسْكُتَ بَعْدَمَا يَفْتَتِحُ الصَّلاَةَ وَبَعْدَ الْفَرَاغِ مِنَ الْقِرَاءَةِ. وَبِهِ يَقُولُ: أَحْمَدُ وَإِسْحَاقُ وَأَصْحَابُنَا. ([1])

**ترجمه**: دسمره رضي الله عنه بيان دي فرمائي چي په مونځ کي دوه سکتي دي کومي چي ما درسول الله صلي الله عليه وسلم نه اوريدلي دي، عمران بن حصين رضي الله عنه ددينه انکار اوکړو او ويې ونيل مونږ ته خو صرف يوه سکته ياده ده، چنانچي سمره بن جندب رضي الله عنه وائي مونږ په دي باره کي ابئ بن کعب رضي الله عنه ته خط اوليږلو نو هغه په جواب کي اوونيل سمره درست ياد ساتلي دي، دسعيد بن ابي عروبه قول دي چي مونږ دقتاده نه تپوس اوکړو چي دا دوه سکتي کومي کومي دي؟هغوئ اوونيل کله چي په مونځ کي بنده داخليږي اوله سکته دغه وخت کي ده او بيا چي کله دقرائت نه فارغيږي يوه سکته دلته ده او بيا يې ددينه پس اوونيل کله چي به يې "ولا الضالين" ونيل اورسول الله به دا خبره خوښوله چي کله به دقرائت نه فارغ شي نو لږ شان به خاموش اودريدو تردي پوري چي ساه يې اودريږي

.امام ترمذي وائي دسمره رضي الله عنه حديث حسن دي، او په دي باب کي دابوهريره رضي الله عنه نه هم حديث وارد دي، او په اهل علمو کي دديرو اهل علمو دا قول دي چي هغوئ دامام دپاره دمونځ شروع کولو نه پس او دقرائت ختمولو نه پس لږ شان خاموش اودريدل مستحب ګڼري او همدا دامام احمد او اسحاق بن راهويه او زمونږ دعلماؤ قول دي.

****************

---

[1] سنن ابي داود في الصلاة ١٢٣ (٧٧٧، ٧٧٨، ٧٧٩، ٧٨٠)، سنن ابن ماجه في الإقامة ١٢ (٨٤٤، ٨٤٥)، (تحفة الأشراف: ٤٥٨٩) وكذا (٢٠٥٦، ٢٠٥٦، و٣٦٠٩)، مسند احمد (٥ في ٢١)

## ۷۵_ باب مَا جَاءَ فِي وَضْعِ الْيَمِينِ عَلَى الشِّمَالِ فِي الصَّلاَةِ

## په مونځ کي دښي لاس په چپ لاس دايخودلو بيان

۲۵۲_ حَدَّثَنَا قُتَيْبَةُ، حَدَّثَنَا أَبُو الأَحْوَصِ، عَنْ سِمَاكِ بْنِ حَرْبٍ، عَنْ قَبِيصَةَ بْنِ هُلْبٍ، عَنْ أَبِيهِ، قَالَ: كَانَ رَسُولُ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ "يَؤُمُّنَا فَيَأْخُذُ شِمَالَهُ بِيَمِينِهِ". قَالَ: وَفِي الْبَابِ عَنْ وَائِلِ بْنِ حُجْرٍ، وغُطَيْفِ بْنِ الْحَارِثِ، وابْنِ عَبَّاسٍ، وابْنِ مَسْعُودٍ، وسَهْلِ بْنِ سَعْدٍ. قَالَ أَبُو عِيسَى: حَدِيثُ هُلْبٍ حَدِيثٌ حَسَنٌ، وَالْعَمَلُ عَلَى هَذَا عِنْدَ أَهْلِ الْعِلْمِ مِنْ أَصْحَابِ النَّبِيِّ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ وَالتَّابِعِينَ، وَمَنْ بَعْدَهُمْ يَرَوْنَ أَنْ يَضَعَ الرَّجُلُ يَمِينَهُ عَلَى شِمَالِهِ فِي الصَّلاَةِ، وَرَأَى بَعْضُهُمْ أَنْ يَضَعَهُمَا فَوْقَ السُّرَّةِ، وَرَأَى بَعْضُهُمْ أَنْ يَضَعَهُمَا تَحْتَ السُّرَّةِ، وَكُلُّ ذَلِكَ وَاسِعٌ عِنْدَهُمْ. وَاسْمُ هُلْبٍ: يَزِيدُ بْنُ قُنَافَةَ الطَّائِيُّ.[1]

**ترجمه** دهلب طائي بيان دي فرمائي چي رسول الله صلي الله عليه وسلم چي به مونږ ته امامت راکولو نو خپل ښي لاس به يي په ګس لاس ايخودلو.

امام ترمذي وائي دهلب رضي الله عنه حديث حسن دي، او په دي باب کي دوائل بن حجر غطيف بن حارث ، ابن عباس، ابن مسعود، او سهل بن سعد رضي الله عنهم نه هم احاديث وارد دي دصحابه کرامو او ددوئ نه پس دتابعينو او دهغوئ نه پس د نورو داهل علمو هم په دي باندي عمل دي چي سړي به په مونځ کي ښي لاس په چپ لاس باندي ايږدي او دبعضو رائي داده چي دنوم دپاسه به يي ايږدي او دبعضوقول دي چي دنوم نه لاندي به لاس تړي داهل علمو په نزد ددي ټولو ګنجائش شته

**تشريح** : دلته دد څلور مسائل بيان دی:

(۱) آيا په مانځه کي به خپل ښئ لاس په ګس باندي ايږدی.اوکه نه ؟

(۲) څنګه به ئې ايږدی؟

(۳) په کوم ځائې به ئې، ايږدی؟

(۴) کله به ئې ايږدی.

**اولنۍ مسئله وضع اليمين علي الشمال:** په اولنۍ مسئله کښې زموږ د دری اهل علمو قول دا دې چې په مانځه کي ښي لاس په ګس باندې کيخودل مسنون دی.او امام مالك فرمائی چې

---

[1] سنن ابن ماجه في الإقامة (۸۰۹) . (تحفة الأشراف : ۱۱۷۳۵) . مسند احمد (۵ في ۲۲۶. ۲۲۷) (حسن صحيح)

ارسال به کوی.یعنی په مونځ کي به لاسونه پریږدی.اوکه زړه ئې غواړي.نه نو او دی تړی.نو د امام مالك په نزد ارسال عزیمت او اعتماد (لاس کیخودل) رخصت دي.

(۱) زمونږ رومبي دلیل دا دي چی رسول الله په دی باندي مداومت کړي دي.او فرمائیلی ئې دی (إنا معشرالأنبياء أمرنا بأن نأخذ شمائلنا بأيماننا في الصلاة) یعنی مونږ د پیغمبرانو ټولګی ته حکم کړي شوي دي چی مونږ په مانځه کي خپل ګس لاس په ښي لاس په باندي ونیسو.

(۲) علی(رضي الله عنه) فرمائی (من السنة أن يضع المصلي يمينه على شماله تحت السرة في الصلاة) صاحب دهدایه دا اثر په دی الفاظو سره ذکر کوي (إن من السنة وضع اليمين على الشمال تحت السرة) د دواړو اصل دا دي چی علی(رضي الله عنه) فرمائی چی په مونځ کي ښي لاس په ګس باندي کیخودل مسنون دی.

(۳)اوپه ابوداود کي دی (عن ابن مسعود(رضي الله عنه) أنه كان يصلي فوضع يده اليسرى على اليمنى فراه النبي صلي الله عليه وسلم فوضع يده اليمنى على اليسرى) ابن مسعود(رضي الله عنه) نه روایت دي چی دوی مونځ کولو.نو خپل ګس لاس ئې په ښی باندي کیخو دی وو رسول الله چی اولیدلو.نو د ابن مسعود(رضي الله عنه) ښي لاس ئې په ګس باندي کیخودلو.بهر حال ددی روایاتو نه ثابته شوه چی مسنون ښي لاس په ګس باندي کیخودل دی.نو دا احادیث دامام مالك خلاف حجت دی.او زمونږ مذهب ثابت شو.

**دویمه مسئله د وضع کیفیت:** یعنی د ښی لاس په ګس لاس باندي د کیخودو څه کیفیت دي.نو ددی کیفیت دا دي چی د ښی لاس تلی به د ګس لاس دتلی په شاه باندي کیږدی.او د ښی لاس په متیه او قچی ګوته د ګس لا س مړوند اونیسی.

**دریمه مسئله د لاس کیخودو ځاي:** زمونږ په نزد افضل دا دی چی د نامه نه لاندي لاس کیږدی.او امام شافعی په نزد په سینه باندی لاس کیخودل افضل دی.

دامام شافعی دلیل د الله تعالی قول دي: فَصَلِّ لِرَبِّكَ وَانْحَرْ . یعنی د خپل رب دپاره مونځ کوه.او ښي لاس په ګس باندي کیږده.علامه ابن الهمام او صاحب د عنایه فرمائی چی مفسرینو فرمائیلی دی.د"وانحر"نه مراد ښي لاس په سینه باندي کیخودل دی

(۲)دویم دلیل دا دي چی سینه د نورایمانی ځاي دي.نو په مانځه کي دننه په خپل لاس سره ددی حفاظت کول بهتر دي.

زمونږ دلیل د علی(رضي الله عنه) اثر دي.یعنی (إن من السنة وضع اليمين على الشمال تحت السرة) او د لفظ سنت نه عام طور د رسول الله سنت مراد وی.نو ثابته شوه چی د نامه نه

لاندې لاس کيخول مسنون دی(۲)دويم دليل دا دې چې د نامه نه لاندې لاس ترلو کي تعظيم دې.او په مانځه کي هم تعظيم مقصود دې.نو ځکه د نامه نه لاندې لاس کيخودل افضل دی(۳) صاحب د کفايه ليکلی دی.دنامه نه لاندې لاس ترولو کي د اهل کتابو سره د مشابهت نه لري والي دې.او ستر عورت ته نزديکت دې. ددی وجی هم د نامه نه لاندې لاس ترل غوره دی.

اودامام شافعی په لفظ د (وانحر) سره استدلال درست نه دې.ځکه چې په آيت کي د (وانحر) نه مراد د اختر د مانځه نه پس د څاروی نحر(ذبح) کول دی (کفايه شرح هدايه)

**څلورمه مسئله کله به لاس اردې:** مونځ ګذار به لاس کله ترې.نو په دی باره کي دوه اقوال دي: دشيخينو مذهب دا دې چې لاس ترل د قيام سنت دې.او دامام محمد نه نقل دی چې د قراءت سنت دې.نو په ثنا کي د شيخينو په نزد لاس ترل مسنون دی.او د امام محمد په نزد په حالت دثناء کي لاس زوړند پريخودل پکار دی.او د قراءت په شروع کولو به لاس ترې.

صاحب دهدايه د لاس په ترلو او پريخودلو کي دا ضابطه بيان کړې ده چې هر هغه قيام (که حقيقي وی يا حکمی) چې په هغی کي مسنون ذکر وی.نو په داسی قيام کي لاس ترل سنت دی.اوکوم قيام چې داسي نه وی.نو په هغی کي لاس ترل مسنون نه دی.هم دا قول صحيح دې.په دی قول باندې شمس الائمه سرخسی صدر الکبير برهان الائمه او صدرالشهيد حسام الائمه فتوی ورکوله.نو ددی داصولو دلاندې په حالت قنوت او د جنازي په مانځه کي لاس ترل مسنون دی.او قومه (د رکوع او سجدي مينځ) او د اخترونو په تکبيرونو کي لاسونه پريخودل مسنون دی.(عنايه، اشرف الهدايه)

***************

## ٧٦_ باب مَا جَاءَ فِي التَّكْبِيرِ عِنْدَ الرُّكُوعِ وَالسُّجُودِ

### رکوع او سجدي ته تلو وخت کي د تکبير ونيلو بيان

٢٧٣_ حَدَّثَنَا قُتَيْبَةُ، حَدَّثَنَا أَبُو الأَحْوَصِ، عَنْ أَبِي إِسْحَاق، عَنْ عَبْدِ الرَّحْمَنِ بْنِ الأَسْوَدِ، عَنْ عَلْقَمَةَ، وَالأَسْوَدِ، عَنْ عَبْدِ اللَّهِ بْنِ مَسْعُودٍ، قَالَ: كَانَ رَسُولُ اللَّهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ "يُكَبِّرُ فِي كُلِّ خَفْضٍ وَرَفْعٍ وَقِيَامٍ وَقُعُودٍ"، وَأَبُو بَكْرٍ، وَعُمَرُ. قَالَ: وَفِي البَاب عَنْ أَبِي هُرَيْرَةَ، وَأَنَسٍ، وَابْنِ عُمَرَ، وَأَبِي مَالِكٍ الأَشْعَرِيِّ، وَأَبِي مُوسَى، وَعِمْرَانَ بْنِ حُصَيْنٍ، ووَائِلِ بْنِ حُجْرٍ، وَابْنِ عَبَّاسٍ. قَالَ أَبُو عِيسَى: حَدِيثُ عَبْدِ اللَّهِ بْنِ مَسْعُودٍ حَدِيثٌ حَسَنٌ صَحِيحٌ، وَالعَمَلُ عَلَيْهِ عِنْدَ أَصْحَابِ النَّبِيِّ صَلَّى

اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ، مِنْهُمْ أَبُو بَكْرٍ، وَعُمَرُ، وَعُثْمَانُ، وَعَلِيٌّ وَغَيْرُهُمْ وَمَنْ بَعْدَهُمْ مِنَ التَّابِعِينَ وَعَلَيْهِ عَامَّةُ الْفُقَهَاءِ وَالْعُلَمَاءِ. [1]

**ترجمه** دعبدالله بن مسعود رضي الله عنه نه مروي دي چي رسول الله صلي ا لله عليه وسلم به په هر ټيټيدو او پورته کيدو او اودريدو او کيناستلو وخت کي الله اكبر ونيل او ابوبكر او عمر رضي الله عنهما به هم ونيل

امام ترمذي وائي دعبدالله بن مسعود رضي الله عنه حديث حسن صحيح دي په دي باب كي دابو هريره، انس، ابن عمر، ابومالك اشعري، ابوموسي، عمران بن حصين، وائل بن حجر او ابن عباس رضي الله عنهم نه هم احاديث وارد دي دصحابه كرامو چي ابوبكر عمر او عثمان او علي رضي الله عنهم پکي هم شامل دي او ددوی نه پس دتابعينو هم په دي باندي عمل دي، او په دي داكثرو فقهاؤ هم عمل دي

**تشريح** : دوجوب د قائلينو استدلال داسي دي چي رسول الله صلي الله عليه وسلم دا تكبيرات مواضبط سره کړي دي په يو روايت کي هم داسي نشته په كومو كي چي ددي تكبيراتو پريخودل يو خل نيم ثابت وي پس دا مواضبط تامه دليل دوجوب دي دجمهورو خيال دادي چي دا محض يو فعل دي او درسول الله هميشه تكبيرات ونيل دمواضبط په اراده نه وو مگر چي هميشه به ورته رايادېدل نو ونيل به يي او مواضبط په دي كي پيش نظر نه وو بلكه صرف دا يو دائمي عمل وو لهذا دمذكوره حديث نه وجوب نه ثابتيږي خكه چي دفعلي حديث نه زيات نه زيات سنتيت ثابتيږي.

## داسود بن يزيد رضي الله عنه حالات

نوم اسود كنيه ابو عمرو او دپلار نوم يي يزيد وو دفضل او كمال زهد او عبادت په لحاظ سره اسود دكوفي په علماؤ كي دامتياز مالك وو علامه ذهبي دده په باره كي ليكلي دي چي اسعد زاهد او عابد وو او عالم وو دكوفي (تذكرة الحفاظ)

دامام نووي قول دی چي دده په توثيق دتمامو علماؤ اتفاق دی (تهذيب الاسماء).

دده په باره كي دا مشهور دي چي روزانه به يي روژه نيوله اگر كه گرمي به هر څومره وه دمانبام او ماخوستن مينځ كي به يي ارام كولو او بيابه يي تمامه شپه قران كريم لوستلو (طبقات ابن سعد).

په ۷۵هجري كي وفات شوی وو او دوفات نه مخكي يي خپل خوريي ابراهيم نخعي ته

---

[1] سنن النسائي في التطبيق ۳۴ (۱۰۸۴)، و ۸۳ (۱۱۴۳)، و۹۰ (۱۱۵۰)، وفي السهو ۷۰ (۱۳۲۰). (تحفة الأشراف: ۹۱۷۴) وكذا (۹۴۷۰) .مسند احمد (۱في ۳۸۶، ۴۴۲، ۴۴۳). سنن الدارمي في الصلاة ۴۰ (۱۲۸۳م)

اوفرمائيل چي ماته به په اخري وخت کي د کلمي تلقين کوي (طبقات ابن سعد).

****************

## ٧٧_ باب مِنْهُ آخَرُ

### د سابقه باب متعلق يو بل باب

٢٥٤_ حَدَّثَنَا عَبْدُ اللهِ بْنُ مُنِيرٍ الْمَرْوَزِيُّ، قَالَ: سَمِعْتُ عَلِيَّ بْنَ الْحَسَنِ، قَالَ: أَخْبَرَنَا عَبْدُ اللهِ بْنُ الْمُبَارَكِ، عَنِ ابْنِ جُرَيْجٍ، عَنِ الزُّهْرِيِّ، عَنْ أَبِي بَكْرِ بْنِ عَبْدِ الرَّحْمَنِ، عَنْ أَبِي هُرَيْرَةَ، أَنَّ النَّبِيَّ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ كَانَ "يُكَبِّرُ وَهُوَ يَهْوِي". قَالَ أَبُو عِيسَى: هَذَا حَدِيثٌ حَسَنٌ صَحِيحٌ، وَهُوَ قَوْلُ أَهْلِ الْعِلْمِ مِنْ أَصْحَابِ النَّبِيِّ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ، وَمَنْ بَعْدَهُمْ مِنَ التَّابِعِينَ، قَالُوا: يُكَبِّرُ الرَّجُلُ وَهُوَ يَهْوِي لِلرُّكُوعِ وَالسُّجُودِ. [1]

**ترجمه** دابوهريره رضي الله عنه بيان دي چي رسول الله صلي الله عليه وسلم به دهر خل ټيټيدو وخت کي الله اکبر ونيلو.

امام ترمذي واني دا حديث حسن صحيح دي دصحابه کرامو او ددوئ نه پس په تابعينو کي د اهل علمو همدا قول دي چي رکوع او سجدي ته دتلو وخت کي الله اکبر ونيل پکار دي.

**حل لغات:** يهوي: هوي يهوي دضرب نه هويا وهويانا دپورته طرف نه کته طرف ته دخه شي غورځيدلو ته ونيل شي.

**تشريح** : ددي حديث نه معلومه شوه چي تکبيرونه ديو رکن نه بل رکن ته دمنتقل کيدو په دوران کي ونيلي کيږي او دي تکبيراتو ته په همدي وجه تکبيرات انتقاليه ونيلي کيږي او په دي بانڊي دخلورو وارو فقهاؤ اتفاق دي..

****************

## ٧٨_ باب مَا جَاءَ فِي رَفْعِ الْيَدَيْنِ عِنْدَ الرُّكُوعِ

### رکوع په وخت کي درفع اليدين کولو بيان

٢٥٥_ حَدَّثَنَا قُتَيْبَةُ، وَابْنُ أَبِي عُمَرَ، قَالَا: حَدَّثَنَا سُفْيَانُ بْنُ عُيَيْنَةَ، عَنِ الزُّهْرِيِّ، عَنْ سَالِمٍ، عَنْ أَبِيهِ، قَالَ: رَأَيْتُ رَسُولَ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ "إِذَا افْتَتَحَ الصَّلَاةَ يَرْفَعُ يَدَيْهِ حَتَّى يُحَاذِيَ

---

[1] تفرد به المؤلف (تحفة الأشراف: ١٣٨٦٨)

مَنْكِبَيْهِ وَإِذَا رَكَعَ وَإِذَا رَفَعَ رَأْسَهُ مِنَ الرُّكُوعِ " وَزَادَ ابْنُ أَبِي عُمَرَ فِي حَدِيثِهِ، وَكَانَ " لَا يَرْفَعُ بَيْنَ السَّجْدَتَيْنِ ".[1]

**ترجمه** دعبدالله بن عمر رضي الله عنهما نه روايت دي فرمائي چي ما رسول الله صلي الله عليه وسلم په داسي حال کي اوليدلو چي کله به يي مونځ شروع کولونو خپل دواړه لاسونه به يي پورته کول تردي چي داوګو سره به يي برابر کړو خو چي کله به يي رکوع کوله او چي کله به يي درکوع نه سر پورته کولو نو بيا به يي هم په دي طريقه دواړه لاسونه پورته کول. ابن ابي عمر ‹دترمذي دويم استاذ› خپل روايت کي دا اضافه کړي ده چي ددواړو سجدو په مينځ کي به يي نه پورته کوي

**حل لغات**: افتتح دفتتح يفتتح دباب نه په معني دشروع کولو. او پرانستلو.

***************

٢٥٦ـ قَالَ أَبُو عِيسَى: حَدَّثَنَا الْفَضْلُ بْنُ الصَّبَّاحِ الْبَغْدَادِيُّ، حَدَّثَنَا سُفْيَانُ بْنُ عُيَيْنَةَ، حَدَّثَنَا الزُّهْرِيُّ بِهَذَا الْإِسْنَادِ، نَحْوَ حَدِيثِ ابْنِ أَبِي عُمَرَ. قَالَ: وَفِي الْبَابِ عَنْ عُمَرَ، وَعَلِيٍّ، وَوَائِلِ بْنِ حُجْرٍ، وَمَالِكِ بْنِ الْحُوَيْرِثِ، وَأَنَسٍ، وأبي هريرة، وأبي حُمَيْدٍ، وَأَبِي أُسَيْدٍ، وسَهْلِ بن سعدٍ، وَمُحَمَّدِ بْنِ مَسْلَمَةَ، وأبي قتادةَ، وَأبي موسى الأشعري، وجابرٍ، وعُمَيْرٍ اللَّيْثِيِّ. قَالَ أَبُو عِيسَى: حَدِيثُ ابْنِ عُمَرَ حَدِيثٌ حَسَنٌ صَحِيحٌ، وَبِهَذَا يَقُولُ بَعْضُ أَهْلِ الْعِلْمِ مِنْ أَصْحَابِ النَّبِيِّ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ، مِنْهُمْ ابْنُ عُمَرَ، وَجَابِرُ بْنُ عَبْدِ اللَّهِ، وَأَبُو هُرَيْرَةَ، وَأَنَسٌ وَابْنُ عَبَّاسٍ، وَعَبْدُ اللَّهِ بْنُ الزُّبَيْرِ وَغَيْرُهُمْ، وَمِنَ التَّابِعِينَ الْحَسَنُ الْبَصْرِيُّ، وَعَطَاءٌ، وَطَاوُسٌ، وَمُجَاهِدٌ، وَنَافِعٌ، وَسَالِمُ بْنُ عَبْدِ اللَّهِ، وَسَعِيدُ بْنُ جُبَيْرٍ وَغَيْرُهُمْ، وَبِهِ يَقُولُ: مَالِكٌ، وَمَعْمَرٌ، وَالْأَوْزَاعِيُّ، وَابْنُ عُيَيْنَةَ، وَعَبْدُ اللَّهِ بْنُ الْمُبَارَكِ، وَالشَّافِعِيُّ، وَأَحْمَدُ، وَإِسْحَاق، وقَالَ عَبْدُ اللَّهِ بْنُ الْمُبَارَكِ: قَدْ ثَبَتَ حَدِيثُ مَنْ يَرْفَعُ يَدَيْهِ، وَذَكَرَ حَدِيثَ الزُّهْرِيِّ، عَنْ سَالِمٍ، عَنْ أَبِيهِ، وَلَمْ يَثْبُتْ حَدِيثُ ابْنِ مَسْعُودٍ أَنَّ النَّبِيَّ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ " لَمْ يَرْفَعْ يَدَيْهِ إِلَّا فِي أَوَّلِ مَرَّةٍ، حَدَّثَنَا بِذَلِكَ أَحْمَدُ بْنُ عَبْدَةَ الْآمُلِيُّ، حَدَّثَنَا وَهْبُ

---

[1] صحيح البخاری في الأذان ٨٣ (٧٣٥) ، و٨٤ (٧٣٦) ، و٨٥ (٧٣٨) ، و٨٦ (٧٣٩) . صحيح مسلم في الصلاة ٩ (٣٩٠) . سنن ابی داود في الصلاة ١١٦ (٧٤١) . سنن النسائي في الافتتاح ١ (٨٧٧، ٨٧٨، ٨٧٩) ، و٨٦ (١٠٢٦) ، والتطبيق ١٩ (١٠٥٨) ، و٢١ (١٠٦٠) ، و٢٧ (١٠٨٩) ، و٨٥ (١١٥٥) . سنن ابن ماجه في الإقامة ١٥ (٨٥٨) . (تحفة الأشراف : ٦٨١٦) . موطا امام مالک في الصلاة ٤ (١٦) . مسند احمد (٢ في ٨، ١٨، ٤٤، ٤٥، ٤٧، ٦٣، ١٠٠، ١٤٧) . سنن الدارمی في الصلاة ٤١ (١٢٨٥) ، و٧١ (١٣٤٧)

بْنُ زَمْعَةَ، عَنْ سُفْيَانَ بْنِ عَبْدِ الْمَلِكِ، عَنْ عَبْدِ اللهِ بْنِ الْمُبَارَكِ، قَالَ: وحَدَّثَنَا يَحْيَى بْنُ مُوسَى، قَالَ: حَدَّثَنَا إِسْمَاعِيلُ بْنُ أَبِي أُوَيْسٍ، قَالَ: كَانَ مَالِكُ بْنُ أَنَسٍ يَرَى رَفْعَ الْيَدَيْنِ فِي الصَّلَاةِ، وقَالَ يَحْيَى، وَحَدَّثَنَا عَبْدُ الرَّزَّاقِ، قَالَ: كَانَ مَعْمَرٌ يَرَى رَفْعَ الْيَدَيْنِ فِي الصَّلَاةِ وسَمِعْتُ الْجَارُودَ بْنَ مُعَاذٍ، يَقُولُ: كَانَ سُفْيَانُ بْنُ عُيَيْنَةَ، وَعُمَرُ بْنُ هَارُونَ، وَالنَّضْرُ بْنُ شُمَيْلٍ يَرْفَعُونَ أَيْدِيَهُمْ إِذَا افْتَتَحُوا الصَّلَاةَ وَإِذَا رَكَعُوا وَإِذَا رَفَعُوا رُءُوسَهُمْ. [1]

**ترجمه** امام ترمذي وائي په دي باب کي د عمر، علي، وائل بن حجر، مالك بن حويرث، انس، ابو هريره، ابو حميد، ابو اسيد، سهل بن سعد، محمد بن مسلمه، ابو قتاده، ابو موسى اشعري، جابر، او عمير ليثي رضي الله عنهم نه هم احاديث وارد دي او دابن عمر رضي الله عنهما حديث حسن صحيح دي، او دا په صحابه کرامو کي دبعضو اهل علمو په کومو کي چي ابن عمر، جابر بن عبدالله ابو هريره، انس، ابن عباس، عبدالله بن زبير رضي الله عنهم هم شامل دي او په تابعينو کي حسن بصري، عطاء، طاوس، مجاهد، نافع، سالم بن عبدالله، سعيد بن زبير وغيره هم په دي باندي قول کړي دي او همدا رنګي دتابعينو نه په وروستو خلقو کي امام مالك، معمر، اوزاعي، ابن عيينه، عبدالله بن مبارك، شافعي، احمد، او اسحاق بن راهويه رحمهم الله هم قول کړي دي، عبدالله بن مبارك وائي څوك چي خپل دواړه لاسونه پورته کوي دهغوئ دليل صحيح دي او بيا يي دزهري په سند روايت بيان کړي دي، او دابن مسعود رضي الله عنه حديث "چي نبي کريم صلي الله عليه وسلم صرف په اول خل خپل دواړه لاسونه پورته کول ثابت نه دي، مالك بن انس به په مونځ کي لاسونه پورته کول صحيح ګڼړل، دعبدالرزاق بيان دي چي معمر به هم په مونځ کي لاسونه پورته کول صحيح ګڼړل، او ماد جارود نه اوريدلي دي چي سفيان بن عيينه، عمربن هارون، او نضر بن شميل، به هم دمونځ شروع کولو وخت کي لاسونه پورته کول، او چي کله به يي رکوع کوله او چي کله به يي درکوع نه سر پورته کولو نو لاسونه به يي پورته کول.

**حل لغات**: افتتحوا: دفتح يفتح دباب نه په معني دشروع کولو، او پرانستلو.

---

[1] صحيح البخاري في الأذان ٨٣ (٧٣٥)، و٨٣ (٧٣٦)، و٨٥ (٧٣٨)، و٨٦ (٧٣٩)، صحيح مسلم في الصلاة ٩ (٣٩٠)، سنن ابي داود في الصلاة ١١٦ (٧٢١)، سنن النسائي في الافتتاح ١ (٨٧٧، ٨٧٨، ٨٧٩)، و٨٦ (١٠٢٦)، والتطبيق ١٩ (١٠٥٨)، و٢١ (١٠٦٠)، و٣٧ (١٠٨٩)، و٨٥ (١١٥٥)، سنن ابن ماجه في الإقامة ١٥ (٨٥٨)، (تحفة الأشراف: ٦٨١٢)، موطا امام مالك في الصلاة ٤ (١٦)، مسند احمد (٢ في ٨، ١٨، ٤٤، ٤٥، ٤٧، ٦٣، ١٠٠، ١٤٧)، سنن الدارمي في الصلاة ٤١ (١٢٨٥)، و٧١ (١٣٢٧)

**تشريح** : درکوع کولواودرکوع نه پس رفع اليدين کول مختلف فيه دي اوپه دي کي متعدد اقوال اول قول دادی:چی د تکبير تحريمي نه بغير به په تکبير کي لاس نشی اوچتولی(۲)امام شافعی فرمائی چی د تکبير تحريمي نه علاوه به په دوو تکبيرونو کي لاس اوچتوی.يو رکوع ته د تلو په وخت کي او دويم د رکوع نه پورته کيدو په وخت.

د امام شافعی دليل دابن عمر(رضي الله عنه) حديث دی

(أن النبي صلي الله عليه وسلم کان يرفع يديه عند الرکوع وعند رفع الرأس من الرکوع)

د ابن عمر(رضي الله عنه) حديث دی چی رسول پاك صلي الله عليه وسلم به خپل دواړه لاسونه پورته کول. رکوع ته د تلو په وخت کي او د رکوع نه سر پورته کولو په وخت کي . زمونږ دليل د ابن عباس رضی الله عنهما حديث دی چی (لا ترفع الايدي الا في سبع مواطن الحديث) د ابن عباس رضی الله عنهما نه نقل دی چی رسول پاك صلي الله عليه وسلم فرمائيلی دی.لاس به نشی اوچتولی.مگر په اووه ځايونو کي (۱) په تکبير تحريمه کي (۲)تکبير قنوت کښ (۳)تکبيرات عيدين کي (۴) تکبيرعرفات کي (۵) تکبيرات جمرتين کي (۶)تکبير صفا مروه کي (۷) تکبير استلام کښي.

د ابن عمر(رضي الله عنه) حديث به په ابتدايی اسلام باندي حمل کولی شی.يعنی په ابتدائي اسلام کي رفع يدين وو.بيا منسوخ شو.هم دغه شان د عبدالله بن زبير(رضي الله عنه) نه منقول دی.د ابن زبير(رضي الله عنه) نه مروی دی

(أنه رأى رجلا يصلي في المسجد الحرام يرفع يديه في الصلاة عند الرکوع وعند رفع الرأس من الرکوع فلما فرغ من صلاته قال له لاتفعل فأن هذا شئ فعله رسول الله صلي الله عليه وسلم ثم ترکه)

د امام اوزاعي سره دامام ابو حنيفه رحمه الله مناظره: شارحينو دهدايه (عنايه .فتح القدير .کفايه) په دي مسئله کي يوه خوندوره واقعه ذکر کړي ده.هغه دا چی يو خل په مسجد حرام کي امام اوزاعی د امام ابو حنيفه رحمه الله سره ضم شو.امام اوزاعی اوفرمائيل.څه خبره ده چی اهل عراق د رکوع کولو په وخت کي اود رکوع نه سر پورته کولو په وخت کي خپل لاسونه نه اوچتوی.حالانکه ماته (زهری عن سالم عن ابن عمررضي الله عنه) نه دا حديث رارسيدلي دی چی رسول پاك صلي الله عليه وسلم به په دی مواقعو باندي خپل لاسونه اوچتول .امام ابو حنيفه رحمه الله اوفرمائيل :

(حدثني حماد عن ابراهيم عن علقمة عن عبدالله بن مسعود (رضي الله عنه) أن النبي صلي الله عليه وسلم کان يرفع يديه عند تکبير ةالإفتتاح ثم لا يعود)

يعنی رسول پاك صلي الله عليه وسلم به د تکبير تحريمه په وخت کښ خپل لاسونه اوچتول.بيا به ئي اعاده نه کوله.

امام اوزاعی اوفرمائیل امام ابو حنیفه رحمه الله باندې تعجب دې چې زه ورته حدیث بیانوم (عن زهری عن سالم عن ابن عمر رضی الله عنهما) او هغه حدیث بیانوی (عن حماد عن ابراهیم عن علقمة عن ابن مسعود (رضي الله عنه)

حاصل دا چې امام اوزاعی د علو سند لحاظ اوکړو او د ابن عمر (رضي الله عنه) حدیث ته ئې ترجیح ورکړله امام اعظم اوفرمائیل

(أما حماد فكان أفقه من الزهری وإبراهیم كان أفقه من سالم ولولا سبق إبن عمر لقلت بأن علقمة أفقه منه أما عبدالله فعبدالله)

یعنی حماد دزهری په مقابله کې لوئې فقیه دې او ابراهیم د سالم نه زیات فقیه دې او که چرته ابن عمر (رضي الله عنه) ته د تقدیم زمانی فضیلت حاصل نه وو نوما به وئیلی وو چې علقمه د ابن عمر رضی الله عنهما په مقابله کې زیات فقیه دې اوعبدالله خو عبدالله (رضي الله عنه) دې یعنی دهغه خو نظیر نشته حاصل دا چې امام ابو حنیفه رحمه الله د فقاهت په اعتبار سره ابن مسعود (رضي الله عنه) ته ترجیح ورکړله.

ددی واقعي نه دومره خبره ثابته شود چې د رفع یدین په سلسله کې دابن عمر رضی الله عنهما او ابن مسعود (رضي الله عنه) حدیث په خپلوکي معارض دی او په دی دواړو حدیثونو کې د رسول الله فعل بیان شوې دې نو دتعارض د وجې دواړه احادیث ساقط شو اود رسول پاك صلي الله علیه وسلم قول (لا ترفع الایدی الا في سبع مواطن الحدیث) طرف ته به رجوع کولی شی په داسی حال کې چې دا حدیث مشهور دې. ددی نه علاوه د ابن عمر رضی الله عنهما حدیث ساقط دې ځکه چې مجاهد فرمائیلی دی

(صلیت خلف ابن عمر رضی الله عنهما سنتین فلم اره یرفع یدیه الا لإفتتاح الصلاة)

مجاهد فرمائی چې ما دوه کاله په ابن عمر (رضي الله عنه) پسې مونځ کړې دې خو د تکبیر تحریمه نه علاوه ما چرته هغه په لاس اوچتولو نه دی لیدلې اوقاعده دا ده چې راوی کله دخپل روایت خلاف عمل کوی نو دهغه روایت ساقطیږی.

***************

## ٧٩_ بَاب مَا جَاءَ أَنَّ النَّبِيَّ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ لَمْ يَرْفَعْ إِلاَّ فِي أَوَّلِ مَرَّةٍ

**دا ارشاد نبوي چې رسول الله صلي الله علیه وسلم دمونځ شروع کولو نه علاوه په بل وخت کې لاسونه نه پورته کول**

Scanned with C

٢٥٧_ حَدَّثَنَا هَنَّادٌ، حَدَّثَنَا وَكِيعٌ، عَنْ سُفْيَانَ، عَنْ عَاصِمِ بْنِ كُلَيْبٍ، عَنْ عَبْدِ الرَّحْمَنِ بْنِ الأَسْوَدِ، عَنْ عَلْقَمَةَ، قَالَ: قَالَ عَبْدُ اللهِ بْنُ مَسْعُودٍ: "أَلَا أُصَلِّي بِكُمْ صَلَاةَ رَسُولِ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ. فَصَلَّى فَلَمْ يَرْفَعْ يَدَيْهِ إِلَّا فِي أَوَّلِ مَرَّةٍ". قَالَ: وَفِي البَابِ عَنْ البَرَاءِ بْنِ عَازِبٍ. قَالَ أَبُو عِيسَى: حَدِيثُ ابْنِ مَسْعُودٍ حَدِيثٌ حَسَنٌ، وَبِهِ يَقُولُ: غَيْرُ وَاحِدٍ مِنْ أَهْلِ العِلْمِ مِنْ أَصْحَابِ النَّبِيِّ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ وَالتَّابِعِينَ، وَهُوَ قَوْلُ سُفْيَانَ الثَّوْرِيِّ وَأَهْلِ الكُوفَةِ. (1)

**ترجمه** علقمه وائي چي دعبدالله بن مسعود رضي الله عنه بيان دي چي ايا زه ستاسو په وړاندي درسول الله صلي الله عليه وسلم دمونځ پشان مونځ اونکړم نو ابن مسعود مونځ اوکړو او صرف په اول ځل يي دواړه لاسونه پورته کړل.

امام ترمذي وائي دابن مسعود رضي الله عنه حديث حسن دي او په دي باب کي دبراء بن عازب رضي الله عنه نه هم حديث وارد دي، اکثر صحابه کرام او په تابعينو کي اهل علمو په دي باندي قول کړي دي او دا دسفيان ثوري او اهل کوفه قول هم دي.

***************

## ٨٠_ باب مَا جَاءَ فِي وَضْعِ اليَدَيْنِ عَلَى الرُّكْبَتَيْنِ فِي الرُّكُوعِ

### په رکوع کي په زنګنانو ددواړو لاسونو ايخودلو بيان

٢٥٨_ حَدَّثَنَا أَحْمَدُ بْنُ مَنِيعٍ، حَدَّثَنَا أَبُو بَكْرِ بْنُ عَيَّاشٍ، حَدَّثَنَا أَبُو حَصِينٍ، عَنْ أَبِي عَبْدِ الرَّحْمَنِ السُّلَمِيِّ، قَالَ: قَالَ لَنَا عُمَرُ بْنُ الخَطَّابِ رَضِيَ اللهُ عَنْهُ: "إِنَّ الرُّكَبَ سُنَّتْ لَكُمْ فَخُذُوا بِالرُّكَبِ". قَالَ: وَفِي البَابِ عَنْ سَعْدٍ، وَأَنَسٍ، وَأَبِي حُمَيْدٍ، وَأَبِي أُسَيْدٍ، وَسَهْلِ بْنِ سَعْدٍ، وَمُحَمَّدِ بْنِ مَسْلَمَةَ، وَأَبِي مَسْعُودٍ. قَالَ أَبُو عِيسَى: حَدِيثُ عُمَرَ حَدِيثٌ حَسَنٌ صَحِيحٌ، وَالعَمَلُ عَلَى هَذَا عِنْدَ أَهْلِ العِلْمِ مِنْ أَصْحَابِ النَّبِيِّ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ وَالتَّابِعِينَ، وَمَنْ بَعْدَهُمْ لَا اخْتِلَافَ بَيْنَهُمْ فِي ذَلِكَ، إِلَّا مَا رُوِيَ عَنْ ابْنِ مَسْعُودٍ وَبَعْضِ أَصْحَابِهِ، أَنَّهُمْ كَانُوا يُطَبِّقُونَ وَالتَّطْبِيقُ مَنْسُوخٌ عِنْدَ أَهْلِ العِلْمِ. (2)

---

[1] سنن ابي داود في الصلاة ١١٩ (٧٤٨)، سنن النسائي في الافتتاح ٨٧ (١٠٢٧)، والتطبيق ٢٠ (١٠٥٩)، (تحفة الأشراف: ٩٤٦٨)، مسند احمد (١ في ٣٨٨، ٤٤٢) (صحيح)

[2] سنن النسائي في التطبيق ٢ (١٠٣٥)، (تحفة الأشراف: ١٠٤٨٢)

**ترجمه** دابو عبدالرحمن سلمي نه مروي دي چي مونږ ته عمر فاروق رضي الله عنه اوفرمائيل دزنگنانو نيول ستاسو دپاره مسنون کړي شوي دي لهذا تاسو به په رکوع کي زنگنان نيسئ.
امام ترمذي وائي دعمر رضي الله عنه حديث حسن صحيح دي، او په دي باب کي دسعد، انس، ابو اسيد، سهل بن سعد محمد بن مسلمه او ابو مسعود رضي الله عنهم نه هم احاديث وارد دي دبعضي صحابه کرامو او تابعينو او ددوئ نه پس دبعضي اهل علمو په دي باندي عمل دي او په دي سلسله کي دهيڅ اختلاف نشته علاوه دهغه نه کوم چي دابن مسعود نه او دهغه دبعضي شاگردانو نه مروي دي چي هغوئ به تطبيق کولو او تطبيق داهل علمو په نزد منسوخ دي.

****************

٢٥٩ـ قَالَ سَعْدُ بْنُ أَبِي وَقَّاصٍ: "كُنَّا نَفْعَلُ ذَلِكَ" فَنُهِينَا عَنْهُ، وَأُمِرْنَا أَنْ نَضَعَ الأَكُفَّ عَلَى الرُّكَبِ" قَالَ: حَدَّثَنَا قُتَيْبَةُ، حَدَّثَنَا أَبُو عَوَانَةَ، عَنْ أَبِي يَعْفُورٍ، عَنْ مُصْعَبِ بْنِ سَعْدٍ، عَنْ أَبِيهِ سَعْدٍ بِهَذَا، وَأَبُو حُمَيْدٍ السَّاعِدِيُّ اسْمُهُ عَبْدُ الرَّحْمَنِ بْنُ سَعْدِ بْنِ الْمُنْذِرِ، وَأَبُو أُسَيْدٍ السَّاعِدِيُّ اسْمُهُ: مَالِكُ بْنُ رَبِيعَةَ، وَأَبُو حَصِينٍ اسْمُهُ: عُثْمَانُ بْنُ عَاصِمٍ الأَسَدِيُّ، وَأَبُو عَبْدِ الرَّحْمَنِ السُّلَمِيُّ اسْمُهُ: عَبْدُ اللَّهِ بْنُ حَبِيبٍ، وَأَبُو يَعْفُورٍ عَبْدُ الرَّحْمَنِ بْنُ عُبَيْدِ بْنِ نِسْطَاسٍ، وَأَبُو يَعْفُورٍ الْعَبْدِيُّ اسْمُهُ: وَاقِدٌ وَيُقَالُ وَقْدَانُ، وَهُوَ الَّذِي رَوَى عَنْ عَبْدِ اللَّهِ بْنِ أَبِي أَوْفَى وَكِلَاهُمَا مِنْ أَهْلِ الْكُوفَةِ. (١)

**ترجمه** دسعد بن ابي وقاص رضي الله عنه بيان دي فرمائي چي مونږ به داسي کول (يعني تطبيق به مو کولو) او بيا مونږ ددينه منع کړي شو او مونږ ته حکم اوکړي شو چي خپل ورغوي په زنگنانو کيږدو
قتيبه پخپل سند دسعد بن ابي وقاص رضي الله عنه نه هم د ما قبل هم معني روايت نقل، امام ترمذي وائي د ابو حميد الساعدي نوم عبد الرحمن بن سعد بن منذر دي اود ابو اسيد ساعدي نوم عبد الله بن حبيب دي، اود ابو يعفور نوم عبد الرحمن بن عبيد بن نسطاس دي اود ابو يعفور عبدي نوم واقد دي او وقدان هم ويلي شوي دي دا هغه کس دي چي د عبد الله بن اوفي رضي الله عنه نه نقل دروايت کوي او دواړه د کوفي اوسيدونکي دي.

[1] صحيح البخاري في الأذان ١١٨ (٧٩٠). صحيح مسلم في المساجد ٥ (٥٣٥). سنن ابي داود في الصلاة ١٥٠ (٨٦٧). سنن النسائي في التطبيق ١ (١٠٣٢). سنن ابن ماجه في الإقامة ١٧ (٨٧٣). (تحفة الأشراف : ٣٩٢٩). مسند احمد (١ في ١٨١، ٨٢). سنن ابي داود في الصلاة ٦٨ (١٣٢١)

****************

## ٨١_ باب مَا جَاءَ أَنَّهُ يُجَافِي يَدَيْهِ عَنْ جَنْبَيْهِ فِي الرُّكُوعِ

**په رکوع کي دخپلو دواړو متو دتشو نه دجدا ساتلو بيان**

٢٦٠_ حَدَّثَنَا مُحَمَّدُ بْنُ بَشَّارٍ بُنْدَارٌ، حَدَّثَنَا أَبُو عَامِرٍ العَقَدِيُّ، حَدَّثَنَا فُلَيْحُ بْنُ سُلَيْمَانَ، حَدَّثَنَا عَبَّاسُ بْنُ سَهْلِ بْنِ سَعْدٍ، قَالَ: اجْتَمَعَ أَبُو حُمَيْدٍ وَأَبُو أُسَيْدٍ، وَسَهْلُ بْنُ سَعْدٍ، وَمُحَمَّدُ بْنُ مَسْلَمَةَ، فَذَكَرُوا صَلَاةَ رَسُولِ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ، فَقَالَ أَبُو حُمَيْدٍ: أَنَا أَعْلَمُكُمْ بِصَلَاةِ رَسُولِ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ، إِنَّ رَسُولَ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ " رَكَعَ فَوَضَعَ يَدَيْهِ عَلَى رُكْبَتَيْهِ كَأَنَّهُ قَابِضٌ عَلَيْهِمَا، وَوَتَّرَ يَدَيْهِ فَنَحَّاهُمَا عَنْ جَنْبَيْهِ ". قَالَ: وَفِي البَابِ عَنْ أَنَسٍ، قَالَ أَبُو عِيسَى: حَدِيثُ أَبِي حُمَيْدٍ حَدِيثٌ حَسَنٌ صَحِيحٌ، وَهُوَ الَّذِي اخْتَارَهُ أَهْلُ العِلْمِ أَنْ يُجَافِيَ الرَّجُلُ يَدَيْهِ عَنْ جَنْبَيْهِ فِي الرُّكُوعِ وَالسُّجُودِ. ([1])

**ترجمه** : دعباس بن سهل بن سعد رضي الله عنه بيان دي چي ابو حمير . ابو اسيد ، سهل بن سعد ، او محمد بن مسلمه رضي الله عنهم څلور واړه راجمع شول او درسول الله صلي الله عليه وسلم دمونځ ذكر يي اوكړو ابو حميد اووئيل ماته درسول الله صلي الله عليه وسلم مونځ ستاسو نه زيات معلوم دي رسول الله صلي الله عليه وسلم ركوع اوكړله او خپل دواړه لاسونه يي په زنګنانو كيخودل داسي ښكاريدل لكه چي نيولي يي وي او خپل دواړه لاسونه يي د ليندي دمزي پشان كړل او دخپلو دواړو تشو نه يي جدا نيولي وو.

امام ترمذي وائي دابوحميد حديث حسن صحيح دي، او په دي باب كي دانس رضي الله عنه نه هم روايت وارد دي او په همدي باندي اهل كوفه عمل اختيار كړي دي چي سړي به په ركوع او سجده كي خپل دواړه لاسونه دخپلو تشو نه جدا ساتي

****************

## ٨٢_ باب مَا جَاءَ فِي التَّسْبِيحِ فِي الرُّكُوعِ وَالسُّجُودِ

**په ركوع او سجدو كي دتسبيحاتو وئيلو بيان**

[1] صحيح البخاري في الأذان ١٣٥ (٨٢٨) . سنن ابي داود في الصلاة ١١٧ (٧٣٠) . سنن النسائي في التطبيق ٦ (١٠٣٠) . والسهو ٣ (١١٨٢) . و٣٩ (١٠٦١) . (تحفة الأشراف : ١١٨٩٢) . وكذا (١١٨٩٧) . سنن الدارمي في الصلاة ٧٠ (١٣٢٦)

Scanned with C

٢٦١_ حَدَّثَنَا عَلِيُّ بْنُ حُجْرٍ، أَخْبَرَنَا عِيسَى بْنُ يُونُسَ، عَنِ ابْنِ أَبِي ذِئْبٍ، عَنْ إِسْحَاقَ بْنِ يَزِيدَ الْهُذَلِيِّ، عَنْ عَوْنِ بْنِ عَبْدِ اللَّهِ بْنِ عُتْبَةَ، عَنِ ابْنِ مَسْعُودٍ، أَنَّ النَّبِيَّ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ، قَالَ: " إِذَا رَكَعَ أَحَدُكُمْ فَقَالَ فِي رُكُوعِهِ: سُبْحَانَ رَبِّيَ الْعَظِيمِ ثَلَاثَ مَرَّاتٍ، فَقَدْ تَمَّ رُكُوعُهُ وَذَلِكَ أَدْنَاهُ، وَإِذَا سَجَدَ فَقَالَ فِي سُجُودِهِ: سُبْحَانَ رَبِّيَ الْأَعْلَى ثَلَاثَ مَرَّاتٍ، فَقَدْ تَمَّ سُجُودُهُ وَذَلِكَ أَدْنَاهُ" قَالَ: وَفِي الْبَابِ عَنْ حُذَيْفَةَ، وَعُقْبَةَ بْنِ عَامِرٍ، قَالَ أَبُو عِيسَى: حَدِيثُ ابْنِ مَسْعُودٍ لَيْسَ إِسْنَادُهُ بِمُتَّصِلٍ، عَوْنُ بْنُ عَبْدِ اللَّهِ بْنِ عُتْبَةَ لَمْ يَلْقَ ابْنَ مَسْعُودٍ، وَالْعَمَلُ عَلَى هَذَا عِنْدَ أَهْلِ الْعِلْمِ يَسْتَحِبُّونَ أَنْ لَا يَنْقُصَ الرَّجُلُ فِي الرُّكُوعِ وَالسُّجُودِ مِنْ ثَلَاثِ تَسْبِيحَاتٍ، وَرُوِيَ عَنْ عَبْدِ اللَّهِ بْنِ الْمُبَارَكِ، أَنَّهُ قَالَ: أَسْتَحِبُّ لِلْإِمَامِ أَنْ يُسَبِّحَ خَمْسَ تَسْبِيحَاتٍ لِكَيْ يُدْرِكَ مَنْ خَلْفَهُ ثَلَاثَ تَسْبِيحَاتٍ، وَهَكَذَا قَالَ: إِسْحَاقُ بْنُ إِبْرَاهِيمَ. (1)

**ترجمه**: دحذيفه رضي الله عنه نه مروي دي فرمائي چي دنبي كريم صلي الله عليه وسلم سره مي مونځ كړي دي او پخپله ركوع كي يې سبحان ربي العظيم وئيل او په سجدو كي يې سبحان ربي الاعلي وئيل او چي كله به درحمت كوم ايت ته ورسيدو نو وقفه به يې كوله او سوال به يې كولو او چي كله به دعذاب كوم ايت ته ورسيدو نو وقفه به يې كوله او پناه به يې غوښتله.
امام ترمذي وائي دا حديث حسن صحيح دي.

**حل لغات**: تسبيحات د تسبيح جمع ده معني سبحان الله وئيل.

د سجدي په حالت كي به دری ځله (سبحان ربي الأعلى) وائی.او دا دری ځله وئيل د كم نه كمه درجه ده.اهل علمو ليكلی دی چی ددی پريخودل يا په كي كمی كول مكروه دی. ددی دليل د رسول الله ارشاد دی (اذ سجد أحدكم فليقل في سجوده سبحان ربي الأعلى ثلاثا)
او په ركوع او سجده كي په دری ځله باندې زيادت كول مستحب دی.خو په دي شرط چی په طاق عدد باندې ختموی.او ددی دليل دا دې چی رسول پاك صلي الله عليه وسلم به د ركوع او سجدي تسبيحات په طاق عدد باندې ختمول، او په مشهور حديث (إن الله وتر يحب الوتر) باندې هم استدلال شوې دې.
صاحب د هدايه فرمائی.كه په خپله امام وی.نوبه دری ځله دی دومره زيادت نه كوی چی خلق ستړی شی.او د هغوی په زړونو كي نفرت او ناخوښی پيدا شی.دا خبره دی معلومه وی چی د ركوع او سجدي تسبيحات سنت دی.ځكه چی نص يعنی اركعوا واسجدوا،

(1) سنن ابي داود في الصلاة ١٥٢ (٨٨٦)، سنن ابن ماجه في الإقامة ٢٠ (٨٨٨).

رکوع او سجدي ته شامل دي. ددی تسبیحاتو ته نه دی شامل.نو ثابته شوه چی د رکوع او سجدي تسبیحات فرض نه دی.

خو دلته دا اشکال دی چی د عدم فرضیت نه دی ځنګه لازمیږی چی سنت دی وی.بلکه ممکن ده چی واجب وی. ددی باوجود چی په وجوب باندې دوه دلائل موجود دی(۱)اول دا چی د رکوع او سجود په تسبیحاتو باندې رسول الله مواظبت کړې دې. او دا دلیل د وجوب دې (۲) دویم دا چی د رکوع د تسبیحاتو په باره کي رسول الله فرمائیلی دی. (اِجعلوها) او د سجدي د تسبیحاتو په باره کي فرمائی(فلیقل) او دا د امر صیغي دی.او د امر موجب وجوب وی.نو ددی دواړو تسبیحات هم واجب ګرځول پکار وو.ددي جواب دادي چی اعرابی ته د تعلیم ورکولو په وخت کي رسول پاك صلي الله علیه وسلم ددی بیان نه وو کړې.نو معلومه شوه چی د رکوع او سجود د تسبیحاتو حکم د وجوب نه بلکه د استحباب په طور دې.

*****************

٢٦٢_ حَدَّثَنَا مَحْمُودُ بْنُ غَيْلَانَ، حَدَّثَنَا أَبُو دَاوُدَ، قَالَ: أَنْبَأَنَا شُعْبَةُ، عَنِ الأَعْمَشِ، قَالَ: سَمِعْتُ سَعْدَ بْنَ عُبَيْدَةَ يُحَدِّثُ، عَنِ الْمُسْتَوْرِدِ، عَنْ صِلَةَ بْنِ زُفَرَ، عَنْ حُذَيْفَةَ أَنَّهُ صَلَّى مَعَ النَّبِيِّ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ، فَكَانَ يَقُولُ فِي رُكُوعِهِ: " سُبْحَانَ رَبِّيَ الْعَظِيمِ " وَفِي سُجُودِهِ " سُبْحَانَ رَبِّيَ الأَعْلَى " وَمَا أَتَى عَلَى آيَةِ رَحْمَةٍ إِلَّا وَقَفَ وَسَأَلَ، وَمَا أَتَى عَلَى آيَةِ عَذَابٍ إِلَّا وَقَفَ وَتَعَوَّذَ. قَالَ أَبُو عِيسَى: وَهَذَا حَدِيثٌ حَسَنٌ صَحِيحٌ.[1]

**ترجمه** : په مذکوره سند باندي دشعبه نه هم دتیر شوي روایت هم معني روایت مروي دي، او دحذیفه رضي الله عنه دا حدیث په نورو سندونو هم مروي دي چي هغه په رسول الله صلي الله علیه وسلم پښي دتهجد مونځ کړي وو او بیا راوي تمام حدیث ذکر کړي دي.

**دحذیفه بن یمان رضي الله عنه حالات**

نوم حذیفه کنیه ابو عبدالله صاحب السر لقب دقبیله بن عتفان سره یي تعلق وو دده پلار په جاهلیت کي ځوك قتل کړی دی نو په دي وجه ددشمنۍ نه دبچ کیدو دپاره په مدینه کي اوسیدو حذیفه دمدیني نه مکي ته لاړو داسلام قبلولو دپاره، دغزوه بدر نه علاوه په تمامو

---

[1] صحیح مسلم في المسافرین ٢٧ (٧٧٢) . سنن ابي داود في الصلاة ١٥١ (٨٧١) . سنن النسائي في الافتتاح ٧٧ (١٠٠٩) . والتطبیق ٩ (١٠٤٧) . و٧٣ (١١٣٣) . سنن ابن ماجه في الإقامة ٢٠ (٨٩٧) . و١٧٩ (١٣٥١) . (تحفة الأشراف : ٣٣٥١) . مسند احمد (٥ في ٣٨٢ . ٣٨٤ . ٣٩٤) . سنن الدارمي في الصلاة ٦٩ (١٣٤٥)

عزواتو کي شريك پاتي شوی دی او عهد نبوي يي په مدينه کي تير کړی دی او بيا ددينه پس عراق، کوفه، نصيبين او مدائن ته منتقل شوی دی او په نصيبين کي يي شاګردي هم کړي ده (اسد الغابه).

عمر فاروق رضي الله عنه دعراق فتح کيدو نه پس په دجله کي حذيفه رضي الله عنه امير مقرر کړو (کتاب الخراج لامام ابو يوسف او بيا دمدائن والي مقرر کړی شو.

حذيفه رضي الله عنه دفقه او حديث لوي عالم وو او دمنافقانو په پيژندو کي يي خصوصي مهارت وو په همدي وجه ورته درسول الله صلي الله عليه وسلم رازدار ونيلی شوي دی پخپله وائي ددي وخت نه دقيامته پوري راتلونکي تولي فتني پيژنم، ليکن ددينه دي څوك دا معلومه نکړي چي زما نه علاوه بل چاته نه دي معلومي وجه داده چي رسول الله صلي الله عليه وسلم په دي باره کي مونږ تولو ته په يو مجلس کي خبر راکړی دی خو اوس په هغوئ کي زما نه علاوه بل هيڅوك ژوندی نشته.

دزهد او تقوي يي دا حالت وو چي دامارت باوجود يي په معاشرت کي څه تعير نه وو راغلی دتواضع په وجه به يي دځورلئ کار دخر نه اخستلو او په ډير لږ قوت لايموت رزق به يي ګذاره کوله او ددينه زيات به يي دخان سره نه ساتلو عمر رضي الله عنه ورته څه مال هم اوليږلو ليکن هغه يي په خلقو تقسيم کړو.

وفات: دهجرت په ۳۶ کال عثمان رضي الله عنه دوفات نه څلويښت ورځي پس وفات شو چي په اخري عمر کي په ډيره ژړا کي مصروف وو خلقو ورنه دوجي تپوس اوکړو نو په جواب کي يي اووئيل ددنيا دپريښودو غم راسره نشته مرګ خو يو دوست دی ليکن په دي خفه يم چي زما انجام او حشر به څه وي کله چي يي اخري ساه واخستله نو ويی فرمائيل ستا ملاقات دي زما سره ماته مبارك شي خکه چي زما درسره انتهائي زياته مينه ده (مسند احمد).

دحذيفه رضي الله عنه دسلو نه زيات روايات منقول دي چي دولس متفق عليه دي او اته صرف په بخاري کي دي او اولس په مسلم کي دي (تهذيب الکمال).

****************

٢٦٣_ قَالَ: حَدَّثَنَا مُحَمَّدُ بْنُ بَشَّارٍ، حَدَّثَنَا عَبْدُ الرَّحْمَنِ بْنُ مَهْدِيٍّ، عَنْ شُعْبَةَ نَحْوَهُ. وَقَدْ رُوِيَ، عَنْ حُذَيْفَةَ هَذَا الْحَدِيثُ مِنْ غَيْرِ هَذَا الْوَجْهِ أَنَّهُ صَلَّى بِاللَّيْلِ مَعَ النَّبِيِّ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ، فَذَكَرَ الْحَدِيثَ. ([1])

**ترجمه** او يقينا دحذيفه بن يمان رضي الله عنه نه دا حديث ددي سند نه علاوه په بل سند باندي هم مروي دي چي نبي كريم صلي الله عليه وسلم به او بيا يي دسابقه حديث پشان مضمون ذكر كړو.

***************

## ٨٣_ باب مَا جَاءَ فِي النَّهْيِ عَنِ الْقِرَاءَةِ فِي الرُّكُوعِ وَالسُّجُودِ

### په ركوع او سجده كي دقرالت دممانعت بيان

٢٦٤_ حَدَّثَنَا إِسْحَاقُ بْنُ مُوسَى الْأَنْصَارِيُّ، حَدَّثَنَا مَعْنٌ، حَدَّثَنَا مَالِكُ بْنُ أَنَسٍ، ح وحَدَّثَنَا قُتَيْبَةُ، عَنْ مَالِكٍ، عَنْ نَافِعٍ، عَنْ إِبْرَاهِيمَ بْنِ عَبْدِ اللَّهِ بْنِ حُنَيْنٍ، عَنْ أَبِيهِ، عَنْ عَلِيِّ بْنِ أَبِي طَالِبٍ، أَنَّ النَّبِيَّ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ " نَهَى عَنْ لُبْسِ الْقَسِّيِّ وَالْمُعَصْفَرِ، وَعَنْ تَخَتُّمِ الذَّهَبِ، وَعَنْ قِرَاءَةِ الْقُرْآنِ فِي الرُّكُوعِ ". وَفِي الْبَاب عَنِ ابْنِ عَبَّاسٍ، قَالَ أَبُو عِيسَى: حَدِيثُ عَلِيٍّ حَدِيثٌ حَسَنٌ صَحِيحٌ، وَهُوَ قَوْلُ أَهْلِ الْعِلْمِ مِنْ أَصْحَابِ النَّبِيِّ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ وَالتَّابِعِينَ، وَمَنْ بَعْدَهُمْ كَرِهُوا الْقِرَاءَةَ فِي الرُّكُوعِ وَالسُّجُودِ. ([2])

**ترجمه** : دعلي بن ابي طالب رضي الله عنه بيان دي فرماني چي رسول الله صلي الله عليه وسلم دريشمي جامو اغوستل او په كسم (بوټي) درنګ شوو جامو او د سرو زرو دګوتمي اچولو داستعمال نه او په ركوع كي دقران لوستلو نه ممانعت فرمانيلي دي.

---

[1] صحيح مسلم في المسافرين ۴۲ (۷۷۲) . سنن ابي داود في الصلاة ۱۵۱ (۸۷۱) . سنن النسائي في الافتتاح ۷۷ (۱۰۰۹) . والتطبيق ۹ (۱۰۴۷) ، و۷۴ (۱۱۳۴) . سنن ابن ماجه في الإقامة ۲۰ (۸۹۷) ، و۱۷۹ (۱۳۵۱) . (تحفة الأشراف : ۳۳۵۱) . مسند احمد (د في ۳۸۲، ۳۸۴، ۳۹۴، ۳۹۷) . سنن الدارمي في الصلاة ۶۹ (۱۳۴۵)

[2] صحيح مسلم في الصلاة ۴۱ (۴۸۰) واللباس ۴ (۲۰۷۸) . سنن ابي داود في اللباس ۱۱ (۴۰۴۴) . سنن النسائي في التطبيق ۷ (۱۰۴۱) ، و۶۱ (۱۱۱۹، ۱۱۲۰) . الزينة ۴۳ (۵۱۷۲، ۵۱۷۶، ۵۱۷۸، ۵۱۸۳) ، و۷۷ (۵۲۶۶، ۵۲۷۲) . سنن ابن ماجه في اللباس ۲۱ (۳۶۰۲) . و۴۰ (۳۶۴۲) . (تحفة الأشراف : ۱۰۷۹) . موطا امام مالک في الصلاة ۶ (۲۸) . مسند احمد (۱ في ۸۰، ۸۱، ۹۲، ۱۰۴، ۱۱۴، ۱۱۹، ۱۲۱، ۱۲۳، ۱۲۶، ۱۳۲، ۱۳۳، ۱۳۴، ۱۳۷، ۱۳۸، ۱۴۶) . ويأتي عند المؤلف في اللباس ۵ (۱۷۲۵) ، و۱۳ (۱۷۳۷) والأدب ۴۵ (۲۸۰۸)

امام ترمذي وائي دعلي رضي الله عنه حديث حسن صحيح دي او په دي باب کي دابن عباس نه هم روايت مروي دي، دصحابه کرامو او تابعينو او ددوئ نه پس داهل علمو هم دا قول دي چي دوئ رکوع او سجدو کي دقران لوستل مکروه ګنړلي دي.

**حل لغات** تختم مصدر د باب افتعال دي، معني ګوتمه جوړول دي.

****************

## ٨٤_ باب مَا جَاءَ فِيمَنْ لاَ يُقِيمُ صُلْبَهُ فِي الرُّكُوعِ وَالسُّجُودِ

### په رکوع او سجده کي دملا نه سيده کولو حکم

٢٦٥_ حَدَّثَنَا أَحْمَدُ بْنُ مَنِيعٍ، حَدَّثَنَا أَبُو مُعَاوِيَةَ، عَنْ الأَعْمَشِ، عَنْ عُمَارَةَ بْنِ عُمَيْرٍ، عَنْ أَبِي مَعْمَرٍ، عَنْ أَبِي مَسْعُودٍ الأَنْصَارِيِّ الْبَدْرِيِّ، قَالَ: قَالَ رَسُولُ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ: "لاَ تُجْزِئُ صَلاَةٌ لاَ يُقِيمُ فِيهَا الرَّجُلُ يَعْنِي صُلْبَهُ فِي الرُّكُوعِ وَالسُّجُودِ" قَالَ: وَفِي الْبَابِ عَنْ عَلِيِّ بْنِ شَيْبَانَ، وَأَنَسٍ، وَأَبِي هُرَيْرَةَ، وَرِفَاعَةَ الزُّرَقِيِّ، قَالَ أَبُو عِيسَى: حَدِيثُ أَبِي مَسْعُودٍ الأَنْصَارِيِّ حَدِيثٌ حَسَنٌ صَحِيحٌ، وَالْعَمَلُ عَلَى هَذَا عِنْدَ أَهْلِ الْعِلْمِ مِنْ أَصْحَابِ النَّبِيِّ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ، وَمَنْ بَعْدَهُمْ يَرَوْنَ أَنْ يُقِيمَ الرَّجُلُ صُلْبَهُ فِي الرُّكُوعِ وَالسُّجُودِ، وقَالَ الشَّافِعِيُّ، وَأَحْمَدُ، وَإِسْحَاق: مَنْ لَمْ يُقِمْ صُلْبَهُ فِي الرُّكُوعِ وَالسُّجُودِ فَصَلاَتُهُ فَاسِدَةٌ: لِحَدِيثِ النَّبِيِّ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ: "لاَ تُجْزِئُ صَلاَةٌ لاَ يُقِيمُ الرَّجُلُ فِيهَا صُلْبَهُ فِي الرُّكُوعِ وَالسُّجُودِ" وَأَبُو مَعْمَرٍ اسْمُهُ: عَبْدُ اللَّهِ بْنُ سَخْبَرَةَ، وَأَبُو مَسْعُودٍ الأَنْصَارِيُّ الْبَدْرِيُّ اسْمُهُ: عُقْبَةُ بْنُ عَمْرٍو.[1]

**ترجمه** : دابومسعود او عقبه بن عامر انصاري رضي الله عنه بيان دي چي رسول الله صلي الله عليه وسلم فرمانيلي دي دهغه چا مونځ نه کيږي څوك چي درکوع او سجدي مينځ کي خپله ملا نه نيغوي.

امام ترمذي وائي دابومسعود انصاري حديث حسن صحيح دي، او په دي باب کي دعلي بن شعبان، انس بن مالك، ابوهريره، او ابو رفاعه رضي الله عنهم نه هم احاديث وارد دي، دصحابه کرامو او ددوئ نه پس دنورو اهل علمو په دي باندي عمل دي چي بنده به په رکوع او سجده کي ملا نيغوي، امام شافعي ، احمد ، او اسحاق بن راهويه (رحمهم الله) وائي چاچي په رکوع او سجده کي ملا نيغه اونه ساتله دهغه مونځ فاسد دي ځکه چي درسول الله صلي الله

---

[1] سنن ابي داود في الصلاة ١٣٨ (٨٥٥) . سنن النسائي في الافتتاح ٨٨ (١٠٢٨) . والتطبيق ٥٣ (١١١٠) . سنن ابن ماجه في الإقامة ١٦ (٨٧٠) . (تحفة الأشراف : ٩٩٩٥) . مسند احمد (٤ في ١١٩، ١٢٢) . سنن الدارمي في الصلاة ٧٨ (١٣٦٠)

عليه وسلم ارشاد دي دهغه چا مونځ نه کيږي څوك چي په رکوع او سجده کي ملانيغه نه ساتي. اود ابو معمر نوم عبد الله بن سخبره دي اود ابو مسعود بدري نوم عقبه بن عمرو دي.

**تشريح**: په دي مسئله کي اختلاف دي چي تعديل دارکانو فرض دي او که واجب دي.

(١) دامام ابو حنيفه په نزد واجب دي (٢) او دائمه ثلاثه په نزد فرض دي.

منشاء داختلاف داده چي په خبر واحد فرضيت ثابتيږي او کنه ثابتيږي دامام صاحب په نزد په خبر واحد فرضيت نه ثابتيږي او دائمه ثلاثه په نزد ثابتيږي.

دامام صاحب دليل: حديث داعرابي مسيء الصلاة دي چي نبي كريم صلي الله عليه وسلم خلاد بن رافع ته دمونځ دارکانو تعليم ورکړو او ورته يي اوفرمائيل که دارکانو دتعديل لحاظ دي اوکړو نو مونځ به دي اوشي او که ددي لحاظ دي اونکړو نو مونځ به دي ناقص وي ددينه معلومه شوه چي تعديل دارکانو واجب دي څکه چي دارکانو دتعديل په ترك دنقصان حکم لګيدلي دي او که تعديل دارکانو فرض وي نو بيا به وربانديٍ رسول الله صلي الله عليه وسلم دبطلان حکم لګولي وو.

دليل ثاني: دامام صاحب دويم دليل دادي چي په قران کريم کي مطلقا درکوع او سجدي حکم دي کچري مونږ دخبر واحد په وجه تعديل دارکانو فرض کړو نو د خبر واحد په وجه په کتاب الله زيادت لازميږي او دا ناجائز دي لهذا مطلق رکوع سجدي به فرض وي په حکم دکتاب لله او تعديل دارکانو به واجب وي په حکم دحديث.

دليل دائمه ثلاثه: دوئ په حديث الباب استدلال کړي دي چي په دي حديث کي "لاتجزئ صلاة" يعني چي څوك تعديل دارکانو پريږدي نو دهغه مونځ نه جائز کيږي.

جواب: دلته تجزئ په معني دکفايت دي معني به دا وي چاچي دارکانو دتعديل لحاظ اونکړو نو هغه مونځ به کافي نه وي او دا مونږ تسليموو چي دارکانو دتعديل نه بغير مونځ نه کافي کيږي څکه چي دا واجب دي.

په دواړوسجدوکې دنه کيناستو متعلق داهل علمو دوه اقوال دي اول که مونځ ګذار د سجدي نه راپورته شو.اونيغ کينه ناستہ،نو د طرفينو په نزد دا کافي ده.مشائخو په دی باره کي اختلاف دې چی د دويمی سجدې د معتبر کيدو دپاره د اولي سجدي نه په څومره مقدار کي سر پورته کول ضروری دی په دی کي هم داهل علمو دوه اقوال دي اول (١)بعضي فقهاؤ وئيلی دی چی کله تندي د زمکي نه جدا شی.او بيا سجدي ته لاړشی.نو دواړه سجدي ادا شوې (٢)حسن بن زياد وئيلی دی چی کله د زمکي نه خپل سر دومره راپورته کړی چی په هغی کي هوا تيره شی.نو په دی صورت کي دواړه سجدي ادا شوې.د حسن بن زياد قول اولنی قول ته نزدی دې(٣) محمد بن سلمه وائی.که په دومره مقدار باندې ئې سر پورته کړو چی ليدونکی دا ګمان اوکړی چی ده د دويمی سجدی کولو دپاره

خپل سر پورته کړو.نو دواړه سجدي ادا شوې.ګنې يوه سجده به ادا شي.(۴)امام قدوري. فرمائي چې په څه باندې د رفع لفظ اطلاق کيږي.نوپه دومره اندازه باندې سر پورته کول معتبر دى. صاحب دهدايه فرمائي چې اصل قول دا دې.که دومره اوچت کړي چې د ناستي په نسبت سجدې ته نزدې وي.نو دويمه سجده جائز نه ده.ځکه چې دى تراوسه پورې په اوله سجدې کې شمارلى شى.او که دومره اوچت کړى چې ناستى ته نزدى وى.نودويمه سجده جائز ده.ځکه چې په دى صورت کښې دى ناست شمارلى شى.نو دويمه سجده متحقق شوه.درکوع نه علاوه دسجدې دتکرار متعلق دوه اقوال دي:

پاتې شوه دا خبره چې په هر رکعت کې يوه رکوع او دوه سجدې ولې دى؟نو په دى باره کې د اکثرو اهل علمو دا رائې ده چې دا توقيفي څيز دې.عقل او قياس ته په دى کې دخل نشته(۲) او بعضې اهل علمو دا حکمت ذکر کړې دې چې دوه سجدې د شيطان ذليل کولو دپاره دى.ځکه چې د تخليق آدم نه پس چې کله الله تعالى هغه ته حکم کړې وو چې دى آدم ته سجده اوکړى.نو هغه آدم ته سجده اونکړله.نو مونږ د شيطان د رعلاوه کولو او ذليل کولو دپاره دوه سجدې کوو.په سجده د سهوي کې رسول پاك صلي الله عليه وسلم دى طرف ته اشاره کړې ده (هما ترغيما للشيطان) يعنى د سهوي دواړه سجدې د شيطان د رټلو دپاره دي.

***************

## ۸۵_باب مَا يَقُولُ الرَّجُلُ إِذَا رَفَعَ رَأْسَهُ مِنَ الرُّكُوعِ

### درکوع نه سر پورته کولو وخت کې کوم کلمات ونيل پکار دي

٢٦٦_ حَدَّثَنَا مَحْمُودُ بْنُ غَيْلَانَ، حَدَّثَنَا أَبُو دَاوُدَ الطَّيَالِسِيُّ، حَدَّثَنَا عَبْدُ الْعَزِيزِ بْنُ عَبْدِ اللَّهِ بْنِ أَبِي سَلَمَةَ الْمَاجِشُونُ، حَدَّثَنِي عَمِّي، عَنْ عَبْدِ الرَّحْمَنِ الأَعْرَجِ، عَنْ عُبَيْدِ اللَّهِ بْنِ أَبِي رَافِعٍ، عَنْ عَلِيِّ بْنِ أَبِي طَالِبٍ، قَالَ: كَانَ رَسُولُ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ إِذَا رَفَعَ رَأْسَهُ مِنَ الرُّكُوعِ، قَالَ: "سَمِعَ اللَّهُ لِمَنْ حَمِدَهُ رَبَّنَا وَلَكَ الْحَمْدُ مِلْءَ السَّمَوَاتِ وَمِلْءَ الأَرْضِ وَمِلْءَ مَا بَيْنَهُمَا وَمِلْءَ مَا شِئْتَ مِنْ شَيْءٍ بَعْدُ" قَالَ: وَفِي الْبَابِ عَنِ ابْنِ عُمَرَ، وَابْنِ عَبَّاسٍ، وَابْنِ أَبِي أَوْفَى، وَأَبِي جُحَيْفَةَ، وَأَبِي سَعِيدٍ، قَالَ أَبُو عِيسَى: حَدِيثُ عَلِيٍّ حَدِيثٌ حَسَنٌ صَحِيحٌ، وَالْعَمَلُ عَلَى هَذَا عِنْدَ بَعْضِ أَهْلِ الْعِلْمِ، وَبِهِ يَقُولُ:

Scanned with C

الشَّافِعِيُّ. قَالَ: يَقُولُ هَذَا فِي الْمَكْتُوبَةِ وَالتَّطَوُّعِ. وقَالَ بَعْضُ أَهْلِ الْكُوفَةِ: يَقُولُ هَذَا فِي صَلَاةِ التَّطَوُّعِ وَلَا يَقُولُهَا فِي صَلَاةِ الْمَكْتُوبَةِ. قَالَ أَبُو عِيسَى: وَإِنَّمَا يُقَالُ الْمَاجِشُونِيُّ لِأَنَّهُ مِنْ وَلَدِ الْمَاجِشُونِ. [1]

**ترجمه** دعلي بن ابي طالب رضي الله عنه نه مروي دي فرمائي چي كله به رسول الله صلي الله عليه وسلم دركوع نه سر پورته كولو نو

"سمع الله لمن حمده" ربنا ولك الحمد ملء السماوات وملء الارض وملء مابينهما وملء ماشئت من شيء بعد"

يعني الله تعالي دهغه چا وينا واوريدله چاچي دهغه تعريف اوكړو او اي زمونږه ربه ستا دپاره تمام تعريفونه دي داسمانونو ډكوالي په مقدار او دزمكي ډكوالي په مقدار او داسمان دتمامو څيزونو په مقدار او ددينه پس دهر هغه څيز ډك والي په مقدار دكوم چي ته وئيل غواړي.

امام ترمذي وائي دعلي رضي الله عنه حديث حسن صحيح دي، او په دي باب كي د "ابن عمر، ابن عباس، ابن ابي اوفي، ابو جحيفه، ابوسعيد خدري رضي الله عنهم نه هم احاديث وارد دي، او داهل علمو په دي باندي عمل دي او په همدي باندي امام شافعي قول كړي دي چي مونځ فرضي وي او كه نفلي وي په دواړو كي به دا كلمات وائي او دبعضو اهل كوفه قول دي چي دا كلمات به صرف په نفلي مونځونو كي وائي او په فرضي مونځونو كي به يي نه وائي.

***************

## ٨٦_ بَاب مِنْهُ آخَرُ

### دسابقه باب متعلق يوبل باب دي

٢٦٧_ حَدَّثَنَا إِسْحَاقُ بْنُ مُوسَى الْأَنْصَارِيُّ، حَدَّثَنَا مَعْنٌ، حَدَّثَنَا مَالِكٌ، عَنْ سُمَيٍّ، عَنْ أَبِي صَالِحٍ، عَنْ أَبِي هُرَيْرَةَ، أَنَّ رَسُولَ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ، قَالَ: "إِذَا قَالَ الْإِمَامُ: سَمِعَ اللَّهُ لِمَنْ حَمِدَهُ، فَقُولُوا: رَبَّنَا وَلَكَ الْحَمْدُ، فَإِنَّهُ مَنْ وَافَقَ قَوْلُهُ قَوْلَ الْمَلَائِكَةِ غُفِرَ لَهُ مَا تَقَدَّمَ مِنْ ذَنْبِهِ" قَالَ أَبُو عِيسَى: هَذَا حَدِيثٌ حَسَنٌ صَحِيحٌ، وَالْعَمَلُ عَلَيْهِ عِنْدَ بَعْضِ أَهْلِ الْعِلْمِ مِنْ أَصْحَابِ النَّبِيِّ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ، وَمَنْ بَعْدَهُمْ أَنْ يَقُولَ الْإِمَامُ: سَمِعَ اللَّهُ لِمَنْ حَمِدَهُ رَبَّنَا وَلَكَ الْحَمْدُ، وَيَقُولُ مَنْ

---

[1] صحيح مسلم في المسافرين ٢٦ (٧٧١). سنن ابي داود في الصلاة ١٢١ (٧٦٠). (تحفة الأشراف: ١٠٢٢٨). مسند احمد (١/ ٩٥، ١٠٢). ويأتي عند المؤلف في الدعوات (٣٤٢١، ٣٤٢٢)

خَلْفَ الْإِمَامِ: رَبَّنَا وَلَكَ الْحَمْدُ. وَبِهِ يَقُولُ: أَحْمَدُ. وقَالَ ابْنُ سِيرِينَ: وَغَيْرُهُ يَقُولُ مَنْ خَلْفَ الْإِمَامِ: سَمِعَ اللَّهُ لِمَنْ حَمِدَهُ رَبَّنَا وَلَكَ الْحَمْدُ. مِثْلَ مَا يَقُولُ الْإِمَامُ. وَبِهِ يَقُولُ: الشَّافِعِيُّ. وَإِسْحَاقُ.[1]

**ترجمه**: دابوهريره رضي الله عنه نه روايت دي چي رسول الله صلي الله عليه وسلم فرمائيلي وو هر كله چي امام سمع الله لمن حمده اووائي نو تاسو ربنا ولك الحمد اووائي او دا څكه دچا قول چي دفرشتو دقول سره موافق شي نو دهغه سابقه ګناهونه به معاف شي.

امام ترمذي وائي دا حديث حسن صحيح دي، دصحابه كرامو او ددوئ نه پس خلقو كي دبعضي اهل علمو په دي باندي عمل دي چي امام كله سمع الله لمن حمده اووائي نو مقتدي به ربنا ولك الحمد وائي او همدا دامام احمد قول دي، او دابن سيرين وغيره قول دي څوك چي په امام پسي ولاړ وي هغه به هم سمع الله لمن حمده د ربنا ولك الحمد پشان وائي يعني دامام او مقتدي څه فرق نشته او همدا دامام شافعي او اسحاق بن راهويه (رحمهم الله)قول هم دي .

**تشريح**: (سمع الله لمن حمده) معنى ده (قبل الله حمد من حمده) يعنى څوك چى د الله تعالى حمد وائى.الله تعالى دى دهغه حمد قبول كړى.حاصل دا چى تپوله د حمد قبوليت دعا ده.او د سماع لفظ د قبول په معنى كي هم استعمالولي شى.

په دى باره كي اختلاف دې چى امام به (ربنا لك الحمد) وائى كه نه. د امام ابو حنيفه رحمه الله قول دا دې چى امام به دا نه وائى(۲)او صاحبين وائى چى امام به هم په پټه دا وائى.

د صاحبينو اول دليل د ابوهريره(رضي الله عنه) حديث دې (كان النبي صلي الله عليه وسلم إذا قام إلى الصلاة يكبر حين يقوم ثم يكبر حين يركع ثم "يقول سمع الله لمن حمده" حين يرفع صلبه من الركوع ثم يقول وهو قائم "ربنا ولك الحمد" ثم يكبر حين يهوى ساجداً الحديث) ابوهريره(رضي الله عنه) فرمائى چى رسول پاك صلي الله عليه وسلم به كله د مانځه اراده اوكړله.نوتكبير به ئې ونيلو.كله چى به اودريدلو.بيا چى كله به ئې ركوع كوله.نو تكبير به ئې ونيلو.بيا چى كله به ئې خپله شاه د ركوع نه پورته كوله.نو(سمع الله لمن حمده) به ئې ونيل او چى به اودريدلو.نو (ربناو لك الحمد) به ئې ونيل.بيا به ئې تكبير ونيل.كله چى به سجدي ته تيتيدلو(فتح القدير) ددى حديث نه معلومه شوه چى رسول پاك صلي الله عليه

[1] صحيح البخاري في الأذان ۱۲۴ (۷۹۵) . و۱۲۵ (۷۹٦) . وبدء الخلق ۷ (۳۲۲۸) . صحيح مسلم في الصلاة ۱۸ (۴۰۹) . سنن ابي داود في الصلاة ۱۴۴ (۸۴۸) . سنن النسائي في التطبيق ۲۳ (۱۰٦۳) . سنن ابن ماجه في الإقامة ۱۸ (۸۷٦) . (تحفة الأشراف: ۱۲۵٦۸) . موطا امام مالک في الصلاة ۱۱ (۴۷) . مسند احمد (۲ في ۲۳٦، ۲۷۰، ۳۰۰، ۳۱۹، ۳۵۲، ۳۹۷، ۵۰۲، ۵۲۷، ۵۳۳)

وسلم به دواړه ذكرونه (سمع الله لمن حمده ربنا لك الحمد) جمع كول.او دوی به عام طور امامت كولو.نو ثابته شوه چی امام به دواړه ذكرونه جمع كوی(۲)دويم دليل دا دې چی امام (سمع الله لمن حمده)اووائی.نو په دی نورو ته ترغيب وركوی.نو خپل ځان دی هم نه هيروی.يعنی كله چی امام اووائی چی چا د الله تعالى حمد اوكړو.نو الله تعالى د هغه تعريف اوری.د ده مقصود دا دې چی دا خامخا كوئ.اوپه خپله دی هم وائی.اوخپل ځان دی نه محرومه كوی.ګنی د: اتامرون الناس بالبر وتنسون انفسكم په وعيد كي به راشی.

دابو حنيفه رحمه الله يودليل د رسول پاك صلي الله عليه وسلم قول (إذا قال الإمام سمع الله لمن حمده فقولوا ربنا لك الحمد) دې.وجه د استدلال دا ده چی رسول پاك صلي الله عليه وسلم د امام او مقتدی په مينځ كي تقسيم كړې دې.فرمائيلی ئې دی چی امام دی تسميع وائی.او مقتدی دی تحميد.او تقسيم د شركت منافی دې. پدی وجه به امام د مقتديانو سره په تحميد كي نه شريكيږی.هم دا وجه ده چی زمونږ په نزد به مقتدی سمع الله لمن حمده نه وائی.اګرچی د امام شافعی اختلاف په كي شته(۲)دويم دليل دا دې چی كه امام (ربنا لك الحمد) اووائی.نو دده دا تحميد به يقيناً د مقتدی د تحميد نه پس واقع كيږی.ځكه چی مقتدی (ربنا لك الحمد) په هغه وخت كي وائی.كله چی امام (سمع الله لمن حمده) اووائی.نوپه دی صورت كي بيشكه د امام (ربنا لك الحمد) وئيل د مقتدی د (ربنا لك الحمد) وئيلو نه پس واقع كيږی.اودا د امامت د موضوع نه خلاف ده.ځكه چی امام ته اول وئيل پكار وو.او مقتدی ته روستو.اودلته معامله بر عكس شوه.

د صاحبينو د پيش كړی د ابوهريره(رضي الله عنه) د حديث جواب دا دې چی دا حديث په حالت دانفراد باندې محمول دې.

او د اصح قول مطابق د منفرد حكم هم دا دې چی هغه به (سمع الله لمن حمده)باندې اكتفاء كوی(۲) دويم قول دا دې چی دی به صرف په (ربنا لك الحمد) باندې اكتفاء كوی.

داول قول وجه دا ده چی امام صرف په (سمع الله لمن حمده)باندې اكتفاء كوی.او منفرد هم په خپل حق كي امام دې.ځكه چی لكه څنګه په امام باندې قراءت واجب دې.نو دغه شان په منفرد باندې هم قراءت واجب دې.د دويم روايت وجه دا ده چی منفرد كه دواړه ذكرونه يعنی تسميع او تحميد جمع كړی.نو تحميد . به د اعتدال يعنی قومۀ په حالت كي واقع شی.حالانكه د يو حالت نه بل حالت ته د منتقل كيدو په وخت كي مسنون ذكر مشروع نه دې.لكه د دوو سجدو په مينځ كي د قعدۀ په حالت كي چی مسنون ذكر نشته(۱) نوځكه

ونیلی شوی دی چی منفرد به (سمع الله لمن حمده) نه وائی.بلکه صرف (ربنا لك الحمد) به وائی.
د دويم روايت تائيد ددی نه هم کیږی چی امام ابویوسف فرمائی چی ما د امام ابو حنيفه رحمه الله نه تپوس اوکړو چی کوم کس په فرض مونځ کي خپل سر د رکوع نه پورته کړی.نو آیا هغه (اللهم اغفرلی) ونیلی شی.نو دوی ورته اوفرمانیل چی (ربنا لك الحمد) دی وائی.او سکوت دی کوی.او دغه شان دي د دواړو سجدو په مینځ کي هم سکوت کوی.
د قول اصح دليل صحيح حديث دي چی رسول پاك صلي الله عليه وسلم به دواړه ذکرونه یعنی تسمیع او تحمید جمع کول دصاحبینو د عقلی دلیل جواب دادی چی کله امام (سمع الله لمن حمده)اووائی نو ده مقتدیان د (ربنا لك الحمد) ونیلو ته اماده کړل.نو د (الدال على الخير كفاعله) مطابق لکه چی امام (معنًى اوحکماً) د تحیمد ویونکی شو.نو خکه د: اتامرون الناس بالبر وتنسون انفسکم ، د وعید لاندي نه داخلیږی. (اشرف الهدايه)

****************

## ٨٧ـ بَاب مَا جَاءَ فِي وَضْعِ الرُّكْبَتَيْنِ قَبْلَ الْيَدَيْنِ فِي السُّجُودِ

### په سجده کي ددواړو لاسونو نه مخکي په زمکه دزنګنا نوايخودلو بيان

٢٦٨ـ حَدَّثَنَا سَلَمَةُ بْنُ شَبِيبٍ، وَعَبْدُ اللَّهِ بْنُ مُنِيرٍ، وَأَحْمَدُ بْنُ إِبْرَاهِيمَ الدَّوْرَقِيُّ، وَالْحَسَنُ بْنُ عَلِيٍّ الْحُلْوَانِيُّ، وَغَيْرُ وَاحِدٍ، قَالُوا: حَدَّثَنَا يَزِيدُ بْنُ هَارُونَ، أَخْبَرَنَا شَرِيكٌ، عَنْ عَاصِمِ بْنِ كُلَيْبٍ، عَنْ أَبِيهِ، عَنْ وَائِلِ بْنِ حُجْرٍ، قَالَ: "رَأَيْتُ رَسُولَ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ إِذَا سَجَدَ يَضَعُ رُكْبَتَيْهِ قَبْلَ يَدَيْهِ، وَإِذَا نَهَضَ رَفَعَ يَدَيْهِ قَبْلَ رُكْبَتَيْهِ". زَادَ الْحَسَنُ بْنُ عَلِيٍّ فِي حَدِيثِهِ: قَالَ يَزِيدُ بْنُ هَارُونَ: وَلَمْ يَرْوِ شَرِيكٌ، عَنْ عَاصِمِ بْنِ كُلَيْبٍ إِلَّا هَذَا الْحَدِيثَ. قَالَ أَبُو عِيسَى: هَذَا حَدِيثٌ حَسَنٌ غَرِيبٌ، لَا نَعْرِفُ أَحَدًا رَوَاهُ مِثْلَ هَذَا عَنْ شَرِيكٍ وَالْعَمَلُ عَلَيْهِ عِنْدَ أَكْثَرِ أَهْلِ الْعِلْمِ: يَرَوْنَ أَنْ يَضَعَ الرَّجُلُ رُكْبَتَيْهِ قَبْلَ يَدَيْهِ، وَإِذَا نَهَضَ رَفَعَ يَدَيْهِ قَبْلَ رُكْبَتَيْهِ. وَرَوَى هَمَّامٌ عَنْ عَاصِمٍ هَذَا مُرْسَلًا، وَلَمْ يَذْكُرْ فِيهِ وَائِلَ بْنَ حُجْرٍ. (1)

---

[1] سنن ابي داود في الصلاة ١٤١ (٨٣٨) . سنن النسائي في التطبيق ٣٨ (١٠٩٠) . سنن ابن ماجه في الإقامة ١٩ (٨٨٢) . و ٩٣ (١١٥٥) . (تحفة الأشراف : ١١٧٨)

**ترجمه** دوائل بن حجر نه مروي دي فرمائي چي مارسول الله صلي الله عليه وسلم ليدلي وو چي كله به يي سجده كوله نو خپل دواړه زنګنونه به يي دخپلو دواړو لاسونو نه په زمكه مخكي ايخودل او چي كله به پورته كيدو نو دواړه لاسونه به يي دزنګنونو نه مخكي پورته كول.

امام ترمذي وائي دا حديث حسن غريب دي مونږ ته نه ده معلومه چي بل چا دشريك نه داسي روايت نقل كړي وي، داكثرواهل علمو په دي باندي عمل دي او ددوئ رائي داده چي دلاسونو نه مخكي په زمكه دزنګنونو ايخودل پكار دي او په پورته كيدو كي دزنګنونو نه مخكي دلاسونو پورته كول پكار دي، مونږ دا روايت دعاصم نه مرسل نقل كړي دي په دي كي هغوئ دوائل بن حجر ذكر نه دي كړي.

**تشريح** : ترجمة الباب په دوه قسمه ذكر شوي دي (١) وضع اليدين قبل الركبتين، (٢) وضع الركبتين قبل اليدين. دزير بحث باب دروايت مطابق دويم ترجمة الباب دي.

په دي مسئله كي اختلاف دئ چي سجدي ته دتلو وخت كي به اول په زمكه لاسونه ايخودل كيږي او كه زنګونه په دي كي داهل علمو دوه مذاهب دي.

(١) دجمهورو اهل علمو په نزد زنګنونه ايخودل پكار دي او لاسونه وروسـتـي ايخودل پكار دي ځكه چي اصول دادي كوم اندام چي زمكي ته زيات نزدي وي هغه مخكي ايخودل پكار دي او زنګنونه دلاسونو په نسبت زيات نزدي دي.

(٢) دامام مالك په نزد مخكي دلاسونو ايخودل پكار دي او بيا دزنګونو او دليل يي په راتلونكي باب كي دابوهريره رضي الله عنه حديث دي چي نبي كريم سلي الله عليه وسلم فرمائيلي دي تاسو داوښ پشان كار مه كوئ ځكه چي اوښ اول په زمكه زنګونه ايږدي لهذا تاسو اول زنګنونه مه ايږدئ بلكه لاسونه په زمكه اول كيږدئ.

جواب: دا حكم په ابتداء كي وو او بيا منسوخ شو ددي تائيد دسعد بن ابي وقاص رضي الله عنه په روايت كي دي چي مونږ به اول لاسونه ايخودل او بيا به مو زنګنونه ايخودل مګر بيا مونږ ددينه منع كړي شو.

دويم جواب: داوښ مخكني ښپي دلاسونو قائم مقام وي مطلب دا شو چي داوښ پشان اول لاسونه مه ايږدئ بلكه اول زنګنونه او بيا لاسونه كيږدئ.

دريم جواب: دا روايت منقطع دي ځكه چي په دي كي ديو روايت محمد بن عبدالله سماع دابوالزناد نه ثابت نه ده.

څلورم جواب: داروايت په نورو سندونو هم منقول دي او په هغي كي يو راوي عبدالله بن سعيد دي او يحي بن سعيد القطان دهغه تضعيف كړي دي.

Scanned with C

****************

## ٨٨_ باب آخَرُ مِنْهُ

### دسابقه باب يو بل هم معني باب

٢٦٩_ حَدَّثَنَا قُتَيْبَةُ، حَدَّثَنَا عَبْدُ اللَّهِ بْنُ نَافِعٍ، عَنْ مُحَمَّدِ بْنِ عَبْدِ اللَّهِ بْنِ حَسَنٍ، عَنْ أَبِي الزِّنَادِ، عَنِ الأَعْرَجِ، عَنْ أَبِي هُرَيْرَةَ، أَنَّ النَّبِيَّ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ، قَالَ: "يَعْمِدُ أَحَدُكُمْ فَيَبْرُكُ فِي صَلَاتِهِ بَرْكَ الجَمَلِ". قَالَ أَبُو عِيسَى: حَدِيثُ أَبِي هُرَيْرَةَ حَدِيثٌ غَرِيبٌ لَا نَعْرِفُهُ مِنْ حَدِيثِ أَبِي الزِّنَادِ إِلَّا مِنْ هَذَا الوَجْهِ، وَقَدْ رُوِيَ هَذَا الحَدِيثُ، عَنْ عَبْدِ اللَّهِ بْنِ سَعِيدٍ المَقْبُرِيِّ، عَنْ أَبِيهِ، عَنْ أَبِي هُرَيْرَةَ، عَنِ النَّبِيِّ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ، وَعَبْدُ اللَّهِ بْنُ سَعِيدٍ المَقْبُرِيُّ، ضَعَّفَهُ يَحْيَى بْنُ سَعِيدٍ القَطَّانُ وَغَيْرُهُ. (١)

**ترجمه** : دابوهريره رضي الله عنه نه مروي دي چي نبي كريم صلي الله عليه وسلم فرمائيلي دي بعضي كسان په تاسو كي دا قصد كوي چي په مونځ كي داوبښ دناستي پشان كيني.
امام ترمذي وائي دابوهريره حديث غريب دي او مونږ ته دا ذابو الزناد دحديث په صفت صرف په همدي سند معلوم دي، دا حديث دعبدالله بن سعيد مقبري نه هم نقل كړي شوي دي هغه دخپل پلار نه نقل كړي دي او دهغه پلار دابوهريره نه او ابوهريره درسول الله صلي الله عليه وسلم نه نقل كړي دي، مګر يحي بن سعيد القطان وغيره دعبدالله بن سعيد مقبري تضعيف كړي دي

****************

## ٨٩_ باب مَا جَاءَ فِي السُّجُودِ عَلَى الجَبْهَةِ وَالأَنْفِ

### په پوزه او په تندي دسجدي كولو بيان

٢٧٠_ حَدَّثَنَا مُحَمَّدُ بْنُ بَشَّارٍ بُنْدَارٌ، حَدَّثَنَا أَبُو عَامِرٍ العَقَدِيُّ، حَدَّثَنَا فُلَيْحُ بْنُ سُلَيْمَانَ، حَدَّثَنِي عَبَّاسُ بْنُ سَهْلٍ، عَنْ أَبِي حُمَيْدٍ السَّاعِدِيِّ، أَنَّ النَّبِيَّ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ كَانَ "إِذَا سَجَدَ أَمْكَنَ أَنْفَهُ وَجَبْهَتَهُ مِنَ الأَرْضِ، وَنَحَّى يَدَيْهِ عَنْ جَنْبَيْهِ، وَوَضَعَ كَفَّيْهِ حَذْوَ مَنْكِبَيْهِ" قَالَ: وَفِي البَاب عَنِ ابْنِ عَبَّاسٍ، وَوَائِلِ بْنِ حُجْرٍ، وَأَبِي سَعِيدٍ، قَالَ أَبُو عِيسَى: حَدِيثُ أَبِي حُمَيْدٍ حَدِيثٌ

---

[1] سنن ابي داود في الصلاة ١٣١ (٨٣٠) . سنن النسائي في التطبيق ٣٨ (١٠٩١) . (تحفة الأشراف : ١٣٨٦٦) . مسند احمد (٢ في ٣٩١) . سنن الدارمي في الصلاة ٧٤ (١٣٦٠)

حَسَنٌ صَحِيحٌ. وَالْعَمَلُ عَلَيْهِ عِنْدَ أَهْلِ الْعِلْمِ أَنْ يَسْجُدَ الرَّجُلُ عَلَى جَبْهَتِهِ وَأَنْفِهِ. فَإِنْ سَجَدَ عَلَى جَبْهَتِهِ دُونَ أَنْفِهِ. فَقَدْ قَالَ قَوْمٌ مِنْ أَهْلِ الْعِلْمِ: يُجْزِئُهُ. وَقَالَ غَيْرُهُمْ: لَا يُجْزِئُهُ حَتَّى يَسْجُدَ عَلَى الْجَبْهَةِ وَالْأَنْفِ. (1)

**ترجمه** دابوحميد الساعدي رضي الله عنه نه روايت دي فرمائي نبي كريم صلي الله عليه وسلم چي به كله سجده كوله نو خپله پوزه او تندي به يي په زمكه پوري بنه كلكولو او خپلي دواړه متي به يي دخپلو تشو نه جدا ساتلي او خپل دواړه ورغوي به يي داوگو سره برابرول.

امام ترمذي وائي دابوحميد حديث حسن صحيح دي، او په دي باب كي د ابن عباس، وائل بن حجر، او ابوسعيد خدري رضي الله عنهم نه هم احاديث وارد دي، او داهل علمو هم په دي باندي عمل دي چي په پوزه او په تندي سجده كول پكار دي او كه څوك په پوزه سجده اوكړي چي تندي بچ پاتي شي نو د بعضو اهل علمو قول دي چي دا به دده دپاره كافي وي او دبعضو قول دي چي كافي به نه وي چي څو پوري يي تندي او پوزه دواړه په زمكه ايخودلي نه وي.

**تشريح** : په دي مسئله داهل علمو اتفاق دي چي اعضاء دسجدي اوه دي، قدمين، ركبتين، يدين، او وجه، اختلاف په دي كي دي چي په انف او وجه كي په يو باندي اكتفاء جائز ده او كنه، دامام احمد په نزد باندي په يو اكتفاء كول جائز نه دي او دامام شافعي او امام مالك په نزد اكتفاء علي الانف جائز نه ده او دامام ابو حنيفه په نزد اكتفاء علي احدهما دعذر په وجه جائز دي.

## دابو حميد ثابت بن انس رضي الله عنه حالات

نوم ثابت كنيه ابو حميد دتابعينو دجملي نه دی امام ذهبي حجت او امام كنړلی دی دی دزهد او تقوي او عبادت په وجه پخپله زمانه كي ډير مشهور وو دانس رضي الله عنه بيان دی دهر يو څيز يوه چابي وي او ثابت دخيرچابي ده تهذيب التهذيب.

دبكر بن عبدالله بيان دی كه څوك په دنيا كي لوي عابد ليدل غواړي نو ثابت دي اووينې (تذكرة الحفاظ).

په يوه شپه او ورخ كي به يي قران ختمولو دانس رضي الله عنه خاص شاگرد وو دابن مدائيني قول دی چي دده درواياتو شمير دوه نيم سوه دی (تهذيب التهذيب).

دوفات كيدو په وخت كي دده عمر داتيا كالو نه زيات وو (تذكرة الحفاظ).

---

1 سنن ابي داود في الصلاة ۱۴۱ (۸۴۰) . سنن النسائي في التطبيق ۳۸ (۱۰۹۱) . (تحفة الأشراف : ۱۳۸۶۶) . مسند احمد (۲ في ۲۹۱) . سنن الدارمي في الصلاة ۷۴ (۱۳۶۰)

*******************

## ٩٠_ بابُ مَا جَاءَ أَيْنَ يَضَعُ الرَّجُلُ وَجْهَهُ إِذَا سَجَدَ

### كه څوك سجده كوي نو تندي به چرته ايږدي

٢٧١_حَدَّثَنَا قُتَيْبَةُ. حَدَّثَنَا حَفْصُ بْنُ غِيَاثٍ، عَنْ الحَجَّاجِ، عَنْ أَبِي إِسْحَاقَ، قَالَ: قُلْتُ لِلْبَرَاءِ بْنِ عَازِبٍ: " أَيْنَ كَانَ النَّبِيُّ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ يَضَعُ وَجْهَهُ إِذَا سَجَدَ ؟ فَقَالَ: بَيْنَ كَفَّيْهِ ". وَفِي البَابِ عَنْ وَائِلِ بْنِ حُجْرٍ، وَأَبِي حُمَيْدٍ، قَالَ أَبُو عِيسَى: حَدِيثُ البَرَاءِ حَدِيثٌ حَسَنٌ صَحِيحٌ غَرِيبٌ، وَهُوَ الَّذِي اخْتَارَهُ بَعْضُ أَهْلِ العِلْمِ أَنْ تَكُونَ يَدَاهُ قَرِيبًا مِنْ أُذُنَيْهِ. ([1])

**ترجمه**: دابو اسحاق سبيعي نه روايت دي فرمائي چي دبراء بن عازب رضي الله عنه نه مي تپوس اوكړو نبي كريم صلي الله عليه وسلم چي به كله سجده كوله نو خپل مخ مبارك به يي چرته ايخودلو، هغه په جواب كي اوونيل دخپلو دواړو ورغوو په مينځ كي.

امام ترمذي وائي حديث دبراء حسن صحيح غريب دي، او په دي باب كي دوائل بن حجر او ابوحميد نه هم احاديث وارد دي او په همدي باندي اهل علمو عمل اختيار كړي وو چي تندي ددواړو ورغوو مينځ كي ايخودل پكار دي.

*******************

## ٩١_ بابُ مَا جَاءَ فِي السُّجُودِ عَلَى سَبْعَةِ أَعْضَاءٍ

### په اوه اندومونو دسجدي كولو بيان

٢٧٢_ حَدَّثَنَا قُتَيْبَةُ، حَدَّثَنَا بَكْرُ بْنُ مُضَرَ، عَنْ ابْنِ الهَادِ، عَنْ مُحَمَّدِ بْنِ إِبْرَاهِيمَ، عَنْ عَامِرِ بْنِ سَعْدِ بْنِ أَبِي وَقَّاصٍ، عَنْ العَبَّاسِ بْنِ عَبْدِ المُطَّلِبِ، أَنَّهُ سَمِعَ رَسُولَ اللَّهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ، يَقُولُ: " إِذَا سَجَدَ العَبْدُ سَجَدَ مَعَهُ سَبْعَةُ آرَابٍ، وَجْهُهُ وَكَفَّاهُ وَرُكْبَتَاهُ وَقَدَمَاهُ " قَالَ: وَفِي البَابِ عَنْ ابْنِ عَبَّاسٍ، وَأَبِي هُرَيْرَةَ، وَجَابِرٍ، وَأَبِي سَعِيدٍ، قَالَ أَبُو عِيسَى: حَدِيثُ العَبَّاسِ حَدِيثٌ حَسَنٌ صَحِيحٌ وَعَلَيْهِ العَمَلُ عِنْدَ أَهْلِ العِلْمِ. ([2])

---

[1] تفرد به المؤلف (تحفة الأشراف : ١٨٢٨)

[2] صحيح مسلم في الصلاة ٤٤ (٤٩١) سنن ابي داود في الصلاة ١٥٥ (٨٩١) سنن النسائي في التطبيق ٤١ (١٠٩٥) و٤٦ (١٠٩٨) سنن ابن ماجه في الإقامة ١٩ (٨٨٥) (تحفة الأشراف : ٥١٢٦) مسند احمد (١/ ٢٠٦، ٢٠٨)

Scanned with C

**ترجمه** : دعباس بن عبدالمطلب رضي الله عنه نه مروي دي فرمائي چي درسول الله صلي الله عليه وسلم نه مې اوريدلي دي چي بنده كله سجده كوي نو دده اوه جوړونه دي هم سجده اوكړي يعني مخ دواړه ورغوي او دواړه زنګنونه او دواړه خپې
امام ترمذي وائي دعباس رضي الله عنه حديث حسن صحيح دي او په دي باب كي دابن عباس، ابوهريره، جابر، او ابو سعيد خدري رضي الله عنهم نه هم احاديث وارد دي او په همدي داهل علمو عمل دي.

**دعباس بن عبدالمطلب رضي الله عنه حالات**

عباس رضي الله عنه درسول الله صلي الله عليه وسلم سكه تره دى او دى درسول الله نه دوه يا دري كاله مشردى الله تعالي ورته دجاهليت په زمانه كي هم ډير شرف او عزت وركړى وو او داسلام قبلولونه پس هم ډير معزز وو دجاهليت په زمانه كي ورته حاجيانو ته داوبو وركولو خدمت سپارلى شوى دى او داسلام قبلولو نه پس هم رسول الله پخپل كار قائم پريخودو په غزوه بدر كي خو درسول الله په خلاف دمشركينو سره راغلى وو ليكن وروسته مسلمان شو او په غزوه حنين وغيره كي يي درسول الله سره ملګرتيا وكړه يو وخت داسي وو چي ټول خلق تختيدلي وو او دى درسول الله صلي الله عليه وسلم سره كلك ولاړ وو.
په مدينه كي درجب په مياشت كي په هجري ۳۴كال وفات شو او دوفات په وخت كي دده عمر اتيا يا نهه اتيا كاله وو او عثمان رضي الله عنه ورباندي جنازه اوكړه او په جنة البقيع كي دفن كړى شو ۳۵روايات ورنه منقول دي چي يو په دوئ كي متفق عليه دي يو صرف په بخاري كي دي او دري صرف په مسلم كي دي.

****************

۲۷۳_ حَدَّثَنَا قُتَيْبَةُ، حَدَّثَنَا حَمَّادُ بْنُ زَيْدٍ، عَنْ عَمْرِو بْنِ دِينَارٍ، عَنْ طَاوُسٍ، عَنْ ابْنِ عَبَّاسٍ، قَالَ: " أُمِرَ النَّبِيُّ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ أَنْ يَسْجُدَ عَلَى سَبْعَةِ أَعْظُمٍ وَلَا يَكُفَّ شَعْرَهُ وَلَا ثِيَابَهُ ". قَالَ أَبُو عِيسَى: هَذَا حَدِيثٌ حَسَنٌ صَحِيحٌ. (۱)

**ترجمه** : دابن عباس رضي الله عنهما نه مروي دي چې نبي كريم صلي الله عليه وسلم ته حكم شوي دي چې په اوه اندامونو به سجده كوي او په ځان پوري به ويښته او جامې نه راجوختوي امام ترمذي وائي دا حديث حسن صحيح دي.

**تشريح** : همدا وجه ده چې امام احمد د "امر" لفظ نه استدلال كړي دي چې په سجده كي دمذكوره اوه اندامونو لګيدل په زمكه ضروري دي او كه په دوئ كي يو اندام هم اونه لګيدو نو مونځ به باطل شي ليكن جمهور علماء وائي سجده دانتهائي تذلل يعني داخري درجه عاجزئ نوم دي او ددي حقيقت دادي چې طرف اعلي يعني سر صرف طرف اسفل يعني خپو ته راورلي شي دا هم كافي دي.

***************

## ٩٢_ بَاب مَا جَاءَ فِي التَّجَافِي فِي السُّجُودِ

### په سجده كي دتشو نه د دوارو متوجدا ساتلو بيان

### د ښځې د سجدې طريقه

ښځه دي د سجدي كولو په وخت كي راغونډه شي.يعني زمكي ته دي نزدي ښي.او خيټه دي د پتونانو سره جوخته كړي.دليل دا دې چې په دې كيفيت باندې سجده كولو كي د ښځي په حق كي زياته پرده ده.حالانكه د ښځي په حق كي پرده مطلوب هم ده

٢٧٤_ حَدَّثَنَا أَبُو كُرَيْبٍ، حَدَّثَنَا أَبُو خَالِدٍ الأَحْمَرُ، عَنْ دَاوُدَ بْنِ قَيْسٍ، عَنْ عُبَيْدِ اللَّهِ بْنِ عَبْدِ اللَّهِ بْنِ الأَقْرَمِ الخُزَاعِيِّ، عَنْ أَبِيهِ، قَالَ: كُنْتُ مَعَ أَبِي بِالقَاعِ مِنْ نَمِرَةَ فَمَرَّتْ رَكَبَةٌ، فَإِذَا رَسُولُ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ " قَائِمٌ يُصَلِّي قَالَ: فَكُنْتُ أَنْظُرُ إِلَى عُفْرَتَيْ إِبْطَيْهِ إِذَا سَجَدَ وأَرَىٰ بَيَاضِهِ " قَالَ: وَفِي البَابِ عَنْ ابْنِ عَبَّاسٍ، وَابْنِ بُحَيْنَةَ، وَجَابِرٍ، وَأَحْمَرَ بْنِ جَزْءٍ، وَمَيْمُونَةَ، وَأَبِي حُمَيْدٍ، وَأَبِي مَسْعُودٍ، وَأَبِي أُسَيْدٍ، وَسَهْلِ بْنِ سَعْدٍ، وَمُحَمَّدِ بْنِ مَسْلَمَةَ، وَالبَرَاءِ بْنِ عَازِبٍ، وَعَدِيِّ بْنِ عَمِيرَةَ، وَعَائِشَةَ. قَالَ أَبُو عِيسَى: وَأَحْمَرُ بْنُ جَزْءٍ هَذَا رَجُلٌ مِنْ أَصْحَابِ النَّبِيِّ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ لَهُ حَدِيثٌ وَاحِدٌ، قَالَ أَبُو عِيسَى: حَدِيثُ عَبْدِ اللَّهِ بْنِ أَقْرَمَ حَدِيثٌ حَسَنٌ. لَا نَعْرِفُهُ إِلَّا مِنْ حَدِيثِ دَاوُدَ بْنِ قَيْسٍ، وَلَا نَعْرِفُ لِعَبْدِ اللَّهِ بْنِ أَقْرَمَ الخُزَاعِيِّ، عَنِ النَّبِيِّ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ غَيْرَ هَذَا الحَدِيثِ، وَالعَمَلُ

Scanned with C

عَلَيْهِ عِنْدَ أَكْثَرِ أَهْلِ الْعِلْمِ مِنْ أَصْحَابِ النَّبِيِّ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ. وَقَالَ: عَبْدُ اللهِ بْنُ أَرْقَمَ الزُّهْرِيُّ صَاحِبُ النَّبِيِّ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ وَهُوَ كَاتِبُ أَبِي بَكْرٍ الصِّدِّيقِ. [1]

**ترجمه** عبيدالله بن عبدالله دخپل پلار نه روايت کوي فرماني چي زه دخپل پلار سره په نمره مقام کي موجود وم او څه کسان په رسول الله صلي الله عليه وسلم باندي په داسي حال کي تير شول چي هغه په مونځ ولاړ وو کله چي به رسول الله صلي الله عليه وسلم سجده کوله نو ما به دهغه دترخونو سپين والي ليدلو امام ترمذي واني دعبدالله بن اقرم حديث حسن دي دا مونږ ته صرف د داود بن قيس په سند رارسيدلي دي او عبدالله بن اقرم خزاعي ددينه علاوه کوم بل حديث چي هغه د رسول الله نه نقل کړي وي مونږ ته معلوم نه دي په صحابه کرامو کي داکثرو په دي باندي عمل دي او عبدالله بن ارقم دصحابه کرامو دجملي نه دي او دي دابوبکر رضي الله عنه منشي وو، په دي باب کي د ابن عباس، ابن بحينه، جابر، احمر بن جزئ، ميمونه ابوقتاده، ابو مسعود، ابو اسيد، سهل بن سعد، محمد بن مسلمه، براء بن عازب، عدي بن عميره، او عائشه رضي الله عنهم نه هم احاديث وارد دي، احمر بن جزء د رسول الله په صحابه کرامو کي يو کس دي او دده نه صرف يو حديث مروي دي.

***************

## ٩٣_ باب مَا جَاءَ فِي الِاعْتِدَالِ فِي السُّجُودِ

### په سجده کي داعتدال بيان

٢٧٥_ حَدَّثَنَا هَنَّادٌ، حَدَّثَنَا أَبُو مُعَاوِيَةَ، عَنِ الأَعْمَشِ، عَنْ أَبِي سُفْيَانَ، عَنْ جَابِرٍ، أَنَّ النَّبِيَّ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ، قَالَ: "إِذَا سَجَدَ أَحَدُكُمْ فَلْيَعْتَدِلْ وَلَا يَفْتَرِشْ ذِرَاعَيْهِ افْتِرَاشَ الْكَلْبِ". قَالَ: وَفِي الْبَاب عَنْ عَبْدِ الرَّحْمَنِ بْنِ شِبْلٍ، وَأَنَسٍ، وَالْبَرَاءِ، وَأَبِي حُمَيْدٍ، وَعَائِشَةَ. قَالَ أَبُو عِيسَى: حَدِيثُ جَابِرٍ حَدِيثٌ حَسَنٌ صَحِيحٌ، وَالْعَمَلُ عَلَيْهِ عِنْدَ أَهْلِ الْعِلْمِ يَخْتَارُونَ الِاعْتِدَالَ فِي السُّجُودِ وَيَكْرَهُونَ الِافْتِرَاشَ كَافْتِرَاشِ السَّبُعِ. [2]

---

[1] سنن النسائي في التطبيق ٥١ (١١٠٩) . سنن ابن ماجه في الإقامة ١٩ (٨٨١) . (تحفة الأشراف : ٥١٣٢) . مسند احمد بن حنبل (٣/ ٣٥)

[2] سنن ابن ماجه في الإقامة ٢١ (٨٩١) . (تحفة الأشراف : ٢٣١١) . مسند احمد (٣/ ٣٠٥، ٣١٥، ٣٨٩)

Scanned with C

**ترجمه** دجابر بن عبدالله رضي الله عنهما نه روايت دي چي رسول الله صلي الله عليه وسلم فرمائيلي دي كله چي په تاسو كي څوك سجده كوي نو اعتدال دي كوي او لاسونه دي دسپي پشان نه غوړوي.
امام ترمذي وائي دجابر حديث حسن صحيح دي او په دي باب كي دعبدالرحمن بن شبل ، انس، براء، ابوحميد ، او عائشه رضي الله عنهم نه هم احاديث وارد دي. او په همدي داهل علمو عمل دي چي هغوئ په سجده كي اعتدال كول خوښوي پاتي شول لاسونه دځناورو پشان غوړول نو دا كار يي مكروه ګڼړلي دي.
**حل لغات** : افتراش مصدر د باب افتعال دي اصل ماده يي فرش ده معني غوړول دي.

****************

٢٧٦_ حَدَّثَنَا مَحْمُودُ بْنُ غَيْلَانَ، حَدَّثَنَا أَبُو دَاوُدَ، أَخْبَرَنَا شُعْبَةُ، عَنْ قَتَادَةَ، قَالَ: سَمِعْتُ أَنَسًا، يَقُولُ: إِنَّ رَسُولَ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ، قَالَ: "اعْتَدِلُوا فِي السُّجُودِ وَلَا يَبْسُطَنَّ أَحَدُكُمْ ذِرَاعَيْهِ فِي الصَّلَاةِ بَسْطَ الْكَلْبِ" قَالَ أَبُو عِيسَى: هَذَا حَدِيثٌ حَسَنٌ صَحِيحٌ. [1]
**ترجمه** : انس رضي الله عنه نه روايت دي چي رسول الله صلي الله عليه وسلم فرمائيلي دي كله چي په تاسو كي څوك سجده كوي نو اعتدال دي كوي او لاسونه دي دسپي پشان نه غوړوي.
امام ترمذي وائي دجابر حديث حسن صحيح دي.
**حل لغات** : اعتدلوا: اعتدال كوئ يعني ميانه روي اختياروئ امر حاضر د باب افتعال دى

****************

## ٩٤_بَاب مَا جَاءَ فِي وَضْعِ الْيَدَيْنِ وَنَصْبِ الْقَدَمَيْنِ فِي السُّجُودِ

**په سجده كي ددواړو لاسونو په زمكي ايخودلو او ددواړو خپو اودرولو بيان**

٢٧٧_ حَدَّثَنَا عَبْدُ اللهِ بْنُ عَبْدِ الرَّحْمَنِ، أَخْبَرَنَا مُعَلَّى بْنُ أَسَدٍ، حَدَّثَنَا وُهَيْبٌ، عَنْ مُحَمَّدِ بْنِ عَجْلَانَ، عَنْ مُحَمَّدِ بْنِ إِبْرَاهِيمَ، عَنْ عَامِرِ بْنِ سَعْدِ بْنِ أَبِي وَقَّاصٍ، عَنْ أَبِيهِ، أَنَّ النَّبِيَّ صَلَّى اللهُ

[1] صحيح البخارى في المواقيت ٨ (٥٣٢) ، والأذان ١٣١ (٨٢٢) . صحيح مسلم في الصلاة ٣٥ (٤٩٣) . سنن ابى داود في الصلاة ١٥٨ (٨٩٧) . سنن النسائي في الافتتاح ٨٩ (١٠٢٩) . والتطبيق ٥٠ (١١٠٣) ، و٥٣ (١١١١) . سنن ابن ماجه في الإقامة ٢١ (٨٩٢) . (تحفة الأشراف : ١٢٣٧) . مسند احمد (٣ في ١٠٩ . ١١٥ . ١٧٧ . ١٧٩ . ١٩١ . ٢٠٢ . ٢١٤ . ٢٣١ . ٢٧٤ . ٢٧٩ . ٢٩١) . سنن الدارمى في الصلاة ٧٥ (١٣٦١)

عَلَيْهِ وَسَلَّمَ " أَمَرَ بِوَضْعِ الْيَدَيْنِ وَنَصْبِ الْقَدَمَيْنِ ". قَالَ عَبْدُ اللهِ: وَقَالَ مُعَلَّى بْنُ أَسَدٍ: حَدَّثَنَا حَمَّادُ بْنُ مَسْعَدَةَ، عَنْ مُحَمَّدِ بْنِ عَجْلَانَ، عَنْ مُحَمَّدِ بْنِ إِبْرَاهِيمَ، عَنْ عَامِرِ بْنِ سَعْدٍ، أَنَّ النَّبِيَّ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ أَمَرَ " بِوَضْعِ الْيَدَيْنِ " فَذَكَرَ نَحْوَهُ وَلَمْ يَذْكُرْ فِيهِ عَنْ أَبِيهِ. ([1])

**ترجمه** دسعد بن ابي وقاص رضي الله عنه نه روايت دي چي نبي كريم صلي الله عليه وسلم په سجده كي په زمكه ددواړو لاسونو ايخودلو او ددواړو خپو داودرولو حكم كړي دي او باقي حديث يي دسابقه حديث پشان ذكر كړو او په دي كي يي عن ابيه لفظ نه دي ذكر كړي

***************

۲۷۸_ قَالَ أَبُو عِيسَى: وَرَوَى يَحْيَى بْنُ سَعِيدٍ الْقَطَّانُ، وَغَيْرُ وَاحِدٍ، عَنْ مُحَمَّدِ بْنِ عَجْلَانَ، عَنْ مُحَمَّدِ بْنِ إِبْرَاهِيمَ، عَنْ عَامِرِ بْنِ سَعْدٍ، أَنَّ النَّبِيَّ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ أَمَرَ " بِوَضْعِ الْيَدَيْنِ وَنَصْبِ الْقَدَمَيْنِ " مُرْسَلٌ وَهَذَا أَصَحُّ مِنْ حَدِيثِ وُهَيْبٍ، وَهُوَ الَّذِي أَجْمَعَ عَلَيْهِ أَهْلُ الْعِلْمِ وَاخْتَارُوهُ. ([2])

**ترجمه** دعامر بن سعد رضي الله عنه نه روايت دي چي نبي كريم صلي الله عليه وسلم په سجده كي په زمكه ددواړو لاسون ايخودلو حكم كړي دي او بيا راوي دماقبل پشان حديث ذكر كړو البته هغه په دي كي د عن ابيه ذكر نه دي كړي.

امام ترمذي وائي عامر بن سعد مرسلا روايت نقل كړي دي چي رسول الله په زمكه ددواړو لاسونو ايخودلو او ددواړو خپو اودرولو حكم كړي دي، دا مرسل روايت د وهيب دروايت نه زيات صحيح دي او په همدي داهل علمو اجماع ده او په همدي باندي اهل علمو عمل اختيار كړي دي

***************

## ۹۵_ بَاب مَا جَاءَ فِي إِقَامَةِ الصُّلْبِ إِذَا رَفَعَ رَأْسَهُ مِنَ الرُّكُوعِ وَالسُّجُودِ

**دركوع او سجدي نه دسر پورته كولو په وخت كي دملا نيغولو بيان**

[1] تفرد به المؤلف (تحفة الأشراف: ۳۸۸۷)

[2] تفرد به المؤلف (تحفة الأشراف: ۳۸۸۷)

٢٧٩_ حَدَّثَنَا أَحْمَدُ بْنُ مُحَمَّدِ بْنِ مُوسَى الْمَرْوَزِيُّ، أَخْبَرَنَا عَبْدُ اللهِ بْنُ الْمُبَارَكِ، أَخْبَرَنَا شُعْبَةُ، عَنِ الْحَكَمِ، عَنْ عَبْدِ الرَّحْمَنِ بْنِ أَبِي لَيْلَى، عَنِ الْبَرَاءِ بْنِ عَازِبٍ، قَالَ: كَانَتْ صَلَاةُ رَسُولِ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ "إِذَا رَكَعَ وَإِذَا رَفَعَ رَأْسَهُ مِنَ الرُّكُوعِ وَإِذَا سَجَدَ وَإِذَا رَفَعَ رَأْسَهُ مِنَ السُّجُودِ قَرِيبًا مِنَ السَّوَاءِ" قَالَ: وَفِي الْبَابِ عَنْ أَنَسٍ. [1]

**ترجمه** دبراء بن عازب رضي الله عنه نه روايت دي فرمائي کله چي به رسول الله صلي الله عليه وسلم رکوع کوله او چي کله به يي درکوع نه سر پورته کولو او چي کله به يي سجده کوله او چي کله به يي دسجدي نه سر پورته کولو نو مونځ به يي تقريبا برابر په برابر وو

امام ترمذي وائي په دي باب دانس رضي الله عنه نه هم حديث وارد دي

**تشريح** : مطلب دادي چي رسول الله صلي الله عليه وسلم په ارکان اربع کي به تناسب او برابري وو او دا به دقرائت په اعتبار سره وو دسحر په مونځ کي قرائت اوږد وي نو په دي وجه به يي ارکان اربعه هم اوږده وو او دماښام په مونځ کي قرائت مختصر وي نو په دي وجه به يي ارکان اربعه هم مختصر وي او په تهجدو کي قرائت اوږد وو چي په يو رکعات کي به سورة بقره ود او په دويم کي به سورة ال عمران وو نو په دي وجه به يي ارکان اربعه هم اوږده کول. چنانچي دعائشه رضي الله عنها بيان دي چي درسول الله صلي الله عليه وسلم رکوع او سجده به دپنځوس ايتونو په مقدار وه (متفق عليه).

*****************

٢٨٠_ حَدَّثَنَا مُحَمَّدُ بْنُ بَشَّارٍ، حَدَّثَنَا مُحَمَّدُ بْنُ جَعْفَرٍ، حَدَّثَنَا شُعْبَةُ، عَنِ الْحَكَمِ نَحْوَهُ. قَالَ أَبُو عِيسَى: حَدِيثُ الْبَرَاءِ حَدِيثٌ حَسَنٌ صَحِيحٌ، وَالْعَمَلُ عَلَيْهِ عِنْدَ أَهْلِ الْعِلْمِ. [2]

**ترجمه** : ددي سند سره هم دا حديث مروي دي امام ترمذي وائي دبراء رضي الله عنه حديث حسن صحيح دي او په همدي داهل علمو عمل دي.

---

[1] صحيح البخاري في الأذان ١٢١ (٧٩٢) ، و١٢٧ (٨٠١) ، و١٣٠ (٨٢٠) . صحيح مسلم في الصلاة ٣٨ (٤٧١) . سنن ابي داود في الصلاة ١٤٧ (٨٥٢) . سنن النسائي في التطبيق ٢٣ (١٠٦٦) ، و٨٩ (١١٤٧) . والسهو ٧٧ (١٣٣١) . (تحفة الأشراف : ١٧٨١) . مسند احمد (٤ في ٢٨٠، ٢٨٥، ٢٨٨) . سنن الدارمي في الصلاة ٨٠ (١٣٤٣)

[2] صحيح البخاري في الأذان ١٢١ (٧٩٢) ، و١٢٧ (٨٠١) ، و١٣٠ (٨٢٠) . صحيح مسلم في الصلاة ٣٨ (٤٧١) . سنن ابي داود في الصلاة ١٤٧ (٨٥٣) . سنن النسائي في التطبيق ٢٣ (١٠٦٦) ، و٨٩ (١١٤٧) . والسهو ٧٧ (١٣٣١) . (تحفة الأشراف : ١٧٨١) . مسند احمد (٤ في ٢٨٠، ٢٨٥، ٢٨٨) . سنن الدارمي في الصلاة ٨٠ (١٣٤٣)

****************

## ۹۶_ بَابُ مَا جَاءَ فِي كَرَاهِيَةِ أَنْ يُبَادَرَ الإِمَامُ بِالرُّكُوعِ وَالسُّجُودِ

### په ركوع او سجده كي دامام نه دمخكي كيدو دكراهت بيان

۲۸۱_ حَدَّثَنَا مُحَمَّدُ بْنُ بَشَّارٍ، حَدَّثَنَا عَبْدُ الرَّحْمَنِ بْنُ مَهْدِيٍّ، حَدَّثَنَا سُفْيَانُ، عَنْ أَبِي إِسْحَاقَ، عَنْ عَبْدِ اللَّهِ بْنِ يَزِيدَ، حَدَّثَنَا الْبَرَاءُ وَهُوَ غَيْرُ كَذُوبٍ، قَالَ: "كُنَّا إِذَا صَلَّيْنَا خَلْفَ رَسُولِ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ فَرَفَعَ رَأْسَهُ مِنَ الرُّكُوعِ لَمْ يَحْنِ رَجُلٌ مِنَّا ظَهْرَهُ حَتَّى يَسْجُدَ رَسُولُ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ فَنَسْجُدَ". قَالَ: وَفِي الْبَابِ عَنْ أَنَسٍ، وَمُعَاوِيَةَ، وَابْنِ مَسْعَدَةَ صَاحِبِ الْجُيُوشِ وَأَبِي هُرَيْرَةَ. قَالَ أَبُو عِيسَى: حَدِيثُ الْبَرَاءِ حَدِيثٌ حَسَنٌ صَحِيحٌ. وَبِهِ يَقُولُ: أَهْلُ الْعِلْمِ إِنَّ مَنْ خَلْفَ الْإِمَامِ إِنَّمَا يَتْبَعُونَ الْإِمَامَ فِيمَا يَصْنَعُ، لَا يَرْكَعُونَ إِلَّا بَعْدَ رُكُوعِهِ وَلَا يَرْفَعُونَ إِلَّا بَعْدَ رَفْعِهِ. لَا نَعْلَمُ بَيْنَهُمْ فِي ذَلِكَ اخْتِلَافًا. (۱)

**ترجمه**: دبراء بن عازب رضي الله عنه نه مروي دي فرمائي كله چي به مونږ رسول الله صلي الله عليه وسلم پسي مونځ كولو او چي كله به رسول الله دركوع نه سر پورته كولو نو په مونږ كي به هيڅوا خپله ملا دسجدي دپاره هغه وخته پوري نه ټيټوله ترڅو چي به رسول الله صلي الله عليه وسلم سجدي ته تلي نه وو رسول الله چي به سجدي ته لاړو نو مونږ به بيا سجده كوله.

امام ترمذي وائي دبراء رضي الله عنه حديث حسن صحيح دي او په دي باب كي د انس، معاويه، ابن مسعده صاحب جيوش، او ابوهريره رضي الله عنهم نه هم احاديث وارد دي او په همدي اهل علمو قول كړي دئ يعني څوك چي په امام پسي ولاړ وي هغه به په هغه ټولو امورو كي دامام پيروي كوي كوم امور چي امام اداكوي.

**تشريح**: يعني دا اركان دي دامام نه پس ادا كړي چي ركوع به هله كوي چي كله امام ركوع ته لاړ شي او دامام دسر پورته كولو نه پس به سر پورته كوي او مونږ په دي مسئله كي داهل علمو دهيڅوا اختلاف ليدلي نه دي.

****************

## ۹۷_ بَابُ مَا جَاءَ فِي كَرَاهِيَةِ الإِقْعَاءِ فِي السُّجُودِ

---

(۱) صحيح البخارى في الأذان ۵۲ (۶۹۰)، و۹۱ (۷۴۷)، و ۱۳۳ (۸۱۱). صحيح مسلم في الصلاة ۳۹ (۴۷۴). سنن ابي داود في الصلاة ۷۵ (۶۲۰). سنن النسائي في الإمامة ۳۸ (۸۳۰). (تحفة الأشراف: ۱۷۷۲). مسند احمد (۴ في ۲۹۲، ۳۰۰، ۳۰۴)

## ددوارو سجدو په مینځ کي داقعاء بیان

۲۸۲ـ حَدَّثَنَا عَبْدُ اللَّهِ بْنُ عَبْدِ الرَّحْمَنِ، أَخْبَرَنَا عُبَيْدُ اللَّهِ بْنُ مُوسَى، حَدَّثَنَا إِسْرَائِيلُ، عَنْ أَبِي إِسْحَاقَ، عَنِ الْحَارِثِ، عَنْ عَلِيٍّ، قَالَ: قَالَ لِي رَسُولُ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ: "يَا عَلِيُّ أُحِبُّ لَكَ مَا أُحِبُّ لِنَفْسِي وَأَكْرَهُ لَكَ مَا أَكْرَهُ لِنَفْسِي لَا تُقْعِ بَيْنَ السَّجْدَتَيْنِ". قَالَ أَبُو عِيسَى: هَذَا حَدِيثٌ لَا نَعْرِفُهُ مِنْ حَدِيثِ عَلِيٍّ إِلَّا مِنْ حَدِيثِ أَبِي إِسْحَاقَ، عَنِ الْحَارِثِ، عَنْ عَلِيٍّ، وَقَدْ ضَعَّفَ بَعْضُ أَهْلِ الْعِلْمِ الْحَارِثَ الأَعْوَرَ، وَالْعَمَلُ عَلَى هَذَا الْحَدِيثِ عِنْدَ أَكْثَرِ أَهْلِ الْعِلْمِ يَكْرَهُونَ الإِقْعَاءَ. قَالَ: وَفِي الْبَابِ عَنْ عَائِشَةَ، وَأَنَسٍ، وَأَبِي هُرَيْرَةَ. ([1])

**ترجمه** دعلي رضي الله عنه بیان دي فرماي چي رسول الله صلي الله علیه وسلم ماته اوفرمائیل اي علي زه ستا دپاره هغه شي خوښوم کوم چي زه دخان دپاره خوښوم او ستا دپاره هغه څیز نه خوښوم کوم چي دځان دپاره نه خوښوم او ته ددوارو سجدو په مینځ کي اقعاء مه کوه.

امام ترمذي وائي مونږ ته دا حدیث صرف دابواسحاق سبیعي په سند معلوم دي چي هغه دحارث نه او حارث دعلي نه نقل کړي دي، او بعضي اهل علمو دحارث الاعور تضعیف کړي دي، په دي باب کي د عائشه، انس، ابوهریره رضي الله عنهم نه هم احادیث وارد دي، او داکثرو اهل علمو هم په دي باندي عمل دي او هغوئ به اقعاء مکروه ګڼرله.

**تشریح**: "اقعاء" بغیر دعذر نه په پوندو کیناستلو ته اقعاء وئیلي شي او داسي ناسته خلاف اولي ده مګر دعذر په وجه جائز ده او دمعذور دپاره هم په قعده کي اقعاء کول پکار نه دي ځکه چي دمعذور دپاره شریعت متبادل لاره (تورك) تجویز کړي دي.

داقعاء دویم تفسیر دادي چي پندئ اودروي او دواړه متي په زمکه کیږدي او په کوناتو دسپي پشان کیني نو اقعاء په دي معني مکروه تحریمي ده.

***************

## ۹۸ـ باب مَا جَاءَ فِي الرُّخْصَةِ فِي الإِقْعَاءِ

### په کیناستلو کي داقعاء داجازت بیان

۲۸۳ـ حَدَّثَنَا يَحْيَى بْنُ مُوسَى، حَدَّثَنَا عَبْدُ الرَّزَّاقِ، أَخْبَرَنَا ابْنُ جُرَيْجٍ، أَخْبَرَنِي أَبُو الزُّبَيْرِ، أَنَّهُ سَمِعَ طَاوُسًا، يَقُولُ: قُلْنَا لِابْنِ عَبَّاسٍ فِي الإِقْعَاءِ عَلَى الْقَدَمَيْنِ، قَالَ: "هِيَ السُّنَّةُ". فَقُلْنَا: إِنَّا لَنَرَاهُ

---

[1] سنن ابن ماجه في إقامة الصلاة ۲۲ (۸۹۴). (تحفة الأشراف: ۱۰۰۴۱)

Scanned with C

جَفَاءً بِالرَّجُلِ، قَالَ: "بَلْ هِيَ سُنَّةُ نَبِيِّكُمْ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ". قَالَ أَبُو عِيسَى: هَذَا حَدِيثٌ حَسَنٌ صَحِيحٌ، وَقَدْ ذَهَبَ بَعْضُ أَهْلِ العِلْمِ إِلَى هَذَا الحَدِيثِ مِنْ أَصْحَابِ النَّبِيِّ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ. لَا يَرَوْنَ بِالإِقْعَاءِ بَأْسًا، وَهُوَ قَوْلُ بَعْضِ أَهْلِ مَكَّةَ مِنْ أَهْلِ الفِقْهِ وَالعِلْمِ. قَالَ: وَأَكْثَرُ أَهْلِ العِلْمِ يَكْرَهُونَ الإِقْعَاءَ بَيْنَ السَّجْدَتَيْنِ. ([1])

**ترجمه** دطاوس بيان دي چي مونږ دابن عباس رضي الله عنهما نه په دواړو پونډو دكيناستو باره كي تپوس اوكړو نو هغه اوونيل دا سنت دي مونږ ورته اوونيل مونږ ته خو دا جفا ښكاري ابن عباس اوونيل هرگز نه بلكه دا ستاسو دپيغمبر سنت دي.

امام ترمذي وائي دا حديث حسن صحيح دي، په صحابه كرامو كي بعضي اهل علمو دي طرف ته ذهاب كړي دي او هغوئ به په اقعاء كي څه خرج نه گنړلو دا دبعض اهل مكه قول دي ليكن اكثر اهل علم ددواړو سجدو په مينځ كي اقعاء كول نه خوښوي

**تشريح** : په دي باب كي چي كوم حديث دي ددينه داقعاء اجازت مستفاد كيږي او مصنف درخصت لفظ په ذريعه ددي خلاف اولي كيدو ته اشاره كړي ده ځكه چي په رخصت لفظ كي دكراهت تنزيهي مفهوم شامل دي يعني ددواړو سجدو په مينځ كي په پونډو كيناستل اگر چي جائز دي مگر خلاف اولي دي.

***************

## ۹۹_ باب مَا يَقُولُ بَيْنَ السَّجْدَتَيْنِ

### ددواړو سجدو مينځ كي كومه دعا وئيل پكار دي

۲۸٤_ حَدَّثَنَا سَلَمَةُ بْنُ شَبِيبٍ، حَدَّثَنَا زَيْدُ بْنُ حُبَابٍ، عَنْ كَامِلٍ أَبِي العَلَاءِ، عَنْ حَبِيبِ بْنِ أَبِي ثَابِتٍ، عن سَعِيدِ بْنِ جُبَيْرٍ، عَنْ ابْنِ عَبَّاسٍ، أَنَّ النَّبِيَّ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ كَانَ يَقُولُ بَيْنَ السَّجْدَتَيْنِ: "اللَّهُمَّ اغْفِرْ لِي وَارْحَمْنِي وَاجْبُرْنِي وَاهْدِنِي وَارْزُقْنِي". ([2])

**ترجمه** : دابن عباس رضي الله عنهما نه روايت دي چي نبي كريم صلي الله عليه وسلم به ددواړو سجدو مينځ كي دا دعا وئيله "اللهم اغفرلي وارحمني واجبرني واهدني وارزقني"

---

[1] صحيح مسلم في المساجد ۲ (۵۳٦) سنن ابي داود في الصلاة ۱۴۳ (۸۴۵). (تحفة الأشراف: ۵۷۵۳). مسند احمد (اني ۳۱۳)

[2] سنن ابي داود في الصلاة ۱۴۵ (۸۵۰). سنن ابن ماجه في الإقامة ۲۳ (۸۹۸). (تحفة الأشراف: ۵۴۷۵). مسند احمد (اني ۳۱۵، ۳۷۱)

يعني اي الله ماته مغفرت اوکړي او په ما رحم اوکړي او زما دنقصان تلافي اوکړي ماته هدايت اوکړي او ماته رزق راکړي.

*****************

٢٨٥_ حَدَّثَنَا الحَسَنُ بْنُ عَلِيٍّ الخَلَّالُ الحُلْوَانِيُّ، حَدَّثَنَا يَزِيدُ بْنُ هَارُونَ، عَنْ زَيْدِ بْنِ حُبَابٍ، عَنْ كَامِلٍ أَبِي العَلَاءِ نَحْوَهُ، قَالَ أَبُو عِيسَى: هَذَا حَدِيثٌ غَرِيبٌ، وَهَكَذَا رُوِيَ عَنْ عَلِيٍّ. وَبِهِ يَقُولُ الشَّافِعِيُّ وَأَحْمَدُ، وَإِسْحَاقُ يرون هذا جائزا في المكتوبة والتطوع، وروى بعضهم هذا الحديث عَنْ كَامِلٍ أَبِي العَلَاءِ مُرْسَلًا. (١)

**ترجمه**: په مذکوره سند باندې هم کامل دابوالعلاء نه ددې هم معنې روايت نقل کړې دې.
امام ترمذي وائي دا حديث غريب دې ددې يو هم معنې روايت دعلي رضي الله عنه نه هم مروي دې او بعضې علماؤ دکامل ابوالعلاء نه دا حديث مرسل نقل کړې دې دامام شافعي او احمد او اسحاق هم دا قول دې ددوئ رائې داده چې دا په نفلو او فرض دواړو کې جائز ده.

*****************

## ١٠٠_ باب مَا جَاءَ فِي الاِعْتِمَادِ فِي السُّجُودِ

### په دواړو سجدو کې دډډې وهلو بيان

٢٨٦_ حَدَّثَنَا قُتَيْبَةُ، حَدَّثَنَا اللَّيْثُ، عَنِ ابْنِ عَجْلَانَ، عَنْ سُمَيٍّ، عَنْ أَبِي صَالِحٍ، عَنْ أَبِي هُرَيْرَةَ، قَالَ: اشْتَكَى بَعْضُ أَصْحَابِ النَّبِيِّ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ إِلَى النَّبِيِّ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ مَشَقَّةَ السُّجُودِ عَلَيْهِمْ إِذَا تَفَرَّجُوا، فَقَالَ: " اسْتَعِينُوا بِالرُّكَبِ ". قَالَ أَبُو عِيسَى: هَذَا حَدِيثٌ غَرِيبٌ، لَا نَعْرِفُهُ مِنْ حَدِيثِ أَبِي صَالِحٍ، عَنْ أَبِي هُرَيْرَةَ، عَنِ النَّبِيِّ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ إِلَّا مِنْ هَذَا الوَجْهِ، مِنْ حَدِيثِ اللَّيْثِ، عَنِ ابْنِ عَجْلَانَ، وَقَدْ رَوَى هَذَا الحَدِيثَ سُفْيَانُ بْنُ عُيَيْنَةَ وَغَيْرُ وَاحِدٍ، عَنْ سُمَيٍّ، عَنِ النُّعْمَانِ بْنِ أَبِي عَيَّاشٍ، عَنِ النَّبِيِّ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ نَحْوَ هَذَا، وَكَأَنَّ رِوَايَةَ هَؤُلَاءِ أَصَحُّ مِنْ رِوَايَةِ اللَّيْثِ. (٢)

---

[1] سنن ابي داود في الصلاة ١٣٥ (٨٥٠). سنن ابن ماجه في الإقامة ٢٣ (٨٩٨). (تحفة الأشراف: ٥٤٢٥). مسند احمد (١/ في ٣١٥، ٣٧١)

[2] سنن ابي داود في الصلاة ١٥٩ (٩٠٢). (تحفة الأشراف: ١٢٥٨٠). مسند احمد (٢/ في ٣٤٠)

**ترجمه** : دابوهريره رضي الله عنه نه مروي دي چي بعضي صحابه کرامو رسول الله صلي الله عليه وسلم ته شکايت اوکړو دهغه مشقت نه کوم چي به دسجدو په وجه په دوئ باندي راتلو او دا به هغه وخت کي وو کله چي به دوئ خپنه دورنونو نه جداساتله نورسول الله صلي الله عليه وسلم ورته اوفرمائيل دزنگنونونه مدد اخلئ.

امام ترمذي وائي دا حديث غريب دي مونږ ته ابو صالح حديث بيان کړي دي کوم چي هغه دابوهريره نه او ابو هريره دنبي صلي الله عليه وسلم نه نقل کړي دي دا روايت ابو صالح صرف په دي سند نقل کړي دي او مونږ ته صرف په دي سند باندي معلوم دي مګر سفيان بن عيينه او بعضي نورو علماؤ دا حديث په سند د سمي عن النعمان بن ابي عياش عن النبي صلي الله عليه وسلم سره نقل کړي دي ددوئ روايت دليس دروايت په مقابله کي شايد زيات صحيح دي

****************

## ۱۰۱_ بَاب مَا جَاءَ كَيْفَ النُّهُوضُ مِنَ السُّجُودِ

### دسجدي نه به څنګه سر پورته کولي شي

۲۸۷_ حَدَّثَنَا عَلِيُّ بْنُ حُجْرٍ، أَخْبَرَنَا هُشَيْمٌ، عَنْ خَالِدٍ الْحَذَّاءِ، عَنْ أَبِي قِلَابَةَ، عَنْ مَالِكِ بْنِ الْحُوَيْرِثِ اللَّيْثِيِّ، أَنَّهُ رَأَى النَّبِيَّ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ "يُصَلِّي فَكَانَ إِذَا كَانَ فِي وِتْرٍ مِنْ صَلَاتِهِ لَمْ يَنْهَضْ حَتَّى يَسْتَوِيَ جَالِسًا". قَالَ أَبُو عِيسَى: حَدِيثُ مَالِكِ بْنِ الْحُوَيْرِثِ حَدِيثٌ حَسَنٌ صَحِيحٌ، وَالْعَمَلُ عَلَيْهِ عِنْدَ بَعْضِ أَهْلِ الْعِلْمِ، وَبِهِ يَقُولُ: إِسْحَاق وَبَعْضُ أَصْحَابِنَا، وَمَالِكٌ يُكْنَى أَبَا سُلَيْمَانَ. (1)

**ترجمه** دابواسحاق مالك بن حويرث رضي الله عنه نه روايت دي فرمائي چي ما رسول الله صلي الله عليه وسلم دمونځ کولو په حال کي ليدلي وو او دهغه مونځ داسي وو چي کله به يي طاق رکعت اداء کولو نو هغه وخته پوري به نه پورته کيدو ترڅو چي به ښه کيناستلي نه وو.

امام ترمذي وائي دمالك بن حويرث حديث حسن صحيح دي او دبعضي اهل علمو په دي باندي عمل دي او په دي باندي اسحاق بن راهويه او زمونږ بعضي علماؤ هم قول کړي دي.

**تشريح** : د سجدي کولو طريقه

---

[1] صحيح البخاري في الأذان ۳۵ (٦٧٧)، و۱۲۷ (۸۰۲)، و۱۲۲ (۸۲۳)، و۱۳۳ (۸۲۴)، سنن ابي داود في الصلاة ۱۸۲ (۸۴۲، ۸۴۳، ۸۴۴). (تحفة الأشراف: ۱۱۱۸۳)

Scanned with

دسجدي كيفيت دا دي چې دواړه لاسونه به په زمكه باندې تكيه كړي.او مخ به د دواړو تلو په مينځ كي او دواړه لاسونه غوږونو ته مخامخ كيږدي.

دليل ددي د وائل بن حجر. حديث دي

(۱) وائل (رضي الله عنه) د رسول الله صلي الله عليه وسلم د مونځ كيفيت بيانوي او فرمائي (فسجد وادعم على راحتيه ورفع عجيزته) يعنى رسول پاك صلي الله عليه وسلم سجده اوكړله.او دواړه تلي ئې په زمكه باندې كيخودل.او كوناتي ئې اوچت كړل.

(۲)اوهم د وائل بن حجر(رضي الله عنه) نه مروى دى (قال رمقت النبي صلي الله عليه وسلم فلما سجد وضع يديه حذاء أذنيه) فرمائى چې ما رسول الله صلي الله عليه وسلم ليدلي وو.كله چې به ئې سجده كوله.نو خپل دواړه لاسونه به ئې دواړو غوږونو ته مخامخ كيخودل.

(۳)دغه شان ابواسحاق وائى چې ما د براء بن عازب (رضي الله عنه) نه تپوس اوكړو(أين كان النبي صلي الله عليه وسلم يضع جبهته إذا صلى قال بين كفيه) يعنى ما د براء بن عازب (رضي الله عنه) نه تپوس اوكړو چې رسول الله به مونځ كولو.نو خپل مخ به ئې كوم خائې كيخودلو.نوهغوى اوفرمائى چې د دواړو تلو په مينځ كښې.

### د ابوسليمان مالك بن حويرث رضي الله عنه حالات

نوم مالك كنيه ابوسليمان دپلار نوم حويرث قبيله ليس، مالك درسول الله صلي الله عليه وسلم په خدمت كي حاضر شو او شل ورځي قيام يي اوكړو او بيا په بصره كي مقيم شو په ۹۴هجري په بصره كي وفات شو او ۱۵روايات ورنه مروي دي چي دوه په كي دي متفق عليه دي او يو صرف په بخاري كي دي .

***************

## ۱۰۲_ بَابُ مِنْهُ أَيْضًا

### دسجدي نه دسر پورته كولو متعلق يوبل باب

۲۸۸_ حَدَّثَنَا يَحْيَى بْنُ مُوسَى، حَدَّثَنَا أَبُو مُعَاوِيَةَ، حَدَّثَنَا خَالِدُ بْنُ إِلْيَاسَ، عَنْ صَالِحٍ مَوْلَى التَّوْءَمَةِ، عَنْ أَبِي هُرَيْرَةَ، قَالَ: "كَانَ النَّبِيُّ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ يَنْهَضُ فِي الصَّلَاةِ عَلَى صُدُورِ قَدَمَيْهِ" قَالَ أَبُو عِيسَى: حَدِيثُ أَبِي هُرَيْرَةَ عَلَيْهِ العَمَلُ عِنْدَ أَهْلِ العِلْمِ يَخْتَارُونَ أَنْ يَنْهَضَ الرَّجُلُ فِي

Scanned with C

الصَّلَاةِ عَلَى صُدُورِ قَدَمَيْهِ. وَخَالِدُ بْنُ إِلْيَاسَ هُوَ ضَعِيفٌ عِنْدَ أَهْلِ الْحَدِيثِ. قَالَ: وَيُقَالُ خَالِدُ بْنُ إِيَاسٍ أَيْضًا. وَصَالِحٌ مَوْلَى التَّوْءَمَةِ هُوَ صَالِحُ بْنُ أَبِي صَالِحٍ، وَأَبُو صَالِحٍ اسْمُهُ: نَبْهَانُ وَهُوَ مَدَنِيٌّ. (1)

**ترجمه** دابوهريره رضي الله عنه نه روايت دي چي نبي كريم صلي الله عليه وسلم به په مونځ كي ددوارو ځپو سرونه يعني ددوارو ځپو په ګوتو زور راوستلو او پوته كيدلو به.

امام ترمذي وائي داهل علمو په نزد دابوهريره رضي الله عنه حديث معمول بها دي. او خالد بن الياس دمحدثينو په نزد ضعيف دي هغه ته خالد بن اياس هم ونيلي شي. خلقو به دا خوښول چي سري به په مونځ كي دخپلو دوارو ځپو په پنجو زور راولي او بغير كيناستو به اودريږي.

***************

## ١٠٣_ باب مَا جَاءَ فِي التَّشَهُّدِ

### دتشهد بيان

٢٨٩_ حَدَّثَنَا يَعْقُوبُ بْنُ إِبْرَاهِيمَ الدَّوْرَقِيُّ، حَدَّثَنَا عُبَيْدُ اللَّهِ الأَشْجَعِيُّ، عَنْ سُفْيَانَ الثَّوْرِيِّ، عَنْ أَبِي إِسْحَاقَ، عَنِ الأَسْوَدِ بْنِ يَزِيدَ، عَنْ عَبْدِ اللَّهِ بْنِ مَسْعُودٍ، قَالَ: " عَلَّمَنَا رَسُولُ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ إِذَا قَعَدْنَا فِي الرَّكْعَتَيْنِ أَنْ نَقُولَ: التَّحِيَّاتُ لِلَّهِ، وَالصَّلَوَاتُ وَالطَّيِّبَاتُ، السَّلَامُ عَلَيْكَ أَيُّهَا النَّبِيُّ وَرَحْمَةُ اللَّهِ وَبَرَكَاتُهُ، السَّلَامُ عَلَيْنَا وَعَلَى عِبَادِ اللَّهِ الصَّالِحِينَ، أَشْهَدُ أَنْ لَا إِلَهَ إِلَّا اللَّهُ وَأَشْهَدُ أَنَّ مُحَمَّدًا عَبْدُهُ وَرَسُولُهُ " قَالَ: وَفِي الْبَاب عَنِ ابْنِ عُمَرَ، وَجَابِرٍ، وَأَبِي مُوسَى، وَعَائِشَةَ. قَالَ أَبُو عِيسَى: حَدِيثُ ابْنِ مَسْعُودٍ قَدْ رُوِيَ عَنْهُ مِنْ غَيْرِ وجه، وَهُوَ أَصَحُّ حَدِيثٍ رُوِيَ عَنِ النَّبِيِّ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ فِي التَّشَهُّدِ، وَالْعَمَلُ عَلَيْهِ عِنْدَ أَكْثَرِ أَهْلِ الْعِلْمِ مِنْ أَصْحَابِ النَّبِيِّ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ وَمَنْ بَعْدَهُمْ مِنَ التَّابِعِينَ، وَهُوَ قَوْلُ: سُفْيَانَ الثَّوْرِيِّ، وَابْنِ الْمُبَارَكِ، وَأَحْمَدَ، وَإِسْحَاقَ، حَدَّثَنَا أَحْمَدُ بْنُ مُحَمَّدِ بْنِ مُوسَى، أَخْبَرَنَا عَبْدُ اللَّهِ بْنُ الْمُبَارَكِ، عَنْ مَعْمَرٍ، عَنْ خُصَيْفٍ قَالَ: " رَأَيْتُ النَّبِيَّ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ فِي الْمَنَامِ فَقُلْتُ: يَا رَسُولَ اللَّهِ إِنَّ النَّاسَ قَدِ اخْتَلَفُوا فِي التَّشَهُّدِ، فَقَالَ: عَلَيْكَ بِتَشَهُّدِ ابْنِ مَسْعُودٍ. (2)

---

1 تفرد به المؤلف (تحفة الأشراف: ١٣٥٠٣)

2 صحيح البخاري في الأذان ١٤٨ (٨٣١)، و١٥٠ (٨٣٥)، والعمل في الصلاة ٤ (١٢٠٢)، والاستئذان ٣ (٦٢٣٠)، و٢٨ (٦٢٦٥)، والدعوات ١٧ (٦٣٢٨)، والتوحيد ٥ (٧٣٨١)، صحيح مسلم في الصلاة ١٦ (٤٠٢)، سنن ابي داود في الصلاة ١٨٢ (٩٦٨)، سنن

**ترجمه** دابن مسعود رضي الله عنه نه روايت دي فرمائي چي رسول الله صلي الله عليه وسلم مونږ ته تعليم راکړو چي کله تاسو ددوه رکعاتونو نه پس کينئ نو دا دعا به وائي:
التَّحِيَّاتُ لِلّٰهِ. وَالصَّلَوَاتُ وَالطَّيِّبَاتُ. السَّلَامُ عَلَيْكَ أَيُّهَا النَّبِيُّ وَرَحْمَةُ اللهِ وَبَرَكَاتُهُ. السَّلَامُ عَلَيْنَا وَعَلَى عِبَادِ اللهِ الصَّالِحِينَ. أَشْهَدُ أَنْ لَا إِلٰهَ إِلَّا اللهُ وَأَشْهَدُ أَنَّ مُحَمَّدًا عَبْدُهُ وَرَسُولُهُ
امام ترمذي وائي دعبدالله بن مسعود حديث په يو څو سندونو مروي دي او دا دټولو نه زيات صحيح دي کوم چي په تشهد کي دنبي کريم صلي الله عليه وسلم نه مروي دي، او په دي باب کي دابن عمر، جابر، ابو موسي، او عائشه رضي الله عنهم نه هم احاديث مروي دي دصحابه کرامو نه پس داکثرو تابعينو په دي باندي عمل دي او همدا دسفيان ثوري، ابن مبارك، احمد، او اسحاق قول هم دي، مونږ ته احمد بن موسي بيان کړي دي چي مونږ ته عبدالله بن مبارك خبر راکړي دي او هغه ته معمرو خبر ورکړي دي او هغه دخصيف نه نقل کوي خصيف رضي الله عنه وائي چي ما نبي کريم صلي الله عليه وسلم په خوب کي اوليدو او عرض مي اوکړو چي اي دالله رسوله خلقو دتشهد په سلسله کي اختلاف شروع کړي دي نو راته يي اوفرمائيل په تا باندي دابن مسعود تشهد لازم دي.

****************

## ١٠٤_ باب مِنْهُ أَيْضًا

### دتشهد متعلق يوبل باب

٢٩٠_ حَدَّثَنَا قُتَيْبَةُ. حَدَّثَنَا اللَّيْثُ. عَنْ أَبِي الزُّبَيْرِ. عَنْ سَعِيدِ بْنِ جُبَيْرٍ وَطَاوُسٍ. عَنْ ابْنِ عَبَّاسٍ قَالَ: "كَانَ رَسُولُ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ يُعَلِّمُنَا التَّشَهُّدَ كَمَا يُعَلِّمُنَا الْقُرْآنَ. فَكَانَ يَقُولُ: التَّحِيَّاتُ الْمُبَارَكَاتُ الصَّلَوَاتُ الطَّيِّبَاتُ لِلّٰهِ. سَلَامٌ عَلَيْكَ أَيُّهَا النَّبِيُّ وَرَحْمَةُ اللهِ وَبَرَكَاتُهُ. سَلَامٌ عَلَيْنَا وَعَلَى عِبَادِ اللهِ الصَّالِحِينَ. أَشْهَدُ أَنْ لَا إِلٰهَ إِلَّا اللهُ وَأَشْهَدُ أَنَّ مُحَمَّدًا رَسُولُ اللهِ". قَالَ أَبُو عِيسَى: حَدِيثُ ابْنِ عَبَّاسٍ حَدِيثٌ حَسَنٌ غَرِيبٌ صَحِيحٌ. وَقَدْ رَوَى عَبْدُ الرَّحْمٰنِ بْنُ حُمَيْدٍ الرُّؤَاسِيُّ هٰذَا

---

النسائي في التطبيق ١٠٠ (١١٦٣ ١١٧٢) . سنن ابن ماجه في الإقامة ٢٢ (٨٩٩) . (تحفة الأشراف : ٩١٨١) . مسند احمد (١ في ٢٧٦. ٢٨٢. ٢٠٨. ٢١٢. ٢١٣. ٢٢٢. ٢٢٣. ٢٢٨. ٢٣١. ٢٣٧. ٢٣٩. ٢٤٠. ٢٥٠. ٢٥٩. ٢٦٣) . وراجع ما عند النسائي في السهو ٤١. ٢٤٠. ٥٦ (الأرقام: ١٢٧٨. ١٢٨٠. ١٢٩٩) . وابن ماجه في النكاح ١٩ (١٨٩٢) . والمؤلف في النكاح ١٧ (١١٠٥)

Scanned with C

الْحَدِيثَ. عَنْ أَبِي الزُّبَيْرِ، نَحْوَ حَدِيثِ اللَّيْثِ بْنِ سَعْدٍ، وَرَوَى أَيْمَنُ بْنُ نَابِلٍ الْمَكِّيُّ هَذَا الْحَدِيثَ، عَنْ أَبِي الزُّبَيْرِ، عَنْ جَابِرٍ وَهُوَ غَيْرُ مَحْفُوظٍ، وَذَهَبَ الشَّافِعِيُّ إِلَى حَدِيثِ ابْنِ عَبَّاسٍ فِي التَّشَهُّدِ.[1]

**ترجمه** دابن عباس رضي الله عنهما نه مروي دي فرمائي چي رسول الله صلي الله عليه وسلم به مونږ ته د تشهد داسي تعليم راكولو څنګه چي به يي مونږ ته د قران تعليم راكولو، او داسي به يي ونيل:

التَّحِيَّاتُ الْمُبَارَكَاتُ الصَّلَوَاتُ الطَّيِّبَاتُ لِلَّهِ. سَلَامٌ عَلَيْكَ أَيُّهَا النَّبِيُّ وَرَحْمَةُ اللَّهِ وَبَرَكَاتُهُ. سَلَامٌ عَلَيْنَا وَعَلَى عِبَادِ اللَّهِ الصَّالِحِينَ. أَشْهَدُ أَنْ لَا إِلَهَ إِلَّا اللَّهُ وَأَشْهَدُ أَنَّ مُحَمَّدًا رَسُولُ اللَّهِ"

امام ترمذي وايي چي حديث دابن عباس حسن غريب صحيح دی، دارنګي عبد الرحمن بن حميد الرواسي هم دابو الزبير نه د سعد د حديث پشان نقل كړی دی، دارنګي ايمن بن نائل مكي هم دا حديث د ابو الزبير نه او هغه دجابر نه نقل كړی دی، مګر دا سند غير محفوظ دی، مګر امام شافعي دتشهد په باب كي حديث دابن عباس اختيار كړی دی.

**تشريح** : د تشهد په الفاظو كي د صحابه كرامو اختلاف دي.

(۱) د عمر(رضي الله عنه) تشهد دي.

(۲) د على رضى الله عنه تشهد دي.

(۳) دابن عباس رضى الله عنهما تشهد دي.

(۴) د ابن مسعود(رضي الله عنه) تشهد دي.اود عائشه رضى الله عنها تشهد دي.

(۵) د جابر(رضي الله عنه) تشهد دي.

او د وى نه علاوه د نورو صحابه كرامو نه هم تشهد منقول دي.

(۱) احنافو تشهد د ابن مسعود غوره كړي دي

(۲)او امام شافعى د ابن عباس رضى الله عنهما تشهد اختيار كړي دي.د ابن عباس رضى الله عنهما تشهد دا دي: (التحيات المباركات الصلوات الطيبات لله سلام عليك أيها النبى ورحمت الله و بركاته سلام علينا وعلى عباد الله الصالحين أشهد أن لا إله الا الله وأشهد أن محمدا رسول الله)

امام شافعى فرمائى چى د ابن عباس رضى الله عنهما تشهد اختيارول د څو وجوهاتوله وجي بهتر دي:

---

[1] صحيح مسلم في الصلاة ١٦ (٤٠٣). سنن ابي داود في الصلاة ١٨٢ (٩٧٤). سنن النسائي في التطبيق ١٠٣ (١١٧٥). سنن ابن ماجه في الإقامة ٢٢ (٩٠٠). (تحفة الأشراف: ٥٧٥٠). مسند احمد (١ في ٢٩٢)

(١) د ابن عباس رضی الله عنهما په تشهد کي کلمه د (مبارکات) زیاتی ده.کومه چی د ابن مسعود(رضي الله عنه) په تشهد کي نشته

(٢) د ابن عباس(رضي الله عنه) تشهد د قرآن پاك سره موافق دي.الله تعالی فرمائی: فَإِذَا دَخَلْتُمْ بُيُوتًا فَسَلِّمُوا عَلَىٰ أَنْفُسِكُمْ تَحِيَّةً مِنْ عِنْدِ اللَّهِ مُبَارَكَةً طَيِّبَةً كَذَٰلِكَ يُبَيِّنُ اللَّهُ لَكُمُ الْآيَاتِ لَعَلَّكُمْ تَعْقِلُونَ (النور:٦١)

(٣)ابن عباس رضی الله عنهما لفظ د"سلام"بغیر د الف لام نه ذکر کړي دي.او په قرآن پاك کي هم اکثر تسليمات بغير دالف لام نه مذکور دی.الله تعالی فرمائی: سلام عليكم طبتم. (الزمر:٧٢) او. اذا دخلوا عليه فقالوا سلاما.قال سلام (الذاريات:٢٥) وَسَلَامٌ عَلَيْهِ يَوْمَ وُلِدَ وَيَوْمَ يَمُوتُ وَيَوْمَ يُبْعَثُ حَيًّا (مريم:١٥)

او اشرف کلام هم هغه شمارلی شی.کوم چی د قرآن موافق وی.

(۴)دابن عباس رضی الله عنهما تشهد د ابن مسعود(رضي الله عنه) د خبر نه مؤخر دي.خکه چی ابن عباس رضی الله عنهما صغير السن او ابن مسعود(رضي الله عنه) په شیرخو کښ دي.او دا خبره ښکاره ده چی مؤخر د مقدم دپاره ناسخ وی.

**وجوه دترجیح تشهد ابن مسعود(رضي الله عنه ):**

(١) ابن مسعود(رضي الله عنه) فرمائی چی رسول الله صلي الله علیه وسلم زما لاس اونیولو.او ماته ني د تشهد تعلیم راکړو.او وي فرمائيل(قل: التحيات لله) په دی حدیث کي د رسول پاك صلي الله علیه وسلم قول (قل) د امر صیغه ده.او د امر کمتره د.جه د استحباب ده.

(٢)السلام علیك په الف لام سره مفيد د استغراق دي

(٣)والصلوات د واؤ سره مفيد دتجديد دي.

(۴)د رسول پاك صلي الله علیه وسلم لاس نيول اود قرآن د سورت پشان تعليم ورکول مفيد د تاکید دی. التحيات صلاة او غيرصلاة ټولو ته شامل دي.خوکله چی دابن عباس رضی الله عنهما په تشهدکي (الصلوات) بغير د واؤ نه دي.نودا تخصيص شو.او اود (التحيات) نه مراد صرف (صلوات) شو.او چی (والصلوات) د واو سره وی.لکه چی د ابن مسعود(رضي الله عنه) په تشهد کي دي

(٢).نو اول یعنی (التحيات) عام پاتي شو.اوچونکه په عامه کلمه سره ثناء ونیلو کي مبالغه وی. نو خکه دا اولی دي.

Scanned with C

عامو محدثينو فرمانيلي دی چی د ابن مسعود(رضي الله عنه) تشهد د اسناد په لحاظ سره احسن دي.

(۷) عامو صحابه کرامو هم د ابن مسعود(رضي الله عنه) تشهد اختيار کړي دي.مروی دی چی صديق اکبر(رضي الله عنه) د منبر دپاسه د ابن مسعود(رضي الله عنه) د تشهد تعليم ورکړي وو.دغه شان سلمان فارسی،جابر،او معاويه نه رضي الله عنهم نه هم مروی دی.

(۸) د ابن مسعود(رضي الله عنه) تشهد په لفظ د (عبده) باندي مشتمل دي.خکه چی د ابن مسعود(رضي الله عنه) په تشهد کي دی. (وأشهد أن محمداً عبده ورسوله) او لفظ د عبد په کمال حال باندي دلالت کوی.خکه د معراج واقعه چی د هغی په ذريعه د رسول پاك صلي الله عليه وسلم لويه مرتبه بيان شوي ده.په هغی کي رسول پاك صلي الله عليه وسلم په"عبد"سره ذکر شوي دي.ارشاد دی:سبحان الذي اسري بعبده.

(۹) د ابن مسعود(رضي الله عنه) تشهد د ضبط په اعتبار سره احسن دي.دامام محمد نه مروی دی (قال أخذ أبويوسف بيدی وعلمنی التشهد وقال أخذ أبوحينفة بيدی فعلمنی التشهد وقال أبوحنيفة أخذ حماد بيدی فعلمنی الشتهد وقال حماد أخذ إبراهيم بيدی فعلمنی التشهد وقال إبراهيم أخذ علقمة بيدی وعلمنی الشتهد وقال علقمة أخذ ابن مسعود بيدی وعلمنی الشتهد وقال ابن مسعود أخذ رسول الله صلي الله عليه وسلم بيدی وعلمنی التشهد وقال رسول الله أخذ جبريل (۱) بيدی فعلمنی التشهد)

دامام شافعي وجوه اولويت جواب دادي چی که د يوی کلمي زيادت مرجح وی.نو د جابر(رضي الله عنه) تشهد به اولی وی.خکه چی په هغی کي د بسم الله الرحمن الرحيم زيادت دي.او د ابن مسعود(رضي الله عنه) په تشهد کي د واؤ او الف لام او لفظ د عبده زيادتی دي.نو د ابن مسعود(رضي الله عنه) تشهد به اولی وی.

د اولويت د دويمی وجی جواب دا دي چی د قران سره موافقيت مرجح نه دي.خکه چی په قعده کي قران لوستل مکروه دي.نو د قرآن د قراءت موافقت به څنګه مستحب شی.

دترجيح د دريمی وجی جواب دا دي.لکه څنګه چی لفظ د سلام بغير د الف لام نه په قرآن کي راغلي دي.دغه شان د الف لام سره هم راغلی دي.الله تعالی فرمائی:

وَالسَّلَامُ عَلَيَّ يَوْمَ وُلِدْتُ وَيَوْمَ أَمُوتُ وَيَوْمَ أُبْعَثُ حَيًّا (مريم:۳۳) او . السلام علی من اتبع الهدي. (طه:۴۷)

د څلورمی وجی جواب دا دي چی د تهشد په باره کښ د ابن عباس حديث موخر دي.داسي نه ده.بلکه د ابن مسعود(رضي الله عنه) حديث موخر دي.د امام کرخی نه نقل دی چی ابن

مسعود(رضي الله عنه) فرمائيلی دی چی په ابتداء د اسلام کي (التحيات الطاهرات الزاكيات) وئيلی شول. ددی نه معلومه شوه چی د ابن مسعود(رضي الله عنه) خبر د ابن عباس(ما) دخبر نه موخر دی
د"التحيات"معنی عبادات قوليه دی.د"الصلوات"معنی عبادات بدنيه دی او د"الطيبات"معنی عبادات ماليه دی.او (السلام عليك) دا دهغه سلام حكايت دي.كوم چی په شپه د معراج د رسول پاك صلي الله عليه وسلم په دری اشياؤ سره د ثناء كولو په جواب كي فرمائيلی شوی وو(السلام) د (التحيات) په مقابله كي دي.او رحمت د صلوات په مقابله كي دي .او بركت د التحيات په مقابله كي دي .اود بركت معنی نما او زيادت راخي.په شپه د معراج كي د الله تعالی په دربار كي دحاضری په وخت كي رسول پاك صلي الله عليه وسلم فرمائيلی وو (التحيات لله والصلوات والطيبات) رب العالمين په جواب كي اوفرمائيل (السلام عليك أيهاالنبی ورحمة الله وبركاته) بيا رسول پاك صلي الله عليه وسلم اوفرمائيل(السلام علينا وعلى عبادالله الصالحين) چی فرشتو دا واوريدل.نو ويي فرمائيل.
(أشهد أن لا إله الا الله وأشهد أن محمداً عبده ورسوله)

## په اولنئ قعده كي اوپه دويمه كي فرق

فرمائی.په اولنئ قعده كي به په مقدار دتشهد باندي اضافه نه كوی.اود امام شافعی جديد قول دا دي چی په اولنئ قعده كي هم په رسول پاك صلي الله عليه وسلم باندي درود سنت دي،
دامام شافعی دليل د ام سلمه رضی الله عنها حديث دي (في كل ركعتين تشهد وسلام على المرسلين) يعنی په هردوو ركعتونو كي (سلام على المرسلين) شته.
اود ام سلمه رضی الله عنها دحديث جواب دا دي چی د (سلام على المرسلين) نه مراد درود شريف نه دي.بلكه د تشهد سلام مراد دي.يعنی هغه سلام مراد دي.كوم چی په تشهد كي دي .يعنی (السلام عليك أيها النبي ورحمة الله وبركاته السلام علينا وعلى عبادالله الصالحين) او احنافو دليل د ابن مسعود (رضي الله عنه) قول دي چی (علمنی النبي صلي الله عليه وسلم التشهد في وسط الصلاة وآخرها فإذا كان في وسط الصلاة نبض إذا فرغ من التشهد وإذا كان آخر الصلاة دعا لنفسه ما شاء).

Scanned with C

## د تشهد او درود حکم

په حکم دتشهد او صلات او سلام کي داهل علمو دوه اقوال دي (۱)په آخرى قعده کي تشهد ونيل زمونږ په نزد واجب دي.اودرود شريف ونيل فرض نه دی.بلکه مسنون دي(۲)او دامام شافعی په نزد د تشهد ونيل او په رسول پاك صلي الله عليه وسلم باندې درود ليګل دواړه فرض دی.

د قراءت تشهد په فرضيت باندې امام شافعی د ابن مسعود(رضي الله عنه) په حديث باندې استدلال کوی

(أنه قال كنا نقول قبل أن يفترض التشهد السلام على الله السلام على جبريل و ميكائيل فقال النبي صلى الله عليه وسلم قولوا التحيات لله إلخ) بيا په اخر كي فرمائي(إذا قلت هذا او فعلت هذا فقد تمت صلاتك)ددی حديث نه په درى طريقو سره استدلال شوي دي

(۱)اول دا چی ابن مسعود (رضي الله عنه) فرمائی (قبل أن يفترض التشهد) يعنی په تشهد باندې د فرض اطلاق شوي دي.نو ددی نه ثابته شوه چی تشهد فرض دي

(۲) دويم دا چی رسول پاك صلي الله عليه وسلم اوفرمائيل (قولوا التحيات لله) او قولوا د امر صيغه ده.او امر د جوب دپاره وی.نو معلومه شوه چی التحيات ونيل واجب دی.اود امام شافعی په نزد واجب او فرض دواړه يو دی.نوځکه چی کله التحيات ونيل واجب شو.نو فرض به هم وی.

(۳) دريم دا چی رسول پاك صلي الله عليه وسلم د مونځ پوره کيدل په دی پورې معلق کړی دی. ددی نه معلومه شود چی د تشهد نه بغير مونځ پوره نه دي.او چی د څه نه بغير مونځ نه پوره کيږی.غه فرض وی.نو معلومه شوه چی د تشهد لوستل فرض دی.

زمونږ د طرفه داولني دليل نه جواب دا دې چی (قبل أن يفترض التشهد)کي د فرض نه لغوی معنی مراد ده.يعنی تقديرالله تعالی فرمائيلي دي:فنصف مافرضتم سورة البقرة:۲۳۷) يعني(قدرتم) اوس مطلب دا شو چی د تشهد مقدر کيدو نه وړاندې به مونږ دا ونيل (والسلام على الله إلخ) نو اوس په تشهد باندې د فرض اطلاق راتلل لازم نشو.د استدلال د دويمی طريقي جواب دا دې چی دلته د امر صيغه د تعليم او تلقين دپاره ده.پس ددی نه فرضيت ثابت نشو.

***************

## ۱۰۵_ بَاب مَا جَاءَ أَنَّهُ يُخْفِي التَّشَهُّدَ

## تشهد خفیه ونیل پکاردي

۲۹۱ـ حَدَّثَنَا أَبُو سَعِيدٍ الأَشَجُّ، حَدَّثَنَا يُونُسُ بْنُ بُكَيْرٍ، عَنْ مُحَمَّدِ بْنِ إِسْحَاق، عَنْ عَبْدِ الرَّحْمَنِ بْنِ الأَسْوَدِ، عَنْ ابِيهِ، عَنْ عَبْدِ اللَّهِ بْنِ مَسْعُودٍ، قَالَ: " مِنَ السُّنَّةِ أَنْ يُخْفِيَ التَّشَهُّدَ ". قَالَ أَبُو عِيسَى: حَدِيثُ ابْنِ مَسْعُودٍ حَدِيثٌ حَسَنٌ غَرِيبٌ، وَالْعَمَلُ عَلَيْهِ عِنْدَ أَهْلِ الْعِلْمِ. (1)

**ترجمه** : عبدالله بن مسعود رضي الله عنه نه روايت دي فرمائي چي سنت دادي تشهد خفيه اوونيلي شي.

امام ترمذي وائي دعبدالله بن مسعود حديث حسن صحيح دي او په همدي داهل علمو رحمهم الله هم عمل دي.

***************

## ۱۰۶ـ بَاب مَا جَاءَ كَيْفَ الْجُلُوسُ فِي التَّشَهُّدِ

## په تشهد كي څنګه كيناستل پكاردي

۲۹۲ـ حَدَّثَنَا أَبُو كُرَيْبٍ، حَدَّثَنَا عَبْدُ اللَّهِ بْنُ إِدْرِيسَ، حَدَّثَنَا عَاصِمُ بْنُ كُلَيْبٍ الْجَرْمِيُّ، عَنْ أَبِيهِ، عَنْ وَائِلِ ابْنِ حُجْرٍ، قَالَ: قَدِمْتُ الْمَدِينَةَ قُلْتُ: " لَأَنْظُرَنَّ إِلَى صَلَاةِ رَسُولِ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ. فَلَمَّا جَلَسَ يَعْنِي لِلتَّشَهُّدِ افْتَرَشَ رِجْلَهُ الْيُسْرَى وَوَضَعَ يَدَهُ الْيُسْرَى يَعْنِي عَلَى فَخِذِهِ الْيُسْرَى وَنَصَبَ رِجْلَهُ الْيُمْنَى " قَالَ أَبُو عِيسَى: هَذَا حَدِيثٌ حَسَنٌ صَحِيحٌ، وَالْعَمَلُ عَلَيْهِ عِنْدَ أَكْثَرِ أَهْلِ الْعِلْمِ، وَهُوَ قَوْلُ: سُفْيَانَ الثَّوْرِيِّ وَأَهْلِ الْكُوفَةِ وَابْنِ الْمُبَارَكِ. (2)

**ترجمه** : دوائل بن حجر رضي الله عنه نه روايت دي فرمائي كله چي زه مديني ته راغلم نو په زړه كي مي اوونيل چي زه به درسول الله صلي الله عليه وسلم مونځ ته ضرور ګورم چنانچي ما اوليدل كله چي به رسول الله صلي الله عليه وسلم تشهد ته كيناستو نو ګس خپه به يي اوغوړوله او ګس لاس به يي پخپل ګس ورون كيخودو او ښۍ خپه به يي اوغوړوله.

امام ترمذي وائي دا حديث حسن صحيح دي او په دي داكثرو اهل علمو عمل دي، او په دي سفيان ثوري او اهل كوفه او ابن مبارك هم قول كړي دي.

---

[1] سنن ابي داود في الصلاة ۱۸۵ (۹۸٦) . (تحفة الأشراف : ۹۱٤۲)

[2] سنن النسائي في الافتتاح ۱۱ (۸۹۰) ، والتطبيق ۹۷ (۱۱٦۰) ، والسهو ۲۹ (۱۲٦۳، ۱۲٦٤) . سنن ابن ماجه في الإقامة ۱۵ (۸٦۸) . (تحفة الأشراف : ۱۱٤۸۳) . مسند احمد (۳ في ۳۱٦، ۳۱۸)

**تشریح** : په تشهد کي د کیناستو دوه طریقي دي (۱) افتراش، یعني کسه خپه اوغوړوي او په هغي کیني او ښئ خپه اودروي او ولاړه يي پريږدي (۲) تورك، یعني په کوناتي کيني او دواړه خپي ښي طرف ته اوباسي لکه چي ښځي په قعده کي څنګه کوي.
په دي مسئله داهل علمو اتفاق دي چي دا دواړه طريقي جائز دي البته په افضليت کي اختلاف دي او په دي کي څلور مذاهب دي.
(۱) دامام ابو حنيفه په نزد افتراش مطلقا افضل دي.
(۲) دامام مالك په نزد تورك مطلقا افضل دي.
(۳) دامام شافعي په نزد په قعده متوسطه کي افتراش افضل دي او په قعده اخره کي تورك افضل دي
(۴) دامام احمد په نزد د دوه رکعاتو نه پس په قعده کي افتراش افضل دي او په اخري قعده کي تورك افضل دي (په دي کي ددويم صورت عکس دي).
امام صاحب په دي باب کي دوائل بن حجر ذحديث نه استدلال کړي دي چي "افترش رجله اليسري ونصب رجله اليمني".
ائمه ثلاثه دهغه رواياتو نه استدلال کړي دي په کومو کي چي دتورك ذکر دي او خصوصا په ترمذي کي داعرابي مسيء الصلاة حديث نه او په دي کي دتورك ذکر دي
غرض داچي امام ابو حنيفه د افتراش دافضليت قائل دی او ائمه ثلاثه في الجملة دتورك د افضليت قائل دي.

***************

## ۱۰۷_ باب مِنْهُ أَيْضًا

### په تشهد کي دکيناستو متعلق يوبل باب

۲۹۳_ حَدَّثَنَا بُنْدَارٌ مُحَمَّدُ بْنُ بَشَّارٍ، حَدَّثَنَا أَبُو عَامِرٍ العَقَدِيُّ، حَدَّثَنَا فُلَيْحُ بْنُ سُلَيْمَانَ المَدَنِيُّ، حَدَّثَنِي عَبَّاسُ بْنُ سَهْلٍ السَّاعِدِيُّ، قَالَ: اجْتَمَعَ أَبُو حُمَيْدٍ، وَأَبُو أُسَيْدٍ، وَسَهْلُ بْنُ سَعْدٍ، وَمُحَمَّدُ بْنُ مَسْلَمَةَ، فَذَكَرُوا صَلَاةَ رَسُولِ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ، فَقَالَ أَبُو حُمَيْدٍ: أَنَا أَعْلَمُكُمْ بِصَلَاةِ رَسُولِ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ "إِنَّ رَسُولَ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ جَلَسَ يَعْنِي لِلتَّشَهُّدِ فَافْتَرَشَ رِجْلَهُ اليُسْرَى، وَأَقْبَلَ بِصَدْرِ اليُمْنَى عَلَى قِبْلَتِهِ، وَوَضَعَ كَفَّهُ اليُمْنَى عَلَى رُكْبَتِهِ اليُمْنَى وَكَفَّهُ اليُسْرَى عَلَى رُكْبَتِهِ اليُسْرَى، وَأَشَارَ بِأُصْبُعِهِ يَعْنِي السَّبَّابَةَ". قَالَ أَبُو عِيسَى: وَهَذَا حَدِيثٌ حَسَنٌ صَحِيحٌ، وَبِهِ يَقُولُ: بَعْضُ أَهْلِ العِلْمِ، وَهُوَ قَوْلُ الشافعي، وَأَحْمَدَ، وَإِسْحَاقَ. قَالُوا: يَقْعُدُ فِي

Scanned with C

التَّشَهُّدِ الآخِرِ عَلَى وَرِكِهِ، وَاحْتَجُّوا بِحَدِيثِ أَبِي حُمَيْدٍ، قَالُوا: يَقْعُدُ فِي التَّشَهُّدِ الأَوَّلِ عَلَى رِجْلِهِ الْيُسْرَى وَيَنْصِبُ الْيُمْنَى. (1)

**ترجمه** دعباس بن سهل ساعدي بيان دي چي يو خل ابوحميد ساعدي او ابو اسيد او سهل بن سعد او محمد بن مسلمه رضي الله عنهم په يو خاي كي جمع شوي وو او د رسول الله صلي الله عليه وسلم دمونځ ذكر يي كولو دي وخت كي ابو حميد اوونيل ماته درسول الله صلي الله عليه وسلم مونځ ستاسو نه زيات معلوم دي او هغه دادي كله چي به دتشهد دپاره كيناستو نو خپله ګسه خپه به يي اوغوړوله او د ښۍ خپي دګوتو سرونه به يي قبلي ته مخامخ كړل او خپل ښۍ ورغوي به يي په ښۍ پتون باندي كيخودو او ګس ورغوي به يي په ګس پتون باندي كيخودو او دشاهدت په ګوته به يي اشاره كوله

امام ترمذي وائي دا حيث حسن صحيح دي او په همدي بعضي اهل علمو قول كړي دي او دامام شافعي او احمد او اسحاق هم دا قول دي دوئ وائي چي په اخري تشهد كي په كوناتو كيناستل پكار دي او دوئ دابوحميد دحديث نه استدلال كړي دي دوئ وائي چي اول په تشهد كي په ګسه خپه كينئ او ښۍ خپه ولاړه اوساتئ.

***************

## ١٠٨ـ باب مَا جَاءَ فِي الإِشَارَةِ فِي التَّشَهُّدِ

**په تشهد كي داشاري كولو بيان**

٢٩٤ـ حَدَّثَنَا مَحْمُودُ بْنُ غَيْلاَنَ، وَيَحْيَى بْنُ مُوسَى، حَدَّثَنَا عَبْدُ الرَّزَّاقِ، عَنْ مَعْمَرٍ، عَنْ عُبَيْدِ اللَّهِ بْنِ عُمَرَ، عَنْ نَافِعٍ، عَنِ ابْنِ عُمَرَ، أَنَّ النَّبِيَّ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ كَانَ "إِذَا جَلَسَ فِي الصَّلاَةِ وَضَعَ يَدَهُ الْيُمْنَى عَلَى رُكْبَتِهِ وَرَفَعَ إِصْبَعَهُ الَّتِي تَلِي الإِبْهَامَ الْيُمْنَى يَدْعُو بِهَا وَيَدُهُ الْيُسْرَى عَلَى رُكْبَتِهِ بَاسِطَهَا عَلَيْهِ" قَالَ: وَفِي الْبَابِ عَنْ عَبْدِ اللَّهِ بْنِ الزُّبَيْرِ، وَنُمَيْرٍ الْخُزَاعِيِّ، وَأَبِي هُرَيْرَةَ، وَأَبِي حُمَيْدٍ، وَوَائِلِ بْنِ حُجْرٍ. قَالَ أَبُو عِيسَى: حَدِيثُ ابْنِ عُمَرَ حَدِيثٌ حَسَنٌ غَرِيبٌ. لاَ نَعْرِفُهُ مِنْ حَدِيثِ عُبَيْدِ اللَّهِ بْنِ

---

[1] صحيح مسلم/المساجد ٢٢ (٦٢٢)، سنن ابي داود/الصلاة ٥ (٢١٣)، سنن النسائي/المواقيت ٩ (٥١٣)، (تحفة الأشراف: ١١٢٢) موطا امام مالک/القرآن ١٠ (٣٦)، مسند احمد (١٠٢/٢، ١٠٣، ١٣٩، ١٨٥، ٢٢٤).

Scanned with C

عُمَرَ إِلَّا مِنْ هَذَا الْوَجْهِ، وَالْعَمَلُ عَلَيْهِ عِنْدَ بَعْضِ أَهْلِ الْعِلْمِ مِنْ أَصْحَابِ النَّبِيِّ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ وَالتَّابِعِينَ يَخْتَارُونَ الْإِشَارَةَ فِي التَّشَهُّدِ، وَهُوَ قَوْلُ أَصْحَابِنَا. (1)

**ترجمه** دعبدالله بن عمر رضي الله عنهما نه روايت دي فرمائي كله چي رسول الله صلي الله عليه وسلم په مونځ كي كيناستو خپل ښي لاس به يي پخپل ښي پتون كيخودو او دښي لاس غتي ګوتي ته يي نژدي ګوته به يي پورته كوله او اشاره به يي كوله او خپل ګس لاس به يي پخپل ګس پتون كيخودو او غوړولي به يي ساتلو.

امام ترمذي وائي په دي باب كي د عبدالله بن زبير، نمير خزاعي، ابوهريره، ابوحميد، وائل بن حجر رضي الله عنهم نه هم احاديث وارد دي او دابن عمر حديث حسن غريب دي مونږ ته دا حديث صرف دعبيدالله بن عمر په سند معلوم دي، دصحابه كرامو او دتابعينو اهل علمو په دي باندي عمل وو او هغوئ به په تشهد كي په ګوته اشاره كول خوښول او همدا زمونږ دعلماؤ قول دي.

**تشريح** : په دي مسئله كي داهل علمو اتفاق دي چي په تشهد كي اشاره بالسبابه مسنون دد او په دي مسئله كي په كثرت سره احاديث وارد دي چي حد دشهرت ته رسيدلي دي په دي باب كي هم دعبدالله بن عمر رضي الله عنهما روايت داشاري په مسنون كيدو دلالت كوي.

داشاري كولو مختلفي طريقي دي ليكن زمونږ په نزد راجح طريقه داده چي دنورو ګوتو نه به حلقه جوړه كړي او په سبا به به اشاره كوي دنفي په وخت كي به يي پورته كوي او داثبات په وخت كي به يي واپس ايږدي.

بعضي متاخرينو فقهاؤ داشاري بالسبابه په غير مسنون كيدو قول كړي دي خكه چي په ظاهر الروايه او نورو معتبر كتابونو كي ددي ذكر نشته او خلاصه كيداني ورته بدعت وئيلي دي مګر په ظاهر الروايت كتابونو كي ددي نه موندل عدم الشيء لره مستلزم نه دي او خلاصه كيداني كوم معتبر كتاب نه دي او ددي مصنف هم غير معروف دي.

مجدد الف ثاني هم داشاري دمسنون كيدو نه انكار كړي وو خكه چي داشاري په رواياتو كي اضطراب موجود دي ددي جواب دادي چي داشاري په رواياتو كي چي كوم اختلاف دي دا اضطراب نه دي اضطراب خو ديته وائي چي حديث يو وي او په الفاظو كي يي ناقابل تطبيق اختلاف اوموندلي شي دلته ددېرو صحابه كرامو درواياتو اختلاف دي او ددي اختلاف په

---

1 تخريج : صحيح مسلم في المساجد ٢١ (٥٨٠)، سنن النسائي في السهو ٣٥ (١٢٧٠)، سنن ابن ماجه في الإقامة ٢٧ (٩١٣)، (تحفة الأشراف : ٨١٢٨)، مسند احمد (٢ في ١٣٧)

وجه قدر مشترك رد كيدي نشي او ددي اختلاف حقيقت هم دادي چي دا اختلاف صرف داشاري په هيئت كي دي كوم چي په اختلاف دواقعاتو او زمانو محمول دي.

***************

## ١٠٩_ باب مَا جَاءَ فِي التَّسْلِيمِ فِي الصَّلَاةِ

### په مونځ كي دسلام كرځولو بيان

٢٩٥_ حَدَّثَنَا مُحَمَّدُ بْنُ بَشَّارٍ، حَدَّثَنَا عَبْدُ الرَّحْمَنِ بْنُ مَهْدِيٍّ، حَدَّثَنَا سُفْيَانُ، عَنْ أَبِي إِسْحَاقَ، عَنْ أَبِي الأَحْوَصِ، عَنْ عَبْدِ اللَّهِ، عَنِ النَّبِيِّ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ أَنَّهُ كَانَ " يُسَلِّمُ عَنْ يَمِينِهِ وَعَنْ يَسَارِهِ السَّلَامُ عَلَيْكُمْ وَرَحْمَةُ اللَّهِ السَّلَامُ عَلَيْكُمْ وَرَحْمَةُ اللَّهِ " قَالَ: وَفِي البَاب عَنْ سَعْدِ بْنِ أَبِي وَقَّاصٍ، وَابْنِ عُمَرَ، وَجَابِرِ بْنِ سَمُرَةَ، وَالبَرَاءِ، وَأَبِي سَعِيدٍ، وَعَمَّارٍ، ووَائِلِ بْنِ حُجْرٍ، وَعَدِيِّ بْنِ عَمِيرَةَ، وَجَابِرِ بْنِ عَبْدِ اللَّهِ. قَالَ أَبُو عِيسَى: حَدِيثُ ابْنِ مَسْعُودٍ حَدِيثٌ حَسَنٌ صَحِيحٌ. وَالعَمَلُ عَلَيْهِ عِنْدَ أَكْثَرِ أَهْلِ العِلْمِ مِنْ أَصْحَابِ النَّبِيِّ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ وَمَنْ بَعْدَهُمْ. وَهُوَ قَوْلُ: سفيان الثوري وَابْنِ المُبَارَكِ، وَأَحْمَدَ، وَإِسْحَاقَ. [1]

**ترجمه** دعبدالله بن مسعود رضي الله عنه نه روايت دي فرماني چي رسول الله صلي الله عليه وسلم به خپل ښي طرف ته او چپ طرف ته په مونځ كي مخ اوكرځولو او "السلام عليكم ورحمة الله ، السلام عليكم ورحمة الله" به يي اوونيل او سلام به يي اوكرځولو.

امام ترمذي وائي دابن مسعود حديث حسن صحيح دي، او په دي باب كي د سعد بن ابي وقاص ، ابن عمر، جابر بن سمره، براء، ابوسعيد ، عمار، وائل بن حجر، عدي بن عميره، او جابر بن عبدالله رضي الله عنهم نه هم احاديث وارد دي، دصحابه كرامو او ددوئ نه پس راتلونكو خلقو كي داكثرو اهل علمو په دي باندي عمل دي، سفيان ثوري، ابن مبارك، احمد ، او اسحاق رحمهم الله هم په دي باندي قول كري دي.

**تشريح** : د جمهورواهل علمو او لوئي صحابه كرامو عمر،او علي،او عبدالله بن مسعود رضي الله عنهم او اهل كوفه هم دا مذهب دي چي سلام به به دواړو طرفونو ته كرځوي.

دليل ددي د عبدالله بن مسعود حديث دي(أن النبي صلي الله عليه وسلم كان يسلم عن يمينه حتي يري بياض خده الأيمن وعن يساره حتي يري بياض خده الأيسر)

---

[1] سنن ابي داود في الصلاة ١٨٩ (٩٩٦) . سنن النسائي في السهو ٧١ (١٣٢٣) . سنن ابن ماجه في الإقامة ٢٨ (٩١٣) . (تحفة الأشراف : ٩٥٠٤) . مسند احمد (١ في ٣٩٠، ٤٠٦، ٤٠٩، ٤١٤، ٤٤٤، ٤٤٨) . سنن الدارمي في الصلاة ٨٧ (١٣٨٥).

امام مالك فرمانيلي چي صرف مخكې طرف ته يوسلام دې.او په استدلال كي يې حديث پيش كړى دى چي د عائشه او سهل بن سعد الساعدى رضى الله عنهما نه روايت دې چي (أن النبي ﷺ فعل كذلك) يعنى رسول پاك صلي الله عليه وسلم داسې كړي دى.يعنى د مانځه نه د وتلو دپاره يې يو سلام ګرځولې دې.زمونږ د طرفه دليل دا دې چي د لويو صحابه كرامو قول اختياورل غوره دې.په نسبت سره د امام مالك د قول، پاتې شو د عائشه اوسهل بن سعد الساعدى رضى الله عنهما ديو سلام روايت نو د هغې جواب دا دې چي عائشه رضى الله عنها به د ښځو په صف كي وه. او سهل د ماشومانو په صف كي .نو ممكن ده چي دوى دواړو دويم سلام نه وى اوريدلې.ځكه چي مروى دى چي د رسول پاك صلي الله عليه وسلم دويم سلام به د اولنى په نسبت په ښكته آواز سره وو.نوچى ددى احتمال په موجودګئ كي د عائشه او سهل روايت قابل استدلال نه دې.

****************

## ١١٠_ باب مِنْهُ أَيْضًا

### دسلام متعلق يوبل باب

٢٩٦_ حَدَّثَنَا مُحَمَّدُ بْنُ يَحْيَى النَّيْسَابُورِيُّ، حَدَّثَنَا عَمْرُو بْنُ أَبِي سَلَمَةَ أَبُو حَفْصٍ التِّنِّيسِيُّ، عَنْ زُهَيْرِ بْنِ مُحَمَّدٍ، عَنْ هِشَامِ بْنِ عُرْوَةَ، عَنْ أَبِيهِ، عَنْ عَائِشَةَ، أَنَّ رَسُولَ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ كَانَ " يُسَلِّمُ فِي الصَّلَاةِ تَسْلِيمَةً وَاحِدَةً تِلْقَاءَ وَجْهِهِ يَمِيلُ إِلَى الشِّقِّ الأَيْمَنِ شَيْئًا " قَالَ: وَفِي البَاب عَنْ سَهْلِ بْنِ سَعْدٍ، قَالَ أَبُو عِيسَى: وَحَدِيثُ عَائِشَةَ لَا نَعْرِفُهُ مرفوعاً إِلَّا مِنْ هَذَا الوَجْهِ. قَالَ مُحَمَّدُ بْنُ إِسْمَاعِيل زُهَيْرُ بْنُ مُحَمَّدٍ: أَهْلُ الشَّأْمِ يَرْوُونَ عَنْهُ مَنَاكِيرَ وَرِوَايَةُ أَهْلِ العِرَاقِ عَنْهُ أَشْبَهُ وَأَصَحُّ. قَالَ مُحَمَّدٌ: وَقَالَ أَحْمَدُ بْنُ حَنْبَلٍ: كَأَنَّ زُهَيْرَ بْنَ مُحَمَّدٍ الَّذِي كَانَ وَقَعَ عِنْدَهُمْ لَيْسَ هُوَ هَذَا الَّذِي يُرْوَى عَنْهُ بِالعِرَاقِ كَأَنَّهُ رَجُلٌ آخَرُ قَلَبُوا اسْمَهُ. قَالَ أَبُو عِيسَى: وَقَدْ قَالَ بِهِ: بَعْضُ أَهْلِ العِلْمِ فِي التَّسْلِيمِ فِي الصَّلَاةِ. وَأَصَحُّ الرِّوَايَاتِ عَنِ النَّبِيِّ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ تَسْلِيمَتَانِ، وَعَلَيْهِ أَكْثَرُ أَهْلِ العِلْمِ مِنْ أَصْحَابِ النَّبِيِّ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ وَالتَّابِعِينَ وَمَنْ بَعْدَهُمْ. وَرَأَى قَوْمٌ مِنْ أَصْحَابِ النَّبِيِّ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ وَغَيْرِهِمْ تَسْلِيمَةً وَاحِدَةً فِي المَكْتُوبَةِ. قَالَ الشافعي: إِنْ شَاءَ سَلَّمَ تَسْلِيمَةً وَاحِدَةً وَإِنْ شَاءَ سَلَّمَ تَسْلِيمَتَيْنِ. [1]

---

[1] سنن ابن ماجه في الإقامة ٢٩ (٩١٩) . (تحفة الأشراف : ١٦٨٩٥) مسند احمد (٦ في ٢٣٦)

**ترجمه**: دام المؤمنين عائشه رضي الله عنها نه روايت دي فرمائي چي رسول الله صلي الله عليه وسلم نه په مونځ کي خپل مخ ښي طرف ته لږ مائل کړو او سلام به يي ګرځولو.
امام ترمذي وائي دعائشه رضي الله عنها دا حديث مونږ ته صرف په همدي سند معلوم دي. محمد بن اسماعيل بخاري وائي دزهير بن محمد نه اهل شام منکر احاديث نقل کوي البته دده نه داهل عراق مروي روايتونه صواب ته نژدي او زيات صحيح دي، دامام بخاري قول دي چي احمد بن حنبل به وئيل کوم زهير بن محمد چي شام ته تلي وو دا هغه زهير نه دي دچا نه چي اهل عراق نقل دروايت کړي دي دا بل څوك دي او خلقو دده نوم بدل کړي دي. په دي باب کي دسهل بن سعد نه هم روايت وارد دي، په مونځ کي دسلام ګرځولو په سلسله کي بعضي اهل علمو همداقول کړي دي ليکن درسول الله صلي الله عليه وسلم نه په ټولو مروي روايتونو کي د دوه سلامونو والا روايت زيات صحيح دي دصحابه کرامو او تابعينو او ددوئ نه پس په خلقو کي داکثر اهل علمو همدا قول دي البته په صحابه کرامو او ددوئ نه په علاوه خلقو کي دبعضي علماؤ خيال دادي چي په فرض مونځ کي سلام صرف يو خل دي . امام شافعي وائي که دچا خوښه وي نو يو خل دي سلام اوګرځوي او که څوك دوه خل سلام ګرځول غواړي نو دوه خل دي سلام اوګرځوي.

****************

## ۱۱۱_ بَابٌ مَا جَاءَ أَنَّ حَذْفَ السَّلاَمِ سُنَّةٌ

### سلام زيات نه اوږدول سنت دي

۲۹۷_ حَدَّثَنَا عَلِيُّ بْنُ حُجْرٍ، أَخْبَرَنَا عَبْدُ اللهِ بْنُ الْمُبَارَكِ، وَهِقْلُ بْنُ زِيَادٍ، عَنِ الأَوْزَاعِيِّ، عَنْ قُرَّةَ بْنِ عَبْدِ الرَّحْمَنِ، عَنِ الزُّهْرِيِّ، عَنْ أَبِي سَلَمَةَ، عَنْ أَبِي هُرَيْرَةَ، قَالَ: " حَذْفُ السَّلاَمِ سُنَّةٌ ". قَالَ عَلِيُّ بْنُ حُجْرٍ: قَالَ عَبْدُ اللهِ بْنُ الْمُبَارَكِ: يَعْنِي أَنْ لاَ يَمُدَّهُ مَدًّا. قال أَبُو عِيسَى: هَذَا حَدِيثٌ حَسَنٌ صَحِيحٌ، وَهُوَ الَّذِي يَسْتَحِبُّهُ أَهْلُ الْعِلْمِ وَرُوِيَ، عَنْ إِبْرَاهِيمَ النَّخَعِيِّ، أَنَّهُ قَالَ: التَّكْبِيرُ جَزْمٌ وَالسَّلاَمُ جَزْمٌ. وَهِقْلٌ يُقَالُ كَانَ كَاتِبَ الأَوْزَاعِيِّ. [1]

**ترجمه**: دابوهريره رضي الله عنه نه روايت دي فرمائي چي حذف دسلام سنت دي، دعلي بن حجر بيان دي چي عبدالله بن مبارك به فرمائيل دسلام دحذف مطلب دادي چي سلام زيات رانبسکلي شي.

[1] سنن ابي داود في الصلاة ۱۹۲ (۱۰۰۴) . (تحفة الأشراف : ۱۵۲۲۳) . مسند احمد (۲ في ۵۳۲)

امام ترمذي وائي دا حديث حسن صحيح دي او همدا عمل اهل علمو مستحب ګڼرلي دي ، دابراهيم نخعي نه مروي دي چي هغه به فرمائيل تکبير جزم دي او سلام جزم دي يعني په دي دواړو کي په مد راښکل نشته بلکه وقف کول دي

***************

## ١١٢ـ باب مَا يَقُولُ إِذَا سَلَّمَ مِنَ الصَّلاَةِ

## دسلام ګرځولو نه پس څه ويل پکار دي

٢٩٨ـ حَدَّثَنَا أَحْمَدُ بْنُ مَنِيعٍ، حَدَّثَنَا أَبُو مُعَاوِيَةَ، عَنْ عَاصِمٍ الأَحْوَلِ، عَنْ عَبْدِ اللَّهِ بْنِ الْحَارِثِ، عَنْ عَائِشَةَ، قَالَتْ: كَانَ رَسُولُ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ إِذَا سَلَّمَ لاَ يَقْعُدُ إِلاَّ مِقْدَارَ مَا يَقُولُ: " اللَّهُمَّ أَنْتَ السَّلاَمُ وَمِنْكَ السَّلاَمُ تَبَارَكْتَ ذَا الْجَلاَلِ وَالإِكْرَامِ ".[1]

**ترجمه** : دام المؤمنين عائشه رضي الله عنها بيان دي فرمائي کله چي به رسول الله صلي الله عليه وسلم سلام اوګرځولو نو "اللَّهُمَّ أَنْتَ السَّلاَمُ وَمِنْكَ السَّلاَمُ تَبَارَكْتَ ذَا الْجَلاَلِ وَالإِكْرَامِ "به يي ويل يعني اي الله ته سلام يي او سلامتي ستا د طرفه ده ته دلوي شان او عزت والا يي او ته برکت ورکونکي يي او د دومره کلماتو دويلو په مقدار به کيناستو.

***************

٢٩٩ـ حَدَّثَنَا هَنَّادُ بْنُ السَّرِيِّ، حَدَّثَنَا مروانُ بن معاويةَ، وَأَبُو مُعَاوِيَةَ، عَنْ عَاصِمٍ الأَحْوَلِ بِهَذَا الإِسْنَادِ نَحْوَهُ، وَقَالَ: " تَبَارَكْتَ يَا ذَا الْجَلاَلِ وَالإِكْرَامِ ". قَالَ: وَفِي الْبَابِ عَنْ ثَوْبَانَ، وَابْنِ عُمَرَ، وَابْنِ عَبَّاسٍ، وَأَبِي سَعِيدٍ، وَأَبِي هُرَيْرَةَ، وَالْمُغِيرَةِ بْنِ شُعْبَةَ. قَالَ أَبُو عِيسَى: حَدِيثُ عَائِشَةَ حَدِيثٌ حَسَنٌ صَحِيحٌ. وَقَدْ رَوَى خَالِدٌ الْحَذَّاءُ هَذَا الْحَدِيثَ مِنْ حَدِيثِ عَائِشَةَ، عَنْ عَبْدِ اللَّهِ بْنِ الْحَارِثِ، نَحْوَ حَدِيثِ عَاصِمٍ، وَقَدْ رُوِيَ عَنِ النَّبِيِّ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ أَنَّهُ كَانَ يَقُولُ: " بَعْدَ التَّسْلِيمِ لاَ إِلَهَ إِلاَّ اللَّهُ وَحْدَهُ لاَ شَرِيكَ لَهُ لَهُ الْمُلْكُ وَلَهُ الْحَمْدُ يُحْيِي وَيُمِيتُ وَهُوَ عَلَى كُلِّ شَيْءٍ قَدِيرٌ. اللَّهُمَّ لاَ مَانِعَ

[1] صحيح مسلم في المساجد ٢٦ (٥٩٢) . سنن ابي داود في الصلاة ٣٦٠ (١٥١٢) . سنن النسائي في السهو ٨٢ (١٣٣٩) . سنن ابن ماجه في الإقامة ٣٢ (٩٢٢) . (تحفة الأشراف : ١٦١٨٧) . مسند احمد (٦ في ٦٢ . ١٨٤ . ٢٣٥) . سنن الدارمي في الصلاة ٨٨ (١٣٨٧) (صحيح)

لِمَا أَعْطَيْتَ وَلَا مُعْطِيَ لِمَا مَنَعْتَ وَلَا يَنْفَعُ ذَا الْجَدِّ مِنْكَ الْجَدُّ " وَرُوِيَ عَنْهُ أَنَّهُ كَانَ يَقُولُ: " سُبْحَانَ رَبِّكَ رَبِّ الْعِزَّةِ عَمَّا يَصِفُونَ وَسَلَامٌ عَلَى الْمُرْسَلِينَ وَالْحَمْدُ لِلَّهِ رَبِّ الْعَالَمِينَ ".[1]

**ترجمه** په همدي سند باندي دعاصم الاحول حديث هم مروي دي او په دي کي تبارکت ياذالجلال والاکرام (په ياء سره) الفاظ راغلي دي.

امام ترمذي وائي دعائشه حديث حسن صحيح دي. خالد الخزاء دا حديث دعائشي په روايت دعبدالله بن حارث نه دعاصم دحديث پشان نقل کړي دي. درسول الله صلي الله عليه وسلم نه دا هم مروي دي چي دسلام ګرځولو نه پس به يي دا کلمات "لَا إِلَهَ إِلَّا اللَّهُ وَحْدَهُ لَا شَرِيكَ لَهُ لَهُ الْمُلْكُ وَلَهُ الْحَمْدُ يُحْيِي وَيُمِيتُ وَهُوَ عَلَى كُلِّ شَيْءٍ قَدِيرٌ. اللَّهُمَّ لَا مَانِعَ لِمَا أَعْطَيْتَ وَلَا مُعْطِيَ لِمَا مَنَعْتَ وَلَا يَنْفَعُ ذَا الْجَدِّ مِنْكَ الْجَدُّ به يي ونيل يعني اي الله ستا نه علاوه بل معبود نشته هغه يواځي دي هيڅوك شريك نه لري خاص دهغه دپاره بادشاهي ده او تمام تعريفونه خاص دهغه دپاره دي او خاص هغه مرګ او ژوند ورکوي او په هر څيز باندي قادر دي. اي الله ته چي چاله څه ورکول اوغواړي دهغي څوك منع کونکي نشته او چاته چي ته دڅه څيز ورکول او نه غواړي دهغي څوك ورکونکي نشته او ستا په وړاندي دکوم نصيب والاکوم نصيب پکار نه راځي، دا هم مروي دي چي رسول الله صلي الله عليه وسلم به دسلام ګرځولو نه پس به "سبحان ربك رب العزة عما يصفون وسلام علي المرسلين والحمدلله رب العالمين" ونيل يعني پاك دي رب ستا چي عزت والا دي دهر هغه نقصان نه چي دوئ يي بيانوي اوسلامتي دي وي په رسولانو باندي او تمام تعريفونه دهغه ذات دپاره دي څوك، چي دتمام جهان رب دي، او په دي باب کي دثوبان، ابن عمر، ابن عباس، ابوسعيد، ابوهريره، او مغيره بن شعبه رضي الله عنهم نه هم احاديث وارد دي.

**لغات** : مانع دفتح يفتح نه منع يمنع منعا معني منع کول ، معطي معني ورکونکي دباب افعال نه.

**تشريح** : "اذا فرغ من الصلاة" يعني کله چي به رسول الله دمونځ نه فارغ شو نو دا دعا به يي ونيله دلته دمونځ نه مراد فرض مونځ دی او دبعضو په نزد نفلي مونځ مراد دی ليکن داکثرو په نزد فرض مراد دی.

[1] صحيح مسلم في المساجد ٢٦ (٥٩٢) . سنن ابي داود في الصلاة ٣٦٠ (١٥١٢) . سنن النسائي في السهو ٨٢ (١٣٣٩) . سنن ابن ماجه في الإقامة ٣٢ (٩٢٢) . (تحفة الأشراف : ١٦١٨٤) . مسند احمد (٦ في ٦٢، ١٨٤، ٢٣٥) . سنن الدارمي في الصلاة ٨٨ (١٣٨٤) (صحيح)

Scanned with C

درسول الله نه چي كومي دعاگاني منقول دي هغه به عموما دسنتو نه پس وي اوپه فرائضو كي به رسول الله عموما مختصره دعا غوښتله.

علامه شامي وائي "يكره تأخير السنه الا بقدر اللهم انت السلام "الخ.

په فتاوي عالمگيري كي دي وفي الهندية عن الحجة للامام اذا فرغ من الظهر والمغرب والعشاء يشرع في السنة ولا يشتغل بأدعية طويلة .كذا في التتارخانية.

ترجمه: په فتاوي هنديه او تترخانيه كي دي چي كله امام دماسپخين او ماښام او ماخوستن مونځونو نه فارغ شي نو سنت ادا كول دي شروع كړي او اوږدي اوږدي دعاگاني دي نه كوي په منية المصلي كي داسي دي فان كان بعدها اي بعد مكتوبة تطوع يقوم الي التطوع بلا فصل الامقدارما يقول اللهم انت السلام الخ.

ددي دلائلو نه دا خبره معلوميږي چي دفرائضو نه پس مختصر دعا كول پكار دي او دسنتون نه پس چي څوك څومره دعا كول غواړي كولى يي شي او درسول الله نه چي څومره اوږدي دعاگاني منقول دي هغه ټولي دنوافلو نه پس دي.

***************

٣٠٠_ حَدَّثَنَا أَحْمَدُ بْنُ مُحَمَّدِ بْنِ مُوسَى، حَدَّثَنَا عَبْدُ اللَّهِ بْنُ الْمُبَارَكِ، أَخْبَرَنَا الأَوْزَاعِيُّ، حَدَّثَنِي شَدَّادٌ أَبُو عَمَّارٍ، حَدَّثَنِي أَبُو أَسْمَاءَ الرَّحَبِيُّ، قَالَ: حَدَّثَنِي ثَوْبَانُ مَوْلَى رَسُولِ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ قَالَ: "كَانَ رَسُولُ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ إِذَا أَرَادَ أَنْ يَنْصَرِفَ مِنْ صَلَاتِهِ اسْتَغْفَرَ اللَّهَ ثَلَاثَ مَرَّاتٍ، ثُمَّ قَالَ: اللَّهُمَّ أَنْتَ السَّلَامُ وَمِنْكَ السَّلَامُ تَبَارَكْتَ يَا ذَا الْجَلَالِ وَالْإِكْرَامِ". قَالَ أَبُو عِيسَى: هَذَا حَدِيثٌ حَسَنٌ صَحِيحٌ. وَأَبُو عَمَّارٍ اسْمُهُ: شَدَّادُ بْنُ عَبْدِ اللَّهِ. [1]

**ترجمه**: د ثوبان رضي الله عنه بيان دي فرماني چي كله به رسول الله صلي الله عليه وسلم دمونځ نه فارغ شو نو دري ځلي به يي استغفرالله ويل او بيا به يي دا كلمات ويل "اللهم انت السلام ومنك السلام تباركت يا ذوالجلال والاكرام" امام ترمذي وائي داحديث حسن صحيح دي.اود ابو عمار نوم شداد بن عبد الله دي

**لغات**: استغفرالله: استغفار معني مغفرت طلب كول ، غفر يغفر غفورا ، الغفور الغفار بخونكي ، دمونث او مذكر دواړو دپاره استعماليږي

---

[1] صحيح مسلم في المساجد ٢٦ (٥٩١) . سنن ابي داود في الصلاة ٣٦٠ (١٥١٣) . سنن النسائي في السهو ٨١ (١٣٣٨) . سنن ابن ماجه في الإقامة ٣٢ (٩٢٨) . (تحفة الأشراف : ٢٠٩٩) . مسند احمد (٥ في ٢٧٥، ٢٧٩)

Scanned with C

سلام د الله تعالي په اسماء صفاتيه عاليه كي يوم مبارك او پر اسرار نوم دی چي ورد كول يي د ډيرو فوائد دحصول باعث ګرځي، والله اعلم.

**تشريح**: درسول الله عادت مبارك دا وو چي كله به هم دمونځ نه فارغ شو نو دري ځلي به يي استغفار ونيلو. علماو ددي وجه دا ليكلي ده چي ددي په ونيلو كي امت ته تعليم دی چي دنيك كار كولو نه پس هم استغفار ونيل پكار دي خكه چي بندګانو ته دخرنګه عبادت كولو حكم دی انسان هغه په اسانۍ سره نشي پوره كولی بعضي علماء وائي چي په دي كي رسول الله خپله عاجزي او انكساري بيان كړي ده علماء وائي دا يوه ډيره جامع ترينه دعا ده او د "اللهم انت السلام" مطلب دادی چي الله تعالي دتقصيراتو نه پاك دی او دتمامو عيوب او نقائصو نه او حوادثو نه مبراء دی.

دويم مطلب دا كيدي شي چي تمامه سلامتي دالله تعالي دطرف نه راځي په دي كي دي خبري ته هم اشاره ده چي كله سلامتي دالله تعالي دطرف نه راځي نو بيا انسان لره هم پكار دي چي صرف دالله تعالي نه غوښتل اوكړي او دبل چانه غوښتل اونكړي.

ياذاالجلال: دمسلم په روايت كي حرف نداء نشته صرف ذالجلال والاكرام دی ذا په معني دصاحب دی نو ذا الجلال معني شوه صاحب دبلندۍ

والاكرام: يعني الله تعالي په بندګانو انعام كونكی دی.

بعضي خلقو په دي دعا كي "اليك يرجع السلام فحينا ربنا بالسلام وادخلنا دارالسلام" اضافه كړي ده ددي په باره كي علامه ابن جوزي په كتاب الصحيح كي او ملاعلي قاري په مرقات كي ليكلي دي چي دا موضوعي دی او ددي هيڅ اصل نشته

***************

## ١١٣_ بَاب مَا جَاءَ فِي الاِنْصِرَافِ عَنْ يَمِينِهِ، وَعَنْ شِمَالِهِ.

## دمونځ نه پس ښي طرف ته او كس طرف ته دګرځيدو بيان

٣٠١_ حَدَّثَنَا قُتَيْبَةُ، حَدَّثَنَا أَبُو الأَحْوَصِ، عَنْ سِمَاكِ بْنِ حَرْبٍ، عَنْ قَبِيصَةَ بْنِ هُلْبٍ، عَنْ أَبِيهِ، قَالَ: كَانَ رَسُولُ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ " يَؤُمُّنَا فَيَنْصَرِفُ عَلَى جَانِبَيْهِ جَمِيعًا عَلَى يَمِينِهِ وَعَلَى شِمَالِهِ " وَفِي البَاب عَنْ عَبْدِ اللَّهِ بْنِ مَسْعُودٍ، وَأَنَسٍ، وَعَبْدِ اللَّهِ بْنِ عَمْرٍو، وَأَبِي هُرَيْرَةَ. قَالَ أَبُو عِيسَى: حَدِيثُ هُلْبٍ حَدِيثٌ حَسَنٌ، وَعَلَيْهِ العَمَلُ عِنْدَ أَهْلِ العِلْمِ، أَنَّهُ يَنْصَرِفُ عَلَى أَيِّ جَانِبَيْهِ شَاءَ إِنْ شَاءَ عَنْ يَمِينِهِ وَإِنْ شَاءَ عَنْ يَسَارِهِ، وَقَدْ صَحَّ الأَمْرَانِ عَنِ النَّبِيِّ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ، وَيُرْوَى عَنْ

Scanned with C

عَلِيِّ بْنِ أَبِي طَالِبٍ أَنَّهُ قَالَ: "إِنْ كَانَتْ حَاجَتُهُ عَنْ يَمِينِهِ أَخَذَ عَنْ يَمِينِهِ وَإِنْ كَانَتْ حَاجَتُهُ عَنْ يَسَارِهِ أَخَذَ عَنْ يَسَارِهِ".[1]

**ترجمه** د هلب رضي الله عنه بيان دى فرماني چي رسول الله صلي الله عليه وسلم به مونږ ته امامت راكړو اود سلام كرخولو نه پس به خپلو دواړو طرفونو ته واپس روانيدو كله به په ښي طرف روان شو او كله به په كس طرف روان شو

امام ترمذي وايي چي د هلب حديث حسن صحيح دى. او په همدي د اهل علمو عمل دى. چي امام كه خپل هرطرف ته تلل اوغواړي تللى شي چي په ښي طرف روانيږي او كه په كس طرف . درسول الله صلي الله عليه وسلم نه دواړه خبري ثابتي دي. اود علي رضي الله عنه بيان دي كه د رسول الله به ښي طرف ته څه كار وو نو په ښي طرف به روان شو او كه په كس طرف به يي كار وو نو په چپ طرف به روان شو.

## د ابوبشر قبيصه بن مخارق رضي الله عنه حالات

نوم قبيصه دپلار نوم مخارق كنيه ابوبشر سلسله دنسب يي داسي ده قبيصه بن مخارق بن عبدالله بن شداد بن ربيعه بن نهيك بن حلال بن عامر الحلالي البصري پخپلي قبيلي سره دوفد په شكل كي راغلى وو او اسلام يي قبول كړو دبصري اوسيدونكى وو شپږ احاديث ورنه مروي دي.

***************

## ١١٤_ باب مَا جَاءَ فِي وَصْفِ الصَّلاَةِ

## د مونځ د طريقي بيان

٣٠٢_ حَدَّثَنَا عَلِيُّ بْنُ حُجْرٍ. أَخْبَرَنَا إِسْمَاعِيلُ بْنُ جَعْفَرٍ. عَنْ يَحْيَى بْنِ عَلِيِّ بْنِ يَحْيَى بْنِ خَلَّادِ بْنِ رَافِعٍ الزُّرَقِيِّ. عَنْ جَدِّهِ. عَنْ رِفَاعَةَ بْنِ رَافِعٍ. أَنَّ رَسُولَ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ بَيْنَمَا هُوَ جَالِسٌ فِي الْمَسْجِدِ يَوْمًا. قَالَ رِفَاعَةُ: وَنَحْنُ مَعَهُ إِذْ جَاءَهُ رَجُلٌ كَالْبَدَوِيِّ فَصَلَّى فَأَخَفَّ صَلَاتَهُ ثُمَّ انْصَرَفَ. فَسَلَّمَ عَلَى النَّبِيِّ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ. فَقَالَ النَّبِيُّ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ: "وَعَلَيْكَ فَارْجِعْ فَصَلِّ فَإِنَّكَ لَمْ تُصَلِّ. فَرَجَعَ فَصَلَّى ثُمَّ جَاءَ فَسَلَّمَ عَلَيْهِ. فَقَالَ: وَعَلَيْكَ فَارْجِعْ فَصَلِّ فَإِنَّكَ لَمْ تُصَلِّ.

---

[1] سنن ابي داود في الصلاة ٢٠٤ (١٠٤١). سنن ابن ماجه في الإقامة ٢٢ (٩٢٩). (تحفة الأشراف: ١١٤٣٣). مسند احمد (٥ في ٢٢٦)

فَفَعَلَ ذَلِكَ مَرَّتَيْنِ أَوْ ثَلاثًا كُلُّ ذَلِكَ يَأْتِي النَّبِيَّ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ، فَيُسَلِّمُ عَلَى النَّبِيِّ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ. فَيَقُولُ النَّبِيُّ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ: وَعَلَيْكَ فَارْجِعْ فَصَلِّ فَإِنَّكَ لَمْ تُصَلِّ. فَخَافَ النَّاسُ وَكَبُرَ عَلَيْهِمْ أَنْ يَكُونَ مَنْ أَخَفَّ صَلَاتَهُ لَمْ يُصَلِّ". فَقَالَ الرَّجُلُ فِي آخِرِ ذَلِكَ: فَأَرِنِي وَعَلِّمْنِي فَإِنَّمَا أَنَا بَشَرٌ أُصِيبُ وَأُخْطِئُ. فَقَالَ: "أَجَلْ إِذَا قُمْتَ إِلَى الصَّلَاةِ فَتَوَضَّأْ كَمَا أَمَرَكَ اللهُ ثُمَّ تَشَهَّدْ وَأَقِمْ فَإِنْ كَانَ مَعَكَ قُرْآنٌ فَاقْرَأْ وَإِلَّا فَاحْمَدِ اللهَ وَكَبِّرْهُ وَهَلِّلْهُ ثُمَّ ارْكَعْ فَاطْمَئِنَّ رَاكِعًا ثُمَّ اعْتَدِلْ قَائِمًا ثُمَّ اسْجُدْ فَاعْتَدِلْ سَاجِدًا ثُمَّ اجْلِسْ فَاطْمَئِنَّ جَالِسًا ثُمَّ قُمْ فَإِذَا فَعَلْتَ ذَلِكَ فَقَدْ تَمَّتْ صَلَاتُكَ وَإِنِ انْتَقَصْتَ مِنْهُ شَيْئًا انْتَقَصْتَ مِنْ صَلَاتِكَ" قَالَ: وَكَانَ هَذَا أَهْوَنَ عَلَيْهِمْ مِنَ الْأَوَّلِ، أَنَّهُ مَنِ انْتَقَصَ مِنْ ذَلِكَ شَيْئًا انْتَقَصَ مِنْ صَلَاتِهِ وَلَمْ تَذْهَبْ كُلُّهَا. قَالَ: وَفِي الْبَابِ عَنْ أَبِي هُرَيْرَةَ، وَعَمَّارِ بْنِ يَاسِرٍ. قَالَ أَبُو عِيسَى: حَدِيثُ رِفَاعَةَ بْنِ رَافِعٍ حَدِيثٌ حَسَنٌ، وَقَدْ رُوِيَ عَنْ رِفَاعَةَ هَذَا الْحَدِيثُ مِنْ غَيْرِ وَجْهٍ. (1)

**ترجمه** : درفاعه بن رافع رضي الله عنه بيان دي چي يوه ورځ رسول الله صلي الله عليه وسلم په مسجد کي ناست وو او مونږ هم ورسره ناست وو چي په دي دوران کي يو کس راغي چي باندچي ښکاريدو، دراتلو سره يي مونځ اوکړو او ډير يي په جلتئ جلتئ اوکړو او بيا واپس راروان شو نبي کريم صلي الله عليه وسلم ته يي سلام اوکړو نو رسول الله ورته اوفرمائيل په تا دي هم سلام وي واپس ورشه او مونځ اوکړه ځکه چي تا مونځ نه دي کړي دا کس دوباره لاړو او بيا يي مونځ اوکړو دواپس راتلو سره يي سلام اوکړو رسول الله ورته بيا اوفرمائيل په تا دي هم سلام وي واپس لاړ شه او مونځ اوکړه ځکه چي تا مونځ نه دي کړي په دي شان سره ده دوه پيري يا دري پيري په رسول الله سلام واچولو او هغه به ورته فرمائيل په تادي هم سلام وي واپس ورشه او مونځ اوکړه ځکه چي تا مونځ نه دي کړي، خلق اوويريدل او دا کار ورته مشکل ښکاره شو چي څوك مختصر مونځ اوکړي دهغه مونځ نه کيږي، اخر دا چي دي کس عرض اوکړو چي تاسو راته دمونځ طريقه اوښايئ زه خو انسان يم صحيح هم کولي شي او غلطي هم کولي شم رسول الله ورته اوفرمائيل کله چي په مونځ اودريدو اراده اوکړي نو اول به اودس اوکړي په داسي شان سره څنګه چي تاته د اودس کولو حکم شوي دي بيا به اذان اوکړي او تکبير به اووائي نو که تاته دقران څه حصه ياده وي هغه بـ اووائي او که نه وي ياده نو الحمدلله، الله اکبر او لااله الاالله اووايه او بيا رکوع ته لاړ شه ښه په اطمينان سره رکوع اوکړه او درکوع کولو نه پس بالکل نيغ اودريږه او بياسجده اوکړه سجده ښه په اعتدال سره اوکړه او بيا

1 سنن ابي داود في الصلاة ١٤٨ (٨٥٧، ٨٦١) ، سنن النسائي في الأذان ٢٨ (٦٦٨) ، والتطبيق ٧٧ (١١٣٧) ، سنن ابن ماجه في الطهارة ٥٧ (٤٦٠) ، (تحفة الأشراف : ٣٦٠٤) ، مسند احمد (٤ في ٣٤٠) ، سنن الدارمي في الصلاة ٧٨ (١٣٦٨)

كينه او ښه په اطمينان سره كينه بيا به اودريږي هر كله چي تا داسي اوكړل نو ستا مونځ به پوره شي او كچري تا په دي كي څه كمي اوكړو نو په دغه هومره مقدار به ستا په مونځ كي كمي راشي راوي ،رفاعه، وائي دا خبره ورته دمخكي نه اسانه ښكاره شوه چي چا په مونځ كي كمي اوكړو نوده په مونځ كي هم دغه هومره كمي اوكړو يعني پوره مونځ يي نه كيږي.

امام ترمذي وائي درفاعه بن رافع حديث حسن صحيح دي او درفاعه نه دا حديث په نورو سندونو هم مروي دي، او په دي باب كي دابوهريره او عمار بن ياسر رضي الله عنهم نه هم احاديث وارد دي.

**لغات** : انصرف . انصرف ينصرف انصرافا په معني دواپس كيدو سره . صرف صرفا په معني دخرچ كولو ، تصريف دباب تفعيل نه په معني دګرځولو دي.

## درفاعه بن رافع رضي الله عنه حالات:

نوم رفاعه كنيه ابو معاذ دمور نوم ام مالك بنت ابي سلول چي د عبدالله بن ابي منافق خور ود. رفاعه پلار رافع په قبيله بني خزرج كي دهغو نه ړومبی مسلمانيدونكی شخصيت دی. دبيعت عقبه نه دوه كاله مخكي مسلمان شوی دی او دده مور هم رښتوني مومنه وه او رفاعه پخپله په عقبه ثانيه كي دخپل پلار سره مكي ته لاړو او درسول الله په لاس مسلمان شو او په تمامو غزواتو كي يي شركت كړی دی دبدر ذكر خو په بخاري كي دی خو په جنګ جمل او صفين كي هم دعلي رضي الله عنه سره ملګری وو چي په ۴۱ يا ۴۲هجري كي وفات شوی دی او دا دامير معاويه دحكومت ابتدائي زمانه وه يو څو روايات ورنه مروي دي چي دري ددينه په بخاري كي هم موجود دي.

***************

۳۰۲_ حَدَّثَنَا مُحَمَّدُ بْنُ بَشَّارٍ، حَدَّثَنَا يَحْيَى بْنُ سَعِيدٍ الْقَطَّانُ، حَدَّثَنَا عُبَيْدُ اللَّهِ بْنُ عُمَرَ، أَخْبَرَنِي سَعِيدُ بْنُ أَبِي سَعِيدٍ، عَنْ أَبِيهِ، عَنْ أَبِي هُرَيْرَةَ، أَنَّ رَسُولَ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ دَخَلَ الْمَسْجِدَ، فَدَخَلَ رَجُلٌ فَصَلَّى، ثُمَّ جَاءَ فَسَلَّمَ عَلَى النَّبِيِّ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ فَرَدَّ عَلَيْهِ السَّلَامَ، فَقَالَ: " ارْجِعْ فَصَلِّ فَإِنَّكَ لَمْ تُصَلِّ " فَرَجَعَ الرَّجُلُ فَصَلَّى كَمَا كَانَ صَلَّى، ثُمَّ جَاءَ إِلَى النَّبِيِّ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ فَسَلَّمَ عَلَيْهِ فَرَدَّ عَلَيْهِ السَّلَامَ، فَقَالَ لَهُ رَسُولُ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ: " ارْجِعْ فَصَلِّ فَإِنَّكَ لَمْ تُصَلِّ " حَتَّى فَعَلَ ذَلِكَ ثَلَاثَ مِرَارٍ، فَقَالَ لَهُ الرَّجُلُ: وَالَّذِي بَعَثَكَ بِالْحَقِّ مَا أُحْسِنُ غَيْرَ هَذَا فَعَلِّمْنِي، فَقَالَ: " إِذَا قُمْتَ إِلَى الصَّلَاةِ فَكَبِّرْ ثُمَّ اقْرَأْ بِمَا تَيَسَّرَ مَعَكَ مِنَ الْقُرْآنِ ثُمَّ ارْكَعْ حَتَّى تَطْمَئِنَّ رَاكِعًا ثُمَّ ارْفَعْ حَتَّى تَعْتَدِلَ قَائِمًا ثُمَّ اسْجُدْ حَتَّى تَطْمَئِنَّ سَاجِدًا ثُمَّ ارْفَعْ حَتَّى تَطْمَئِنَّ جَالِسًا

وَافْعَلْ ذَلِكَ فِي صَلَاتِكَ كُلِّهَا ". قَالَ أَبُو عِيسَى: هَذَا حَدِيثٌ حَسَنٌ صَحِيحٌ. قَالَ: وَقَدْ رَوَى ابْنُ نُمَيْرٍ هَذَا الْحَدِيثَ، عَنْ عُبَيْدِ اللَّهِ بْنِ عُمَرَ، عَنْ سَعِيدٍ الْمَقْبُرِيِّ، عَنْ أَبِي هُرَيْرَةَ، وَلَمْ يَذْكُرْ فِيهِ عَنْ أَبِيهِ، عَنْ أَبِي هُرَيْرَةَ، وَرِوَايَةُ يَحْيَى بْنِ سَعِيدٍ، عَنْ عُبَيْدِ اللَّهِ بْنِ عُمَرَ أَصَحُّ، وَسَعِيدٌ الْمَقْبُرِيُّ قَدْ سَمِعَ مِنْ أَبِي هُرَيْرَةَ، وَرَوَى عَنْ أَبِيهِ، عَنْ أَبِي هُرَيْرَةَ، وَأَبُو سَعِيدٍ الْمَقْبُرِيُّ اسْمُهُ: كَيْسَانُ، وَسَعِيدٌ الْمَقْبُرِيُّ يُكْنَى أَبَا سَعْدٍ، وَكَيْسَانُ عَبْدٌ كَانَ مُكَاتَبًا لِبَعْضِهِمْ. [1]

**ترجمه** دابوهريره رضي الله عنه نه روايت دي چي يو خل رسول الله صلي الله عليه وسلم مسجد ته داخل شو او دي و... كي يو كس راغي مونځ يي اوكړو او په رسول الله يي سلام واچولو نو رسول الله ورته اوفرمائيل په تا دي هم سلام وي واپس ورشه او مونځ اوكړه ځكه چي تا مونځ نه دي كړي دا كس دوباره لاړو او بيا يي مونځ اوكړو دواپس راتلو سره يي سلام اوكړو رسول الله ورته بيا اوفرمائيل په تا دي هم سلام وي واپس لاړ شه او مونځ اوكړه ځكه چي تا مونځ نه دي كړي په دي شان سره ده دري پيري په رسول الله سلام واچولو او هغه به ورته فرمائيل په تادي هم سلام وي واپس ورشه او مونځ اوكړه ځكه چي تا مونځ نه دي كړي،دي وخت كي دي كس عرض اوكړو زما دي په هغه ذات قسم وي چاچي ته دحق دپاره راليږلي يي ددينه يي بهتر نشم كولي لهذا تاسو راته اوښايئ رسول الله ورته اوفرمائيل كله چي ته دمونځ اراده اوكړي نو الله اكبر اووائيه او بيا چي درته په قران كي څه ياد وي هغه اووايه او بيا ركوع اووايه تردي چي په ركوع كي دي ښه اطمينان راشي، بيا سر پورته كړه تردي پوري چي په ښه شان سره نيغ اودريږي بيا سجده اوكړه تردي چي ښه په اطمينان سره سجده اوكړي بيا اودريږه تردي چي په اطمينان سره نيغ اودريږي او په دي طريقه خپل ټول مونځ پوره كړه

امام ترمذي واني دا حديث حسن صحيح دي . ابن نمير دعبيدالله ابن عمر نه په همدي سند نقل كړي دي ليكن د عن ابيه واسطه يي نه ده ذكر كړي. ديحيي القطان په روايت كي عبدالله بن عمر عن سعيد بن ابي المقبري عن ابيه عن ابي هريره سند راغلي دي او دا زيات صحيح سند دي.

او دسعيد مقبري سماع دابوهريره نه ثابت ده هغه دخپل پلار نه روايت كړي دي او پلار يي دابوهريره او ابوسعيد مقبري نه دابوسعيد مقبري نوم كيسان دي او ابو سعيد يي اسم كنيه ده اوكيسان په صحابه كرامو كي ديو كس مكاتب غلام وو.

---

[1] صحيح البخاري في الأذان ٩٥ (٧٥٧) . و١٢٢ (٧٩٣) . والأيمان والنذور ١٥ (٦٢٥١) . صحيح مسلم في الصلاة ١١ (٣٩٧) . سنن ابي داود في الصلاة ١٤٨ (٨٥٦) . سنن النسائي في الافتتاح ٧ (٨٨٥) . والتطبيق ١٥ (١٠٥٢) . والسهو ٦٧ (١٣١٣) . سنن ابن ماجه في الإقامة ٧٢ (١٠٦٠) . (تحفة الأشراف : ١٤٣٠٤) . مسند احمد (٢ في ٤٣٧)

**تشريح** : په دي باب کي دمونځ تمام افعال په اجتماعي او ترکيبي شکل بيان شوي دي او په دي کي دري احاديث ذکر شوي دي چي دوه دخلاد بن رافع په واقعه مشتمل دي او يو حديث دابوحميد ساعدي دي.

***************

## ١١٥_ باب مِنْهُ

### دمونځ دطريقي متعلق يو بل باب

٣٠٤_ حَدَّثَنَا مُحَمَّدُ بْنُ بَشَّارٍ، وَمُحَمَّدُ بْنُ الْمُثَنَّى، قَالَا: حَدَّثَنَا يَحْيَى بْنُ سَعِيدٍ الْقَطَّانُ، حَدَّثَنَا عَبْدُ الْحَمِيدِ بْنُ جَعْفَرٍ، حَدَّثَنَا مُحَمَّدُ بْنُ عَمْرِو بْنِ عَطَاءٍ، عَنْ أَبِي حُمَيْدٍ السَّاعِدِيِّ، قَالَ: سَمِعْتُهُ وَهُوَ فِي عَشَرَةٍ مِنْ أَصْحَابِ النَّبِيِّ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ، أَحَدُهُمْ أَبُو قَتَادَةَ بْنُ رِبْعِيٍّ، يَقُولُ: أَنَا أَعْلَمُكُمْ بِصَلَاةِ رَسُولِ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ، قَالُوا: مَا كُنْتَ أَقْدَمَنَا لَهُ صُحْبَةً وَلَا أَكْثَرَنَا لَهُ إِتْيَانًا، قَالَ: بَلَى، قَالُوا: فَاعْرِضْ، فَقَالَ: كَانَ رَسُولُ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ إِذَا قَامَ إِلَى الصَّلَاةِ اعْتَدَلَ قَائِمًا وَرَفَعَ يَدَيْهِ حَتَّى يُحَاذِيَ بِهِمَا مَنْكِبَيْهِ، فَإِذَا أَرَادَ أَنْ يَرْكَعَ رَفَعَ يَدَيْهِ حَتَّى يُحَاذِيَ بِهِمَا مَنْكِبَيْهِ، ثُمَّ قَالَ: " اللَّهُ أَكْبَرُ، وَرَكَعَ ثُمَّ اعْتَدَلَ فَلَمْ يُصَوِّبْ رَأْسَهُ وَلَمْ يُقْنِعْ، وَوَضَعَ يَدَيْهِ عَلَى رُكْبَتَيْهِ، ثُمَّ قَالَ: سَمِعَ اللَّهُ لِمَنْ حَمِدَهُ، وَرَفَعَ يَدَيْهِ وَاعْتَدَلَ حَتَّى يَرْجِعَ كُلُّ عَظْمٍ فِي مَوْضِعِهِ مُعْتَدِلًا، ثُمَّ أَهْوَى إِلَى الْأَرْضِ سَاجِدًا، ثُمَّ قَالَ: اللَّهُ أَكْبَرُ، ثُمَّ جَافَى عَضُدَيْهِ عَنْ إِبْطَيْهِ وَفَتَخَ أَصَابِعَ رِجْلَيْهِ ثُمَّ ثَنَى رِجْلَهُ الْيُسْرَى وَقَعَدَ عَلَيْهَا، ثُمَّ اعْتَدَلَ حَتَّى يَرْجِعَ كُلُّ عَظْمٍ فِي مَوْضِعِهِ مُعْتَدِلًا، ثُمَّ أَهْوَى سَاجِدًا، ثُمَّ قَالَ: اللَّهُ أَكْبَرُ، ثُمَّ ثَنَى رِجْلَهُ وَقَعَدَ وَاعْتَدَلَ حَتَّى يَرْجِعَ كُلُّ عَظْمٍ فِي مَوْضِعِهِ، ثُمَّ نَهَضَ ثُمَّ صَنَعَ فِي الرَّكْعَةِ الثَّانِيَةِ مِثْلَ ذَلِكَ حَتَّى إِذَا قَامَ مِنَ السَّجْدَتَيْنِ كَبَّرَ وَرَفَعَ يَدَيْهِ حَتَّى يُحَاذِيَ بِهِمَا مَنْكِبَيْهِ كَمَا صَنَعَ حِينَ افْتَتَحَ الصَّلَاةَ، ثُمَّ صَنَعَ كَذَلِكَ حَتَّى كَانَتِ الرَّكْعَةُ الَّتِي تَنْقَضِي فِيهَا صَلَاتُهُ أَخَّرَ رِجْلَهُ الْيُسْرَى، وَقَعَدَ عَلَى شِقِّهِ مُتَوَرِّكًا ثُمَّ سَلَّمَ ". قَالَ أَبُو عِيسَى: هَذَا حَدِيثٌ حَسَنٌ صَحِيحٌ، قَالَ: وَمَعْنَى قَوْلِهِ وَرَفَعَ يَدَيْهِ إِذَا قَامَ مِنَ السَّجْدَتَيْنِ يَعْنِي قَامَ مِنَ الرَّكْعَتَيْنِ. [1]

---

[1] صحيح البخاري في الأذان ١٣٥ (٨٢٨) . سنن ابي داود في الصلاة ١١٧ (٧٣٠) . سنن النسائي في التطبيق ٦ (١٠٤٠) . والسهو ٢ (١١٨٢) . و ٣٩ (١٠٦١) . (تحفة الأشراف : ١١٨٩٢) . وكذا (١١٨٩٧) . سنن الدارمي في الصلاة ٧٠ (١٣٤٦)

**ترجمه** دمحمد بن عمرو بن عطاء بيان دي چي دابو حميد ساعدي رضي الله عنه نه مي اوريدلي دي او ابو حميد يو دلسو صحابه كرامو نه دي دكومو دجملي نه چي ابو قتاده ربعي هم وو ابو حميد به وئيل زه په تاسو كي درسول الله صلي الله عليه وسلم دمونځ نه زيات خبردار يم خلقو ورته اووئيل ته خو نه زمونږ نه په اسلام كي مخكي يي او نه دي زمونږ نه زيات راتلل رسول الله صلي الله عليه وسلم مجلس ته كړي دي ابو حميد اووئيل دا خبره درسته ده ليكن ماته درسول الله صلي الله عليه وسلم دمونځ طريقه زياته ياده ده خلقو ورته اووئيل چي زياته درته معلومه ده نو پيش يي كړه ابو حميد اووئيل درسول الله صلي الله عليه وسلم چي به كله په مونځ اودريدو نو بالكل نيغ به اودريدو او خپل دواړه لاسونه به يي پورته كړل تردي چي دخپلو اوږوسره به يي برابر كړل او چي بيا به يي كله دركوع اراده كوله نوخپل دواړه لاسونه به يي پورته كول تردي چي داوږو سره به يي برابر كړل او بيا به يي الله اكبر اووئيل او ركوع به يي كوله بالكل نيغ به اودريدو نه به يي سر ښكته ټيټولو او نه به يي ډير نيغولو او خپل دواړه لاسونه به يي پخپلو زنګنانو ايخودلي وو، بيا به يي سمع الله لمن حمده اووئيل او دواړه لاسونه به يي پورته كړل نيغ به اودريدو تردي پوري چي دجسم هر هډوكي به يي سيده شو او خپل ځاي ته به اورسيدو بيا به دسجدي كولو دپاره زمكي طرف ته ټيټ شو او الله اكبر به يي اووئيل او خپلي دواړه متي به يي دتشو نه جدا ساتلي او دخپو ګوتي به يي كولاوي پريخودلي بيا به يي خپله ګسه خپه راتاو كړه او ورباندي به كيناستو تردي چي دومره به سيده شو چي هر يو هډوكي به خپل خپل ځاي ته ورسيدو او بيا به دويم ركعات ته پورته شو او همداسي به يي كول تردي چي دويم ركعات به يي اوكړو هر كله چي به دريم ركعات ته پاڅيدو نو الله اكبر به يي اووئيل او خپل دواړه لاسونه به يي پورته كول تردي چي دخپلو اوږو سره به يي برابر كړل داسي دده لكه چي اوس يي كړي دي همداسي به يي كول تردي پوري چي ركعات به يي ختم شو نو خپله ښۍ خپه به يي روسته كړه يعني ښۍ خپه به يي دلاندي طرف نه راوويستله او په هغې به كيناستو او بيا به يي سلام ګرځولو.

امام ترمذي وائي دا حديث حسن صحيح دي او دده دقول "رفع يديه اذا قام من السجدتين" مطلب دادي چي كله به د دوه ركعاتو نه پس دريم ركعات ته پاڅيدو.

***************

٣٠٥_ حَدَّثَنَا مُحَمَّدُ بْنُ بَشَّارٍ، وَالْحَسَنُ بْنُ عَلِيٍّ الْخَلَّالُ الحلواني، وسلمة بن شبيب، وغير واحد، قَالُوا: حَدَّثَنَا أَبُو عَاصِمٍ النَّبِيلُ، حَدَّثَنَا عَبْدُ الْحَمِيدِ بْنُ جَعْفَرٍ، حَدَّثَنَا مُحَمَّدُ بْنُ عَمْرِو بْنِ عَطَاءٍ، قَالَ: سَمِعْتُ أَبَا حُمَيْدٍ السَّاعِدِيَّ فِي عَشَرَةٍ مِنْ أَصْحَابِ النَّبِيِّ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ مِنْهُمْ أَبُو قَتَادَةَ بْنُ رِبْعِيٍّ، فَذَكَرَ نَحْوَ حَدِيثِ يَحْيَى بْنِ سَعِيدٍ بِمَعْنَاهُ، وَزَادَ فِيهِ أَبُو عَاصِمٍ، عَنْ عَبْدِ الْحَمِيدِ بْنِ

جَعْفَرٍ هَذَا الحَرْفَ. قَالُوا: صَدَقْتَ هَكَذَا صَلَّى النَّبِيُّ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ. قَالَ أَبُو عِيسَى: زَادَ أَبُو عَاصِمٍ الضَّحَّاكُ بْنُ مَخْلَدٍ فِي هَذَا الحَدِيثِ، عَنْ عَبْدِ الحَمِيدِ بْنِ جَعْفَرٍ هَذَا الحَرْفَ. قَالُوا: صَدَقْتَ هَكَذَا صَلَّى النَّبِيُّ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ. ([1])

**ترجمه** محمد بن عمرو بن عطاء نه مروي دي چي ما د ابو حميد ساعدي رضي الله عنه نه دلسو صحابه كرامو په موجودګئ كي چي ابوقتاده پكي هم شامل وو اوريدلي دي او بيا يي ديحيي بن سعيد دحديث پشان او دهغه هم معني روايت ذكر كړو.

امام ترمذي وائي په دي حديث كي ابوعاصم ، ضحاك بن مخلد ، دعبدالحميد بن جعفر په واسطه ددي الفاظو اضافه كړي ده چي درسول الله صلي الله عليه وسلم دمونځ دي صفت او كيفيت لره اوريدونكو لسو صحابه كرامو اوونيل چي تا صحيح اوونيل نبي كريم صلي الله عليه وسلم به همداسي مونځ كولو.

**دسهل بن سعد ساعدي رضي الله عنه حالات**

نوم سهل كنيه ابو حميد ، ابو العباس ، ابو مالك، ابو يحيي. دهجرت نبوي نه پنځه كاله مخكي پيدا شوي وو پلار ورله حزن نوم ايخودلي وو ليكن رسول الله صلي الله عليه وسلم وربانديي نوم بدل كړو او سهل نوم يي وربانديي كيخودو ، دده پلارغزوه بدر ته دتلو اراده كړي وه ليكن دتلو نه مخكي وفات شو او رسول الله صلي الله عليه وسلم دتمامو مجاهدينو پشان دده دپاره هم حصه مقرره كړه سهل داكابر صحابه كرامو دوفات كيدو نه پس دخلقو مرجع اوګرځيدو دلري لري علاقو خلق به دده د درس حلقي ته راتلل سهل يو خل دنبي كريم صلي الله عليه وسلم دپاره دمديني دمشهور كوهي بير بضاعه نه دځكلو دپاره اوبه هم راويستلي وي (مسند احمد).

وفات: دهجرت په ۹۱كي دشپږ نوي كالو په عمر كي وفات شو او دده دمروياتو شمير ۱۸۸دی چي ۲۸متفق عليه دي.

****************

ابوهلال "عبدالخالق" بن خان محمد خَرِيْجُ الجَامِعَة إِمْدَادُ العُلُوْمِ الإِسْلَامِيَّة پِشَاوَر
وفاضل وفاق المدارس العالمية (ايم اى اسلاميات) رابطه نمبر: ۰۳۳۳۹۱۲۱۱۹۲

[1] صحيح البخاري في الأذان ١٤٥ (٨٢٨) . سنن ابي داود في الصلاة ١١٧ (٧٣٠) . سنن النسائي في التطبيق ٦ (١٠٣٠) . والسهو ٢ (١١٨٢) ، و٢٩ (١٠٦١) . (تحفة الأشراف : ١١٨٩٢) ، وكذا (١١٨٩٧) . سنن الدارمي في الصلاة ٧٠ (١٣٢٦)